بسم الله الرحمن الرحیم

# معارف القرآن پښتو

مع

## آسان ترجمه قرآن

از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله

تالیف مفتی محمد شفیع رحمه الله

د مترجم شاه فیصل د طرفه اضافات

1. لفظی او بامحاوره ترجمه
2. د خلاصه تفسیر په ضمن کښې قرآنی آیاتونه
3. په حاشیه کښې د غیر تفسیر شوؤ آیاتونو تفسیر
4. په هر ورق باندې په سرونو کښې د الفاظو اضافه
5. د حروفو او ظروفو استعمال و ترتیب سره


فیصل کتب خانه

محله جنگی، پشاور



Scanned with Ca

محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ۵

پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمہ اللہ

مع

## آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امدادالعلوم وجامعه اسلامیه چارسده

خصوصیات مع تسهیلات واضافات

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ تکی په تکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د غیر تفسیر شده آیاتونو تفسیر ⑥ د عربۍ او فارسۍ د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل

فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پېښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دچهاپ حقوق صرف ناشرسره محفوظ دي

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتی اعظم پاکستان

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

## د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روغانیول جلال آباد
- مکتبه رحیمی خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علمی کتب خانه گردیز
- مکتبه علمیه اکوړه خټک
- دینی کتب خانه تیمرګره
- شیخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فریدیه خوست
- دیوبند کتب خانه خوست
- جدید رشیدیه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- مکتبه نعمانیه غزنی
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامین



Scanned with Ca

## پاره نمبر [۱۱]



Scanned with Ca

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## پاره نمبر [۱۲]



Scanned with Ca

Scanned with Ca

| |
|---|
| وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ |
| اوپوهه شئ ا چې بيشكه كوم ا مال دغنيمت چې اغستې دې تاسو ا ديو څيز نه ا نوبيشكه چې ا الله لره ده |
| [په دې خبره] پوهه شئ كه كوم څيز تاسو بطور غنيمت حاصل كړې دې انو د الله تعالى اود هغه |
| خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ |
| پنځمه حصه دهغې ا اود رسول ده ا اورشته دارانو لره ده ا اويتيمانو ا اومسكينانو |
| د رسول اود رشته دارانو او يتيمانو او مسكينانو او د مسافرو دپاره د هغې [مال غنيمت] |
| وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ وَمَآ |
| اومسافرو لره ده اكه چرى ايئ تاسو ا چې ايمان مو راوړې وى اپه الله باندې ا اوپه هغه څيز |
| پنځمه حصه ده اكه تاسو ايمان راوړنى وى په الله تعالى اوپه هغه [كتاب] چې |
| اَنْزَلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى |
| چې نازل كړې ووموږ ا په بنده خپل باندې ا په ورځ دفيصلې ا هغه ورځ اچې مخامخ شوې |
| موږ دفيصلې په ورځ باندې په خپل بنده نازل كړې دې [يعنى ورځ د جنگ بدر ا په كومه ورځ چه يوبل سره |
| الْجَمْعٰنِ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ |
| ا دواړه ډلې ا اوالله ا په هر څيز باندې ا قادردې ا |
| دوه ډلې [په ميدان جنگ كښې] مخامخ شوې ا او الله تعالى په هر څيز قادر دې ا |

## آسان ترجمه قرآن

او(اې مسلمانانو !) دا خبره خپل علم كښې راولئ چه تاسو كوم مال غنيمت حاصل كړئ نو دهغې پنځمه حصه دالله او د رسول ، او د هغه د خپلوانو او مسكينانو او مسافرو ده (چه د هغې اداكول په تاسو باندې واجب دي ) كه چرې تاسو په الله او په هغه څه باندې ايمان لرئ چه هغه په خپل بنده باندې د فيصلې په ورځ نازل كړي دي په كومه ورځ چه دوه ډلې مخامخ شوې وې. او الله په هر يو څيز قادر دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ﴾ او په دې خبره ځان پوهه كړئى چې كوم څيز [د كافرانو] د غنيمت په ډول تاسوته حاصل شى نودهغې حكم دادې چې [ټول پنځه حصې كړې شى، څلور حصې په كښې دجهاد كوونكو حق دې او يوه يعنى] ﴿فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ﴾ چې پنځمه حصه به ئې [بيا په پنځو حصو كښې تقسيمېږى چې يو په كښې] د الله او دهغه درسول ﷺ ده [يعنى نبى كريم ﷺ ته وركول به ئې داسې وى لكه چې الله ﷻ ته ئې وركړى] ﴿وَلِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى﴾ او [يوه حصه] دنبى كريم ﷺ د نژدې خپلوانو ده او [يوحصه] د يتيمانو ده او [يوه حصه] ﴿وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ﴾ دغريبانانو ده او [او يوه حصه] د مسافرو ده ﴿اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ﴾ كه تاسو په نبى كريم ﷺ باندې يقين ساتئ ﴿وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا﴾ او په هغه څيز [يقين لرئ] چې كوم موږ خپل بنده [محمد ﷺ] باندې نازل كړې وو ﴿يَوْمَ الْفُرْقَانِ﴾ دفيصلې په ورځ [يعنى]

Scanned with Ca

﴿يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ﴾ په كومه ورځ [د بدر كښې] چې دواړه ډلې [د مؤمنانو او كافرانو] سره يوبل ته مخامخ شوې وې [دې نه هغه غيبى مدد مراد دې چې د ملائكو په واسطه شوې وو يعنى كه په مونږ او زمونږ په غيبى مهربانيو يقين لرئ نو په دې حكم خان پوهه كړئى او عمل پرې اوكړئى دا مو خكه زيات كړو چې پنځمه حصه اوښكل درته ګران نه وى او دا اوګنړئ چې دا ټول غنيمت خالص د الله ﷻ په مدد سره په لاس راغلو ، بيا كه دا يوه پنځمه حصه رانكرې شوه نو څه اوشو ، په پنځو كښې هغه څلور حصې هم زمونږ د قدرت نه بهر وې بلكه خالص د الله ﷻ په قدرت سره راته په ګوته راغلې] ﴿وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ او الله ﷻ [يوازې] په هر څيز باندې پوره قدرت لرونكې دې [ستاسو خو دومره هم حق نه كيدو دا خو درته ډير څه په ګوتو درغلل]

## معارف او مسائل

په دې آيت كښې د غنيمت د مال حكمونه او ددې دويش قانون بيان شوې دې دې نه وړاندې درته د څو لفظونو تشريح كولې شى، د ،، غنيمت ،، لفظ په لغت كښې هغه مال دپاره استعماليږى چه دشمن نه ترلاسه كړې شى،دشريعت په اصطلاح كښې هغه مال ته ،،غنيمت،، وئيلې شى چه دغير مسلمونه دجنګ،غزااودبرراتلوپه وجه مسلمانانوته په لاس ورغلې وى او چې كوم مال ددوئ نه په صلح او رضا ، لاس ته راغلې وى،لكه جزيه اوخراج وغيره شو ،فئى،، بللې شى.

په قرآن كريم كښې هم پدې دواړولفظونوسره ددې دواړو قسمونو احكام ښودلى شوى دى،په سورت انفال كښې دمال غنيمت حكمونه بيان شويدى كوم چه دجنګ اوغزاپه وخت مسلمانانوته دَغير مسلمونه په لاس ورغلى وى،

دلته دټولونه اول داخبره په نظركښ لرل پكاردى،هغه داچه دقرآنى اواسلامى نظرئې په جوړدټولوكائناتو اصلى مالک يواځې الله تعالى دې چه هم هغه پيدا كړى دى،دانسان دمالک جوړيدويواځنې طريقه داده چه الله تعالى هغه لره دخپل قانون په ذريعه مالک ګرځولې وى لكه په سورت يسين كښې دځاروو په بيان كښې فرمائى:

﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ﴾ آياداخلق نه ګورى چه ځاروى موپه خپل لاس جوړكړل نوبياخلق ئې مالكان جوړ شو] مطلب دادې چې ددوئ ذاتى ملكيت نه دې بلكه مونږ پخپل فضل سره دوئ مالكان ګرځولى دى.

كله چه يوقوم الله تعالى نه باغيان شى يعنى په كفراوشرک كښې اخته شى نوددوئ د سمولودپاره الله تعالى اول خپل پيغمبران اوكتابونه ليږى،كوم بدبختان چه دې انعام الهى نه فائده وانخلى نو الله تعالى خپلو پيغمبرانوته د دوئ په مقابله كښې دجنګ اوجهادحكم وركوى،چه مطلب ئې دباغيانوځان اومال مباح كول دى،ولې چه دالله تعالى دوركړى مال نه دفائدې پورته كولودوئ حقدارپاتې نشو ،بلكه دد دوئ مالونه دسركارپه حق كښې ضبط شو چه په شريعت كښې ورته دمال غنيمت مال وئيلې شى،دغه مال د دوئ دګټواووتوخالص الله تعالى ددې مالک پاتې شو ،

پخوازمانه کښې به دغنیمت دمال نه دالله تعالی په حکم هیڅاته دفائدې اغستوحکم نه وو، دابه په ډاګه یواځې کیښودلې شو، آسمانی یوبریښنابه راغله هغه به ئې اوسیزلو دا د جهاد د قبلیدو نخښه هم وه،

خاتم النبیین ﷺ ته په خدائي ورکړوخصوصیتونوکښې یوخصوصیت داهم دې چه د غنیمت مال ئې امت دپاره حلال اوګرځولې شو، [مسلم] (۱) بلکه دې ته اطیب الاموال، [تولونه پاک مال] اووئیلې شو، وجه ئې داده چه کوم مال پخپله انسان ګټی هغه کښې ډیرې واسطې راځی چه پکښې مکروه اوحرام طریقې هم راتلې شی، لیکن دغنیمت مال دکفارودملکیت نه دراوتونه پس نیغ په نیغه دالله تعالی په ملکیت کښې پاتې شی اوبیانیغ په نیغه حقدارو مسلمانانوته په لاس ورځی، په دې شان پکښې دحراموالی اومکروهوالی هیڅ احتمال نشی کیدې، ددې مثال داسې واخلئ لکه دکوهې نه راوتلې اوبه یاپخپله زرغونه شوې ګیاچه نیغ په نیغه دالله تعالی انعام انسان ته په ګتوورځی، هیڅ انسانی واسطه ئې په منځ کښې نه وی،

خلاصه دکلام داشوه چه دغنیمت مال پخوانوامتونودپاره حلال نه وو، دې نیازبین امت ته دانعام په توګه حلال اوکرځولې شو، په دې آیت کښې ددې دویش ضابطه داسې بیان شویده،

﴿وَاعْلَمُوٓا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ﴾ دعربی لغت دقاعدې په جوړ اول خو لفظ ما په عموم باندې دلالت کوی بیا ددې عموم دتاکید مزید دپاره لفظ د، مِن شيء زیات کړې شو، په ی لحاظ معنی ئې داشوه چه دغنیمت هریوڅیزکه لوئ وی که ورکوتې، هغه ټول دې قانون لاندې راځی، که یوورکوټې څیزهم دویش دقانون نه بغیرڅوک واخلی نوپه دې سره به سخت مجرم ګرځی، همدغه وجه ده چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه دغنیمت دمال نه یوستن اوتارهم بې دشرعی حصې نه اغستل جائزنه دی، (۲) او دمال غنیمت نه یوڅیز هم بغیر د حصې نه اخستلو په حدیث شریف کښې، غلول، وئیلې شویدی سخت وعید [درکه] په دې راغلې ده اودعامې غلادمال نه زیات اوسخت حرام ګرځولې شوې دې،

دویش دې ضابطې ته چه داعنوان ورکړې شوددې مطلب ټول مسلمانان په دې خبرول دی چه الله تعالی دامال د دوئ دپاره دیوخاص ضابطې لاندې حلال ګرځولې دې. که دې نه په بله طریقه چادغنیمت مال ترلاسه کړونوهغه به وردپاره دجهنم څروټکه [ځکروټه] وی.

دادقرآن کریم یوخانګړې خصوصیت دې چه بل هیڅ قانون ته حاصل نه دې اوهم داد قرآنی قانون کامل تاثیراودکامیابئ اصلی رازدې چه اول دالله تعالی ویره اوآخرت مخې ته په راوستوانسان اوویرولې شی اوپه دویمه درجه کښې تعزیری سزاګانې هم جاری کړې شی،

چنانچه په ژورې کتنې سره معلومیږی چه هرکله په میدان جنګ کښې هله ګله وی دغیر مسلمودقبضې نه دحاصل شوی مال هیڅ تفصیل دوراندې نه دمسلمانانودامیرپه علم کښې نه وی اونه بل چاته معلومه وی، میدان جنګ هم عموماپه ځنګل اوصحراګانوکښې وی چه دپټولو ډیرې موقعې پکښې کیدې شی، یواځې دځه قانون په زورددغې مالونوحفاظت کول دچاپه وس کښې نشی کیدې، صرف دالله تعالی اودآخرت ویره، یومسلمان لره په دې مالونوکښې دمعمولی تصرف کولواودخل ورکولونه منع کولې شی،

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب المساجد ومواضع الصلاة: ج ۱، ص ۱۹۹

(۲) شعب الإیمان للبیهقی رقم الحدیث: ۵۳۶۱

اوس دويش ضابطې داسې بيانيږي ﴿فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ﴾
يعنې دغنيمت دمال په پنځمه برخه دالله تعالى دهغه دسول ﷺ درسول ﷺ دخپلوانو.
ديتيمانو مسكينانو او مسافرده،

دلته دژورې كتنې جوګه خبره داده چه دغنيمت دټول مال دويش بيان روان دې مګر قرآن كريم يواځې دهغې دپنځمې برخې دويش ضابطه دلته بيان كړه، دنورو څلورو برخو دويش بيان پكښې نشته، نو په دې كښې څه راز دې اود هغه څلورو حصو د تقسيم څه ضابطه ده ؟ ليكن كه په قرآن كريم كښې ژورنظر اوكړې شي نوجواب ئې هم په دغې الفاظو كښې داشان راوځي چه هركله قرآن كريم جهادكوونكو مسلمانانو ته خطاب په دې الفاظو، ﴿مَا غَنِمْتُمْ﴾ سره اوكړو [تاسو چه دغنيمت كوم مال ترلاسه كړو] دې سره اشاره دې ته اوكړې شوه چه دامال هم ددغه ترلاسه كوونكو مجاهدينو حق دې، بيا وريسې دااوفرمائيلې شوچه داپنځمه برخه دالله اورسول ﷺ وغيره ده، نو ددې نتيجه هم په ډاګه شوه چه دغه څلوروارو برخې دغنيمت كوونكو او جهادكوونكو مسلمانانو دي، ددې بل مثال په قرآن كريم كښې داسې راغلې دې: ﴿وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ﴾ [يعنې چه دمړي وارثان يواځې مورپلارئې وي نودمورئې دريمه برخه ده] نتيجه ئې دااوو ته چه پاتې دوه برخې به خامخادپلاروي. درسول الله ﷺ بيان اوعمل نه دپاتې څلوروبرخودويش پوره تفصيلات څرګندشوچه پاتې څلوربرخې ئې ديوخاص قانون لاندې په مجاهدينو اوويشلې

دپنځمې برخې دويش تفصيل په شپږوالفاظو كښې داسې راغلې دې: ، ﴿لِلَّهِ، لِلرَّسُولِ، وَلِذِي الْقُرْبَىٰ، الْيَتَامَىٰ الْمَسَاكِينِ، وَابْنِ السَّبِيلِ﴾

په دې كښې لفظ د ﴿لِلَّهِ﴾، خو يو ښكاره عنوان دې دهغه مصارفو چې په هغه كښې دا پنځمه حصه تقسيميږي يعنې دا ټول مصارف دالله ﷻ دپاره دي. او ددې لفظ په دې ځائې كښې د راوړلو يو خاص حكمت دې چې تفسير مظهري كښې هغې طرفته اشاره شوې ده: هغه دا چې درسول الله ﷺ اود دوئ ﷺ دخاندان دپاره دصدقومال حرام ګرځولې شوي دي. ځكه چې هغه ددوئ شان سره نه ښائي. او په دې وجه چې دا دمال هغه حصه ده چې خلقو د خپل مال د پاكولو دپاره ويستلې ده. او دې ته په حديث شريف كښې: اوساخ الناس، (۱) [دخلقو خيرې] وئيلې شويدي او دا دنبوت شان سره نه ښائي. (۲)

د مال غنيمت په پنځمه حصه كښې چونكه رسول كريم ﷺ ته اود نبي كريم ﷺ خاندان ته د قرآن پاك دې آيت مبارك حصه وركړې شوې ده. په دې وجه يې دې ځائې كښې تنبيه اوفرمائيله چې دا حصه د خلقو د ملكيت څخه نه ده راغلې بلكه بغير د څه واسطې نه د الله ﷻ د طرفه ده. لكه څنګه چې اوس اوس ذكر اوشو چې د غنيمت مال كافرانو د ملكيت څخه راوزي او نيغ په نيغه د الله ﷻ په ملكيت كښې راشي. او بيا دالله ﷻ د طرفه د انعام په طور تقسيميږي. په دې وجه دې خبرې ته اشاره كول چې رسول كريم ﷺ او ذوي القربى ته چې كومه حصه ملاويږي د مال غنيمت دخمس څخه، هغه د خلقو د صدقو مال نه دې بلكه نيغ په نيغه دالله ﷻ د طرفه

(۱) صحيح مسلم، كتاب الزكاة، باب تحريم الزكاة على رسول الله صلى الله عليه وسلم وعلى آله الخ: ج ۱، ص ۳۴۴
(۲) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۶۸

Scanned with Ca

انعام او فضل دې او د آيت مبارک په شروع کښې اوفرمائيلې شو چې ،لله، يعنې ټول مال د الله ﷻ خاص ملکيت دې . او د هغه د حکم مطابق به دا په مذکوره مصارفو کښې تقسيميږي.

په دې بنياد پنځمې برخې دويش اصلي ځايونه پنځه پاتې شو ،① رسول،② ذوي القربى ③ يتيمان، ④ مسکينان، ⑤ مسافر، بياد دوئ دحقداري درجې مختلفې دي، دقران کريم بلاغت ته اوګورئ چه د دوئ دحقدارئ ددرجو فرق ئې په څومره باريک اونازک انداز کښې ښکاره کړې دې، په اولو دوو ﴿وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِي الْقُرْبٰى﴾ باندلام داخل کړو اونوردرې پرېغيردلام راوړونه بغير عطف کړې شويدي،

په عربئ کښې لام دځه خصوصيت ښکاره کولو دپاره استعمالولې شي، په ﴿لِلّٰهِ﴾ کښې لام دې بيانولو دپاره راوړې شويدې، چه دټولو څيزونو اصل مالک الله تعالى دې او ﴿لِلرَّسُوْلِ﴾ کښې په لام راوړلوسره درسول الله ﷺ دحقدارئ خصوصيت بيانول په دې شان سره مقصوددی چه الله تعالى رسول الله ﷺ لره دغنيمت دمال صرف کولو اووېشلو حقدار ګرځولې دې چه حاصل ئې دامام طحاوي دتحقيق اودتفسير مظهرى[1] دتقرير مطابق دادې چه اګرکه دلته دخمس پنځه مصرفونه ښودلې شويدي ليکن په حقيقت کښې ددې پوره تصرف هغوئ ﷺ ته حاصل دې يعنې هغوئ ﷺ دخپل صوابديد په جوړپه خپله خوښه دغه خمس په دغه پنځو قسمونو کښې صرف کولې شي، لکه چه دسورت انفال په رومبى آيت کښې دپوره مال غنيمت همدغه حکم وو، چه رسول الله ﷺ ئې دخپل صوابديد په جوړچرته چه غواړي هلته ئې خرچ کړي، آيت ﴿وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ﴾ دغنيمت ټول مال پنځه برخې اوګرځولو ،څلور برخې ئې دمجاهدينو حق اوګرځولې خوپنځمه برخه هم په دغه حکم کښې پاتې شوه، چه دهغې خرچ کول درسول الله ﷺ په صوابديد پرېښودې شو، صرف دومره خبره زياته شوه چه دغه پنځمه برخه بياپه پنځو برخو کښې اووېشلې شوه، خو دجمهورو اوماما نو په نزد دهغوئ ﷺ په ذمه دا لازمى نه وه چه دغه پنځه برخې دپنځمې برخې دبرابرې برابرې وېشى بلکه دومره قدرې ضروري ووچه دغه پنځو قسمونو ټولو باندې اووېشى يادخپل صوابديد په جوړ څه ته پکښې ورکړي او څه ته پکښې ورنکړي.

ددې دټولونه لوئ دا ګيز دليل پخپله ددې آيت الفاظ اوپه دې کښې دبيان شوؤمصرفونو قسمونه دي چه دا ټول قسمونه عملا بيل بيل نه بلکه سره يوځائ هم کيدې شي، مثلاذوي القربى واخلئ چه دايتيمانان هم کيدې شي، مسکينان اومسافرهم، دغه شان مسکينان او مسافر يتيمانان هم کندې شي اوذوي القربى هم، مسکينان دمسافرو په لړ کښې هم راتلې شي که دغې ټولو قسمونو کښې سل بيل تقسيمول مقصود وې نو دا قسمونو په دې شان پکاروو چه ديو قسم بنده په بل قسم کښې داخل نه وې، ورنه بيا به دا ضروري ووچه څوک ذوي القربى، يتيم، مسکين، اومسافرهم دې نو هغه ته به هرحيثيت سره بيلې بيلې برخې ورکول پکاروو يعنې داسې کس به دڅلورو برخو حقدار وو څنګه چه دميراث دتقسيم طريقه ده حالانکه په امت کښې ددې هيڅوک قائل نه دي چه يو کس ته دڅلوربرخې ورکړې شي، په دې سره ددې آيت مقصد دا معلوم شو چه رسول الله ﷺ باندې داپابندي ايښودل نشته چه دې ټولو قسمونو ته دخامخا اويو شان برخې ورکړي، بلکه ددې

---

[1] ) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۷۸

مقصود دادي چه دغنيمت دخمس مال په دې پنځو قسمونو كښې په كوم قسم باندې څومره خرچ كول چه د دوئ ﷺ په رائ چه څومره مناسب وي هومره دوركوي [تفسير مظهري] (١)

همدغه وجه ده چه هركله فاطمة الزهراء ﷺ درسول الله ﷺ په وړاندې ددغه خمس نه ديو خادم سوال درسول الله ﷺ په خدمت كښې پيش كړو، دخپلې خوارئ، مشقت او كمزورئ سبب ئې هم ښكاره كړو، نورسول الله ﷺ دغه سوال اونه منلو اووې فرمائيل چه تاسو ﷺ نه زيات ضرورت د اصحاب صفه صحابه كرامو ﷺ ته دي چه ډير دنيستئ او غريبئ ژوند تيروي، داژه نشم كولې چه ددې خمس نه تاسو ﷺ ته برخه دركړم اوهغوئ ﷺ پريږدم [صحيح بخاري ومسلم] (٢) دې نه په ډاګه شوه چه دهريو قسم بيل بيل حق نه وو، ورنه په ذوى القربى كښې دفاطمة الزهراء ﷺ نه څوک زيات نزدې خپلوان كيدې شو، لهذا دا بيان دمصرفونو دې دحقدارئ بيان نه دې،

**دخمس تقسيم درسول الله ﷺ دوفات نه پس:** دجمهور امامان په نزد دغنيمت په پنځمه برخه كښې چه كومه برخه درسول الله ﷺ اينبولې شوې وه، هغه دهغوئ ﷺ دپيغمبرئ په بنا داسې وه چه په خصوصي ډول ورته دا هم حق وركړې شوې ووچه په ټول مال غنيمت كښې په خپله خوښه څه څيز واخلي څنګه ئې چه په څنو غنيمتونو كښې څه څيزونه خان دپاره اغستي وو اوهم ددغې خمس نه به ئې دخپل ځان اودخپل آل وعيال خرڅ پوره كولو، دهغوئ ﷺ دوفات نه پس دا برخه په خپله ځكه ختمه شوه چه دهغوئ ﷺ نه پس بل څوک پيغمبر نشته،

**دذوى القربى دپاره خمس [پنځمه برخه]:** په دې كښې دهيچا اختلاف نشته چه دهغه فقيرانو ذوى القربى حق دنورو [يعنى يتيمانو، مسكينانو او مسافرونه] وړاندې دې ولې چه دوئ ته زكوة، صدقات، ځكه نشي وركولې چه دا دخلقو خيرى دي، نورو يتيمانو، مسكينانو، مسافرو ته زكوة خيرات وركولې شي، الكه په هدايه كښې دا خبره په ،يقدمون، سره په ډاګه كړې شوې ده، (٣)

البته غنيانو ذوى القربى ته دخمس نه په برخه وركولو كښې اختلاف دې امام ابو حنيفه ﷫ فرمائيلي دي چه رسول الله ﷺ به په خپل حيات مبارك كښې چه ذوى القربى ته خمس كښې برخه وركوله دهغې دوه بنيادونه كيدې شو ① يو د هغوئ حاجتمندي او فقر ② دا چه هغوئ د دين په قائمولو او د اسلام ددفاع په معامله كښې درسول الله ﷺ امداد به كولو، هركله چه دا خبره درسول الله ﷺ وفات سره ختمه شوه نود دوئ برخه هم ختمه شوه اوكومو غريبانانو ذوى القربى ته به ئې چې په خپل حيات مبارك كښې برخه وركوله هغه د اولنى سبب فقر او حاجتمندئ په وجه اوس هم باقي ده، په دې بنا به هر امام او امير تر قيامته پورې دنورونه وړاندې دوئ ته برخه وركوى [هدايه، جصاص] (٤) دامام شافعي ﷫ نه هم دا قول منقول دې [قرطبي] (٥)

دبعضې فقهاؤ په نزد د ذوى القربى برخه په حيثيت د قرابت رسول ﷺ اوس هم په خمس

---

(١) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۸۸

(٢) دا الفاظ په صحيح بخاري او صحيح مسلم كښې نشته البته مسند أحمد رقم الحديث: ۵۹۸ كښې دا قسم الفاظ موجود دي.

(٣) الهدايه فصل في كيفية القسمة: ج ۲، ص ۳۸

(٤) أحكام القرآن للجصاص: ج ۶، ص ۲۰۰، باب قسمة الخمس والهداية بحواله بالا۔

(٥) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۶، ص ۱۱

دغنیمت کښې ترقیامته پورې شته که دوئ فقیران وي او که غنیان وی البته دخپل خپل وخت امیربه ورته دخپل صوابدید په جوړبرخه ورکوی. [تفسیر مظهری] [1]

په دې باره کښې اصلي خبره دخلفائ راشدینو تعامل دې چې دوئ د رسول کریم ﷺ د وفات نه پس څه معامله کړې وه؟ صاحب دهدائې ددې متعلق لیکی:

[ان الخلفاء الاربعه الراشدين قسموه على ثلاثة اسهم،] [2] څلوروخلفائ راشدین ﷺ دا هغوئ ﷺ دوفات نه پس دا په درې څایه کښې ویشلې ده ،یتیمانو،مسکینانو،اوفقیرانو باندې]

البته حضرت فاروق اعظم ﷺ نه ثابت دی چه فقیرانوذوی القربی ته به ئې دغنمیت دپنځمې برخې ورکوله، [ابوداؤد] [3] ښکاره خبره ده چه دا به یواځې دحضرت عمر ﷺ تخصیص نه ووبلکه دنوروخلفاؤ ﷺ به هم دغه عمل وو،

او کومورروایتونونه چه اثابته ده چه حضرت صدیق اکبر ﷺ اوفاروق اعظم ﷺ به دخپل خلافت ترآخرې زمانې پورې دذوی القربی حق اوښکلو او حضرت علی ﷺ به ئې ددې ویشلو دپاره مقررولو، [دامام ابی یوسف ﷺ دکتاب الخراج په روایت کښې] [4] نو داخبره دې سره بې سمونه نه ده چه دغه ویش به خاص دذوی القربی په فقیرانو وو، والله سبحانه وتعالی اعلم،

**فائده:** رسول الله ﷺ په خپل عمل سره ذوی القربی په دې شان تاکلی ووچه بنی هاشم خوهم د دوئ خپله قبیله وه دوئ سره بنی عبد المطلب ئې هم څکه شامل کړی ووچه داخلق هم په جاهلیت او اسلام کښې چرې هم دبنی هاشمونه نه ووبیل شوی تردې پورې چه کله دمکې مکرمې قریشو ،بنی هاشموسره غذائی بائیکاټ اوکړو او هغوئ ئې په شعب ابی طالب کښې بند کړل نو بنی عبد المطلب په خپلې رضا ،بنی هاشموسره په دغه بائیکاټ کښې شریک شو اگرچه قریشو دوئ سره بائیکاټ نه ووکړې [مظهری] [5]

**دبدرد غزا ورځې ته یوم الفرقان اوویلې شو:** په دې آیت کښې دبدرورځې ته یوم الفرقان څکه اوویلې شوچه دتولونه اول په مادی او ظاهری ډول په دغه ورځ دمسلمانانو فتح اود کفارو عبرتناک شکست په ډاګه شوې وواوپه دې بناد کفراو اسلام ظاهری فیصله هم په دغه ورځ شوې وه،

| | |
|---|---|
| إِذْ | أَنتُمْ |
| ا یادکړئ کله چې ا | وئ تاسو |
| ا په کوم وخت کښې | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْعُدْوَةِ | الدُّنْيَا | وَهُمْ | بِالْعُدْوَةِ | الْقُصْوَىٰ |
| په غاړه دغر دلمنې ا | نزدې په دې طرف ا | او وړ هغوئ ا | په غاړه دغر دلمنې ا | لرې په بل طرف ا |
| چه تاسو [مدینې منورې ته] | نزدې طرف ته وې | او هغوی [کافران د مدینې منورې] | | لرې طرف ته وو |

[1] ) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۷۵، ۷۶

[2] ) الهدايه فصل في كيفية القسمة: ج ۲، ص ۴۸

[3] ) سنن ابي داود، كتاب الخراج والفيء، باب في بيان مواضع قسم الخمس واسهم ذوي القربى: ج ۲، ص ۴۲۶

[4] ) كتاب الخراج الأبي يوسف: ج، ص ۲۶ رقم الحديث: ۸۷

[5] ) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۶۸

وَالرَّكْبُ اَسْفَلَ مِنْكُمْ ۭ وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ

اوقافله | بنکته وه | ستاسونه | اوکه چری تاسو یو تربله وعده کړی وی انو خامخا به مخالفت کړی وو تاسو

او [د تجارت] قافله ستاسو نه بنکته وه | اوکه تاسو د یو بل سره [د ورانديې نه د مقابلې] وعده کړې وه نو پ

فِي الْمِيْعٰدِ ۙ وَلٰكِنْ لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا

په وعده کښی | الیکن | جمع کړئ | تاسو الله | دپاره ددې چی پوره کړی | الله | هغه کار

په وعده کښې به مو اختلاف کړې وو اخو [الله تعالی تاسو ناڅاپه یو بل سره ملاو کړئ] چه الله تعالی هغه

كَانَ مَفْعُوْلًا ڏ لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْۢ بَيِّنَةٍ

چی وو هغه | کیدونکې | دپاره ددې چی هلاك شی | هغه څوك | چی هلاك کیږی | په روښانه دلیل سره

پوره کړی کوم چه [د الله په علم کښې] پوره کیدونکې وو. هغه دا چه څوك هلاکیږی هغه د ښکاره دلیل

وَّيَحْيٰى مَنْ حَيَّ عَنْۢ بَيِّنَةٍ ۭ وَاِنَّ اللّٰهَ

او ژوندی پاتې شی | هغه څوك | چی ژوندی پاتې کیږی | په روښانه دلیل سره | اوبې شکه چی الله

نه پس هلاک شی او څوک ژوندې پاتې کیږی هغه د ښکاره دلیل نه پس ژوندې پاتې شی | او الله تعالی

لَسَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝ۙ اِذْ يُرِيْكَهُمُ اللّٰهُ فِيْ مَنَامِكَ قَلِيْلًا ۭ

خامخا اوریدونکې دې | اوپوهه دې | کله چی | اوښودل تاته دا کافران الله | په خوب ستا کښی | لږ

[د هر څه] اوریدونکې دې او [په هر څه] عالم دې | هغه وخت یاد کړه چه الله تعالی تا ته په خوب کښې هغوی

وَلَوْ اَرٰىكَهُمْ كَثِيْرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ

اوکه چری | هغه ښودلې وې تاته هغوئ | ډیر | انو بې زړه شوی به وئ تاسو | اوخامخا به په جګړه شوی وئ تاسو

[کافران] لږ ښکاره کړل | او که تا ته ئې دوی [په خوب کښې] ډیر خودلې وې نو تاسو به بزدله شوې وئې او

فِي الْاَمْرِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ ۭ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ

په کار د جنګ کښی | لیکن الله | سالم اوساتئ د جګړی نه | ابیشکه چی هغه | خبردار دې | په پټو خبرو

او د جهاد په کولو کښې به | مو اختلاف کړې وو. | الیکن الله تعالی تاسو [د دې نه] بچ کړئ | ابیشکه الله

الصُّدُوْرِ ۝ وَاِذْ يُرِيْكُمُوْهُمْ اِذِ الْتَقَيْتُمْ

دسینو | اوکله چی | الله اوښودل تاسو ته هغوئ | په هغه وخت کښی | چی مخامخ شوئ تاسو

د زړونو په پټو رازونو [هم] عالم دې | او یاد کړئ چه [د بدر په غزوه کښې] کله تاسو دوی [کافرانو سره] ملاو

فِيْٓ اَعْيُنِكُمْ قَلِيْلًا وَّيُقَلِّلُكُمْ فِيْٓ اَعْيُنِهِمْ

په سترګو ستاسو کښی | لږ | اولږئې ښکاره کړئ تاسو | په سترګو د هغوئ کښی |

شوئ نو هغوی ئې ستاسو په سترګو کښې کم ښکاره کړل او تاسو ئې د هغوی په سترګو کښې کم ښکاره کړئ

لِيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ۭ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ

دپاره ددې چی پوره کړی الله | هغه کار | چی وو | کیدونکې | اوخاص الله ته | واپس کیږی |

د دې دپاره چه الله تعالی هغه کار اوکړی کوم چه کیدونکې وو | او ټول کارونه الله تعالی طرف ته واپس

| |
|---|
| الْأُمُوْرُ ﴿۴۴﴾ |
| ټول کارونه |
| کيږي ا |

## آسان ترجمه قرآن

او هغه وخت یاد کړئ چه کله تاسو خلق دوادئ په نزدې غاړه پاندې وئ او هغوی په لرې غاړه پاندې وو، او قافله تاسو نه ښکته روانه وه (او که تاسو مخکښې نه (د جنګ) وخت خپلو کښې ټاکلې نو تاسو به ضرور اختلاف کولو، لیکن دا واقعه (چه داول نه د ټاکلو نه بغیر تاسو مخامخ شوئ) ددې وجې نه وشو چه کوم کار کیدلو الله هغه پوره کړی، دې دپاره چه هغه څوک چه هغه هلاکیدونکې دې چه هغه د واضح دلیل کتلو نه وروستو هلاک شي او چه چا لره ژوندې پاتې کیدل وي چه هغه د واضح دلیل لیدلو نه وروستو ژوندې پاتې شي او الله هر څه آوري او په هر څه پوهیږي او (اې پیغمبره!) هغه وخت یاد کړه چه کله الله تا ته په خوب کښې د هغوی (دښمنانو) تعداد کم ښکاره کولو او که چرې تا ته ئې دهغوی تعداد زیات ښودلې وې نو (اې مسلمانانو!) تاسو به همت بائیللې وو او ستاسو مینځ کښې به دې معامله کښې اختلاف راغلې وو لیکن الله تعالی (تاسو دې نه) بچ کړئ، یقینًا هغه ښه پوهیږي په هغه خبرو چه سینو کښې دي، او هغه وخت یاد کړئ چه کله تاسو یو بل ته مقابل شوي وئ نو الله ستاسو سترګو کښې د هغوی تعداد کم ښکاره کړو او ستاسو تعداد ئې د هغوی په سترګو کښې کم ښکاره کړو دې دپاره چه کوم کار کول دي الله هغه مکمل کړي او الله ته ټول معاملات واپس کولې شي.

## خلاصه تفسیر

﴿إِذْ أَنتُم بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُم بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوَىٰ﴾ دا هغه وخت وؤ چې کله تاسو ددغې میدان په دې غاړه وئ او خلق [یعنی کافران] ددغې میدان بلې غاړې ته وو [ددې غاړې نه مطلب مدینې منورې ته نزدې او هغه غاړې نه مراد مدینې منورې نه لرې ځائې دې] ﴿وَالرَّكْبُ أَسْفَلَ مِنكُمْ﴾ او دغه قافله [دقریشو] تاسو نه لاندې طرفته [په دده] وه [یعنی د سمندر په غاړه غاړه روانه وه، حاصل دا چې د پوره جوش سامان راجمع کیدو چې دواړه ډلې سره یو تر بله مخامخ وې چې هره یوه د بلې لیدو سره په جوش کښې راشي، بل، خوا، قافله هم لاره کښې وه چې د هغې په وجه کافرانو د لښکر په زړونو کښې مرسته کول راغلل چې جوشی ئې ورسره نو رهم زیات شو، غرض دا چې په داسې سخت وخت کښې الله ﷻ هم په تاسو باندې غیبی مدد نازل کړو لکه چې پورته تیر شو چې ﴿وَمَا أَنزَلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا﴾ او [هغه خیر دا سې شو چې ناګهانی مقابله شروع شوه کنی] ﴿وَلَوْ تَوَاعَدتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ فِي الْمِيعَادِ﴾ که تاسو اوراندې نه د معمول او عادت مطابق] څه خبره غټه کړې وې [چې په فلانی وخت به جنګیږو] نو [د موجوده حالت تقاضا دا وه چې] خامخا به ددغه تقرر په باره کښې ستاسو ترمینځه اختلاف راغلې وو [یعنی یا خو به مسلمانانو خپل مینځ کښې د بې وسئ او بې سروسامانئ په وجه چا څه وئیل او چا به څه وئیل، یا به د کافرانو سره اختلاف په دې شان وو چې دهغې وجه دې بې سامانی وه او هغه طرفته به د مسلمانانو رعب وو، بهر حال په دواړو صورتونو کښې به جنګ نه

کیدو او هغه فائدې به ترې نه ښکاریدې دکومو بیان چې په لیهلك کښې راځي؛ ﴿وَلٰكِنْ لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا﴾ لیکن [الله ﷻ داسې اوکړل چې دغسې څه خبره راپیښه نه شوه او بې قصده جنګ اوشو] دپاره ددې چې کوم کار الله ﷻ ته کول منظور وو دهغې تکمیل اوکړی دپاره ددې چې [د حق نخښه ښکاره شی او] ﴿لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْ بَيِّنَةٍ﴾ دچا چې برباديدل [یعنی ګمراه کیدل] دی دهغې نخښې راتلو نه پس برباد شی ﴿وَّيَحْيٰى مَنْ حَيَّ عَنْ بَيِّنَةٍ﴾ او څوك چې ژوندی کیدل [یعنی هدایت کیدل] ئې دی هغه [هم] دنخښې راتلو نه پس ژوندی شی [مطلب دا چې الله ﷻ ته د جنګ کیدل څکه منظور وو چې په یو خاص طریقه داسلام حق کیدل ښکاره شی. هغه داسې چې سره د کم شمیرئ او کم سامنئ مسلمانان غالب شی کوم چې د عادت نه خلاف د ی او په دې سره د اسلام حق کیدل معلوم شو چې ورسره د الله ﷻ حجت تمام شو. دې نه پس د چا ګمراه کیدل به دحق د ښکاره کیدو نه پس وی چې د عذاب پوره حقدار کیدل دی او د عذر څه ګنجائش به دسره پاتې نشی ، دغه شان دچا چې هدایت کیدل وی هغه به حق قبول کړی، خلاصه د حکمت داشوه چې حق ښکاره شی؛ ﴿وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَمِيْعٌ عَلِيْمٌ﴾ او بیشکه الله ﷻ ښه آوریدنکې ښه پوهیدونکې دې [چې ددې واضح کیدو نه پس په ژبه او په زړه کفر کوی او څوك ایمان راوړی او] ﴿اِذْ يُرِيْكَهُمُ اللّٰهُ فِيْ مَنَامِكَ قَلِيْلًا﴾ هغه وخت هم د یادولو جوګه دې چې کله الله ﷻ تاسو ﷺ ته په خوب کښې هغه خلق کم اوخودل [تاسو ﷺ په هغې باندې صحابه کرامو ﷺ خبر کړل چې ورسره دهغوئ زړونه مضبوط شو] ﴿وَلَوْ اَرٰىكَهُمْ كَثِيْرًا﴾ اوکه الله ﷻ د رته دغه خلق زیات ښکاره کړې وې [او صحابه کرامو ﷺ ته دې د هغې بیان کړې وې] ﴿لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ فِي الْاَمْرِ﴾ نو [ائې صحابه کرامو ﷺ] تاسو به مړانه بائیللې وه او دې کار [دجنګ] کښې به ستاسو ترمینځه جګړه [او اختلاف] راولاړ شوې وه ﴿وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ﴾ لیکن الله ﷻ [ددغې کم همتئ او اختلاف نه تاسو] اوساتلئ ، ﴿اِنَّهٗ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ﴾ بیشکه هغه د زړونو په خبرو ښه پوهیږی [هغه ته معلومه ده چې دغسې کمزوری به راپیدا کیږی څکه یې دغسې انتظام اوکړو] او [یوازې هم په خوب کښې ئې درته کم ښکاره کول او نه کړل بلکه د حکمت مکمل کولو دپاره ئې په بیدارئ کښې د مقابلې په وخت د مسلمانانو په نظر کښې ئې هم کفار کم ښکاره کړل او تاسو ئې کفارو ته هم کم ښکاره کړئ څنګه چې حقیقت وو لکه فرمائی چې] ﴿وَاِذْ يُرِيْكُمُوْهُمْ اِذِ الْتَقَيْتُمْ فِيْٓ اَعْيُنِكُمْ قَلِيْلًا﴾ او هغه وخت یاد کړئ چې کله الله ﷻ تاسو ته چې کله تاسو د هغوئ مقابل شوئ هغوئ یې ستاسو په نظرونو کښې کم ښکاره کول او [دغه شان] ﴿وَّيُقَلِّلُكُمْ فِيْٓ اَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا﴾ د هغوئ په نظر کښې ئې تاسو لږ ښکاره کولئ ، دپاره ددې چې دکوم کار کول الله ﷻ ته منظور وو هغه سرته اورسوی [څنګه چې مخکښې په لیهلك من هلك کښې بیان شو] ﴿وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ﴾ او ټولې مقدمې به هم الله ﷻ ته واپس کولې شی هغه به هلاکیدونکې [ګمراه] او ژوندی [هدایت موندونکې] ته سزا او جزا ورکوی].

**معارف او مسائل**

دبدر غزا، دکفر او اسلام هغه رومبئ جګړه وه چه په ښکاره اوپه مادی دول باندې ئې هم داسلام دبری اوحقوالی ثبوت ورکړو، په دې وجه قرآن کریم ددې دتفصیلاتو بیانولو خاص انتظام

Scanned with Ca

اوفرمائیلو، اوس په دې آیتونو کښې ډیر حکمتونه اوښیګړې بیان شویدي، یوه خاص ښیګړه په کښې داسې ښکاره کړې شویده چه په دې جنګ کښې دظاهري اومادي حالت له مخې د مسلمانانود کامیابیدو هیڅ شان نه وو، اودمشرکانودماتې خوړو احتمال هم نشو کیدې مګر الله تعالی په غیبي طاقت سره دټول سازوسامان اوظاهري اسبابونقشه اونتیجه اړه اوخیژوله، هم ددې واقعې دواضحه کولو دپاره په دغې آیتونو کښې د بدر دغزادمیدان جنګ ټوله نقشه قرآن کریم بیان کړیده، خوددې آیتونو دتشریح نه وړاندې دځو الفاظواولغتونو تشریح اوګورئ،

د ﴿عُدْوَةِ﴾ معنی یو اړخ ته وئیل کیږي. دنیا. دادنی نه جوړدې، زیات نزدې ته، معنی ده دآخرت په مقابله کښې دې جهان ته هم دنیاځکه وئیلې شی چه دادآخرت په نسبت انسان ته ډیرنزدې دې ﴿الْقُصْوٰى﴾ د. اقصی. نه جوړدې، معنی ئې، زیات لرې، ده،

په دریم آیت کښې د. هلاکت. اودهغې په مقابله کښې دحیات [ژوند] بیان راغلې دې، ددې دواړو لفظي معنې نه، بلکه معنوي معنې مراددی، چنانچه معنوي حیات اسلام او ایمان دې اومعنوي موت کفراوشرک دې، قرآن کریم په ډیروځایونو کښې داالفاظ هم داسې معنودپاره استعمال کړیدی لکه یوځای کښې فرمائي:

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيْكُمْ﴾ یعنی اې دایمان خاوندانو: تاسو خبره منئ دالله اورسول ﷺ کله چه تاسو داسې څیزته رابلی په کوم کښې چه ستاسوژوند دې] دلته د حیات نه مرادهغه حقیقي حیات دې اودائیمي راحت دې چه دایمان اواسلام په بدله کښې ملاویږي اوس دآیتونو تفسیرپه دې شان شو،

په دوه څلوېښتم آیت کښې دبدردمیدانِ جنګ نقشه دابنودلې شویده چه مسلمانان ﴿عُدْوَةِ الدُّنْيَا﴾ سره ووا اوکافران ﴿عُدْوَةِ الْقُصْوٰى﴾ سره وو، مسلمانان ددغې میدان یو اړخ ته ووچه مدینې منورې ته نزدې ووا اوکافران دمیدان بل اړخ ته ووچه دمدینې منورې نه لرې وه، دابي سفیان هغه قافله چه دهغې په سرجنګ راولاړشوې ووهغه هم دمکې مکرمې نه دراغلې کفارولښکرسره نزدې اودمسلمانانودلاس رسیدونه بهر، درې میلوپه فاصله دسمندرپه غاړه غاړه روانه وه، دجنګ ددې نقشې ښودلو مطلب دابنودل ووچه په جنګي لحاظ سره مسلمانان بالکل بې موقعې په غلط ځای تیکاؤشوی ووچرته چه په دشمن باندې دقابومونډلواودخپل ځان ساتلوهم څه ظاهري امکان نه وو، ولې چه دغه ځای داسې شګلن ووچه پکښې ګرځیدل راګرځیدل هم ګران وو، بله داچه دغلته داوبو څه ځای هم نه وو، اودکفارودتیکایدوځای هواره زمکه وه اواوبه هم ورسره نزدې وې،

دمیدانِ جنګ ددواړو غاړو ښودلو مطلب دابنودل ووچه دواړه لښکرونه بالکل مخامخ په مخامخ وو، چه ددواړو غاړو طاقت او کمزوري یو بل ته ښه په ډاګه وه، دلته داهم ښودل ووچه دمکې دمشرکانوداهم تسلی وه چه ددوئ تجارتي قافله دمسلمانانودلاس رسیدونه بهروتلې ده، اوس که ضرورت راپیښ شی نوهغوئ هم زمونږ مددکولې شی، لیکن بل اړخ ته مسلمانان په دې وجه هم پریشان ووچه دتیکاوید وځای ورته سم په ګتونه وو ورغلې، دڅه کومک راتلوڅه طمع ئې هم نه وه، اوداخبره خو هرچاته معلومه ده چه دمسلمانانو فوځ درې سوه دیارلس په شمیر کښې ووا اوکفارپه یوزرشمیر کښې وو، مسلمانانوسره دسورلوشمیرهم دضرورت نه ډیرکم ووا اووسله ورسره هم دنیشت برابره وه، اودکفارولښکرپه دې ټولو هرڅه بهرپوروو،

Scanned with Ca

مسلمانانو د وسله دارفوځ سره دجنګ کولو تیاری نه وه کړي اونه دجنګ په غرض وتلي وو، په ناګهانی ډول دیوې تجارتي قافلې دلارې بندولو په غرض وتي ووچه په هغې سره ددشمن طاقت خرابول ئې غرض وو، شمیرئې درې سوه دیارلس وواوځه سامان ئې ځان سره نه وو اغستي، ناڅاپي يو زر خلمو سره ئې مقابله راغله کوم چه په وسله بهرپور لښکر وو،

قرآن کریم په دې آیت کښې اوښودل چه دخلقو په نظر کښې داواقعه اګرچه دیو اتفاقي او ناڅاپي راپیښې په شکل کښې بې ارادې رامخې ته شوه لیکن ددنیاداسې هم ناڅاپي راپیښې هم دالله تعالی په نظر کښې تولې دځیرمې دیو مضبوط نظام سره یو تربله انښتې کړې وی، په دې کښې هیڅ یوځیزېې ترونه یابې موقعې نه وی، کله چه دغه پوره نظام رامخې ته شی نو هغه وخت انسان پوه شی چه په دې ناڅاپي واقعه کښې کوم حکمتونه پټ وو،

هم دبدر دغزا واقعه واخلئ چه ددې ناڅاپي اوبې اختیاره راپیښیدو کښې دا مصلحت وو چې:

﴿وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ فِي الْمِيْعٰدِ﴾ یعنی که د دنیادعامو جنګونو پشان په دې ډول سره داکول وې چه ددې په هراړخ داول نه غورفکرشوی وی اویو تربله په صلاح مشورو سره کولې شوې نو ددې جنګ شان دکیدونه وو، بلکه اختلاف به پکښې راغلی وو، یاپه دې شان چه مسلمانانو به خپل کم شمیر کمزورئ او ددشمن ګڼرشمیر او غټ قوت ته کتلی اوجنګ کولو ته به نه تیاریدل، یاپه دې شان چه دواړه لښکرونه [د مسلمانانو او کفارو] به په ټاکلې وعده میدان ته نه وو رارسیدلی، مسلمانانو به خپلې کم شمیرئ ته کتلی وو اوجنګ ته به نه راوراندې کیدل، په کفارو به الله تعالی دمسلمانانو رعب اچولو نوهغوئ به سره د ګڼر شمیرئ اولوئ طاقته، دمقابلې کولو نه ویریدل،

په دې وجه دقدرت مضبوط نظام دواړوارخو ته داسې حالات پیداکړل چه دزیات غور، فکراوبند وبست کولو موقعه په لاس رانشی، دمکې کفارخوځکه دې جنګ ته په تلوار سره بې دځه غوراوسوچ نه تیارشو چه دابی سفیان دقافلې هغه فریادورته په هیبتناک شکل کښې رامخې ته شو، مسلمانان په دې خیال راووتل چه مقابله ئې د وسله دارفوځ سره نه بلکه یوې معمولی تجارتي قافلې سره ده، خوعلیم اوخبیرته منظوروو چه ددې دواړوتر منځه باقاعده جنګ اوشی، ددې په شالګیدلې داسلام دبریالیتوب نتیجې رامخې ته شی چنانچه فرمائی:

﴿وَلٰكِنْ لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا﴾ یعنی ددې حالاتو باوجود جنګ ځکه خامخا اوشو چه الله تعالی خپل هغه کارمکمل کړی دکوم اراده ئې چه کړې ده، هغه داسې چه دیو زروسله داراوپه سامان پوره شاه خلموپه مقابله کښې ددرې سوه دیارلسو هغه مسلمانانو بریالی کول وو کوم چه لوږوزپلی ووپه جنګی لحاظ سره دټیکاوید وځائ هم، غلط په لاس ورغلې وو، ظاهری صورت ئې داووچه ځرسره دغرې وهل ووچه پخپله به پوتې پوتې شوی وومګر ددوئ کامیابیدل په سترګو اولیدې شوځکه چه ددوئ په شاباندې یوداسې غټ طاقت وود کوم نه چه دکافرانو لښکرمحرومه وو، په دې شان دهرېنده مخې ته حق، باطل اوکهره کوټه مخې ته راغلو، لکه په آخردآیت کښې فرمائی: ﴿لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْۢ بَيِّنَةٍ وَّيَحْيٰى مَنْ حَيَّ عَنْۢ بَيِّنَةٍ﴾ یعنی دبدرپه غزاکښې داسلام حقوالې اودکفر اوشرک باطلوالې اوناکاروالې ځکه په ډاګه کړې شوچه آئنده کښې هلاکیدونکې سره دلیدلو کتلو هلاک شی اوژوندې پاتې کیدونکې هم په غوریدلو سترګو ژوندې پاتې شی، په تیاره او غلطئ کښې هیڅ کارترسره نشی،

Scanned with Ca

په دې آیت کښې دهلاکت نه مراد کفر او دژوند نه مراد اسلام دې، مطلب دادې چه دحق واضح کیدو نه پس دغلط فهمۍ او عذر احتمال خوختم شو اوس چه څوک کفر اختیاروی هغه په غرېدلو سترګو هلاکت ارخ ته روان دې او څوک چه اسلام اختیاروی هغه په غرېدلو سترګو د همیشه ژوند اختیاروی، بیافرمائی، ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ یعنی الله تعالی ښه آورېدونکې دې او پوهیدونکې دې] چه دټولو په زړونو کښې پټ ایمان او کفرهم دهغه په ړاندې دې او دهریوجزا اوسزاهم دهغه په ړاندې ده،

په دې څلوېښتم او څلور څلوېښتم دواړو آیتونو کښې دقدرت دیوې خاصې کرشمې بیان دې که دغه کرشمه دبدر په غزا کښې نه وې راښکاره کړې شوې نوکیدې شوه چه دمسلمانانو یا کفارو دلې به میدان پرېښودو سره دجنګ دکیدو صورت ختم کړې وو، حالانکه ددې جنګ کیدو په نتیجه کښې په مادی حیثیت سره هم الله تعالی داسلام حقوالې ښکاره کول غوښتل.

دقدرت هغه کرشمه داوه چه دکفارو کوم لښکر چه دمسلمانانو نه په شمیر کښې درې چنده زیات وو خو الله تعالی په خپل کامل قدرت سره مسلمانانو ته کم شمیره څکه ښکاره کړو چه دوئ کښې کمزوری او اختلاف راپیدا نشی، داواقعه یو ځل په خوب کښې رسول الله ﷺ ته اوښودلې شوه چه هغوئ ﷺ تولو مسلمانانو ته ښکاره کړه او ورسره دمسلمانانو مرانه زیاته شوه، دویم ځل په میدان جنګ کښې ښه په ډاګه مسلمانانو ته ددوئ [کفارو] شمیر کم ښکاره کړې شو کله چه دواړه ډلې مخامخ په مخامخ ولاړې وې، چنانچه په دې څلوېښتم آیت کښې دخوب واقعه او په څلور څلوېښتم آیت کښې دبیدارئ واقعه بیان شوې ده،

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ او فرمائیل چه زمونږ په نظر کښې ددشمن لښکر داسې ښکارېدو چه ماخان سره نزدې یو مجاهد مسلمان ته اووئیل چه ددغې خلقو شمیر خو به څلور نیمې شلې وی، دغه کس راته اووئیل چه نه سل به وی، (۱)

په آخری آیت کښې ورسره داهم راغلی دی ﴿وَيُقَلِّلُكُمْ فِي أَعْيُنِهِمْ﴾ یعنی الله تعالی مسلمانانو لره هم، ددښمن په نظر کښې کم شمیره ښکاره کړل] ددې معنی داهم کیدې شی چه الله تعالی کفارو ته دمسلمانانو حقیقی شمیر ښکاره کړو چه کم وو، او دامعنی ئې هم کیدې شی چه دواقعې شمیر نه ئې هم په کم شمیر کښې ورښکاره کړل لکه دخنورو ایتونو مطابق کله چه ابوجهل د مسلمانانو لښکر ته او کتل نو خپلو ملګروته ئې اووئیل چه دمسلمانانو شمیر خودې نه زیات نه معلومیږی دکوم خوراک چه یو اوښ وی، دعربو داندازې لګولو مطابق به یو اوښ سلو کسانو دپاره کافی کیدو چنانچه رسول الله ﷺ هم، دبدر په میدان کښې ددغه ځائ دڅه خلقو نه دقریشی لښکر د شمیر معلومولو په غرض داتپوس کړې وو چه څومره اوښان دوئ دپاره ذبح کولې شی؟ نوورته اووئیلې شو چه لس اوښان ورځ پاره ذبح کولې شی، هغوئ ﷺ ته تردا اندازه اوشوه چه دا یو زر کسان کیدې شی، (۲) خلاصه داشوه چه دابی جهل په نظر کښې د مسلمانانو تول شمیر ددې حکمت په بنا سل راوستې شو چه دکفارو په زړونو باندې دمسلمانانو رعب د ابتداء نه خورنشی چه دهغې دویرې میدان پرېږدی او وتښتی،

---

۱) المعجم الکبیر للطبرانی بألفاظ مختلفة رقم الحدیث: ۱۰۱۱۸
۲) دلائل النبوة للبیهقی رقم الحدیث: ۹۳۱، ورقم الحدیث: ۸۸۰

**فائده:** د دې آیت نه دا هم معلومه شوه چه کله کله د معجزې او په غیرعادتی ډول دا هم کیدې شي چه د ستر گو لیدل غلط شي څنگه چه دلته اوشو، په دې وجه ورد پاره ئې اوفرمائیل: ﴿لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا﴾ یعنی د قدرت دا کرشمه او د ستر گو په لیدلو باندې تصرف کول څکه ښکاره کړې شو چه الله تعالی کوم کار کول غواړی هغه پوره شي[ یعنی مسلمانانو ته برې ورکړی او د اسلام حقوالې او غیبی تائید ښکاره کړې شي ولې چه مسلمانان په شمیر کښې هم کم وو او سامان ورسره د نیشت برابر وو،

په آخر د آیت کښې فرمائی: ﴿وَإِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ﴾ یعنی آخر دا چه ټول کارونه یواځې الله تعالی ته راگرځی څه چه غواړی وې کړی او دڅه چه او غواړی حکم ئې اوکړی، کمو لره په زیاتو، قوت لره په کمزورئ غلبه ورکړی، کم شمیره گڼرشمیره کړی او گڼرشمیره کم شمیره کړی،

لکه مولانا رومی رحمه الله څه ښه فرمائیلی دی،

گرتوخواهی عینِ غم شادی شود عینِ بندپائے آزادی شود

اې الله که ته اوغواړې نو سوده غم خوشحالی جوړه شی، او خالص پابندی آزادی جوړه شی[

چون توخواهی آتش آب خوش شود ورتوخواهی آب هم آتش شود

که ته اوغواړې نو اور ښکلې اوبه شی، او که ته اوغواړې نو اوبه هم اور شی،

خاک وبادوآب وآتش بنده اند بامن وتومرده باحق زنده اند

[خاورې، باد، اوبه او اور بندگان دی، زما او ستا په خیال کښې مړه او د الله تعالی په نزد ژوندی دی[

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً |
| الے هغه کسانو اچی ایمان مو راوړې دی اکله چی امخامخ شئ تاسو ا دیوې ډلې سره |
| ا اې مؤمنانو کله چه تاسو [په میدان جنگ کښې کافرانو] ډلې سره ملاؤ شئ [او جنگ شروع شی نو] |
| فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ وَأَطِيعُوا |
| نو مضبوط اوسئ او یادوئ الله ا ډیر ابنائی چی تاسو اکامیاب شئ ا اوحکم منئ |
| ثابت قدم شئ [تختئ مه] او د الله تعالی ذکر زیات زیات کوئ ا د دې دپاره چه کامیاب شئ |
| اللّٰهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ |
| دالله ا او د رسول دهغه ا او مه کوئ جنگ په خپلو کښی اکنئ نو بې زړه به شئ تاسو ا او لاړ به شی |
| او د الله او د هغه د پیغمبر تابعداری کوئ او خپل مینځ کښې اختلاف مکوئ گنی بزدله به شئ او |
| رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصَّابِرِينَ وَلَا تَكُونُوا |
| طاقت ستاسو ا او صبر کوئ ا بې شکه الله ا د صبر کونکو سره دی ا او مه کیږئ تاسو ا |
| ستاسو طاقت به ختم شی او صبر کوئ بیشکه د الله تعالی مدد د صبر کونکو سره دی ا او د هغه کسانو |
| كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِم بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ |
| پشان دهغه کسانو اچی اووتل ا د کورونو خپلو نه ا دپاره د فخر ا او د ښودنې د خلقو ا |
| پشان مه کیږئ چه د خپلو کورنو نه د فخر او د خلقو د خودنې دپاره وتلې وو |

Scanned with Ca

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَصُدُّونَ | عَنْ سَبِيلِ اللهِ | وَاللهُ | بِمَا | يَعْمَلُونَ | مُحِيطٌ |
| اومنع کوی خلق | دلارې دالله نه | او الله | په هغه کارونو | چې کوي ئې | هغوئ احاطه کونکې دې |

اود الله تعالی د لارې نه خلق منع کوی | اوالله تعالی د دوی [خلقو] د ټولو کارونو احاطه کونکې دې

## آسان ترجمه قرآن

اې د ایمان خاوندانو ! چه کله ستاسو د یوې ډلې سره مقابله شي نو تاسو کلك شئ . او دالله په کثرت سره ذکر کوئ دې دپاره چه تاسو کامیاب شئ. اود الله اودهغه د رسول اطاعت کوئ. او خپلو کښې جهګړې مه کوئ . ګنې کمزوری به شئ او ستاسو هوا به ووځی. او صبر کوئ . یقین وکړئ چه الله د صبر کونکو سره دې. او دهغه خلقو پشان مه کیږئ چه دخپلو کورونو نه داسې حالت کښې وتلې وو چه مستۍ ئې کوله او خلقو ته ئې ځان ښودلو او نور خلق ئې دالله د لارې نه ېنډول او الله د خلقو ټول اعمال ( دخپل علم ) په احاطه کښې راوستې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمْ فِئَةً﴾ اې د ایمان خاوندانو ؛ کله چې ستاسو [د کافرانو یوې] ډلې سره [په جهاد کښې] مقابله کول راپیښیږی نو [ددې د آدابو لحاظ ساتئ ، یو دا چې] ﴿فَاثْبُتُوْا﴾ [مه تښتئ او [بل دا چې] ﴿وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا﴾ د الله ﷻ ذکربه زیات کوئی [ولې چې د ذکر کولو په وجه زړهٔ مضبوطیږی] ﴿لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ امید دې چې تاسو به کامیاب شئ [ولې چې کله پښې ټینګې وی او زړهٔ مضبوط وی نو غالبا کامیابی موندې شی] او [دریم دا چې په ټولو جنګی کارونو کښې] ﴿وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ د الله ﷻ اودهغه درسول ﷺ تابعداری کوئ [یعنی دهغې به خیال ساتئ چې دشریعت خلاف کار تاسو نه او نشی] او [څلورم دا چې خپل امام سره او خپل مینځ کښې هم] ﴿وَلَا تَنَازَعُوْا﴾ جګړه مه کوئی [په دې بې اتفاقۍ سره] ﴿فَتَفْشَلُوْا﴾ کم همته به شئ [ولې چې فوتونه به مو خواره واره شی یوبه په اعتبار نه کوی او یوازې کس څه کولې شی ؟] ﴿وَتَذْهَبَ رِيْحُكُمْ﴾ او ستاسو هوا به اووځی [د هوا وتلو څخه مراد دبدبه ده څکه چې نور ورته ددې بې اتفاقۍ اطلاع ملاویدلو سره دا امر لازمی دې یعنی ستاسو رعب به پاتې نشی] او [پنځم دا چې که د څه ناخوالۍ کار درته راپیښ شی نو په هغې] ﴿وَاصْبِرُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ﴾ صبر کوئی ، بیشکه الله ﷻ صبر کوونکو سره دې [اود الله ﷻ ملګرتیا موجب د امداد ده] او [شپږم دا چې نیت خالص لرئ ، فخر اوځان ښکاره کولو کښې] ﴿وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ بَطَرًا وَّرِئَاۗءَ النَّاسِ﴾ دهغه [کافرانو] خلقو پشان مه کیږئ چې [د بدر په دې واقعه کښې] دخپلو کورونو نه په خوش خروش او خلقوته د [ځان شان او سامان] ښکاره کوونکی راووتل او [دې فخر او ریا سره بې دا هم نیت وو چې] ﴿وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ د الله ﷻ د لار [دین] نه منع کول [ولې چې مسلمانانو ته د درد ورکولو دپاره راغلی وو چې په عامو طبیعتونو باندې به ئې هم دین نه د لرې کیدو اثر پریوتو] ﴿وَاللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ﴾ او الله ﷻ [به دې خلقو ته پوره سزا ورکوی چنانچه هغه] د دوئ عملونه [دخپل علم] په ګیره کښې راوستی دی.

## معارف او مسائل

**په جنګ او جهاد کښې کامیابېدو باره قرآني هدایات:** په رومبو دوو آیتونو کښې الله تعالی مسلمانانو ته په میدان جنګ کښې او د دښمن مقابلې د پاره یوه خاص هدایت نامه ورکړې ده چه دوئ د پاره په دنیا کښې د کامیابېدو، بري موندو او په آخرت کښې د خلاصي او کامیابئ موندیوه زیاته اثرناکه نسخه ده، چنانچه د پخوانئ زمانې په ټولو جنګونو کښې دعادت نه پورته کامیابیانو او بري موندلو راز هم په دې کښې پټ دې چه هغه څو څیزونه دی،

① اول ثبات [یعني کلک پاتې کېدل] چه د زړه مضبوطېدل او د خپو ټینګېدل دواړه ترې مراد دی، څکه چه ترڅو چا زړه مضبوط نه وی د هغه خپې او نور اندامونه ټینګ نشی پاتې کېدې او دا څیز داسې چه هر مؤمن او کافر ته معلوم دې او د دنیا هر قوم په خپلو جنګونو کښې د دې بندوبست کوی، چنانچه تجربې نه ثابته ده چه په میدان جنګ کښې د ټولو نه اوله او زیاته کامیابه وسله د زړه مضبوطیا او د خپو ټینګېدل دی، نورې ټولې وسلې د دې نه بغیر بیکاره دی.

② دویم د الله تعالی ذکر دې دا هغه مخصوصه او معنوی وسله ده چه د مؤمن نه سوا عامه دنیا ترې غافله ده، ټوله دنیا جنګ د پاره، غورېزه وسله او نوې نوې سامان تیاروی، د فوځ د خپو مضبوطولو د پاره خوپوره انتظام کوی، مګر د مسلمانانو د دې روحاني او معنوی وسلې نه ناخبره او نا آشنا دی، همدغه وجه ده چه چرته د دې هدایتونو پابند مسلمانانو سره یو مخالف قوم مقابله او کړه نو د دغې قوم ټول طاقت، وسله او سامان بیکاره شو، په خپل ځائ خو د الله تعالی د ذکر ذاتي او معنوی برکتونه خامخا شته، خو دا هم حقیقت دې چه د دې نه زیاته غوره بله نسخه د قدمونو مضبوطېدو شته دې هم نه، د الله ذکر او په دې باندې ملاترل د بجلئ هغه طاقت دې چه یو کمزورې انسان غرسره د غرو وهلو ته تیاروی، په داسې کس که هر څومره مصیبت او پریشانی راځی د هغه د ذکر کولو په وړاندې هغه هیڅ شان نه لری، د الله تعالی ذکرد انسان زړه مضبوطه وی او قدمونه ئې ټینګوی،

دلته دې خبرې ته هم فکر کول پکار دی چه د عادت له مخې د جنګ په وخت څوک چاته یاد نه پاتې کیږی هر چا سره خپل غم وی، په دې وجه د جاهلیت د زمانې عرب شاعران په میدان جنګ کښې هم د خپل محبوب په یادولو فخر کوی چه دې سره زړه مضبوطیږی او مینه محبت پر کلکیږی، لکه یو جاهل شاعر وئیلی دی:

ذکرتك والخطی یخطر بیننا

[یعني هغه وخت مې هم ته یاد کړې کله چه نیزې زمونږ ترمنځه چلیدې]

څکه خو قرآن کریم د خطرونه ډک په دې مقام کښې مسلمانانو ته د الله تعالی د یاد ښودنه او کړه او په ﴿كَثِيرًا﴾ سره یې د دې د زیاتوالی تاکید او کړو.. دلته په دې خبره هم ژور نظر اچول دی چه په ټول قرآن کریم کښې د الله تعالی د ذکر نه سوا د بل یو عبادت د ډیر کولو حکم نه دې راغلې، مثلا داسې نه دی وئیلې شوی چه ،صَلٰوةً كَثِيرَةً،، صِيامًا كَثِيرًا، [مونځ ډیر ډیر کوئ او روژې ډیرې ډیرې نیسئ] وجه ئې داده چه د الله تعالی ذکر داسې یو آسان عبادت دې چه ډیر وخت پرې نه لګی، نه پکښې څه خوارې وی او نه د دې په وجه د بل یو کار په کولو کښې څه بندیز راځی، زیاتی خبره پکښې داده چه الله تعالی په خپل فضل او کرم سره د دې د پاره هیڅ شرط پابندی، او د س پاکی د بدن، د لباس او قبلې ته مخ کول ضروری نه دی ګرځولی، هر څوک ئې په هر حالت کښې کولې

شي، مثلاً په اودس کښې بې اودسه په ولاړې، په ناستې اوپه ملاستې ئې کولې شي اوکه دامام جزرى رحمه الله دهغه تحقيق اضافه پراوکړې شي کوم چه هغوئ رحمه الله په حصن حصين کښې داسې ليکلې دې چه دالله تعالى ذکريوآخې په زړه اوژبې سره نه دې بلکه هريوجائز کار چه دالله تعالى اودهغه درسول ﷺ دفرمانبردارئ دلاندې اوکړې شي هغه هم دالله تعالى په ذکر کښې داخل دې، ددې تحقيق په بنابانديې خودالله تعالى دذکرمطلب دومره عام اوآسان جوړيږي چه اوده شوى انسان ته هم ذکرکوونکې وئيلې شي لکه په څښې روايتونوکښې راغلي دى، نَوْمُ الْعَالِمِ عِبَادَةٌ، (١)[دعالم خوب هم په عبادت کښې داخل دې] څکه چه کوم عالم دخپل علم مطابق عمل کوى نوضروري ده چه دهغه خوب، ويښه هريوکاربه دالله تعالى په فرمانبردارئ کښې داخل وى،

په ميدان جنګ کښې دالله تعالى دډيرډيرذکرکولوحکم اګرچه په ظاهره دمجاهدينو دپاره يوزيات کارئې په ذمه کول ښکارى چه دعادت له مخې محنت، مشقت غواړي، ليکن دالله تعالى دذکردايوعجيبه خصوصيت دې چه دخوارئ اومحنت کولوضرورت نه لرى بلکه دې سره زړه ته سکون، خوشحالى، قوت اوخوند حاصليږي اودانسان په کارکښې يوقسم مددګار څکه ثابتيږي چه هسې هم خوارى کښې خلق دکارکولوپه وخت ځان سره څه خبره کوى ياڅه سندره وائى، قرآن کريم ددې په ځائ يونعم البدل ورکړوچه زرګونه فائدې اوحکمتونه لرى په دې وجه په آخردآيت کښې فرمائى ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ يعنى که تاسو دثابت قدمئ اودالله تعالى دذکر دوه تدبيرونه يادکړل اوهغه مودجنګ په ميدان کښې استعمال کړل نوکاميابى هم ستاسو ده،

دميدان جنګ يوذکرخوپه عام ډول د، نعره تکبير، په اندازکښې کولې شي دې نه علاوه په دې شان هم ذکرکولې شي چه په الله تعالى باندې نظرلرى، په هغه تکيه اوتوکل کوى اوپه زړه ئې يادوى، دالله تعالى ذکردې ټولولره شامليږي،

په شپږم څلويښتم آيت کښې ددريم څيزښودنه هم شوې ده چه هغه ﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ دې [يعنى د الله تعالى اورسول ﷺ فرمانبردارى کول په لازمى شان سره اختيارکړئ] ولې چه دالله تعالى امدادهم دهغه دفرمانبردارئ په ذريعه حاصليدې شي، ګناه اونافرمانى کول خودالله تعالى د ناراضئ اودهرفضل نه دبې نصيبه کيدوباعث جوړيږي، په دې شان ميدان جنګ دپاره دقرآنى هدايت نامې درې دفعې شوې: ① ثابت قدمى ② دالله تعالى ذکراو ③ فرمانبردارى وړپسې فرمائى:

﴿وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا﴾ په دې کښې دضررناکواړخونو خبردارئ ورکولوسره دې نه دځان ساتلوهم هدايت دې، اوکوم ضررناک اړخ چه دجنګ په کاميابئ کښې خنډجوړيږي هغه خپل منځ کښې جګړې او اختلاف کول دى څکه فرمائى ﴿وَلَا تَنَازَعُوا﴾ [يعنى خپل منځ کښې جنګ جګړې اوربړې مه راولاړوئ ګنى په تاسوکښې به بزدلى خوره شي اوستاسودمخ سره او رعب به ختم شى،

په دې کښې دخپل منځ دجګړوکولودوه نتيجې بيان کړې شويدى، يوداچه تاسوبه په ذاتى ډول کمزورى اوبزدله شئ، بله داچه دمخ سره به موختم شي اوددښمن په نظرکښې به سپک راشئ، خپل منځ کښې دجګړوکولوسره خودنوروپه نظرکښې سپکيدل خوبديهى خبره ده، خوپه خپل قوت اوطاقت باندې ئې داسې اثرپويوڅى چه کمزورى اوبزدلى پکښې راپيدا

(١) کشف الخفاء رقم الحديث: ۲۸۳۶، ج ۲، ص ۳۲۵

شی، ولې چه داتفاق او اتحاد او خپل منځ کښې په یوبل داعتماد کولو په صورت کښې هریو انسان ته دتولې ډلې طاقت لګیدلې وی، په دې شان یوځان له بنده هم په خپل ځان کښې دجماعت اوډلې طاقت محسوسوی اوکله چه خپل منځ کښې اتفاق اواعتمادپاتې نشی نودهر یوقوت ځان ځان له شی چه دجنګ په میدان کښې هیڅ په کارنشی راتلې،

وریسې فرمائی ﴿وَاصْبِرُوْا﴾ [یعنی خامخاپه مخ صبرکوئ] دکلام دروانئ نه داسې معلومیږی چه د جنګ جګړونه دځان ساتلویوکامیابه نسخه ښولې شویده بیان ئې دادې که یوډله هرڅومره خپل منځ کښې خیالات اومقصدیوشان لری خودانسانی غړوطبعی خصوصیتونه ضرور مختلف وی، داشان څه مقصددپاره په کوشش کولو کښې دهوښیارانو اوتجربه کارو خلقودرائ اختلاف هم خامخا وی، لهذا د نورو سره دچلیدو او ځان سره ئې دلرلودپاره ددې نه سوابل هیڅ علاج نشته چه انسان دخپل طبیعت په خلاف خبروباندې دصبرکولو اوپه هغې باندې دخپې راښکلو عادت وی، اوپه خپلې رائ باندې دومره ټینګار نه کوی چه خلقوسره دهغې په نه قبلولو کښې جنګ اوکړی، ددې صفت بل نوم صبردې، نن خوهرڅوک په دې پوهیږی اووائی هم چه خپل منځ کښې جنګ جګړې کول ډیرخراب څیزدې خوددې نه دځان ساتلوګراوطریقه چه څوک اختیارنکړی نویواځې داتفاق اواتحادوعظونه اونصیحتونه کول فائده مند نه ثابتیږی بلکه دې دپاره ضرورت ددې خبرې دې چه دخپل طبیعت په خلاف خبرو باندې د صبر کولو عادت جوړکړی، په بل باندې دخپلې خبرې منلو اودحکم چلولو په فکرکښې نه وی، خوداسې خلق د نیشت برابردی، انسان خوپه دې وس نه لری چه په بل باندې خپله خبره اومنی مګردبل خبره ① منل یا د چا هغسې خبره نه ② منل چه دده دعقل اودینداریئ خلاف وی په دې صورت کښې جګړې نه دځان ساتلو په غرض ③ چپ پاتې کیدل درې واړه خوپه خپل اختیارکښې دی په دې وجه قرآن کریم دجګړې نه دبچ کیدوهدایت سره سره دصبرښودنه هم اوکړه، چه هریوکس پرعمل اوکړی نودجنګ جګړې نه په عملی دنیاکښې بچ کیدل به آسان شی،

دلته داخبره هم دنظرکولوجوګه ده چه قرآن کریم دلته ﴿وَلَا تَنَازَعُوْا﴾ اوفرمائیل [چه په خپل منځ کښې انښتل مه کوئ] درائ داختلاف کولویاددې دښکاره کولونه ئې منع نه ده کړې ولې چه ددینداریئ اواخلاص په بنیاددرائ اختلاف کولوسره جنګ جګړې هیچرې نه پیدا کیږی، جګړه دهغه اختلاف رائې نه پیدا کیږی چه دخپلې خبرې په بل باندې دمنلو اودبل دخبرې دنه منلو جذبې کار کوی کومه جذبه چه قرآن کریم په ﴿وَاصْبِرُوْا﴾ لفظ سره ختمه کړه، اوپه آخرکښې د صبر په عظیم الشان فائدې ښودلوسره دصبرتریخوالې لرې کړو، فرمائی: ﴿اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِیْنَ﴾ [یعنی دصبرکونکوملګرې الله تعالی وی] چه هروخت اوپه هرحالت کښې ورسره ملګرتیا کوی، دادومره لوئ دولت دې چه ددواړوجهانونوټول دولتونه ددې په مقابله کښې هیڅ وزن نه لری،

څنې غزاګانو کښې رسول الله ﷺ ددې هدایتونو مخې ته دراوستوپه غرض خالص په میدان جنګ کښې داخطبه ورکړه، اې خلقودشمنانوسره دمقابلې کولوآرزومه کوئ بلکه الله تعالی نه عافیت غواړی اوکله چه په مجبوریئ سره درته مقابله کول راپیښ شی نوبیاصبراو ثابت قدمی ټینګه اونیسئ اودا اوګنړئ چه جنت، دتوروپه سیوروسایو کښې دې [مسلم] [1]

[1] ) صحیح مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب کراهیة تمنی لقاء العدو الخ: ج ۲، ص ۸۴

په اوه څلویښتم آیت کښې په یوبل ضروری اړخ باندې خبرداري اوهغې نه د پرهیزکولو هدایت ورکړې شویدې چه هغه په خپل طاقت اوزیاتوالی دشمیرباندې نیازیافخرکول اوپه یوکارکښې د اخلاص په ځائ بل څه ذاتی غرض لرل دی، چنانچه دادواړه څیزونه هم لوئې لوئې طاقتور جماعتونه هم مخ پشاکوی اولاندې ئې راولی،

په دې آیت کښې دقریشو دمکې حالاتوته اشاره هم ده چه دخپلې تجارتی قافلې دحفاظت دپاره په ډیره لویه پیمانه، په ګڼ شمیراوسامان سره فخرکوونکی راوتلی وواوکله چه تجارتی قافله د مسلمانانو دګت نه بهرشوه بیاهم ځکه واپس نه شوچه دخپلې بهادرئ تنداره ورکول ئې غرض وو،

په مستندوروایتونوکښې راغلی دی چه کله ابوسفیان خپله تجارتی قافله دمسلمانانو دګت نه بهر راؤښکله نوابی جهل ته ئې ریبار او قاصد اولیږلوچه اوس ستاسو دوړاندې دتلوضرورت پاتې نشو راواپس شئ اوډیروقریشی سردارانوهم دغه رائ وه، مګرابوجهل دخپل کبر، غرور او مشهورتیادشوق په جذبه کښې قسم اوخوړوچه مونږبه ترهغې وخته پورې نه واپس کیږوتر څوچه دبدرپه مقام نه یو رسیدلی اوهلته مودخپل بریالیتوب میله نه وی جوړه کړې. لیکن ددې په نتیجه کښې هغه پخپله اودهغه غټ غټ مګر تول هلته ډیرې شواوپه یوې کنده کښې ورګذارکړې شو، [1] په دې آیت کښې مسلمانانوته د هغوئ دطریقه کارنه دپرهیزکولو هدایت اوکړې شو.

| |
|---|
| وَاِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ وَقَالَ |
| اوکله چې اښائیسته ښکاره کړل اهغوئ ته ا شیطان ا عملونه دهغوئ ا او وې وئیل |
| اوهغه وخت یاد کړه کله چه شیطان دوی [کافرو] ته د هغوی عملونه ښائسته کړل ا او ورته ئې اووئیل |
| لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَاِنِّيْ جَارٌ لَّكُمْ |
| نشته غالب ا په تاسو ا نن ورځ ا دخلقو نه ا اوبیشکه زهٔ اساتونکې یم ا تاسو لره |
| چه نن ورځ په خلقو کښې څوک هم په تاسو غالب نشته ا او زه [د مسلمانانو نه] ستاسو ساتونکې یم |
| فَلَمَّا تَرَآءَتِ الْفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَقَالَ اِنِّيْ |
| نوهرکله چې ا یوبل اولیدل ا دواړو ډلو ا نوبیرته اوګرځیدل هغه ا په پوندوخپلو ا اووې وئیل ا بیشکه زهٔ |
| نو کله چه دوو ډلو [کافرانو او مسلمانانو] یوبل اولیدل نوشیطان په خپلو پوندو واپس شو. او دا ئې |
| بَرِيْٓءٌ مِّنْكُمْ اِنِّيْٓ اَرٰى مَا لَا تَرَوْنَ اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ |
| بیزاره یم ا ستاسونه ا بیشکه زهٔ اوینم ا هغه اچې تاسوئې نهٔ وینئ ا بیشکه زهٔ ا یریږم ا دالله نه |
| اووئیل زه ستاسو [دملګرتیا نه] بیزاره یم ا ځکه چه زه هغه [فرشتې اوعذاب] وینم چه تاسو ئې نه وینئ ا او زه د |
| وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ اِذْ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ |
| اوالله سخت دې ا دعذاب په ورکولوکښې ا کله چې ا اووئیل ا منافقانو ا اوهغه کسانو ا |
| الله نه ویریږم ځکه چه الله سخت عذابونکې دې ا هغه وخت یاد کړه چه اووئیل منافقانو او د کومو خلقو په زړونو |

[1] تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۵۳

Scanned with Ca

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ | غَرَّ | هٰٓؤُلَآءِ | دِيْنُهُمْ ؕ | وَمَنْ | | |
| چې په زړونو دهغوئ کښې ا مرض وو ا چې مغرور کړی دی ا دې کسانو لره ا دين خپل ا اوهغه چاچې ا | | | | | | | |
| کښې چه [د نفاق] مرض وو.دا خلق [مسلمانان] خپل دين په دهوکه کښې اچولي دی اخوچه چا په الله | | | | | | | |
| يَّتَوَكَّلْ | عَلَى اللّٰهِ | فَاِنَّ اللّٰهَ | عَزِيْزٌ | حَكِيْمٌ ۝ | | | |
| بهروسه اوکړه ا په الله باندې ا نوبيشکه چې الله ا غالب دې ا اودحکمت خاوند دې ا | | | | | | | |
| تعالی باندې بهروسه اوکړه نو الله تعالی غالب دې او صاحب د حکمت دې ا | | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او هغه وخت (هم د ذکر قابل دې) چه کله شيطان دې (کافرانو) ته دا ښايسته کړې وو چه د دوی اعمال ډير ښه دي ، او دا ئې وئيلي وو چه :نن په انسانانو کښې داسې څوک نشته چه په تاسو باندې غالب شي اوځه ستاسو نګهبان يم بيا چه کله دواړه لښکرې يو بل ته مخامخ شوې نوهغه واپس شو په پونډو باندې،او وئې وئيل چه: ځه ستاسوځه ذمه دارې نه شم اخستلې ځه هغه څه وينم چه تاسو ئې نه وينئ.ځه دالله نه ويريږم ، او دالله عذاب ډير سخت دې اوهغه وخت ياد کړئ کله چه منافقانو او هغه خلقو چه دهغوې په زړونو کښې مرض وودا وئيل چه: دې (مسلمانانو) لره د دوی دين په دهوکه کښې اچولې دې حال دا چه څوک په الله اعتماد وکړې نو الله په ټولو غالب دې او حکمت والا هم دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ﴾ او د هغه وخت ، بيان دوئ ته اوکړئی کله چې شيطان دوئ [کافرانو] ته د وسوسې په ذريعه] ددوئ [کفرى] عملونه [يعنى نبى کريم ﷺ سره دښمنئ او مخالفت کول] ښکلى ښکاره کړل [چې دوئ دغه کارونه اوکړل] او [د وسوسې نه پورته ئې دا اوکړل چې مخامخ ورته] ﴿وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَاِنِّيْ جَارٌ لَّكُمْ﴾ وې وئيل چې [ستاسو داسې طاقت او رعب دې چې ستاسو] د [مخالفينو] خلقوڅخه نن هيڅوک په تاسو باندې غالب راتلونکى ندى او زه ستاسو مرستيال يم [بهرنو او اندرونى دښمنانو نه انديښنه مه کوئى] ﴿فَلَمَّا تَرَآءَتِ الْفِئَتٰنِ﴾ بيا چې کله دواړه ډلې [دکافرانو او مسلمانانو] يوبل سره مخامخ شوې [او هغه د ملائيکو نازليدل اوليدل] ﴿نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ﴾ نو په شا اوګرزيدل ﴿وَقَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكُمْ﴾ او دائې اووئيل چې زما درسره هيڅ واسطه نشته [زه ستاسو مرستيال وغيره هيڅ نشم جوړيدې ځکه چې] ﴿اِنِّيْٓ اَرٰى مَا لَا تَرَوْنَ﴾ زهٔ هغه څيزونه وينم چې تاسو ته په نظر نه راځى [مراد ترې فرښتې دى] ﴿اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ﴾ زه خو د الله ﷻ نه ويريږم چې هسې نه هم په دنيا کښې د فرښتې په ذريعه زما خبر واخلى] ﴿وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ او الله ﷻ سخت سزا ورکوونکې دې ﴿اِذْ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ﴾ او هغه وخت هم دياددلو قابل دې چې کله منافقانو [د مدينې والوڅخه] ﴿وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾ اود چا په زړونو کښې چې [دشك] بيمارى وه [يعنى د مکې ځينې خلقو چې مسلمانان ئې سره دبې سامانئ د کافرانو په مقابله کښې راتلل اوليدل] ﴿غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ دِيْنُهُمْ﴾ داسې ئې اووئيل چې دې [مسلمانانو] خلقو لره ددوئ دين په هيره

[غوليدلو] كښې اچولى دى [چې دخپل دين او حقوالى په تكيه داسې خطرې ته ئې خانونه را وراندې كړل الله ﷻ جواب وركوى] ﴿وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ﴾ او څوك چې په الله ﷻ باندې توكل كوى نو [هغه اكثر برې بيامومى ځكه چې] ﴿فَإِنَّ اللهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ بيشكه الله ﷻ زبردست دې [ځكه هغه څوك بر راولى څوك چې پرې توكل كوى او كه څه وخت داسې كس مغلوب شى نو په هغې كښې څه خير ځكه وى چې] هغه دحكمت خاوند دې [هم غرض دا چې په ظاهرى سامان اوبې سامانئ باندې څه كار اړه نه لرى قدرت لرونكې يو بل ذات دې].

## معارف او مسائل

دسورت داول سرنه دهغه واقعاتواوحالاتواوهغې نه دحاصليدونكونصيحتونواوعبرتونواو ورسره دترلواحكاموبيان راروان دې كوم چه دبدرغزاسره تعلق لرى،

هم په دې كښې يوواقعه داراپيښه شوه چه شيطان دمكې قريش اوغولول دمسلمانانو مقابلې ته ئې راويستل اوبياخاص په ميدانِ جنگ كښې يې پريښول اوپه تيښته شو، ددې بيان داوسنوآيتونوپه شروع كښې راغلې دې،

قريشولره دشيطان دغه غولول دهغوئ په زړونوكښې دوسوسې اچولوپه صورت كښې وو، ياپه انسانى شكل كښې ورته مخامخ راغلواوپه خبروسره ئې اوغولول، دې كښې اګركه دواړه احتمالونه شته مګرقرآنى الفاظونه زيات تائيدددې دويم صورت كيږى چه په انسانى شكل كښې ورته راتلوسره ئې په خبرواتروكولواوغولول،

امام ابن جرير رحمه الله دحضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه په روايت نقل كړيدى چه كله دقريشود مكى لښكر، دمسلمانانودمقابلې دپاره مكې مكرمې نه راووتونودهغوئ په زړونوباندې دا يوخطره هم سوره وه چه مونږته نزدې دبنى بكرقبيلې خلق هم زمونږدشمنان دى، هسې نه چه مونږدمسلمانانومقابلې لـه لاړشواودغه دشمنان موقعه بيامومى، زمونږپه كورونو، ښځواو ماشومانوباندې چپاړاوكړى دقافلې دسرداردابى سفيان دويرې په فريادا ګرچه دمكې مكرمې نه راووتوته تيارشوى وو په زړونوكښې ئې داتلوسه اوانديښنه ضروروه.. په دې حالت كښې ناڅاپه شيطان دسراقه بن مالک په شكل كښې داشان مخې ته ورغې چه په لاس كښې ئې جنډه وه او ورسره ديوبهادرفوځ دسته وه دكومې قبيلې نه چه دحملې خطره دقريشوكيده، سراقه بن مالک ددغه قبيلې يولوئ سرداروو، دې رامخې تـه شوقريشى لښكرته ئې خطاب اوكړواوپه دوه شانه ئې اوغولول اول په دې شان چه ورته ئې داسې اووئيل: ﴿لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ﴾ [نن هيڅوک خلق په تاسونشى بركيدې] مطلب ئې داووچه دمخالفې ډلې دقوت اندازه هم ماته شته چه ډيركم دى اوستاسوطاقت اوګنړوالې وينم، ځكه يقين دركوم چه تاسوبې فكره شئ، مخ په وړاندې روان شئ هم تاسوبه بركيږئ، په تاسوباندې هيڅوک غالب كيدونكى نشته،

په بل شان ئې داسې اوغولول چه وې وئيل ﴿إِنِّي جَارٌ لَكُمْ﴾ يعنى دبنى بكرنه كومه انديښنه چه تاسوته راولاړه شويده چه ستاسودتلونه پس به په مكه مكرمه چپاړاوكړى نودهغې ذمه دارى زه اخلم چه دغسې به نه كيږى زه به په دې كښې ستاسومرستيال يم. دمكې قريش دسراقه بن مالک داثررسوخ نه خبروو، دده په خبرودبنى بكردچپاؤنه بې خطرې شواود مسلمانانودمقابلې

دپاره تیارشو. (۱)

په دې دوه ارخیزه غولولو سره شیطان دغې خلقولره خپل قتل ګاه ته وروښرل: ﴿فَلَمَّا تَرَآءَتِ الْفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ﴾ کله چه دغه دواړه ډلې سره مخامخ شوې نوشیطان مخ په شاروان شو

دبدرپه غزاکښې هرکله چه دمکې دمشرکانو په شاباندې یوشیطانی لښکرهم راغلې وو، څکه الله تعالی دهغوئ په مقابله کښې دفرشتولښکر، دحضرت جبرائیل ﷵ اومیکائیل ﷵ په مشرئ کښې راؤلیږلو. امام ابن جریر رحمه الله وغیره په روایت دابن عباس رضی الله عنهما نقل کړیدی چه شیطان دغه وخت دسراقه بن مالک سردارپه شکل کښې دیوشیطانی لښکرمشری کوله، دائې چه اولیدل چه حضرت جبرائیل ﷵ دفرښتودلښکرمشری کوله اومیدان ته راغی نو شیطان اوویریدلو اوخپل لاس ئې دقریشی دیوځوان حارث بن هشام دلاس نه راخلاص کړواو په تیښته شو، حارث اورټلو چه داته څه کوې؟ شیطان حارث لره په سینه اووهلو اووې غورځولو اوخپل شیطان لښکرسره په تیښته شو، حارث پردسراقه خیال کولوورته ئې اووئیل.

اې دعربو سرداره سراقه، تاسوخوداوئیلي ووچه زه ستاسو امدادی اومرستیال یم، بیاولې خالص دمیدان جنګ په موقع داسې حرکت کوې، شیطان ورته هم دسراقه په شکل کښې جواب ورکړو ﴿اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّنْكُمْ اِنِّیْٓ اَرٰی مَا لَا تَرَوْنَ اِنِّیْٓ اَخَافُ اللّٰهَ﴾ (۲) تاسوسره م چه کوم لوظ، قول کړیدې هغې نه م لاس څکه واغستوچه زه هغه څیزوینم چه تاسونشئ لیدلې] مراد ترې د فرشتو لښکرووه، [اودائې هم اووئیل چه زه الله تعالی نه ویریږم څکه ستاسو ملګرتیاپریږدم]

شیطان دفرشتودلښکرپه لیدلوسره پوه شوچه اوس م څه خیرنشته، ولې چه هغه دفرشتود طاقت نه خبروو، دالله تعالی نه دویریدلو وینادده [په روایت دقتاده رحمه الله چه دتفسیرامام دې] دروغ څکه وه چه که دې دخدائ نه ویریدلې نونافرمانی به ئې ولې کوله؟ خواکثرحضرات وائی چه ویریدل ئې په خپل ځائ صحیح څکه دی چه هغه دالله تعالی کامل قدرت اوسخت عذاب په پوره شان پیژنی، صرف خبره داده چه بغیرد ایمان اوفرمانبردارئ نه یواځې ویریدل هیڅ فائده نه ورکوی،

دسراقه دپشاکیدوپه وجه چه ابوجهل دخپل لښکرزړونه ماتیدل اولیدل نوپه دروغه ئې داسې خبره جوړکړه چه سراقه د محمد ﷺ سره پټ سازش کړې وو، دشیطان دپشاکیدونه پس دکفارودلښکرچه څه حشراوانجام اوشوهغه ټولوخلقوته معلوم دې، دغه کفارچه کوم ترمکې ته واپس راؤرسیدل په هغوئ کښې دچاملاقات سراقه بن مالک سره اوشو، نوهغه ئې ملامته کړوچه په جنګ بدرکښې زمونږشکست اوزمونږدټول زیان تاوان ذمه داری په تاڅکه ده چه خالص په میدان جنګ کښې زمونږنه پشاشوې اوزمونږدځوانانوزړونه دمات کړل. هغه اووئیل چه زه خونه تاسوسره تلې وم، نه درسره په څه کارکښې شریک شوې یم. زه خوستاسو په ماتې خوړلوهم هله خبرشوم چه تاسومکې ته راؤرسیدئ؟

امام ابن کثیرداټول روایتونه په خپل تفسیرکښې نقل کولونه پس فرمائیلی دی چه شیطان لعین دخپل عام عادت په جوړانسان په یوناکاروالی او ګناه کښې دښکیل کولونه پس عین په موقعه باندې تربیل شی چنانچه قرآن کریم په بیابیادده داعادت بیان کړید، ې یوځائ کښې

---

۱) تفسیر الطبری تحت هٰذه الآیة: رقم الحدیث ۱۶۱۸۳، ۱۶۱۸۵

۲) تفسیر الطبری تحت هٰذه الآیة: رقم الحدیث ۱۶۱۸۳

Scanned with

فرمائی ﴿كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ اِذْ قَالَ لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ ۚ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكَ اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ۝﴾ (۱)(۲)

**شیطاني دخل اوفریب اودې نه دسمې شهودطریقه؟** دې آیت کښې دبیان شوې واقعې نه څو فائدې ترلاسه شوې، ① اول داچه هرکله شیطان دانسان یوښکاره دښمن دې نو ده ته دنقصان رسولو دپاره قسماقسم حیلې اوچلونه کوی اوپېنترې [شکلې] ورته بدلوی، کله خوخاص په زړونو کښې ورته وسوسې اچوی اوپریشانه کوی ئې اوکله خوورته په مخامخ راتلوسره ئې دوکه کوی، ② دویمه داچه شیطان ته الله تعالی طاقت ورکړیدې چه هغه په مختلفوشکلونوکښې ځان ښکاره کولې شی، چنانچه دیو مشهورحنفی فقهی په کتاب ﴿اٰكَامُ الْمَرْجَانِ فِي أَحْكَامِ الْجَانِ﴾ کښې داپه وضاحت سره ثابت کړې شویدی په دې وجه محققین صوفیائې کرام کوم چې د کشف اوشهودخاوندان دی، هغوئ په دې سره خلق خبردارکړی دی چه دیوکس په لیدلو یادهغه دخبرې په آوریدلوسره بې دتحقیق نه ورپسې تلل ډیرخطرناک ځکه وی چه په کشف اوالهام کښې شیطانی دخل اوکډون کیدې شی لکه مولانارومی رحمه الله فرمائیلی دی؟

اے بساابلیس آدم روئے همت    پس بهردستے نشایدداددست

[ډیرکرته ابلیس دبنیادم په شکل کښې ښکاره کیږی، ځکه دهرچاپه لاس کښې لاس ورکول پکارنه دی،

اوحافظ رحمه الله هم فرمائیلی دی:

درراهِ عشق وسوسهٔ اهرمن بسے است    هشداروگوش رابه پیام سروش دار

[دعشق په لارکښې شیطانی وسوسې ډیرې کیدې شی، ځکه بیداراوسه اوصرف وحی الهی پسې مخه اوړه]

**کامیابۍ دپاره یواځې دنیت اخلاص کافی نه دې دې نه وړاندې په نیکه لارکیدل ضروری دی؟**

③ دریمه داچه په کفر، شرک یاپه نورووناجائزوعملونوکښې داخته کیدوزیات سبب هم داوی چه شیطان انسان ته دهغه بدعملونه ښکلې ښائسته اوفائده من ښکاره کولوسره ئې زړه او دماغ، دحق، صدق اوصحیح نتیجونه اړوی، هغه خپل باطل لره حق اوبدلره نیک ګڼړی اوداهلِ حق پشان په باطلوباندې ځان ورکولوته تیارشی چنانچه قریشی لښکراوددې سرداران کله چه بیت الله شریف نه رخصتیدل نودبیت الله شریف په خواکښې ئې داسې دعا کړې وه،

اَللّٰهُمَّ انْصُرْ اَهْدَى الْفِئَتَيْنِ، [اې الله، په دې دواړوډلوکښې هغې ډلې سره امداداوکړې چه زیاته هدایت موندونکې وی،

دې بې خبره خلقوداګنړل چه ګنی مونږزیات په هدایت باندې یوداشیطان فریب اولمسه وه چه ځان ئې په حقه ګڼړلو اوښه په اخلاص ئې دخپل باطل په مرسته کښې مال وځان قربانولو،

دې نه معلومه شوه چه یواځې اخلاص کافی نه وی ترڅوچه دعمل مخه صحیح نه وی،

---

(۱) ترجمه: د دوی مثال د شیطان دے، چه انسان ته وائی چه کافر شه نو چه هغه کافر شی نو بیا ورته وائی چه زه ستانه بری یم، زه خو دالله نه ویریږم چه د ټول مخلوق رب دے۔

(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۲، ۱۳

وړپسې په دويم آيت کښې د مدينې د منافقانو او د مکې د مشرکانو يوه شريکه وينا، د
مسلمانانو په باره کښې دا نقل کړيده چې ګوياکښې په دوئ باندې د زړه سوځيدو د پاره ئي
وئيلي وو ﴿غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ دِيْنُهُمْ﴾ يعنی په ميدان بدر کښې دا ړشان مسلمانان دومره لوئ مضبوط
لښکر د کفارو سره ډغرې وهلو د پاره راغلل، دا غريبانان خپل دين دوکه کړيدی او د مرګ خله
کښې ئې ور کړيدی، خو الله تعالی د دې په جواب کښې فرمائي: ﴿وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ
حَكِيْمٌ﴾ يعنی څوک چه په الله تعالی تکيه او توکل کوی نو يا د لرئ چه هغه هيچرې هم نه ذليله
کيږی ولې چه الله تعالی په ټولو باندې غالب دې] دهغه د حکمت په وړاندې د ټولو عقل او پوه
بيکاره ثابتيږی] مطلب دا چه تاسو خلق صرف په ماده او ماديا تو باندې اعتماد او تکيه لرئ،
دهغې پټ طاقت نه خبر نه ئې چه د دغه مادو او ماديا تو د پيدا کوونکی په خزانو کښې دی
او دا طاقت هغه خلقو سره وی کوم چه په الله تعالی باندې ايمان او تکيه لری،

اوس هم چه ساده مسلمانان او وينی نو د عقل او پوهې ډير دعوه لرونکی داسې وائی،

اگلے وقتوں کے ہیں یہ لوگ انہیں کچھ نہ کہو

[دا د زړې زمانې خلق دی مخه ورپسې مه اوړئ]

وَلَوْ تَرٰٓى

|او که او وينې ته|

|او کله چه فرشتې

اِذْ يَتَوَفَّى الَّذِيْنَ كَفَرُوا الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ

هغه حالت |چې روح قبض کوی|د هغه کسانو |چې کفر ئې کړې دې| فرښتې | وهی هغوئ |

[د مرګ په وخت کښې] وينې چه د کافرانو روحونه قبض کوی او هغوی په مخونو او شاګانو باندې

وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ذٰلِكَ

مخونه د هغوئ |او شاګانې د هغوئ |چې اوڅکئ | عذاب | د سوزيدو | دا په سبب د هغې

وهی [او تکوی او دا به ورته هم وائی چه] سوزيدونکي عذاب [د جهنم] او څکئ | دا عذاب [د سوزيدو]

بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ

چې مخکښې ليږلي دي لاسونه ستاسو |او بيشکه الله | نه دې | ظلم کونکې |په بندګانو خپلو |

دهغه [بدو اعمالو] په وجه دې کوم چه ستاسو لاسونو کړی وو او الله تعالی په خپلو بندګانو ظلم کونکي نه دې

كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

لکه دحال | د تابعانو دفرعون دې|او لکه د هغه کسانو دې |چې مخکښې د دوئ نه وو |

[د دوی حالت] پشان د د فرعون او د هغه کسانو دې کوم چه د دوی نه وړاندې وو.

كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ اِنَّ اللّٰهَ

چې انکار اوکړو هغوئ |د آيتونو د الله | نه اونيول هغوئ الله | په ګناهونو د هغوئ | بېشکه الله

هغوی د الله تعالی د آيانونو نه انکار او کړو نو الله هغوی د ګناهونو په وجه اونيول بيشکه الله

Scanned with Ca

| |
|---|
| قَوِيٌّ شَدِيدُ الْعِقَابِ ۞ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ لَمْ يَكُ |
| دطاقت خاوند دي ا سخت ورکونکي دي ا عذاب ا دا عذاب ا په سبب دهغې چې بيشکه الله ا نه دی |
| د طاقت خاوند دي او سخت عذاب ورکونکي دي دا عذاب د دې په وجه دي چه الله تعالی چه په يو |
| مُغَيِّرًا نِّعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَىٰ قَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا |
| بدلونکي ا هغه نعمت لره ا چې کړې وی هغه ا په يو قوم باندې اتر دې پورې ا چې بدل کړی هغوئ |
| قوم باندې څه نعمت کړې وی نو هغه نه بدلوی ترڅو چه هغوی خپل نعمت نه وی بدل کړې [او د تابعدارئ او |
| مَا بِأَنفُسِهِمْ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۞ |
| هغه حال ا چې په نفسونو دهغوئ باندې وی ا او بيشکه چې الله ا اوريدونکي دي ا او پوهه دي ا |
| شکر په ځائې ئې نا شکری نه وی کړې او الله تعالی د هرې خبرې اوريدونکي او په هرڅه عالم دي |

## آسان ترجمه قرآن

او که تاکتلي وې (نو هغه څه عجيبه منظر وو) چه کله فرښتو ددې کافرانو روحونه قبض کول، هغوی ئې په مخونو او شاګانو باندې وهل (او وئيل ئې چه (اوس) د سوځيدو مزه (هم) وڅکئ، دا ټوله دهغه اعمالو بدله ده چه تاسو پخپلو لاسونو مخکښې ليږلي وو، او دا خبره ثابته ده چه الله په خپلو بندګانو باندې ظلم کونکې نه دې. (ددې خلقو حال داسې شو) لکه چه د فرعون د قوم او دهغه خلقو چه دهغه نه مخکښې تير شوي وو. هغوی دالله د نښو منلو نه انکار کړې وو، نتيجه دا شوه چه الله تعالی دهغوی دګناهونو د وجې نه هغوی په خپل ګرفت کښې واخستل. يقيناً الله لوئ طاقت والادې (او) عذاب ئې ډير سخت دا هرڅه ځکه وشوچه دالله دستور دادې چه هغه چه کوم نعمت يو قوم ته ورکړې وي هغې لره ترهغه وخته پورې بدلول نه برداشت کوي ترڅو چه هغه خلقو خپل حالت پخپله نه وی بدل کړې او الله هر څه آورې او په هر څه باندې پوهيږی.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ يَتَوَفَّى الَّذِينَ كَفَرُوا ۙ الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ﴾ او که تاسو ﷺ [ددغه وخت واقعه اووينئ [نو عجيبه واقعه به درته ښکاره شی] کله چې فرښتې ددوئ [موجودو] کافرانو روحونه قبض کوی [او] ددوئ په مخونو او شاګانو ئې وهی او دا وائی چې [اوس لا څه دی چې په وړاندې تللو سره] ﴿وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ۞﴾ د اور سزا تيروئ [او] ﴿ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ﴾ دا عذاب ستاسو د [کفری] عملونو په وجه دې چې تاسو د خپله لاسه راټول کړی دی ﴿وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ۞﴾ او دا خبره ثابته چې الله ﷻ په بندګانو باندې ظلم کوونکې نه دې [نو الله ﷻ دا سزا بې جرمه نه ده درکړې پس] ﴿كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ ددوئ حالت [په دې باره کښې چې د کفر سزا موندونکی شو] داسې دې لکه چې د فرعونيانو اودهغوئ د وړاندې د [کافرانو] حالت چې وو ﴿كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ﴾ چې هغه د الله ﷻ د آيتونو انکار اوکړو ﴿فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ﴾ نو الله ﷻ ددوئ [پدغه] ګناهونو دوئ لره [په عذاب کښې] راؤنيول، ﴿إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ شَدِيدُ الْعِقَابِ ۞﴾ بيشکه الله ﷻ لوئې د قوت خاوند سخت سزا ورکوونکي دې

Scanned with Ca

[چې دده په مقابله کښې هيڅ داسې طاقت نشته دې چې دده عذاب برته کړې شي او ﴿ذٰلِكَ﴾ [چې مونږ بې جرمه سزا نه ورکوو] په دې وجه ده [چې زمونږ يوه قاعده کليه تاکلې شوې ده او بې جرمه سزا نه ورکول ددغې قاعدې څېنې يوه حصه ده او هغه قاعده داده چې] ﴿بِأَنَّ اللَّهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَىٰ قَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ﴾ الله ﷻ داسې يو نعمت چې يو قوم ته ئې ورکړې وی نه بدلوی، تر څو چې همدغه خلق خپل ذاتی عملونه بدل نکړی ﴿وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ او دا خبره ښه کلکه ده چې الله ﷻ لوئې آورېدونکې لوئې پوهېدونکې دې [نو هغه د خبرې بدلول آورې او د کارونو په بدلولو پوهېږی نو دغه موجودو کافرانو خپل ذاتی حالت بدل کړو چې په دوئ کښې سره د کفر، اول دا ايمان راوړلو استعداد نزدې وو، په انکار او مخالفت کولو سره هغه لرې حد ته يوړلو نو مونږ د مهلت ورکولو خپل هغه نعمت چې دوئ ته رومبې حاصل وو، د دوئ په رانيولو سره بدل کړو، دهغې وجه دا وه چې دوئ په دغه بيان شوې طريقې سره هغه د نزدې استعداد بدل کړو او لرې حد ته ئې اورسولو].

## معارف او مسائل

په دې آيتونو کښې، اولو دوو آيتونو کښې د کافرانو د مرګ د وخت عذاب او د فرشتو زورنې ئې بيان کړيدی په دې کښې رسول الله ﷺ ته داسې خطاب شويدې چه، که تاسو ﷺ د دغه کافرانو په هغه وخت ننداره کړې وی چه فرشتو به ئې روحونه قبض کول، دهغوئ په مخونو او په شاګانو باندې به ئې ګذارونه کول او دا به ئې ورته وئيل چه په اور کښې د سوځېدو عذاب اوڅکئ نو لويه هيبتناکه ننداره به موکتلې وه،

د تفسير څېنې امامانو فرمائيلی دی چه دې کښې دهغه کافرانو د قريشو حالت بيان شويدې چه د بدر په غزا کښې مسلمانانو سره د جنګېدو د پاره راغلی وو او الله تعالی د مسلمانانو د امداد د پاره د فرشتو لښکر لېږلې وو، په دې صورت کښې د آيت معنی دا شوه چه د بدر په ميدان کښې کوم قريشی سرداران مړه شوی وو دهغوئ په وژلو کښې د فرشتو لاس وو چه دوړاندې نه به ئې په مخونو او د روستو نه به ئې په شا ګذارونه ورکول او مړه کول به ئې او دې سره سره به ئې ورته په آخرت کښې د جهنم د عذاب خبر ورکولو،

او څوک چه د قرآنی الفاظو مطابق په عام مضمون داحمل کوی نو دهغې په بنا به دا آيت معنی داسې شی، چه کله څوک کافروی نو د مرګ فرشتې دهغه د روح قبض کولو په وخت هغه له په مخ او شا باندې ګذارونه ورکوی، چنانچه د څېنې روايتونو په جوړ د فرشتو په لاسونو کښې داور کرورې او د اوسپنې ګرزونه وی چه دغه مړه کيدونکی کافران پروهي، خو هر کله چه دغه عذاب برزخ سره تعلق لری څکه ئې څوک په سترګو نشی ليدلې ولې چه د دې تعلق عالم عناصر سره نه وی،

په دې بنا رسول الله ﷺ ته هم اوفرمائيلې شو چه که دغه وخت تاسو ﷺ په خپلو سترګو ليدلې وې نو لويه عبرتناکه ننداره به دليدلې وه، دعذاب قبر بيان د قرآن کريم په نورو آيتونو کښې هم راغلې دې او احاديثو روايتونه خو په دې معامله کښې بې شميره دی،

په دويم آيت کښې کفارو ته وئيلې شی چه د دنيا او آخرت عذاب ستاسو د خپلو لاسونو ګټه ده، خاص د لاسونو ذکر په دې وجه او کړې شو چه عام کاروبار په لاسونو سره کولې شی، اصلی مطلب دا دې چه دا عذابونه ستاسو د خپلو کړو او عملونو نتيجه ده څکه چه الله تعالی خو په خپلو بندګانو ظلم نه کوی چه بې هيسه به ئې ګنی عذابوی،

په دریم آیت کښې دااوښودلې شوچه په دغه مجرمانوباندې دالله تعالی عذاب راتلل څه نوې خبره څکه نه ده چه داالله تعالی جاری عادت دې چه دخپلوبندګانو دهدایت دپاره ورته عقل اوپوه ورکوی، خواؤشاکښې وردپاره بیشمیره څیزونه موجودوی چه په هغې کښې غور فکرکولوسره دالله تعالی لوئ قدرت اولوئې پیژندې شی اوداهم پیژندې شی چه دهغه عاجز اوبې وسه مخلوق ددهغه شریک نه جوړوی، بیادپوره خبرولودپاره ورته پیغمبران اوکتابونه [آسمانی] رالیږی، دالله تعالی پیغمبران په دې بناباندې دخلقوپه پوهولوکښې هیڅ څه کسرنه پریږدی، ورته دالله تعالی دغالب قوت ننداری دمعجزوپه شکل کښې ښکاره کوی، هرکله چه څوک یوکس یاڅوک یوډله یایوقوم ددې هرڅه نه سترګې پټې کړی، ځان پرړوندکونړکړی نود الله تعالی جاری عادت دې چه په داسې خلقوباندې دنیاکښې هم عذاب راځی اودآخرت په همیشه عذاب کښې هم راګیرېږی لکه فرمائی: ﴿كَدَأْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ﴾ د، دأب، معنی عادت ده، مطلب داشوچه ﴿اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ﴾ دفرعونیانو اوددوئ نه وړاندې دکافرانوپه باره کښې چه دالله تعالی عادت خلقوته معلوم شوې دې چه ټول فرعونیان د یو مخه سره دخادمانو اوسامانونو په دریاب کښې غرق شو اودغه شان الله تعالی عادیان اوثمودیان په قسماقسم عذابونوسره هلاک کړل،

﴿كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ﴾ دغې خلقودالله تعالی نشانیانې اوآیتونه په دروغه اوبلل الله تعالی دوئ په خپل عذاب کښې ښکیل کړل| ﴿اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ وجه ئې داده چه الله تعالی قوی دې، هیڅوک دقوت او بهادرئ خاوندئې دعذاب نه نشی خلاصولې، اودالله تعالی سزاهم ډیره سخته ده،

په څلورم آیت کښې الله تعالی دخپل انعام اوورکړې قایم اوجاری لرلودپاره یوضابطه داسې بیان کړیده، فرمائی:

﴿ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً اَنْعَمَهَا عَلٰى قَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ۙ﴾ [یعنی الله تعالی خپل وربخښلې نعمت ترهغې نه بدلوی ترڅوچه دغه خلق پخپله خپل حالات اوعملونه بدل نکړی]

دلته رومبئ خبره دژورنظرکولوجوګه داسې ده چه الله تعالی دنعمت وربخښلودپاره څه ضابطه نه ده بیان کړې، څه شرط، قیدئې وردپاره هم نه دې لګولې، په څه ښه عمل ئې موقوف اوادانره کړې هم نه دی، چنانچه اول زمونږ خپل وجودونه هم لوئ نعمتونه دی، دالله تعالی دقدرت اوکاریګرئ ډیرعجائبات پکښې شته دې حیرانوونکی په زرګونونعمتونه ئې پکښې ایښی دی، سره ددې چه ددې نعمتونو د وربخښلو په وخت مونږ دسره موجودنه وونو عملونه موکوم ځائ موجودوو؟

مانبوديم وتقاضائے مانبود لطفِ تو ناگ فته ما می شنود

[نه مونږ موجودوو اونه موغوښتنه موجوده، ستامهربانئ زمونږناوئیلې خواست هم آوریډ]

که دالله تعالی انعامونه او احسانونه زمونږ په نیکوعملونوڅه اړه لرلې نومونږبه دسره موجود شوی نه وو، وجه ئې داده چه الله تعالی رب العلمین اورحمن اورحیم دې داټول نعمتونه او احسانونه ئې هم ددې نتیجه دی، البته دنعمت اورحمت قایم اوجاری لرلودپاره یوه ضابطه ئې په دې آیت کښې داسې بیان کړه چه، چاته ورکړې نعمت الله تعالی ترهغه وخته پورې واپس نه اخلی ترڅوچه ددغې خلقوحالتونو اوعملونوبدلولودوئ پخپله دالله تعالی عذاب ته بلنه ورنکړی،

Scanned with Ca

د حالتونو د بدلولو مطلب داهم کیدې شي چه د (۱) نعمتونو د وربخښلو په وخت د نیکو عملونو او نیکو حالتونو په ځای بدعملونه او بدحالات اختیار کړي، یا د دغې نعمتونو د وربخښلو په وخت چه کوم بدو عملونو او ګناهونو کښې دغه خلق اخته وو، هغې نه پس ددې نه په زیاتو ناکاره عملونو او زیاتو ګناهونو کښې اخته شي،

دې تفصیل نه داهم معلوم شو چه په تیرو آیتونو کښې د کومو قومونو یعنی کفارو د قریشو او فرعونیانو بیان چه راغلې دې، دالله تعالی دنعمتونو دوربخښلو په وخت دوئ په څه ښه حالاتو کښې نه وو، بلکه ټول دځیرمې کافران او مشرکان وو، لیکن دانعاماتو نه پس دا خلق په خپلو بدعملو او شیطانتونو کښې داول نه زیات خراب شوي وو، چنانچه فرعونیانو په بنی اسرائیلو باندې قسماقسم ظلمونه شروع کړل، دحضرت موسی ﷺ مقابلې او مخالفت ته ئې ملا اوتړله چه دوړاندینو ناکاروالو نه زیات ناکاروالي وو، هرکله چه په دې شان ئې خپل حالات زیات خراب کړل نو الله تعالی پرخپل کړې نعمت په زحمت او عذاب کښې بدل کړو، دغه شان دمکې قریش اګرچه مشرکان اوبدعمله وو لیکن دې سره په دوئ کښې څه ښه عملونه، خپلوی پالل، میلمه پالل، دحاجیانو خدمت کول، دبیت الله شریف تعظیم کول وغیره هم وو، الله تعالی په دوئ باندې ددین دنیا دنعمتونو دروازې پرانستې، په دنیا کښې ئې ددوئ تجارتونو ته یې ترقی ورکړه او په داسې ملک کښې چه دهیچا تجارتی قافله به په امن او سلامتئ سره نشوه تیریدې، ددې خلقو تجارتی قافلې به دشام او یمن په سفر تلې او په خیرخیریت سره به واپس راتلې، څنګه چه بیان یې په سورة قریش کښې قرآن کریم پخپله کړې دې،

﴿لِإِيلَافِ قُرَيْشٍ ۝ إِيلَافِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ ۝﴾[1] داخوئې ددنیوی نعمتونو بیان شو، دینی لوئ نعمت ورته

هغه ورکړې شو چه په دنیا کښې هیڅ یو قوم ته نه وو ورکړې شوې، سید الانبیاء خاتم النبیین ﷺ هم په دوئ کښې پیغمبر شو د الله تعالی آخری او جامع کتاب قرآن مجید هم په دوئ کښې راؤلیږلې شو، لیکن دې خلقو ددې نعمتونو دشکریه اداکولو په ځای خپل حالات او عملونه نور هم زیات ګنده داسې کړل چه مسلمانیدونکو خپلو خپلوانو باندې ئې ظلمونه رابشکته کړل او په دې شان ئې خپلوی هم پریښوده، دمیلمه دوستئ په ځای ئې هم په دغه مسلمانیدونکو خلقو باندې دخوراک، څکاک، بندولو ظنامې اولیکلې، دحاجیانو دخدمت کولو په ځای ئې مسلمانان په حرم شریف کښې دداخلیدو نه بند کړل، قریشو پخپله داحالت بدل کړو، په نتیجه کښې الله تعالی پر دنعمت په ځای زحمت او عذابونه راوستل، په دنیا کښې هم ذلیل او خوار شو او کوم ذات چه الله تعالی رحمة للعالمین جوړ کړې وو دوئ ته راغلی وو هم دهغوئ ﷺ په ذریعه ئې خپل، ذلت، مرګ، هلاکت او عذاب ته بلنه ورکړه،

په تفسیر مظهری کښې دتاریخ دمعتبرو کتابونو په حواله سره لیکلې شوی دی چه د رسول الله ﷺ ددریمې پیړئ نیکه،، کلاب بن مره،، اول دسره دحضرت ابراهیم ﷺ او اسماعیل ﷺ ددین پابند او قایم وو او دغه شان پیړئ په پیړئ دینی مشری ددوئ په لاس کښې پاتې شوې وه، د قصی بن کلاب په زمانه کښې دې خلقو کښې بت پرستی شروع شوه قصی نه وړاندې کعب

[1] ) ترجمه: یعنی دوئی او داوړی د سفر سره عادت شوی دی۔

بن لوئی د دوئ دینی مشرو و، د جمعې په ورځ به ئې خلق را جمع کړل او خطبه به ئې ورکوله چه د دوئ په ژبه کښې به ورته عروبه وئیلې شوه او دا به ئې هم ښودل چه د دوئ په اولاد کښې به خاتم النبیین ﷺ پیدا کیږی، د هغوئ ﷺ تابعداری کول به په ټولو لازم وی، ځکه چه پرِ ایمان نه راوړی هیڅ عمل د هغه به نه قبلیږی، د رسول الله ﷺ په باره کښې د هغوئ عربی شعرونه په جاهلی شاعرانو کښې مشهور دی، همدغې قصی بن کلاب به د ټولو حاجیانو د خوراک او اوبو انتظام کولو تر دې چه دا انتظام د رسول الله ﷺ د زمانې مبارکې پورې د دوئ ﷺ د خاندان په لاس کښې پاتې شو، (۱) د دې تاریخی تشریح له مخې دا هم وئیلې شی چه د قریشو د حالاتو بدلیدو دا مطلب هم اغستې شی چه ابراهیمی ﷺ دین ئې پریښو او دهغې په ځائ ئې بت پرستی اختیار کړه.

په هر حال د آیت د مضمون نه دا معلومه شوه چه کله کله الله تعالی خپل نعمت ځنې داسې خلقو ته هم ورکوی چه د خپلو عملونو ردمخې د هغې حقدار نه وی، لیکن د نعمت وربخښلو نه پس که د خپلو عملونو د سمولو په ځائ په بدو عملونو کښې نو هم زیاتوالې راولی نو بیا دغه نعمت تراغستې شی او هغوئ د الله تعالی د عذاب حقدار ګرځی.

په آخر د آیت کښې فرمائی ﴿وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِیۡعٌ عَلِیۡمٌ﴾ یعنی الله تعالی د دوئ هر قسم خبرې اترې آوریدونکې او د دوئ د هر قسم عملونو او کارونو پیژندونکې دې، په دې کښې د څه غلطئ یا غلط فهمئ امکان نشته،

| |
|---|
| كَدَاۡبِ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ ۙ وَالَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ؕ كَذَّبُوۡا |
| لکه د حال د تابعانو د فرعون دې | او لکه د هغه کسانو دې | چې مخکښې د دوئ نه وو | چې دروغ او ګڼړل هغوئ |
| د دوی حال د فرعونیانو او هغه خلقو پشان دې چه د هغوی نه وړاندې وو. هغه دا چه هغوی د خپل رب ایاتونه |
| بِاٰیٰتِ رَبِّهِمۡ فَاَهۡلَكۡنٰهُمۡ بِذُنُوۡبِهِمۡ وَاَغۡرَقۡنَاۤ |
| ایتونه | د رب خپل | نو هلاک کړل مونږ هغوی | په سبب د ګناهونو د هغوئ | او غرق کړل مونږ |
| دروغ بللی وو. نو الله تعالی هغوی د هغوی د ګناهونو په سبب هلاک کړل او مونږ د فرعون تابعداران |
| اٰلَ فِرۡعَوۡنَ ۚ وَكُلٌّ كَانُوۡا ظٰلِمِیۡنَ ۝ اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ |
| تابعان د فرعون | او دا ټول | وو | ظالمان | بیشکه | ناکاره | د ګرځنده مخلوق نه |
| د فرعون هلاک کړل [او مونږ چا سره ظلم نه وو کړې بلکه] دا ټول ظالمان وو. بیشکه د الله تعالی |
| عِنۡدَ اللّٰهِ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا فَهُمۡ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ ۝ |
| په نز د الله | هغه کسان دی چې انکار ئې اوکړو د حق نه | نو هغوئ | ایمان نه راوړی |
| په نیز په ساه لرونکې ځیزونو کښې د ټولو نه بدترین هغه دي چه کفر ئې کړې دې او ایمان نه راوړی |
| اَلَّذِیۡنَ عٰهَدۡتَّ مِنۡهُمۡ ثُمَّ یَنۡقُضُوۡنَ عَهۡدَهُمۡ |
| خاص طور هغه کسان | چې وعده واغستله تا | د هغوئ نه | او بیا | ماتوی هغوئ | وعده خپله |
| خاص کر هغه کسان [بدترین دی] چا سره چه تا په دوی کښې وعده کړې ده او بیا [هم] هغوی هر خل |

(۱) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۱۰۲

Scanned with Ca

فِي كُلِّ مَرَّةٍ وَّهُمْ لَا يَتَّقُونَ ﴿٥٦﴾ فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ

په هره موقع کښې | اوهغوئ | انۀ یریږی دالله نه انو که ابیا مومې تۀ هغوئ لره | په جنګ کښې |

وعده ماتوی او د الله تعالی نه [په وعده ماتولو کښې] نه ویریږی نو که چرته تا دوی په جنګ کښې موندل

فَشَرِّدْ بِهِمْ مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ

نواویروه | په سزادهغوئ سره | اهغه څوك | اچی روستودهغوئ نه دی | دپاره ددې

نودهغوی په وجه هغه خلق اوویروه کوم چه ددوی نه روستو دی ......... د دې دپاره

يَذَّكَّرُونَ ﴿٥٧﴾ وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ

چی هغوئ عبرت واخلی دوعده خلافو دا نجام نه | اوکه چری | تۀ یریدلې | دیوقوم نه |

چه دوی نصیحت قبول کړی............ اوکه چرته د یوې دلې نه مو د

خِيَانَةً فَانْبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ

د خیانت کولو انو اوغورزوه | اهغوئ ته | په برابرئ سره | بیشکه چی الله | تۀ خوښوی

خیانت کولو ویره کیږی نو هغوی سره چه کله معاهده پوره شی هغه واپس کړه بیشکه الله تعالی

الْخَائِنِينَ ﴿٥٨﴾

خیانت ګرخلق |

خیانت ګر نه خوښوی

## آسان ترجمه قرآن

(دې معامله کښې هم ددوی حال هم داسې شو) لکه چه فرعون او دهغه نه مخکښې چه کوم خلق وو. هغوی دخپل رب ښو لره دروغژني کړې وې نتيجه دا شوه چه مونږ دهغوی د ګناهونو د وجې نه هغوی لره هلاك کړل اود فرعون قوم مو غرق کړو او دا ټول ظالمان ؤ یقین وکړه چه د الله په نیز بانديې په زمکه بانديې ګرځیدونکو ساه والا ځیزونو کښې د ټولو نه بدترین هغه خلق دي چه هغوی کفر اختیار کړې دې چه دهغې د وجې نه هغوی ایمان نه راوړي دا هغه خلق دي چه دوی تا سره لوظ کړې دي دهغې باوجود دوی خپله وعده هر ځل ماتوي ، او لږ هم نه ویریږی پس که په جنګ کښې دا خلق تا ته په لاس راشي نو دوی لره عبرت جوړ کړه او هغه خلق هم وویروه چه کوم ددوی نه وروستو راځی، دې د پاره چه دوی یاد وساتي اوکه تا ته دیو قوم نه دبې لوظۍ خطره وي نو ته هغه معاهده هغوی طرف ته صفا صحيح طریقې سره وغورځوه او یادساته چه الله وعدې ماتونکو لره نه خوښوي .

## خلاصه تفسیر

[پس ددې بدلون راوستو په کار کښې هم] ﴿كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ﴾ د دوئ حالت د فرعونيانو اود دوئ نه دوړاندې خلقو پشان دې ﴿كَذَّبُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ﴾ چې هغوئ دخپل رب آیتونه په دروغه او بلل ﴿فَأَهْلَكْنَاهُمْ بِذُنُوبِهِمْ﴾ په دې باندې مونږ هغوئ ، دهغوئ [دهغې] ګناهونو په سبب هلاك کړل او [په هغوئ کښې] ﴿وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ ۚ﴾ فرعونیان مو په خاص

Scanned with Ca

ډول هلاك كړل چې [هغوئ لره] غرق مو كړل ﴿وَكُلٌّ كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ﴾ او هغوئ [فرعونيان او ړومبي خلق] ټول ظالمان وو ﴿اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ بيشكه زيات ناكاره خلق د الله ﷻ په نزد دا كافر خلق دي [كله چې دا د الله ﷻ په علم كښې داسې دي] ﴿فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ نو په دې ايمان نه راوړي ، ﴿اَلَّذِيْنَ عٰهَدْتَّ مِنْهُمْ﴾ دچاچې داشان دي چې تاسو ترې [څو څو ځله] وعده اخستې وه [مكر] ﴿ثُمَّ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَهُمْ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ﴾ بيا [هم] دوئ هر ځل خپله وعده ماتوي ﴿وَّهُمْ لَا يَتَّقُوْنَ﴾ او دوئ [د لوظ ماتولو نه] نه ويريږي ﴿فَاِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ﴾ نو كه تاسو په جنګ كښې په دې خلقو قابو بيا مومئ [اودوئ درته په لاس درشي] ﴿فَشَرِّدْ بِهِمْ مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ﴾ نو په دوئ د حملې كولو په ذريعه نور خلق چې دوئ نه علاوه دي خواره واره كړئ دپاره ددې چې دغه خلق پوهه شي [چې دا د وعدې ماتولو وبال شو ، داسې به نه كوؤ دا حكم خو دهغه وخت دې چې كله دغې خلقو په ښكاره وعده ماته كړه] ﴿وَاِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ خِيَانَةً﴾ او كه [تر اوسه ئې په ښكاره خو نه وي مات كړې ليكن] ستاسو د يو قوم نه د خيانت [يعنى د لوظ ماتولو] انديښنه وي نو [اجازت دې چې] ﴿فَانْۢبِذْ اِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَآءٍ﴾ تاسو ﷺ ورته هغه لوظ په دې شان واپس كړئ [يعنى داشان ددې لوظ د جارى نه پاتې كيدو خبر وركړئ] چې تاسو او دوئ [په دې خبر كښې] برابر شئ [او بې دداسې ښكاره خبر وركولو نه جنګيدل خيانت دې او] ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْخَآئِنِيْنَ﴾ بيشكه الله ﷻ دهوكه والا خلق نه خوښوي.

## معارف او مسائل

په دې آيتونو كښې دړومبى آيت مضمون،بلكه الفاظ ئې تقريباهم هغه دى چه يو آيت ړومبې راغلى دى،

﴿كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ﴾ خو دبيان مقصد د دواړو بيل بيل دى، په ړومبى آيت كښې دابيان مقصود دوچه ددغې خلقو كفر ددوئ دعذاب سبب جوړ شو اودې آيت كښې مقصد دادې چه دالله تعالى دعام قانون مطابق كله چه په يو قوم باندې دالله تعالى نعمتونه اوشى اوهغوئ قدرا ونكړى، دالله تعالى په وړاندې ښكته نشى نو دهغوئ نعمتونه په زحمتونو او مصيبتونو كښې بدل كړې شى، فرعونيانو او ددې نه مخكښې قومونو هم كله چه دالله تعالى دنعمتونو قدرا ونكړونو هغوئ نه نعمتونه واغستې شو اودنعمتونو په ځائ، په عذاب كښې راګير كړې شو، او په څينو الفاظو كښې فرق كولو سره خاص خاص اشارې كړې شوى دى مثلا په ړومبى آيت كښې د ﴿بِاٰيٰتِ اللّٰهِ﴾ الفاظ وو اودلته ﴿بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ﴾ لفظ دې دلته د.الله.لفظ په ځائ د.رب.لفظ په راوړلو سره دې ته اشاره اوكړې شوه چه داخلق غټ ظالمان وو اوحق پيژندونكى نه وو ولې چه دهغې ذات كوم چه ددوئ .رب.دې ددوئ په موجوديدو دشروع نه چه واخلې ترموجوده حالاتو پورې هم د هغه په نعمتونو كښې ددوئ پالنه شوې ده خو بيا يې هم دهغه نښانيانې په دروغه اوګڼړلې،

داشان دړومبى آيت ﴿فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ﴾ په ځائ دلته ﴿فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ﴾ اوفرمائيل چه پكښې ددغې اجمال تفصيل اوتشريح په دې شان اوشوه چه په ړومبى آيت كښې صرف په عذاب كښې راګيرول بيان شوى وو، د هغې مختلف صورتونه كيدې شو، ① ياخوځوندى په مصيبتونو كښې اخته كړې شى، ② ياخو بيخى ختم كړې شى،نو په دې آيت كښې ﴿فَاَهْلَكْنٰهُمْ﴾

Scanned with CS

سره ددوئ هلاکت او ختمول په کته کړې شو، چه ددغې ټولو قومونو سزا دمرګ سزا وه، مونږه ټول هلاک کړل، دهر قوم دهلاکیدو مختلف صورتونه ښکاره شو، په دې کښې فرعون هرکله چه د خدائ دعویدار وو او دهغه قوم به هغه په رشتیا ګڼړلو، ځکه په خصوصیت سره دهغه ذکر او کړې شو چه ﴿اَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ﴾ یعنی مونږه فرعونیان غرق کړل] دنورو قومونو دهلاکت صورتونه دلته بیان نکړې شو، په نورو روایتونو کښې د هغه هم تفصیل موجود دې چې په چا زلزله راغله څوك په زمکه کښې ورومنډل شوه او دچا شکلونه وران کړل شوه. په چا، د باد سیلئ، راوالوته او په آخر کښې دمکې مشرکانو باندې دبدر په غزا کښې دمسلمانانو د لاسه عذاب راغلو،

په وروستي آیت کښې هم ددغې کافرانو په باره کښې فرمائی ﴿اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا﴾ دلته، د ﴿دواب﴾ د ﴿دابه﴾ جمع ده، ددې لغوی معنی په زمکه باندې تلونکې [ګرځیدونکې] حیوان ده، په دې بِنا ددې اطلاق سره د انسانه په ټولو هغه ځناورو کیدې شی چه کوم په زمکه ګرځی، خو دعامو محاورو په جوړ خاص چارپایه څاروُو او ځناورو د پاره استعمالیږی، ددغې خلقو حال په بې شعورئ کښې دځناورونه زیات هم غورځیدلې وو ځکه ئې تر په دې لفظ سره تعبیر او کړو، دآیت معنی واضحه ده چه په ټولو ځناورو او انسانانو کښې دټولو نه زیات خراب ځناور دا خلق دی،

په آخر دآیت کښې ئې او فرمائیل: ﴿فَهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ﴾ یعنی دا خلق ایمان نه راوړی، مطلب ئې دادې چه دې خلقو، خپل ورکړې استعداد او قابلیت برباد کړو، دچارپایانو ځناورو په شان ئې خوراك څکاك، اوده کیدل ویښیدل ئې دژوند مقصد جوړ کړو ځکه ددوئ رسائې ایمان ته نشی کیدې،

حضرت سعید بن جبیر رضي الله عنه فرمائیلی دی چه داآیت دهغې شپږو یهودیانو په باره کښې راغلې دې دچا دا ایمان نه راوړلو په باره کښې چه الله تعالی پیشګی خبرورکړې وو، (۱) داشان په دې لفظ کښې هغه خلق دعذاب نه مستثنی کول منظوردی چه اوس دا وخت اګرچه کفارو سره غاره شوی، داسلام او مسلمانانو په خلاف کوششونو کښې مشغول دی خو په آئنده کښې به په څه وخت اسلام قبول کړی او د خپلو ړومبو غلطو نه به توبه ګار شی، چنانچه همدغسې او شو چه هم ددوئ نه ډیره لویه ډله مسلمانان شو، یو اځې پخپله صالحان او متقیان جوړنه شو، بلکه دنیا دپاره اصلاح کوونکی او تقوی ته رابلونکی خلق جوړ شو،

دریم آیت ﴿اَلَّذِیْنَ عٰهَدْتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ یَنْقُضُوْنَ عَهْدَهُمْ فِیْ کُلِّ مَرَّةٍ وَّهُمْ لَا یَتَّقُوْنَ﴾ دا آیت دمدینې منورې دیهودو، بنی نضیر او بنی قریظو په باره کښې نازل شویدې، په تیرو شوو آیتونو کښې دمکې په مشرکانو، په میدان بدر کښې دمسلمانانو د لاسه دالله تعالی دعذاب نازلیدل بیان شوی وو او د پخوانو امتونو دکفارو سره ددوئ یوشان والې ښودلې شوې وو اوس په دې آیت کښې دهغه ظالم ټولی بیان دې چه مدینې منورې ته دهجرت کولونه پس مسلمانانو دپاره دلستونړی ماران جوړ شوی وو، یو اړخ ته مسلمانانو سره دصلح دعویدار وو او بل اړخ ته مشرکانو دمکې سره د سازباز په زور دمسلمانانو خلاف سازشونه ئې کول، دا خلق یهودی مذهبه وو، دمکې د مشرکانو څخه داسلام په خلاف دټولو سرکرده څنګه چه ابوجهل وُو دغه شان دمدینې په

۱) الدر المنثور تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۶۱

یهودیانو کښې د ټولو سرپینچ کعب بن اشرف وو،
رسول الله ﷺ چه مدینې منورې ته هجرت اوفرمائیلو، د مسلمانانو مخ په زیاتید و طاقت ئې چه اولیدلو نو په دې خلقو رعب پریوتو لیکن په زړه کښې ئې د اسلام دښمنئ اوړه مخه بلیدو،
د اسلامی سیاست تقاضا دا وه چه څومره کیدې شی د مدینې یهود، دیو لوظ اوقول د مخې دځان سره په دې غرض یو ځائ کړې شی چه دوئ د مکې مشرکانو ته مدد ورنکړې شی، یهود په رعب کښې راغلی وو څکه هغوئ هم د غسې غوښتل،

**د اسلامی سیاست رومبئ قدم اِسلامی سیاست:** رسول الله ﷺ هرکله چه مدینې منورې ته راؤرسید و نو ټولو نه رومبې د اسلامی سیاست بنیاد ئې دا جوړ کړو چه د مهاجرینو او انصارو وطنی او قومی عصبیتونه ئې ختم کړل، او د اسلام په نوم ئې دیو نوی قومیت بنیاد کیښودو، د مهاجرینو او انصارو مختلفې قبیلې ئې دروروليئ په تار کښې اوپئیل، هم د هغوئ ﷺ په ذریعه الله تعالی د انصارو ترمنځه هغه سخت اختلافات لرې کړل چه د پیړو داسې په دوئ کښې راروان وو، بلکه دا چه مهاجرینو سره ئې رورولی جوړه کړه،

**دویم قدم دیهودو معاهده:** د دې سیاست دویمه درجه دا وه چه د مسلمانانو حریفان دوه قسمه خلق وو، یو قسم د مکې مکرمې مشرکان وو چه مسلمانان ئې په سختو تکلیفونو سره د هغه ځائ نه په هجرت کولو باندې مجبوره کړل بل قسم خلق یهودیان وو چه اوس د مسلمانانو ګاونډیان [همسایاگان] جوړ شوی وو، په دې کښې یهودو سره معاهده اوکړې شوه چه تفصیلی لوظنامه ئې اولیکلې شوه، د مدینې منورې په خواؤشا کښې ټول یهودیان د دې پابند وو او د غه شان انصار او مهاجرین هم ټول د دې پابند وو، د دغې لوظنامه پوره متن په . البدایه والنهایه، د ابن کثیر کښې او په سیرت ابن هشام کښې په تفصیل سره موجود دې، د دې د ټولو نه ډیره زیاته ضروری خبره دا وه چه کله د دې خلقو ترمنځه څه اختلاف راپیدا شی نو د رسول الله ﷺ فیصله به ټولو د پاره واجب او ضروری وی، د دغې لوظنامې دویمه برخه دا وه چه د مدینې منورې یهودیان به د مسلمانانو خلاف هیڅ یو دښمن ته په ښکاره یا په پټه هیڅ قسم امداد نه ورکوی،(۱) لیکن دې خلقو، د بدر د غزا په موقعه د غه لوظنامه داسې ماته کړه چه د مکې مشرکانو ته ئې وسله او سامان جنګ ورا ورسولو، کله چه په د غه غزا کښې مسلمانانو بریې بیاموندونو یهود او شرمیدل، د مسلمانانو رعب پرنورهم زیات شو، د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، وې وئیل چه داځل زمونږه غلطی معاف کړئ بیا به داسې نه کوو،

رسول الله ﷺ ورسره لوظنامه د نوی سره بیا اوکړه څکه چه هغوئ ﷺ په خصوصیت سره بې حده برداشت او مهربانی لرله خو یهود و په خیبر کښې شیطانت اغرلې شوې دې چه د احد په غزا کښې ئې د مسلمانانو د ماتې خوړلو غږ [اوغ] ترغوږه شونو ډیر زیات ډاډه شو او د دوئ سردار کعب بن اشرف پخپله مکې مکرمې ته سفراوکړو او مشرکان ئې دې ته تیار کړل چه په ډاډه زړه په مسلمانانو باندې حمله اوکړئ او د مدینې منورې یهودیان به ورسره وی،
د اسلام په خلاف دا دویم ځلی لوظ ماتول وو، چنانچه په دې آیت کښې د دوئ بیا بیا لوظ

۱) سیرت ابن هشام: ج ۲، ص ۳۱، باب الرسول الله صلی الله علیه وسلم یوادع الیهود الخ، والبدایة والنهایة: ج ۳، ص ۲۲۳، ۲۲۴

ماتول بیان شو چه سخت شریران خلق دی، فرمائی: دا هغه خلق دی چه هر وار تاسو ﷺ سره لوظنامه په مخه ماتوی،

په آخر د آیت کښې فرمائی: ﴿وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ﴾ یعنی دا خلق نه ویریږی] ددې مطلب دا هم کیدې شی چه هر کله دا بد قسمته خلق د دنیا په مینه مست داسې بې خوده دی چه د آخرت فکر ورسره نشته ځکه د آخرت د عذاب نه نه ویریږی او دا مطلب ئې هم کیدې شی دا بد کرداره او لوظ ماتونکی خلق په دنیا کښې د خپل خراب انجام نه هم ځکه نه ویریږی چه ناپوه او ناخبره دی، تو لو خلقو اولیدل چه دې خلقو د خپلې بد کردارئ سزا بیاموندو ه دابی جهل پشان، کعب بن اشرف هم اووژلې شو او د مدینې منورې یهود بې وطنه کړې شو،

ددې بد لوظو خلقو په باره کښې الله تعالی رسول الله ﷺ ته یو هدایت نامه داسې ورکړه،

﴿فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِم مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ﴾ دلته د ﴿شَرِّدْ﴾ معنی داده چه [تاسو ﷺ پرِ قابو بیا مومئ] د ،تشرید ،نه جوړ دې چه اصلی معنی ئې زغلول او خواره واره کول دی، دآیت معنی دا شوه چه که تاسو ﷺ په یو جنګ کښې په دې خلقو قابو بیا مومئ نو ورته داسې دردناکه سزا ورکړئ چه نورو دپاره عبرت وی، ددوئ په ډاډ کوم خلق چه ددوئ په شا په اسلام دښمنئ کښې لګیادی چه هغوئ پوه شی چه اوس خیر په دې کښې دې چه ددې ځائ نه په تښتیدو خپل ځانونه اوساتی، مراد تر دادی چه دوئ ته داسې سزا ورکړئ چه دهغې په لیدو باندې د مکې مشرکان او نورې دښمنې قبیلې هم اثر واخلی او بیا د مسلمانانو په مقابله کښې دراوړاندې کیدو زړه اونشی کړې. په آخر د آیت کښې ﴿لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ﴾ فرمائیلو سره د رب العالمین عام رحمت ته اشاره اوکړې شوه چه ددې دردناکی سزا اصلی مقصد هم څه بدله اغستل یا خپله غصه سړول نه دی بلکه په دې کښې ددې ښیګړې خیال ساتلې شوې دې چه نور خلق ددې په لیدو تر عبرت واخلی په خپلو کړو پښیمانه شی او خپله اصلاح اوکړی،

**دصلح دلوظنامې ختمولو صورت:** په پنځم آیت کښې رسول الله ﷺ ته د جنګ او صلح د قانون یوه اهمه دفعه ښودلې شویده چه پکښې دلوظنامې د پابندئ کولو خاص ضرورت ښولې شویدې او دا هم ښولې شویدی چه که څه وخت دلوظنامې د بل فریق له اړخه د خیانت [لوظ ماتولو] خطره پیدا شی نو زمونږ د خوا هم د لوظنامې د پابندئ کولو ضرورت نشته خو دا هم جائز نه دی چه په ډاګه باندې د لوظنامې ماتولو نه اول مونږه ددې په خلاف څه قدم اوچت کړو، بلکه صحیح صورت دادې چه دوئ لره دا طمینان او فرصت په حالت کښې دې نه خبر کړې شی چه ستاسو بدنیتی یا خلاف ورزی مونږ ته ښکاره شویده، یا دا چه ستاسو معاملې شکی غوند ښکاری، ځکه په آئنده کښې مونږه ددې معاهدې پابند نه پاتې کیږو، تاسو ته هم پوره اختیار دې زمونږ په خلاف هم قسم کاروائی کولې شئ، د آیت الفاظ دادی،

﴿وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوْمٍ خِيَانَةً فَانبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْخَائِنِينَ﴾ یعنی که دیو لوظ کوونکی قوم له اړخه د خیانت او لوظ ماتولو اندیښنه پیدا شی نو دغه کړې لوظ ورته په دې شان واپس کړئ چه تاسو او هغوئ برابر شئ، ولې چه الله تعالی خیانت کوونکی نه خوښوی،

مطلب دادې چه کوم قوم سره د صلح لوظنامه شوې وی، د هغوئ په خلاف څه جنګی قدم پورته کول په خیانت کښې داخل دی، او الله تعالی خیانت کوونکی نه خوښه وی اګرچه داسې خیانت د خپلو دښمنانو [کافرانو] په باره کښې اوشی، یعنی داسې کول ناروا دی البته که دهغوئ

له اړخه دلوظ ماتولو څه خطره پيدا شي نو داسې داوکړې شي چه په ښکاره اعلان کولو سره دې خبرکړې شي چه مونږ [مسلمانان] به په آئنده کښې ددغې لوظنامې پابندي نه کوو، خودااعلان په دې شان کول پکاردی چه دواړه فريقه پکښې برابروی، مطلب داچه مسلمانان دداسې نه کوی چه پخپله هغوئ سره دجنګ تيارۍ اوکړی اودهغوئ ذهنونه هم جنګ کولوته تيارنه وی بلکه داعلان کولو نه پس چه تاسو په څه شان دجنګ تياری کوئ هغوئ هم دغسې دجنګ تياری کولې شی،

داسلام عدل اوانصاف ته اوګورئ چه دخيانت کوونکو دښمنانو هم دحقوقو حفاظت کولې شی اودهغوئ په مقابلې کولو کښې مسلمانان ددې پابند کولې شی چه دلوظنامې ماتولو ډاګيزاعلان نه وړاندې دهغوئ سره دجنګ کولو تيارۍ هم نه کوی [مظهری وغيره] [1]

**دوعدې پوره کولو يوه عجيبه واقعه:** ابوداؤد، ترمذی، نسائی امام احمدبن حنبل رحمه الله دسليم بن عامرپه روايت نقل کړی دی چه حضرت معاويه رضی الله عنه يوقوم سره ترڅه خاص وخته پورې دجنګ بندئ لوظنامه کړې وه، حضرت معاويه رضی الله عنه اراده اوکړه چه ددغې لوظنامې دختميدو نه وړاندې دغه دښمن قوم ته خپل فوځ اوسامان جنګ ورنزدې کړوچه دلوظنامې دميعادپه ختميدوسره سمدستی په هغوئ حمله اوکړو، مګر خاص په دغه وخت کښې چې کله د معاويه رضی الله عنه لښکر هغه طرفته روانيدلو دا اوليدل شوه چې يومشرسړې په اس سوروو اودانعره ئې وهله، اَللّٰهُ اَکْبَرُ، اَللّٰهُ اَکْبَرُ، وَفَاءً، لَاغَدرًا، يعنی دنعره تکبيرسره سره ئې داهم فرمائيل چه مونږ له لوظنامه پوره کول پکاردی، دهغې خلاف ورزی نه دی کول پکار، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی چه کوم قوم سره دصلح يادجنګ نه کولو لوظنامه اوشی نودهغوئ په خلاف نه څه غوټه پرانستل اونه څه غوټه تړل پکاردی، حضرت معاويه رضی الله عنه چه په دې خبرکړې شونووې ليدل چه دغه ويونکې بزرګ عمروبن عنبسه رضی الله عنه صحابی وو، حضرت معاويه رضی الله عنه سمدستی دخپل فوځ دواپسئ حکم اوکړوچه په دغه لوظنامه کښې څه خيانت رانشی، [2]

| |
|---|
| وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَبَقُوْا ۭ |
| او ګمان دې نه کوی | هغه کسان | اچې کافران دی | اچې ګټې هغوئ مخکښې شو |
| او کافران دې دا خيال نه کوی چه ګټې دوی زمونږ د نيولو نه خلاص شوی دی |
| اِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُوْنَ ۝ وَاَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ |
| بيشکه هغوئ | انشی عاجزه کولې مونږ | اوتياری کوئ | دپاره دهغوئ | څومره چې | وس رسی ستاسو |
| بيشکه دوئ [الله تعالی] انشی مغلوبه کولې اوستاسو نه چه څومره کيدې شی نو د دوی [کافرانو] دپاره |
| مِّنْ قُوَّةٍ وَّمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ |
| دطاقت نه اود تړلو | داسونو نه چې يروئ تاسو | په ذريعه | دهغې | دشمن دالله | اودشمن ستاسو |
| د [هرقسم] قوت نه اود اسونو تيارولو نه چه تاسو په هغې سره د الله تعالی اوخپل دشمن |

[1]) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۰۵

[2]) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۸۹، وسنن ابی داود، كتاب الجهاد، باب فی الامام يكون بينه وبين العدو عهد الخ: ج ۱، ص ۳۷۹ وجامع الترمذی، أبواب السير، باب ما جاء فی الغدر: ج ۱، ص ۲۸۷، ومسند أحمد حديث عمرو بن عبسه رضی الله تعالی عنه رقم الحديث: ۱۶۲۸

| |
|---|
| وَاٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوْا |
| او نور کسان بې د دوئ نه ا چې تاسو نه پيژنئ هغوئ ا الله پيژنئ هغوئ ا او هغه چې اخرچ کوئ تاسو |
| او د هغوی نه علاوه نور کسان يروئ ا کوم چه تاسو نه پيژنئ خو الله تعالی هغوی پيژني ا او تاسو چه کوم |
| مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ۞ |
| يو څيز ا په لار د الله کښې ا پوره بدله به درکړې شي ا تاسو ته ا او تاسو سره به ا زياتي او نه کړې شي |
| څيز هم د الله په لار کښې خرچ کوئ ا نو تاسو ته به پوره بدله درکولې شي او هيڅ زياتي به درسره نشي کولې |
| وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ |
| او که چرې ا مائله شي هغوئ ا صلحې ته ا نو مائله شه ا هغې صلحې ته ا او بروسه اوکړه ا په الله ا |
| او که دوی روغې ته غاړه کيخوده نو تاسو روغه اوکړئ او [په نيتجه د روغه کښې] په الله بهروسه اوکړئ |
| اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۞ وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا |
| بيشکه ا چې هم هغه ا هرڅه اوريدونکې دې ا او په هرڅه پوهه دې ا او که چرې ا اراده اوکړي هغوئ |
| بيشکه الله تعالی د هرڅه اوريدونکې او په هرڅه عالم دې ا او که [په روغه کولو کښې] دوی تاسره د |
| اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ ؕ هُوَ الَّذِيْٓ اَيَّدَكَ |
| چې دهوکه درکړي تاته ا نو بيشکه کافی دې تالره الله ا الله ا هغه ذات دې ا چې مضبوط نې کړې ته |
| دهوکې اراده لرې نو [د دوی د دهوکې نه مه يريږه] الله تعالی ستا د پاره کافی دې ا الله هغه ذات دې چه |
| بِنَصْرِهٖ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ ۞ |
| په مدد خپل سره ا او په مومنانو سره ا |
| په خپل مدد او په مسلمانانو سره ئې ته مضبوط کړې ا |

## آسان ترجمه قرآن

او کافران دې چرې هم دا خيال په زړه کښې نه راولي چه دوی وتښتيدل دا يقيني خبره ده چه دوی (الله لره) نه شي عاجزه کولې. او (مسلمانانو) څومره طاقت او د اسونو څومره چهاؤنړئ چه تاسو جوړولې شئ نو د دوی مقابلې ته تيار کړئ چه د هغې په ذريعه تاسو د الله په دښمن او په خپل (موجوده) دښمن رعب راچوئ او د دوی نه علاوه نور چه تاسو هغوی لره نه پيژنئ، (مګر) الله هغوی لره پيژني او د الله په لار کښې چه تاسو کوم خرچ کوئ هغه به تاسو ته پوره پوره درکړې شي، او تاسو د پاره به څه کمې ونکړې شي او که هغوی صلح طرف ته مائل شي نو تاسو هم د هغې طرف ته مائيله شئ او الله باندې اعتماد کوئ او يقين وکړئ چه الله هرڅه آوري او هر څه باندې پوهيږي. او که دوی تا ته د دهوکې درکولو اراده وکړي نو تالره الله کافي دې الله هغه ذات دې چه په خپل مدد سره او د مؤمنانو په ذريعه ئې ستا لاسونه مضبوط کړل.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَبَقُوْا ؕ﴾ او کافران دې پخپل ځان دا خيال نه کوی چې دوئ بچ شو ﴿اِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُوْنَ ۞﴾ يقينا دا خلق [الله ﷻ] نه شي عاجزه کولې [چې د هغه په لاس به نه کنې دوئ رانشي

بلکه یاخو بۀ ئې په دنیوی عذاب کښې گرفتار کړی گنی په آخرت کښې خو دا خبره یقینی ده] ﴿وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ﴾ او دې کافرانو [سره دمقابلې کولو] دپاره څومره چې مو وس رسی په وسلې سره او په پاللو د آسونو سره سامان برابر ساتئ چې ددغې [سامان] په ذریعه تاسو [خپل] رعب اچولې لرئ ﴿عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ﴾ په هغو چې [دکفر په وجه] د الله ﷻ دښمنان دی او [ستاسو په فکر کښې دپاتې کیدو په وجه] ستاسو دښمنان وی [چې شپه ورځ مو ورسره پیښبه راځی] ﴿وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ﴾ او ددوئ نه علاوه په نورو [کافرانو] باندې هم [رعب اچولې لرئ] ﴿لَا تَعْلَمُونَهُمُ﴾ چې تاسو ئې [په یقین سره] نه پیژنی [بلکه] ﴿اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ﴾ الله ﷻ دوئ لره ښه پیژنی [لکه د روم ، فارس وغیره کافران چې شو ، چې تر اوسه مو ورسره څه جنگ اوپیښبه نه ده راغلې مگر د صحابه کرامو ﷺ سازوسامان او د شهسوارئ فن د هغوئ په مقابله کښې پخپل وخت پکار راغلو او په هغوئ هم رعب کیناستو ځینې مقابلې ته راؤوتل او شکست سره مخ شو ، ځینو جزیه ورکول قبول کړل چې دا هم درعب اثر دې] ﴿وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ او د الله ﷻ په لار کښې [چې په کښې جهاد هم راغلو] څه چې هم لگوی [یعنی دجنگ په سازوسامان درست کولو باندې ئې لگوی] ﴿يُوَفَّ إِلَيْكُمْ﴾ هغه به [یعنی د هغې ثواب بۀ] تاسو ته [په آخرت کښې] پوره پوره درکولې شی ﴿وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ﴾ او تاسو دپاره به [په دې کښې کمې نه وی ﴿وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ﴾ او که دغه [کافران] صلح دپاره مائل شو ﴿فَاجْنَحْ لَهَا﴾ نو تاسو [ته] هم [اجازت دې چې که په دې کښې درته خیر وی نو] صلح ورسره اوکړئی او [که سره د ښیگړې نه په کښې ددوئ د دهوکې احتمال وی نو] ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾ په الله ﷻ توکل کوئ [داسې احتمالونو نه اندیښنه مه کوئ] ﴿إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾ بیشکه الله ﷻ ښۀ آوریدونکې ښه پوهیدونکې دې [ددوئ خبرې او حالات آوری ، پیژنی ددې به پخپله انتظام اوکړی] ﴿وَإِن يُرِيدُوا أَن يَخْدَعُوكَ﴾ او که [په واقع کښې دغه احتمال صحیح وی او] دغه خلق [صلح کولو سره په ریښتیا] تاسو ﷺ ته دهوکه درکول غواړی ﴿فَإِنَّ حَسْبَكَ اللَّهُ﴾ نو الله ﷻ ستاسو [د مدد او حفاظت] دپاره کافی دې [ځنگه چې مخکښې هم ستاسو دپاره کافې پاتې شوېدې نو] ﴿هُوَ الَّذِي أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِ وَبِالْمُؤْمِنِينَ﴾ هغه داسې ذات دې چا چې ، تاسو ﷺ پخپل [غیبی] مدد [یعنی په ملائکو] سره او[په ظاهری مدد یعنی په مسلمانانو سره قوت درکړو.

## معارف اومسائل

ددې آیتونوځنې په رومبی آیت کښې دهغه کفارو بیان دې چه دبدرپه غزا کښې شریک شوی نه ووځکه بچ شویادشریکیدونه پس تښتیدلی وواوځان ئې بچ کړې وو ، دداسې خلقوپه باره کښې په دې آیت کښې فرمائی چه ، داخلق دداسې نه گنړی چه مونږ به بچ پاتې شو ، ولې چه دبدر غزا کفارودپاره دالله تعالی یوعذاب وواو د هیڅاوس نشو کیدې چه دې نه ځان خلاص کړی ځکه فرمائی: ﴿إِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُونَ﴾ داخلق په خپلې چالاکئ سره الله تعالی نشی عاجز کولې هغه ئې چه کله راایسارول اوغواړی دوئ به یوقدم هم تراونه خوځیدې شی ، کیدې شی چه په دنیا کښې راگیر کړې شی ورنه په آخرت کښې خودوئ رانیول ښکاره دی ،

دې آیت ، دې ته اشاره اوکړه چه یو مجرم گناهگار که څه دتکلیف یامصیبت نه خلاص شی

Scanned with Ca

اوبیاهم توبه اونه باسی بلکه په خپل جرم باندې ټینګ وی نو داددې خبرې نخښه مه ګڼرئ چه ګنی هغه کامیاب شو اوهمشه دپاره خلاص شو ځکه دې هروخت د الله تعالی په ګرفت کښې دې اَوداډیل ئې عذاب اومصیبت ته نوره ترقی هم ورکوی اګرچه ده ته نه محسوسیږی،

**جهاد دپاره وسله اوسامانِ جنګ تیارول فرض دي:** په دویم آیت کښې داسلام ددفاع [حفاظت اود کفارو دمقابلې دپاره دتیارئ احکام دی، فرمائی: ﴿وَأَعِدُّوا۟ لَهُم مَّا ٱسْتَطَعْتُم﴾ یعنی چه څومره ستاسونه کیدې شی کفارودپاره سامان جنګ تیاروئ دلته په، ﴿مَّا ٱسْتَطَعْتُم﴾ سره قید لګولو کښې دې ته اشاره اوشوه چه ستاسو دګامیابیدو دپاره داضروی نه دی چه دخپل مقابل فریق [کفارو] هومره سامان جنګ تاسوهم تیارکړئ بلکه دومره کافی ده چې دخپل وس په جوړمو سامان تیارکړونو دالله تعالی امداد به تاسو سره وی،

وړپسې ددغې سامان څه تفصیل ئې داسې بیان کړو ﴿مِّن قُوَّةٍ﴾ یعنی دمقابلې قوت جمع کړئ] په دې کښې ټول جنګی سامان، وسله، سورلئ وغیره هم داخل دی دخپل بدن ورزش، د جنګ طریقې اوچلونه ازده کول هم پکښې داخل دی، دلته قرآن کریم دهغه زمانې درواجی وسلو بیان اونکړوبلکه دَ ﴿قُوَّةٍ﴾ په عام لفظ اختیارولو سره ئې دې ته اشاره اوکړه چه دهرې زمانې هرمقام هرملک په اعتبارسره ﴿قُوَّةٍ﴾ مختلف کیدې شی مثلاً دهغه زمانې غشی لیندې، تورې نیزې اوډال کیدې شو، وړپسې زمانه کښې دټوپکو اوتوپونوزمانه راغله، اوس دبمونو، راکټونو، میزائیلوزمانه ده. په دې بنا نن زمانې مسلمانانولره دخپل وس په جوړ داټیمی قوت، ټینکونو، جنګی جهازونو اوتارپیډو ګانو [آبدوزونو] جمع کول اوتیارول پکاردی، ددې څیزونو علم اوفن ازده کولو کښې که نیت داوی چه داسلام اومسلمانانو بچاؤ اوحفاظت اوکړې شی اود کفارومقابله پراوکړې شی، نوداهم دجهاد په حکم کښې دی.

دعام لفظ د، ﴿قُوَّةٍ﴾ ذکرکولونه پس دیوخاص، قوت، بیان ئې په ډاګه داسې اوفرمائیلو ﴿وَمِن رِّبَاطِ ٱلْخَيْلِ﴾ لفظ د، رباط، مصدری معنی هم ورکوی اود، مربوط، په معنی هم راځی، په رومبی صورت کښې ئې معنی، اسونه تړل، کیږی اوپه دویم صورت کښې، تړلی شوی اسونه، ئې معنی کولې شی، حاصل ددواړودایوراخیژی یعنی دجهاد په نیت سره اسونه پالل، هغه تړل یاساتلی اسونه جمع کول یومطلب لری،

دلته په سامانِ جنګ کښې په خصوصیت سره داسولوذکرکول ئې ځکه اوکړل چه په هغه زمانه کښې د یو مَلک اوقوم په فتح کولو کښې د ټولو نه زیات مؤثر آسونه وو، او نن صبا هم ډیر ځایونه داسې شته چې د آسونو نه بغیر نشی فتح کیدې، همدغه وجه ده چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله تعالی داسونو په تندو کښې برکت ایښې دې، (۱) په صحیح احادیثو کښې سامانِ جنګ یوځائ کولو، تیارولو اودهغې داستعمال مشق کولو لره، رسول الله ﷺ دلوئې ثواب مَوجب ګرځولې دې، دغه شان په غشی جوړولو اوچلولو باندې ئې دلویو لویو اجرونو اوثوابونو وعده بیان کړیده، (۲)

---

۱) صحيح البخاري، كتاب الجهاد، باب الخيل معقود في نواصيها الخير ـــ الخ: ج ۱، ص ۳۹۹

۲) جامع الترمذي، أبواب فضائل الجهاد، باب ما جاء في فضل الرمي في سبيل الله: ج ۱، ص ۲۹۳، وسنن ابن ماجة، أبواب الجهاد، باب الرمي في سبيل الله: ج ۱، ص ۲۰۲، ومسند أحمد رقم الحديث: ۱۷۸۰۰

Scanned with Ca

هر کله چه دجهاد اصل مقصد داسلام او مسلمانانو دفاع او بچاؤ کول دی چه دادې هرې زمانې او هر قوم مطابق په بیله بیله طریقه کیدې شی، څکه خو رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: ﴿جَاهِدُوا الْمُشْرِكِينَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ﴾ ابو داؤد، نسائی، او دارمی، دحضرت انس رضی الله عنه په روایت، (۱)

دې حدیث نه معلوم شو چه څنګه دفاع او جهاد په وسلو سره کیدې شی کله کله دا په ژبه هم کیدې شی چه قلم هم دژبې په حکم کښې دې، په دې بِنا داسلام او قرآن نه دکفر او الحاد دحملو او بدلونونو لارې چارې بندول، په ژبې یا قلم سره هم ددې ډاګیز نص له مخې په جهاد کښې داخل دی،

په دې آیت کښې دسامانِ جنګ دتیارئ حکم ئې چه ورکړونو ورپسې ئې ددې دجمع کولو ښیګړه او اصل مقصد هم په دې الفاظو کښې بیان کړو ﴿تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ﴾ یعنی دسامانِ جنګ او ددفاع دسامان دجمع کولو اصلی مقصد قتلول او جګړه کول نه دی بلکه کفر او شرک بې وسه کول، رعب پرقائمول او راګذارول ئې دی، داخو کله یواځې په ژبې او قلم سره هم کیدې شی او کله ورد پاره جنګونه کول ضروری وی، یعنی دصورت حال مناسب دفاع کول فرض دی،

وربسې فرمائی: چه دجنګ او جهاد دتیارئ کولونه مقصود په هغه خلقو باندې هم رعب کینبول دی څوک چه دمسلمانانو مقابلې ته راوتلی دی او مسلمانان ئې پیژنی لکه دمکې کفار او مشرکان او دمدینې منورې یهود شو او ځنې داسې خلق دی چه لا ترا وسه دمسلمانانو مقابلې ته نه دی راوتلی خو په آئنده کښې ترخطره کیدې شی او مسلمانان ئې نه پیژنی لکه دټولې دنیا کافران او مشرکان شو، دقرآن کریم دې آیت اوښودل چه که مسلمانان دموجوده حریفانو دمقابلې دپاره تیارې او کړی نو ددې رعب به یواځې په دوئ نه پریوځی، بلکه په لرې لرې کفارو، قیصر، وکسری به ئې هم رعب پریوځی، څنګه چې هم اوشو، او دخلفاء راشدینو په زمانه کښې دغه ټول کفار مغلوب شو او رعب کښې راغلل،

هر کله چه جنګی سامان جمع کول او جنګ کول هم دمال په زور کیږی بلکه سامان جنګ هم دمال په زور تیاریږی څکه ددې آیت په ذریعه دالله تعالی په لار کښې دمال خرچ کولو فضیلت او ددې نوئ اجر داسې بیانیږی، چې په دې لار کښې چه تاسو څه هم لګوئ دهغې پوره پوره بدله به درته درکولې شی، چنانچه کله خو دا بدله دنیا کښې هم دمال غنیمت په شکل کښې په لاس ورځی، ګنی دآخرت بدله خو چرته تلې نه ده هغه به ضرور ورکولې شی چه ډیر عزت او قدر جوګه ده،

په دریم آیت کښې دصلح احکام او دې سره تړلې خبرې بیان شویدی فرمائی ﴿وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا﴾، سَلم، او، سِلم بکسر السین دواړه دصلح په معنی راځی، په دې بِنا د آیت معنی به داشی چه که څه وخت ګفار صلح کولو ته مائل شی نو تاسو ﷺ لره هم صلح ته راماتیدل پکار دی، دلته صیغه دامر تخییر دپاره استعمال کړې ده مطلب دا چه کله کفار صلح ته رامات شی نو تاسو ته هم اختیار دې چه صلح او کړئ که دمسلمانانو خیر پکښې درته ښکاریدو، د﴿وَإِنْ جَنَحُوا﴾ دقید نه معلومیږی چه صلح هله کولې شی چه کفار هم دصلح کولو خواهش ښکاره کړی، ولې که مسلمان اول دسره صلح کول غواړی نو دا به کمزوری ګنړلې شی، البته که داسې څه مجبوری راپیښه شی مثلاً مسلمانان دکفارو په پنجه کښې داسې راګیر شی چه دخپلې سلامتئ دپاره بغیر دصلح نه ورته بل څه صورت په نظر نه راځی نو په صلح کښې وراندې کیدل

(۱) سنن ابي داود، كتاب الجهاد، باب في كراهية ترك الغزو: ج۱، ص۳۳۹، وسنن النسائي، كتاب الجهاد، باب وجوب الجهاد: ج۲، ص ۵۱، وسنن الدارمي رقم الحديث: ۲۳۸۶

Scanned with Ca

هم وردپاره جائزدی څنګه چه فقهاؤ وئیلی دی اودنصونوداشارونه هم ثابت دی،
هرکله چه ددښمن دارخ نه دصلح په پیشکش کولوکښې دااحتمال کیدې شوچه مسلمانانو ته به دوکه ورکړی، مخه به ئې دجنګ نه واړوی اوبیا به پرپه یوخل حمله اوکړی، په دې وجه په آخردآیت کښې رسول الله ﷺ ته داهدایت ورکړې شوچه ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ﴾ [یعنی تاسو ﷺ په الله تعالی تکیه لرئ چه هغه ښه آوریدونکې پوهیدونکې دې] هغه ددوئ خبرې هم آوری اوددوئ دزړونو په پټواراده هم پوهیږی، هغه ستاد امداددپاره کافی دې تاسو ﷺ په داسې بې دلیله احتمالونوباندې دخپلوکارونوبنیادمه اړدئ بلکه داخطرې الله تعالی ته حواله کړئ،
وروستو په څلورم آیت کښې دامضمون ئې په زیات وضاحت سره بیان کړو، د ﴿وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ ۭ هُوَ الَّذِيْٓ اَيَّدَكَ بِنَصْرِهٖ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ﴾.
یعنی که دااحتمال واقعی پیداشی چه صلح کولوکښې ددوئ نیت خراب وی اوتاسوته دوکه درکول غواړی، بیاهم څه پرواخکه مه کوئ چه الله تعالی تاسولره کافی دې، رومبې هم دالله تعالی په امداداوتائیدسره ستاسو ﷺ کار روان شویدې، الله تعالی په خپل خاص مددسره ستاسوتائیدکړیدې کوم چه ستاسودفتح اوکامیابئ اصل بنیاداوحقیقت دې اوپه ښکاره ډول ئې دمسلمانانوډله ستاسودامداددپاره اودرولې چه داهم یوظاهری سبب دې، نوکوم حقیقی مالک اوقادرمطلق چه دفتح اوکامیابئ ټول اسباب موجودکړل هغه به نن هم ددښمنانوددوکې اوتګئ په معامله کښې ستاسومددکوی، چنانچه ددې خداوندې وعدې له مخې ددې آیت د نازلیدونه پس ټول عمررسول الله ﷺ ته داسې څه صورت نه دې راپیښ شوې چه د دښمنانو ددوکې اوتګئ نه ورته څه تاوان رسیدلې وی، څکه دتفسیرعلماؤ فرمائیلی دی چه داوعده رسول الله ﷺ دپاره داسې ده څنګه چه د:
﴿وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ۭ﴾ وعده ده، چه ددې آیت په نازلیدوسره رسول الله ﷺ خپل محافظ صحابه کرام ﷺ مطمئن اودخپل حفاظت نه سبکدوش [فارغ] کړې وو، دې نه معلومیږی چه دا وعده رسول الله ﷺ پورې خاص وه. [بیان القرآن][1] نورخلق دې دظاهری تدبیرونواوچاپیرچل دحالاتوپه جوړکارکوی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَوْ | قُلُوْبِهِمْ ط | بَيْنَ | وَاَلَّفَ | |
| اکه چری | ا د زړونو دهغوئ کښې | اپه منځ | ااومینه ئې واچوله | |
| اکه | | | ااو د دوی په زړونو کښې ئې محبت اچولې دې | |
| بَيْنَ | مَّآ اَلَّفْتَ | جَمِيْعًا | فِي الْاَرْضِ | مَا | اَنْفَقْتَ |
| په مینځ | تا د دوی د زړونو | باوجود به هم | نواد دې | څه دی دا ټول تا خرچ کړې وې | په زمکه چه خومره |
| اپه منځ | نه وه پیدا کړې راوستې تا | اتول انومینه به | اهغه څه اچې په زمکه کښې دی | | خرچ کړې وې تا |
| اِنَّهٗ | بَيْنَهُمْ ط | اَلَّفَ | وَلٰكِنَّ اللّٰهَ | قُلُوْبِهِمْ |
| بیشکه هغه | اپه منځ دهغوئ کښې | امحبت پیدا کړو | الله | لیکن | ا په زړونو دهغوئ کښې |
| بیشکه الله | په مینځ کښې محبت واچولو | ابلکه الله تعالی د دوی اد زړونو | | | مینه نه وه اچولې دزړونودهغوئ |

[1] بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۹۹

Scanned with Ca

عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ۝ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللّٰهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ
غالب دی | خاوند د حکمت دی | اے نبی | کافی دی تالره الله | او هغه چالره | اچی پیروی کوی ستا
[په اراده] غالب دی او صاحب د حکمت دی | ای پیغمبر! ستا د پاره الله تعالی کافی دی او هغه خوک چه په مؤمنانو

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ۝ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ ۭ اِنْ يَّكُنْ
د مومنانو نه | اے نبی | تیز کره مومنان | په جنګ باندې | که چرې وی
کښې ئې ستا تابعداری کړې ده | ای پیغمبر! مؤمنان د جهاد په تیارئ باندې تیز کړه انو که په

مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ صٰبِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ ۚ وَاِنْ
ستاسو نه | شل کسان | صابران | انو غالب به راشی هغوئ | په دوه سوه کسانو باندې | او که چرې
شل صابران کسان وی هغوی به په دوه سوو [کافرو] کسانو باندې غلبه کوی | او که په تاسو کښې

يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ يَّغْلِبُوْٓا اَلْفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا
وی | ستاسو نه | سل کسان | انو غالب به راشی | په زرو کسانو باندې | د هغه کسانو نه اچی کافران دی
سل کسان [مومنان] وی نو هغوی به د کافرانو په زرو کسانو باندې غلبه بیاموسی

بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ۝ اَلْئٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ
خکه چی هغوئ | داسې قوم دی | چی نه پوهیږی | اوس | اسپک کړو پیتې الله | ستاسو نه
دا حکم په دې وجه دې چه دا ناپوهه خلق دی | اوس الله تعالی په تاسو باندې سپکوالی [آسانوالی] او کړو

وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا ۭ فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ
او معلومه ده هغه ته | اچی بیشکه | په تاسو کښې | اکمزوری ده | پس | که وی | ستاسو نه |
او په علم ظاهری سره الله تعالی ته معلومه شوه چه په تاسو کښې کمزوری ده انو که په تاسو کښې

مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ ۚ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ اَلْفٌ
سل کسان | صابران | انو غالب به راشی | په دوۀ سوۀ کسانو باندې | او که وی | ستاسو نه | زر کسان
سل صابران کسان وی هغوی به په دوه سوو باندې غلبه کوی | او که په تاسو کښې زر کسان [صابران]

يَّغْلِبُوْٓا اَلْفَيْنِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ۝
نو غالب به راشی | په دوۀ زرو باندې | په حکم د الله سره | او الله | د صابرانو ملګرې دې |
وی نو هغوی به د الله تعالی په حکم سره په دوۀ زرو کسانو باندې غلبۀ کوی | او الله د صبر کونکو سره دې

## آسان ترجمه قرآن

او د دوی په زړونو کښې ئې یوبل ته مینه واچوله که تا د زمکې ټول دولت جمع کړې وې نو تا به د دوی په زړونو کښې مینه نه وې اچولې . لیکن الله تعالی د دوی زړونه یو کړل. هغه یقینًا د قدرت والا هم دې او حکمت والا هم . ای پیغمبره ! ستا د پاره الله او هغه مؤمنان کافي دي چه هغوی ستا تابعدار دی. ای نبی ! مؤمنانو لره په جنګ باندې تیز کړه که تاسو نه شل کسان وي چه هغه ثابت قدم وي نو هغه به په دوه سوۀ غالب کیږی. او که تاسو نه سل کسان وي نو هغوی به د کافرانو په زرو کسانو غالب کیږی، ځکه چه

Scanned with Ca

هغوی داسې خلق دی چه نه پوهیږی اوس الله ستاسو بوج سپك كړو ، او دا هغه په علم كښې دې چه تاسو كښې لږه كمزوری ده، دې وجې نه (اوس حكم دادې چه) كه تاسو نه ثابت قدم سل كسان وي نو هغوی به په دوه سوؤ كسانو غالب كيږی ، او كه تاسو نه زر كسان وي نو هغوی به د الله په حكم سره په دوه زرو باندې غالب كيږی ، او الله هغه خلقو سره دې چه هغوی ثابت قدم وی.

## خلاصه تفسير

او [مسلمانانو لره د مدد ذريعه جوړولو دپاره ئې] ﴿وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ﴾ ددی په زړونو كښې ئې اتفاق پيدا كړو [چنانچه ښكاره خبره ده چې كه خپل مينځ كښې ئې اتفاق نه وی نو هيڅ كار خصوصا ددين مدد په يو ځائې كيدو نشو كولې او په دوئ كښې د سردارئ او مشرئ او د غلبې د بغض او دشمنئ په وجه اتفاق داسې ګران وو چې] ﴿لَوْ أَنفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا﴾ او كه تاسو [سره ددې چې عقل اوتدبير هم كامل لرئ او سامان هم ددې دپاره تاسو سره كافی دې ، تر دې چې] د ټولې دنيا مال دې [ددې كار دپاره] لګولې ﴿مَّا أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ﴾ بيا به هم د دوئ په زړونو كښې اتفاق راپيدا كولې نه شو ﴿وَلَٰكِنَّ اللَّهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ﴾ليكن [دا] هم د الله ﷻ [كار وو چې هغه] په دوئ كښې د يو بل سره اتفاق پيدا كړو ﴿إِنَّهُ عَزِيزٌ﴾ بيشكه هغه زبردست دې [اچې څه غواړی پخپل قدرت سره ئې كوی او] ﴿حَكِيمٌ﴾د حكمت خاوند دې [چې كومه طريقه ئې مناسب ګڼړی دغه كاركوی او كله چې د الله ﷻ خپل غيبی مدد او مؤمنانو سره دهغه مدد كول معلوم شو نو] ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللَّهُ﴾ ائې نبی ﷺ [دې نه ثابت شو چې] تاسو ﷺ دپاره [په حقيقت كښې] الله ﷻ كافی دې ﴿وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ او كومو مؤمنانو چې ستاسو ﷺ تابعداری كړې ده [په ښكاره] هغه كافې دی ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ﴾ ائې پيغمبره ﷺ ! تاسو مؤمنان جهاد ته راپاروئ [او دهغې باره كښې ورته دا قانون واوروئ چې] ﴿إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ﴾ كه تاسو شل كسان كلك پاتې كيدونكی وی نو [دخپل ځانه په لس چنده شمير يعنی] ﴿يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ﴾ دوؤ سوؤ باندې به غالب راځی او [داشان] ﴿وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ كه په تاسو كښې سل كسان وی نو په زرو كافرانو باندې به غالب راځی ځكه چې ﴿بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ﴾ هغوئ داسې خلق دی چې [په دين باندې] هيڅ نه پوهيږی . [او ددې وجې نه په كفر باندې ټينګ دی او هم په دې وجه ورته غيبی مدد نه رسی ځكه هغوئ لاندې راځی نو په تاسو باندې واجب دی چې دخپل شمير نه په لس چنده مقابله كښې هم ، مه پښا كيږئی . اول دا حكم نازل شوې وو چې كله په صحابه كرامو ﷺ دا حكم سخت شو نو عرض ئې اوكړو، څه موده پس دا دويم آيت مبارك نازل شو چې ورسره ړومبې حكم منسوخ شو يعنی] ﴿الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا﴾ الله ﷻ په تاسو آسانی اوكړه او معلوم ئې كړل چې په تاسو كښې دبهادرئی كمې دې نو [داحكم دركولې شی چې] ﴿فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ صَابِرَةٌ﴾ كه په تاسو كښې سل كلك پاتې كيدونكې وی نو [دخپل شمير نه به په دوه چنده شمير غالب شی يعنی] ﴿يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ﴾ په دوؤ سوؤ به غالب راځی او [زمونږ د صابر د قيد لګولو نه مطلب دادې چې] ﴿وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ الله ﷻ صبر

Scanned with Ca

کوڼکو سره دي [یعنی هغو سره مددکوی چې په زړه او پښو سره کلك او مضبوط پاتې کیدونکی وي].

## معارف او مسائل

دسورت انفال ددې بیان شوؤ آیتونو ځنې په رومبی آیت کښې دمسلمانانو دفتح او کامیابۍ اصلی سبَب او ددې دحاصلیدو طریقه بیان کړې شویده، دې نه په وړاندې آیت کښې رسول الله ﷺ ته داخطاب کړې شویدې چه یواځې دالله تعالی ذات دې چاچه په خپل خاص مدد سره او دمسلمانانو په ډلې سره ستاسو مضبوطوالې او امداداوکړو، په دې آیت کښې دابښودلی شوی دی چه دمسلمانانو دډلې په ذریعه دچاامداد یواځې په هغه صورت کښې کیدې شي چه داډله په خپل منځ کښې خواتفاق اویوالې لری چه هم په دې سره قوت او وزن جوړیږی، خپل منځ کښې دیووالی اویوشان والی تار چه مضبوط وی نوپوره ډله مضبوطه وی او که دامزې کمزورې وی نوټوله ډله کمزورې وی، په دې آیت کښې الله تعالی دخپل هغه خاص انعام بیان کړیدې کوم چه درسول الله ﷺ دمحکموالی او امداددپاره په عامو مسلمانانو اوشو، هغه داچه ددوئ په زړونو کښې ئې پوره یووالې اومینه پیدا کړه، سره ددې چه مدینې منورې ته درسول الله ﷺ دهجرت کولو نه وړاندې ددوئ د دوؤ قبیلو [اوس اوخزرج] ترمنځه سخت جنګونه شوی وو او همدغسې په مخه جاری پاتې شوی وو، درسول الله ﷺ د بعثت په برکت سره الله تعالی دوئ لره خپل منځ کښې رونړه رونړه اوسره غوړی تری جوړ کړل، چنانچه په مدینه منوره کښې دقائیمیدونکی نوی اسلامی ریاست دقائیمیدو او د جاری پاتې کیدو او دغه شان په دښمنانو باندې دمسلمانانو دبرلاسی حقیقی او معنوی سبب خو دالله تعالی امداد وو، او ظاهری سبب ئې دا وو چه مسلمانانو خپل منځ کښې مینه محبت لرلو او په اتفاق او اتحاد سره پاتې کیدل. دې سره سره په دې آیت کښې ئې دا هم اوښودل چه دمختلفو خلقو زړونه سره غوټه کول، په هغې کښې مینه محبت پیدا کول دچا انسان په وس کښې نشی کیدې، دا یواځې دهغه ذات کار دې کوم چه ټول پیدا کړیدی، که څوک انسان دې دپاره دټولې دنیا دولت اولګوی نو هم به د کرکجنو زړونو ترمینځه مینه محبت پیدا نکړې شي،

**دمسلمانانو ترمنځه حقیقی او پائیدار اتفاق دالله تعالی په فرمانبردارئ کولو باندې اړه لری**: ؟ دې نه دا هم معلومه شوه چه دخلقو په زړونو کښې مینه محبت یو بل سره اچول دالله تعالی انعام دې، او دا هم ښکاره خبره ده چه دالله تعالی نافرمانئ سره دا انعام نشی حاصلیدې بلکه ددې د حاصلیدو دپاره دالله تعالی فرمانبرداری کول او دهغه رضا لټول شرط دی،

ډلو او کسانو ترمنځه یووالې او اتفاق داسې یو څیز دې چه دهر مذهب، ملت خاوندان او هر فکرونظر لرونکی خلق ئې ښه او سود من بولي، او اصلاح راوستونکی ټول خلق په دې زور ورکوی چه خلق دخپل منځ کښې په اتفاق وی، لیکن عامه دنیا د دې نه خبره نه ده چه دزړونو پوره او پائیدار اتفاق په ظاهری تدبیرونو سره نشی حاصلیدې، یواځې دالله تعالی په فرمانبردارئ او دهغه په رضا لټولو سره حاصلیږی، چنانچه دقرآن کریم په ډیرو آیتونو کښې دې حقیقت ته اشارې شویدی یو ځائ کښې فرمائی: ﴿وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا﴾.(۱)

(۱) ترجمه: او ټول په شریکه دالله تعالی رسۍ په مضبوطۍ سره ونیسی او ډلې ډلې مه کیږی.

Scanned with Ca

په دې کښې داختلاف اوډله بازۍ نه دخان ساتلو داچل ښولې شويدې چه ټول په جمع دالله تعالى رسۍ يعنى قرآن يا اسلامى شريعت ښه محکم اونيسئ نو ټول به خپل منځ کښې پخپله په اتفاق شئ اوډله بازۍ به موختمې شى، درائ اختلاف بيل څيزدې، کله چه داپه خپل حد کښې دننه وى نو دډله بازئ اوجګړوسبب کله هم نه جوړيږى، جګړې اوفسادونه په هغې صورت کښې پيدا کيږى، چه دشريعت دحدونونه پرو رتيرشى، نن هرڅوک داتفاق ،اتفاق نعرې وهى خوهرڅوک ددې مطلب دااخلى چه خلق دزماخبره اومنى، نواتفاق به راشى دپاره په دې فکر کښې وى چې دوئ زمونږ خبره اومنى نو اتفاق به راشى حالانکه چې کله درايو اختلاف د عقلمندو او ديانتدارو په مينځ کښې ضرورى دې. نو دا ښکاره خبره ده چې که هر سړې بل سره په دې خبره متفق شى چې هغه به زما خبره اومنى نو داسې اتفاق تر قيامته پورې نشى کيدې. بلکه داتفاق صحيح اوفطرى صورت هم هغه دې کوم چه قرآن کريم په دې شان ښودلې دې چه دوه فريقه ددريمګړى خبره اومنى، دريمګړې هغه پکاردې چه دهغه په فيصله کښې دغلطئ څه امکان اوګنجائش نه وى چه يقيناهغه يو اځې دالله تعالى ذات کيدې شى، په دې بناپه دې آيت کښې داهدايت اوکړې شو چه ټول يوځائ شئ اودالله تعالى کتاب ښه محکم اونيسئ هله به ستاسوترمنځه کامل اتفاق پيداشى اوجنګ جګړې به مودمنځه اوځى،

په يوبل آيت کښې فرمائى ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَٰنُ وُدًّا﴾ يعنى څوک چه ايمان راوړى اونيک عمل کوى الله تعالى دداسې خلقو ترمنځه مينه، محبت اودوستى پيدا کوى، دې آيت هم داخبره په ډاګه کړه چه په زړونوکښې دحقيقى مينې اودوستئ پيداکيدو اصلى طريقه ايمان لرل اودنيک عمل کولوپابندى ده، بغيرددې نه که چرته داتفاق اواتحادڅه شکل ښکاره شى نوهغه به بې بنياده اوکمزورې وى، په معمولى حرکت سره به ختم شى څنګه چه ددنياپه بې شميره ځايونو کښې ليدلې شى،

خلاصه داشوه چه په دې آيت کښې په رسول الله ﷺ باندې دالله تعالى دهغه انعام وضاحت کړې شويدې چه دمدينې منورې دټولو قبيلوپه زړونوکښې دمينې محبت په پيدا کولوسره ئې هغوئ دررسول الله ﷺ دلاس امداددپاره لکه داوسپنې دديوال پښان محکم کړل،

په دويم آيت کښې هم دغه مضمون دخلاصې په ډول استعمال کړې شواورسول الله ﷺ ته دا تسلى ورکړې شوه چه دحقيقت په اعتبارسره الله تعالى اوظاهرپه اعتبارسره دمؤمنانو ډله ستاسو ﷺ دپاره کافى ده، تاسو ﷺ ديو غټ نه غټ دښمن دشميرياسامان نه ويريږئ مه مفسرينوحضراتو فرمائيلى دى چه داآيت هغه وخت نازل شوچه دبدرپه ميدان کښې غزانه وه شروع شوې په دې سره مسلمانانوته ډاډګيرنه ورکول ووچه هغوئ ددخپل دښمن حريف دګنړشميراوډيرسامان نه په رعب کښې نه راځى،

په دريم اوڅلورم آيت کښې، مسلمانانودپاره ديوجنګى قانون بيان داسې شويدې چه تر کومه حده پورې دحريف په مقابله کښې پښې ټينګې لرل فرض اوترپه شاکيدل ګناه ده، په تيرو شوؤ آيتونو او واقعاتو کښې ددې بيان په تفصيل سره راغلې دې چه دالله تعالى غيبى امداد مسلمانانوسره وى، په دې لحاظ ددوئ معامله ددنيادنوروقومونوپشان نه ده، دوئ که لږهم وى نو په ډيروباندې برراتلې شى لکه قرآن کريم په يوځائ کښې فرمائى: ﴿كَمْ مِنْ فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ يعنى ډيرکم شميره ډلې دالله تعالى په حکم سره په ګڼرشميره ډلوباندې برراځى]

په دې وجه داسلام په رومبي جهاد د بدر په غزا کښې لس مسلمانان دسلو خلقو برابر اوګرځولې شو او دا حکم ورکړې شو،

که په تاسو کښې شل کسان ثابت قدمي او کلک پاتې شي نو په دوؤسوؤ کسانو دښمنانو باندې به برراځي او که سل وي نو په زرو کافرانو به غالب راځي، دلته اګرچه دې خبرې لره ديو خبر شکل ورکړې شوې دې خو مقصد ترحکم ورکول دي چه شل مسلمانان د سلو او سل مسلمانان د دزرو کافرانو دمقابلې نه پښا ګيرې نه، دانارو وادي، په خبرراؤړلو کښې مصلحت دمسلمانانو زړونه په دې زيرې سره مضبوطول وو چه دالله تعالى وعده ددوئ دحفاظت کولو اودوئ ته دغلبې ورکولو ده، که دقانون په شکل کښې دامراو حکم په صيغې سره داوئيلې شوې وې نو په طبيعت به درروند پريوتلې وو،

هر کله چه دبدر غزا په اولنې حالت کښې داسې وه چه دمسلمانانو تول شمير کم وو، او ټول مسلمانان دغې غزاته وتلي هم نه وو ځکه چه سمدستي کار وو چه ځوک تيارشو هغه ددې جنګ فوځې جوړ شو، په دې وجه دغه وخت سلو مسلمانانو ته يو زر کافرانو سره دمقابلې کولو حکم ورکړې شو، اندازئې داوو چه مسلمانانو سره دفتح او امداد ورکولو وعده هم پکښې وه،

په څلورم آيت کښې دا حکم منسوخ شو، دهغې په ځائ دا حکم ورکړې شو چه اوس در باندې الله تعالى آساني اوکړه او معلومه ئې کړه چه په تاسو کښې کمزورې ده، نو که په تاسو کښې سل کسان هم کلک پاتې کيدونکي وي نو په دوؤسوؤ به برراځي،

دلته هم مقصد دادې چه سل مسلمانان د ددوؤسوؤ کافرانو دمقابلې نه پښا کيږې نه پښا کيدل ورد پاره ناروا دي، رومبي آيت کښې يو مسلمان لره دلسو کافرانو دمقابلې نه پښا کيدل ناروا وو، اوس په دې آيت کښې ديو مسلمان ددوؤ کافرانو دمقابلې نه پښا کيدل ناجائز اوګرځولې شو، او دا آخرى حکم ترقيامته پورې باقي پاتې شو،

دلته هم دې حکم ته دحکم دعنوان ورکولو په ځائ دخبر او زيرې شکل ورکړې شويدې، اشاره پکښې دې ته ده چه د دوؤ کافرانو په مقابله کښې ديو مسلمان دټينګ پاتې کيدو حکم [معاذالله] څه بې انصافي يا سختي کول نه دي بلکه داښودل دي چه الله تعالى په مسلمانانو کښې دهغوئ دايمان په وجه هغه قوت ايښې دې چه يوئې ددوؤ برابر اوګرځولو البته دوا ړو ځايونو کښې دفتح او امداد زيرې سره داشرط ايښوې شويدې چه مسلمانان کلک او مضبوط ولاړ هم وي، اوښکاره خبره ده چه د جنګ په ميدان کښې هغه ځوک ځان په خطره کښې اچولو سره ټينګ پاتې کيدې شي دچا چه ايمان کامل وي، ولې چه کامل ايمان داسې يو څيز دې چه انسان کښې دشهيد کيدو شوق او جذبه راپاروي چه طاقت ئې ورسره نور هم زياتيږي،

په آخر دآيت کښې ديو عام قانون په شکل دا اوښودلې شو چه ﴿وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ﴾ يعني الله تعالى هغه خلقو سره وي ځوک چه کلک پاتې کيږي! په دې کښې هغه کسان هم شامل دي چه په جنګ کښې کلک پاتې کيږي، او هغه خلق پکښې هم شامل دي چه دشرعي حکمونو په پابندئ کولو کښې کلک او مضبوط پاتې کيږي، يعني داسې ټولو خلقو سره دالله تعالى د ملګرتيا وعده ده چه په اصل کښې فتح او کاميابي هم په دې باندې اړه لري، ولې چه چاته دالله تعالى ملګرتيا نصيب شي که دټولې دنيا خلق هم رايو ځائ شي نو هغه لره دخپل ځائ نه نشي خوځولې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا كَانَ | لِنَبِيٍّ | أَنْ يَّكُوْنَ | لَهٗٓ | أَسْرٰى | حَتّٰى | يُثْخِنَ |
| نه دی مناسب | یو نبی لره | چی وی | هغه سره | قیدیان | اترهغې پورې اچې ریزمریزکړی | |
| دهیڅ پیغمبر دپاره دا جائز نه دی چه دده سره قیدیان وی اتردې چه دې ئې په زمکه کښې وینه توی | | | | | | |
| فِي الْأَرْضِ ط | تُرِيْدُوْنَ | عَرَضَ الدُّنْيَا ق | وَاللّٰهُ | يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ط | وَاللّٰهُ | عَزِيْزٌ |
| په زمکه کښی | تاسو غواړئ | اسباب ددنیا | اوالله | غواړی آخرت | اوالله | غالب دي |
| کړې اتاسو د دنیا د سامان اراده لرئ او الله تعالی [ستاسو دپاره] د آخرت اراده لری او الله غالب دي | | | | | | |
| حَكِيْمٌ ۝ | لَوْلَا | كِتٰبٌ | مِّنَ اللّٰهِ | سَبَقَ | لَمَسَّكُمْ | |
| حکمت والا دي | که چری نه وې | الیکلي حکم | دطرفه دالله نه | مخکښی | نوخامخابه رسیدلې وو تاسوته | |
| صاحب د حکمت دي اکه چرته د الله تعالی د طرفه د وړاندې نه فیصله نه وه شوې [چه تاسو ته به په دنیا کښې عذاب نه درکوم] | | | | | | |
| فِيْمَآ | أَخَذْتُمْ | عَذَابٌ | عَظِيْمٌ ۝ | فَكُلُوْا | مِمَّا | |
| په هغه څیزکښی | اچی اغستې دې تاسو | عذاب | الوئ | پس خورئ | دهغه مال نه | |
| نوتاسوته به په هغه فدیه اخستلو باندې لوئې عذاب رسیدلې وو انو تاسو چه په غنیمت کښې څه | | | | | | |
| غَنِمْتُمْ | حَلٰلًا طَيِّبًا | وَاتَّقُوا اللّٰهَ ط | إِنَّ اللّٰهَ | | | |
| چی په غنیمت کښی اغستې دې تاسو | حلال | پاک | اواویریږئ | دالله نه | بیشکه چی الله | |
| حاصل کړې دی نو هغه حلال او پاک گنړئ او خورئ اود الله تعالی نه ویریږئ ابیشکه الله تعالی | | | | | | |
| غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ | | | | | |
| بښونکې | امهربان دي | | | | | |
| بښونکې مهربان دي | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

داخبره یو نبی سره نه ښائی چه هغه سره دې قیدیان وي تر څو چه هغه په زمکه کښې (د دښمنانو) ښه طریقې سره وینه نه وي توئې کړې (چه هغې سره د هغوی رعب ښه طریقې سره ختم شي) تاسو د دنیا سازوسامان غواړئ او الله (تاسو د پاره) د آخرت (ښه والې) غواړی، اوالله قدرت والا هم دې . اوحکمت والا هم اوکه دالله د طرف نه دمخکښې نه یو لیکلې شوې حکم نه وې راغلې نو کومه لارچه تاسو اختیار کړې ده د هغې د وجې نه به په تاسو لوئ عذاب راغلې وې پس تاسو چه کوم مال غنیمت حاصل کړې دې . هغې لره د پاک حلال مال په طور باندې خورئ اودالله نه ویریږئ یقیناً الله ډیر بخونکې ، ډیر مهربانه دې اې نبی ! ستاسو په لاسونو کښې چه کوم قیدیان دی (اوچه کومو دمسلمان کیدو اراده کړې ده) هغوی ته ووایه: که چرې الله ستاسو په زړونو کښې څه خیر ووینې نو کوم مال چه تاسو نه (فدیه کښې) اخستې شوې دې دهغې نه به بهتر تاسو ته درکړی او تاسوته به بخنه وکړي او الله ډیر بخونکې ډیر مهربان دې،

Scanned with Ca

## خلاصه تفسير

اٸې مسلمانانو ا نبی کریم ﷺ ته ستاسو دامشوره ورکول بې ځايه وو چې دبنديانو نه دې څه واخستې شی او خلاص دې کړې شی ځکه چې] ﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗٓ اَسْرٰى﴾ دنبی دشان سره مناسب نه دی چې هغوئ ﷺ سره بنديان باقی پاتې وی [بلکه وژلې دې شی] ﴿حَتّٰى يُثْخِنَ فِي الْاَرْضِ﴾ تر څو چې هغوئ ﷺ په زمکه په ښه شان [د کافرانو] وينې توې نه کړی [ځکه چې د جهاد د رواوالی اصلی غرض دادې چې فساد بند شی خو فساد تر هغې نشی بنديدې تر څو چې د کافرانو نښه او لښه بيخی نه وی ماته شوی ، نو دې ته د نوبت رسيدو نه مخکښې بنديان ژوندی پريخودل دهغوئ ﷺ د اصلاح شان سره جوړښت نه خوری البته که داسې طاقت ئې شی نو بيا ئې وژل ضروری نه دی بلکه نور صورتونه نه هم روا دی نود اسې نامناسبه راٸې مو ولې ورکړه] ﴿تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا﴾تاسو خو ددنيا مال او اسباب غواړئ [ځکه مو ورته دمالی بدلې اخستو راٸې ورکړه] ﴿وَاللّٰهُ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ﴾ او الله ﷻ [د آخرت ښيگړه] غواړی [ چې هغه په دې کښې ده چې کفار د ويرې نه مغلوب شی او په آزادئ سره په کښې د اسلام نور او هدايت خور شی او بې دڅه بنديز نه گنړ خلق مسلمانان شی چې خلاصې بيا مومی] ﴿وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ او الله ﷻ لوئې زبردست او د لوئې حکمت خاوند دې [هغه به تاسو په کافرانو غالب کړی وئ او دفتوحاتود ډيروالی په وجه بهٔ ئې تاسو مالدار کړی وئ ،اگر چې د څه حکمت په وجه په کښې روستو والې راغلو کوم کار چې تاسواوکړو هغه داسې ناخوښه دې چې] ﴿لَوْلَا كِتٰبٌ مِّنَ اللّٰهِ سَبَقَ﴾ که د الله ﷻ يو نوشته مقرره نه وې [هغه دا چې ددې قيديانو ځينې خلق به مسلمانان شی او هغه فساد به ترې راولاړ نشی د کوم چې احتمال وو ، که دا نه وې] ﴿لَمَسَّكُمْ فِيْمَآ اَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ نوکوم کار چې تاسو اختيار کړې دې دهغې باره کښې به په تاسو څه لويه سزا واقع شوې وه [ليکن هر کله چې څه خرابې راولاړه نشو او اتفاقا ستاسو مشوره حقه راوختله ځکه تاسو سزا نه بچ شوئ ، يعنی مونږ دغه فديه مباح کړه] ﴿فَكُلُوْا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلٰلًا طَيِّبًا﴾ نو څه چې تاسو [د دوئ په فديه کښې] اخستې دی هغه حلال پاك گنړئی او هغه خورئ ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾او الله ﷻ نه ويريږئی [چې بيا په هر شان احتياط کوئی] ﴿اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ بيشکه الله ﷻ بخښونکې د لوئې رحمت خاوند دې [چې ستاسو گناه ئې معاف کړه ،دابخښنه ده او فديه ئې هم درته حلاله کړه ، دا رحمت دې]

## معارف اومسائل

ددې آيتونو تعلق دبدردغزايو خاص واقعې سره دې چه دتفسير کولونه وړاندې دصحيح اومستند روايتونو دحديث له مخه ددې واقعې بيانول ضروری دی،

واقعه داده چه د.بدر.غزاپه اسلام کښې دټولونه ړومبې جهاددې چه ناڅاپه راپيښ شوې وو ،تردغې وخته پورې دجهادپه باره کښې تفصيلی حکمونه په قرآن کريم کښې نه وونازل شوی،په جهادکښې لاس ته راتلونکی مال دغنيمت سره به څه کولې شی؟ ددښمن سپايان چه په قبضه کښې راشی نودهغوئ بنديان کول روادی او که نه؟دبنديانو جوړولو په صورت کښې ورسره څه کول پکاردی،

دتېرو پخوانو پيغمبرانو ﷺ په شريعتونو کښې مسلمانانو لره دغنيمت دمال نه فائده اغستل او دهغې استعمالول حلال نه وو بلکه حکم داووچه دغنيمت ټول مال دراجمع کړې شي او په يو ميدان کښې دې کېښودلې شي که دغه جهاد به دالله تعالى په نزد مقبول وو نو آسماني اور به راغلو هغه به ئې اوسوځولو، که ددغې مال غنيمت دسوځولو دپاره به آسماني اور رانغلو نو داددې نخښه وه چه جهاد کښې به څه کوتاهي شوې وه ځکه به دغه جهاد دالله تعالى په نزد مقبول نه وو،

دصحيح بخاري او مسلم په روايت کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ او فرمائيل چه، ماته پنځه داسې څيزونه راکړې شوی دی چه بل هيڅ پيغمبرته هم نه وو ورکړې شوی، په هغې کښې يو دا هم دې چه کفارونه په لاس راتلونکې مال غنيمت هيچا دپاره حلال نه وو، مګرامت مرحومه دپاره داحلال او ګرځولې شو،([1]) داڅيز اګرچه دالله تعالى په علم کښې خو وو، ليکن دبدر دغزا تروخته پورې ددې څه حکم نه وو نازل شوې، هر کله چه دبدر په غزا کښې الله تعالى مسلمانانو ته بې طمع لويه فتح نصيب کړه، دښمن مال هم پرېښو چه د غنيمت په شکل کښې دمسلمانانو لاس ته راغلو او ددوئ لوئي لوئي سرداران، مسلمانانو بنديان کړل خو ددې دوارو دروا والي په باره کښې څه ښکاره حکم دوحي په ذريعه نه وو نازل شوې،

همدغه وجه وه چه دصحابه کرامو ﷺ په جلدبازئ باندې زورنه نازله شوه، دازورنه او ناراضګي دوحي په ذريعه داسې ښکاره کړې شوه چه دجنګي بنديانو په باره کښې مسلمانانو ته ددوؤ خبرو اختيار ورکړې شوې وو خواشاره پکښې داهم ورکړې شوې وه چه يو څيزدالله تعالى په نزد خوښ او بل ناخوښ دی، چنانچه جامع ترمذی، سنن نسائي او په صحيح ابن حبان کښې په روايت دعلي مرتضى ﷺ منقول دی چه په دغې موقعه حضرت جبرائيل امين، رسول الله ﷺ ته راغلو او داحکم دالله تعالى ئې واؤرولو چه تاسو ﷺ په صحابه کرامو ﷺ ته ددوؤ خبرو اختيار ورکړئ، ① يو دا چه دابنديان اووژنئ او ددښمن زور او رعب هميشه دپاره ختم کړئ ② دويم دا چه دڅه مالي بدلې په اغستو سره دې پرېښودې شي، ليکن په دې دويم صورت کښې د الله تعالى په حکم داخبره فيصله کړې شوې ده چه ددې په بدله کښې به آئنده کال د مسلمانانو نه هم دغه هومره کسان شهيدان کيږي څومره بنديان به دمال اغستو په بدله کښې چه پرېښودې شي،([2]) په ښکاره خو اګرچه ددې صورت اختيار هم مسلمانانو ته ورکړې شوې وو خو په آئنده کال کښې داويا ؤ [۷۰] مسلمانانو دشهيد کېدو په فيصلې څرګندولو کښې دې اړخ ته يو نرئ غوندې اشاره ضرور موجوده وه چه داصورت دالله تعالى خوښ نه دې، که خوښ ئې وې نو ددې په نتيجه کښې داويا ؤ صحابه کرامو ﷺ وينه تويېدل به لازمي کړې شوی نه وو،

ځنې صحابه کرامو ﷺ دفديئې اغستو او دبنديانو پرېښولو صورت ځکه اختيار کړو چه کېدې شي دغه پرېښولي بنديان څه وخت مسلمانان شي چه اصلي فائده او دجهاد مقصد دې،

---

[1] ) صحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم جعلت لى الأرض مسجدًا وطهورًا: ج ۱، ص ۶۳، وصحيح مسلم، كتاب المساجد ومواضع الصلاة: ج ۱، ص ۱۹۹

[2] )صحيح ابن حبان رقم الحديث: ۴۷۹۵، وجامع الترمذي، أبواب السير، باب ما جاء فى قتل الاسارى والفداء: ج ۱، ص ۲۸۵

په دې کښې ئې داخيال هم وو چه دنيستمنو مسلمانانو نيستي به ددې اويابنديانو په فدئې اغستو سره ختمه شي اوپه راتلونکي وخت کښې به په دغې مال سره دجهاد کولو تيارې هم اوکړې شي داويامسلمانانو دشهيد کيدونه ويره هم ځکه پکارنه ده چه داپخپله يو نعمت، پيرزونه اوخوش قسمتي ده. دادصديق اکبر ﷺ اودزياتو صحابه کرامو ﷺ رائې وه، صرف حضرت عمر ﷺ اوسعدبن معاذ ﷺ اوغيره څوصحابه کرامو ﷺ ددغې تولو قيديانو د وژلو رائې ځکه ورکړه چه داسلام په مقابله کښې قوت اوطاقت راجمع کوونکي ټول قريشي سرداران اوس دخوش قسمتۍ نه زمونږ په قابو کښې راغلي دي، ددوئ اسلام قبلول خو هسې وهم غوندې ښکاري البته غالب گمان داکيدې شي چه په آزاديدو سره به داخلق داول نه زيات داسلام او مسلمانانو خلاف ورانې کوي،

رحمته للعالمين ﷺ هم دنرمئ هغه رائې قبوله کړه چه دقيديانو دپاره پکښې راحت او آساني وه، هغه داچه په فدئې اغستو سره پريښودې شي، هغوئ ﷺ صديق اکبر ﷺ اوفاروق اعظم ﷺ ته په خطاب کولو سره اوفرمائيل: [لَوِاتَّفَقْتُمَا مَاخَالَفْتُكُمَا] [که تاسو دواړو ﷺ په يو رائې اتفاق راغلې وې نو مابه دهغې خلاف نه وو کړې] [مظهري][1]

په هرحال په دې رائې چه عمل اوشونو دربانې اشارو په مطابق آئنده کال داحد په غزا کښې اويا [۷۰] مسلمانان شهيدان شو،

﴿تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا﴾ کښې هغه صحابه کرامو ﷺ ته خطاب دې چاچه په فدئې اغستو سره دقيديانو دآزادولو رائې ورکړې وه، په دې آيت کښې اوښولې شو چه رسول الله ﷺ ته دايوه نامناسبه مشوره ورکول وو، ولې چه ديونبي شان سره دانه جوړيږي چه په دښمنانو قابو بيامومي اوبياهم دهغوئ طاقت اورعب مات نکړي اودفساديانو دښمنانو په پريښودلو سره هميشه دپاره مسلمانانو ته مصيبت راولاړکړي،

په دې آيت کښې د ﴿حَتّٰى يُثْخِنَ فِي الْاَرْضِ﴾ الفاظ راغلي دي په لغت کښې د ﴿اثخان﴾ معنى ده ښه په زوراو مرانې سره دچاطاقت اورعب ماتول، اوهم ددې معنې دتاکيد دپاره ﴿فِي الْاَرْضِ﴾ لفظ راوړې شو، حاصل ئې دا اوتوچه، ددښمن طاقت اورعب، زورخاؤرو سره يوځائ کړي اوبيخي ئې ختم کړي.

په فدئې اغستو سره دقيديانو آزادولو درائې دوه برخې وې، يوه برخه ئې خالص ديني داسې وه، چه کيدې شي داخلق په آزاديدو سره مسلمانان شي خودويمه برخه ئې په ذاتي فائدې باندې ولاړه وه چه مال به ئې لاس ته ورشي، چه تردغې وختـه پورې ديو داگيزنص له مخې دداسې مال، رواکيدل هم ثابت نه وو، درسول الله [صل دتربيت لاندې دصحابه کرامو ﷺ شان داسې جوړول ووچه دفرشتو نه هم وړاندې اوپورته وي، په داسې ماحول کښې ددوئ ﷺ خيالات مال دولت ته ورکرخيدل يو قسم گناه اونافرماني اوگنړلې شواو کوم کار کښې چه روا اوناروا سره يوځائ شي نودغه ټول کارناروا اگرځي ځکه په دغسې عمل سره صحابه کرامو ﷺ ته داسې زورنه ورکړې شوه:

[1]) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۱۴

Scanned with Ca

﴿تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا ۖ وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝﴾ یعنې تاسو خلق دنیا غواړئ حالانکه الله تعالی تاسو نه داغواړي چه تاسو دآخرت طلبګارجوړشئ، دلته دزورنې دپاره ددوئ ﷺ صرف هغه فعل بیان کړې شو چه دنا راضګئ وجه جوړیده، دقیدیانو دمسلمانید وبیان ئې ځکه دلته اونکړوچه اشاره دې خبرې ته شی چه الله تعالی ته دصحابه کراموﷺ غوندې پاکبازو، مخلصانو بندګانو داسې مشترک نیت هم قبول نه دې چه په هغې کښې ددینی او دنیوی فائدې دواړه اړخونه راجمع وی .دلته داسوال راپورته کیدې شی چه هرکله رسول الله ﷺ دصحابه کراموﷺ دغه رائې قبوله کړه نودوئ سره پکښې شریک شوبیایواځې صحابه کراموﷺ ته زورنه ولې ورکړې شوه، جواب ئې داکیدې شی چه دادرسول الله ﷺ خپله رائې نه وه بلکه یواځې دصحابه کراموﷺ رائې وه هرکله چه ددوئ ﷺ ترمنځه اختلاف رائې پیدا شونوهغوئ ﷺ ترد آسانئ اورحمت هغه رائې په دې وجه قبوله کړه چه الله تعالی ورته پخپله د..رحمته للعالمين..کیدو عزت اوشرافت وربخښلې دې.

په آخرآیت کښې ﴿وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝﴾ فرمائیلوسره دې ته اشاره اوشوه چه الله تعالی زبردست دحکمت خاوند دې، که تاسو تلوار نه کاره نه وې اغستې نوالله تعالی به په خپل فضل سره تاسو دپاره په آئنده فتوحاتو کښې دمال دولت هم انتظام کړې وو،

په دویم آیت کښې هم ددغې زورنې مضمون پوره کول داسې دی چه الله تعالی فرمائی: که دالله تعالی دتقدیریو لیک دوړاندې نه وې شوې نوستاسو ددې اختیارکړی کارپه وجه به لوئ سزارالاندې کړی وئ،

ددې نوشته تقدیر څخه څه مراد ؟ ددې متعلق په ترمذی کښې دحضرت ابی هریره ﷺ په روایت درسول الله ﷺ دارشاد مطابق دلته دتقدیردلیک نه مراددادې چه هرکله پخوانو امتونو کښې دیو امت دپاره هم دغنیمت مال حلال نه وواودبدرپه موقعه مسلمانانو دغنیمت مال راغونډول شروع کړل حالانکه ددې دحلالیدوحکم نازل شوې نه وو، په دې باندې دا آیت نازل شوچه دغنیمت دمال دحلالیدونه وړاندې دمسلمانانودغه کارکول داسې ګناه وه چه عذاب پرراتلل پکاروو، خودالله تعالی داحکم لوحِ محفوظ کښې لیکلې شوې ووچه دې امت دپاره به دغنیمت مال حلال ګرځولې شی ځکه په مسلمانانو باندې ددې غلطئ په وجه عذاب نازل نکړې شو، [مظهری] (1)

دحدیث په بعضې روایتونو کښې راغلی دی چه ددې آیت په نازلیدو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دالله تعالی عذاب مخامخ راغلې وو، الله تعالی په خپل فضل سره ایسارکړو، که دغه عذاب راغلې وې نودعمربن الخطاب ﷺ اوسعدبن معاذ ﷺ نه سوابه ددې نه هیڅوک هم نه ووبچ شوی، (2) ددې نه معلومیږی، چه ددې زورنې راتلوسبب په فدئې اغستوسره قیدیان پریښول وو اود ترمذی دروایت په حواله ددې دراتلوسبب دغنیمت مال جمع کول ووخوددې دواړو ترمنځه څه تکراوبې سمونی راتلل ځکه نشته چه قیدیانونه فدیه اخستل هم په مالِ غنیمت جمع کولو کښې حسابیږی،

1 ) جامع الترمذی، أبواب التفسير، باب سورة الأنفال: ج ۲، ص ۱۳۹، والتفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۱۱۸

2 ) تفسير الطبری: رقم الحديث ۱۶۳۲۰، والتفسير البغوی تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۷۷

**مسئله:** په دې آيت کښې په فدئې اغستلوسره دقيديانو په آزادولو او په مال غنيمت جمع کولو باندې چه کومه زورنه نازل شوه او دالله تعالى دعذاب نه ويرول اوکړې شو او بيا معافي ورکړې شوه، په دې سره دا خبره ښکاره نه شوه چه په آئنده کښې مسلمانانو له څه کول پکاردی، ځکه په راتلونکې آيت کښې دغنيمت دمال مسئله خوصفاکړې شوه وې فرمائيل:

﴿ فَكُلُوۡا مِمَّا غَنِمۡتُمۡ ﴾ يعنى په لاس درتلونکې مال اوس خورئ شئ هغه په آئنده کښې تاسو دپاره حلال اوګرځولې شو، خو په دې کښې دا شبه بيا هم پاتې کيږی چه ددې حکم د ملاويدونه وړاندې کوم مالِ غنيمت چه په غلطئ سره جمع کړې شوې وو شايد په هغې کښې څه قسم مکروهوالي وی نو دا شبه په ﴿حَلٰلًا طَيِّبًا﴾ فرمائيلو سره لرې کړې شوه مطلب دا شو چه ددې حکم دنازليدونه وړاندې دمال غنيمت راجمع کول اګرچه درست نه وو خو دحکم په نازليدو سره هغه هم بې دڅه مکروهوالی نه حلال دې.

**مسئله:** دلته دا اصول فقهې يوې مسئلې باندې نظر اچول اود ياد لرلو قابله ده چه هرکله يو ناجائز ګام پورته کړې شي بيا ديو مستقل آيت له مخې دهغې مال دحلالوالى حکم نازل شى نو دورمبنى ګام پورته کولو څه اثر په دې کښې نه پاتې کيږی اودغه مال حلال طيب ګرځى لکه څنګه چه دلته اوشو، ليکن ددې بل نظير دادې چه په څه معامله کښې يو نازل شوې حکم عمل کوونکو ته ښکاره نه وی او په دغسې حالت کښې دهغې خلاف ورزی اوکړی روستوورته معلوم شي چه زمونږ داعمل دقرآن اوسنت دفلانى حکم نه خلاف وونو په داسې صورت کښې دحکم دښکاره کيدونه پس هغه مال حلال نه پاتې کيږی اګرچه وړاندې کړې غلطى معاف هم کړې شى [نورالانوار ملا جيون] ([1])

په دې آيت کښې دغنيمت مال حلال طيب خو اوګرځولې شو ليکن دآيت په آخر کښې دې قيد:

﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ﴾ لګولو سره اشاره اوکړې شوه چه اګرکه دغنيمت مال حلال اوګرځولې شو خو بياهم ديو خاص قانون لاندې اوس ددغې قانون خلاف کول يا دخپل حق نه زيات مال اغستل ناروادی،

دلته دوه معاملې وی ① دمال غنيمت معامله وه ② اوبله په فدئې اغستلو سره قيديان آزادول وورومبئ معامله خو دې آيت صفاکړه خو دويمه معامله دلته صفانکړې شوه بلکه دسورت محمد ﷺ په دې آيت سره صفاکړې شوه: ﴿فَاِذَا لَقِيۡتُمُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا فَضَرۡبَ الرِّقَابِ ؕ حَتّٰٓى اِذَاۤ اَثۡخَنۡتُمُوۡهُمۡ فَشُدُّوا الۡوَثَاقَ ۙ فَاِمَّا مَنًّاۢ بَعۡدُ وَاِمَّا فِدَآءً حَتّٰى تَضَعَ الۡحَـرۡبُ اَوۡزَارَهَا ۛۚ﴾ يعنى چه په جنګ کښې ستاسو مقابله دکافرانو سره راشى نو دهغوئ ګردونو وهئ ترهغې چه دوينې توپولو په ذريعه دهغوئ طاقت اورعب داب مات کړئ، بيائې چه قيد کړئ نو کلک ئې اوتړئ، يا خو پرې احسان کولو دپاره ئې هسې پريږدئ يا په فدئې اغستلو سره ئې پريږدئ ترهغې چه جنګ خپلې وسلې کيږدی،

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائيلى دی چه دبدر په غزا کښې قيديانو له دفدئې اغستلو په بدل کښې آزادولو باندې زورنه ځکه نازله شوه چه دا داسلام ورومبې جهاد وو او تر دغه وخته پورې دکافرانو دطاقت اورعب ماتيدو څه سوال نه شو پيدا کيدې، يوناګهانى مصيبت پرې

---

[1] ) نور الأنوار مبحث أفعال النبي صلى الله عليه وسلم: ص ۲۱۵

راپریوتي وو، کله چه اسلام او مسلمانانو ته مکمله غلبه حاصله شوه نو الله تعالی ددغي حکم منسوخ کولو دپاره دسورت محمد ﷺ دغه تیرشوې آیت نازل کړو چه پکښې رسول الله ﷺ ته دقیدیانو په باره کښې څلور اختیاره ورکړې شویدی،

﴿ان شاءوا اقتلوهم وان شاءوا استبدوهم وان شاءوا افادوهم وان شاءوا اعتقوهم [مظهری]﴾ [1] ① که ئې خوښه شوه تول داووژني، ② که ئې خوښه شوه غلامان دې ئې کړي، ③ او که ئې خوښه شوه په فدئې اغستو سره دې ئې پریږدی، ④ او که ئې خوښه شوه آزاد دې ئې کړي،

په رومبو دوؤ صورتونو باندې خو دټول امت اجماع ده، یعنی دمسلمانانو امیر لره دکافرانو قیدیانو په وژلو او ددوئ په غلامانو جوړولو لیکن په فدئې سره یا بې فدئې په آزادولو کښې دامت فقهاء اختلاف لری،

دامام مالک رحمه الله شافعی رحمه الله احمد بن حنبل رحمه الله ثوری رحمه الله اسحاق رحمه الله او تابعینو رحمهم الله کښې دحسن بصری قول دادې چه پاتې دوه صورتونه هم دمسلمانانو دامیر دپاره روا دی،

③ یعنی داچه په فدئې اغستو سره قیدیان پریږدی یا بې فدئې ئې په دې غرض پریږدی چه ددې په بدل کښې به کافران هم مسلمانان قیدیان آزاد کړي. لیکن امام ابو حنیفه رحمه الله ابو یوسف رحمه الله اوزاعی رحمه الله قتاده رحمه الله ضحاک رحمه الله سدی رحمه الله او ابن جریر رحمه الله فرمائیلی دی چه بې فدئې پریښودل خوئې بیخی ناروا دی، دامام ابی حنیفه رحمه الله دمشهور مذهب مطابق په فدئې اغستو سره ئې پریښودل هم ناروا دی البته دسیر کبیر په روایت کښې راغلی دی چه که مسلمانانو ته دمال ضرورت وونو په فدئې سره ئې پریښودې شی، [2] البته دمسلمانانو قیدیانو را آزادولو په بدله کښې دکفارو قیدیانو پریښودل هم دامام ابی حنیفه رحمه الله او صاحبینو په نزد روا دی [ځنګه چه په دواړو روایتونو کښې ترې دابنه ظاهر روایت دې، [مظهری] [3]

کوم صاحبان چه په فدئې اغستو سره یا بې فدئې اغستو دکفارو قیدیانو پریښودل روا بولی هغوئ دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دقول مطابق دسورت محمد ﷺ آیت دسورت انفال ددې آیت دپاره ناسخ [منسوخ کوونکې] بولی، خو حنفی فقهاء دسورت محمد ﷺ دغه آیت د سورت انفال په آیت، ﴿فَشَرِّدْ بِهِم مَّنْ خَلْفَهُمْ﴾ او په آیت ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ﴾ سره منسوخ بولی ځکه ئې فدئې او په فدئې اغستلو سره ئې آزادول روا نه بولی [مظهری] [4]

لیکن که دسورت انفال او دسورت محمد ﷺ په الفاظو کښې غور او کړې شی نو داسې معلومیږی چه په دې دواړو کښې یو هم ناسخ یا منسوخ نه دې، بلکه ددوؤ بیلو بیلو حالتونو دوه بیل بیل حکمونه دی،

دسورت انفال په آیت کښې هم د اثخان فی الارض یعنی دکافرانو دزور ماتولو بیان دې او دسورت محمد ﷺ په آیت کښې هم د من او فداء بیان راغلې دې، مطلب ئې دا معلومیږی چه

[1] التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۱۱۳
[2] السیر الکبیر: ج ۴، ص ۱۰۳۱
[3] التفسیر المظهری: ج ۴، ص ۱۱۴
[4] التفسیر المظهری: ج ۴، ص ۱۱۴، ۱۱۵

هر کله د کافرانو زور په جنګ سره مات کړې شي نو د مسلمانانو امیر ته دفدئې په اغستو سره او بې فدئې اغستو د قیدیانو پرېښودلو اختیار دې چنانچه د امام اعظم ابی حنیفه رحمه الله د سیر کبیر د روایت هم دا منشا کیدې شي چه د مسلمانانو د حالت او ضرورت په جوړ دواړه قسمه حکمونه ورکولې کیدې شي، والله سبحانه وتعالى أعلم،

| |
|---|
| يَآَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّمَنْ فِيْٓ اَيْدِيْكُمْ |
| ا اے نبی ا او وایه ا هغه چاته ا چې په لاسونو ستاسو کښې دی ا |
| ا اې پیغمبر! ستاسو په لاسونو [قید] کښې چه کوم قیدیان دی نو هغوی ته او وایه |
| مِّنَ الْاَسْرٰٓى ۙ اِنْ يَّعْلَمِ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ |
| د قیدیانو نه ا که معلوم شو ا الله ته ا په زړونو ستاسو کښې ا څه خیر ا نو در به کړي تاسو ته ا |
| که الله تعالی ته ستاسو په زړونو کښې خیر معلوم شو [چه تاسو په اخلاص سره ایمان راوړئ] نو ستاسو |
| خَيْرًا مِّمَّآ اُخِذَ مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ؕ |
| بهتره ا د هغې نه ا چې اغستې شوې دی ا ستاسو نه ا او معافی به او کړي ا تاسو ته |
| نه چه په فدیه کښې څه اخستې شوې دی د هغې نه به درته غوره درکړي او تاسو ته به معافی او کړي |
| وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَاِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ |
| او الله ا ښښونکې دې ا مهربان دې ا او که اراده لري دوئ ا د خیانت کولو تاسره ا نو بیشکه |
| او الله تعالی ښښونکې مهربان دې ا او که دوی تاسره د خیانت کولو اراده لري نو یقیني خبره ده |
| خَانُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ |
| خیانت کړې وو دوئ ا د الله سره ا مخکښې د دې نه ا نو قادرئې کړي ته ا په دوئ باندې ا او الله ا ښه پوهه دې |
| چه د دې نه وړاندې دوی د الله سره خیانت کړې وو نو الله تاته په دوی باندې قدرت درکړو ا او الله عالم |
| حَكِيْمٌ ۝ |
| د حکمت خاوند دې ا |
| صاحب د حکمت دې ا |

## آسان ترجمه قرآن

او که دې خلقو (اې نبی!) تاسره د خیانت کولو اراده وکړه نو دې نه مخکښې هم دوی الله تعالی سره خیانت کړې وو، چه د هغې په نتیجه کښې الله تاته په هغوی قابو درکړه. او د الله حکمت هم کامل دې او علم هم کامل.

## خلاصه تفسیر

﴿يَآَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّمَنْ فِيْٓ اَيْدِيْكُمْ مِّنَ الْاَسْرٰٓى ۙ يَّعْلَمِ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا﴾ اې پیغمبر ﷺ! ستاسو په قبضه کښې چې کوم قیدیان دی [په دوئ کښې چې کوم مسلمانان شوی دی] تاسو ﷺ دوئ ته اووایئ که الله ﷻ ته ستاسو په زړونو کښې ایمان [چې تاسو د زړهٔ نه مسلمانان شوی یئ ولې چې د الله ﷻ علم خو د واقع او حقیقت مطابق وی ، الله ﷻ به هم هغه خلق مسلمانان

Scanned with Ca

کنړی چې په واقع کښې مسلمان وی او څوك چې کافر وی هغه به هم کافر گنړی نو که تاسو د زړهٔ نه مسلمانان یئ] ﴿إِنْ يُؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّا أُخِذَ مِنكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ﴾ نو څه چې تاسو نه [په فدیه کښې] اخستې شوی دی ددې نه زیات غوره به تاسو ته [پدنیا کښې] درکړی او تاسو به اوبخښی [او په آخر کښې] ﴿وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ او الله ﷻ لوئې بخښونکې دې [ځکه به تاسو اوبخښی او] لوئې رحمت والا دې [ځکه به ئې درته غوره بدله درکړی] ﴿وَإِن يُرِيدُوا خِيَانَتَكَ﴾ او که [بالفرض] داخلق [په رښتیا د زړهٔ نه نه وی مسلمانان شوی بلکه په اسلام ظاهرولو سره تاسو سره دهوکه کول غواړی او په زړهٔ کښې ئې] تاسو سره د دهوکې کولو [یعنی د وعدې په ماتولو سره ستاسو د مخالفت او مقابلې کولو] اراده وی نو [هیڅ فکر مه کوئی الله ﷻ به ئې بیا ستاسو په لاس کښې راګیر کړی څنګه چې] ﴿فَقَدْ خَانُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ﴾ ددې نه مخکښې دوئ الله ﷻ سره خیانت کړې وو [او ستاسو مخالفت او مقابله ئې اوکړه] ﴿فَأَمْكَنَ مِنْهُمْ﴾ بیا الله ﷻ دوئ [ستاسو په لاس کښې] بندیوان کړل ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ او الله ﷻ ښه پیژندونکې دې [چې څوك دهوکه باز دې او] او د لوئې حکمت خاوند دې [داسې صورتونه پیدا کوی چې دهوکه باز ورسره مغلوب کیږی].

## معارف او مسائل

د بدر د غزا د قیدیانو نه فدیه واغستې شوه او آزاد کړې شو، د اسلام او مسلمانانو هغه دښمنان چه ددوئ په تنګولو، تکلیف رسولو، وهلو، ټکولو، او وژلو باندې ئې هیڅکله هم صرفه نه وه کړې، کله ئې چه وس برشویدې نو ډیر بیدریغه ظلمونه ئې پرا وکړل د مسلمانانو په لاس کښې د قیدیدونه پس ددوئ ژوندی پریښول څه وړه خبره نه وه بلکه ددوئ د پاره لوئ غنیمت او زیاته نرمی او مهربانی وه، په فدیه کښې چه کوم رقم دوئ نه واغستې شو هغه هم ډیر معمولی وو،

دالله تعالی مهربانی اوګورئ چه دومره معمولی رقم ورکولو سره دوئ ته راپیښ شوې تکلیف الله تعالی څنګه لرې کړو،

په دې آیت کښې ارشاد دې: که الله تعالی ستاسو په زړونو کښې څه خیر بیا مومی نو تاسو نه چه څه اغستې شویدی الله تعالی په درته دهغې نه غوره درکړی، علاوه دا چه ستاسو کړی ګناهونه به درته اوبخښی، دلته د خیر نه مراد ایمان او اخلاص دې، مطلب دا دې چه د آزادیدونه پس په دې قیدیانو کښې که څوک په اخلاص سره اسلام او ایمان اختیار کړې نو په فدیه کښې د ورکړی مال نه په زیاته اندازه کښې به غوره څیزونه ورکړې شی، قیدیان ئې آزاد او خپل اختیاره اوګرځول ورته دا بلنه هم ورکړې شوه چه آزادئ سره د په خپله فائده او نقصان باندې غور اوکړی، چنانچه واقعات ګواه دی چه په دغې قیدیانو ګښې مسلمان شوی کسانو ته الله ﷻ بخښنه او د جنت لوړې درجې ور نصیب کړې په دنیا کښې ئې هم ورته دومره مال ورکړو چه ددوئ د فدئې نه په څو څو درجو زیات وو،

اکثرو مفسرینو فرمائیلی دی چه دا آیت د رسول الله ﷺ د تره حضرت عباس رضی الله عنه په باره کښې نازل شویدې، ولې چه هغوئ رضی الله عنه هم د بدر په قیدیانو کښې شامل وو، هغه نه هم فدیه اخستې شوې وه، په دې معامله کښې دهغوئ خصوصیت دا وو چه دوئ رضی الله عنه په جنګ بدر کښې تقریبا! وه سوه کنې سره زرراوړی وو چه د کافرانو په لښکرئې اولګوی، دغه سره زرئې لا لګولی نه وو چه سره دهغې بندیوان کړې شو، د فدئې ورکولو په وخت دوئ رضی الله عنه رسول کریم ﷺ ته عرض او فکر

اوکړو چې خما سره چې کوم سره زر وو هغه دې زما په فدیه کښې منظور کړې شی، رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه دغه ټول سره زر دغنیمت دمال په حیث دمسلمانانو مال شو اوس پکښې ستاهیڅ اختیارپاتې نشو، فدیه به بیله دربانديې کیږی، بلکه دد دوؤوریرونو ① عقیل بن ابی طالب او ② نوفل بن حارث فدیه به هم ته اداکوې، حضرت عباس ؓ عرض اوکړو چه دومره مالی پیټې په ماراواچولې شوزه به داسې فقیرشم چه دقریشونه به خیرخیرات غوارم رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه ولې تاسره هغه مال نشته چه دراتلوپه وخت کښې دخپلې بی بی ام الفضل ته ورکړې وو،

حضرت عباس ؓ عرض اوکړو، تاسوته چاوئیلی دی، په هغه وخت خودشپې په تیاره کښې یواځې مونږدواړه ښځه، خاوندوودریم راسره هیڅوک نه وو. هغوئ ﷺ ورته اوفرمائیل چه دا راته زماپروردګاروئیلی دی اودهغې پوره تفصیل ئې راته ښودلې دې. ددې په آؤریدوسره دحضرت عباس ؓ په زړه کښې دایقین مضبوط شوچه دوئ ﷺ دالله تعالی رشتینې رسول دې، حضرت عباس ؓ اول نه هم د رسول الله ﷺ پوخ عقیدتمن ووخوشکونه ئې وو، چه الله تعالی په دغه وخت کښې پورته کړل، دوئ ﷺ په حقیقت کښې همدغې وخت نه مسلمانان شوخوچونکه دمکې دقریشوپه ذمه ددوئ ډیرزیات قرض وو، که دغه وخت ئې دمسلمانیدواعلان کړې وې نودغه قرض به ئې بیخی سوخیدلې وو، ځکه ئې اعلان اونکړو اورسول الله ﷺ هم ددې حال چاته اونه وئیلو، دمکې دفتح کیدونه وړاندې هغوئ ؓ درسول الله ﷺ نه مدینې منورې ته دهجرت کولواجازت اوغوښتو، خوهغوئ ﷺ ورته دغه وخت دهجرت مشوره ورنکړه،

په دې موقعه حضرت عباس ؓ ته په آیت کښې وعده هم رسول الله ﷺ اوښوله، ورته ئې اوفرمائیل چه که تا ؓ اسلام قبول کړو، اوپه اخلاص سره مؤمن شوې نوپه فدیه کښې دورکړې مال نه به درته الله تعالی زیات مال درکړی. چنانچه حضرت عباس ؓ به داسلام راؤړلونه پس فرمائیل چه زه خوددغې وعدې ښکاره کیدل په خپلوسترګوداشان وینم چه مانه په فدیه کښې شل اوقئې سره زرواغستې شو، خواوس په دې وخت کښې م شل غلامان په مختلفو ځایونو کښې دتجارت کاروبارکوی په دې کښې دهریوغلام کاروباردشلوزرو درهمونه کم نه دې، اوپه مازیاتی فضل دا اوکړې شوچه حاجیانوته دابوځکولوخدمت هم ماته حواله شو، چه زماپه نزد دومره دعزت کاردې چه دټول اهلِ مکې مالونه هم ددې په مقابله کښې هیڅ ګنړم،

دبدردغزاپه قیدیانو کښې ځنې خلق مسلمانان شوی ووخودخلقوپه زړونو کښې دا اندیښنه راتله چه هسې نه داخلق مکې ته په رسید وداسلام نه بیاواؤنه ړی، اومونږته نقصان راؤنه رسوی، الله تعالی دااندیښنه په وروستې آیت کښې لرې کړه فرمائی: ﴿وَإِن يُرِيدُوا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ فَأَمْكَنَ مِنْهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ یعنی که داخلق تاسو ﷺ سره دټګئ کولواراده اولرئ نوپه دې سره به تاسوته هیڅ نقصان اونه رسیږی، داخوهم هغه خلق دی چه ددې نه وړاندې ئې الله تعالی سره خیانت کړیدې، یعنی د روز ازل دوعدې نه هم واؤړیدل چه داټګی کول پخپله ددوئ دپاره مضرثابت شوچه په نتیجه کښې خوار، ذلیله اوبندیان شو، اوالله تعالی خودزړونوپه رازونوپوهیدونکې دلوئ حکمت خاونددې، که داخلق اوس هم ستاسومخالفت کولوته ملاتړلې وی نودالله تعالی دقبضې نه بهر به چرته لاړنشی، هغه به ئې بیاهم راګیر کړی، په تیر

Scanned with Ca

شوی آیت کښې آزادیدونکو قیدیانوته داسلام بلنه ورکول دمینې پیداکولوپه اندازه کښې ورکړې شوې وو ، اوس په دی آیت کښې دویرولوپه اندازه کښې خبرورکړې شوچه د دنیا اودآخرت ښیګړه مو په اسلام اوایمان باندې اړه لري.

تردې پورې کفاروسره دجنګ جګړو ، دهغوئ دقیدولو ،آزادولو اوهغوئ سره دصلح، مصالحت حکمونه بیانیدل، اوس په ورپسې آیتونوکښې دسورت ترختمیدوپورې، ددې سلسلې دیوخاص باب ذکراوددې دحکمونوڅه تفصیل بیان شویدې، چه هغه دهجرت حکمونه دی، ځکه چه کفاروسره په مقابله کولوکښې کله داسې حالات هم راپیښیږی چه مسلمانان کفارو سره دجنګ کولو طاقت نه لري، کفارصلح کولوته هم تیارنه وی، په داسې حالت کښې مسلمانانو دپاره یواځینۍ لاردخلاصی هجرت کول دی، چه دغه ښاریاملک پریږدی بل چرته تیکاؤشی چرته چه په اسلامی حکمونوباندې په آزادئ سره عمل کولې شئ.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا

ابیشکه هغه کسان اچی ایمان ئې قبول کړو ا اوهجرت ئې اوکړو ااوجهادئې اوکړو

ابیشکه کومو کسانو چه ایمان راوړې دې اوهجرت ئې کړې دې او په خپلو

بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ

په مالونو خپلو سره ا اوپه نفسونو خپلو سره ا په لاردالله کښې ا اوهغه کسان ا

مالونو اوجانونو باندې ئې د الله په لار کښې جهاد کړې دې اوهغه کسان چه [مهاجرینو مسلمانانوته ئې]

آوَوا وَّنَصَرُوا أُولَٰئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ

چی ځاې ئې ورکړو ا او مدد ئې اوکړو ا دغه کسان اځینی دهغوئ ا دوستان دی ا دځینو

ځاې ورکړې دې او [دهغوی] مدد ئې کړې دې انو دغه کسان په خپل مینځ کښې د یوبل دوستان دی

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم

اوهغه کسان اچی ایمان ئې راوړو ا اوهجرت ئې اونه کړو انشته استاسو دپاره ا ددوستانې دهغوئ نه

اوکومو کسانو چه ایمان راوړې دې [خوتراوسه پورې] هجرت ئې نه دې کړې ستاسو اودهغوی د ملګرتیا

مِّن شَيْءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا ۚ وَإِنِ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ

هیڅ څیز اتردې پورې اچی هغوئ هجرت اوکړی ا اوکه اهغوئ مدداوغوارې ستاسو نه اپه دین کښې

هیڅ څه تعلق نشته تردې چه دوی هجرت اوکړی ا [البته] که دوی ستاسونه په دین کښې [د کافرخلاف]

فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم

نولازم دی په تاسو مددکول امګرنه اخلاف دهغه قوم اچی په منځ ستاسو ا اوپه منځ دهغوئ کښې

مدد اوغواړی نوپه تاسو باندې [دهغوی] مدد لازم دې مګردهغه قوم خلاف [به تاسو هغوی سره مدد نه کوئ]

مِّيثَاقٌ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝ وَالَّذِينَ كَفَرُوا

معاهده وی ا اوالله اد هغه کارونو اچی کوئ ئې تاسو الیدونکې دې ا اوهغه کسان ا چی کافران دی

چه ستاسو او د هغوی په مینځ کښې معاهده وی ا اوالله ستاسود عملونو لیدونکې دې ا اوهغه کسان

Scanned with Ca

بَعْضُهُمْ　اَوْلِيَآءُ　بَعْضٍ ؕ　اِلَّا　تَفْعَلُوْهُ　تَكُنْ　فِتْنَةٌ

خینې دهغوی | دوستان دي | دځینو | اکه اونه کړئ تاسو دا کارونه | نو شي به | فتنه |

چه کفر ئې کړي دي نو هغوی په خپل مینځ کښې د یو بل ملګري دي که تاسو داسې اونکړئ

فِي الْاَرْضِ　وَفَسَادٌ　كَبِيْرٌ ؕ　وَالَّذِيْنَ　اٰمَنُوْا　وَهَاجَرُوْا

په زمکه کښې | اوفساد | لوئ | اوهغه کسان اچې ایمان ئې راوړو | اوهجرت ئې اوکړو |

نو په زمکه کښې به لوئې فساد جوړ شی | اوهغه خلق چه ایمان ئې راوړي دي اوهجرت ئې کړي دي

وَجٰهَدُوْا　فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ　وَالَّذِيْنَ　اٰوَوْا　وَّنَصَرُوْٓا

اوجهاد ئې اوکړو | په لاره دالله کښې | اوهغه کسان اچې پناه ورکړه هغوئ | اوامداد ئې اوکړو |

او د الله په لار کښې ئې جهاد کړي دي اوهغه خلق چه [مهاجرینوته] ئې ځائې ورکړي دي او[هغوی سره ئې] امداد ئې کړي دي

اُولٰٓئِكَ　هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ　حَقًّا ؕ　لَهُمْ　مَّغْفِرَةٌ　وَّرِزْقٌ　كَرِيْمٌ

دغه کسان چې دي | هم هغوئ مومنان دي | په حقه | د هغوئ لره | ښنانه | اورزق | عزتمند

هم دغه خلق په ربښتیا مؤمنان دي | [د الله تعالی د طرفه] د دوی دپاره ښښنه او د عزت رزق دي

وَالَّذِيْنَ　اٰمَنُوْا　مِنْۢ بَعْدُ　وَهَاجَرُوْا　وَجٰهَدُوْا　مَعَكُمْ

اوهغه کسان اچې ایمان ئې راوړو | روستو | اوهجرت ئې اوکړو | اوجهاد ئې اوکړو | تاسو سره

اوکومو کسانو چه د دې نه پس ایمان راوړي دي اوهجرت ئې کړي دي اوستاسو [په ملګرتیا کښې ئې جهاد کړي دي]

فَاُولٰٓئِكَ　مِنْكُمْ ؕ　وَاُولُوا الْاَرْحَامِ　بَعْضُهُمْ　اَوْلٰى

نو دغه کسان | استاسو نه دي | اوخاوندان دخپلولئ | خینی دهغوئ | زیات حقدار دی

نو دغه خلق هم ستاسو نه دی اخو دوینې خپلوان د الله تعالی په کتاب کښې د یو بل نه زیات

بِبَعْضٍ　فِيْ كِتٰبِ　اللّٰهِ ؕ　اِنَّ اللّٰهَ　بِكُلِّ شَيْءٍ　عَلِيْمٌ

په خینونورو باندې | په کتاب | دالله کښې | بیشکه الله | په هرڅیز باندې | ښه پوهه دې |

حقدار دی | بیشکه الله تعالی په هریو څیز باندې ښه پوهیږی

## آسان ترجمه قرآن

کومو خلقو چه ایمان راوړې دې ، او هجرت ئې کړې دې ، او پخپلو ځانونو او مالونو ئې دالله په لاره کښې جهاد کړې دې هغه او چا چه دوی (مدینه کښې) آباد کړي دي او دهغوی مدد ئې کړې دې دا ټول خپلو کښې د یو بل وارثان دی او کومو خلقوچه ایمان راوړې دې (مګر) هجرت ئې نه دې کړې، ترڅوچه دوی هجرت نه وي کړې نو (اې مسلمانانو !) ستاسو د هغوی سره د وراثت هیڅ رشته نشته خو که د دین د وجې نه هغوی ستاسو نه مدد وغواړي نو تاسو باندې د هغوی مدد لازم دې ، سوا د هغه صورت نه چه دا مدد د هغه قوم خلاف وي چه ستاسو د هغوی سره معاهده وي او تاسو چه څه کوئ نو الله هغه وینې او کومو خلقو چه کفر کړي دې هغوی خپلو کښې د یو بل وارثان دي که تاسو داسې نه کوئ نو زمکه کښې به فتنه او لوئ فساد جوړ شي او چا چه ایمان راوړو ، او هغوی هجرت وکړو ، او د الله په لاره کښې ئې جهاد

Scanned with Ca

وکړو ، او چا چه دوی آباد کړل او د دوی مدد ئې وکړو ، دا ټول په صحیح معنو کښې مؤمنان دي داسې خلق د بخښې او د عزت والا رزق مستحق دي اوچا چه وروستو ایمان راوړو او هجرت ئې وکړو ، او تاسو سره ئې جهاد وکړو هغوی هم ستاسو نه دی. او (دوی نه) چه کوم خلق (دپخوانی مهاجرینو) خپلوان دي هغوی دالله په کتاب کښې د یوبل د (د میراث د نورو نه) زیات حقدار دي یقینًا الله په هر څه باندې ښه پوهیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ بیشکه کومو خلقو چې ایمان راوړو او هغوئ هجرت اوکړو او خپل مال و جان سره یې د الله ﷻ په لار کښې جهاد هم اوکړو [چې واقع کیدل ئې د هجرت د عادی لوازماتو وو اګر چې حکم دمیراث ورلو پرې اړه نه لری ، اودا ټوله د مهاجرینو په لقب سره یادیږی] ﴿وَالَّذِينَ آوَوا وَّنَصَرُوا﴾ او کومو خلقو چې [دې مهاجرینو ته] د استوګنې ځائې ورکړو او [ددوئ] مدد ئې اوکړو [ دا ډله د انصارو په لقب یادیږی] دا ﴿أُولَٰئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ﴾ [دواړه قسمه]خلق به یو تربله د یوبل وارثان وی ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا﴾ او چا چې ایمان خو قبول کړو او هجرت ئې اونه کړو﴿مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم مِّن شَيْءٍ﴾ ستاسو [یعنی دمهاجرینو] دوئ سره د میراث څه تعلق نشته [نه دوئ د هغوئ او نه هغوئ د دوئ وارثان دی] ﴿حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا﴾ تر څو چې هغوئ هجرت اونه کړی [اوکله چې هجرت اوکړی بیا به هغه هم په دې حکم کښې داخل شی] او اګو چې ستاسو ترمینځه به یو بل نه میراث اوړل نه وی لیکن] ﴿وَإِنِ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ﴾ که هغوئ ستاسو نه ددین په کار [یعنی کافرانو سره په جنګ کولو] کښې مدد غواړی ﴿فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ﴾ نوستاسو په ذمه [دهغوئ] مدد کول واجب دی ﴿إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ﴾ مګر د هغه قوم په مقابله کښې نه چې ستاسو او دهغوئ تر مینځه وعده [دصلح] وی ﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ او الله ﷻ ستاسو ټول کارونه ګوری [نو دهغه په ټاکلو حکمونو کښې په خلل اچولو سره دهغه دناخوښئ حقدار مه جوړیږی] او[څنګه چې ستاسو تر مینځه د میراث وړلو تعلق دې دغه شان] ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ﴾ کوم خلق چې کافران دی هغوئ [هم] خپل مینځ کښې دیو بل وارثان دی [نه تاسو دهغوئ وارثان یئ اونه هغوئ ستاسو وارثان دی] ﴿إِلَّا تَفْعَلُوهُ﴾ که په دې باندې عمل نه کوئی [بلکه سره ددې چې دینونه مو بیل بیل وی اوخالص دخپلوئ په بنا باندې دمؤمن اوکافر تر مینځه دمیراث اوړلو تعلق جاری لرئ] ﴿تَكُن فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ﴾ نو په دنیا کښې به لویه فتنه او لوئې فساد خوریږی [ولې چې یوبل نه د میراث اوړلو په وجه به ټول یوه ډله ګڼړلې شی او هرکله چې بیله ډله جوړه نشی نو په دې شان د یوې دلې په حیث اسلام ته طاقت او رعب نشی حاصلیدې ، او الله دې نه کړی چې که اسلام په دې شان کمزورې شی نو هم دا ټول جهان د فتنې ، فساد باعث جوړیږی څنګه چې ښکاره ده] او [د مهاجرینو او انصارو ترمینځه د میراث اوړلو حکم کښې اګر که ټول مهاجرین برابر دی خواه د هجرت نبوی ﷺ په زمانه کښې هغوئ هجرت کړې وی یا د هغې نه پس خو په فضیلت او مرتبه کښې فرق شته چنانچه] ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا﴾ کوم خلق چې [اول] مسلمانان شو او هجرت ئې [دهجرت نبوی ﷺ په

Scanned with Ca

زمانه کښې] اوکړو او [اول سره ئې] ﴿وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ د الله ﷻ په لار کښې جهاد کولو ﴿وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا﴾ او کومو خلقو چې [دا مهاجرين په خپل ځائې دیر کړل او د دوئ مدد ئې اوکړو ﴿اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا﴾ داخلق دایمان پوره حق اداکوونکی دی [ولې چې ددې حق داندې چې په قبلولو کښې ئې مخکښې والې اوکړې] ﴿لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ﴾ دوئ لره [په آخرت کښې] لویه بخښنه ده او [په جنت کښې] ﴿وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ﴾ ډیره عزت منده روزی [مقرر] ده ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْۢ بَعْدُ﴾ او کومو خلقو چې [دهجرت نبوی نه] پس زمانه کښې ایمان راوړو ﴿وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا مَعَكُمْ﴾او هجرت ئې اوکړو اوتاسو سره ئې جهاد اوکړو [یعنی ټول کارونه ئې په روستوزمانه کښې اوکړل] ﴿فَاُولٰٓئِكَ مِنْكُمْ﴾نو داخلق [اګر چې ستاسو پشان فضیلت نه لري لیکن بیا هم] تاسو سره حسابیږی [ټول فضیلت ئې ستاسو په شان ځکه نشی کیدې چې دعملونو په نسبت سره د فضیلت په درجو کښې فرق راځی لیکن د میراث په حکمونو کښې به ټول ستاسو پشان ځکه وی چې د عملونو په شرعی حکمونو کښې فرق نه راځی] او [دې روستنو مهاجرینو کښې]﴿وَاُولُوا الْاَرْحَامِ﴾ چې کوم خلق [خپل مینځ کښې یاد وراندینو مهاجرینو] خپلوان دی [اګر چې په غوره والی او مرتبه کښې کم وی لیکن د میراث په اعتبار سره] ﴿بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ﴾ د الله ﷻ په کتاب [یعنی شرعی حکم یا په آیت دمیراث] کښې دیوبل [د میراث په نسبت د پردو خلقو] زیات حقدار دی [اګر چې دغه پردی خلق په غوره والی او مرتبه کښې تر زیات وی] ﴿اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ﴾ بیشکه الله ﷻ هر څیز بنه پیژنی [ځکه دهر وخت دښیګړې مناسب حکم مقرر وی].

## معارف او مسائل

دادسورت انفال آخری څلور آیتونه دی، په دې کښې اصل مقصد دهجرت هغه حکمونه دی چه دمهاجرینو مسلمانانو میراث سره تعلق لري خو بل ارخ ته دغیر مهاجرو مسلمانانو او دغیر مسلموبیان هم راغلې دې،

ددې حکمونو خلاصه داده چه کومو خلقو باندې شرعی حکمونه جاری کیږی، هغه په اول کښې دوه قسمه دی، ① مسلمانان ② کافران، بیا دغه وخت مسلمانان هم دوه قسمه وو،

① قسم هغه ووچه دمکې مکرمې نه ئې هغه وخت مدینې منورې ته هجرت کړې ووکله چه پرهجرت فرض شو، ② دویم قسم هغه مسلمانان ووچه دغه وخت ئې دڅه جائزعذرپه بنایاپه څه وجه هجرت نه ووکړې شوی اوهم په مکه مکرمه کښې پاتې شوی وو. دادواړه مسلمانان او ددغې وخت کافران ټول خپل منځ کښې خپلوان هم وو، ولې چه دغه وخت به ئې پلار مسلمان خوئ کافر، خوئ مسلمان او پلار به ئې کافروو، دغه حال دتره، وراره ماما، خورئې اونیکه، نمسی هم وو، مسلمانان که مهاجروو او که غیر مهاجر ددوئ ترمنځه خپلوی خوښکاره خبره وه،

الله تعالی په خپل رحمت کامله او حکمت بالغه سره دیومړی دپاتې شوی مال حقداران ئې دهغه نژدې خپلوان عزیزان ګرځولی دی، سره ددې چه دحقیقت له مخې ددنیا ټول مالونه دالله تعالی ملکیت دی، چاته ئې ورکړل چه هغه ئې ټول ژوند کښې استعمال کړی، فائده تر پورته کړی او په دې شان ئې دهغې عارضی مالک اوګرځولو، دعقل او انصاف تقاضا داده چه دهرمړکیدونکی دغه مال بیرته الله تعالی ته سپارلې شوې چه عملی صورت ئې په بیت المال

کښې داخلول ووچه دټول مخلوق خداتربیت اوپالنه هم ددې په ذریعه کیدې شی، خوپه داسې کولوسره به دهرانسان طبعی جذباتو ته نقصان څکه رسید وچه یقین به ئې ووچه زماپاتې مال به نه زمااولادته ورکولې شی، نه به م مور، پلار یابنځې وغیره ته ورکولې شی، نتیجه به ئې خامخاهم داوه چه دهیچاطبیعت به دانه غوښتل چه خپل مال زیات کړی، حفاظت ئې اوکړی، یاخواری اومحنت پکښې اوکړی، یواځې دخپل ضرورت په اندازه به ئې مال جمع کولو. په نتیجه کښې به ټول انسانان، ښارونه اوآبادئ تباه، بربادا وویران ویجاړشوی وو،

په دې وجه الله تعالی دمړی دمیراث حقداران دهغه خپلوان اوګرځول، خصوصاهغه خپلوان دکومې دفائدې دپاره چه هغه به مال جمع کولواوقسماقسم خواریٔ اومحنتونه به ئې کول، دې سره سره اسلام هغه اهم مقصدهم دمیراث په ویش کښې مخې ته کیښودکوم دپاره چه انسان پیداکړې شوې دې [یعنی دالله تعالی فرمانبرداری اوعبادت] اوددې په لحاظ سره ئې ټول انسانان دوه بیل بیل قومونه [مؤمنان اوکافران] اوګرځول لکه فرمائی:

﴿فَمِنۡكُمۡ كَافِرٌ وَّمِنۡكُمۡ مُّؤۡمِنٌ﴾(۱) دې دوه قومیزنظرئې، نسبی اوخاندانی تار دمیراث ترحده پورې داسې پریکړل چه نه به مسلمان ته دکافرخپلوانو نه په میراث کښې څه برخه رسی اونه کافرو خپلوانو ته دمسلمان په میراث کښې څه برخه رسی، چنانچه په ړومبی دوؤآیتونوکښې همدغه مضمون بیان شویدې اودانه منسوخ کیدونکې تل دپاره حکم دې چه داسلام داولې زمانې نه شروع شوې اوتر قیامته پورې دوراثت اسلامی اصول دی،

دې سره بل دمهاجرواوغیرمهاجرومسلمانانوترمنځه دمیراث حکم دې، ددې متعلق په ړومبی آیت کښې داښولی شویدی چه یومسلمان ترڅوپورې دمکې مکرمې نه هجرت اونکړی ترهغې پورې ئې هجرت کوونکومسلمانانوسره دمیراث اوړلوتعلق هم نشته، نه به مهاجرمسلمان دغیرمهاجرمسلمان وارث ګرځی اونه به غیرمهاجرمسلمان دمهاجرمسلمان په میراث کښې څه برخه اغستې شی، ښکاره خبره ده چه داحکم ترهغې وخته پورې ووچه مکه مکرمه فتح شوې نه وه چنانچه دمکې مکرمې دفتح کیدونه پس رسول الله ﷺ پخپله اعلان کړې ووچه [لَا هِجۡرَةَ بَعۡدَ الۡفَتۡحِ] (۲) دمکې مکرمې دفتح کیدونه پس دهجرت حکم ختم شو] او کله چه دهجرت حکم ختم شونوهجرت نه کوونکوسره دبې تعلقئ سوال هم ختم شو،

په دې بنا اکثرومفسرینو فرمائیلی دی چه داحکم دمکې مکرمې په فتح کیدوسره منسوخ شویدې خودتحقیق دخاوندانوپه نزدهمیشه دپاره نامنسوخ دې مګردحالاتوپه جوړبدل شویدې، دقرآن کریم دنازلیدوپه وخت په کوموحالاتوکښې چه داحکم راغلې ووکه بیاهم دغسې حالات چرته پیداشی نودغه حکم به هلته جاری شی. ددې زیات وضاحت دادې چه دمکې مکرمې دفتح کیدونه وړاندې په هرمسلمان [نارینه، زنانه] هجرت کول فرضِ عین شوی وو، په دې حکم باندې دعمل کولوپه بنا، سوادڅومسلمانانونه ټولومسلمانانومدینې منورې ته هجرت کړې وو، دمکې مکرمې نه هجرت نه کول دغه وخت ددې نخښه جوړه شوې وه چه دا مسلمان نه دې ځکه به دغیرمهاجر اسلام هم شکی وواوپه دې بنادمهاجراوغیر مهاجر مسلمان ترمنځه دمیراث اوړلوسلسله هم بنده شوه،

---

۱) ترجمه: اوهم هغه دے چه تاسو ټول ئې پیدا کړی نو بعضے په تاسو کښې کافران دی او بعضے په تاسو کښې مومنان دی۔
۲) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب فضل الجهاد والسیر: ج ۱، ص ۲۶۰

اوس که بیاهم په یوملک کښې داسې حالات پیدا شي چه هلته اسلامي فرض اداکول بیخی نشي کیدې نو دغه ملک نه به هجرت کول بیاهم فرض شي اوکه بې دڅه مضبوط عذر نه هجرت نه کول دکفرنخښه جوړه شي نوبیاهم دغه حکم جاري کیږي چه دمهاجراوغیر مهاجر مسلمان ترمنځه به دمیراث اوړلومزې هم اوشلیږي، دې تقریرنه داخبره په ډاګه شوه چه دمهاجر او غیرمهاجرمسلمان ترمنځه دمیراث اوړلومزې شلیدل هم هغه ړومبې حکم دې چه دمسلمان او کافرترمنځه دمیراث مزې شلولې شوې وو، فرق صرف دومره دې چه دکفرد نخښې د ګرځیدوپه وجه په هجرت نه کولوسره دمیراث نه محرومه اوګرځولې شو، خودکفر حکم پرِاونښو، ترڅوچه کفرئې په ښکاره ډول ثابت نه شي،

اوغالباًهم ددې مصلحت په بنادغیرمهاجرمسلمانانویوبل حکم دلته داسې بیان کړې شویدې چه که دوئ دمهاجر مسلمانانونه امداداوغواړي نومهاجر مسلمان به ده سره ضرور امداد کوی، دې نه معلوم شوچه غیر مهاجر مسلمانان بیخی په کافرانوکښې حساب نکړې شوبلکه دهغوئ دا اسلامي حق ئې په ځائ پریښوچه دضرورت په وخت ددهغوئ امدادکولې شي،

هرکله چه ددې آیت شان نزول دمکې مکرمې نه مدینې منورې ته هجرت کول دی، دغه وخت غیرمهاجرمسلمانان هم هغه ووکوم چه په مکه مکرمه کښې پاتې شوی وواودغلته دکفاروپه ګیره کښې وو، ځکه داښکاره خبره ده چه دهغوئ امدادغوښتل به دکفاروپه مقابله کښې وو، اوهرکله چه قرآن کریم دغه مسلمانانوسره دامدادکولوحکم ورکړونوپه ظاهره تردا معلومیده چه په هرحال کښې دهرقوم دمقابلې دپاره دوئ سره امدادکول په مسلمانانوبانْدې لازم کړې شوی دی خواه ددغې قوم دجنګ بندئ لوظ مسلمانانوسره هم شوې وی حالانکه په اسلامي اصولوکښې، عدل اوانصاف کول اودلوظ قول پابندی کول یوه لویه ذمه داري ده، په دې آیت کښې دبیلتون داحکم هم بیان کړې شوچه مهاجرمسلمانان دپه هغه صورت کښې دغیر مهاجرو مسلمانانوامدادنه کوی چه دداسې قوم دمقابلې دپاره ئې غواړی چه د مسلمانانوسره ئې دجنګ بندئ لوظ قول کړې وی،

دادړومبودوؤآیتونودمضمون خلاصه ده اوس ئې الفاظوسره یوځائ کړئ اووې ګورئ: فرمائي: ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ کوموخلقوچه ایمان راوړرواوچاچه دالله تعالی دپاره خپل وطن، خپل خپلوان اوعزیزان پریښودل اودالله تعالی په لارکښې ئې په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاداوکړو[په مال لګولوسره ئې سامانِ جنګ واغستواومیدان جنګ دپاره ئې خپل ځانونه پیش کړل، دې نه مراداولین مهاجرین دی] [وَالَّذِينَ آوَوا وَّنَصَرُوا أُولَٰئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ] اوهغه خلق چاچه داستوګنې ځائ ورکړواومددئې ورسره اوکړو [دې نه مراد د مدینې منورې انصاردی] ددې دواړوفریقوپه باره کښې ئې داارشاداوفرمائیلو چه دوئ په خپل منځ کښې دیوبل ولیان دی، بیائې اوفرمائیل چه [وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم مِّن شَيْءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا] هغه خلق چه ایمان خوئ راوړرومګرهجرت ئې اونکړو، ستاسوهغوئ سره هیڅ تعلق نشته ترڅوچه هغوئ هجرت اونکړي،

دلته قرآن کریم د ،ولي، او ،ولایة، لفظ استعمال کړیدې چه اصلي معني ئې دوستي اوډور تعلق لرل دي، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما، حسن رحمه الله، قتاده رحمه الله، مجاهد رحمه الله وغیره دتفسیر امامانو فرمائیلې دی چه دلته دولایة نه مراد دوراثت اودولي نه مراد وارث دې اوځنوحضراتوترډ

Scanned with Ca

،،ولاية،، لغوي معنى يعني دوستي اولاس امداد کول مراد اغستی دی،
دړومبی تفسیر په جوړ د آیت مطلب داشو چه مسلمانان مهاجرین رضی الله عنهم او انصار رضی الله عنهم به خپل منځ کښې دیو بل وارثان وی د دوئ د میراث تړون به د غیر مسلم خلقو او هغه مسلمانانو سره نه وی چاچه هجرت نه وی کړې، دړومبی حکم یعنی غیر مسلمو سره د میراث تړون ختمیدل خو همیشه دپاره باقی پاتې شو او دویم حکم هغه وخت ختم شو کله چه مکه مکرمه فتح شوه، ځنې فقهاو رحمهم الله تر دا دلیل نیولې دې چه د دین په اختلاف سره د میراث تړون ختمیږی دغه شان د دارینو په اختلاف سره دغه تړون ختمیږی تفصیلی بحث د فقهې په کتابونو کښې ګورو
وړپسې فرمائی: ﴿ وَإِنِ اسْتَنْصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ چاچه هجرت نه دې کړی اګرچه هغوئ سره د میراث تړون خو ختم شو خو بیا هم مسلمانان دی که هغوئ د خپل دین د حفاظت دپاره د مهاجرو مسلمانانو نه مدد غواړی نو امداد ورکول په دوئ واجب دی خو د عدل، انصاف او د لوظ، قول پابندی پرینبول پکار نه دی، که هغوئ دیو داسې قوم په مقابله کښې تاسو نه امداد او غواړی کوم سره چه ستاسو لوظ قول [د جنګ نه کولو] شوید‌ې نو د دغې قوم په مقابله کښې د غیر مهاجرو مسلمانانو امداد کول هم جائز نه دی،
د صلح حدیبئې په موقعه هم دغه شان واقعه راپیښه شوه یعنی څه وخت چه رسول الله ﷺ د مکې کفارو سره صلح او کړه، او د صلح په شرطونو کښې داهم داخل وو چه د مکې مکرمې نه چه څوک مدینې منورې ته لاړ شی، هغه به رسول الله ﷺ واپس کوی، خاص د دغې صلح په وخت ابوجندل رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو د خپل مظلومیت داستان ئې بیان کړو او امداد ئې تر او غوښتلو ولې چه هغه رضی الله عنه دغه وخت هم د مکې مکرمې د کفارو په قید کښې وو قسما قسم تکلیفونه به ئې ورکول بیائې په څه شان سره دغه ځائ ته ځان رارسولې وو، رحمة للعالمين ته به د دې څومره درد رسیدلې وی، څومره زړه به ئې پرِ سوځیدلې وی؟ بیا هم د دې آیت د حکم مطابق ئې د هغه رضی الله عنه د امداد کولو نه عذر او کړو او واپس ئې کړو،
په دې واپس کولو سره د ټولو مسلمانانو زړونه هم خوږیدل خو رسول الله ﷺ د الله تعالی د ارشاد مطابق ګویا کښې مشاهده کوله چه اوس د دې ظلمونو کولو څه ډیر وخت نه دې پاتې، ابوجندل رضی الله عنه ته د خوورخو د صبر ثواب نور هم ملاویدل دی، وړپسې به ډیر زر مکه مکرمه فتح شی او دا ټولې قیصې به ختمې شی،
په هر حال د قرآن کریم د ارشاد مطابق رسول الله ﷺ د لوظ، قول پابندی کول د هغه رضی الله عنه د شخصی مصیبت نه غوره او ګڼړل، د اسلامی شریعت هغه امتیازی خصوصیت دې چه مسلمانان ئې په دنیا کښې د فتح، عزت او په آخرت کښې د کامیابئ مالکان ګرځولی دی، ورنه د دنیا حکومتونو خو د لوظ، قول او معاهدو د نه عموما یوه لوبه جوړه کړیده چه څه وخت لړ شان ښیګړه ورته ښکاره شی نو په قسما قسم تاویلونو کولو سره معاهده ختمه کړی او د دې الزام د نورو په سر راولی،
په دویم آیت کښې فرمائی: ﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ ﴾ او کافران خلق په خپل منځ کښې دیو بل ولیان دی] ولی لفظ یوه عامه معنی لری میراث او ړلو ته هم وئیلې شی او په معامله کښې د چا اختیار او مشرئ کولو ته هم وئیلې شی ځکه د دې آیت نه معلومه شوه چه کافران به خپل منځ کښې دیو بل وارثان ګڼړلې شی، او د میراث تقسیمول به د دوئ د خپل مذهبی قانون په جوړ کولې شی، دیتیمانو، ماشومانو ولی او د جینکو د نکاح ولی به هم د دوئ د خپل [کافر]

وی، خلاصه ئې دا شوه چه په عائلي اوخانداني مسئلو کښې به د کافرو خپل مذهبی قانون په اسلامی حکومت کښې هم محفوظ لرلې شی،

په آخر د آیت کښې فرمائی ﴿اِلَّا تَفْعَلُوْهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْاَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيْرٌ﴾ که تاسو داسې اونکړل نو په توله زمکه کښې به فتنه اولوئ فساد خورشی،

ددې جملې تعلق هغه ټولو حکمونو سره دې کوم چه ددې نه وړاندې بیان کړې شویدی، مثلاً داچه مهاجرین او انصار خپل منځ کښې دیو بل ولیان کیدل پکاردی چه پکښې دیو بل امداد کول هم داخل دی، او میراث اوړل هم ② بله داچه ددغه وخت د مهاجرو او غیرو مهاجرو مسلمانانو ترمنځه د میراث اوړلو تعلق پاتې کیدل نه دی پکار، خو سره دځه شرطونو د امداد او تعاون تعلق ددوئ ترمنځه پاتې کیدل پکاردی، ③ دریمه داچه هر کله کفار په خپل منځ کښې دیو بل ولیان دی نو دهغوئ دولی توب او میراث اوړلو په قانون کښې د مسلمانانو دخل ورکول پکارنه دی. که په دې حکمونو باندې عمل اونکړې شونو په زمکه کښې به فتنه اولوئ فساد خورشی، ددې خبرداری ورکولو غالباً وجه کیدې شی چه دلته بیان شوی احکام، عدل، انصاف او امن عامه دپاره دبنیادی اصولو شان لری، ولې چه دې آیتونو کښې دا واضح کړې شوچه خپل منځ کښې یو بل سره امداد کول او یو بل نه میراث اوړل ځنګه چې په خپلوئ بناکیږی، دغسې په مذهبی او دینی تعلق باندې هم اړه لری، بلکه نسبی تعلق نه دینی تعلق زیات غوره دې، همدغه وجه ده چې کافر د مسلمان او مسلمان د کافر وارث نشی کرځیدلې اګرچه ددوئ ترمنځه دپلار ولئ او خوئ ولئ خپلوی هم وی یاخپل منځ کښې رونړه خویندې وغیره وی، دې سره سره د مذهبی ضد، ضدانی [تعصب] د بند یزرا وستو دپاره داهدایت هم ورکړې شویدې چه مذهبی تړون اګرچه زیات مضبوط او قوی دې مګر د معاهدې [دلوظ، قول] پابندی کول دهغې نه هم وړاندې او غوره دی، د مذهبی تعصب په جوش کښې د معاهدې الوظ قول] خلاف ورزی کول جائز نه دی، داشان داهم هدایت ورکړې شوچه کفار په خپل منځ کښې دیو بل ولیان او وارثان دی دهغوئ په شخصی [ذاتی] ولی کیدو او وارث کیدو کښې دخل ورکول نه دی پکار، هسې خو دا ځو فرعی او جزئی حکمونه ښکاری مګر په حقیقت کښې ددنیا دامن دپاره دعدل او انصاف بهترین او جامع بنیادی اصول دی، هم په دې غرض دلته ددې حکمونو بیانولو نه پس په داسې الفاظو سره خبرداری ورکړې شوچه په عام ډول د نورو احکامو دپاره نه دې ورکړې شوې لکه وې فرمائیل چه: [که تاسو په دې حکمونو باندې عمل اونکړونو په زمکه کښې به فتنه اولوئ فساد خورشی. په دې الفاظو کښې دې اړخ ته هم اشاره اوشوه چه دا حکمونه دفتنو او فسادونو په بندولو کښې خاص دخل او اثر لری،

په دریم آیت کښې د مکې مکرمې نه دهجرت کوونکو صحابه کرامو رضي الله عنهم او ددوئ د مدد کوونکو انصار مدینه تعریف او صفت بیان شویدې، داهم بیان شویدی چه دا صحابه کرام رضي الله عنهم سوچه مسلمانان دی او دوئ سره دبخښنې او دعزت دروزئ وعده بیان شویده لکه فرمائی ﴿اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا﴾ هم دا خلق سوچه او پاخه مسلمانان دی؛ په دې کښې اشاره دې خبرې ته هم اوشوه چه هجرت نه کوونکی مسلمانان اګرچه مسلمانان خودی خو دهغوئ اسلام کامل هم نه دې او یقینی هم نه دې ځکه چه هغوئ منافقان هم کیدې شی چه په ښکاره د مسلمانئ دعوی

لري، وروسته فرمائي، ﴿لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ﴾ دوئ دپاره بخښنه مقرره ده] لکه په صحيح احاديثو کښې
راغلي دي،
اَلْإِسْلَامُ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ وَالْهِجْرَةُ تَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهَا، (۱) يعنې اسلام راوړل په ډيرو ډيرو [په کورو
کورو] ګناهونه ختموي اودغه شان هجرت کول ټول کړي ګناهونه ختموي،
په څلورم آيت کښې دمهاجرينو دمختلفو درجو حکم داسې بيان شويدې چه يوقسم ړومبني
[اولين] مهاجرين دي، چاچه دصلح حديبيې نه وړاندې هجرت کړې دې اودويمې درجې
مهاجرين هغه دي چه دصلح حديبيې نه روستوئې هجرت کړې دې په دې حساب به ددوئ
دآخرت ددرجو ترمنځه هم فرق وي خوددواړودنيوي حکم يوشان داسې دې چه دوئ ټول [دواړه
قسمه] خپل منځ کښې ديوبل وارثان جوړيږي چنانچه مهاجرينوته خطاب فرمائي:
﴿فَأُولَٰئِكَ مِنكُمْ﴾ يعنې دغه ددويمې درجې مهاجرين هم ستاسوپه ډله کښې شامل دي] په
ميراث اوړلو کښې هم ددوئ حکم دعامو مهاجرينوپشان دې،
دادسورت انفال بلکل آخرى آيت دې، ددې په آخر کښې دقانون دميراث يوټول اړخيزه
ضابطه بيان کړې شويده، ددې په ذريعه هغه عارضى حکم منسوخ کړې شوکوم چه دهجرت په
ابتداء کښې دمهاجرينو او انصاروترمينځه په ذريعه ديوبل وارث جوړيدوپه باره کښې جاري
شوې وو، فرمائي: ﴿وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ﴾
په عربي ژبه کښې د، اولو، لفظ دخاوند او صاحب په معنى کښې راځي،، اولوا العقل،
دعقل خاوندانوته او اولواالامر، دحکم خاوندانوته وئيلې شي، د، اولواالارحام، معنى شوه خپلوى
لرونکي. ارحام د رحم، جمع ده چه معنى ئې بچه داني ده، هرکله چه خپلوى په رحم کښې
دشريکيدوپه وجه قائميږي، په دې وجه، اولوا الارحام، خپلوانوته وئيلې شي،
دآيت معنى داشوه چه اګرکه ولايت عامه [عام ولى توب] ټول مسلمانان سره خپل منځ کښې
لري چه ددې له کبله دضرورت په وخت کښې يوبل سره لاس امدادکول هم واجبيږي اود يوبل
وارثان کيږي هم، ليکن کوم مسلمانان چه خپل منځ کښې نسبى خپلوى هم لري هغه د نورو
مسلمانانونه وړاندې دي. دلته د ﴿كِتَابِ اللَّهِ﴾ معنى [﴿حُكْمِ اللَّهِ﴾] ده [يعنې داقانون الله تعالى په
خپل حکم سره جوړکړيدې،
دې آيت داضابطه اوښوله چه ميراث ويشل دخپلوئ په پيمانه پکاردي لفظ د، [اولوالارحام مطلقا]
عامو خپلوانو دپاره استعماليږي، په دوئ کښې دخاصوخاصوخپلوانوبرخې، قرآن پخپله په
سورت نساء، کښې ټاکلې دي چه دعلم ميراث په اصطلاح کښې ورته، اهل الفرائض، يا، ذوى
الفروض، وئيلې شي په دوئ باندې دويشلونه پس پاتې شوې ميراث به ددې آيت له مخې په
نوروخپلوانوويشلې شي، اوداهم ښکاره خبره ده چه په ټولوخپلوانودچامال ويشل دچاپه وس
کښې نه دي، ولې چه لرې خپلوى دټولو انسانانو ترمنځه ځکه شته دې چه ټول ديوپلار،
مورآدم عليه السلام اوحواء بى بى اولاددي، په دې بناد خپلوانوترمنځه دميراث ويشلوعملى صورت
داهم کيدې شي چه نزدې خپلوان برخه مند، اولرې خپلوان بې برخې کړې شي ځنګه چه درسول

۱) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب كون الاسلام يهدم ما قبله وكذا الهجرة: ج ۱، ص ۷۶

الله ﷺ په احاديثو كښې ئې داسې بيان راغلې دې چه ذوى الفروضو ته د برخو وركولو نه پس پاتې شوې ميراث به په عصبۇ [د پلار په اولاد] درجه په درجه ويشلې شى نزدې عصبه به ړومبې كړې شى اولرې عصبه به ددوئ په مقابله كښې بې برخې كړې شى،

كه په عصبۇ كښې هيڅوک هم ژوندې نه وو ، هله به په نورو خپلوانو باندې ميراث ويشلې شى دعصبۇنه علاوه نوروتولو خپلوانو ته دعلم ميراث په خاص اصطلاح كښې ، ذوى الارحام ، وئيلې شى ، دا اصطلاح روستو مقرر كړې شويده خكه چه په قرآن كريم كښې لفظ د ، اولوالارحام ، د لغوى معنى په اعتبار سره ټولو خپلوانو لره شامل دې ، خواه ذوى الفروض وى كه عصبه وى او كه ذوى الارحام وى ،

بيا ددې څه تفصيل دسورت نِساء په آيتونو كښې راغلو ، دخاصو خاصو خپلوانو برخې ، الله تعالى پخپله مقرر كړې ، كوموته چه دميراث په اصطلاح كښې ذوى الفروض وئيلې شى اود نوروخپلوانو په باره كښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل:

الحِقوا الفرائضِ بِأهلِها فَمَا بَقِيَ فَهُوَ لِاولىٰ رَجلٍ ذِكَرٍ [بخارى] (۱)

[يعنى دچابرخې چه قرآن كريم مقررې كړې دى هغوئ ته چه پوره وركړې شى اوبيا هم دميراث مال پاتې شى هغه دداسې خلقوته وركړې شى چه مړى ته زيات نزدې نارينه وى]

دوئ ته دميراث په اصطلاح كښې عصبه وئيلې شى كه ديوسړى هيڅوک عصبه موجود نه وى نو درسول الله ﷺ دارشاد مطابق بيانوورخپلوانو ته هم وركولې شى كوموته چه په اصطلاح دميراث كښې ، ذوى الارحام ، وئيلې شى لكه ماما او ترور [دمور خور] وغيره شو ،

دسورت انفال ددې آخرى آيت په آخرى جملې سره داِسلامى وراثت هغه قانون منسوخ شو كوم چه په وړاندينو آيتونو كښې داشان بيان شويدې چه مهاجرين اوانصار هم ديو بل نه ميراث اوړې شى اګرچه ددوئ ترمنځه څه خپلوى نه وى ، ولې چه دهجرت په ابتداء كښې دې دپاره هنګامى حكم جارى شوې وو ،

سورة انفال ختم شو ، الله تعالى دمونږ ته پرد پوهيد واود عمل توفيق راكړى آمين ،

تمت سورة الانفال بعونِ اللهِ تعالىٰ وَحمده ليلةَ الخميس لثماني وَعشرينَ مِن جمادى الاخرىٰ ۱۳۸۰ھ

وَاسأل الله تعالى التوفيقَ والعَونَ فِي تفسيرِ سورةِ التَوبة ولِلهِ الحَمد أول واخرهٗ ،

محمد شفيع عفى عنه

وتم النظر الثانى عليه يومَ الجمعةِ لتسعة عشرمِن جمادى الاولى ۱۳۹۰ ھ والحمد الله علىٰ ذلك ،

دالله تعالى په فضل او احسان سره دسورت انفال پښتو ترجمه ختمه شوه

الله تعالى نه سوال كوم چه پاتې ټولې ترجمې كولو كښې راسره امداد اوكړى

الله تعالى لره هروخت ډيره ثنا او شكريه ده ،

---

۱) صحيح البخاری، كتاب الفرائض، باب ميراث الولد من أبيه وأمه: ج ۲، ص ۹۹۷

| ركوع گاني | | سورة التوبة مدنية وهي مائة وتسع وعشرون اية وستة عشر ركوعاً | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| ⑯ | | | | ۱۲۹ |

بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ

بیزاری ده | دطرفه دالله نه | اودرسول دهغه نه | هغه کسانوته | اچی وعده ورسره کړی ده تاسو |

دالله او د هغه د رسول د طرفه د مشرکانو هغه کسانو ته د بیزارئ اعلان دي چه تاسو ورسره معاهده

مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝١ فَسِيْحُوْا فِي الْاَرْضِ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّاعْلَمُوْٓا

د مشرکانونه | نواوګرځئ تاسو | په زمکه کښی | څلورمیاشتي | اوپوهه شئ

کړي ده | نو په زمکه [د حرم] کښي څلور میاشتي [نور] اوګرځئ | اوپه دي باندي پوهه شئ چه تاسو

اَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ مُخْزِي الْكٰفِرِيْنَ ۝٢

چی بیشکه تاسو | نه یئ عاجزه کونکی دالله | او بیشکه الله | رسواکونکي دي | دکافرانو |

الله تعالی لره عاجزه کولي نشئ [چه د هغه نه به بچ شئ] او [په دي پوهه شئ چه] الله تعالی دکافرانو رسوا کونکي دي

وَاَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ

اواعلان دي | دطرفه دالله نه | اودرسول دهغه نه | خلقو ته | په ورځ دحج اکبر

اودالله تعالی اودهغه د رسول صلی الله علیه وسلم دطرفه د حج اکبر په ورځ خلقو ته دا اعلان دي چه

الْاَكْبَرِ اَنَّ اللّٰهَ بَرِيْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۙ۬ وَرَسُوْلُهٗ ؕ فَاِنْ تُبْتُمْ

په دي خبره | چی بیشکه الله | ویزاره دي | دمشرکانونه | اورسول د هغه هم | نو که توبه اوویسته تاسو

الله تعالی او دهغه رسول د مشرکانو نه بیزاره دي | نو که تاسو [دخپل شرک او کفر نه] توبه اوویستله

فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ

نو هغه | بهتره ده | تاسو دپاره | او که مخ واړوو تاسو | نو پوهه شئ | چی بیشکه تاسو

نو دغه [توبه ویستل] به ستاسو دپاره ډیره ښه وی | اوکه تاسو [د توبي ویستلونه] ډډه اوکړه | نو پوهه شئ چه تاسو

غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ؕ وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝٣ ۙ

نه یئ عاجزه کونکی دالله | اوزیري ورکړه | هغه کسانو ته | چی انکار ئي کړي دي | په عذاب | دردناك سره

الله تعالی عاجزه کولي نشئ [چه دهغه نه به بچ شئ] اوهغه کسانوته چه کفر ئي کړي دي د درد ناک عذاب زیري ورکړه

اِلَّا الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ثُمَّ لَمْ

بغیر | دهغه کسانونه | چی تاسو وعده کړی وه دهغوئ سره | دمشرکانونه | بیاني نه دي کړي

خو هغه کسان [د جنګ نه بچ دي] چه په مشرکانو کښي ئي تاسو سره معاهده کړي وی او [د معاهدي

يَنْقُصُوْكُمْ شَيْـًٔا وَّلَمْ يُظَاهِرُوْا عَلَيْكُمْ اَحَدًا فَاَتِمُّوْٓا

کمي تاسو سره | هیڅ قدرله | اونه ئي مدد کړي دي | ستاسو خلاف | دهیچا سره | نو پوره کړئ |

کولو نه پس ئي] تاسو سره هیڅ څه کمي نه وی کړي اونه ئي ستاسو خلاف چاته مدد ورکړي وی نو د اسي

اِلَيۡهِمۡ عَهۡدَهُمۡ اِلٰى مُدَّتِهِمۡ‌ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُتَّقِيۡنَ ۝

هغوئ سره | وعده د هغوئ | دنيتې دهغوئ پورې | بيشکه الله | خوښوي | پرهيزګاران |

خلقو سره د هغوی معاهده د هغوی د نيتې پورې پوره کړئ بيشکه الله د معاهدو ماتولونه خان ساتونکي کسان خوښوي

فَاِذَا انۡسَلَخَ الۡاَشۡهُرُ الۡحُرُمُ فَاقۡتُلُوا الۡمُشۡرِكِيۡنَ حَيۡثُ

نو هرکله چې | تيرې شي | مياشتې | حرامې | نو قتل کړئ | مشرکان | هرځائې کښې چې

کله چه معززې مياشتې تيرې شي نو چه په کوم ځائې کښې مشرکان بيا مومئ نو هغوی قتلوئ

وَجَدۡتُّمُوۡهُمۡ وَخُذُوۡهُمۡ وَاحۡصُرُوۡهُمۡ وَاقۡعُدُوۡا لَهُمۡ

بيامومئ تاسو هغوئ لره | او نيسئ هغوئ | او قيديان کړئ هغوئ | او کينئ | هغوئ ته

او دوی نيسئ او قيديان کوئ ئې او په هره مورچه [د دوی د مقابلې دپاره] کينئ

كُلَّ مَرۡصَدٍ‌ ۚ فَاِنۡ تَابُوۡا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا

د ګيريدو په ځائې کښې | نو که چرې | توبه او ويسته هغوئ | او قائم ئې کړو مونځ | او ورئې کړو

نو که دوی [د شرک نه] توبه ويستله او مونځ [د شريعت د تعليماتو مطابق] قائموی او زکاة ورکوی

الزَّكٰوةَ فَخَلُّوۡا سَبِيۡلَهُمۡ‌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ۝

زکاة | نو خالی کړئ لاره دهغوئ | بيشکه الله | بښونکې | مهربانه دې |

نو د دوی لار پريږدئ [څه تعرض ورته مکوئ] بيشکه الله بښونکې او مهربان دې

## آسان ترجمه قرآن

(مسلمانانو!) دا د الله او د هغه د رسول د طرف نه د بائيکاټ اعلان دې د هغه ټولو مشرکانو خلاف چه تاسو هغوی سره معاهده کړې ده نو (اې مشرکانو!) تاسو ته څلورو مياشتو پورې اجازت دې چه تاسو (د عربو) په زمکه کښې آزادئ سره وګرځئ. او په دې خبره پوهه شئ چه الله لره تاسو نۀ شئ عاجزه کولې. او په دې خبره هم پوهه شئ چه الله اوس کافرانو لره رسوا کونکې دې او د حج اکبر په ورځ باندې دالله او د هغه د رسول د طرف نه ټولو انسانانو ته دا اعلان کولې شي چه الله د مشرکانو نه بيزاره دې. او د هغه رسول هم. اوس (اې مشرکانو!) که تاسو توبه وباسئ نو دا ستاسو په حق کښې بهتره ده او که تاسو (اوس هم) مخ واړولو نو ياد ساتئ چه تاسو الله لره نه شئ عاجزه کولې. او ټولو کافرانو لره د يو دردناك عذاب خبرې ورکړه البته (مسلمانانو!) چه کومو مشرکانو سره تاسو وعده کړې ده. بيا هغوی تاسو سره وعده کښې څه کوتاهي نه ده کړې او ستاسو خلاف ئې د چا مدد هم نه دې کړې. هغوی سره د دغه شوې معاهدې موده پوره کړئ بې شکه الله احتياط کونکو سره محبت کوي پس چه کله د عزت والا مياشتې تيرې شي نو دې مشرکانو لره (چه هغوی تاسو سره وعده خلافي کړې ده) کوم ځائ هم چه ومومئ نو ووژنئ. او ونيسئ ئې او ګير ئې کړئ. او دوی لره د نيولو د پاره هر يوه مورچه کښې کينئ خو که دوی توبه وباسي او د مونځ پابندي کوي او زکوٰة ورکوي نو د هغوی لاره پريږدئ — يقيناً الله ډير بخونکې ډير مهربانه دې.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسير

﴿بَرَآءَةٌ مِّنَ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى الَّذِينَ عٰهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ دالله ﷻ دطرفنه او دهغه د رسول ﷺ د طرفنه دهغې مشركانو [دوعدې] نه لاس اخستل دي چاسره چې تاسو [دميعاد ټاكلو نه بغير] وعده كړې وه [او دا د دريمې ډلې حكم دې ددې ډلو تفصيل په معاف اومسائل كښې را روان دې] او [دڅلورمې هغې ډلې حكم ترې هم په ښه شان سره معلوم شو چې چا سره ستاسو هيڅ وعده ،قول نه وو، يعنې چې كله دهغې خلقو نه امان پورته شو چا سره چې وعده شوې وه نو چا سره چې د سره وعده نه وه شوې هغوئ كښې خو اول د سره د امن څه احتمال نشته] نو [دغې دواړو ډلو ته خبر وركړئى چې] ﴿فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ﴾ تاسو خلق په دې زمكه كښې څلور مياشتې اوګرځئ راوګرځئ [په دې غرض درته اجازت دې چې خپله موقعه او پناه اولټوئ] ﴿وَاعْلَمُوا﴾ او [دې سره] په دې [هم] ځان پوهه كړئى چې [ددې مهلت په بركت يوازې د مسلمانانو دلاسه بچ كيدې شئ ليكن] ﴿أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللهِ﴾ تاسو الله ﷻ نه شئ عاجزه كولې [چې دهغه د ګرفت نه به ګنى اووتې شئ] او په دې [هم پوهه شئى] ﴿وَأَنَّ اللهَ مُخْزِي الْكٰفِرِينَ﴾ چې بيشكه الله ﷻ به [آخرت كښې] كافران رسوا كوى [يعنى عذاب به وركوى . آزاد ګرځيدل ئې دې نه نشى بچ كولې په دنيا كښې د وژلو احتمال ئې بيله خبره ده په دې كښې ئې توبې ته شوق پيدا كول دى] او [د رومبئ ډلې حكم دادې چې] ﴿وَأَذٰنٌ مِّنَ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ﴾ د الله ﷻ اود هغه درسول ﷺ د طرفنه د حج په تاريخونو كښې دعامو خلقو په مخكښې اعلان كولې شي ﴿أَنَّ اللهَ بَرِيٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُ﴾ چې الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ دواړه [دڅه نيتې ټاكلو نه بغير اوس هم] لاس اخلى ، دې مشركانو [ته د امن وركولو نه [چا چې پخپله وعده خلافى كړې ده مراد ترې رومبئ ډله ده مګر] بيا [هم دوئ ته وئيلې شى چې] ﴿فَإِن تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ كه تاسو [دكفر نه ] توبه اوكړئى نو دا تاسو لره [په دواړو جهانونو كښې] غوره دى [په دنيا كښې خوځكه چې ستاسو وعده خلافى كول به معاف كړې شى او د وژلو نه بهٔ بچ شئ او ښكاره خبره ده چې په آخرت كښې به خلاص يئ] ﴿وَإِن تَوَلَّيْتُمْ﴾ او كه تاسو مخ واړولو ﴿فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللهِ﴾ نو دا يقين لرئ چې تاسو به الله ﷻ عاجز نه كړې شئ [چې بهر وتلو سره به چرته اوتښتئ] او [الله ﷻ د عاجز كولو نه دبې وسئ تفسير دادې چې] ﴿وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ دې كافرانو ته د يوې دردناكې سزا خبر وركړه [چې آخرت كښې به وركولې شى چې يقينې ده او د دنيا احتمالى سزا به بيله وى ، مطلب دا شو كه مخ اړوى نو سزا به بيا مومئ] ﴿إِلَّا الَّذِينَ عٰهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ مګر هغه مشركان دې [امان پورته كولو او لاس اخستلو] لاندې نه راځى چا نه چې تاسو لوظ واخستو ، ﴿ثُمَّ لَمْ يَنقُصُوكُمْ شَيْـًٔا﴾ بياهغوئ [په لوظ سرته رسولو كښې] تاسو سره لږ كمې اونه كړو ﴿وَلَمْ يُظٰهِرُوا عَلَيْكُمْ أَحَدًا﴾ اونه ئې ستاسو په مقابله كښې [ستاسو] دچا [دښمن] مدد اوكړو [دې نه مراد دويمه ډله ده] ﴿فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَىٰ مُدَّتِهِمْ﴾ نو ددوئ لوظ ددوئ د [مقرر] مودې پورې سرته اورسوئ [او بې لوظى څكه مه كوئى چې] ﴿إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ﴾ واقعى الله ﷻ [دبې لوظئ نه] احتياط كوونكو لره خوښوى [كه تاسو احتياط كوئى نو د الله ﷻ په نزد به تاسو هم په خوښو خلقو كښې راشئ ، وروسې اولې ډلې دحكم تتمه ده

Scanned with Ca

چې] هر کله دوئ ته هيڅ مهلت ورکول نشته نواګر چې دوئ سره دجنګ کولو ګنجائش کيدې شو خو د محرم ترختميدو پورې مياشتو حرامو کښې جنګ کول بند دی] نو[ددې د تيريدلو انتظار اوکړئی او] ﴿فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ﴾ کله چې مياشتې حرامې تيرې شی نو[دغه وخت] ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ﴾ دامشرکان [يعنی اوله ډله ئې] چې چرته بيا مومئ وې ﴿وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ﴾ وې نيسئ ترئ او د ښارنې په ځايونو کښې د دوئ په ګت کښې کينئ [يعنی په جنګ کښې چې څه څه کيدې شی دهغې ټولو اجازت دی] ﴿فَإِن تَابُوا﴾ بيا که دوئ [د کفرنه] توبه کړی او[د اسلام کارونو کولو ته را واوړی لکه] ﴿وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ﴾ مونځونه کول شروع کړی ، زکوة ورکوی ﴿فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ﴾ نو ددوئ لار پريږدئ [يعنی وژل اوبندول ئې ځکه مه کوئی چې] ﴿إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ واقعی الله ﷻ لوئې بخښونکې ، لوئې رحم کوونکې دې [ځکه ئې دداسې کس کفر او بخښلو او ددوئ ځان ئې بچ کړو او هم دا حکم به د نورې ټولې ډلې وی کله ئې چې نيتې تيرې شی].

## معارف اومسائل

داشروع کيدونکې سورت ① براءت سورت توبه هم نوميږی، ځکه چه دې کښې دکفارونه د ① براءت [ويزارئ] اودمسلمانانود ② توبې قبلېدوبيان دې [مظهری][1] ددې سورت خصوصيت دادې چه يواځې ددې سورت په اول سرکښې بسم الله نشی ليکلې اودقرآن کريم د نورو ټولو سورتونو په سرکښې بسم الله ليکلې شی، وجه ئې داده چه قرآن کريم په درويشت کاله کښې په وار وار نازل شوې دې، په دې شان دهرسورت آيتونه به هم په واروارنازليدل، دالله تعالی دحکم مطابق به وحی رارسولوسره داهم ښودلې شوچه داآيت فلانی آيت پسې لګول دی اوهم دهغې په جوړبه رسول الله ﷺ وحی ليکونکوته دهغې دليکلو هدايت کولو. په دې ډول به چه يو سورت ختم شونودبل سورت په شروع کښې به بسم الله نازليده، سورة توبه دټولونه آخری نازليدونکې سورتونو کښې دې، ددې په اول کښې بسم الله نازله نه شوه اودوحی ليکونکوته رسول الله ﷺ هم ددې دليکلو هدايت اونکړواوهم په دې حال کښې هغوئ ﷺ وفات شو، دقرآن جمع کوونکی حضرت عثمان غنی ﷜ چه دخپل خلافت په زمانه کښې قرآن کريم راغونډ کړو نوصرف دسورة توبه په شروع کښې بسم الله نه وه، هغوئ ﷜ سره دا انديښنه پيدا شوه چه که داځان له مستقل سورت نه وی نوبيادبل کوم سورت برخه کيدې شی، مضامينوته ئې چه اوکتل نودسورت انفال مضمونونوسره ئې سمون اوجوړښت خوښ لو ځکه ئې هم دې سورت پسې هم ددې دبرخې په حيثيت اولګولو،

حضرت عثمان غنی ﷜ نه په يوروايت کښې داهم راغلی دی چه د رسول الله ﷺ په زوند مبارک کښې به دې دواړوسورتونو [سورة انفال اوسورة توبه] ته قرينتين [دوه يوځائ] سورتونه وئيلې کيدل [مظهری][2] په دې وجه دا د سورة انفال نه پس راوړلې شو. دا احتياط په وجه اوکړې شو چې که د بل سورة حصه وی نو هغې سره نه دې پکار ، مګر احتمال دا هم وو چې جدا مستقل سورة وی ، په دې وجه په ليکلو کښې دا صورت اختيار کړې شو چې د سورة

[1]) التفسير المظهري في ابتداء سورة التوبة: ج ۴، ص ۱۳۱
[2]) حاشيه التفسير المظهري في ابتداء سورة التوبة: ج ۱، ص ۱۳۱، وكنز العمال رقم الحديث: ۴۷۷۰

انفال په ختمیدو او د سورة توبه د شروع کیدو څخه مخکښې څه خالي ځائې پریښودلې شی لکه څنګه چې عامو سورتونو کښې بسم الله دپاره ځائې وی.

دسورت توبه په شروع کښې دبسم الله نه لیکلو داتحقیق پخپله دجامع قرآن حضرت عثمان غنی رضی الله عنه نه په ابی داؤد، نسائی، مسند امام احمد رحمه الله او ترمذی کښې، دمفسر قرآن حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د یو سوال په جواب کښې منقول دی، دغه سوال کښې دا هم راغلی وو چه، هر کله دقرآن کریم دسورتونو ترتیب داسې ایښودلې شوې دې چه اول هغه سورتونه کیښودې شو کوم کښې چه دسلونه بره آیتونه دی او په اصطلاح کښې ورته مئین وئیلې شی ورپسې هغه لوئ سورتونه کیښوې شو چه دسلونه کم آیتونه لری او مثانی نو میږی ورپسې هغه سورتونه کیښودلې شو چه مفصلات ورته وئیلې شی، ددې ترتیب په لحاظ پکار داؤ چه سورت انفال دسورت توبې نه روستو کیښوې شی څکه چه دسورت توبه آیتونه د [۱۰۰] سلونه زیات او سورت انفال آیتونه د [۱۰۰] سلونه کم دی، دغه شان د اول سرپه [۷] اؤوا وږدو [سبع طوال] سورتونو کښې دسورة انفال په ځائې سورة توبه ایښوول زیات مناسب دی، بیا څه وجه ده چه سورة انفال رومبې او سورة توبه ورپسې کیښوې شو؟

حضرت عثمان غنی رضی الله عنه اوفرمائیل چه دا ټولې خبرې صحیح دی لیکن دقرآن کریم په معامله کښې داحتیاط نه کار واغستلې شوولې که سورت توبه مستقل سورت نه وی بلکه دسورت انفال برخه وی نو دا خوښکاره خبره ده چه دسورت انفال آیتونه رومبې نازل شویدی او دسورت توبه آیتونه ترروستو نازل شویدی څکه ئې دسورت انفال په آیتونو باندې وړاندې کول بغیر دوحی نه روانه دی، او دوحی له مخې مونږته دغسې څه هدایت نه دې کړې شوې، څکه سورت انفال وړاندې او سورت توبه روستو کړې شو،(۱)

ددې تحقیق نه معلومه شوه چې د سورة توبه په شروع کښې د بسم الله نه لیکلو وجه داده چې ددې خبرې احتمال شته دې چه سورت توبه دځان له سورت نه بلکه دسورت انفال جزوی څکه به ددې په سر کښې بسم الله لیکل داسې نادرسته وی څنګه چه دسورت په منځ کښې ئې لیکل نادرسته وی،

په دې بنا فقهاؤ صاحبانو رحمهم الله فرمائیلی دی چه څوک دسورت انفال تلاوت کوی او ختم ئې کړی ورپسې سورت توبه شروع کوی نو بسم الله دنه وائی البته که څوک دسورة توبه اول سر یا د منځ نه تلاوت شروع کوی نو بسم الله لوستل پکار دی. ځنې ناواقفه خلق وائی چه په سورت براءت کښې بسم الله لوستل هډو جائز نه دی، دا یو غلطی ده او بله غلطی پردپاسه دا هم کیدې شی چه ددې سورت په اول سر کښې خلق، أعوذ بالله من النار الخ، وائی، چه هیڅ ثبوت ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او دصحابه کرامو رضی الله عنهم نه نشته،

او دحضرت علی رضی الله عنه نه چه دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په روایت منقول دی چه دسورت براءت په اول سر کښې بسم الله لوستل څکه نشته چه په دې کښې کفارو سره د کړی لوظ، قول ختمیدل بیان شویدی او بسم الله الرحمن الرحیم. امان.(۲) دې نو دا یو داسې لطیفه او باریکه نقطه

(۱) سنن ابي داود، كتاب الصلاة، باب من جهرها (البسملة) ج ۱، ص ۱۱۳، وجامع الترمذي، أبواب التفسير، باب سورة التوبة: ج ۲، ص ۱۳۹، ومسند أحمد رقم الحديث: ۵۰۹، مسند عثمان بن عفان رضي الله عنه۔

(۲) المستدرك للحاكم، باب تفسير سورة التوبة رقم الحديث: ۳۲۳۱

ده چه اصلي سبب سره بې سمونه نه ده يعني اصلي سبب خوئې دا دوچه سورت براءت دسورت انفال يوه برخه كيدې شي چه هركله په دې سورت كښې كفارونه ويزاره كيدل او امان ترې پورته كيدل بيان شويدی ځكه ئې په اول سر كښې بسم الله ليكل مناسب نه شو چه دبسم الله دنه ليكلو په تكويني اسبابو كښې حسابيږي،

دسورت توبه ددغه آيتونو په پوره مطلب باندې دځان پوه كولو دپاره په هغه واقعاتو باندې ځان پوهول ضروري دي دكوموپه وجه چه داآيتونه نازل شويدي، چنانچه اوس ددې واقعاتو لنډ تفصيل ليكلې شي

① په پوره سورة توبه كښې د څو غزواتو او ددې متعلق د واقعاتو او ددې په ضمن كښې د ډيرو احكامو او مسائلو بيان شوې دې. لكه د عربو ټولو قبيلو سره معاهدې ختمول. فتح مكه ، غزوهٔ حنين ، غزوهٔ تبوك ، دې واقعاتو كښې فتح مكه ټولو ځخه وړاندې په كال اتمه هجرئ كښې بيا غزوهٔ حنين هم په دې كال كښې ، بيا غزوهٔ تبوك په رجب كال اوومه هجرئ كښې ، بيا د عربو ټولو قبيلو سره د معاهدو د ختمولو اعلان په ذی الحجه كال نهمه هجرئ كښې اوشو.

② نبذ عهد يعني دلوظونو ختمولو متعلق چې كوم مضمونونه په دې آيتونو كښې بيان شويدي د هغې خلاصه ئې داده چه په شپږمه هجرئ كښې رسول الله ﷺ دعمرې په اراده تشريف يوړو نو دمكې قريشو دننه مكې ته پرې نښودو. او د حديبيه په مقام باندې يې دوئ سره صلح اوشوه. دروح المعاني په مطابق ددې صلح ميعاد لس كاله وو،[۱] مكه كښې دقريشونه علاوه نورې قبيلې هم وې، دصلح يوه دفعه داهم وه چه د قريشو ځخه علاوه نورو قبائلو كښې چې د چا خوښه وی هغوئ دې د قريشو حليف او ملګرى جوړ شي او چې د چا خوښه وی هغوئ دې د رسول كريم ﷺ حليف جوړ شي. په دې بنا بنوخزاعه قبيلې رسول الله ﷺ سره لوظ قول اوكړو او دوئ سره شو. اوبنوبكر قبيله قريشوسره شوه. ددې معاهدې مطابق دا لازمى وو چې لسو كالو پورې به دغه ټولې ډلې به خپل منځ كښې جنګ نه كوى اونه به بل چا سره په جنګ كولو كښې مددوركوى، او چې كومه قبيله چا سره ده هغوئ هم په دې شرط كښې داخل دى.

چې په هغوئ حمله كول يا حمله كوونكى سره مدد كول به د معاهدې خلاف ورزوى وى. دالوظ، قول [دحديبئ] په [۶هـ] كښې اوشو په راتلونكى كال [۷هـ] كښې رسول الله ﷺ دعمرې قضا اوړلو دپاره مكې مكرمې ته تشريف يوړو ،درې ورځې هلته تيكاؤشو اوددغه لوظ، قول په جوړ بيا راوا پس شو ،تردغه وخته پورې دهيڅ يو فريق د اړخه دلوظ، قول هيڅ خلاف ورزى نه وه شوې،دې نه پس چه پنځه مياشتې تيرې شوې نوبنوبكر قبيلې په بنى خزاعه قبيلې باندې دشپې چپاؤ اوكړو ، قريشو هم بنى بكر قبيلې ته دځوانانو اووسلې امداد په دې خيال وركړو چه رسول الله ﷺ ډيرلرې دې،دشپې ددې واقعې تفصيلات ورته وررسيدل مشكل دى،ددې حالاتو او واقعاتو مطابق چې هغوئ لره بالآخر قريشو پخپله هم اومنله دصلح لوظ، قول مات شو ،په صلح حديبيه كښې دلسو كالو شوې جنګ بندې ختمه شوه.بنوخزاعه قبيلې رسول الله ﷺ په دې ځكه خبر كړو چه حليفان ئې وو ،دقريشو په دې لوظ ماتولو سره

---

[۱] روح المعاني، تفسير سورة الفتح: ج ۲۶، ص ۲۲۲

هغوئ ﷺ د قریشو په خلاف، دجنګ تیاري په پټه شروع کړو،

د. بدر. احد. او احزاب په غزاګانو کښې قریشو دالیدلي ووچه مسلمانانو سره غیبي او خدائي طاقت هم ملګرې دی ځکه ئې نشه اوغرور مات شوي وو، ددې عهد شکنئ په وجه ورسره دمسلمانانو دارخه دجنګ خطره پیدا شوې وه، رسول الله ﷺ د اطلاع رسیدلو باوجود په دې باندې مکمل خاموش پاتې کیدلو سره داخطره نوره هم زیاته شوه، ځکه ئې اباسفیان مدینې منورې ته اولیږلو چه په جاج اغستو سره ئې د رسول الله ﷺ ارخه دجنګ خطره که بیاموندله، نو په تیره شوې واقعه دورته عذرپیش کړی او معاهده [لوظ، قول] ددنوی سره تازه کړی،

ابوسفیان مدینې منورې ته په وررسید و دمسلمانانو دجنګي تیارئ په اندازېوه شو، نو وارخطا شو، هریو مشر صحابي ته ځان ځان له ورغې ورته ئې خواست اوکړوچه رسول الله ﷺ ته ددمعاهدې دنوې کولو سفارش اوکړی، خو تولو ددوئ قریشو دناکړدو او تریخو معاملاتو په وجه دسفارش کولو نه انکار اوکړو، په دې شان ابوسفیان نامراده واپس راغې او په قریش مکه باندې ویره غالبه شوه. بل خوا رسول الله ﷺ دبدایه، او، ابن کثیر دروایت مطابق په، ۱۰ رمضان [۸هـ] مدینې منورې نه سره دګنړو صحابه کرامو ﷺ مکې مکرمې ته کوچ اوکړو، په مکه مکرمه ئې چپاؤ اوکړو او آخرئې فتح کړه،([1])

**دفتح مکه په موقعه راګیرکړو دښمنانوسره بې مثله نه سلوك شول:** ددغې فتح په موقعه د قریشو ډیر سرداران چه رومبې نه ئې داسلام دحقوالی یقین لرلو خو دخپل قام قبیلې دویرې ئې اسلام نشو قبلولې، هغوئ هم اسلام راوړلو او څوک چه بیاهم په خپل کفرباندې ټینګ پاتې شو سوا د یو څو کسانو نه ورته رسول الله ﷺ دسر و مال امان ورکولو سره دخپلو پیغمبری او معجزانه اخلاقو هغه ثبوت ورکړوچه دنورهیچاپه باره کښې ئې خیال هم نشي کیدې، ددوئ ټول کړی ظلمونه دښمنئ او بې رحمئ ئې بیخي شاته اوغورځولې او وې فرمائیل چه، زه په نن تاسو ته هم هغه خبره کوم کومه چه یوسف ﷺ خپلو رونړو ته هغه وخت کړې وه چه سره دوالدینو دحضرت یوسف ﷺ خواته مصر ته رارسیدلی وو، وې فرمائیل:

لَاتَثْرِيبَ عَلَيكُمُ الْيَوْمَ، [ستاسو دزور، ظلم بدله اغستل یا څه سزا درکول خو لاڅه کوئ مونږ ستاسو ملامته کول هم نه خوښوؤ]

**دفتح مکه په موقعه دکفارواومشرکانو څلور قسمونه اودهغې احکام:** هر کله چه دمکې مکرمې دفتح کیدو په وجه پرِ د مسلمانانو پوره قبضه اوشوه، دمکې او دخواشاؤ غیر مسلمو خلقو ته دسرومال امان ورکړې شو دغه وخت دغیر مسلمو څو قسمونه وو،

① یو قسم هغه خلق ووچه دصلح حدیبیې خلاف ورزی ئې کړې وه او پخپله ئې هغه ماته کړه او په نتیجه کښې ئې مکه مکرمه فتح شوه،

② دویم قسم هغه خلق ووچه تریوې خاصې نیتې پورې ورسره لوظ پاتې شوې وو او په هغې ټینګ پاتې شولکه دبنی کنانه، دوه قبیلې بنی ضمره او بنی مدلج شوچه تریوې خاصې نیتې پورې ورسره صلح شوې وه او دسورتِ براءت دنازلیدو په وخت دخازن په قول په دغه نیته کښې

⑨ نهه میاشتې پاتې وې،

---

[1]) البداية والنهاية: ج ۴، ص ۳۳۶، والتفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۱۳

Scanned with Ca

③ دریم قسم هغه خلق ووچه صلح ورسره شوې وه خو خاص نیټه پکښې ورسره نه وه ایښودې شوې، ④ څلورم قسم هغه خلق ووچه هیڅ قسم معاهده او لوظ ،قول ورسره نه وو شوې،
دمکې مکرمې دفتح کیدونه وړاندې څو مره مشرکانو یا اهل کتابو سره چې د رسول الله ﷺ معاهده شوې وه دهغې تجربه داسې شوې وه چه هر څل هغوئ په ښکاره او په پټه لوظونه مات کړی وو ،دښمنانو سره ئې سازباز کړې وو ترڅپله وسه ئې رسول الله ﷺ او مسلمانانو ته دنقصان رسولو کوششونه کړی وو ،ددې تجربو په بنیاد هغوئ ﷺ دخدائی اشارو په مطابق دا فیصله اوکړه چه بیا به هیڅ قسم کافرانو ددې ځائ سره دصلح معاهده نشي کولې او جزیرة العرب به د اسلامی قلا په حیث یواځې مسلمانانو د پاره مخصوص کړې شي ددې تقاضا دا وه چه په مکه مکرمه او جزیرة العرب باندې دقبضې راوستو سره سمدستی دا اعلان شوې ووچه غیر مسلم خلق د تول ددې ځائ نه بل خوا لاړ شی لیکن د اسلامی اصولو ،د اسلامی عدل او انصاف د رحیمانه سلوک او درحمة للعالمین دعام رحمت له مخې بې دڅه نیټې ورکولو نه دغسې کول مناسب نه وو ،په دې بناد سورتِ براءت په شروع کښې ددې څلورقسمه غیر مسلمو خلقو بیل بیل حکمونه نازل شو ،

① رومبی خلق د مکې هغه قریش ووچه پخپله ئې صلح حدیبیه ماته کړه ،دوئ دا حق نه لرلو چه نوره ډیل ورکړې شی ،خو اوس د [اشهرِ حرم] زمانه وه په کومو کښې د الله تعالی له طرفه جنګ کول منع شوی وو نو ددوئ په باره کښې دسورة توبه د پنځم آیت دا حکم نازل شو ، ﴿فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ﴾ حاصل ئې دا شو چه دا خلق دهیڅ قسم رعایت کولو حقدار ځکه نه دی چه په مخه ئې لوظونه ،صلح او جنګ بندئ ماتې کړیدی ،خو د [اشهرِ حرم] لحاظ ساتل ضروری دی په دې وجه د [اشهر حرم] په ختمید وسره دِ ① سمدستی د جزیرة العرب نه ووځی ،② مسلمانان دشی ③ ګنی جنګ به ورسره کولې شی ،
② دویم قسم هغه کافران خلق ووچه یوې خاصې نیټې پورې ورسره صلح شوې وه او هغوئ ټینګ ووځه وړانې ئې نه وو کړې ،ددوئ حکم دسورة توبه په څلورم آیت کښې داسې راغلې دی ﴿إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ لَمْ يَنقُصُوكُمْ شَيْئًا وَلَمْ يُظَاهِرُوا عَلَيْكُمْ أَحَدًا فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَىٰ مُدَّتِهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ﴾ [یعنی کومو مشرکانو چه تاسو سره دصلح لوظ او کړو بیائې په دې لوظ باندې ټینګ پاتې کید وکښې هیڅ کمی اونکړه اونه ئې ستاسو په مقابله کښې ستاسو دیو دښمن مدد اوکړو نو تاسو ورسره دغه لوظ ترڅپلې مودې پورې پوره کړئ ،ولې چه الله تعالی احتیاط کوونکی خوښوی] دا حکم دبنی ضمره او بنی مدلج ووچه ددې له مخې ورته [۹] نهه میاشتې ډیل ملاؤ شو ،

د ③ دریمې او ④ څلورمې ډلې دواړو هم یو حکم راغلو کوم چه دسورة توبه په رومبی او دویم آیت کښې دا شان راغلې دې ،
﴿بَرَاءَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ۝ فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ مُخْزِي الْكَافِرِينَ ۝﴾ د الله تعالی او دهغه د رسول ﷺ له اړخه دهغه مشرکانو نه دلاس اغستو اعلان دې کومو سره چه تاسو معاهده کړې وه ،نو تاسو خلق په دغه سرزمین کښې څلور میاشتې او ګرځئ راؤ ګرځئ او په دې خبره پوه کړئ چه تاسو الله تعالی لره نشئ عاجز کولې او دا چه بیشکه الله

تعالی به کافرانو لره رسوا کوی] .غرض دا چه دړومبی او دویم آیت له مخې هغه ټولو کافرانو خلقو ته دڅلورومیاشتو ډیل ورکړې شو کوموسره چه دیوې خاصې نیتې پورې لوظ ،قول شوې وو ،یاورسره بیخی څه لوظ ،قول نه ووشوې ،

دڅلورم آیت له مخې هغه کافرانوخلقوته دنیتې دختمیدوپورې ډیل ورکړې شوچاسره چه تریوې خاصې نیتې پورې لوظ شوې وو ،دپنځم آیت له مخې مشرکانودمکې ته د ،اشهرحرم، دختمیدوپورې ډیل ورکړې شو ،

**کفاروسره دامهرباني اوکړې شوه چه سره دنیتې ختمیدوهم ورته ډیل ورکړې شو ؟** ددې حکمونوجاری کیدل اوډیل شروع کیدل دهغه وخت نه تجویزشوچه ددې اعلان په ټولوعربو کښې اوکړې شوددې عام اعلان کولوانتظام داسې اوشوچه دنهمې هجرۍ دحج په ورځو کښې دمنی اوعرفات په عامواجتماعاتو کښې ددې اعلان اوکړې شی چه ذکرئې دسورة توبه په دریم آیت کښې داسې راغلې دې ﴿وَأَذَانٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ أَنَّ اللَّهَ بَرِيءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ۙ وَرَسُولُهُ ۚ فَإِن تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ ۗ وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ [یعنی دعامو خلقوپه وړاندې عام اعلان دې دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ له اړخه دلوئ حج په تاریخونو کښې ددې خبرې چه الله تعالی اورسول ئې دواړه ،لاس اخلی دمشرکانونه ،بیاموکه توبه اوکړه نو تاسو دپاره ډیرغوره دی اوکه تاسو مخ واړولونوپه دې څان پوه کړئ چه خدائ تعالی به عاجزنکړې شئ اودې کافرانوته دیودردناک عذاب خبرواؤروه]

**کفاروسره چه معاهده ختمه کړې شي نودعام اعلان کولواوټولولره دخبردارکولواوهسې بیارولونه بغیردهغوئ خلاف څه عمل کول درست نه دی:** چنانچه دالله تعالی په دې حکم باندې دعمل کولوپه خاطر د[۹ هـ] په حج کښې حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه اوعلی المرتضی رضی الله عنه لره رسول الله ﷺ مکې مکرمې ته په دې غرض اولیږل چه هلته دعرفات اومنی په میدانونو کښې دااعلان اوکړی چرته به چه دعربوټول قبائل راجمع کیدل ،ولې چه هم ددې لوئ ټولنې په ذریعه ټولوعربوته ددې حکم رسیدل لازمی وو ،سره ددې نه دزیات احتیاط په غرض دحضرت علی رضی الله عنه په ذریعه په یمن کښې هم ددې خصوصی اعلان اوکړې شو ،

ددې اعلان له مخې پکارداوچه دمکې مشرکان دد[اشهرحرم ،[یعنی دمحرم [۱۰ هـ] په ختمیدو ددغې حدودونه بهرته په کډه لاړشي ،دویم قسم کافران دد[۱۰ هـ] درمضان شریف په ختمیدو اودریم ،څلورم قسم کافران دد[۱۰ هـ] ربیع الثانی په ختمیدوسره دغې حدودونه بهر ته کوچ اوکړی ،څوک چه په دې عمل اونکړی هغوئ سره به جنګ کولې شی ،په داسې شان به دراتلونکې کال دحج ترزمانې پورې هیڅوک کافران په دغې حدودو کښې تیکاؤپاتې نشی چه بیان ئې دسورة توبه په اته ویشتم آیت کښې راروان دې فرمائی ﴿فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا﴾ یعنی دموجوده کال نه پس به داخلق دمسجدحرام خواته نشی ورتلې] چنانچه درسول الله ﷺ ددې ارشاد: لَا يَحُجَنَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ ،([1]) مطلب هم دغه دې .په دې شان دسورة توبه داولنوپنځو آیتونوتفسیر دواقعاتوپه رڼاکښې مخې ته راغلو ،

---

[1]) صحيح البخاري، كتاب التفسير سورة التوبة، باب قوله تعالى الا الذين عٰهدتم من المشركين : ج ۲، ص ۶۷۱

**ددې پنځو آيتونو په باره کښې څو مسئلې او فائدې:** ① رومبۍ داچه د مکې مکرمې د فتح نه پس د مکې قريشو او نورو دښمنو قبيلو سره د معاف کولو د هغوئ په بدو دخپې راښکلو او د رحم و کرم کوم سلوک چه او کړې شو په دې سره مسلمانانو ته عملی ډول درس ورکړې شو چه کله ستاسو دښمن ستاسو په قابو کښې راشي، ستاسو په وړاندې بې وسه او پاتې راشي، نو هغوئ نه د تيرو شوؤ دښمنو او ضرر رسولو بدله مه اخلئ بلکه د معاف کولو او مهربانئ نه کار اخلئ او د اسلامي اخلاقو ثبوت ورکوئ، اګرچه په داسې کولو سره طبعي جذبات تر پښو لاندې کول دی خو په دې کښې ځوغتې فائدې شته، يو فائده خپل ځان دپاره داده چه په بدلې اغستو سره اګرچه غصه سړه شي، فوري طور زړه ته څه آرام حاصل شي، خو دا بيا هم فنا کيدونکې دې، د دې په مقابله کښې هغه څه کول ددې نه په هر شان زيات او دائيمي دی په کومو سره چه د الله تعالى رضا او د جنت لوړې درجې ملاويږي، دعقل تقاضا هم داده چه د دائيمي ځيزونو ته دفاني ځيزونو نه زيات غوره او ګنړلې شي. ② دوئيمه داچه په دښمن باندې د قابو موندلو نه پس دخپلې غصې جذبات قابو کول ددې ثبوت دې چه د دوئ جنګ دخپلو ځانونو دپاره نه بلکه خالص د الله تعالى دپاره وو، او دا هغه اعلى مقصد دې چه د اسلامي جهاد او دعامو بادشاهانو په جنګ کښې بيلتون ځرګندوي، او د جهاد او فساد پوره فرق ښکاره کوي، مطلب داچه کوم جنګ د الله تعالى د رضا حاصلولو او د هغه داحکامو جاری کولو دپاره وی هغه جهاد دې ورنه فساد.

③ دريمه فائده ئې داده چه کله دښمن په قابو کښې راشي، ماتې او خوری او د مسلمانانو غوره اخلاق ويني ګوری نو د شرافت تقاضا داده چه اسلام او مسلمانانو سره به ئې مينه پيدا کيږي کومه چه د کاميابئ کنجي ده او هم دغه د جهاد اصلي مقصد دې.

**د کفارو معاف کول او په بدوئې خپه رانکل دامعنی نه لري چه کښې د دوئ د ضررنه ځان ساتلو انتظام هم نه کولې:** ④ ددې آيتونو نه دوئيمه دا مسئله معلومه شوه چه د عفو او کرم دا معنى نه ده چه کنې د دښمن د شرم نه د خپل حفاظت هم نه کوي او دوئ د داسې آزاد پريږدی چه په مخه مسلمانانو ته ضررونه او نقصانونه رسوي بلکه د عفو او کرم کولو سره د عقل تقاضا داده چه د تيرو شوؤ تجربو نه آئنده ژوند دپاره سبق حاصل کړی او هغه ټولې رکاوټونه بندې کړی د کومو نه چه د دوئ پخپله د دښمنانو په ګټ کښې راتلې شي، په دې وجه د رسول الله ﷺ حکيمانه ارشاد دې چه، لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ مَرَّتَيْنِ،(۱) يعنى عقلمند انسان د يو سوری نه دوه کرته نشي چيچلې کيدې] مطلب داچه يو ځل يو انسان لره د يو سوری نه زهر جن ځيز [مار، لړم وغيره] او چيچی هغې ته دوباره لاس نه وراوړی.

په [۹هـ] کښې د قرآن کريم دا اعلان کول چه الله او رسول ﷺ ئې د مشرکانو نه ويزاره دی حرم شريف د حدودو خالی کولو دپاره په ډيل او اطمينان سره د خالی کولو هدايت ورکول ددې حکمت عملی ثبوتونه دی.

③ د سورة توبه د شروع د آيتونو نه ③ دريمه فائده دا معلومه شوه چه کمزورو قومونو ته بې د څه ډيل ورکولو نه داحکم ورکول چه فلانی ځائ ته او وځئ، يا پرېږه يو ځل حمله کول بزدلی او غير شريفانه فعل [کار] دې، کله چه د داسې کولو اراده وی نو رومبې عام اعلان کول پکار وی، او ښه

---

(۱) صحيح البخاري، كتاب الادب، باب لا يلدغ المومن ... الخ: ج ۲، ص ۹۰۵

Scanned with Ca

پوره مهلت ورکول پکاردي که هغوئ زمونږ قانون نه مني نو په آزادئ او آسانئ هلته لاړشي چرته چه تلل غواړي، څنګه چه په دې آيتونو کښې د [۹هـ] دعام اعلان اوهغې نه پس تولوډلوته دډيل ورکولو دحکمونونه چه واضح شو.

④ ددې آيتونو څخه څلورمه مسئله دا معلومه شوه چې که د يو قوم سره د معاهدې کولو نه پس د ميعاد څخه وړاندې وړاندې د هغه معاهدې د ختمولو ضرورت راپيښ شي نو اګر چې په ځو شرطونو سره دهغې دختمولو اجازت شته دې ، خو بهتره داده چې هغه معاهده دې ترڅېل ميعاده [وخته] پورې اورسولې شي. لکه څنګه چې په سورة توبه کښې په څلورم آيت مبارك کښې بنو ضمره او بنو مدلج سره د معاهدې دپوره کولو حکم راغلې دې.

⑤ پنځمه مسئله ددې آيتونو نه دامعلومه شوه چه دښمنانو سره په هره معامله کښې داخيال لرل پکاردي چه دمسلمانانو دښمني دهغوئ دذات سره نه بلکه دهغوئ دکافرانو نه عقيدو او خيالاتو سره ده چې هم دهغوئ دپاره ددنيا اودآخرت دتباهئ اسباب دي، چنانچه دمسلمانانو مخالفت ورسره کول په حقيقت کښې هم دهغوئ په همدردئ اوخيرخواهئ باندې بنادي، لهذادجنګ اوصلح په هرصورت کښې هغوئ ته نصيحت کول اوخيرخواهئ په غرض ئې پوهول په هيڅ وخت کښې پريښول نه دي پکار، څنګه چه په دې دريوآيتونو کښې ځائ په ځائ ددې بيان راغلې دې چه که تاسو دخپلو خيالاتو نه توبه کړه نو داستاسو دپاره ددنيا او آخرت خلاصې اوکاميابي ده،

دې سره ئې داهم اوښودل چه که توبه موا ونکړه نو يواځې دانه ده چه په دنياکښې به تاسو وژلې يا لوټلې شئ څنګه چه ديو قومې کارنامې په حيث ئې خلق اختياروي بلکه په دې هم ځان پوه کړئ چه دمرګ نه پس به هم دعذاب نه خلاصې بيانه مومئ، په دې آيتونو کښې دويزارئ د اعلان سره سره په همدردئ سره دهغوئ دپوهولو سلسله هم جاري ده،

⑥ شپږمه مسئله داده چه په څلورم آيت کښې مسلمانانو ته دصلح دنيتې ترپوره کيدو پورې په لوظ باندې دپوره عمل کولوښودنه کړې شويده اوددې سره يې آيت په دې جملې [﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ﴾ بيشکه الله تعالى احتياط کوونکي خوښوي] باندې ختم کړو دې سره اشاره اوکړې شوه چه په معاهده پوره کولو کښې ډيراحتياط نه کاراخلئ، دعاموقومونو پشان پکښې دتاويلونو اوچلونو اوپستو په ذريعه دخلاف ورزئ کولو لارې ګودرې مه لټوئ،

⑦ دپنځم آيت دتفصيلونونه اوومه مسئله دامعلومه شوه چه هرکله ديوصحيح مقصد دپاره ديوقوم سره جنګ جوړشي نو دهغوئ په مقابله کښې هرقسم قوت په پوره ډول استعمالول پکاردي، دغه وخت رحمدلي يانرمي کول په حقيقت کښې بزدلي وي،

⑧ هم دپنځم آيت نه [۸] اتمه مسئله داثابته شوه چه ديوغيرمسلم په مسلمانيدو باندې اعتبارکول په درې خبرواره لري، ① يوپه توبه، ② دويم په مونځ قائمولو ③ دريم په زکوة ورکولو ، يعنې څوپورې چه په دې دريوخبرونې عمل نه وي نوصرف دکلمې په وئيلو سره جنګ مه بندوئ، چنانچه درسول الله ﷺ دوفات نه پس کوموخلقوچه دزکوة ورکولونه انکارکړې وو ، دهغوئ په مقابله کښې ابوبکر ؓ دجهاد کولو دپاره هم په دې آيت شريف سره دليل اونيولو اودټولو صحابه کرامو ؓ اطمينان ئې راوستو.

⑨ په دې آيتونو کښې نهمه مسئله دا راغلې ده چه ﴿يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ﴾ نه څه مراد دی، چنانچه په دې کښې د مفسرينو مختلف قولونه راغلي دي، حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فاروق اعظم رضي الله عنه عبد الله بن عمر رضي الله عنهما عبد الله بن زبير رضي الله عنهما او نورو حضراتو فرمائيلي دي چه، ﴿يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ﴾ نه مراد د عرفې ورځ ده ځنګه چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي، اَلْحَجُّ عَرَفَةُ، [ابو داؤد، ترمذي] [1]

اوځنې حضراتو تر دلوئ اختر ورځ مراد اغستې ده چه د ذی الحجې د مياشتې لسم تاريخ جوړيږی، حضرت سفيان ثوري رحمه الله او ځنې نورو امامانو رحمهم الله د دې ټولو قولونو راجمع کولو په خاطر فرمائيلي دی چه د دې نه مراد دلوئ اختر پنځه واړه ورځې مراد دی، [يعنی عرفه، دلوئ اختر ورځ او وروسته درې ورځې ايام تشريق] دلته د دې ټولو ورځو د پاره د، يوم مفرد لفظ راوړل د قرآنی محاورو مطابق دی لکه د بدر د غزا ځو ورځو ته چه قرآن کريم، يوم الفرقان، فرمائيلي دی، دغه شان د عربو عام جنګونه هم په، يوم، سره ذکر کولې شی اګرچه په هغې باندې ډيره موده او ورځې تيرې شوی وی لکه چه، يوم بعاث، يوم احد، وغيره وئيلې شی،

حج ته، حج اکبر، د عمرې په مقابله کښې وئيلې شويدی ځکه چه عمره په، حج اصغر، سره ياديږی، په دې بنا په قرآنی اصطلاح کښې د هر کال حج ته، حج اکبر، وئيلې شی. عوامو کښې دا خبره مشهوره ده چه په کوم کال عرفه د جمعې په ورځ راشی هغې ته، حج اکبر، وئيلې شی، د هغې اصليت نشته، دومره قدرې خبره ده چه د رسول الله ﷺ د حجة الوداع په موقعه عرفه د جمعې مبارکې په ورځ راغلې وه، عرفه د جمعې مبارکې په ورځ راتلل په خپل ځائ باندې غوروالې او ضرورلری مګر د آيت د بيان شوی سره ئې هيڅ تړون نشته،

امام جصاص په، احکام القرآن، کښې فرمائيلي دی چه هر کله د حج ورځو ته، حج اکبر، او وئيلې شو نو د امسئله تر را او وته چه د حج په دغې پنځو ورځو کښې عمره ځکه نشی کيدې چه قرآن کريم داورځې، حج اکبر، د پاره مخصوص کړيدی، [2]

| |
|---|
| وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ |
| [او که يو کس ا د |
| او که د مشرکانو نه |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ | فَأَجِرْهُ | حَتَّىٰ | يَسْمَعَ | كَلَامَ اللَّهِ | ثُمَّ | |
| مشرکانو نه طلب دامان او کړی ستا نه | انو امان ور کړه هغه ته | اتر دې | اچې واوری | اکلام د الله | ا بيا | |
| يو کس ستا نه پناه او غوښتله | اچه ماته امن راکړه | ا نو پناه ور کړه هغه ته | تر دې چه د الله تعالی کلام واوری | | او بيا ئې | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَبْلِغْهُ | مَأْمَنَهُ | ذَٰلِكَ | بِأَنَّهُمْ | قَوْمٌ | لَّا يَعْلَمُونَ ⑥ |
| اورسوه هغه | اخائې دامن دهغه ته | ادا کار | اپه سبب د دې چې دوئ | ايو قوم دی | اچې علم نه لری |
| خپل د امن خائې ته اورسوه | دا | اپناه ورته ځکه ور کوه | چه دوی داسې قوم دی | | چه نه پوهيږی |

[1] جامع الترمذی، أبواب الحج، باب ما جاء فيمن أدرک الامام ــ الخ: ج: ۱، ص ۱۷۸، وسنن ابی داود، کتاب المناسک باب يوم الحج الاکبر: ج ۱، ص ۲۶۸

[2] أحکام القرآن للجصاص سورة البراءة: ج ۲، ص ۲۲۷

Scanned with CS

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَيْفَ | يَكُوْنُ | لِلْمُشْرِكِيْنَ | عَهْدٌ | عِنْدَ اللّٰهِ | وَعِنْدَ رَسُوْلِهٖٓ | اِلَّا |

څه رنګ | به وی | دپاره دمشرکانو اوعده اپه نز دالله | اوپه نز درسول دهغه امګر

د الله او د هغه د رسول سره په کړې د مشرکانو په معاهده باندې څه اعتبار نشته | البته کوم کسان

| | | | |
|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | عٰهَدْتُّمْ | عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ | فَمَا |

هغه کسان اچی وعده کړې وه تاسو دهغوئ سره | په خوا دمسجدحرام کښې | نو تر څو چې

چه د مسجد حرام سره نزدې ورسره تاسو معاهده کړې وی انو چه تر څو پورې دوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اسْتَقَامُوْا | لَكُمْ | فَاسْتَقِيْمُوْا | لَهُمْ ۗ | اِنَّ اللّٰهَ |

نیغ چلیږي هغوئ| ستاسو سره په وعده کښې اتاسوهم نیغ چلیږئ | دهغوئ سره | بیشکه الله

په خپله معاهده ټینګ وی اوهغوئی نه وی ماته کړې نوتاسو هم په خپله معاهده هغوی سره ټینک اوسیږئ او بیشکه الله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يُحِبُّ | الْمُتَّقِيْنَ ۝ | كَيْفَ | وَاِنْ | يَّظْهَرُوْا | عَلَيْكُمْ |

خوښوی | متقیان خلق اڅرنګ به وی | حال دا چی که چرې | غلبه بیا مومی هغوئ | په تاسو باندې

بیشکه الله تعالی پرهیزګاران خوښوی ادوی به څنګه تاسو سره په معاهده باندې ټینګ پاتې شی که دوی په تاسو باندې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا يَرْقُبُوْا | فِيْكُمْ | اِلًّا | وَّلَا ذِمَّةً ۗ | يُرْضُوْنَكُمْ |

لحاظ نه کوی هغوئ|په حق ستاسوکښې | دخپلولئ | اونه دوعدې دذمه وارئې | هغوئ رضاکوی تاسو

غالب شی نوستاسو د خپلولئ او د معاهدې هیڅ پرواه نه ساتی دوی [په ظاهری خبرو] تاسو راضی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِاَفْوَاهِهِمْ | وَتَاْبٰى | قُلُوْبُهُمْ ۚ | وَاَكْثَرُهُمْ | فٰسِقُوْنَ ۝ | اِشْتَرَوْا |

په خلوخپلو سره | اوانکارکوی ازړونه دهغوئ| اوزیات خلق دهغوئ| فاسقان دی | واغستوهغوئ

کوی خو د دوی زړونه [ستاسو د راضی کولونه] انکار کوی اوپه دوی کښې زیات خلق نافران دی دوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِاٰيٰتِ | اللّٰهِ | ثَمَنًا قَلِيْلًا | فَصَدُّوْا | عَنْ سَبِيْلِهٖ ۗ | اِنَّهُمْ |

په بدله دآیتونودالله کښې | قیمت لږ | انومنع کوی خلق | دلارې دالله نه| بیشکه هغوئ چی دی

دالله تعالی په آیاتونو باندې [د دنیا] لږ قیمت اخلی او[خلق] د الله د لارې نه منع کوی بیشکه دوی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سَآءَ | مَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ ۝ | لَا يَرْقُبُوْنَ | فِيْ مُؤْمِنٍ | اِلًّا |

ادیربددې اهغه اچی وۏهغوئ|چی کول به ئې انه کوی لحاظ هغوئ اپه حق دمومن کښې | دخپلولئ

چه کوم عمل کوی هغه ډیر بددې دوی د یو مؤمن په حقله د خپلوئ او معاهده هیڅ پرواه نه ساتی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّلَا ذِمَّةً ۗ | وَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْمُعْتَدُوْنَ ۝ | فَاِنْ | تَابُوْا |

اونه دوعدې دذمه وارئې |اودا کسان | هم دوئ | ازیاتې کونکی دی | انوکه چرې | توبه اوویسته هغوئ

اوهم دا [چه نه د خپلولئ خیال ساتی اونه د معاهدې] دحد نه تیریدونکی دی نوکه دوی توبه ویستله

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ | وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ | فَاِخْوَانُكُمْ | فِي الدِّيْنِ ۗ |

اوقائم ئې کړومونځ | اوورئې کړوزکاة | نو رونړه ستاسو دی | اپه دین کښې

اومونځ قائموی او زکاة ورکوی نودا [خلق] ستاسودینی [اسلامی] رونړه دی[دوی سره د رونړو سلوک کوئ]

Scanned with Ca

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَنُفَصِّلُ | الْاٰيٰتِ | لِقَوْمٍ | يَّعْلَمُوْنَ۝ |
| اوواضحه بيانوومونږ ا | آيتونه | ا دپاره دهغه قوم ا | چې پوهيږي ا |
| اومونږ د هغه قوم دپاره په تفصيل سره آياتونه بيانوو څوک چه پوهيږي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او که د مشرکانو نه يو کس ستا نه پناه غواړي نو ده ته هغه وخته پورې پناه ورکړه تر دې چه دې دالله کلام واوري بيا دې د امن ځاى ته ورسوه دا دې وجې نه چه دا داسې خلق دي چه دوى نه پوهيږي دي مشرکانو سره دالله او د هغه د رسول معاهده څنګه باقي پاتې کيدې شي؟ خو کومو خلقو سره چه تاسو مسجد حرام کښې معاهده کړې ده . نو که دوى تاسو سره ټينګ پاتې شي نو تاسو ورسره هم ټينګ پاتې شئ بې شکه الله متقيانو لره خوښوى ﴿ليکن نورو مشرکانو سره﴾ څنګه معاهده باقي پاتې کيدې شي حال دا چه د دوى حال دادې چه که په تاسو باندې غالب شي نو ستاسو په معامله کښې نه دخپلولۍ لحاظ کوي اونه د معاهدې؟ دوى تاسو لره په خوله باندې خوشحالوى حال دا چه د دوى زړونه انکار کوي اودوي کښې اکثر خلق نافرمانه دي.دوي دالله د آيتونو په بدله کښې﴿د دنيا﴾ لږ غوندې قيمت اخستل غوره کړى دي او ددې په نتيجه کښې دوى خلق د الله د لارې نه بند کړى دى. واقعه دا ده چه د دوى کارونه ډير بد دي.دوى دهيڅ يو مؤمن په معامله کښې د خپلولۍ يا د معاهدې لحاظ نه کوي . او هم دوى دى چه د حد نه تيرې کونکي دي. نو که دوى توبه وباسي او دمانځه پابندي وکړي او زکوٰة اداء کړي نو دوى به ستاسو ديني وروڼه جوړ شي او مونږ د احکامو تفصيل د هغه خلقو د پاره بيانوو چه هغوى ځان پوهه کول غواړي.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ او که څوك بنده د مشرکانو څينې [دې طرفته په هغه وخت مائل شي چې ددهٔ خون مباح وى، د امن نيته هم ختمه شوې وى او دې توبه اوباسى ، د اسلام فائدې او برکتونه واورئ ،اود حقيقت او د حقوالى د اسلام په لټون کښې ستاسو ﷺ خواته په راتلو سره] ﴿اسْتَجَارَكَ﴾ تاسو ﷺ نه پناه اوغواړى [چې په تسلئ سره واوريدې شى اوځان پرې پوهه کړې شى] نو [پداسې حالت کښې] ﴿فَاَجِرْهُ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ﴾ ورته پناه ورکړئ ، دپاره ددې چې هغه کلام الهى [يعنى دحق دين مطابق مطلق دليلونه] واورئ . ﴿ثُمَّ اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ﴾ بيا] ددې نه پس] ئې د هغه دامن ځائې ته اور سوئ [يعنى دخپل ځائې رسيدو ته ئې پريږدئ چې په تسلئ سره خپله رائې قائمه کړى] ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُوْنَ۝﴾ دا حکم [د دومره پناه ورکولو] ځکه [ورکولې] شى چې دوئ داسې خلق دى چې پوره خبر نه لرى [ځکه ورته څه دقدرې ډيل ورکول ضرورى دى ، کومې روميئ ډلې چې لوظ مات کړې وو نو د دوئ د لوظ ماتولو نه وړاندې دپيشنګوئى په ډول فرمائى چې ﴿كَيْفَ يَكُوْنُ لِلْمُشْرِكِيْنَ عَهْدٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ رَسُوْلِهٖٓ﴾ ددې مشرکانو قريشو] لوظ به د الله ﷻ په نزد او د هغه درسول په نزد [د لحاظ کولو جوګه] څنګه پاتې شى ؟ [ولې چې لحاظ کول خو دهغې لوظ وى چې بل فريق ئې پخپله مات نکړى اوکه داسې ئې اوکړل نو د لحاظ کولو خو څه سوال نه پاتې کيږى ، مطلب دا شو چې دوئ به لوظ ماتوى نو

پدغه موقعه به ئې ددې طرفنه هم لحاظ نشی ساتلې کیدې] ﴿إِلَّا الَّذِينَ عٰهَدْتُّمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ﴾
مګر کومو خلقو چې مسجد حرام [یعنی حرم] ته نزدې لوظ اخستې دې [مراد ترې بله ډله ده
چې ړومبې یې هم استثناء په دې فرمان د الله ﷻ ﴿إِلَّا الَّذِينَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ لَمْ يَنْقُصُوكُمْ﴾ الخ ،
سره کړې شوې دې مطلب دا چې دې خلقو نه امید کیدې شی چې خپل کړې لوظ به سرته
اورسوی] ﴿فَمَا اسْتَقَامُوا لَكُمْ﴾ نو تر څو چې دا خلق تاسره سم[روغ] پاتې کیږی [یعنی لوظ نه
ماتوی] ﴿فَاسْتَقِيمُوا لَهُمْ ۗ﴾ تاسو هم ورسره سم [روغ] پاتې کیږئی [او دا لوظ نیټه ته اورسوئ
چنانچه د سورة براءت د نازلیدو په موقعه دلوظ په نیټه کښې لا نهه میاشتې پاتې وې ،
هرکله چې دوئ لوظ مات نه کړو نو ورسره دغه نیټه سرته اورسولې شوه] ﴿إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ۝﴾
بیشکه الله ﷻ [د بې لوظئ نه] احتیاط کوونکی خوښوی [که تاسو هم احتیاط کولو نو د الله
ﷻ په خوښو خلقو کښې به شامل شئ ، دې استثناء کولو نه پس بیاهغه مضمون ته راګرځی
چې د ړومبئ ډلې باره کښې وو چې] ﴿كَيْفَ وَإِنْ يَّظْهَرُوا عَلَيْكُمْ﴾ څنګه به [ددوئ لوظ قابل د رعایت
وی] شی [یعنی دا خلق به څنګه په خپل لوظ کلك پاتې شی] سره ددې چې که دوئ په تاسو
باندې چرې غلبه بیا مومی ﴿لَا يَرْقُبُوا فِيكُمْ إِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ۗ﴾ نو ستاسو باره کښې به نه ، د نزدې خپلوئ
خیال اوساتئ او نه د لوظ ،قول [څکه چې دوئ دا صلح په دې وجه کړې ده چې مجبوره وو
دجهاد نه ویریدل د زړهٔ نه ئې ، نه ده کړې پس] ﴿يُرْضُونَكُمْ بِأَفْوَاهِهِمْ﴾تاسو لره [صرف] پخپلو ذاتی
خبرو خوشحالوی ﴿وَتَأْبٰى قُلُوبُهُمْ ۚ﴾او ددوئ زړونه [داخبرې] نه منی [چې د زړهٔ قصد ئې د لوظ
پور کولو نه وی نو سرته به ئې څنګه اورسوی ؟] ﴿وَأَكْثَرُهُمْ فٰسِقُونَ ۝ۚ﴾ او پدوئ کښې زیات تر
خلق شرارتیان دی [چې لوظ سرته رسول نه غواړی او که یو نیم یې پوره کول هم غواړی نو د
ډیر په مخکښې د یو دوؤ چیرته چلیږی او څه حیثیت لری ؟ او دوئ انکار څکه کوی چې]
﴿اِشْتَرَوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ دوئ د الله ﷻ دحکمتونو په بدل کښې [ددنیا] ناپائیدار سامان غوره
کړې دې [څنګه چې د کفارو حالت وی چې ددین په پریخودو سره دنیا غوره ګنړی ، هرکله چې
ئې دنیا زیاته خوښه ده ، نو د دوئ په لوظ ماتولو کښې دنیوی غرض حاصلیدونکې ښکاری
او په دې کښې بهٔ هیڅ باك نه وی . خوبل طرفته به هغهٔ څوك د الله ﷻ دحکمونو او د لوظ
پوره کولو وغیره پابندی وی چې دین وغیره غوره ګنړی] نو [په دې وجه چې دوئ دنیا لره ددین
نه غوره ګنړی] ﴿فَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِهٖ ۗ﴾ داخلق دالله ﷻ د [نیغې] لارې نه [چې لوظ پوره کول په کښې
هم داخل دی] آوړیدلی دی [او] ﴿إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝﴾ یقینا دا ددوئ عمل زیات خراب دې
[مونږ چې مخکښې لا يرقبوفيكم الخ ، اووئیل دا یوازې ستاسو په باره کښې نه دی ؟ ددوئ خو
حالت دادې چې] ﴿لَا يَرْقُبُونَ فِي مُؤْمِنٍ إِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ۗ﴾ داخلق دهیچا مسلمان باره کښې [هم] نه خو د
نزدې خپلوئ لحاظ کوی اونه د لوظ ، قول ، ﴿وَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُعْتَدُونَ ۝﴾ اودا خلق [خصوصاپه دې
باره کښې] ډیر زیاتې کوی نو [کله چې ددوئ په لوظ باندې څه اعتبار نشته بلکه ددوئ د
لوظ ماتولو احتمال هم شته څنګه چې ددې د طرفنه مخالف احتمال ئې هم کیدې شی څکه
مونږ د دوئ باره کښې تفصیلی حکم آوړوو چې] ﴿فَإِنْ تَابُوا﴾ که داخلق [د کفرنه] توبه اوکړی
[یعنی مسلمانان شی] او [دا اسلام ښکاره هم کړی لکه] ﴿وَأَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ﴾ مونځ کول
شروع کړی او زکوة ورکول شروع کړی [بیا د دوئ په لوظ ماتولو به بالکل نظر نشی کولې ،

Scanned with Ca

که دوئ هرڅه کړی وی په اسلام راوړلو سره] ﴿فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ﴾ دوئ به ستاسو دینی رونړه شی [او مخکښنی کړه بۀ ورته ټول معاف شی] ﴿وَنُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ او مونږ پوهه خلقو [ته خودلو] دپاره حکمونه ښه په تفصیل سره بیانوؤ [نو په دې مقام باندې هم دغسې اوکړې شو].

## معارف او مسائل

دسورة توبه داول سر په پنځو آیتونو کښې دابیان ووچه دمکې مکرمې دفتح کیدونه پس دمکې مکرمې اوددې دخواؤشاټولو مشرکانو او کافرانو ته دسر و مال عام امان ورکړې شوځو هرکله چه ددوئ رومبئ تکیانې کول اولوظونه ماتول په تجربې سره ثابت شوی ووځکه ورسره په آئنده کښې څه لوظ، قول نه کول فیصله کړې شو، خوسره ددې کومو کفاروسره چه ددې نه وړاندې لوظ، قول شوې وو او هغوئ دغه لوظ، قول نه وو مات کړې نو په دې آیتونو کښې ددغه لوظونو ترخپلې ټاکلې نیټې پورې سرته درسولو حکمونه نازل شو، چاسره چه بیخې څه لوظ، قول نه وو شوې یاورسره دشوی لوظ څه ټاکلې نیټه نه وه نو هغوئ ته هم دا آسانی ورکړې شوه چه سمدستې وتل به ورته ګران وی نو په څلورومیاشتو کښې دننه دد حرم دحدودونه اوځی، چه ځان له په آسانئ او تسلئ سره دوتلو انتظام اوکړې شی اوکه داسلام حقوالې ورته ښکاره شوې وی نو مسلمانان به شی، ددې حکمونو نتیجه دا راووته چه تر راتلونکی کال پورې مکه مکرمه ښه په آسانئ سره ددې ټولو غداړانو مشرکانو نه خالی شی، هرکله چه دا خالی کول هم دڅه انتقامی جذبې لاندې نه بلکه دتیروشوؤ تجربو په بنیاد د خپل حفاظت په خاطر عمل کړې شو، بیاهم ددوئ دخیرخواهئ اوښیګړې دروازه په دې شان پرانیستې پرېښوې شوه چه بیان ئې په شپږم آیت کښې داشان راغلې دی، که یو مشرک تاسو ته پناه غواړی نو ځکه پناه ورکړئ چه تاسو ﷺ ته په نزدې راتلو سره دالله تعالی کلام واؤریدې شی او داسلام حقوالې شی، دپناه ورکولونه علاوه دمسلمانانو ذمه واری داهم ده چه کله هغه ددې ځائ نه فارغ شی نو په خپل حفاظت او نګرانئ کښې دهغه ځائ ته اورسوی چرته چه هغه خپل ځان محفوظ ګڼړی او په دې تسلی وی، په آخر دآیت کښې فرمائی: [داحکم ځکه ورکړې شو چه داخلق پوره خبر نه دی، تاسو ته په نزدې راتلو به خبر شی،

دې آیت نه هم څو مسئلې او فائدې حاصلې شوې چه ابوبکر حصاص رحمه الله په تفصیل سره بیان کړیدی، (۱).

**داسلام په حقوالی باندې په دلیلونو سره پوهول دعلمائ دین فرض دی:؟** اول داچه دې آیت نه ثابته شوه چه که یو کافر دمسلمانانو نه داغوښتنه اوکړی چه ما داسلام په حقوالی باندې په دلیلونو سره پوه کړئ نو دده داغوښتنه پوره کول په مسلمانانو باندې لازمی دی،

بله داچه څوک داسلام تحقیق کولو او ددې دمعلوماتو حاصلولو دپاره زمونږ خواته راشی نو په مونږ باندې واجب دی چه ورته اجازت ورکړو، دهغه حفاظت کوو، ورته هیڅ قسم تکلیف یانقصان رسول جائز نه دی، په تفسیر قرطبی کښې راغلی دی چه داحکم په هغه صورت کښې دې چه دهغه دراتلو مقصد دالله تعالی کلام آؤریدل او داسلام تحقیق کول وی او که بل څه غرض ئې وی مثلاً یا کاروبار له راغلې وی نو هغه دمسلمانانو په ښیګړه او دمسلمان حاکم په صوابدید

---

(۱) أحكام القرآن للجصاص سورة البراءة: ج ۳، ص ۲۵۶

باندې اړه لري، که اجازت ورکول ورته مناسب ښکاره شي نو اجازت دِ ورکړي ورنه نه دِ ورکوي.([1])

**کوم غیرمسلم چه ددارِاسلام استوګن نه وي نوهغه ته په دارِاسلام کښې دضرورت نه زیات وخت دپاره د پاتې کیدواجازت نشته:** ③ دریمه دا چه یو غیرمسلم حربي سره چه زمونږ هیڅ لوظ، قول نه وي هغه په دارِاسلام کښې دضرورت نه زیات وخت دپاره د پاتې کیدو اجازت دې نشي ورکولې، ځکه چه په دې آیت کښې دپناه ورکولو او د پاتې کیدلو داحد تا کلې شویدې چه ﴿حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ﴾ یعنې دلته ئې پاتې کیدو دپاره دومره پریږدئ چه دالله تعالی کلام واوري،

④ څلورمه دا چه دمسلمان حاکم یا امیر دا فرض جوړیږي چه کله یو حربي، غیرمسلم دځه ضرورت دپاره مونږ نه اجازت [ویزا] حاصل کړي او زمونږ ملک کښې داخل شي، نو دهغه په حالاتو دنظر لري، او کله چه هغه خپل کارپوره کړي هغه دِ په حفاظت سره واپس کړي،

د ⑤ نه تر ⑩ لسم آیت پورې په څلورو آیتونو کښې دویزارئ دهغه اعلان حکمت بیان شویدې کوم چه دسورةِ براءت داول سر په آیتونو کښې راغلې دې په دې آیت کښې دلوظ ماتوونکو مشرکانو طبعي خسیسوالې او مسلمانانو سره ددوئ دسخت بغض وعناد دبیانولو سره دا ښوولې شویدې چه دوئ نه دوعدې پوره کولو امید لرل غلط دي. لکه فرمائي، سوا دځو کسانو نه چا سره چه دمسجدحرام خواکښې ستاسو لوظ، قول شوې وو، ددغه مشرکانو څه لوظ، دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ په نزد ځنګه دلحاظ کولو جوګه کیدې شي دچا حال چه دادې چه څه وخت ورته لږه څه موقعه په لاس ورشي نو هغوئ نه خوستاسو دنزدې خپلوئ څه لحاظ ساتي او نه دلوظ قول لحاظ ساتي، وجه ئې داده چه دلوظ کولو په وخت کښې هم ددې خلقو په زړونو کښې ددې دپوره کولو اراده نه وي، بلکه صرف دخلې په خبرو موخوشحالول غواړي، او په دوئ کښې زیات خلق فاسقان [لوظ ماتوونکي غداران] دي،

**دکفاروپه مقابله کښې هم په رښتیاؤئیلو پاتې کیدل اودهغوئ په باره کښې دمبالغې کولونه دځان ساتلو تعلیم:** دقرآن کریم دې بیان مسلمانانو ته داهدایت ورکړو چه دخپلو دښمنانو مخالفینو په باره کښې کله چه څه خبره کول راپیښ شي نو رښتیاؤ او انصاف نه لاس مه اخلئ، دحد نه زیاتې خبرې پکښې مه رامندئ ځنګه چه په دې آیتونو کښې دمشرکانو دمکې په باره کښې ددې پوره رعایت کړې شویدې چه اګرکه څو کسانو نه سوا نورو ټولو مشرکانو لوظ مات کړیدې او ټکي ئې او کړه او په داسې حالاتو کښې خلق ټولو ته خراب او بدوائي مګر قرآن کریم د:

﴿إِلَّا الَّذِينَ عٰهَدْتُّمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ په فرمائیلو سره دهغه خلقو بیلتون او کړو چا چه لوظ نه وو مات کړې او داحکم ئې ورکړو چه ترڅو پورې [دغه څو کسان] په خپل لوظ پوره کولو باندې ټینګ پاتې کیږي نو تاسو هم [ورسره] په لوظ ټینګ اوسئ، ددوئ دنورو ملګرو دټکئ او لوظ ماتولو له کبله دوئ سره لوظ مه ماتوئ،

دلوظ ماتوونکو داحال ئې چه بیان کړو چه ددې خلقو په زړونو کښې داول نه ټکي موجود وه، دلوظ پوره کولو اراده ئې نه وه، دائې هم او فرمائیل ﴿وَأَكْثَرُهُمْ فٰسِقُونَ﴾ دې کښې اشاره دې ته شوه چه دټولو داحال نه دې بلکه دوئ کښې داسې شریفان هم شته چه په لوظ ئې ټینګ پاتې

---

[1] تفسیر القرطبي تحت هٰذه الآیة: ج۸، ص۵۵، ۵۶

Scanned with Ca

کيدل غوښتل خو دنورو په وړاندې ئې خبره اونه چليده،

دا هم هغه مضمون دې چه هدايت ئې قرآن کريم په يوبل ځائ کښې په صفاتکو کښې داشان ورکړيدې،

﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا ۭ اِعْدِلُوْا﴾ يعنى ديو قوم دښمنى دِتاسو دې ته تيارنکړى چه انصاف پريږدئ!

وروسته په نهم آيت کښې د دې ټګانو مشرکانو دټګئ علت او د دوئ دمرض سبب بيانولو سره دوئ ته ئې هم يوه هدايت نامه ورکړه چه که دوئ غوراوکړى نو خپله اصلاح کولې شى او عام مسلمانان ئې هم خبرداره کړل چه په کومه وجه داخلق په ټګئ اوخيانت کښې اخته شو. دهغې سبب نه ځان ساتل خپل خاص عادت جوړ کړئ، دغه سبب دنيا سره مينه کول دى چه د دنيا د مال سامان، مينې محبت دوئ ړانده کړيدى، د لږو پيسو په بدل کښې دالله تعالى آيتونه او خپل ايمانونه خرڅوى او د دوئ داکردار ډيرزيات خراب دې،

په لسم آيت کښې د دوئ داسخت کوږوالى بيان شويدې ﴿لَا يَرْقُبُوْنَ فِيْ مُؤْمِنٍ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً﴾ يعنى صرف دا نه ده چه دې خلقو لوظ کوونکو مسلمانانو سره ټګى اوکړه او دهغوئ نزدې خپلوى اولوظ، قول ئې هم شاته اوغورځولو، بلکه د دوئ حال دادې چه د چا مسلمان په باره کښې نه خو نزدې خپلوئ خيال ساتى اونه دځه لوظ، قول خيال ساتى،

د مشرکانو د دغه حالاتو طبعى تقاضا خو داکيدې شوه چه مسلمانان ترهميشه د پاره ويزاره شي او په هيڅ حالت کښې هم ورسره د وروروئ تعلقات جوړولو د پاره تيارنشى، په دې وجه قرآنى عدل او انصاف په يولسم آيت کښې داهدايت ورکړو،

﴿فَاِنْ تَابُوْا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخْوَانُكُمْ فِى الدِّيْنِ﴾ يعنى که داخلق توبه اوکړى او مونځ قائم کړى اوزکوة اداکوى نو اوس دوئ هم ستاسو دينى رونړه دى!

په دې کښې داوښودلې شو چه که هرڅنګه دښمن وى او هرڅومره زيانونه ئې رسولى وى خو کله چه مسلمان شى نوڅنګه چه الله تعالى دهغه ټول کړى ګناهونه بخښى، مسلمانانو له هم لازمى دى چه هغه تيرې ناکړدې او معاملات ئې دزړه نه هيرې کړى او دنن نه ئې خپل دينى رونړه کړى او د وروروئ د تعلق حقونه ئې اداکوى،

**په اسلامى برادرئ کښې د داخليدو درې شرطونه:** ؟ دې آيت شريف داخبره په ډاګه کړه چه په اسلامى برادرئ کښې د شامليدو د پاره درې شرطونه دى ① يو د کفر او شرک نه توبه کول، ② دويم مونځ قائمول، ③ دريم زکوة اداکول، ځکه چه ايمان او توبه دواړه پټ څيزونه دى چه په حقيقت باندې ئې عام مسلمانان نشى پوهيدلې ځکه ئې د دې دوه ښکاره نخښې بيان کړې چه مونځ قائمول اوزکوة اداکول دى،

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائيلى دى چه دې آيت داهلِ قبله مسلمانانو وينه حرامه کړه يعنى څوک چه د مونځ اوزکوة پابند وى او د اسلام پخلاف د هغه نه څه قول يا فعل ثابت نشى هغه به په ټولو حکمونو کښې مسلمان ګنړلې شى، اګرچه د هغوئ په زړه کښې صحيح ايمان نه وى، يا منافقت پکښې وى،

Scanned with Ca

حضرت صديق اکبر ﷛ په دې آيت سره دليل اونيولو او دهغه کسانو په خلاف دجهاد کولو په باره کښې ئې صحابه کرام مطمئن کړل کوموچه درسول الله ﷺ دوفات نه پس دزکوة نه انکار کړې وو، [ابن کثير] (۱)

په آخر دآيت کښې دمعاهدينو او توبه کوونکو په باره کښې ددغې حکمونو دپابندۍ کولو د تائيد په غرض يې اوفرمائيل:

﴿وَنُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ۝﴾ يعنى مونږه دپوه خلقو دپاره په ښه تفصيل سره حکمونه بيانوو]

| |
|---|
| وَاِنْ　نَّكَثُوْٓا |
| ا　اوکه چرې ا مات کړل هغوئ ا |
| اوکه دوی د خپلې وعدې نه |
| اَيْمَانَهُمْ　مِّنْۢ بَعْدِ　عَهْدِهِمْ　وَطَعَنُوْا　فِيْ دِيْنِكُمْ |
| قسمونه خپل ا　روستو　ا دوعدې خپلې نه ا اوعيبونه ئې بيان کړل　ا په دين ستاسو کښې ا |
| خپل قسمونه مات کړل [اوپه هغې باندې ئې وفا اونکړله] او ستاسو په دين کښې ئې عيبونه لټول |
| فَقَاتِلُوْٓا　اَئِمَّةَ　الْكُفْرِ ۙ　اِنَّهُمْ　لَآ　اَيْمَانَ |
| پس اوجنګيږئ　ا دمشرانو ا　دکفر سره　ا بيشکه دوئ چې دی　انشته　ا اعتبار دقسمونو ا |
| نو [په دې صورت کښې] تاسو د کفر امامان قتل کړئ ځکه چه د دوی په قسمونو څه اعتماد نشته |
| لَهُمْ　لَعَلَّهُمْ　يَنْتَهُوْنَ۝　اَلَا تُقَاتِلُوْنَ　قَوْمًا نَّكَثُوْٓا |
| ددوئ　ا ښائيږي چې دوئ　ا به منع شي　ا　ايا نه جنګيږئ تاسو　ا دهغه قوم سره چې مات کړل هغوئ |
| کيدې شي [چه په دې طريقه] دوی منع شي [دخپل کفرنه] تاسو ولې د داسې قوم سره نه جنګيږئ |
| اَيْمَانَهُمْ　وَهَمُّوْا　بِاِخْرَاجِ　الرَّسُوْلِ　وَهُمْ　بَدَءُوْكُمْ |
| قسمونه خپل ا　اوقصد ئې اوکړو ا　په ويستلو ا　د رسول　ا اوهغوئ　اشروع کړی ده تاسو سره |
| چه هغوی خپل قسمونه مات کړی دی او د پيغمبر د ويستلو قصد ئې کړې وو او هغوی په اول خل تاسو |
| اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ　اَتَخْشَوْنَهُمْ ۚ　فَاللّٰهُ　اَحَقُّ　اَنْ　تَخْشَوْهُ |
| په اول خل　ا ايا تاسو يريږئ دهغوئ نه　انو الله　ا زيات حقدار دې　ا چې [تاسو] اويريږئ دهغه نه ا که چرې |
| شروع کړې ده ايا تاسو د دوی نه ويريږئ [د دوی په مقابله کښې] الله تعالى زيات حقدار دې چه تاسو |
| اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ۝　قَاتِلُوْهُمْ　يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ　بِاَيْدِيْكُمْ |
| يئ تاسو مومنان ا　اوجنګيږئ دهغوئ سره ا عذاب به ورکړی هغوئ ته الله ا په لاسونو ستاسو ا |
| ترې اويريږئ که تاسو مؤمنان ئې [نو د دوی نه مه يريږئ بلکه] دوی سره جنګيږئ الله به ستاسو په لاسونو |
| وَيُخْزِهِمْ　وَيَنْصُرْكُمْ　عَلَيْهِمْ　وَيَشْفِ　صُدُوْرَ　قَوْمٍ |
| اوذليله به کړی هغوئ ا　اوامداد به اوکړی ستاسو ا خلاف دهغوئ　ا اوروغ به کړی ا　سينې　ا　دقوم |
| دوی ته عذاب ورکړی او [د دوی په مقابله کښې به] ستاسو مدد اوکړی او د مؤمن قوم زړونو ته به |

(۱) هكذا فى أحكام القرآن للجصاص سورة البراءة: ج ۰۶ ص ۲۵۰

Scanned with Ca

| |
|---|
| مُّؤْمِنِينَ ۝ وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ ۗ وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَىٰ مَنْ |
| مومنانو ا اولري به كړى ا غصه دزړونو دهغوئ ا اودرحمت رجوع به اوكړى الله ا په هغه چاباندې |
| شفاء وركړى اوددوى د زړونو غصه به لرې كړى او الله تعالى به د هغه چا توبه قبوله كړى د چا توبه |
| يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝ أَمْ حَسِبْتُمْ |
| چې خوښه ئې شى ا الله تعالى ابنهٔ پوهه دې ا اوصاحب د حكمت دې ا آيا گمان كړې تاسو |
| قبلول چه اوغواړى او الله تعالى پوهيږى اوصاحب د حكمت دې آيا تاسو خيال كوئ چه تاسو به |
| أَنْ تُتْرَكُوا وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ |
| چې تاسو به پرېښودې شئ ا اولا نهٔ دى معلوم كړى ا الله ا هغه كسان ا چې جهادئې كړې ا تاسونه |
| بغيردامتحان نه داسې پرېخودې شئ حال دا چه تر اوسه پورې الله په ظاهرى علم سره په تاسو كښې هغه خلق نه |
| وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلَا رَسُولِهِ وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً ۗ وَاللَّهُ |
| اونهٔ دى نيولې هغوئ ا ماسوا دالله نه ا اود رسول دهغه نه ا اوبې دمومنانو نه ا دوستان ا اوالله |
| دى پيژندلې چه جهاد ئې كړې دې اود الله اوهغه د رسول او د مؤمنانو نه سوا ئې بل څوک خالص دوستان نه دى نيولى |
| خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ۝ |
| خبردار دې ا په هغه ا چې تاسو ئې كوئ ا |
| اوالله ستاسوپه عملونو باندې خبردار دې |

## آسان ترجمه قرآن

او كه دوى د وعدې كولو نه وروستو قسمونه مات كړى وى او ستاسو دين كښې ئې طعن كړې وى ، نو د داسې د كفر د مشرانو سره په دې نيت جنگ كوئ چه دوى منع شي ځكه چه دوى داسې يو قوم دې چه د دوى د قسمونو هيڅ حقيقت نشته آيا تاسوبه د هغه خلقوسره جنگ نه كوئ چه هغوى خپل قسمونه مات كړي دي . او رسول لره ئې ﴿دوطن نه﴾ د ويستلو اراده كړې ده او دوى هغه خلق دي چه دوى ستاسو خلاف څهير څهار كولو كښې﴾ مخكښې والې اوكړو؟ آيا تاسو د دوئ نه ويريږئ؟ ﴿كه داسې وي﴾ نو الله ډير حقدار دې چه تاسو د هغه نه وويريږئ كه تاسو مؤمنان يئ. دوي سره جنگ وكړئ دي دپاره چه الله ستاسو په لاسونو دوى ته سزا وركړي، او دوى لره رسوا كړي ، او ددوي خلاف ستاسو مدد وكړي، او د مؤمنانو سينې يخې كړي. او ددوى د زړونو نه هغه غصې لرې كړى او د چا ئې چه خوښه شي توبه قبوله كړى او الله كامل علم والا دې اوكامل حكمت والا دې. آيا تاسو دا خيال كوئ چه تاسو به دغسې پرېښودې شئ حال دا چه تر اوسه الله دا هم نه دي كتلي چه څوك تاسو نه جهاد كوي . او د الله تعالى اود هغهٔ رسول او مؤمنانو نه سوا چا لره رازدار نه جوړوي؟ او تاسو چه څه كوئ الله دهغې نه ښه خبر دي.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِنْ نَكَثُوا أَيْمَانَهُمْ مِنْ بَعْدِ عَهْدِهِمْ﴾ او كه دغه خلق دلوظ كولو نه پس خپل قسمونه [الوظونه] مات كړى [ځنگه چې ددوئ د حالت نه غالب ښكارى] او [سره دلوظ ماتولو ايمان هم قبول نه كړى بلكه پخپل كفر كلك ولاړ وى چې يو اثر ئې دا هم دې چې] ﴿وَطَعَنُوا فِي دِينِكُمْ﴾ ستاسو په دين

Scanned with Ca

[اسلام کښې] باندې پیغورونه [او اعتراضونه] کوی نو [په دې حالت کښې] ﴿فَقَٰتِلُوٓاْ أَئِمَّةَ ٱلۡكُفۡرِ﴾ تاسو خلق په دې قصد سره چې دوئ به [د خپل کفر نه] واوړی ، دې مشرانو د کفر سره [ښه] جنګیږی [ولې چې په دې صورت کښې] ﴿إِنَّهُمۡ لَآ أَيۡمَٰنَ لَهُمۡ لَعَلَّهُمۡ يَنتَهُونَ﴾ د دوئ قسمونه [باقی] پاتې نه شو [تر دې پورې چې دلوظ ماتولو نه مخکښې پیشنګوئی اوشوه ، وروسته د لوظ ماتولو نه پس ورسره دجنګ نه کولو شوق پیدا کول دی چې] ﴿أَلَا تُقَٰتِلُونَ قَوۡمٗا نَّكَثُوٓاْ أَيۡمَٰنَهُمۡ﴾ تاسو داسې خلقو سره ولې جنګ کوئی چاچې خپل قسمونه مات کړل [اوبنی بکر قبیلې سره ئې د بنی خزاعه په مقابله کښې مدد اوکړو] ﴿وَهَمُّواْ بِإِخۡرَاجِ ٱلرَّسُولِ﴾ او د رسول ﷺ د جلاوطن کولو تجویز ئې اوکړو ﴿وَهُم بَدَءُوكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ او هغوئ تاسوسره پخپله چیړ کول شروع کړل [چې ستاسو د طرفنه په لوظ پوره کولو کښې څه کمې نه وو راغلې ، دوئ په ناستې ناستې پخپله یوشوشه خوشې کړه نو داسې خلقو سره دې ولې جنګ اونه کړئی شی] ﴿أَتَخۡشَوۡنَهُمۡ﴾ آیا دوئ نه [د جنګ کولو نه ئې] ویریږئی [چې دوئ سره ګڼړه زیاته ده] نو [که داخبره وی نو هیچرې ترې مه ویریږئی ځکه چې] ﴿فَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخۡشَوۡهُ﴾ الله ﷻ ددې زیات حقدار دې چې تاسو ترې او ویریږئی ﴿إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ﴾ که ایمان لرئی [او هغه نه د ویریدو تقاضا دا ده چې د حکم خلاف ئې مه کوئی اوکه هغه درته د جنګ حکم درکوی نو] ﴿قَٰتِلُوهُمۡ يُعَذِّبۡهُمُ ٱللَّهُ بِأَيۡدِيكُمۡ وَيُخۡزِهِمۡ﴾ دوئ سره جنګ اوکړئی الله ﷻ به [د خپلې وعدې مطابق] دوئ ته ستاسو د لاسه سزا ورکړی او دوئ به ذلیل [او خوار] کړی ﴿وَيَنصُرۡكُمۡ عَلَيۡهِمۡ﴾ او تاسو به په دوئ باندې غالب راولی او [د دوئ په دې عذابولو او ستاسو دنفرت په وجه] ﴿وَيَشۡفِ صُدُورَ قَوۡمٖ مُّؤۡمِنِينَ﴾ د ډیرو [داسې] مسلمانانو زړونو ته به شفا ورکړی ﴿وَيُذۡهِبۡ غَيۡظَ قُلُوبِهِمۡ﴾ او دهغو دزړونو قهر [غصه] به لرې [سوړ] کړی [چې پخپله د مقابلې کولو توان نه لری اود دوئ د دناکړدو په لیدو ئې زړونه کړیږی] ﴿وَيَتُوبُ ٱللَّهُ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ﴾ او [هم ددې کافرانوڅخه] په چا چې [توجه او فضل کول] منظور وی الله ﷻ به ورته مخه [هم] اوکړی [یعنی د مسلمانیدو توفیق به ورکړی ، نو په فتح مکه کښې ځینې اوجنګیدل چې ذلیل اووژلې شواو ځینې مسلمانان شو] ﴿وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ او الله ﷻ د لوئې علم او لوئې حکمت خاوند دې [په دغه علم سره د هر یو انجام د اسلام یا دکفر پیژنی او ددې په وجه پخپل حکمت سره مناسب حکمونه مقرروی اوتاسو چې دجنګ کولو نه ډډه کوئ اګر چې ځینې کسان داسې کوی نو] ﴿أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَن تُتۡرَكُواْ﴾ آیا تاسو دا خیال کوئی چې تاسوبه هم دغه شان پریخودئ شئ ﴿وَلَمَّا يَعۡلَمِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ مِنكُمۡ﴾ سره ددې چې چې تر اوسه خو الله ﷻ [په ظاهری ډول] داخلق خوتر اوسه لیدلی نه وی چې هغوئ په تاسو کښې [په داسې موقعه] جهاد کړې وی ﴿وَلَمۡ يَتَّخِذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَا رَسُولِهِۦ وَلَا ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَلِيجَةٗ﴾ اود الله ﷻ او د رسول ﷺ او د مؤمنانو نه سوا بل چالره ئې په خصوصیت سره دوست نه وی جوړ کړې [چې ددې دښکاره کیدو ذریعه دداسې موقعې جهاد دې چرته چې مقابله کول خپلو خپلوانو اورشته دارو سر کول راځی چې پوره امتحان وی چې څوك الله ﷻ لره غواړی اوڅوك برادرئ لره] ﴿وَٱللَّهُ خَبِيرُۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ﴾ او الله ﷻ ته هر ځنګه خبر ستاسو د ټولو کارونو شته دې [که په جهاد کښې تکړه اوسئ اوکه سستی کوئ دهغې مطابق به الله ﷻ بدله درکوی].

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

دحدیبیئې په مقام چه دمکې قریشوسره دجنګ بندئ سمجهوته،شوې وه دسورة توبـه داول سرپه آیتونو کښې دپیشنګوئې په ډول دهغې په باره کښې داخبرورکړې شوې ووچه داخلق بـه په خپل لوظ ټینګ پاتې نشی چه بیان ئې دسورت توبه په اووم آیت کښې ﴿كَيْفَ يَكُوْنُ لِلْمُشْرِكِيْنَ عَهْدٌ﴾ کښې بیان شویدې،بیاپه اتم،نهم اولسم آیت کښې ددوئ دلوظ ماتولواسباب بیان شو، په یوولسم آیت کښې دابیـان اوشوچه دلوظ مـاتولوددې لوئ جرم نه پس هم کـه داخلق مسلمانان شی اوخپل اسلام دمونځ،زکوة په ذریعه ښکاره کول شروع کړی نومسلمانانودپاره ضروری دی چه دهغوئ دکړوجرمونو اثرپه خپلو معـاملاتو کښې باقی پرې نږدی،بلکه هغوئ لره خپل دینی رونړه اوګنړی اودرونړوپشان ورسره ګذران کوی،اوس په دې دولسم آیت کښې دابیان دې چه کـه د پیشنګوئی پـه جوړکله چه دوئ لوظ مـات کړی نو مسلمانان دورسره څه کوی.په دې باره کښې فرمائی:

﴿وَاِنْ نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ فَقَاتِلُوْٓا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ﴾ یعنی کـه داخلق خپـل لوظونـه اوقسمونه مـات کړی اومسلمانان هم نـه وی بلکـه پـه مخـه ستاسودین تـه پیغورونـه ورکوی اوبدې ردې ورته وائی نو دکفردغه پیشوایانوسره جنګ کوئ،

دلته په دې خبره ژورنظرکول پکاردی چه دمقام تقاضـه خو دا وه چې:﴿فَقَاتِلُوْهُمْ﴾ئې دضمیرپه استعمالولوسره وئیلې وې [چه دوئ سره جنګ کوئ] لیکن قرآن پاك پـه دې ځائې کښې د مختصر ضمیر استعمالولو په ځائې ﴿فَقَاتِلُوْٓا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ﴾ ئې اوفرمائیـل:[چه معنی داخلق دخپلې وعدې ماتولوپـه وجـه دکفرپیشوایان اورهنمایـان جوړشوی دی اوپـه دې وجـه ورسره جنګ اوکړئ] ځکه چه [﴿اَئِمَّةَ﴾ د ،امام، جمع ده.په دې کښې دجنګ کولودحکم علت اووجه هم بیـان شوه.اوځنې مفسرینو فرمائیلی دی چه دلته د ،ائمة الکفر،نه مرادمکې دقریشوهغه سرداران دی چه خلق بـه ئې دمسلمانانوخلاف راپـارول اوپـه جنګی تیاریئ کولو کښې بـه لګیاوو،دوئ سره دجنګ کولو بیان ئې په خصوصیت سره ځکه اوکړوچه دمکې دخلقودطاقت اوقوت اصلی اډانړه هم دا خلق دې ددینه علاوه ،داخبره هم وه چه دمسلمانانونږدې خپلوان هم داخلق وو، دا ویره کیدې شوه چه هسې نه مسلمانان ورسره په دې وجه د رعایت معامله اوکړی [مظهری] ([1])

**په داراسلام کښې غیرمسلم ذمیانوته دااجازت شته دې چه په اسلام باندې علمی تنقیداوکړی خواسلام ته دبدو ردوویلواجازت ورلـه نشته؟** د ﴿وَطَعَنُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ﴾ سره ځنې علماؤ دادلیـل نیـولې دې چـه د مسلمانانودین تـه بدې ردې وئیـل پـه لوظ ماتولو کښې حسابیږی،یعنی څوک چه اسلام یا اسلامی شریعت ته بدردوائی هغه دمسلمانانولوظ کوونکی نشی پاتې کیدې، مګر د فقهاؤ رحمهم الله په اتفاق سره دې نه مرادهغه پیغورکول اوبدردوئیل دی چه داسلام او مسلمانانوسپکاوې په جاره اوکړې شی،دحکمونواو مسئلوپه تحقیق کښې څه علمی تنقید کول په دې کښې نه حسابیږی،چنانچه په لغت کښې هم دې ته بدې ردې نشی وئیلې،

هم دغه وجه ده چه پـه داراسلام کښې غیرمسلم [ذمیانو] خلقوتـه خودعلمی تنقیداجازت ورکولې شی خوداسلام دسپکاوی کولواجازت نشی ورکولې،

---

[1]) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۱۴۳

Scanned with Ca

فرمائي ﴿إِنَّهُمْ لَآ أَيْمَانَ لَهُمْ﴾ دا دې خلقو قسمونه اعتباری نه دی] ځکه چه قسمونه اولوظونه ماتول ددې خلقو عادت ګرځيدلې دې، اودجمع [ايمان] دلفظ راوړونه دامطلب هم اغستلې کيدې شی چه هر کله دې خلقو خپل لوظ اوقسم مات کړونو دهغې په بدل کښې دمسلمانان هم ورسره لوظ مات کړی، په مسلمانانو باندې ددې دجاری ساتلو ذمه داری پاتې نشوه،

په آخرد آيت کښې فرمائي: ﴿لَعَلَّهُمْ يَنتَهُونَ﴾ دې دپاره چې شايد دوئ منع شی] په دې آخری جمله کښې دا اوښودلې شوچه دمسلمانانو دجنګ اوجهاد مقصد ددنيادعامو خلقو پشان، دښمن تنګول، بدل اغستل يادعامو بادشاهانو پشان وطنونه قبضه کول نه دی، بلکه مقصدئې دا لرل پکاردی چه دښمنانو ته ئې څه خبره ښيګړه اورسی اوهغوئ دخپلو غلطو کارونونه واوړی،

وريسې په دیارلسم آيت کښې فرمائي: تاسو داسې خلقو سره ولې جنګ نه کوئ چه درسول الله ﷺ دويستلو منصوبه ئې جوړه کړيده، دامنصوبه دمدينې منورې يهوديانو جوړه کړې وه اوونيلي ئې وو،

﴿لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ﴾ خامخابه عزتمن خلق کمزوری اوذليل خلق دمدينې منورې نه اوباسی] دې خلقو په خپل غلط خيال کښې عزتمن، ځان ته اوونيل اوکمزوری اوذليله ئې مسلمانانو ته اوونيل، خوددې په جواب کښې الله تعالى عملاً داسې ثابت کړل چه کمزوری او ذليل هم دوئ په خپله دی اوعزتمن خلق مسلمانان ځکه دی چه همدغې يهوديانو لره مسلمانانو دمدينې منورې نه خارج اوملک بدر کړل اوبوتې ئې تراوويستل،

دوئ سره ئې دجنګ کولو بله وجه دا اوښودله ﴿وَهُم بَدَءُوكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ اول سرهم دغې خلقو په جنګ شروع کړيده] په دې بنادمسلمانانو په ذمه ددې په شاتمبول دی، چه هيڅوک ئې هم بدنه ګنړی، بلکه دې ته دهر فطرت سليمه تقاضاوئيلې شی،

ددوئ نه دمسلمانانو بوکنيدل الله تعالى په دې شان سره لرې کوی،

﴿أَتَخْشَوْنَهُمْ ۚ فَاللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَوْهُ﴾ آيا، تاسو دوئ نه ويريږئ حالانکه ويره کول يواځې دالله تعالى نه پکارده] دچاعذاب چه هيڅ يو طاقت نشی ايسارولې. په آخر کښې: ﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ سره اوښودلې شوچه غير الله نه په دې شان ويره کول چه دشرعی حکمونو په اداکولو کښې بنديز جوړيږی دمسلمان شان سره نه ښائی،

په څوارلسم اوپنځلسم آيت کښې په يوبل عنوان سره دمسلمانانو دجنګ اوجهادشوق راپاره کوی چه څوخيزونه پکښې ښودلې شويدی:

① اول دا چه که تاسو جنګ دپاره تيارشوئ نو دالله تعالى امداد به تاسو سره وی اودا قوم دخپلې بدعملئ په وجې سره دالله تعالى دعذاب مستحق شوی خودی مګرپه دوئ باندې به دالله تعالى عذاب دزمکې ياآسمان د اړخه نه راځی ځکه چه په پخوانو قومونو راغلې وو بلکه هم ستاسو دلاسه به عذاب ورکوی لکه فرمائي ﴿يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ﴾

② دويمه دا چه ددې جنګ په نتيجه کښې به الله تعالى دمسلمانانو دزړونو هغه غم، درد لرې کړی چه دکفارو دلاسه مسلمانانو ته په مخه رسيدو،

③ دريمه دا چه دمسلمانانو په زړونو کښې دکفارو دتګئ په وجه چه کوم تاؤ اوقهر راولاړ شوې دی، هم ددوئ دلاسه به کفاروته په عذاب ورکولو سره هغه سوړ کړی،

Scanned with Ca

په مخکښې آیت کښې ﴿لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُونَ﴾ فرمائیلو سره مسلمانانو ته داهدایت کړې شوې وو چه دخپلې غصې سړولو دپاره دې قوم سره نه جنګیږی، بلکه په دې کښې دی دامقصد مخې ته لری چه دهغوئ اصلاح اوورته هدایت اوشی، په دې آیت کښې داهم اوښودلې شو چه هرکله مسلمانان خپل نیت دالله تعالی درضاپه خاطرصفااولری، خالص دالله تعالی دپاره جنګیږی نوالله تعالی به په خپل فضل سره داسې صورتونه هم پیداکړی چه ددوئ دغم اوغصې بدل اغستل به پکښې پخپله راشی، ④ څلورم ئې دااوفرمائیل ﴿وَيَتُوبُ اللّٰهُ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ﴾ یعنی په دوئ کښې به الله تعالی دهغه چاتوبه قبوله کړی دکوموتوبه قبلول چه ورته منظوروی،

په دې شان ددې جهادیوفائده داهم ښکاره کړې شوه چه دددښمنانودډلې نه به ډیروخلقوته داسلام راوړلوتوفیق ورکړې شی، چنانچه په فتح مکه کښې ډیرسرکشان ذلیل اوخوارشواو ډیرخلق په اسلام سره مشرف شو،

په دې آیتونوکښې دکوموحالاتواوواقعاتوپیشنګوئی چه شوې وه، تاریخ ګواه دې چه هر یوهغه پیشنګوئی اوخبررشتیاشوچه قرآن کریم رومبې نه ورکړې وو، په دې بناپه دې آیتونو کښې ډیرمعجزات هم ښودلې شویدی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا كَانَ | لِلْمُشْرِكِيْنَ | اَنْ يَّعْمُرُوْا | مَسٰجِدَ | |
| نه دی مناسب | مشرکانو لره | اچی آباد کړی | اجوماتونه | |
| د مشرکانودپاره جائز نه دی چه د الله تعالی جماتونه آباد | | | | |
| اللّٰهِ | شٰهِدِيْنَ | عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ | بِالْكُفْرِ | اُولٰٓئِكَ |
| دالله | احال دا چی ګواهی کونکی وی | اپه ځانونوخپلوباندې | د کفر | دغه مشرکان چی دی |
| کړی حال دا چه په خپلو ځانونو پخپله د کفر ګواهی ورکوی [چه مونږ کافران یو] د دې خلقو [نیک] | | | | |
| حَبِطَتْ | اَعْمَالُهُمْ | وَفِي النَّارِ هُمْ | خٰلِدُوْنَ ۝ | اِنَّمَا يَعْمُرُ |
| ضائع شول | اعملونه دهغوئ | اوپه اورکښې به اهغوئ | اهمیشه وسی | ابیشکه ا آبادوی به |
| عملونه ضائع شول اودوی به په اور کښې همیشه وی بیشکه د الله تعالی جماتونه په هغه خلق آبادوی | | | | |
| مَسٰجِدَ اللّٰهِ | مَنْ | اٰمَنَ | بِاللّٰهِ | وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَقَامَ |
| جوماتونه دالله | اهغه څوك | اچی ایمان راوړی | اپه الله | اوپه ورځ دآخرت باندې ا اوقائم کړی |
| [او دوی د جماتونو آبادولو لائق دی] چا چه په الله او په ورځ د آخرت ایمان راوړی وی او مونځ | | | | |
| الصَّلٰوةَ | وَاٰتَى الزَّكٰوةَ | وَلَمْ يَخْشَ | اِلَّا اللّٰهَ | فَعَسٰٓى اُولٰٓئِكَ |
| مونځ | اوورکړی زکاة | اونه یریږی | مګر ا دالله نه | امید دې چی ا دغه کسان |
| قائموی او زکاة ورکوی او د الله نه سوا د بل هیڅ چا نه نه ویریږی امید دې چه دغه کسان | | | | |
| اَنْ يَّكُوْنُوْا | مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ۝ | | | |
| چی شی به هغوئ | دلارموندونکونه | | | |
| د هغه خلقو څنې شی چه په سمه لار روان دی | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

مشرکان ددې خبرې اهل نه دی چه دوی دالله جماتونه آباد کړي حال دا چه دوی خپله د خپل کفر گواهان جوړ شوي دي ددې خلقو اعمال برباد شوي دي، او دوزخ کښې به دوی همیشه وي. دالله جماتونه خو هغه خلق آبادوي چه په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړي ، او د مانځه پابندي کوي او زکوٰة ادا کوی ، او دالله نه سوا د بل چا نه نه ویریږی د داسې خلقو نه دا امید کیدې شي چه دوی به هغه چاکښې شامل شي چه هغوی په سمه لاره باندې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿مَاكَانَ لِلْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يَّعْمُرُوْا مَسٰجِدَ اللّٰهِ شٰهِدِيْنَ عَلٰۤى اَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ﴾ مشرکان د سره ددې قابل نه دی چې هغه دالله ﷻ مساجد [مسجد حرام هم په کښې شامل دې] آبادی کړی په کوم حالت کښې چې هغوئ پخپله د خپل کفر [دخبرو] اقرار کوی [چنانچه هغوئ د خپل رو ، گودر ، خودلو په وخت کښې ئې دداسې عقیدو اقرار کولو چې په واقعی کښې د کفر عقیدې دی، مطلب دا شوچې اگرکه مساجد جوړول یوښه کار دې لیکن هرکله چې دکفرسره هیڅ سمون نه لری نو د سره ددې عمل اهلیت ختم شو او هیڅ اعتبار ئې نشته ، نو بیا پرې د دوئ د فخر کول څه گنجائش دې؟] ﴿اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ﴾ ددې خلقو [کوم چې مشرکان دی] ټول [نیك] عملونه [لکه د مساجدو جوړول وغیره] بیکاره [او برباد] دی [په وجه ددې چې ددې دقبلیدو شرط په کښې نشی بیا موندلې کیدې نو په برباد عمل باندې د فخر کولو مطلب څهٔ شو ؟ ﴿وَفِي النَّارِ هُمْ خٰلِدُوْنَ﴾ اوپه دوزخ کښې به دغه خلق همیشه اوسیږی [ولې چې ددوئ د خلاصئ عمل خو برباد شوې وو] ﴿اِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ﴾ البته د مساجدو آبادول دهغې خلقو کار دې [یعنی په کامله توگه دهغې خلقو نه قبلولې شی] ﴿مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ چې څوك په الله ﷻ باندې او د قیامت په ورځ [دزړه نه] ایمان راوړی [او په اندامونو سره ئې هم ښکاره کوی لکه په داسې شان چې] ﴿وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ﴾ دمونځ پابندی کوی او زکوة ورکوی او [په الله ﷻ باندې داشان تکیه لری چې] ﴿وَلَمْ يَخْشَ اِلَّا اللّٰهَ﴾ بغیر د الله ﷻ نه د هیچا نه نه ویریږی ﴿فَعَسٰۤى اُولٰٓئِكَ اَنْ يَّكُوْنُوْا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ﴾ نو د داسې خلقو باره کښې امید دې [یعنی وعده ده] چې خپل مقصود [یعنی جنت اوخلاصی] ته به اورسی [ځکه چې د ایمان په وجه به ئې عملونه قبول وی دهغې فائده به ورته په آخرت کښې رسی ، مشرکان په دې شرط باندې پوره نه خیژی ځکه ئې په بې سوده عمل کولو باندې فخر کول عبث دی].

## معارف اومسائل

په تیروشوؤآیتونو کښې دمشرکانو کوړعملی، دخپل باطل دین دپاره هرقسم کوشش کول او ددې په مقابله کښې دمسلمانانو دجهادشوق پیدا کول بیان شوی وو، په دغې آیتونو کښې مسلمانانو ته دجهادتاکید شوې دې، اوورته داښودلې شویدی چه یواځې جنگ اوجهادداسې څیزدې چه دمسلمان امتحان پرې اغستې شی، دمخلص مسلمان اودمنافق یادکمزوری ایمان دخاوندبیلتون پرې راتلې شی اودا امتحان ضروری دې،

په شپاړسم آیت کښې، فرمائي: آیا تاسو دا گنړئ چه یواځې د اسلام په کلمې وئیلو او د اسلام په دعوې کولو سره آزاد پریښوې شئ ترڅو چه الله تعالی په ښکاره ډول هم هغه سوچه او پاخه مسلمانان اونه گوري چه په تاسو کښې جهاد کوونکي دي او د رسول الله ﷺ او د مسلمانانو نه سوا، بل څوک خپل رازدار دوست نه جوړوي. په دې آیت کښې هغه عامو خلقوته خطاب دې چه مسلمانان به گنړلي شو، په دوئ کښې داسې مسلمانان هم وو چه ایمان ئې کمزورې وو او په تراره کښې به وو، اوځنې پکښې منافقان وو، داسې قسم خلقو به خپلو غیر مسلمو دوستانو ته د مسلمانانو رازونه ښکاره کول، په دې وجه دې آیت کښې د مخلصو مسلمانانو دوه علامتونو ښودلې شویدی،

**د مخلصو مسلمانانو دوه نخښې:!** ① اوله نخښه ئې داده چه کفارو سره جهاد، خالص د الله تعالی د رضا دپاره کوي، ② دویمه دا چه ډ چا غیر مسلم لره خپل رازدار دوست جوړنکړي، په آخر د آیت کښې فرمائي: ﴿وَاللّٰهُ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ﴾

تاسو چه څوکوئ الله تعالی د هغې نه ښه خبر دې، د هغه وړاندې د چالونه او تاویلونه نشي چلیدې. هم دا مضمون د قرآن کریم په یو بل آیت کښې داسې راغلې دې،

﴿اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ يُّتْرَكُوْٓا اَنْ يَّقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ﴾ آیا، خلقو داسې گنړلې ده چه صرف ځان ته په مسلمان وئیلو به آزاد پریښوې شی او د هغه به هیڅ امتحان نشي اغستې!

**بو غیر مسلم لره رازدار دوست جوړول درست نه دي: !** په دغې آیت کښې د ﴿وَلِيْجَةً﴾ لفظ معنی د، پټ او رازدار دوست، ده، په بل آیت کښې د دې لفظ په ځای بل لفظ ﴿بطانة﴾ راغلې دې، د دې لفظ معنی د جامې هغه استر دې چه بدن پورې لگیدلې وي، مراد تر داسې یو بنده دې چه د چا د پټو، اندروني او کورونو حالاتو نه خبروي چنانچه تول آیت داسې دې،

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا﴾ اې مؤمنانو، د خپلو مسلمانانو نه سوا، بل چا لره رازدار دوست مه جوړوئ هغه تاسو سره تکی کوي او ستاسو په بربادولو هیڅ صرفه نه کوي! په ورپسې اوولسم او اتلسم آیت کښې دا بیان دې چه مسجد حرام اونور جماتونه [مسجدونه] د باطلو عبادتونو نه پاک کړې شی او په صحیح او مقبول طریقې سره د عبادت کولو هدایتونه ورکړې شویدی.

تفصیل ئې دادې چه هر کله مکه مکرمه فتح شوه نو رسول الله ﷺ د بیت الله شریف او مسجد حرام نه تول هغه بتان بهر گذار کړل د کوموبه چه مشرکانو عبادت کولو، په دې شان خو مسجد حرام د بتانو نه پاک کړې شو، لیکن مشرکانو به بیا هم په باطله طریقه دغلته طواف اونور خپل عبادتونه کول، د دې بندیز راوستل هم اگرچه ضروري وو او ظاهري صورت ئې دا جوړیدې شو چه مشرکان د مسجد حرام رانئوتو ته د سره پرې ښودې شی لیکن دا به ورته د ورکړې امان خلاف وو او د معاهدې پابندي کول په اسلام کښې د هر څه نه زیات ضروري څیز وو، څکه سمدستی دغسې اونکړې شو بلکه د فتح مکې په راتلونکی کال کښې رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت علي رضی الله عنه ته د منی او عرفات په عامه غونډه کښې د دې اعلان کولو حکم ورکړو، چه په حرم شریف کښې د مشرکانه طرز د عبادت او حج او طواف وغیره کولو بندیز شویدې، د جاهلیت هغه رسم هم بند شو چه په بربنده به ئې طواف کولو د دې په مطابق حضرت علي رضی الله عنه د منی په عامه غونډه کښې اعلان اوکړو چه،

لَا يَحُجَّنَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوفَنَّ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ» (۱) [يعنى دې كال نه پس به هيڅوک مشرک حج نشي كولې او هيڅوک به په بربنډه طواف نشي كولې]

دې كال دا ډېل څكه وركړې شو چه دې كښې ډېر خلق هغه هم وو چاسره چه د مسلمانانو لوظ شوې وو او دنيتې پوره كيدونه وراندې دهغې خلاف كول او څه نوې قانون ورته رامخې ته كول اسلامى پت پاللو [رواداری] اسره جوړښت نه خوری څکه ئې دا اعلان يو كال وړاندې جارى كړو او ورته او وئيلې شو چه حرم شريف د مشركانه عبادتونو كولو او د شركى رسمونونه د پاكولو فيصله شوى ده ولې چه دا قسم عبادتونه كول په حقيقت كښې د جماتونو آبادول نه، بلكه د دې ورانول دى،

د مكې مشركانو به دغې خپلو مشركانه رسمونو ته عبادت وئيلو دا به ئې د مسجد حرام آبادول بلل او فخر به ئې پرې كولو، وئيل به ئې چه مونږ خو د بيت الله شريف او مسجد حرام مُنتظمان يو او د دې د آبادولو ذمه دارى يو حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمائيلى دى چه هركله حضرت عباس رضي الله عنه د مسلمانيدو نه وړاندې د بدر په غزا كښې مسلمانانو بندى كړو او ورته ئې په كفر او شرك باندې د تينګ پاتې كيدو پيغور وركړونو هغوئ رضي الله عنه جواب وركړو چه تاسو [مسلمانان] خو يواځې زمونږ خرابئ يادوئ او مونږ د خوبيانو هيڅ ذكر نه كوئ، وې وئيل چه تاسو ته دا معلومه نه ده چه مونږه د مسجد حرام او بيت الله شريف آبادلرونكى، د دې انتظام كوونكى او حاجيانو ته داوبو وركولو [څكولو] وغيره هرقسم خدمت كوونكى هم يو په دې باندې د قرآن كريم دا آيتونه نازل شو،

﴿مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَنْ يَعْمُرُوا مَسَاجِدَ اللَّهِ﴾ مشركان دا حق نه لرى چه د الله تعالى جماتونه آباد كړى] ولې چه جماتونه صرف هغه ځايونه كيدې شى چه خالص د الله تعالى وحده د عبادت د پاره جوړ كړې شوى دى، شرک او كفر د دې ضد او په ته ځيزدې چه جوماتونو آبادولو سره نشي جمع كيدې،

په دې آيت كښې د جومات د آبادولو [عمارت] لفظ په څو معنو كښې استعماليږى ① يو قسم آبادول ئې دادى چه ديوالونه چت وغيره ئې آباد كړې شى ② بل قسم آبادول ئې دادى چه د حفاظت، صفائى او نورو ضرورياتو انتظام ئې او كړې شى، او ③ دريم قسم آبادول ئې دادى چه عبادت پكښې او كړې شى، چنانچه عمرې ته عمره څكه وئيلى شى چه په دې كښې د بيت الله شريف زيارت كولې شى او عبادت د پاره پكښې حاضريدل دى،

د مكې مشركانو به په دې درې واړه معنو كښې خپل ځانونه د بيت الله شريف آبادونكى ضباطول او د مسجد حرام د آبادولو به ئې خپل ځانونه ذمه دار ګنړل چه فخر به ئې پرې كولو، په دې آيتونو كښې الله تعالى واضحه كړل چه د الله تعالى د جوماتونو د آبادولو حق مشركان د سره څكه نه لرى چه دوئ پخپله د خپل كفر او شرک ګواهان دى، د دوئ عملونو تباه او برباد شو او هميشه به د جهنم په اوركښې پاتې كيږى. پخپله د خپل كفر او شرک د ګواهئ وركولو مطلب يا خو دا كيدې شى چه د خپل شركى كارونو او عملونو كولو په وجه ګويا كښې د خپل شرک او كفر ګواهى وركوى او يا په دې وجه چې عادة كله د يو نصرانى او يهودى نه تپوس اوشى چې ته څوك يې ؟ نو هغه خپل ځان ته نصرانى يا يهودى وائى همدا شان مجوسى او بت پرست خلق هم په خپلو كافرانه نومونو

---

(۱) صحيح البخاري، كتاب التفسير، سورة التوبة، باب قوله تعالى الا الذين عٰهدتم من المشركين: ج ۲، ص ۶۷۱

سره خپله پیژند ګلی کوی په دې لحاظ سره ګویا کښې دا دخپل کفر او شرک ګواهی کول شو [ابن کثیر] (۱)

په دې آیت کښې د جوماتو دآبادولو منفی اړخ بیان کړې شو چه مشرکان ددې اهل او جوګه نه دی. اوس په بل آیت کښې ددې مثبت اړخ داسې بیانوی ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ وَلَمْ يَخْشَ اِلَّا اللّٰهَ فَعَسٰى اُولٰٓئِكَ اَنْ يَّكُوْنُوْا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ﴾ یعنی د جوماتونو آبادول یو اخې دهغه کسانو کار دې چه په الله تعالی او د قیامت په ورځ ایمان راوړی، د مونځ پابندی کوی او زکوة ورکوی او د الله تعالی نه بغیر د بل هیچانه نه ویریږی، نو د داسې خلقو په باره کښې امید دې چه دوئ به خپل مقصد کښې کامیاب شی]

مطلب دا دې چه د جوماتونو اصلی تعمیر [آبادول] یو اخې هغه خلق کولې شی چه د عقیدې او عمل دواړو له مخې د الله تعالی د حکمونو پابند وی، په الله تعالی او د آخرت په ورځ ایمان لری. دلته یو اخې په الله تعالی او د آخرت په ورځ د ایمان راوړلو ذکر او کړې شو، په رسول الله ﷺ باندې د ایمان راوړلو ذکر په دې وجه ضروری اونه ګنړلې شو چه په الله تعالی باندې د ایمان راوړلو صورت، په رسول الله ﷺ باندې د ایمان راوړلو نه بغیر د سره کیدې نشی، یعنی څوك، پورې چه د الله تعالی له اړخه د رسول الله ﷺ راوړلی احکام د زړه د اخلاصه قبول نکړی نو دا په الله تعالی باندې هم ایمان راوړل څکه نه حسابیږی چه الله تعالی باندې ایمان راوړلو کښې په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړل په فطری ډول داخل دی، همدغه وجه ده چه یو ځل رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ نه تپوس او کړو چه، تاسو پوهیږئ چه په الله تعالی باندې ایمان راوړل څه څیز دې؟ هغوئ ﷺ عرض او کړو چه، الله تعالی او رسول لله ﷺ په دې ښه پوهیږی. رسول الله ﷺ او فرمائیل چه، په الله تعالی باندې ایمان راوړل دا دی چه بنده د زړه نه ددې ګواهی ورکړی چه د الله تعالی نه سوا بل هیڅوك د عبادت لائق نشته او دا چه محمد ﷺ د الله تعالی رسول دې. دې حدیث نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړل الله تعالی باندې په ایمان راوړلو کښې داخل او شامل دی، [مظهری د صحیحینو په حواله] (۲)

او دا فرمائیل چه د الله تعالی نه بغیر د بل هیچانه نه ویریږی، ددې معنی دا ده چه، د دین په معامله کښې د چا ویرې د کبله، د الله تعالی حکم پرې نږدی، ورنه دویرې د څیزونو نه ویریدل او بوګنیدل خو د عقل او فطرت تقاضا ده، درندګانو او زهرجنو ځناورونه د هغه شان د غل او ډاکو نه په طبعی شان سره ویریدل، ددې خلاف نه دی څنګه چه د حضرت موسی ﷺ په وړاندې هر کله چه جادوګرو، د رسیانو او پړونه جوړ کړی ماران ښکاره کړل نو هغوئ ﷺ او ویریدل لکه فرمائی،

﴿فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى﴾ مطلب دا چه داسې قسم طبعی ویریدل د قرآنی حکم نه خلاف نه دی او نه پیغمبرئ او ولی توب سره بې سمونه دی البته دویرې له کبله دومره مغلوب کیدل د مؤمن شان نه دې چه د الله تعالی په حکمونو کښې خلل راولی یا بیخی د الله تعالی حکمونه پریږدی دلته تر هم دا مراد دی.

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۱۹

(۲) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۱۲۷، وصحیح البخاری، کتٰب الإیمان، باب اداء الخمس من الإیمان: ج ۱، ص ۱۳

Scanned with Ca

**دې آیت سره څنې تړلې مسائل:** په دې آیتونو کښې دا بیان شو چه، مشرکان او کافران د جوماتونو آبادول نشي کولې بلکه دا یوازې دنیک او صالح مسلمان کار دې، دې نه مطلب د جوماتونو سنبالول او انتظامي ذمه داري پوره کول دی، په دې باحاصل ئې دا شو چه یو کافر یا مشرک د یو اسلامي وقف متولي یا منتظم جوړول جائز نه دی، البته د جوماتونو په ظاهري آبادولو مثلا د دې په دیوالونو، چتونو وغیره جوړولو کښې تر کارا غستل څه بدیت نه لري [تفسیر مراغي]

دغه شان که یو غیر مسلم د ثواب حاصلولو په غرض جومات جوړ کړي یا د جومات په جوړولو کښې مسلمانانو ته چنده ورکوي نو د دې قبلول هم په دې شرط سره جائز دي چه تر نه څه دیني یا دنیوي نقصان نه را ؤلاړیږي، څه الزام یا پېغور ترنه را پورته کیږي، په آئنده کښې پرِ د قبضې کولو غرض ئې پکښې نه وي، د احسان ضباطولو مطلب ئې پکښې نه وي، [در محتار، شامي، مراغي]

په دې آیت کښې ئې او فرمائیل چه، د جوماتونو آبادول یوازې د نیک مسلمان کار دې، دې نه دا هم ثابته شوه چه څوک د جوماتونو حفاظت صفائي کوي، د دې د نورو ضروریاتو انتظام کوي، یا عبادت، د الله تعالى ذکر، یا د علم دین او قرآن لوستلو لولو د پاره جومات ته څي راځي، دهغوئ دا عملونه کول د دې خبرې ګواهي ده چه کامل مؤمنان دي،

د ترمذي او ابن ماجه په حواله دابي سعید خدري رضي الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه، هر کله تاسو دا سې یو سړې او وینئ چه په جومات کښې د حاضرید و پابند دې نو دهغه دا یمان ګواهي ورکړئ ځکه چه الله تعالى فرمائي: ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ﴾ (۱)

او د صحیحینو په حدیث کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ او فرمائیل چه، څوک سهر ما ښام په جومات کښې حاضریږي الله تعالى ورد پاره په جنت کښې یو درجه تیاروي، (۲)

د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه په روایت رسول الله ﷺ او فرمائیل چه څوک جومات ته راشي هغه د الله تعالى زیارت کوونکې میلمه وي، په کوربه باندې حق دې چه د میلمه خاطر مدارا وکړي [مظهري په حواله د طبراني، ابن جریر، بیهقي وغیره] (۳)

مفسر قرآن حضرت قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمائیلي دي چه د جومات په آبادولو کښې دا هم داخل دي چه جوماتونه د دا سې څیزونو نه پاک کړي د کوم د پاره چه جوماتونه نه دي جوړ شوي، مثلا خرید، خرڅ شو، دنیوي خبرې کول، دورک شوي څیزلټون کول شو، یا د دنیا د څیزونو د خلقو نه سوال کول شو، یا فضول قسم شعرونه وئیل شو، جنګ، جګړې، شور، شغب وغیره کول شو [مظهري] (۴)

| | |
|---|---|
| سِقَايَةَ ٱلْحَآجِّ | أَجَعَلْتُمْ |
| اوبه ورکول حاجیانو ته | آیا ګنړلي دي تاسو |
| آیا تاسو حاجیانو ته اوبه ورکول | |

---

[1] ) جامع الترمذي، أبواب التفسير، باب ومن سورة التوبة: ج ۲، ص ۱۳۰

[2] ) صحيح البخاري، كتاب الاذان، باب فضل من خرج الى المسجد ومن راح: ج ۱، ص ۹۱، وصحيح مسلم، كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب فضل الصلاة المكتوبة ـــ الخ: ج ۱، ص ۲۳۲

[3] ) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ۶۰۱۶، وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ۲۸۱۲ والمظهري: ج ۴، ص ۱۳۸

[4] ) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۱۳۸، ۱۳۹

Scanned with Ca

وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ

او آبادول | دمسجد حرام ابرابر پشان دهغه چا | اچي ايمان ئي راوړو | په الله باندې |او په ورځ

اودمسجد حرام آبادول [په ثواب اونيکئ کښې] دهغه چا پشان گرځوئ چه په الله او په ورځ د آخرت

الْاٰخِرِ وَجٰهَدَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ لَا يَسْتَوٗنَ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ

دآخرت باندې |اوجهاد ئي اوکړو | په لار دالله کښې | انه دي برابر هغوئ | په نز دالله | اوالله

ئي ايمان راوړې وي او د الله تعالى په لار کښې ئي جهاد کړې وي دا خلق د الله په نيز برابر نه دي اوالله

لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا

نيغه لارنه ښائى | قوم | ظالم ته | هغه کسان |چې ايمان ئې راوړو |اوهجرت ئې اوکړو |

ظالمانوخلقو ته د هدايت توفيق نه ورکوى هغه خلق چه ايمان ئي راوړې دې او هجرت ئي کړې دې

وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ۙ اَعْظَمُ

اوجهاد ئې اوکړو | په لار دالله کښې | په مالونوخپلو سره |اوپه نفسونو خپلو سره | ډيرلوئ دى |

او دالله په لار کښې ئې په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کړې وى [دغه خلق] د الله په نيز د ثواب

دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ۝ يُبَشِّرُهُمْ

په لحاظ د درجې سره |په نز دالله | اودا کسان |هم دوئ |کامياب دى | ازيرې ورکوى هغوئ ته

په اعتبار سره ډير لوئي دى اوهم دغه خلق [په دنيا او آخرت کښې] کامياب دى د دوى رب دوى ته

رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ لَّهُمْ

رب دهغوئ |په رحمت سره |دطرف خپل نه |اوپه رضامندئ سره |اوپه باغونو سره | چې وى به دهغوئ دپاره

د خپل طرف نه د رحمت او رضامندئ او د باغونو زيرې ورکوى [کله چه دوى دغه باغونو ته ورداخل شى نو] د

فِيْهَا نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ ۝ ۙ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ

په هغې کښې |نعمتونه |هميشه |چې هميشه به اوسيږى | په هغې کښې |هميشه هميشه |بيشکه الله

دوى دپاره به هغې کښې هميشه پاتې کيدونکې نعمتونه وى اودوى به هغې کښې هميشه هميشه وى بيشکه

عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْٓا

دهغه سره دې | الاجر | لوئ |اے هغه کسانو | چې ايمان موراوړې دې |مه نيسئ تاسو

دالله تعالى سره [دوى دپاره] لويه بدله ده اې د ايمان خاوندانو! تاسو په خپلو پلارانو او خپلو ورونړو

اٰبَآءَكُمْ وَاِخْوَانَكُمْ اَوْلِيَآءَ اِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ

پلاران خپل |اوورونړه خپل | ادوستان | که خوښ کړى هغوئ | کفر |

کښې هغه چا سره دوستى مکوئ چا چه د ايمان په مقابله کښې کفر خوښ کړى وى ..........

عَلَى الْاِيْمَانِ ؕ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاُولٰٓئِكَ

په ايمان باندې |اوهغه خوک |چې دوستى ئې اوکړه دهغوئ سره |استاسو نه |انودغه کسان

..........اوچا چه په تاسو کښې [په داسې حالت کښې هم دوستى اوکړه] نوهم دغه خلق

| | |
|---|---|
| هُمُ | الظّٰلِمُوْنَ ۝ |
| هم هغوئ | ظالمان دي |
| ظالمان دي | |

## آسان ترجمه قرآن

آیا تاسو حاجیانو ته اوبه ورکول او مسجد حرام لره آبادول د هغه کس ﴿ د اعمالو ﴾ برابر گرځولي دي چه هغه په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړې دې او دالله په لاره کښې ئې جهاد کړې دې دالله په نیز دا ټول برابر نه شي کیدې، او الله ظالمانو لره خپل منزل مقصود ته نه رسوي، چا چه ایمان راوړې دې او دالله په لاره کښې ئې هجرت کړې دې او پخپلو مالونو او ځانونوسره ئې جهاد کړې دې، دوی دالله په نیز باندې په درجه کښې زیات دي اودا خلق کامیابیدونکي دي د دوی پروردګار دخپل طرف نه دوی ته د رحمت او رضامندۍ، او د داسې باغونو خېرې ورکوي چه هغې کښې دوی دپاره همیشه نعمتونه دی، دوی به دې کښې همیشه وي ، یقیناً هم دا الله دې چا سره چه لوئې اجر دې، اې د ایمان خاوندانو! که ستاسو پلاران او ورونړه د کفر په مقابله کښې ایمان ته ترجیح ورکړي نو هغوی خپل سرپرستان مه جوړوئ اوڅوک چه دوی لره سرپرست جوړوی نو هغوی په ظالمان وی.

## خلاصه تفسیر

﴿أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ آیا تاسو خلقو ، حاجیانو باندې اوبه څکول او مسجد حرام آبادول ، ﴿كَمَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَجَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ د داسې کس [دعمل] پشان اوګرځول چې په الله ﷻ اود قیامت په ورځ ایمان راوړی او هغه د الله ﷻ په لار کښې جهاد کړې وی [دغه عمل ایمان او جهاد دې یعنی دا عملونه یو شان نه دی او هر کله چې عملونه یو شان نه دی نو! دا [عمل کوؤنکی] خلق [هم یو تر بله] ﴿لَا يَسْتَوُونَ عِنْدَ اللَّهِ﴾ یوشان نه دی د الله ﷻ په نزد [غرض دا چې عملونه خپل مینځ کښې اوعمل کوؤنکی خپل مینځ کښې سره یوشان نه دی ، د چلن د کلام په قرینې سره مقصود دادې چې ایمان ، او جهاد هر یو زیات غوره دې د اوبو څکولو اوآبادولو نه ،یعنی ایمان هم د دوواړو نه زیات غوره دې ،دا جواب دې مؤمنانو ته چې د راوړلو نه پس ئې حاجیانو باندې اوبه څکول اود مسجد حرام آبادول دجهاد نه زیات غوره ګڼړل] او [دا خبره خو ډیره زیاته ښکاره ده لیکن] ﴿وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ﴾ کوم خلق چې بې انصافه دی [مراد ترې مشرکان دی] الله ﷻ هغوئ ته پوهه نه ورکوی [ځکه هغوئ نه منی ، بل طرفته مؤمنانو خلقو ،دا تحقیق سمدستی اومنلو ، وروسې هغه مضمون ښه ښکارول کوی چې د بره د لایستون نه مقصود وو یعنی] ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا﴾ کومو خلقو چې ایمان راؤړو او [الله ﷻ دپاره] هغوئ وطن پریخودو ﴿وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ﴾ اود الله ﷻ په لار کښې پخپل مال او ځان سره جهاد اوکړو ، ﴿أَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللَّهِ﴾ هغوئ په درجه کښې د الله ﷻ په نزد [د اوبو څکوؤنکو اوآبادونکو په مقابله کښې] زیات لوئې دی [ځکه چې اوبه څکوؤنکی او آبادوؤنکو کښې ایمان نه وی نو دا لوئ خالص په هغه مؤمنانو مهاجرو او مجاهدینو کښې منحصره ده اوکه په هغوئ کښې ایمان وی نواګر چې هغوئ هم لوئې دی مګر دهغوئ په نسبت

دوئ زیات لوئي دی] ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ﴾ او هم دا خلق پوره کامیاب دی [څکه که دبې ایمانو سره ئې مقابله اوکړې شي نو یوازې هم دوئ کامیاب دی، اوکه ایماندارو سره ئې مقابله اوکړې شي نو کامیابئ کښې اګر که دواړه سره شریك دی خو بیاهم د دوئ کامیابي زیاته لوړه ده، وړیسې ددغه درجې او کامیابئ بیان دې چې] ﴿يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُم بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ﴾ د دوئ رب دوئ ته زیرې ورکوي د خپل طرفنه د یو رحمت ﴿وَرِضْوَانٍ وَجَنَّاتٍ لَّهُمْ فِيهَا نَعِيمٌ مُّقِيمٌ﴾ اودوئ رضا مندی [او د جنت] دداسې باغونو چې دوئ دپاره به دغې [باغونو] کښې د همیشه همیشه نعمت وی ﴿خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا﴾ او په هغې کښې به دوئ همیشه همیشه اوسیږی ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ بیشکه الله ﷻ سره لوئي اجر دې [او دهغې څخه به دوئ ته ورکولې شی] ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا آبَاءَكُمْ وَإِخْوَانَكُمْ أَوْلِيَاءَ إِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْإِيمَانِ﴾ ائې د ایمان خاوندانو خپل پلرونه او خپل رونړه [خپل] ملګری دوستان مه جوړوئ که دغه خلق کفر لره په مقابله د ایمان کښې [داسې] عزیز لری [چې ددې د ایمان راوړلو امید پاتې نشی] ﴿وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾ اوڅوك چې تاسو څخه د هغوئ سره ملګرتیالری نو داسې خلق لوئې نافرمانه دی [مطلب دادې چې په هجرت کولو کښې لوئې رکاوټ ددغې خلقو تعلق دې کوم چې روا اوجائز نه دې بیا په هجرت کولو کښې څه سختی ده].

### معارف او مسائل

اوسنی څلور رومبی آیتونه [۱۹] نه تردوه [۲۲] دویشتم پورې] یو خاص واقعې سره تړون داسې لری چه د مکې ډیرو مشرکانو به دمسلمانانو په مقابله کښې په دې فخر کولو چه مونږه دمسجدحرام د آبادولو او حاجیانو ته داوبو څکولو کارکوؤچه دې نه بل زیات ښه عمل نشی کیدې، داسلام راوړلو نه وړاندې کله چه حضرت عباس ؓ دبدر په غزا کښې دمسلمانانو بندیوان شو او دهغوئ ؓ مسلمانانو او عزیزانو په دې ملامته کړو چه ته دایمان دنعمت نه محرومه ئې نو هغوئ ؓ هم دغه وئیلی وو، چه تاسو خو ایمان او هجرت خپله لویه سرمایه دغورولی ګنړئ خو مونږ په لاس کښې دمسجدحرام آبادول او حاجیانو ته اوبه څکول دی، چه ډیرلوئ خدمت دې او بل هیڅ عمل ورسره برابریدې نشی، په دې باندې داآیتونه نازل شو، [ابن کثیر] په روایت دعلی ابن ابی طلحه دابن عباس ؓ نه(۱)

دمسند عبدالرزاق ؒ په بعضې روایتونو کښې راغلی دی چه هر کله حضرت عباس ؓ مسلمان شو نو طلحه بن شیبه، حضرت عباس ؓ او حضرت علی ؓ درې واړو سره خپل منځ کښې خبرې کولې، طلحه اووئیل چه په غوروالی کښې هیڅوک ماسره نشی برابریدې چه دبیت الله شریف چابې زما په لاس کښې ده که اوغواړم نو بیت الله شریف ته دننه تلې شم او شپه پکښې هم تیرولې شم، حضرت عباس ؓ او فرمائیل چه حاجیانو باندې داوبو څکولو انتظام زما په لاس کښې دې دمسجدحرام ټول اختیارات ماسره دی، حضرت علی ؓ او فرمائیل، زه نه پوهیږم چه تاسو په څه باندې فخر کوئ زما حال خو دادې چه ما، دټولو خلقو نه شپږ میاشتې مخکښې بیت الله شریف اړخ ته مونځونه کړیدی او رسول الله ﷺ سره په جهاد کولو کښې سره

(۱) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۲، وتفسیر الطبری تحت هٰذه الآیة: ج ۱۲، ص ۱۷۰

شریک پاتې شوې یم. په دې باندې دا آیتونه نازل شو، (۱) دې کښې دا خبره ښه څرګنده کړې شوه یو عمل که هر څومره اعلی او زیات غوره وی، د الله تعالی په نزد دهغې هیڅ قیمت نشته چه ایمان ورسره نه وی، دغه شان دشرک په حالت کښې دغسې عمل کوونکی د الله تعالی په نزد مقبول نه دی،

دصحیح مسلم په حواله دنعمان بن بشیر ﷺ په روایت دا واقعه داسې منقول ده چه هغه یو ځل د جمعې په ورځ څو صحابه کرامو ﷺ سره درسول الله ﷺ ممبر په خوا کښې وو، په هغوئ ﷺ کښې یو کس اووئیل چه د اسلام او ایمان نه پس زما په نزد حاجیانو باندې د اوبو څکولو نه زیات بل څه عمل نشته او ددې په مقابله کښې م دبل هیڅ عمل څه پروا نشته. یو بل صاحب ﷺ دهغه ﷺ په جواب کښې اووئیل چه، داسې نه ده بلکه د الله تعالی په لار کښې جهاد کول دټولو نه زیات لوئ عمل دې. په دې باندې ددوارو ﷺ ترمینځه، بحث شروع شو، حضرت عمر ﷺ دواړه اورټل او وې وئیل چه منبرنبوی ﷺ په خوا کښې شورشغب مه کوئ، مناسبه خبره داده چه دجمعې دمونځ نه پس ددې تپوس درسول الله ﷺ نه اوکړئ. د جمعې دمونځ نه پس چه دهغوئ ﷺ نه تپوس اوشو نو دا آیتونه نازل شو (۲) په کوموکښې چه په حاجیانو باندې د اوبو څکولو او دمسجد حرام دآبادولو نه زیات غوره عمل جهاد ښولې شویدې.

کیدې شی چه دې دواړو واقعو کښې دا آیتونه نازل شوی وی اول دمشرکانو دفخر او تکبر په جواب کښې او بیا دهغې واقعې په باره کښې [چه دمسلمانانو ترمنځه اوس بیان شوه] نازل شوی وی،

په هر حال په دې آیتونو کښې ددواړو قسمه واقعاتو جواب دادې چه شرک سره هیڅ یوه نیکی پکار نشی راتلې اګرچه هغه ډیره لویه وی، په دې بناء دمسلمانانو په مقابله کښې کافرانو او مشرکانو ته دجوماتونو دآبادولو یا حاجیانو باندې د اوبو څکولو څه بهتری او بزرګی نشی حاصلیدې او دایمان نه پس هم دایمان او جهاد درجه دمسجد حرام او حاجیانو باندې د اوبو څکولو په نسبت ډیره زیاته ده کوم مسلمانان چه په ایمان او جهاد کښې وړاندې شو، داد هغه مسلمانانو ته زیات غوره دی، چاچه په جهاد کښې شرکت اونکړو او صرف مسجد حرام ئې جوړولو او حاجیانو باندې به ئې اوبه څکولې،

ددې تمهید نه پس ددې آیتونو په الفاظو او ترجمې باندې بیا یو نظر واچوئ، فرمائی: آیا، تاسو حاجیانو باندې اوبه څکول او مسجد حرام آبادول دهغه چا پشان او د هغوئ برابر او ګرځول چه په الله تعالی او دقیامت په ورځ ئې ایمان راوړې وی او د الله په لار کښې ئې جهاد کړې وی، [داخلق د الله تعالی په نزد برابر نه دی،

دکلام دروانئ په قرینې سره مقصود دادې چه دایمان او جهاد څخه هر یو دمسجد حرام دآبادولو په حاجیانو باندې د اوبو څکولو نه زیات غوره دې، یعنی ایمان هم ددواړو نه زیات غوره دې او جهاد هم، په دې خبرې سره دمشرکانو جواب اوشو چه ایمان زیات غوره دې او په دې بلې سره دهغه مسلمانانو جواب اوشو کوم به چې دجهاد نه دمسجد حرام آبادول او په حاجیانو باندې اوبه څکول زیات غوره ګنړل،

(۱) تفسیر الطبری رقم الحدیث: ۲۷۵۳ و تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۱، ص ۲۲

(۲) صحیح مسلم، کتاب الامارة، باب فضل الشهادة فی السبیل الله: ج ۲، ص ۱۳۳

**دالله تعالى ذكر دجهادنه زيات غوره دي:** په تفسير مظهري كښې قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمائيلى دى چه، دې آيت كښې دمسجد حرام په آبادولو باندې ته چې نوم جهاد غوروالې ور كول شويدې دا د عمارت دظاهري معنى په اعتبار سره دى، يعنې د مسجد تعمير او ضرورى انتظامات كول چې د جهاد افضليت ددې په مقابله كښې مسلم او منل شوى دى. خو هر كله چه دمسجد حرام د عمارت آبادول معنى عبادت او دالله تعالى ذكر كول پكښې واغستې شي كوم چه په حقيقت كښې دجومات اصلي آبادول دى نو ددې معنى په اعتبار سره د رسول الله ﷺ د ډاګيزو ارشاداتو مطابق دجومات آبادول دجهادنه زيات غوره او اعلى دي،([1]) چنانچه د مسند احمد، ترمذي او ابن ماجه په حواله دحضرت ابى الدرداء رضي الله عنه په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلى دى، آيا زه تاسو ته داسې يو عمل در او ښايم چه ستاسو دټولو عملونونه زيات غوره او ستاسو دمالك په نزد به دټولونه ډير زيات ښه وى، ستاسو درجې به زياتې لوړوى او ددې نه به هم زيات غوره وى چه دالله تعالى په لار كښې سره زر او سپين زر خرچ كړئ او ددې نه به هم زيات ښه وى چه تاسو په جهاد كښې ددښمن سخته مقابله كوئ او ددې په نتيجه كښې يا خو تاسو هغوئ او وژنئ يا هغوئ تاسو لره او وژنى. صحابه كرامو رضي الله عنهم عرض او كړو، يارسول الله ﷺ داسې عمل را ته ضرور او ښائى. هغوئ ﷺ او فرمائيل: دغه عمل دالله تعالى ذكر دې،([2]) دې نه معلومه شوه چه دالله تعالى ذكر دجهادنه هم زيات غوره دې، په دې بنا كله چه دجومات آبادول دالله تعالى دذكر په معنى سره واغستې شي نو هغه هم دجهادنه زيات غوره شو، مګر دلته د مشركانو فخر او غرور په مسجد حرام كښې دالله تعالى دذكر په بنا نه وو، بلكه ددې مطلب ظاهري آبادول او ظاهري انتظامات كول وو څكه تر جهاد، زيا غوره او ګرځولې شو،

دقرآن او سنت په مجموعي ارشاداتو چه غور او كړو نو معلوميږي چه يو عمل دبل عمل نه زيات غوره كيدل دحالاتو او واقعاتو په اړ انړه وى، په څنې حالاتو كښې يو عمل دبل نه زيات غوره وى، خو دحالاتو په بدليدو سره معامله اپوته شي، مطلب دا چه كله دمسلمانانو او اسلام دفاع زيا ته ضرورى شي نو يقينا چه دغه وخت كښې به جهاد كول دټولو عبادتونو نه زيات غوره وى، څنګه چه د خندق په غزا كښې درسول الله ﷺ دڅلورو مونځونو قضا كيدو دواقعې نه ښكاره ده، او كله چه دومره سخت ضرورت نه وى، نو دجهاد په مقابله كښې به دالله تعالى ذكر او عبادت زيات غوره وى،

په دې كښې فرمائى: ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ مطلب تر دا ښودل دى چه دا څه باريكه او نازكه خبره نه ده بلكه بلكل واضحه ده چه ايمان دټولو عملونو بنياد او ددې ټولونه زيات غوره دې، او دغه شان جهاد كول، دمسجد حرام د آبادولو او حاجيانو باندې د اوبو څكلو لونه زيات غوره دې، ليكن الله تعالى بې انصافو خلقو ته پوه نه وركوى، څكه هغوئ په داسې ډاګيزو خبرو كښې هم بې ځايه بحثونه كوى،

[1]) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۱۵۰

[2]) جامع الترمذي، أبواب الدعوات، باب منه: ج ۲، ص ۱۷۵، وسنن ابن ماجة، كتاب الادب، باب فضل الذكر: ج ۲، ص ۲۶۸، ومسند أحمد رقم الحديث: ۲۲۷۵۱، حديث معاذ بن جبل رضى الله عنه۔

Scanned with Ca

په شلم آيت مبارك كښې ددې مضمون تفصيل دې ، چې په ړومبي ايت مبارك په [لايستون] الفاظو سره بيان كړې شوى دى . يعنى ايمان والا ، مجاهد او صرف عمارت د مسجد او سقاية حجاج كوونكى د الله ﷻ په نزد برابر نه دى. په شلم آيت د ﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ۙ اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ۝﴾ د مسجدِ حرام آبادوونكى حاجيانو باندې اوبه ځكوونكى دجهاد كوونكو برابرنه دى، تفصيل داسې بيان شويدې يعنى كوموخلقوچه ايمان راؤړو او هجرت ئې اوكړو او په خپل ځان او مال سره ئې دالله تعالى په لاركښې جهاد اوكړو ، دغه خلق دالله تعالى په نزددرجه كښې لوئې دى اوپوره كامياب هم دغه خلق دى] ځكه چه ددوئ په مقابله كښې مشركانوته دكاميابې هيڅ درجه حاصله نه ده اومسلمانان اگرچه په كاميابئ كښې خوورسره شريک دى ليكن دوئ ترِپه كاميابئ كښې زيات دى، په دې بِناپوره كامياب هم دوئ دى،

په يوويشتم اودوه ويشتم آيت كښې ددغې كاميابوخلقولوئ اجراودآخرت درجه داسې بيان شويدى، ﴿يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ لَّهُمْ فِيْهَا نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ۝ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ۝﴾ يعنى دې خلقوته ددوئ پروردگارزيرې وركوى دخپل رحمت اورضا ،اوداسې جنتونوچه په هغې كښې به وردپاره هميشه قائم پاتې كيدونكى نعمتونه وى، اوداخلق به هم په دې نعمتونوكښې هميشه پاتې كيږى چه هيچرې به ترېنه اوښكلې بيشكه دالله تعالى خواته لوئ اجردې]

دې آيتونوكښې دهجرت اوجهادفضيلتونه بيان كړې شويدى چه پكښې وطن، عزيزان خپلوان، دوستان، ملكرى مالونه اوجائيدادونه ټول پريښول راځى اوښكاره خبره ده چه د انسان په طبيعت باندې دا كارونه دټولونه سخت اوگران دى، په دې وجه په راتلونكى آيت كښې ددې څيزنو سره دزيات تعلق اومينې محبت لرلوبدى بيان شويده اودمسلمانانومينه، هجرت اوجهادسره راپاره كړې شويده، فرمائى ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْٓا اٰبَآءَكُمْ وَاِخْوَانَكُمْ اَوْلِيَآءَ اِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْاِيْمَانِ ؕ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ۝﴾ يعنى اې دايمان خاوندانو :تاسو خپل پلاران، نيكونه ملگرى مه جوړوئ، كه هغوئ دايمان په مقابله كښې كفرخوښوى اوپه تاسو كښې چه څوک دوئ سره، ددوئ دكفرباوجودمگرتياپالى نوداسې خلق لوئ نافرمانه دى،

مور، پلار، رونړه، خويندواونورو خپلوخپلوانوسره دمضبوط تعلق لرلواودوئ سره دښه سلوک كولوهدايت په قرآن كريم كښې ځاى په ځاى بيابيااغلى دى خودې آيت كښې دا اوښودلې شوچه دهرتعلق يوحدوى كه مور، پلاريانوروخپلوخپلوانودتعلق تكردالله اورسول ﷺ سره راځى نودهغې شاته غورځول پكاردى، كله چه ددې دواړواړيكوترمنځه ټكراؤراځى نوبيابه دالله اورسول سره اړيكولرلوته دوام وركولې شى اونورې ټولې اړيكې به شاته غورځولې شى،

**ددې آيتونوپه باره كښې خوفائدې اومسئلې**: ددې پنځوآيتونونه څوفائدې اومسئلې حاصلې شوې،

① اوله داچه ايمان دعمل روح دې، ددې نه بغيركه هرڅومره ښه عمل وى هغه به محض يوبې روحه كالبوت وى چه دقبلولووړبه نه وى، دآخرت په خلاصى كښې داهيڅ كار نشى وركولې، البته الله تعالى بې انصافى بيخى نه كوى، ځكه ددوئ نيک عملونه بيخى بيكاره كوى هم نه، ددې بدله ورته په دنياكښې دآرام، عيش، دولت اوآرام په صورت كښې وركولې شى چه بيان

Scanned with Ca

ئې د قرآن کريم په ګڼرو آيتونو کښې راغلې دي،

دې آيتونو نه ② دويمه فائده دا حاصله شوه چه په ګناه او نافرمانئ ګولو سره دانسان عقل هم خرابيږي، ښه ورته بد، او بد ورته ښه ښکاري چنانچه د نولسم آيت په آخر ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ﴾ کښې ورته اشاره او شوه څنګه چه ددې په مقابله کښې په ﴿اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّكُمْ فُرْقَانًا﴾ سره اشاره دې ته شويده چه په فرمانبردارئ او تقوی سره دانسان عقل ترقي کوی د فکر سلامتي ورته نصيب کيږي، دښه او بد په بيلتون کولو کښې غلطي نه کوی،

③ دريمه مسئله تردا معلومه شوه چه نيک عملونه هم په خپل منځ کښې ديو بل نه زيات غوروالې لري چه دهغې په مناسب سره دعمل کوونکو په درجو کښې هم غوروالې راځي، د ټولو عمل کوونکو درجه يوه نه وی، خوددې اداره دعمل په زياتوالى باندې نه ده بلکه ددې په ښه والي باندې ده، چنانچه په سورةِ ملک کښې فرمائي ﴿لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا﴾ يعنى الله تعالى ستاسو ازميښت داسې کوی چه تاسو کښې ښه عمل کوونکى څوک دی!

④ څلورمه فائده تردا حاصله شوه چه هميشه د آرام او نعمت قائم پاتې کيدو د پاره دوه څيزونه ضروري دی، ① يو دا چه دغه دنعمتونه ختم نشی، ② بل دا چه دغه خلق څه وخت، ددغه نعمتونو نه بيل نکړې شی، په دې ښا دا الله تعالى مقبوله بندګانو ته ددې دواړو څيزونو ضمانت ورکړې شو ﴿نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ﴾ ئې چه او فرمائيل نودې سره ښکاره کړې شو چه دا نعمتونه بل تل د پاره وی او په ﴿خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا﴾ سره ئې دا ښکاره کړل چه دا خلق به ددغې نعمتونو نه هيڅکله نشی بيلولې او په دې شان ورته پوره تسلي ورکړې شوه،

**اصلي تړون داسلام او ايمان تړون دې نسبي او وطني تړون دېـه دې قربان وی!** ⑤ پنځمه مسئله يوه بنيادي مسئله ده چه دخپلوئ او دوستئ په ټولو اړيکو باندې دالله تعالى او دهغه درسول الله ﷺ سره اړيکې لړل وړاندې دی، دکوم اړيکو چه دې سره ټکرراځي هغه شاته غورځول پکار دی، چنانچه صحابه کرام رضی الله عنهم څکه په ټول امت کښې زيات غوره خلق ثابت شو چه هغوئ رضی الله عنهم په رسول الله ﷺ باندې خپل خان ومال او هر قسم اړيکې، قربان کړې او په زبانِ حال سره ئې او وئيل:

تو نخلِ خوش ثمر کيستی که سرو وسمن      همه زخويش بريدند و باتو پيوستند

[ته دښکلې ميوې کومه اونه ئې چه سرو او رامبيل، ټول ئې دخپل خان نه لاس په سر کړل او تاسو سره ئې يوځائ کړل]

بلال حبشی رضی الله عنه، صهيب رومی رضی الله عنه، سلمانِ فارسی رضی الله عنه، دمکې قريش رضی الله عنهم او دمدينې انصار خو خپل منځ کښې سره رونړه رونړه شو او دبدر او احد په ميدانونو کښې دپلار او خوئې، ديو رور بل رور سره خپل منځ کښې دتورو جنګ اوشو او ددې خبرې ګواهي ئې ورکړه چه ددوئ مسلک دا وو؟

هزار خويش که بيګانه ازخدا باشد      فِدائے يک تنِ بيګانه کاشنا باشد

[دالله تعالى نه پردی په زرګونو خپلوان د، دهغه پردی قربان وی چه الله تعالى سره ئې تعلق وی، اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنَا اِتِّبَاعَهُمْ وَاجْعَلْ حُبَّكَ اَحَبَّ الْاَشْيَاءِ اِلَيْنَا وَخَشْيَتَكَ اَخْوَفَ الْاَشْيَاءِ عِنْدَنَا، امين، [اې الله تعالى ددوئ

Scanned with Ca

تابعداری مونصیب کړي ستامینه راتـه ډیره غوره ښکاره کړي اوستاویره راتـه دویرې لوئ خیزښکاره کړي [آمین]

| | | | |
|---|---|---|---|
| قُلْ | إِنْ كَانَ | ابَآؤُكُمْ | وَاَبْنَآؤُكُمْ |
| ورته اووایه | که چرې وی | اپلاران ستاسو | اوځامن ستاسو |
| ته [دوی ته] اووایه! که ستاسو پلاران او ځامن ............... | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِخْوَانُكُمْ | وَاَزْوَاجُكُمْ | وَعَشِيْرَتُكُمْ | وَاَمْوَالُ |
| اوورونړه ستاسو | اوښځې ستاسو | اوخپلوان ستاسو | اوهغه مالونه |
| او وروڼړه ............... اوبيبياني ............... اوخپل خپلوان ............... اوكوم مالونه چه | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِقْتَرَفْتُمُوْهَا | وَتِجَارَةٌ | تَخْشَوْنَ | كَسَادَهَا | وَمَسٰكِنُ |
| چې ګټلي دي تاسوهغه | او هغه تجارت | چې تاسويريږئ | د دنۀ چليدودهغې نه | اوهغه کورونه |
| تاسو ګټلي دي ............ او هغه سوداګرۍ د کوم د نه چليدونه چه تاسو ويريږئ اوهغه [خپل] کورونه | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَرْضَوْنَهَآ | اَحَبَّ | اِلَيْكُمْ | مِّنَ اللّٰهِ | وَرَسُوْلِهٖ | وَجِهَادٍ |
| چې خوښوئ تاسو هغه | ازيات غوره وی | اتاسو ته | دالله نه | اود رسول دهغه نه | اودجهاد نه |
| چه تاسو ئې خوښوئ [دا ټول ځيزونه] تاسو ته د الله او د هغه د رسول اود الله په لار کښې د جهاد کولو | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ سَبِيْلِهٖ | فَتَرَبَّصُوْا | حَتّٰى | يَاْتِيَ اللّٰهُ | بِاَمْرِهٖ ط | وَاللّٰهُ | لَا يَهْدِي |
| په لاره دهغه کښې | انوانتظارکوئ | اترديې پورې | اچې راوړی الله | افيصله خپله | اوالله | لار نۀ ښائی |
| نه زيات خوښ وی نو [په داسې صورت کښې] تاسو دالله د [عذاب د] فيصلې انتظارکوئ او الله ظالمانو | | | | | | |

| | |
|---|---|
| الْقَوْمَ | الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۴﴾ |
| قوم | فاسقانوته |
| خلقو ته د هدايت توفيق نه ورکوی | |

## آسان ترجمه قرآن

﴿اې پيغمبره! مسلمانانو ته﴾ ووايه: که چرې ستاسو پلاران ستاسو ځامن . ستاسو وروڼړه . ستاسو بيبياني ، او ستاسو خاندان . او هغه مال او دولت کوم چه تاسو ګټلي دي او هغه کاروبار چه دهغې د خرابيدو نه تاسو ويريږئ، او هغه د اوسيدو کورونه چه هغه تاسو ته خوښ دی تاسو ته دالله او دهغه د رسول نه او د هغه په لاره کښ د جهاد کولو نه زيات محبوب وي نو انتظار کوئ تر دې چه الله خپله فيصله وکړي —او الله نافرمانو لره خپل منزل مقصود ته نه رسوي.

## خلاصه تفسير

مخکښې ددې مضمون زيات تفصيل دادې چې ائې محمد ﷺ! ﴿قُلْ﴾ تاسو ﷺ [دوئ ته] اووايئ ﴿اِنْ كَانَ اٰبَآؤُكُمْ وَاَبْنَآؤُكُمْ وَاِخْوَانُكُمْ وَاَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيْرَتُكُمْ﴾ چې که ستاسو پلاران ، ستاسو ځامن ، ستاسو رونړه ، ستاسو بيبيانې ستاسو خاندان ﴿وَاَمْوَالُ اِقْتَرَفْتُمُوْهَا﴾ او هغه مالونه چې ګټلي مو دی ﴿وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا﴾ او هغه تجارت چې د نه چليدو ويره ئې درسره وی ﴿وَمَسٰكِنُ تَرْضَوْنَهَآ﴾ او

هغه كورونه چې تاسو ئې [په كښې اوسيدل] خوښوئ [كه دا څيزونه] ﴿أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ﴾ تاسو ته د الله ﷻ نه دهغه درسول نه او دهغه په لار كښې د جهاد كولو نه زيا خوښ وى ﴿فَتَرَبَّصُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ﴾ نو تاسو په انتظار كښې اوسئ تر هغې چې الله ﷻ خپل حكم [دهجرت نه كولو د سزا] راؤلیږى [الكه په يوبل آيت مبارك كښې چې داسې راغلى دى چې ﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ﴾ تر ﴿فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ﴾ پورې] ﴿وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾ او الله ﷻ بې حكمى كوونكى خلق دهغوئ مقصود ته نه رسوى [يعنى د دوئ مقصود دا وو چې دې څيزونو نه دنيوى فائدې واخلى خو ډير زر په مرګ راتلو سره دا مقصود ښاؤرې ايرې شى].

## معارف اومسائل

دسورت توبه داآيت په اصل كښې دهغه مسلمانانو په باره كښې نازل شوې ووچه دمكې مكرمې دهجرت فرض كيدو په صورت كښې ئې هجرت نه ووكړې ځكه چه دمور، پلار، رور، خور، اولاد، بى بى، اومال جائيداد مينه پرغالب شوه ځكه ورته درسول الله ﷺ په ذريعه داحكم اوشو، كه ستاسو پلاران، ځامن، ستاسو رونړه اوستاسو بيبيانې، ستاسو خاوندانو نه ستاسو هغه مالونه چه ګټلى مودى اوهغه تجارت چه دتاوان كولو كيدواو انديښنه ئې لرئ اوهغه كورونه چه تاسوئې خوښوئ، تاسو ته دالله تعالى اودهغه درسول نه اودهغه په لاره كښې دجهاد كولو نه زيات خوښ وى نو تاسو په انتظار كښې اوسئ ترهغې چه الله تعالى خپل حكم راؤليږى اوالله تعالى نافرمانى كوونكى دهغوئ مقصود ته نه رسوى،

دتفسيرد امام مجاهد رحمه الله دفرمان مطابق دلته دحكم دراتلونه مطلب دجهاد اوفتح مكه حكم راتلل دى، [1] كله به چه دخلقو خراب انجام مخې ته راشى چه په دنيوى تعلقاتو باندې ئې دالله تعالى اورسول ﷺ تعلقات قربان كړى وى مكه به فتح شى اونافرمانه خلق به ذليل اوخوار شى اودهغوئ دغه تعلقات به ئې په دغه وخت كښې پكار رانشى. دحضرت حسن بصرى رحمه الله دفرمائيلو په جوړ دلته دحكم نه مراد حكم دعذاب دې يعنى كوموخلقو چه دآخرت تعلقات په دنيوى تعلقاتو قربان كړيدى اوهجرت ئې نه دې كړې نوپه هغوئ باندې دالله تعالى عذاب زر ترزره راتلونكې دې چه ياخوبه په دنيا كښې هم راشى ورنه دآخرت عذاب خوئې يقينى دې، دلته په آيت كښې دهجرت په نه كولو باندې زورنه وركول مقصود دى خوددې په ځائ جهاد پريښول ذكرشولې چه دهجرت نه پس رومبې ګام اغستل جهاد كول دى، دااشاره شوه دې خبرې ته چه اوس خو صرف دهجرت اودوطن پريښو حكم شوې دې په دې كښې څنې خلقو مرانه اوبائيلله، ورپسې دجهاد حكم راتلونكې دې چه پكښې دالله اورسول په مينې باندې تولې مينې اوخپل ځان قربانول راځى، ليكن داهم كيدې شى چه دلته دجهاد نه مطلب هم هجرت وى ځكه چه په حقيقت كښې هغه هم دجهاد يوه برخه ده،

په آخردآيت كښې ﴿وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾ فرمائيلو سره داهم اوښولې شو چه كوم خلق دهجرت دحكم صادريدو باوجود هم خپل دنيوى تعلقات غوره لرى، خپلو، خپلوانو، عزيزانو، مال، مكان اوجائيداد سره ئې ډيره مينه ده، خوداعمل به ئې په دنيا كښې هم سودمن ځكه نشى چه تل دپاره به خپل بال بچ سره په خپلو مالونو او مكانو كښې په امن اوآرام سره نشى

---

[1]) تفسير البغوى تحت هٰذه الآية: ج ٣، ص ٢٥، والقرطبي تحت هٰذه الآية: ج ٨، ص ٩٦

کښیناستي بلکه دجهاد په حکم شروع کیدوسره به داټول څیزونه هغوئ دپاره وبال جوړشي، ولې چه الله تعالی نافرمانی کوونکولره مقصودته رسیدلودپاره نه پرېږدي،

**دهجرت په باره کښې مسئلې:** هرکله چه په اول کښې مکې مکرمې نه مدینې منورې ته هجرت کول فرض کړې شونودا یواځې فرض نه، بلکه دمسلمانیدونخښه هم وه کوموخلقوبه چه سره دتوفیقه دغه هجرت اونکړوهغوئ به مسلمانان نشوګڼړلې خودغه حکم دمکې مکرمې په فتح کیدوسره منسوخ شواوپه اصل کښې داحکم باقی پاتې شوچه چرته څوک دالله تعالی په حکمونوباندې عمل کولونه بې وسه شي نوهغه ځائ نه هجرت کول همیشه دپاره فرض پاتې شوخوهله چه دهجرت کولوتوفیق هم لري.دهجرت دویمه درجه په هغه صورت کښې همیشه دپاره مستحب ده چرته چه فسق اوفجورغالب شي [تفصیل ئې په فتح الباری شرح دبخاری کښې اوګورئ!]([1])

په دې آیت کښې خونیغ په نیغه هغه خلقوته خطاب دې چه دهجرت دفرض کیدوپه موقع پرد دنیوی تعلقات مینه محبت غالب شي اوهغې له کبله هجرت اونکړې لیکن دآیت د الفاظو عموالې ټولو مسلمانانوته داحکم ورکوی چه دالله تعالی اودهغه درسول الله ﷺ مینه محبت په دې درجه کښې لازم اوواجب دې چه بل هیڅ پرغالب رانشي اوڅوک چه داسې قسم مینه په ځان کښې پیدانکړی هغه دعذاب حقدارجوړیږي چه دالله تعالی دعذاب انتظار دکوي،

**دالله اورسول ﷺ مینه چه دټولې دنیااودخپل ځان دمینې نه زیاته نه وي نودې ته سوچه ایمان نشي وئیلې:** اد صحیحینوپه حواله دحضرت انس رضي الله عنه په روایت درسول الله ﷺ یو صحیح حدیث داسې منقول دې فرمائی چه،ترهغې پورې څوک مؤمن نشي کیدې ترڅوچه زه ورته دهغه د پلار، اولاد، او ددنیا دټولو خلقو نه زیات محبوب اوخوښ نشم،([2])

دابی داؤداوترمذی په حواله دحضرت ابی امامه رضي الله عنه په روایت رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه،چادوستی دالله تعالی دپاره اوکړه دښمنی ئې هم دالله تعالی دپاره اوکړه،مال ئې هم دالله تعالی دپاره اولګولو،او په یوځائ کښې دالله تعالی دپاره مال لګولونه ئې لاس واغستو نو هغه خپل ایمان مکمل کړو،([3])

دحدیث ددې روایتونونه هم ثابت شوچه دایمان کاملیدل په دې اړه لري چه درسول الله ﷺ مینه ئې په ټولو مینومحبتونوباندې براوغالبه وي،چاسره دوستی اودښمنی کول یوځائ کښې مال لګول یانه لګول ټول کارونه ئې دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ دحکم تابع وي،

دتفسیرامام قاضی بیضاوی رحمه الله وغیره فرمائیلی دی چه،ډیرکم خلق داسې دی چې ددې آیت دوعید لاندې نه راځی ځکه چه عام طور په لویولویوعبادت کوونکو، زاهدانو، عالمانو او متقیانوباندې هم دخپل بال بچ اومال جائیدادمینه عموماغالبه وی الاماشاءالله،لیکن قاضی بیضاوی فرمائیلی دی چه دلته دمحبت اومینې نه مراداختیاری مینه ده،غیراختیاری اوطبعی مینه محبت ترمرادځکه نه دی چه الله تعالی هیچالره دهغه دطاقت اواختیارنه زیات

---

[1]) تفصیل دپاره اوګورئ: فتح الباری، کتاب الجهاد والسير، باب وجوب وما يجب من الجهاد والنية: ج۸، ص ۳۳۲

[2]) صحيح البخاری، کتاب الإيمان، باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الإيمان: ج۱، ص۶، وصحيح مسلم، کتاب الإيمان، باب وجوب محبة الرسول صلى الله عليه وسلم الخ: ج۱، ص۴۹

[3]) سنن ابي داود، کتاب السنة، باب الدليل على الزيادة والنقصان: ج ۲، ص ۶۳۲، وجامع الترمذی، أبواب صفة القيامة والرقائق والورع باب منه۔

Scanned with Ca

تکليف نه ورکوی،[1] مطلب دا شو چه په چاباندې د دنيوی تعلقاتو طبعي مينه دومره غالبه نه وی چه دالله تعالى اورسول ﷺ حکم دهغې په مقابله کښې پريږدی نوهغه هم ددې وعيد لاندې نه راځي بلکه داوئيلې شو چې دالله تعالى اودهغه درسول ﷺ مينه ئې غالبه ده،ددې مثال داسې دې لکه يورنځورچه ددارودرملو[دواء]دتريخوالى اودآپريشن وغيره دتکليف نه خوبطبعاويره لرى خود عقل له مخې ئې دخپل خلاصي،روغوالى اوسلامتئ ذريعه ئې ګنړې اوددې د زغملو دپاره تيارېږى نوهغه دهيچاپه نزدد ملامتياجوګه نه دې،بلکه هيڅ يوسليم عقل ئې په دې نه مجبوره کوى چه هغه ددغه طبعي اوغيراختيارى ويره،ترهه هم دخپل زړه نه اوباسى،دغه شان هغه څوک هم ملامته نه دى بلکه دشاباسئ حقداردې څوک چه دالله تعالى حکمونه په هغه صورت کښې هم په ځائې راوړى چه دمال،اولادوغيره دمينې له کبله په دې کښې طبعي او غيراختيارى تکليف اودرد محسوسوى، ددې آيت شريف له مخې به داسې خلق هم دالله تعالى اودرسول الله ﷺ مينه غالب لرونکى بللې شى.البته دمحبت اعلى مقام به هغه هم وى چه دالله تعالى اورسول الله ﷺ مينه په طبعي محبت باندې هم غالب راشى،ددوئ حکم په ځائ راوړل ورته هرقسم غم،دردخونړناک جوړوى،څنګه چه مونږوينوچه ددنيافانى لذت اوآرام په دې شان سره خلق لټوى چه زبردستى خوارئ وردپاره کوى اوپه دغه لارکښې هرقسم غم تکليف د لوبوتوقوپه ډول زغمى، د يو دفتر د ملازمت او نوکرې حاصلولودپاره خلق هرڅومره تکليفونه برداشت کوى په سفارشونو کولواورشوتونو ورکولو باندې هم صرفه نه کوى په کومه کښې چه دمياشتې په ختميدويوڅوروپئ په لاس ورځى حالانکه په دغه نوکرئ کښې ورته په مخه تکليفونه،مشقتونه،کول راځى،مزل اوسفرونه کول پکښې راځى،خوب اوآرام کښې ئې خللونه راځى؟

رنج راحت شدچومطلب شدبزرگ گردِگله توتيائے چشم گرگ

[دلوئ مطلب دخاطره تکليف هم آرام ګرځى،څنګه چه شرمخ ته دګډو[ميږو]چيلو [بزو]دکنډک دخپو دوړه رانجه ښکارى [ځکه چه مطلب ئې تردګډې [ميږې] چيلئ [بزې] څيرل اوخوړل وى]

چنانچه خدائى خلق دالله اورسول الله ﷺ اوداخرت دنعمتونوپه مينه داسې مست وى چه ددې په مقابله کښې ورته څه تکليف،تکليف نه ښکارى،دصحيحينوپه يوحديث کښې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه درې خصلتونه داسې دى چه هغه په چاکښې اومندې شى نودايمان خوږوالى ورته حاصل شى،هغه درې خصلتونه دادى؟

① الله اورسول الله ﷺ ورته دټولونوروڅيزونونه زيات محبوب وى، ② چې د الله تعالى ديو بنده سره خالص دالله تعالى دپاره مينه لرى ③ کفراوشرک اختيارول ورته داسې ښکارى لکه چه په اورکښې ګذارولې شى،[2]

دلته په حديث شريف کښې دايمان دخوږوالى نه مطلب دمحبت هغه مقام دې چه انسان

[1] ) تفسير البيضاوى تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۳۱

[2] ) صحيح البخارى، کتاب الإيمان، باب حلاوة الإيمان: ج ۱، ص ۷، وصحيح مسلم، کتاب الإيمان، باب بيان خصال الخ: ج ۱، ص ۴۹

Scanned with Ca

دپاره هر مشقت او محنت خوندناک جوړوي:: از محبت تلخها شیرین شود] [دمينې دکبله تریخ څيزونه خواږه لګي] هم ددې مقام شان ځنې علماؤ داسې بیان کړیدي،

وَإِذَحَلَتِ الحَلَاوَةُ قَلْباً نَشَطت فِي العِبَادَةِ الأَعضَاءُ

[کله چه دایمان خوږوالې په زړه کښې پیدا شی، نو دهغې له کبله ئې اندامونه په عبادت کښې خوندبیامومی،

دې کیفیت ته په ځنې روایتونو کښې د ،ایمان بشاشت، وئیلې شویدې او په یو حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه، زما دسترګو یخوالې مونځ دې، (۱)

قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمائیلی دی چه د الله تعالی او د رسول الله ﷺ د محبت دا مقام یو لوئ نعمت دې چه یو اځې دخدائی خلقو په صحبت او ملګرتیا سره حاصلیدې شی، همدغه وجه ده چه صوفیائې کرام رحمهم الله دې لره په خدمت د مشائخو سره حاصلول ضروری بولی، (۲) روح البیان کښې راغلی دی چه دخلت [دوستۍ] دا مقام هغه چاته نصیب کیږی چه دخلیل الله علیه السلام پشان خپل مال او ځان د الله تعالی په محبت کښې قربانولو ته تیاریږی، (۳)

خلیل آسا درِ ملکِ یقین زن نوائے، لَآ اُحِب الافِلِین، زن

[دحضرت خلیل الله علیه السلام پشان دیقین دروازه او ټکوه، د [لَآ اُحِبُ الافِلِين [زه وبیدونکی څیزونه نه خوښوم] آواز پورته کړه]

قاضی بیضاوی رحمه الله فرمائیلی دی چه د رسول الله ﷺ په سنت او شریعت کښې درځنې اچوونکو مقابله کول هم د الله تعالی او دهغه د رسول الله ﷺ د محبت یوه ښکاره نخښه ده، (۴) رزقنا الله تعالى وجميع المسلمين حبه وحب رسوله كما يحب ويرضاه، [الله تعالی د زمونږ او د ټولو مسلمانانو دده او دده د رسول الله ﷺ هغسې محبت نصیب کړی چه دده د خوښې او رضا وی]،

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَقَدْ | نَصَرَكُمُ اللّٰهُ | فِيْ مَوَاطِنَ | كَثِيْرَةٍ |
| په تحقیق سره | امداد کړې دې تاسو سره الله | په ځایونو | ډیرو کښی |
| بیشکه الله تعالی تاسو سره په ډیرو موقعو او خاص کر د حنین په | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّيَوْمَ | حُنَيْنٍ | اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ | كَثْرَتُكُمْ | فَلَمْ |
| او په ورځ | د حنین کښی | کله چې په تعجب کښی واچولې تاسو | زیاتوالی ستاسو | انو نه کړو |
| په موقع مدد کړې وو. کله چه ستاسو ډیروالی تاسو په تعجب کښې او غور خولې [چه تن خومونږ ډیریو] | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تُغْنِ | عَنْكُمْ | شَيْـًٔا | وَّضَاقَتْ | عَلَيْكُمُ | الْاَرْضُ | بِمَا |
| دفع دې ډیر والی | ستاسو نه | هیڅ څیز | او تنګه شوه | په تاسو باندې | زمکه | سره |
| نو ستاسو ډیروالی تاسو ته هیڅ فائده درنکړه [بلکه] زمکه سره د دې چه ډیره فراخه ده په تاسو باندې | | | | | | |

---

۱) سنن النسائی، عشرة النساء، باب حب النساء: ج ۲، ص ۹۳
۲) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۱۵۳
۳) روح البيان تحت هٰذه الآية: ج ۱، ص ۸۸۳
۴) روح البيان، بحواله قاضی ج ۱، ص ۸۸۳

| |
|---|
| رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُّدْبِرِيْنَ ۝ ثُمَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ |
| د ارتوالی ا بیا ا او گرزیدئ تاسو ا شاکونکی ا بیا ا نازل کړو الله ا ارام ا خپل په رسول خپل باندې |
| تنګه شوه او بیا [د دې ډیروالی باجود] تاسو شاکونکی شوئ [خو] بیا الله تعالی په خپل رسول او مؤمنانو خپل |
| وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَنْزَلَ جُنُوْدًا لَّمْ تَرَوْهَا وَعَذَّبَ |
| او په مومنانو باندې ا او نازل ئې کړو ا داسې لښکرې اچې تاسو نه لیدلې هغه ا او عذاب ئې ورکړو |
| ارام نازل کړل او [د فرشتو داسې] لښکرې ئې را ولیږلې چه تاسو نه لیدلې او [ستاسو په لاسونو ئې] |
| الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ وَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ۝ ثُمَّ |
| هغه کسانو ته اچې دحق نه ئې انکار کړې وو ا او هم دا بدله ده ا دحق نه دانکار کونکو ا بیا |
| کافرانو ته عذاب ورکړو [او دا عذاب ورکول څه ظلم نه دې بلکه] دا د کافرانو [د کفر] بدله ده بیا |
| يَتُوْبُ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ |
| توفیق دتوبې ورکوی الله ا روستو ددې نه ا هغه چاته ا چې خوښه ئې شی ا او الله ا بښونکې |
| [د دې غزوې نه پس] الله تعالی دهغه چا توبه قبوله کړه چه خوښ ئې شو او الله تعالی بښونکې دې |
| |
| رَّحِيْمٌ ۝ |
| |
| رحم کونکې دې ا |
| |
| مهربان دې |

### آسان ترجمه قرآن

حقیقت دا دې چه الله ستاسو په ډیرو ځایونو کښې مدد کړې دې، او (خاص طور) د حنین په ورځ چه ستاسو ډیر والې تاسو لره تعجب کښې اچولې وو مګر هغه زیات تعداد ستاسو څه پکار رانغلو او زمکه سره د فراختیا نه په تاسو باندې تنګه شوه، بیا تاسو واړیدئ د میدان نه شاه کونکې بیا الله په رسول خپل باندې او مؤمنانو باندې اطمینان نازل کړو، او داسې لښکرې ئې را ولیږلې چه تاسو هغه نه لیدلې، او کومو خلقو چه کفر اختیار کړې وو الله هغوی ته سزا ورکړه، او دَ داسې کافرانو هم داسې بدله ده بیا الله چه چا ته وغواړي نو توبه ورته نصیب کوي او الله ډیر بخونکې، ډیر مهربانه دې.

### خلاصه تفسیر

﴿لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِيْ مَوَاطِنَ كَثِيْرَةٍ ۙ﴾ تاسو ته الله ﷻ [دجنګ] په ډیرو موقعو کښې [په کفارو باندې] غلبه درکړه [الکه بدر وغیره کښې] ﴿وَّيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ﴾ او دحنین په ورځ هم [ئې تاسو ته غلبه درکړه چې عجیبه غریبه قصه ئې ده] ﴿اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ﴾ کله چې [داسې اوشو چې] تاسو دخپلې ډلې په کثرت غره شوی وئ ﴿فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْـًٔا﴾ بیا هغه کثرت ستاسو څه پکار رانغلو او [دکافرانو په غشو وررلو داسې پریشانه شوئ چې] ﴿وَّضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ﴾ په تاسو باندې زمکه سره د خپل [دې] د فراخووالی نه راتنګه شوه، ﴿ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُّدْبِرِيْنَ ۚ﴾ بیا [آخر] تاسو په مخ ته شا اوتښتیدئ، ﴿ثُمَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ دې نه پس الله ﷻ پخپل رسول ﷺ [د

هغه په زړهٔ] باندې د نورو مؤمنانو [په زړونو] باندې دخپل [طرفنه] تسلی نازله کړه او [مدد دپاره ئې] ﴿وَأَنزَلَ جُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا﴾ داسې لښکرونه [د آسمان نه] رانازل کړل چې تاسو نه وولیدلې [مراد ترې فرښتې دی چې دهغې نه پس تاسوبیا جنګ ته ملا اوتړله اوغالب شوئ] او [الله ﷻ] ﴿وَعَذَّبَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ کافرانو ته سزا ورکړه [چې هغوئ ماتې اوخوړله څه اووژلې شو او څه قیدیان شو] ﴿وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ﴾ او دا [په دنیا کښې] دکافرانو سزا ده ﴿ثُمَّ يَتُوبُ اللَّهُ مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ عَلَىٰ مَن يَشَاءُ﴾ بیابه الله ﷻ توبه نصیب کړی [ددې کافرانو څینې] د هغه چا چې وې غواړی [او ډیر په کښې مسلمانان شو] ﴿وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ او الله ﷻ لوئې بخښونکې لويې رحمت کوونکې دې [چې څوك په کښې مسلمانان شو د هغوئ ټول کړی ګناهونه ئې معاف کړل او د جنت حقدار ئې جوړل کړل].

## معارف او مسائل

په دې آیتونو کښې دحنین په غزا کښې دبریالی توب اودماتې خوړلو واقعات بیان شویدی او ددې په ضمن کښې ډیرې اصولی اوفروعی مسئلې اوفائدې بیان شویدی، څنګه چه ددې نه په وړاندې سورت کښې دمکې دفتح اودې سره دتړلو څیزونو بیان شوې وو، دآیت په شروع کښې الله تعالی خپل هغه انعام اواحسان بیان کړیدې چه په هرموقعه اوهرحالت کښې ئې په مسلمانانو کړیدې، فرمائی:

﴿لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ﴾ الله تعالی په ډیروځایونو کښې ستاسو امداداو کړو]، اوددې تمهیدنه پس ئې په خصوصیت سره دغزوة حنین ذکرئې څکه اوکړوچه په دې کښې ډیرداسې واقعات اوحالات څرګند شو دکوموچه طمع نه شوه کیدې، په هغې چه ژورنظراوکړې شی نود انسان په ایمان کښې قوت اوپه عمل کښې ئې مړانه پیدا کیږی، څکه ددې آیتونو د تفسیر بیانولو نه وړاندې ددې غزاهغه ضروری واقعات په تفصیل سره بیانول به مناسب وی چه داحادیثواود تاریخ په مستند وکتابونو کښې بیان شویدی فائده به ئې داوی چه دآیتونوپه مطلب باندې پوهیدلو کښې به آسانی وی، اودکوموفائدودپاره چه داواقعات بیان شویدی هغه مخې ته راشی، یادلرئ چه ددې واقعاتوزیاته برخه تفسیر مظهری نه څکه اغستې شویده چه په دې تفسیر کښې داحادیثواوتاریخ دکتابونوپه حواله سره دغه واقعات بیان شویدی،(۱)

،حنین، دهغه ځائ نوم دې چه دمکې مکرمې اود ،طائف، په منځ کښې واقع دې اودمکې مکرمې نه څه دپاسه دلسو میلوپه فاصله دې، کله چه په رمضان شریف [۸هـ] کښې مکه مکرمه فتح شوه اودمکې قریشو، درسول الله ﷺ په وړاندې وسله اوغورځوله نودهوازن قبیلې خلق ډیروارخطا شو څکه چه دایوه مالداره، مشهوره، بهادره اوجنګیالئ قبیله وه دطائف اوسیدونکی بنوثقیف هم ددې یوشاخ وو. دوئ ټول راغونډشواودا وئیل ئې شروع کړل چه دمکې مکرمې په فتح کولو مسلمانان زیات مضبوط شو. لازمی خبره ده چه اوس به ئې مونږ ته مخه شی، هوښیار تیاداده چه په حملې کولو کښې پرمونږ وړاندې شو. په دې غرض ئې دمکې نه طائف پورې خپل ټول شاخونه راوبلل کوم چه په دې علاقه کښې خواره وو، هرکله چه ټول راجمع شو دنیشت برابریو څو کسان چه دسلونه هم کم وو، دې غونډه کښې شریک نه شو. ددې

(۱) تفصیل دپاره اوګورئ: التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۴، ص ۱۵۳ نه ۱۵۹ پورے.

حرکت سرمشر دغه وخت مالک بن عوف ووچه روستو بیا مسلمان شو او د اسلام شیدائی ثابت شو، په دغه موقعه د مسلمانانو په خلاف جنګ کولو دپاره دې ښه په جوش کښې وو، د قبیلې خلقو په ګڼړ شمیر کښې دده مرسته او کړه او د جنګ تیاری شروع شوه. دې قبیلې د دوؤ ورو شاخو خلق ① بنو کعب او ② بنو کلاب دوئ سره شامل څکه نشو چه الله تعالی ورته بصیرت ورکړې وو، هغوئ او وئیل چه، که د مشرق نه تر مغربه پورې د دنیا ټول خلق هم د محمد ﷺ په مقابله کښې راجمع شي بیا به هم پرهغوئ ﷺ څکه برې بیامومی چه خدائی طاقت ئې مرستیال دې مونږه دغې طاقت سره د جنګ کولو توان نه لرو، مالک بن عوف په جنګ باندې د تیګ پاتې کیدو دپاره دا انتظام هم او کړو چه هرڅوک د سره د خپل ټول مال او سره د خپل ټول ټبر د جنګ میدان ته څکه ورشی چه تیښته به نشی کولې ولې چه د خپل مال او بال بچ پرېښودل به هلته نه غواړی. تاریخدانان د دغې خلقو شمیر مختلف ښائی، حافظ الحدیث علامه ابن حجر عسقلانی رحمه الله دا قول غوره کړې دې چه شمیرئې څلیریشت یا اته ویشت زره وو، (۱) او څنې وائی چه څلور زره وو، د دې تطبیق کول او جوړښت راوستل په دې شان کیدې شي چه ټول خلق سره د ښځو او بال بچ نه څلیریشت یا اته ویشت زره وی او جنګیالئ څلمی پکښې څلور زره وی،

په هرحال رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کښې د دوئ په اراده خبر کړې شو، څکه ئې د مقابله د پاره هم هغه وخت تیار شو، د مکې مکرمې امیرئې عتاب بن اسید رضي الله عنه جوړ کړو او معاذ بن جبل رضي الله عنه ئې ورسره د دې دپاره پرېښو چه هغه به خلقو ته اسلامی تعلیمات ورزده کوی، په دې موقعه رسول الله ﷺ د مکې د قریشو نه په سوال وسله او غوښته یو قریشی سردار صفوان بن امیه او وئیل چه د جنګ دا سامان مونږه بونګه کښې اخلئ څه؟ رسول الله ﷺ ورته او فرمائیل دا سې نه ده بلکه دا به درته خامخا واپس کوؤ، د دې په آورید وورته هم هغه سل زغرې ورکړې (۲) او د غه شان نوفل بن حارث ورته هم درې زره نیزې پیش کړې،

د امام زهری د روایت مطابق رسول الله ﷺ د څوارلس زرو صحابه کرامو رضي الله عنهم لښکر څان سره کړو او دغې جهاد دپاره اووتل په دې لښکر کښې دولس زره کسان هغه انصار صحابه کرام [عن] ووچه د مکې د فتح کولو دپاره هغوئ سره د مدینې منورې نه راغلی وو او دوه زره هغه کسان ووچه د مکې مکرمې د فتح په موقعه د مکې او دهغې د څواؤشانه مسلمانان شوی وو کوموته چه طلقاء وئیلې شی د شوال د میاشتې په شپږم تاریخ د خالی [هفتې] په ورځ دې غزا دپاره اووتل او وی وئیل چه صبا له به انشاءالله تعالی زمونږ پړاؤ د خیف بن کنانه په هغه مقام وی چرته چه د مکې قریش په دې غرض راجمع شوی وو چې مسلمانانو سره ئې د بائیکاټ لوظنامه لاس لیک کړې وه

دې څوارلس زرو مجاهدینو سره د مکې مکرمې بیشمیره نارینه او زنانه تماشګیر عموماً په دې غرض اووتل چه که مسلمانانو ماتې اوخوړه نو مونږ به تر هم خپل بدلونه واخلو او که دوئ برې بیامونده نو هم به مونږ له څه نقصان نه وی،

په دوئ کښې یو کس شیبه بن عثمان هم وو، کله چه ددې نه روستو مسلمان شو نو پخپله ئې او وئیلې چه د بدر په غزا کښې زما پلار د حضرت حمزه رضي الله عنه د لاسه او تره مې د حضرت علی رضي الله عنه د لاسه

(۱) تفسیر المظهری بحواله حافظ: ج ۴، ص ۱۵۴، وفتح الباری: ج ۱۲، ص ۱۲۶
(۲) مستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۴۳۲۰

Scanned with CS

وژلي شوي وو چه دهغي تاؤاوبدل اغستو جذبه م په زړه کښې وه، دا موقعه م غنيمت او ګڼړله او په دي غرض مسلمانانو سره روان شوم چه کله وس م برشو نو په رسول الله ﷺ به حمله او کړم، کله چه ميدان جنګ ته ورا ورسيدوا و ودي غزا په ړومبنی وخت کښې چه مسلمانان په تيښته شو نو زه هغوئ ته نزدې ورغلم چه ښی طرف ته ئې حضرت عباس ؓ څوکيداری کوله او ګس طرف ته ئې ابوسفيان بن حارث څوکيداری کوله، دشادا ړخه چه په دغې اراده ورغلم چه په توره پرِ سمدستی حمله او کړم نو نا ګهانه دهغوئ ﷺ نظر مبارک په ما پرېوتو، راته ئې آواز او کړو چه شيبه دلته راشه چه ورنزدې شوم په سينه ئې راته لاس مبارک کيښوا و دعائي اوکړه چه يا الله دده شيطان لرې کړې او س چه نظر پورته کوم رسول الله ﷺ راته په زړه کښې دخپلو سترګو، غوږونو او ځان نه هم زيات خوږدې هغوئ ﷺ راته حکم او کړو چه دکفارو دمقابله دپاره لاړشه، (۱) په دغه وخت زما دا حال وو چه خپل ځان مې هم په هغوئ ﷺ باندې قربانولو، په ډيرې مړانې م ددښمن مقابله اوکړه، کله چه هغوئ ﷺ ددغې جهادنه واپس راغلل نو زه ئې په خدمت کښې حاضر شوم هغوئ ﷺ زما دزړه دټولو خيالاتو نخښنه پته راکړه راته ئې اوفرمائيل چه ته دمکې مکرمې نه په دې نيت روان شوې وې زما خواؤشا زما دشهيد کولو په اراده زما چاپيره ګرځيدې خو د الله تعالى اراده تا نه دنيک کار اغستو وه کومه چه پوره شوه،

دغسې نضربن حارث هم په دغسې نيت حنين ته تلې وو، هلته په رسيدو سره الله تعالى دده په زړه کښې د رسول الله ﷺ بيګناهی اومينه واچوله يو مجاهد جوړ شو او دښمنانو سره ئې ښه په نره مقابله او کړه،

په دې سفر کښې ابی برده بن نيار ؓ ته دا واقعه راپيښه شوه چه اوطاس مقام ته په رسيدو ئې اوليدل چه رسول الله ﷺ د يوې اونې [درختې] لاندې تشريف فرمادې او يو بل سړې ورسره ناست دې رسول کريم ﷺ دا بيان اوفرمائيلو چه زه اوده وم دا سړې راغلو زما توره ئې پخپله قبضه کښې راوسته، زما په سر اودريدو او وې وئيل: اې محمد [ﷺ]: راته او ښائی څوک به د زمانه خلاص کړی؟ ما ورته او وئيل چه الله تعالى به م خلاصوی په دې آوريدو سره ئې توره دلاسه اوغورځيده. ابوبرده ؓ دغه وخت عرض او کړو، يا رسول الله ﷺ اجازت راکړئ چه زه ددې دښمنِ خدا کردن اووهم، دا د دښمن قوم جاسوس معلوميږی، هغوئ ﷺ اوفرمائيل؟ اې ابا برده، چپ شه، الله م ساتندونکې دې ترهغې چه زما دين په ټولو دينونو باندې غالب رانشی، هغوئ ﷺ دغه سړې ملامته هم نکړو او هم دغسې ئې خوشې کړو

حنين ته په رسيدو مسلمانانو دغلته پړاؤ او کړو نو حضرت سهيل بن حنظله ؓ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې دې خبر راوړلو دپاره حاضر شو چه په اس سوريو سړې د دښمن دطرف نه اوس راغلې دې، هغه دا وائی چه دهوازن قبيلې ټول خلق دخيرمې دلته مقابلې دپاره راغلی دی خپل ټول مالونه او سامانونه ئې هم ځان سره راوړی دی، رسول الله ﷺ ددې په آوريدو په خندا شو او وې فرمائيل چه پروا مه کوه چه دا ټول مالونه او سامانونه به دغنيمت په ډول د مسلمانانو لاس ته راځی،

---

(۱) دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث: ۱۹۰۳

Scanned with Ca

دغلته چه تیکاؤشونورسول الله ﷺ حضرت عبد الله بن حداد جاسوس جوړکړواو د دښمن دحالاتو معلومولو دپاره ئې اولیږلو هلته په ورتلو هغوئ ﷺ دوه ورځې ټول حالات اولیدل واؤریدل، دهغوئ سر مشر مالک بن عوف ئې اولیدو چه خپلو خلقوته ئې داسې وئیل چه د محمد ﷺ مقابله تراوسه پورې یو بهادرتجربه کارقوم سره نه ده راغلې، دمکې قریش ساده خلق وو، چه مقابله ئې ورسره اوکړه نوخپل طاقت ورته زیات ښکاره شواوس به هغوئ ﷺ خبرشی، تاسوټول صباکیدوسره سمدستی په دې شان صفونه اوتړئ چه هر یو کس پسې دې دهغه ښځه اولاداومال وی، دخپلوتوروتیکی اوشلوئ اوټول په یوځل حمله اوکړئ. داخلق په جنګ کولو کښې ډیرتجربه کاروو، دخپل فوځ، څودستې ئې په مختلفو مورچو کښې پټ کښینولی وو. یواړخ ته دکفارولښکردجنګ دغسې تیارياني کولې اوبل اړخ ته دمسلمانانو دا ړومبې جهادووچه پکښې څوارلس زره مجاهدین دمقابلې دپاره راوتی وو، دجنګ سامان هم ورسره دنورکله نه زیات وو، دبدراواحدپه میدانونو کښې ئې دالیدلې وو، چه صرف دیارلس دپاسه درې سوه بې سامانه خلقودیوزروکسانو مضبوط لښکرته ماتې ورکړې وه، نن ئې چه خپل ګنړوالې اودجنګ ښه تیارې اولیدونودحاکم اوبزاردروایت مطابق په دوئ ﷺ کښې دبعضې دخلوته داسې خبرې اووتې چه نن خوداکیدې نشی چه مونږ به دچانه ماتې اوخورو، دمقابلې په شروع کیدوسره به دښمن سمدستی په تیښته شی،

مالک الملک والملکوت ته دغه څیزخوښ رانغلوچه په خپل طاقت دڅوک تکیه اوکړی، په دې ښامسلمانانوته ددې سبق داسې ورکړې شوچه دمنصوبې مطابق کله چه دهوازن قبیلې خلقوپه یوځل حمله اوکړه اوپه مورچو کښې پټوناستوڅلموڅلورووارخونونه ګیره واچوله، ګردوغباررااوالوتواونړاوړخ ئې تیاره شپه کړه دصحابه کراموﷺ خپې اوښوئیدې اوپه تیښته شو، یواځې رسول الله ﷺ په خپلې سورلئ سوردروستوتلوپه خائ مخ په وړاندې روان وو، ډیرلږ صحابه کرام ﷺ هم ورسره ووچه شمیرئې درې سوه وو، بعضې خلقو داشمیر[۱۰۰] سل یاددې نه هم کم ښودلې دې دوئ هم رسول الله ﷺ سره په خپل ځائ ټینګ پاتې شواوداځ غوښتل چه هغوئ ﷺ نورهم وړاندې شی،

چه داحالت ئې اولیدونوهغوئ ﷺ حضرت عباس ﷺ له حکم ورکړوچه په اوچت آواز صحابه کراموﷺ باندې غږاوکړی چه هغه خلق چرته دی کوموچه دشجرې [اونې، درختې] لاندې دجهادبیعت [لاس نیوې] کړې وو، دسورة بقره صاحبان چرته دی، هغه انصارچرته دی چه دسربازئ لوظ ئې کړې وو، ټول داوس راشی ولې چه رسول الله ﷺ دلته دې،

دحضرت عباس ﷺ یوآوازلګه دبجلئ خورشو، سمدستی په تیښته کسان خپیمانه شواو ډیرپه زروړتیاسره ئې ددښمن پوره مقابله اوکړه، دغه وخت الله تعالى دفرښتوامدادهم رااؤلیږلو، ددښمن سرمشرمالک بن عوف خپل بال بچ اوټول مال پرینبوااوتښتیدو، دطائف په قلاکښې پټ شو، وروپسې ټول قوم اوتښتید ودهغوئ اویاکسان اووژلې شو، دخنې مسلمانانو دلاسه څه ماشومان زخمی شونورسول الله ﷺ په سختئ سره منع کړل، ددوئ ټول مال دمسلمانانوپه قبضه کښې راغلو، شپږزره جنګی قیدیان، څلیریشت زره اوښان، څلویښت زره چیلئ [بزې]، څلورزره اوقئې چاندی [سپین زر] مسلمانانوته په لاس ورغله،

په رومبي اودويم آيت کښې هم دا مضمون بيان شويدي، فرمائي چه، کله تاسو دخپلو خلقو په ګڼرې سره غره شوی وئ بيا مو هغه ګڼروالي هيڅ پکار رانغلو، او زمکه سره دفراخوالي نه در باندې تنګه شوه، بيا مخ په شا په تيښته شوئ، بيا الله تعالى خپله تسلي نازله کړه په خپل رسول الله ﷺ او په مسلمانانو باندې او داسې لښکرې [دفرښتوئې] نازل کړل چه تاسو نه ووليدلې او کافرانو ته ئې ستاسو په لاس سزا ورکړه،

په دويم آيت کښې فرمائي: ﴿ثُمَّ أَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ بيا، الله تعالى په خپل رسول ﷺ او په ټولو مسلمانانو باندې تسلي نازله کړه. معنى ئې داده چه په اول سر کښې دکومو صحابه کرامو ﷺ خپې چه خوئيدلې وې الله تعالى دهغوئ په زړونو باندې تسلي نازله کړه چه ورسره دهغوئ خوئيدلې خپې ټينګې شوې او تښتيدونکي بيا راوګرځيدل په رسول الله ﷺ او هغوئ ﷺ سره په ځائ ټينګ ولاړ وصحابه کرامو ﷺ باندې دتسلئ نازلولو مطلب دادې چه دوئ ته خپله فتح موندل نزدې ښکاره شوه. هر کله چه تسلي نازلول دوه قسمه وو، يو تښتيدونکو دپاره او بله رسول الله ﷺ سره په يو ځائ ټينګ ولاړ صحابه کرامو ﷺ دپاره، نو دې ته ئې داشارې کولو دپاره ﴿عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ بيل بيل په، عَلى، راوړلو سره بيان کړل،

وروسته فرمائي: ﴿وَأَنزَلَ جُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا﴾ يعنى داسې لښکرونه ئې نازل کړل چه تاسو نه ووليدلې [دې نه مراد په عامه توګه دخلقو ليدل دى، دځنو روايتونو له مخې دخاصو خاصو کسانو ليدل دې سره بې سمونه نه دى

بيا فرمائي: ﴿وَعَذَّبَ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ﴾ يعنى کافرانو ته الله تعالى سزا ورکړه او دکافرانو هم دغه سزاده] دې سزا نه مرادداده چه کافرانو دمسلمانانو دلاسه لاندې او پاتې راغلل چه ښه په ډاګه اوليدې شو، مطلب دا شو چه په دنيا کښې ورته دا سزا نغده ورکړې شوه دآخرت معامله په وروسته آيت کښې داسې بيان شويده ﴿ثُمَّ يَتُوبُ اللَّهُ مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ عَلَىٰ مَن يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ يعنى بيا چه الله تعالى چاته اوغواړى توبه به ئې نصيب کړى او الله تعالى لوئ مغفرت کوونکې دې، لوئ رحمت کوونکې دې!،

په دې کښې اشاره ده چه په دې جهاد کښې کوم خلقو چه دمسلمانانو دلاسه دلاندې او پاتې راتللو سزا موندلې ده او لا تراوسه پورې په کفر ټينګ دى په دې کښې به هم څه خلق د مسلمانيدو توفيق بيا مومى چنانچه هم دغسې را پيښه شوه تفصيل ئې دادې:،

**دحنين فتح، دهوازن او ثقيف دسردارانو مسلمانيدو دپاره حاضريدل او دقيديانو واپس کول:** ؟ په حنين کښې د هوازن او ثقيف قبيلې څه سرداران اووژلې شو، څه او تښتيدل دوئ سره راغلې بال بچ او ددوئ راوړى مالونه او سامانونه دمسلمانانو قيديان او مال غنيمت شو، يعنى شپږ زره قيديان جوړ شو، څليريشت زره اوښان، دڅلويښتو زرونه زياتې چيلئ او څلور زره اوقيه، [تقريبا څلورمنه] چاندى مسلمانانو ته دغنيمت په ډول ګټوله ورغلل. رسول الله ﷺ حضرت سفيان بن حرب دغنيمت دمال منتظم مقرر کړو،

بيا ماتې خوړونکو هوازن او ثقيف خلقو په مختلفو ځايونو کښې دمسلمانانو خلاف غونډې اوکړې خو په هر مقام ئې ماتې اوخوړه، چه ډير زيات رعب پر راغلو نو دطائف په يوې ډيرې مضبوطې قلا کښې ئې ځانونه محفوظ کړل، رسول الله ﷺ پنځلس، شل ورځې دغې قلا نه

Scanned with Ca

چاپیره وو، دغې قلابند ودښمنانو به دننه نه غشي ورول، مخامخ ورته هیڅوک نشو راتلې، صحابه کرامو ؓ عرض اوکړو چه یارسول الله: دې خلقوته خیرې اوکړئ خو هغوئ ﷺ دې خلقو دپاره دهدایت دعا اوکړه، آخر رسول الله ﷺ د صحابه کرامو ؓ په مشوره دغه ځائ نه دتلو قصد اوفرمائیلو، جعرانه مقام ته په ورسیدوئې اول دعمرې کولو اراده اوکړه او بیا مدینې منورې ته دواپسئ اراده ئې اوکړه، دغلته په رسید ود مکې مکرمې ډیرو هغه خلقو هم دمسلمانید واعلان اوکړو کوم چه داوله سره مسلمانانو سره دمکې مکرمې نه په دې غرض راروان شوی وو چه دمسلمانانو دفتح اوشکست امتحان واخلی،

دغلته په رسید ودمال غنیمت دویشلو انتظام اوشو، ویش جاری شو چه ناڅاپه دهوازن قبیلې څوارلس سرداران دزهیربن صرد په مشرئ کښې درسول الله ﷺ په وړاندې حاضر شو په دوئ کښې درسول الله ﷺ یو رضاعی تره ابو یرقان هم وو، هغه اووئیل چه مونږه مسلمانان شوی یو اوداخواست ئې اوکړو چه زمونږ بال بچ اومالونه دمونږ ته واپس کړې شی، په دې خواست کښې دا ښکاره کړې شو چه یارسول الله ﷺ درضاعت له مخې مونږه ستاسو ﷺ خپلوان، عزیزان یو، مونږ باندې راغلې مصیبت ستاسو ﷺ په وړاندې دې تاسو ﷺ راسره ښیګړه اواحسان اوکړئ،

ددې وفد سردار یو شاعر انسان وو، هغه اووئیل چه یارسول الله ﷺ که مونږ دخپل مصیبت په وخت کښې دروم یا عراق بادشاه نه څه خواست کړې وې نو زمونږ په خیال به هغوئ هم زمونږ خواست نه وې رد کړې او تاسو ﷺ باندې خو الله تعالی دښو او بهترینو خویونو ډیره زیاته پیرزوونه کړیده څکه مو تاسو ﷺ نه ډیر امیدونه کیږی،

رسول الله ﷺ ته په دغه موقعه باندې دوه اړخیز مشکلات داسې راپیښ شو چه یو خو اد رحم او کرم دتقاضا مطابق خواست کوونکو ته ټول قیدیان او مال، سامان واپس کړې شی، بل خوا دمال غیمت واپس کول ورته څکه انصاف نه ښکاریدو چه دې کښې دټولو مجاهدینو حق وو، څکه دصحیح بخاری دروایت مطابق رسول الله ﷺ ددوئ په جواب کښې اوفرمائیل: زما سره دمسلمانانو ددې لښکر هر یو غړې په دې مال غنیمت کښې حقدار دی، زه د رښتیا او صفا خبره خوښوم څکه درته دا اختیار درکوم چه یا خو خپل قیدیان واپس واخلئ، یا د غنیمت مالونه او سامانونه واخلئ، په دې دواړو کښې چه کوم یو تاسو غوره کړو هغه به درکړیشی. ټولو د قیدیانو واپسی غوره کړه رسول الله ﷺ ټول صحابه کرام ؓ راجمع کړل یو خطبه ئې ورکړه په هغې کښې ئې دالله تعالی ثناصفت بیان کړو بیائې اوفرمائیل: ستاسو ؓ داورونړه توبه کوونکی راغلی دی زه ورته ددوئ قیدیان واپس کول غواړم څوک چه په ښه زړه ورته خپله برخه ورکول غواړی هغوئ دو رسره دغه ښیګړه اوکړی او څوک چه دې ته تیار نه وی نو مونږ به ورته په نورو مالونو دفئی کښې ددې بدله ورکړو،

**دخلقونو په باره کښې دعامې رائې معلومولو دپاره دعوامي جلسو آوازونه کافي نه دي دهر یو ځان ځانله رائې معلومول پکار دي!** دهر طرف نه دا آواز پورته شو چه مونږه دزړه دکومې نه په قیدیانو واپس کولو باندې خوشحاله یو خو بیا هم رسول الله ﷺ دا آوازونه کافی اونه ګڼړل اودعدل او انصاف د تقاضا مطابق او دحقوقو په معامله کښې داحتیاط کولو په خاطرئې اوفرمائیل چه ما ته د زړونو هیڅ پته نه لګی چه چا د ښه زړه نه دغسې اووئیل او که چا د شرم او حیاله کبله داسې اووئیل؟

Scanned with Ca

هر کله چه دا دخلقو دحقوقو معامله ده نوزه وایم چه دهرې ډلې او دهرې کورنۍ سردارډې خپلو خپلو خلقوسره ځان ځانله مشوره اوکړی او صحیح خبره دې ماته اوښائی. دغسې اوشو او هر یو سردار اووئیل چه هرڅوک دښه زړه نه دغه خپل حق پرېښودلوته تیاردی هله پس ته رسول الله ﷺ ورته دغه ټول قیدیان واپس کړل،(۱)

داهغه خلق وو چه په دریم آیت کښې ورته د ﴿ثُمَّ يَتُوبُ اللّٰهُ مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ﴾ سره دتوبې دتوفیق ورکولو اشاره. شویده. دغزوهٔ حنین دځنې واقعاتو تفصیل یاخو دقرآن کریم نه بیان کړې شو یا خو دحدیث د مستندو حدیثونو نه راغستې شویدې [مظهری وابن کثیر](۲)

**احکام اومسائل:** ددې واقعاتو په ترځ کښې ډیر احکام هدایتونه او ضمنی فائدې راغلی دی کوم چه ددې واقعاتو بیانولو اصلی مقصد دی،

په دې آیتونو کښې ړومبې هدایت دا ورکړې شو چه مسلمانان دهیڅ کله په خپل ګڼروالی او طاقت باندې نه غره کیږی، څنګه چه د کمزورۍ او بې سامانۍ په حالت کښې ددوئ سترګې دالله تعالی مرستې او امدادته وی، دغه شان دقوت او طاقت په حالت کښې دهم سترګې او تکیه دالله تعالی په امداد باندې لری. ولې چه دحنین دغزا په موقعه کله چه مسلمانانو خپل ګڼروالي او ډیرسامان اولیدونو دبعضې صحابه کرامو ﷺ په خلوباندې داخبره هم راغله چه اوس څه مجال دې چې په مونږ باندې څوک برشی. الله تعالی دخپلې محبوبې دې ډلې داسې دلوئې خبره خوښه نه شوه، په نتیجه کښې داسې اوشو چه دغزا په شروع کښې کله چه دښمن په یوځل حمله اوکړه نو دصحابه کرامو ﷺ پښې اوخوئیدې، هغوئ ﷺ په تیښته شو ،بیا دالله تعالی په غیبی امداد سره دغه میدان فتح شو،

**دپاتې راغلو او ماتې خوړونکو کفارو په مالونو کښې عدل، انصاف او احتیاط کول:** ددې واقعې نه دویم هدایت دا حاصل شو چه هر کله رسول الله ﷺ دحنین غزانه روانیدونو دغه وخت ئې دمکې مکرمې ماتې خوړونکو کفارو نه مال او سامان په زورزبرستۍ هم اغستې شو لیکن سره ددې هغوئ ﷺ ورته اوفرمائیل چه دا سامان دضرورت دپاره تاسو نه غواړو چه بیابه ئې درته خامخا واپس کوؤ او هم دغسې ئې اوکړل. دې سره مسلمانانو ته داسبق ورکړې شو چه دښمنانو سره دهم دعدل وانصاف اورحم وکرم سلوک او معامله کوی،

دریم هدایت دنبوی ارشادنه داسې حاصل شو چه هر کله دحنین په لاره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه صبابه مونږه په داسې یو مقام [خیف بنی کنانه] دمه کوؤچه چرته زمونږه دښمنانو [دمکې قریشو] دمسلمانانو په خلاف دبائیکاټ یوه لوظنامه کړې وه. دا اشاره وه دې خبرې ته چه مسلمانان ددخدائ ورکړی قوت او امداد نه پس هم ،دغم، تکلیف هغه تیرشوې دورخکه نه هیروی چه دالله تعالی شکر اداکړې شی. دهوازن قبیلې خلقو چه ماتې اوخوړه طائف کښې قلابند شو په مسلمانانو به ئې دهغه ځائ نه غشی ورول او بیابیابه ئې پرحملې کولې خوسره ددې نه هم، رحمة للعالمین ﷺ ورته دخیرو کولو په ځائ دهدایت دعا اوکړه، په دې سره مسلمانانو ته داسبق ورکول وو چه دجنګ او جهاد مقصد یو اځې ددښمن رالاندې کول نه دی،

---

(۱) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب قول الله تعالی ویوم حنین الخ: ج ۲، ص ۶۱۷

(۲) التفسیر المظهری: ج ۴، ص ۱۵۴ نه ۱۷۰ پورے، وتفسیر ابن کثیر: ج ۳، ص ۱۲۵ نه ۱۳۰ پورے۔

بلکه دوئ لره هدايت ته راارول دي، ځکه د دې کوشش نه هيڅ وخت بې پروا کيدل پکار نه دي،

دريم آيت کښې دا هدايت شوې دې چه ماتې خوړونکو کفارو نه هم نااميده کيدل ځکه پکار نه دي چه کيدې شي، الله تعالى ورته د اسلام هدايت اوکړي څنګه چه دهوازن قبيلې د وفد د اسلام راوړلو نه ثابته شوه،

دهوازن قبيلې د دغې وفد په خواست هر کله چه ورته د قيديانو د واپس کولو سوال راپورته شو نو رسول الله ﷺ د صحابه کرامو ؓ نه تپوس اوکړو چه څوک د بنه زړه نه د داسې کولې شي هغوئ دا ووائي نو ټولو د بنه زړه نه د داسې کولو رضا ښکاره کړه ليکن بيا هم رسول الله ﷺ دې لره کافي اونه ګڼړل بلکه خان خانله ئې د هريو د اجازت او خوښې معلومولو انتظام اوکړو. دې نه ثابته شوه چه څو پورې د پوره رضامندئ او خوشدلئ تسلي نه وي شوې نو د چا حق اغستل جائز نه دي، د جمع او ګڼړې رعب په چا غالب شي يا د خلقو د شرمه چپ پاتې شي نو رضامندئ د پاره دا نه کافي کيږي، چنانچه فقهاؤ فرمائيلي دي چه د خپل اثر، رسوخ د رعب اچولو په وجه ديني کار د پاره چنده اغستل هم درست نه دي، ولې چه په دې صورت کښې ډير شريفان خلق محض د شرم، حياله کبله څه ناڅه ورکړي، پوره خوښه ئې نه وي، او د اسې مال کښې برکت هم نه وي،

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِنَّمَا | الْمُشْرِكُوْنَ | نَجَسٌ | | |
| اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | بيشکه | مشرکان | پليت دي | | |
| اي مؤمنانو بيشکه مشرکان [اګرچه په ظاهره ډير پاک وي روحاني لحاظ سره] پليت دي | | | | | | |
| فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ | الْحَرَامَ | بَعْدَ | عَامِهِمْ | هٰذَا | وَاِنْ | |
| پس نه دي نزدې کيږي دوئ | مسجد حرام ته | روستو | د کال د دوئ نه | چې دادې | او که | |
| نو د دې کال نه پس دې دوی مسجد حرام ته نه نزدې کيږي [باقي د مشرکانو په بنديز که ستاسو تجارت خرابيږي] | | | | | | |
| خِفْتُمْ | عَيْلَةً | فَسَوْفَ | يُغْنِيْكُمُ اللّٰهُ | مِنْ فَضْلِهٖٓ | اِنْ | شَآءَ |
| يره کوئ تاسو | د غريبئ نه | نو زر به | مالدار کړي تاسو الله | په فضل خپل سره | | که اوغواړي هغه |
| او که تاسو د غريبئ نه ويريږئ نو که الله تعالى اوغواړي تاسو به په خپل فضل سره [د بل طرفه] مالدار کړی | | | | | | |
| اِنَّ اللّٰهَ | عَلِيْمٌ | حَكِيْمٌ ﴿۲۸﴾ | | | | |
| بيشکه الله | په هر څه پوهه دې | د حکمت خاوند دې | | | | |
| بيشکه الله تعالى پوهيږي او صاحب حکمت دې | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اې د ايمان خاوندانو مشرکان خو سراسر پليتي ده دې وجې نه د هغوي دې کال نه وروستو مسجد حرام ته نزدې هم نه راځي او ﴿مسلمانانو﴾ که تاسو ته د غريبئ فکر وي نو که الله وغواړي نو تاسو به په خپل فضل سره ﴿د مشرکانو نه﴾ بې پرواه کړي بې شکه د الله علم هم کامل دې او حکمت هم.

## خلاصه تفسير

﴿يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ﴾ ائې د ايمان خاوندانو ، مشرکان خلق [د ګنده عقيدو په وجه] خالص ناپاک دي نو [په دې ناپاکئ چې کوم احکام ادانړه شوې دي د هغې څخه يو دا دې چې] ﴿فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا﴾ دا خلق د دې کال نه پس د مسجد حرام [يعنی د حرم] خواته

Scanned with Ca

[هم] رانشي [يعنى حرم ته دې نه داخليږى ] ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً﴾ اوكه [ددې حكم دجارى كولو په وجه] تاسو د نيستۍ انديښنه لرئ [چې ټولې معاملې مو په دوئ روانې دى چې دوئ نه وى نو كارونه به مو څنګه چليږى ؟] نو [تاسو په الله ﷻ باندې توكل لرئ] ﴿فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ إِنْ شَاءَ﴾ تاسو به الله ﷻ پخپل فضل سره [ددوئ] محتاج اونه لرى كه اوغواړى، ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ بيشكه الله ﷻ [دحكمونو په ښيګړو] ښه پوهيدونكې دې [او ددغې ښيګړو د كاملولو په باره كښې] لوئې د حكمت خاوند دې [ځكه ئې داحكم مقرر كړو او ستاسو د نيستۍ د ختمولو انتظام به هم اوكړى].

## معارف او مسائل

دسورت توبه په شروع كښې كفارواومشركانو نه دويزارۍ اعلان كړې شوې وو، اوس په دې آيت كښې ددغې ويزارۍ اعلان سره تړلى حكمونه بيان شويدى، دويزارۍ داعلان حاصل دا ووچه ديو كال په موده كښې دټولو كفارولو ظنامې دختمې ياپوره كړې شى اوداعلان نه يو كال پس دهيڅوک مشرک دحرم په حدودو كښې پاتې نشى،

په دې آيت كښې هم دغه بيان په يو خاص انداز كښې كړې شويدې، په دې كښې ئې ددغې حكم حكمت اوښيګړه هم اوښوله، اوپه هغې باندې عمل كولو كښې ځنې مسلمانانو ته چه كومې خطرې راولاړې شوې وې دهغې جواب ئې هم وركړو، دلته، نَجَس، لفظ دجيم په زورسره استعمال شويدې چه معنى ئې نجاست ده، نجاست هرهغې پليتۍ ته وئيلې شى چه دانسان طبيعت تركركه كوى، امام راغب اصفهانى رحمه الله فرمائيلى دى، چه په دې كښې هغه پليتى هم داخله ده چه په سترګو، پوزه يالاسونو وغيره محسوسيږى اوهغه هم چې دعلم اوعقل په ذريعه سره معلوميږى، په دې وجه به ،نَجَس، هرهغې پليتۍ ته وئيلې شى چه په ظاهرى ډول ئې هرڅوک محسوسوى اوهغه معنوى پليتۍ ته هم وئيلې شى چه دهغې په بناباندې دشريعت له مخې اودس ياغسل واجبيږى لكه دجنابت ياد حيض اونفاس دختميدونه پس حالت شواوهغه باطنى پليتۍ ته هم وئيلې شى چه دانسان دزړه سره تړون لرى لكه خرابې عقيدې اوخراب اخلاق شو،

په دې كښې د﴿إِنَّمَا﴾ كلمه راوړې شوه كومه چه د حصر دپاره استعماليږى په دې بناد ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ﴾ معنى داشوه چه مشركان سوده خالص پليتۍ دى اوصحيح خبره داده چه په عام ډول په مشركانو كښې درې واړه قسمه پليتۍ وى، ولې چه ډيرظاهرى ناپاكو څيزونولره هغوئ ناپاک نه ګڼرى ځكه ترځان نه ساتى لكه شراب اوددې نه جوړشوى څيزونه واخلئ دباطنى اومعنوى پليتۍ لكه دجنابت غسل وغيره خوهغوئ دسره اعتقادنه لرى، دغه شان خرابې عقيدې او خراب اخلاق خوهم هغوئ هيڅ نه ګڼرى،

په دې بناپه دې آيت كښې مشركان ئې خالص پليتى اوبلل اوداحكم ئې وركړو ﴿فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا﴾ يعنى داسې كول پكاردى چه ددې كال نه پس دامشركان د مسجد حرام خواته لا ړنشى] مسجد حرام خوعموما هغه احاطې ته وئيلې شى چه بيت الله شريف نه ګيرچاپيره ده، ليكن دقرآن اوحديث له مخې دالفظ دمكې محترمې ټول حرم دپاره هم كله كله استعمال شويدې چه څلورو واړو اړخوته دڅوميلورقبه جوړيږى، اوحضرت ابراهيم عليه السلام وردپاره دغه حدود مقرر كړې دى، چنانچه دمعراج په واقعه كښې ﴿مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ نه په اتفاق

سره دامعنی څکه مراداغستې شويده چه معراج دام هانئې دمکان نه شروع شويدې، خاص د مسجدحرام نه، نه وو شروع شوې، دغه شان په ﴿إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ کښې د مسجدحرام نه ټول حرم مرادڅکه دې چه دغه صلح دحديبئې په مقام شوې وه چه دحرم د حدودونه بهر، ورسره متصل واقع دې [جصاص][1]

ددې تحقيق په بنادآيت معنی داشوه چه دې کال نه پس دمشرکانوداخله دحرم په حدودو کښې منع ده، دې کال نه بعضې علماؤ رحمهم الله [۱۰هـ] مراداغستې دې مګردجمهورومفسرينو رحمهم الله په نزد[۹هـ] غوره دې، ولې چه رسول الله ﷺ دويزارئ دغه اعلان دحضرت صديق اکبر رضي الله عنه او علي مرتضی رضي الله عنه په دريعه په [۹هـ] دحج په موسم کښې کړيدې، په دې بناديو کال نه مراد د[۹هـ] نه تر[۱۰هـ] پورې دې چه هغې نه پس دغه قانون نافذشو، [زمايه ناقص خيال کښې غوره خبره رومبئ څکه ده چه داعلان نه پس [۹هـ] کښې څوورځې پاتې کيږي چه هغې نه پس دغه کال ختم شی حالانکه مهلت ديوکال ورکړې شويدې نودغه يو کال دمحرم [۱۰هـ] نه ترذی الحجې [۱۰هـ] پورې کيدې شی اوپه ،هذا ،لفظ سره ورته اشاره څکه اوشوه چه [۹هـ] هسې هم په ذی الحجه ختم شواو [۱۰هـ] بيخی نزدې دې والله اعلم [مترجم]

**په مسجدحرام کښې دمشرکانوداخله بنديدل څه مطلب لري؟اوداښديدل يواځې په مسجد حرام کښې دی اوکه په نوروعاموجوماتونوکښې هم؟** په آيت کښې راغلی دی حکم کښې درې خبروباندې ژور نظراچول پکاردی په کوم کښې چه د[۱۰هـ] نه پس دمشرکانوداخليدل بندکړې شويدی، ① اوله خبره داده چه داحکم يواځې دمسجدحرام په باره کښې دې اوکه دنوروعاموجوماتونوپه باره کښې هم دې؟ که ② يواځې دمسجدحرام په باره کښې وی نود مشرکانوداخله مطلقابنده شوه اوکه صرف دحج اوعمرې دپاره بنده ده چه هسې به ورتلې شی؟ ③ دريمه خبره داده چه آيادې حکم لاندې داهل کتابو کفاروهم راځی اوکه نه؟

قرآن کريم ددې ټولوخبروپه باره کښې هيڅ نه دی فرمائيلی په دې وجه مجتهدينو امامانو قرآنی اشارې اوحديثوروايتونه خپلې مخې ته ايښی دی اودخپل خپل اجتهادپه جوړې حکمونه بيان کړيدی .په دې باره کښې رومبې بحث دادې چه قرآن کريم مشرکانوته نجس په څه اعتبارسره وئيلی دی .که ظاهری پليتی يامعنوی [جنابت وغيره] تر مرادوی نوظاهره ده چه په يوجومات کښې دداسې پليتئ داخلول بند دی يعنی جائزنه دی، دغسې د جنب، يادحيض اونفاس والانښځې هم يوجوماتته داخليدل نارواده، اوکه ددې نجاست نه مراد ،دکفراوشرک باطنی نجاست وی نوکيدې شی چه ددې حکم دظاهری نجاست نه بدل وی،

په تفسيرقرطبی کښې راغلی دی چه دمدينې منورې فقهاؤ [لکه امام مالک رحمه الله وغيره] فرمائيلی دی چه مشرکان په هرلحاظ سره پليت څکه دی چه عموماد ظاهری پليتئ نه هم ځان نه ساتی، دجنابت وغيره نه دغسل کولوپابندی هم نه کوی اودکفراوشرک باطنی پليتی خوپکښې يقيناشته دې، څکه داحکم ټولومشرکانواوټولوجوماتونودپاره عام دې، ددې په دليل کښې دحضرت عمربن عبدالعزيزدافرمان پيش کوی کوم ئې چه دعلاقوامیرانو ته په دې غرض ليږلې

[1] ) أحكام القرآن للجصاص تفسير سورة البراءة: ج٦، ص ٢٤٣، ٢٤٤

ووچه کفاردې جوماتونو کښې ننوتو ته نه پرېږدي، په دغه فرمان کښې ئې هم داآیت شریف لیکلې وو،([1])

داشان په یوحدیث کښې رسول الله ﷺ ارشادفرمائیلې دې، [لَا اُحِلُ المَسجِدَ لِحَائِضٍ وَّلَاجُنُبٍ]([2]) په یوجومات کښې دحائضې ښځې یاجنبی بنده داخلیدل جائزنه ګڼم،

مشرکان اوکفارهم دجنابت په حالت کښې دغسل انتظام نه کوی ځکه ئې په جومات کښې داخلیدل منع دی،

دامام شافعی په نزددا حکم مشرکانو او اهلِ کتابو [تولو] دپاره عام دې خویواځې مسجد حرام کښې ئې داخلیدل منع دی په نوروجوماتونو کښې منع نه دی [قرطبی] په دلیل کښې ئې داپیش کړیدی چه هرکله ثمامه بن اثال دمسلمانیدونه وړاندې بندیوان کړې شونورسول الله ﷺ دمسجدنبوی یوې ستنې سره تړلې وو،([3])

دامام اعظم ابی حنیفه رحمه الله په نزد ددې مطلب دادې چه په راتلونکی کال کښې مشرکانو ته په مشرکانه طریقې دحج اوعمرې کولو اجازت نشته، دلیل ئې دادې چه کله دحج په موسم کښې دحضرت علی رضی الله عنه په ذریعه دویزارئ اعلان کولې شونودهغې الفاظ داسې وو، لَايَحُجَّنَّ بَعدَالعَامِ مُشرِك، په دې کښې دابنکاره کړې شوی ووچه ددې کال نه پس به هیڅوک مشرک حج نشی کولې، په دې بِناپه دې آیت کښې د ﴿فَلَا يَقرَبُوا المَسجِدَ الحَرَامَ﴾ مطلب دادې چه مشرکان دې په مشرکانه طرزحج عمره نه کوی، بل څه ضرورت دپاره دامیرالمؤمنین په اجازت مسجدحرام کښې ننوتې شی، چنانچه دثقیف دوفدواقعه ددې دلیل داسې کیدې شی چه هرکله داوَفدد رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشونوهغوئ ﷺ په یوجومات کښې تیکاؤکړل، صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه دانجس قوم دې، نوهغوئ ﷺ اوفرمائیل چه دجومات په زمکه ددې خلقو دپلیتئ هیڅ اثرنه پریوځی [جصاص]([4])

دې روایت سره داخبره هم واضحه کیږی چه قرآن کریم کښې مشرکانوته دنجس وئیلو مطلب دا دې چه کفراوشرک ددوئ پلیتی ده [ځکه چه دامام اعظم ابی حنیفه مسلک دې] دغه شان د حضرت جابربن عبدالله په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه هیڅ یو مشرک ددجومات خواته نه ځی خوهله چه دیومسلمان غلام یاوینځه وی نودضرورت په وجه ورننوتې شی، [قرطبی]([5])

داحدیث شریف ددې خبرې ګواه دې چه دظاهری پلیتئ له کبله مشرکان دمسجدحرام نه بندنکړې شوورنه داوجه خودمشرکانوغلامانواووینځوهم کیدې شوه هغوئ ته ولې اجازت ورکړې شو؟ ددې بنیادی وجه کفراوشرک دې ددې دغلبې خطره چه څانه کیدې شوه هغوئ بندکړې شودغلام اووینځې نه داخطره نشوه کیدې ځکه ورته اجازت ورکړې شوورنه هسې خود ظاهری اومعنوی پلیتئ [مثلاحیض، نفاس، جنابت] په وجه دمسلمان داخلیدل هم په جومات کښې منع دی، ددغې کبله یواځې دمشرکانوبندولوبیاضرورت څه وؤ؟

---

[1]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۸، ص۱۰۳، ۱۰۴

[2]) سنن ابی داود، کتاب الطهارة، باب فی الجنب یدخل المسجد: ج۱، ص۳۰

[3]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۸، ص۱۰۵

[4]) أحکام القرآن للجصاص تفسیر سورة براءة: ج۲، ص۲۷۱، ۲۷۲

[5]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۸، ص۱۰۶

Scanned with Ca

دغه دجمهورو رحمهم الله دتفسیر مطابق هرکله چه مسجد حرام نه ټول حرم مراداغستې شی نود هغې تقاضاهم داده چه دامنع دې دظاهری پلیتئ په بنیادنه وی بلکه دشرک اوکفرپلیتئ په بنیادوی، ځکه خویواځې په مسجدحرام کښې نه،بلکه په ټول حرم کښې داخله ئې بنده شوه ځکه چه دااسلام شپول اوقلاده په دې کښې دغیرمسلم ساتل دزغم نه بهرخبره ده،
دامام اعظم ابی حنیفه رحمه الله ددې تحقیق حاصل دادې چه اګرکه دپلیتو [نجاستونو] نه د جماعتونو پاک لرل اوساتل هم یوه مستقله مسئله ده چه قرآن کریم اواحادیثونه ثابته ده، خو ددې آیت تعلق دې مسئلې سره نه دې،بلکه تعلق ئې داسلام د یوسیاسی حکم سره دې چه اعلان ئې دسورت براءت په شروع کښې داسې شویدې چه دمکې مکرمې دټولومشرکانونه حرم محترم خالی کول مقصودووخود عدل اوانصاف دتقاضامطابق دمکې مکرمې په فتح کیدوسره سمدستی ددوئ په ویستلوحکم اونکړې شوبلکه چا سره چه لوظنامه شوې وه او هغوئ پرتینګ هم وونودهغوئ نیته پوره کول وو،اونوروته دیوکال نیته ورکول ووچه په دې دوران کښې ددحرم محترم نه دوتلوبندوبست اوکړی،ددې بیان په دې آیت کښې داشان راغلو چه:دې کال نه پس به دمشرکانو داخلیدل دحرم په حدودوکښې منع وی اوهغوئ به مشرکانه حجونه اوعمرې نشی کولې،
ځنګه چه دسورت توبه په آیتونوکښې په ډاګه بیان شوی ووچه هیڅ یومشرک به دحرم په حدودوکښې نشی داخلیدې،دغه شان داحادیثودروایتونوله مخې رسول الله ﷺ داداثره نوره هم فراخه داسې کړه چه مشرکان دپوره جزیرة العرب نه بهرکړې شی(۱) خودهغوئ ﷺ په زمانه مبارکه کښې په دې باندې دعمل کولونوبت رانغلو،وروسته دصدیق اکبر رضی الله عنه په زمانه کښې هنګامی مسئله راپورته شوه ځکه دغه زمانه کښې هم پرې عمل اونکړې شوالبته حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خپله زمانه دخلافت کښې داحکم نافذکړو،(۲)
پاتې شوه دکفارودپلیتئ اودې نه دجوماتونودپاکوساتلو مسئله،نودا په خپل ځائ اوس هم موجوده ده،چه دفقه په کتابونوکښې په تفصیل سره بیان شویده چه هیڅ یومسلمان هم د ظاهری پلیتئ یادجنابت په حالت کښې په هیڅ جومات کښې نشی داخلیدې،نوعام کفار، مشرکان اواهل کتاب هم،هرکله چه ددې پلیتونه پاک نه وی په دې وجه سخت ضرورت چه نه وی ددوئ ننوتل هم یوجومات ته جائزنه دی،
ددې آیت له مخه هرکله چه دکفارواومشرکانوداخله په حرم شریف کښې حرام اوګرځولې شوه نومسلمانانوته دایومعاشی مسئله راپیښه شوه چه مکه مکرمه کښې هیڅ پیداوارنه کیږی، بهرنه به خلقودغه ضرورتونه دغلته راوړل دحج په موسم کښې به اهل مکه دپاره ټول ضروریات راجمع شو اوس چه ددغه بهرنو خلقوداخله په حرم کښې بنده شوه نودغه کاربه ځنګه چلیږی،ددې جواب په قرآن کریم کښې داورکړې شوچه، ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ إِنْ شَاءَ﴾ یعنی که تاسود معاشی مشکلاتو راپیښیدونه ویریږئ نوپوه شئ چه دټول مخلوق د معاش [ژوندتیرولو] انتظام دالله تعالی په لاس کښې دې ،که هغه اوغواړی نودغه ټولو کفارو

(۱) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب هل یستشفع الی أهل الذمة الخ: ج ۱، ص ۴۲۹، وصحیح مسلم، کتاب الوصیة، باب ترک الوصیة لمن لیس له شیء الخ: ج ۲، ص ۴۲
(۲) سنن ابی داود، کتاب الخراج والامارة والفئ، باب فی اخراج الیهود من جزیرة العرب: ج ۲، ص ۴۲۹

Scanned with Ca

نه به تاسوبې پروا کړی] دلته د[ان شاء] قید لګولو مطلب شک او تردد نه دې بلکه دې سره اشاره دې خبرې ته ده چه صرف په مادی اسبابو باندې نظر لروونکو ته اګرچه دا خبره ډیره لرې او مشکله ښکاری چه هرکله ددوئ [دمسلمانانو] د ژوند تیرولو ذریعه هم دغه غیرمسلم وو نو دهغوئ [کفارو] دداخلې په بندید وسره به ددوئ دژوندتیرولو ذریعه هم بنده شی، خودوئ د یاد لری چه الله تعالی دمادی سامان محتاجه نه دې، دهغه اراده دټه کارکولو چه اوشی نو ټول اسباب اوذریعې ټولې ورته پخپله درستې شی یعنی صرف دالله تعالی په ارادې راتلوسره ټول کارونه پخپله سمیږی اودهغې ذریعې او اسباب پخپله برابریږی.

| |
|---|
| قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ |
| اجنګیږئ|دهغه کسانو سره اچی ایمان نۀ راوړی |
| د هغه خلقو سره جنګیږئ چه په الله تعالی او د آخرت |
| بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ |
| په الله باندې ا اونۀ اپه ورځ دآخرت باندې ا اوحرام نۀ ګڼری ا هغه چی احرام کړی دی الله ا اورسول دهغه |
| په ورځ یقین نه ساتی ا اوهغه څیزونه نه حراموی کم چه الله تعالی اود هغه رسول حرام کړی دی |
| وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ |
| اونۀ جوړوی دین ا دین حق لره ا دهغه کسانو نه اچی ورکړې شوې دې ورته ا کتاب |
| اوحق دین نه قبلوی [چه دین اسلام دې په دې بدو صفتونو موصوف کسان] دهغه خلقو څنی دی چه |
| حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ۝ وَقَالَتِ |
| تردې پورې ا چی ورکړی هغوئ ا جزیه ا په خپل لاس احال دا چی هغوئ ذلیله وی ا او وائی |
| اهل کتاب دې ا تردې ورسره جنګیږئ چه په ذلت او رسوائی سره جذیه ورکړی ا اویهودیان وائی |
| الْيَهُوْدُ عُزَيْرُ ابْنُ اللّٰهِ وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ ابْنُ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ |
| یهودیان اچی عزیر اخوئې دالله دې ا او وائی ا عیسایان ا چی مسیح ا خوئې دالله دې ا دا |
| چه عزیر ؑ دالله خوئې دې ا اونصرانیان وائی چه مسیح [عیسی] د الله خوئې دې ا دا [خبرې] صرف |
| قَوْلُهُمْ بِاَفْوَاهِهِمْ ۚ يُضَاهِـُٔوْنَ قَوْلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| خبری ددوئ دی اپه خلو ددوئ باند امشابه کوی دوئ اخبری دهغه کسانوسره اچی کفر نې کړې وو |
| د دوی د خلو خبرې دی ا دوی د هغه کافرو خلقو پشان خبرې کوی کوم چه د دوی نه وړاندې تیرشوی |
| مِنْ قَبْلُ ؕ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۚ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۝ |
| دمخکښې نه ا هلاك دې کړی دوئ لره الله اچی دکوم ځائې نه دهوکه کیږی دوئ ا |
| دی ا الله دې دوی هلاک کړی څنګه [سره د پوهې نه] دوی د حق نه اړولې شی ا |

## آسان ترجمه قرآن

هغه اهل کتاب چه نه په الله باندې ایمان راوړي او نه په ورځ د آخرت باندې او دوی دالله او د هغه د رسول حرام کړې شوي څیزونه نه حراموي ، او نه دین حق لره خپل دین ګنړي د هغوی سره جنګ وکړئ تردې چه دوی ذلیله شی او په خپلو لاسونو باندې جزیه ادا کړي یهود خودا وائی چه عُزیر علیه السلام د الله ځوی دی او عیسایان دا وائی چه عیسٰی علیه السلام د الله ځوی دی دا ټولې د دوی د خولو خبرې دي دوی د هغه خلقو پشان خبرې کوی چه ددوی نه مخکښ کافر شوي دی دالله لعنت دې وي په دوی باندې ا دوی کوم طرف ته الټه واپس کیږی؟

## خلاصه تفسیر

﴿قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ اهل کتابو سره چې نه په الله ﷻ [پوره پوره] ایمان لری اونه د قیامت په ورځ [پور ایمان لری] ﴿وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ﴾ او نه هغه څیزونه حرام ګنړلی چې الله ﷻ اوهغه رسول [محمد ﷺ] حرام خودلی وو ﴿وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ﴾ او نه رښتیني دین [اسلام] قبلوی ، ﴿حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ﴾ هغوئ سره تر هغې جنګیږئ چې هغوئ ماتحت او رعیت جوړیدو سر جزیه ورکول منظور کړی ﴿وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ عُزَيْرُ ابْنُ اللّٰهِ﴾ او یهود [کښې څینو] اووئیل [نعوذبالله] عزیز علیه السلام د الله ﷻ ځوئی دی ﴿وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ ابْنُ اللّٰهِ﴾ او نصاراؤ وئیل چې مسیح علیه السلام د الله ﷻ ځوئی دی ﴿ذٰلِكَ قَوْلُهُمْ بِاَفْوَاهِهِمْ﴾ دا د دوئ خبره ده د دوئ دخلو وینا [چې په واقع کښې هیڅ نوم شان نه لری] ﴿يُضَاهِـُٔوْنَ قَوْلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ﴾ دوئ هم دهغه خلقو پشان خبرې کول شروع کړل چې د دوئ نه مخکښې کافران [تیر] شویدی [امرادترې نه دعربو مشرکان دی چې ملائیکو ته به ئې د الله ﷻ لونړه وئیلې مطلب دا چې هغوئ لره خو دوئ هم کافران ګنړی بیا دهغوئ پشان کفریات وائی،او دړومبی والی مطلب دا دې چې دمشرکانو ګمراهی پخوانئ وه] ﴿قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ﴾ الله ﷻ دې دوئ غرق کړی دوئ کوم خوا الټه روان دی [چې په الله ﷻ باندې داسې تور پورې کوی، داخو ددوئ کفری خبرې وې]

## معارف او مسائل

دتیروشوؤآیتونوڅخه په ړومبی آیت کښې دمکې دمشرکانودجهاداوجنګ بیان وو ،اوس په دې آیتونوکښې اهل کتابوسره دجهادکولوبیان دې، داګویاکښې دتبوک دغزاتمهیددې چه داهل کتابوپه مقابله کښې راپیښه شوي وه، په تفسیر درمنثورکښې دمفسرقرآن حضرت مجاهد رحمه الله نه نقل کړې شویدی چه داآیتونودتبوک دغزاپه باره کښې نازل شویدی،[1] لفظ د، اهل کتاب، اګرچه دلغوی معنی په اعتبارسره هرې کافرې هغه ډلې لره شاملیږی کومه چه په یوآسمانی کتاب باندې ایمان لرې لیکن دقرآن کریم په اصطلاح کښې دالفظ صرف دیهودو اونصاراؤدپاره استعمال شویدی. ولې چه دعربوپه خواؤشاکښې همدغه دوه فرقې اهل کتابومشهورې وې، چنانچه قرآن کریم په دې باره کښې دعربومشرکانوته داسې خطاب کوی. ﴿اَنْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ مِنْ قَبْلِنَا ۪ وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ﴾ اوداهل کتابوپه مقابله کښې

[1]) الدر المنثور تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۸

چه د جهاد حکم ورکړې شويدې، هغه په حقيقت کښې اهلِ کتابو سره مخصوص څکه نه دې چه په دې آيت کښې د جهاد د حکم چه کوم وجوهات بيانيـدونکی دی هغـه ټولو کفارو د پاره په شريکه دی نو حکم ئې شريک پکاردې، خو په خصوصيت سره د اهـل کتابو ذکر څکـه اوکړې شو چه مسلمانانو به داسې ګنړل چه هر کله دوئ په څه درجه کښې ايمان لري څکه ئې په خلاف جهاد کولو کښې به خپله ليونی کيدل يعنی هر کله چه دوئ پـه تورات، انجيل او حضرت موسی ﷺ باندې ايمان راوړی نو کيدې شوه چه مسلمانانو به د دوئ خلاف پـه جهاد کولو باندې زړه نه شو کولې څکه ئې په خصوصيت سره د دوئ ذکر اوکړو

د اهلِ کتابو پـه خصوصيت سره د ذکر کولو بله وجه دا هم کيدې شی چه د اخلق پـه يو حيثيت سره د زياتې سزا حقدار څکه دی چه دوئ اهلِ علم وو، د تورات او انجيل علم ئې لرلو چه پکښې د خاتم النبيين ﷺ ذکر مبارک او حليـه مبارکـه پـه تفصيل سره ذکر شويده نو سره د دې علمه د دوئ کفر، انکار د اسلام او مسلمانانو خلاف سازشونه کول پـه يو حيثيت سره زيـات سخت جرم شو، څکه ورسره د جنګ کولو په خصوصيت سره بيان اوکړې شو،

د جنګ د حکم څلور وجوهات په دې آيت کښې داسې ښودلې شويدی ① ﴿لَا يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ﴾ پـه الله تعالی ايمان نه راوړی] ② [﴿وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ پـه آخرت ايمان نه راوړی] ③ ﴿وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ﴾ هغه څيزونه حرام نه بولی کوم چه الله تعالی حرام کړيدی] ④ [﴿وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ الْحَقِّ﴾ ريشتينې دين نه قبلوی]،

دلته دا سوال راپورته کيدې شی چه هر کله اهلِ کتـاب [يهود او نصاری] پـه ظاهره پـه الله تعالی هم ايمـان راوړی، آخرت او قيامت هم منی نو پـه دې څيزونو د دوئ ايمـان ولې اونـه منلې شو. جواب دادې چه يـواځې د ايمـان الفاظ وئيـل کـافی نـه دی کـوم ايمـان چـه د الله تعـالی پـه نزد مطلوب دې که هغسې ايمان د چانه وی نو هغه د نيشت پـه حکم کښې دې، يهود و، نصارا ؤ اګر چه پـه ډاګه د توحيد نه انکار نه دې کړې مګر څنګه چه پـه راتلونکی آيت کښې راروان دی چه يهود، حضرت عزير ﷺ لره او نصارا حضرت عيسی ﷺ لره د خدائې ځوئ بولی او پـه خدائې کښې ئې ورسره شريک ګرځوی څکه د دوئ د توحيد اقرار عبث شو او د ايمان دعوی ئې غلطه شوه،

د غه شان څنګه چه پـه آخرت باندې ايمان راوړل مطلوب دی، هغـه هم پـه اکثرو اهلِ کتـابو کښې پاتې شوی نه وو، په دوئ کښې د ډيرو خلقو دا عقيده وه چه پـه قيامت کښې بـه مـادی جسمونه دوباره بيانه ژوندی کيږی بلکه يو قسم روحانی ژوند به وی د غه شان دا بـه ئې هم وئيـل چه جنت او دوزخ به څه خاص ځايونه نه وی بلکه د روح د خوشحاليدونوم به جنت او د دې د خفـه کيدو نوم بـه دوزخ وی .خو هر کله چه د اخدائی احکامونـه سراسر خلاف دی څکه پـه آخرت باندې د دوئ ايمان راوړل پـه حقيقت کښې ايمان راوړل نشو،

دريم څيز ئې دا اوفرمائيلو چه دوئ د الله تعالی حرام کړی څيزونـه حرام نـه ګنړی، مراد ترې دادی چه د تـورات او انجيـل پـه ذريعـه کوم ډير څيزونـه چـه حـرام شوی وو، دوئ هغې لـره حرام نه بولی، لکه ربا [سود] او نور د خوراک څکاک څيزونـه شو چه د تـورات او انجيـل پـه ذريعـه حرام ګرځولې شوی وو، دوئ هغه حرام اونه ګنړل او د هغې په کولو کښې اخته شو،

دي نه دا مسئله هم معلومه شوه چه دالله تعالى حرام کړی څيزونه حلال ګنړل يواځي ګناه کول نه دی بلکه دکفرکار دي، دغه شان يو حلال څيزلره حرام ګنړل هم کفر دي، البته که حرام په داسې شان اوکړي شی چه حرام ئې ګنړی نو کفربه نه وی صرف فسق او ګناه به وی،

په دې آيت کښې دغې خلقو سره دجهاد جاری لړلو يو حد داسې ښودلې شويدې ﴿حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ﴾ داحکم دجهاد به ترهغې وخته پورې جاری وی چه ماتحت نه پاتې کيږی، رعيت نۀ جوړيږی اوجزيه ورکول قبول نه کړی،

دجزيه لفظی معنی بدل اوجزاده، دشريعت په اصطلاح کښې دې نه مراد هغه رقم دې چه د کفارونه دقتل په بدله کښې اغستې شی، يعنی چونکه کفراوشرک دالله اورسول الله ﷺ نه بغاوت دې چه اصلی سزائې قتل ده خوالله تعالى په خپل رحمت کامله سره ددوئ په سزا کښې دا شان آسانی راوسته چه هغوئ که داسلامی حکومت رعيت جوړشی، دعام اسلامی قانون لاندې هلته پاتې کيدل غواړی نو ديو معمولی رقم اغستو په بدله کښې هلته استوګنې ته پريښودلې شی اوپه دې حيثيت به دهغه دمال اوځان حفاظت هلته کولې شی، ددوئ په مذهبی رسمونو کښې به اسلامی حکومت څه دخل نه ورکوی دغسې رقم جزيه نوميږی،

دجزئې مقررولو يوصورت دادې چه دواړه طرفه پرخپل منځ کښې سره رضاشی اوشريعت ددې څه حدنه دې مقررکړې يعنی په څه څيزپه څه مقدارکښې چه رضاشونوهم هغه به تړ اغستې شی، لکه چه رسول الله ﷺ نجرانيانوسره همدغسې معامله کړې وه چه دهغوئ دټولې ډلې نه ئې په يوکال کښې ددوؤزروحلواغستولوظنامه کړې وه، حله هغه جوړې ته وائی چه دوه جامې لری، يولنګ اويوڅادر، دهرې حلې دقيمت اندازه ئې دچاندئ ديوې او قيئې قيمت لګولې وو: (١) اوقيه څلويښت درهمه وزن لری چه زمونږپه وزن [تول] باندې يولس نيمې تولې چاندی جوړيږی،

دغه شان دبنی تغلب دنصاراؤ سره حضرت عمر رضی الله عنه دزکوة په اندازه دجزئې اغستلولوظنامه کړې وه چه دزکوة په دوه ګوته جزيه به تړاغستې شوه،

که مسلمانانويوملک دجنګ په ذريعه فتح کړوبيادهغې خلقوجائيدادونه ئې هم هغوئ سره پريښول، اوهغوئ درعيت په توګه په اوسيدوباندې راضی شونوپه هغوئ به د حضرت عمر رضی الله عنه پشان جزيه داسې مقررولې شی چه دشتمن مالدارنه به دڅلوردرهمه وزن چاندی دمياشتې اغستې شی، درميانه حال نه به ددې په نيمه يعنی ددوه درهمه وزن چاندی دمياشتې اوکوم داسې بې ماله غريب چه روغ جوړوی، کارروزګار اوخواری مزدوری کولې شی نوهغه نه ديو درهم وزن چاندی دمياشتې اغستې شی اوڅوک چه بيخی نيستمن ياشل ګډ معذوروی دهغه نه به هيڅ نشی اغستې، ښځو، ماشومانو، بوډاګانو تارک الدنيار اهبانو او مذهبی پيشوايانونه به ئې هم څه نشی اغستې،

په دې دومره لړمقدارکښې دجزئې اغستودپاره هم درسول الله ﷺ هدايات داوچه په هيڅا ددهغه دوس نه زيات پيټې نشی باړولې، او وې فرمائيل کوم مسلمان چه په داسې غيرمسلم باندې ظلم اوکړونوزه به دقيامت په ورځ ددغه غيرمسلم مرسته کوم [مظهری] (٢)

(١) دلائل النبوة للبيهقی رقم الحديث: ٢١٣٦ وسنن ابی داود، کتاب الخراج والفیء الخ: باب فی أخذ الجزية: ج ٢، ص ٣٢٠
(٢) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ١٨٧، وسنن ابی داود، کتاب الخراج، باب فی اهل الذمة: ج ٢، ص ٣٢٢

د داسې قسم روایتونو په بنا، دځنې فقهاؤ امامانو مذهب دادې چه په اصل کښې د جزئې یوه خاصه اندازه د شریعت له مخې مقرره نه ده، بلکه د حاکم په صوابدید او رائې باندې منحصره ده چه د هر چا د حال مناسب جزیه به پر باندې مقرروی،

د دې بیان نه دا حقیقت هم واضح شو چه د کفارونه جزیه اغستل هغوئ ته د قتل د سزانه ورکولو په بدل کښې دی، د اسلام نه راؤړو په بدل کښې نه دی، ځکه چه د دلته دا شبه کول بې ځایه دی چه د لږ رقم یا سامان په بدل کښې د اسلام نه راؤړلو او په کفر باندې د قائم پاتې کیدو اجازت څنګه ورکولې شی؟ او د دې د اګیز دلیل دادې چه هر کله په اسلامی حکومت کښې کافرې ښځې، ماشومان بوډاګان، مذہبی پیشوایان، شل ګډ، او معذوره خلق بې د جزئې ادا کولو پاتې کیږی، نو معلومه شوه چه جزیه په بدل د اسلام کښې نه بلکه په بدل د قتل کښې مقررولې شی، که په بدل د اسلام کښې وې نو د دې ذکر شوؤ خلقو نه به هم خامخا اغستې شوه،

په آیت کښې ئې [﴿عَنْ يَدٍ﴾ او فرمائیل چه پکښې حرف د [عَنْ] په معنی د سبب دې او ،یَدُ، په معنی د غلبې او قوت دې، د دې جملې معنی به په دې حیثیت سره دا شان شی چه دا جزیه ورکول د په خپل اختیار سره څه چنده یا خیرات ورکول نه وی بلکه د اسلامی غلبې منلو او د دې ماتحت د اوسیدلو په حیث د وی [دا شان په روح کښې راغلی دی]

د امام شافعی په نزد د ﴿وَهُمْ صٰغِرُوْنَ﴾ (١) تفسیر دا دې چه دغه خلق د اسلام د عام [جنرل] قانون تابعداری کول د په خپله ذمه لازم او ګرځوی [روح المعانی و مظهری] (٢)

په دې آیت کښې چې دا هدایت ورکړې شویدې چه، کله دا خلق جزیه ورکول منظور کړی نو جنګ د بند کړې شی، د جمهور و فقهاؤ په نزد دا هدایت ټولو کفارو د پاره دې، که هغه اهلِ کتاب وی او که غیر اهلِ کتاب وی، البته د عربو مشرکان د دې نه مستثنی دی چه هغوئ جزیه قبوله نکړې شوه.

په دویم آیت کښې د هغې مضمون زیات تفصیل دې د کوم اجمالی بیان چه په ړومبی آیت کښې راغلې دې فرمائی چه، دا اهلِ کتاب په الله تعالی باندې ایمان لری، وروسته په دویم آیت کښې ئې او فرمائیل چه یهود حضرت عزیر ﷤ ته د خدائې ځوئې وائی او نصاری حضرت عیسی ﷤ له د خدائې ځوئې بولی، ځکه د دوئ دعوی د توحید او ایمان غلطه شوه،

بیا یې او فرمائیل: ﴿ذٰلِكَ قَوْلُهُمْ بِاَفْوَاهِهِمْ﴾ دا د دوئ د خلې خبرې دی] د دې جملې دوه مطلبه داسې جوړیږی چه ① دا څه پته خبره نه ده پخپله ئې ښه په ډاګه په خپله خله اقرار کوی، ② یا دا چه دا د دوئ صرف زبانی جمع خرڅ دی د دې خبرې نه څه وجه ښولې شی او نه ئې ورسره دلیل شته،

بیا یې او فرمائیل: ﴿يُضَاهِئُوْنَ قَوْلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ ۭ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۚ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ﴾ دوئ د هغه خلقو پشان خبرې کول شروع کړل چه د دوئ نه پخوا کافران شوی وو، خدائې د دوئ غرق کړی، کوم خوا اپوته روان دی] مطلب دا شو چه څنګه پخوانو کافرانو او مشرکانو فرشتې، او لات، منات د خدائې اولاد جوړ کړی وو د غه شان یهود او نصاری هم پیغمبران ﷧ د خدائې اولاد بولی،

---

[١] روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۱۰، ص ۷۸
[٢] ) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۱۷۹، و روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۱۰، ص ۷۸

Scanned with Ca

اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ

جوړ کړي دي دوئ عالمان خپل | اوعابدان خپل | خدایان | ما سوا دالله نه | او مسیح | اخوئي | د مریم |

[حقیقت دا دې چه] دوی خپل عالمان، عابدان او مسیح بن مریم دالله نه سوا [په تحریم او تحلیل کښې] معبودان جوړ کړي دي

وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوْٓا اِلٰهًا وَّاحِدًا

او حال دا چې نه دي شوې حکم دوئ ته | مګر د دې | اچې بندګي او کړي دوئ | د معبود يو | نشته

حالانکه دوی ته صرف د دې حکم شوې وو چه صرف د يو معبود [چه الله دې د هغه] عبادت کوي

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ يُرِيْدُوْنَ

لائق دعبادت | مګر | هم هغه دې | پاکي ده هغه لره | دهغې نه | اچې دوئ ئې شريکوي | غواړي دا خلق

چه دهغه [الله] نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته | دوی چه ورسره کوم شرک کوي د هغې نه پاک دې

اَنْ يُّطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ وَيَاْبَى اللّٰهُ اِلَّآ اَنْ يُّتِمَّ نُوْرَهٗ

چې مړه کړي | رڼا | دالله | په خلو خپلو | او نۀ مني الله | مګر دا | اچې پوره کړي هغه | رڼا خپله

دوی غواړي چه د الله د دين رڼا په خپلو خلو سره مړه کړي | او الله دخپلې رڼا پوره کولو نه سوا بله خبره نه مني

وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ۝ هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ

اګرکه | انۀ خوښوی | کافران | الله | هغه ذات دې | چې رالیږلې ئې دې | ارسول خپل |

اګرچه دا خبره کافران بده ګڼړي | او الله هغه ذات دې چه خپل پیغمبر ئې په هدايت او حق دين سره

بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ ۙ وَلَوْ

په هدايت سره | او په حق دين سره | دپاره د دې چې غالب کړي | په دينونو | ټولو باندې | اګرکه

رالیږلې دې | چه دا دين [د دنیا په ټولو] دينونو غالب کړي | اګرچه [دا غالب کول] کافران خلق بد

كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ

نۀ خوښوی | مشرکان | اے هغه کسانو | اچې ايمان موراوړې دې | ابيشکه | ډير | د

ګڼړي | اې مؤمنانو [په دې خبره خان پوهه کړئ چه] د يهوديانو په عالمانو او عابدانو کښې زيات خلق

الْاَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّوْنَ

عالمانو نه | او عابدانو نه | خامخا خوري هغوئ | مالونه د خلقو | په باطلې طريقې سره | او منع کوی خلق

دخلقو مالونه په ناجائزه طريقه باندې خوري | او [په کردار او ګفتار سره] خلق د الله تعالی د لارې [دين]

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۗ وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ

دلارې | دالله نه | او هغه کسان | چې خزانه کوی | سره زر | او سپين زر | او نۀ خرچ کوی هغه | په

نه منع کوی | او کوم خلق چه سره او سپين زر جمع کوی | او د الله تعالی په لار کښې ئې نه خرچ کوی

سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝ يَّوْمَ يُحْمٰى

لار دالله کښې | انو زيرې ورکړه هغوئ ته | په عذاب | دردناک سره | په هغه ورځ | چه ګرمولې به شي

نو دوی ته د دردناک عذاب زيرې ورکړه | [دا عذاب به ورته په] هغه ورځ [ورکولې شي] چه په هغې به

| |
|---|
| عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوْبُهُمْ |
| په هغې سره | په اور | ددوزخ کښې انوداغلې کيږي به | په هغې سره | تندی دهغوئ | اووډې دهغوئ |
| د جهنم اور کرمولی شی | اوبیا به په هغې سره د دوی تندو، اړخونو او شاګانو ته داغونه ورکولې شی |
| وَظُهُوْرُهُمْ ۭ هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا |
| اوشاګاني دهغوئ | دا | هغه ده | چې خزانه کړې وه تاسو | دپاره دنفسونوخپلو | نو اوڅکئ تاسو | هغه چې |
| [او دوی ته به وئیلی شی چه] دا هغه مال دې کوم چه تاسو د خپلو ځانونو دپاره خزانه کړې وو [نو [اوس د] هغه |
| كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ ۝۳۵ |
| وئ تاسو | چې خزانه کولو به مو |
| مال [سزا] اوڅکئ چه تاسو به خزانه کولو |

## آسان ترجمه قرآن

دوي دالله په ځائ خپل احبار ﴿يعنى يهودو عالمان﴾ او راهبان ﴿يعنى عيسايانو راهبانو﴾ لره خدايان نيولي دي او مسيح ابن مريم لره هم، حال دا چه دوی ته دالله نه سوا د بل چا د عبادت حکم نه دې شوې، د هغه نه سوا څوك خدائى نشته هغه ددوی د شرك د خبرو نه بالکل پاك دې. دا خلق دا غواړي چه دالله رڼرا د خولو په پوکو بانديې مړه کړي حال دا چه الله تعالى ته د خپل نور د مکمل کولو نه سوا هره خبره نامنظوره ده، خواه که کافرانو ته دا خبره بده لګي او هم دا الله دې چه هغه خپل رسول په هدايت او رښتينې دين بانديې ليږلي دې، دې دپاره چه دا په هر يو دين بانديې غالب کړی خواه که مشرکانو ته دا خبره خوښه نه وي. اې د ايمان خاوندانو! په ﴿يهودو﴾ احبارو او ﴿عيسايانو﴾ راهبانو کښې ډير داسې دی چه د خلقو مالونه په ناحقه طريقې سره خوري او نورو لره دالله د لارې نه بندوی او کوم خلق چه سره او سپين زر جمع کوي، او هغه دالله په لاره کښې نه خرچ کوي نو هغوی ته د يو دردناك عذاب خبرې ورکړه په کومه ورځ به چه دا دولت د جهنم په اور کښې ګرمولې شي بيا دې سره به ددې خلقو تندې او د دوی اړخونه او د دوی شاګانې داغولې شي، او وئيلې به شی چه﴾ : دا هغه خزانه ده چه تاسو خپلو ځانونو د پاره جمع کړي وه ا اوس وڅکئ د هغه خزانې مزه چه تاسو به جمع کوله.

## خلاصه تفسير

[اوربسې د کفر کارونو بيان دې چې] ﴿اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ هغوئ [يهودو او نصرانيانو د] قرآن عظيم الشان [توحيد يعنى يووالي په عبادت کښې ئې] پريخودو ، خپل علماء اوپيران ئې [دعبادت په اعتبار سره] ارباب [خدايان] جوړ کړی دی [چې په حلالو او حرامو کښې د دوئ تابعداری لکه د خدائې پشان کوی ، يعنې د نص نه ددوئ قول غوره کړی او داسې قسم تابعداری بالکل عبادت کول دی] ﴿وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ ۚ﴾ او مسيح ﷺ خوئې د مريم ئې هم [په يو اعتبار سره رب جوړ کړې دې چې ده ته د الله ﷻ خوئې وائی او د الله ﷻ خوئې به خامخا الله ﷻ وی] ﴿وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوْٓا اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ﴾ سره ددې چې دوئ ته [دالله ﷻ په کتابونو کښې] صرف داحکم شوې دې چې خالص د يو معبود [برحق] عبادت کوی ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۭ﴾ چې

Scanned with Ca

دهغه نه سوا بل څوك لائق د عبادت نشته ﴿سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ هغه ددوئ د شريك نه پاك دي [او دا خو بيان وو د باطل د تابعدارئ كولو وروسي دا بيان دي چې دوئ حق دين رد كوی چې دا هم كفر دي يعنی] ﴿يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ﴾ دغه خلق دا غواړی چې د الله ﷻ نور [يعنی د اسلام دين] پخپلو خلو سره [په پوكو وهلو وهلو] مړ كړی [يعنی پخپلو خلو سره د رد او اعتراض خبرې په دې غرض كوی چې خپل حق دين سر اوچت نه كړی] ﴿وَيَاْبَى اللّٰهُ اِلَّاۤ اَنْ يُّتِمَّ نُوْرَهٗ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ﴾ سره ددې چې الله ﷻ سوا ددې نه چې خپله [بيان شوې] نور، كمال ته اورسوی، منی به نه، اگر چې كافران خلق [چې په كښې دوئ هم راغلل] په هر شان هم نه خوښوی [چنانچه] ﴿هُوَ الَّذِيْۤ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ﴾ دغه الله ﷻ داسې دې چې [ددې نور مكمل كولو دپاره] هغه خپل رسول ﷺ ته هدايت [دهدايت سامان يعنی قرآن كريم] او رښتينې دين [يعنی] اسلام وركړو [او دنيا كښې ئې] ليږلې دې ﴿لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ﴾ دپاره ددې چې دا [دين كوم چې وړاندې دنور په نوم بيان شو په نورو] ټولو دينونو باندې غالب كړی [چې هم دا ئې مكمل كول دی] ﴿وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ﴾ اگر چې مشركان [چې دوئ هم په كښې شامل دی] هر څومره ناخوښه وی.

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْاَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ﴾ ائې د ايمان خاوندانو! اكثر عالمان اوپيران [ديهودو او نصرانيانو] د [دعامو] خلقو مالونه په ناروا طريقو خوری [يعنی په دې شان ئې الوځوی چې حق احكام پټ ساتی دعوامو په مرضئ فتوې وركوی اودهغوئ نه نذرانې او منبتې اخلی] او [ددې په وجه هغوی] ﴿وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ د الله ﷻ د لارې نه ايساروی [ولې چې دهغوئ د دروغو په فتوؤ كښې د ښكيل كيدو په وجه په گمراهئ كښې انبتی پاتې كيږی او حق قبلول څه چې طلب ئې هم نه كوی] او [د زيات حرص په وجه مال هم جمع كوی چې د هغې په باره كښې دا وعيد راغلې دې چې] ﴿وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ كوم خلق چې سرهٔ سپين زر په راغونډولو سره اړدی او د الله ﷻ په لار كښې ئې نه خرچ كوی [يعنی زكوة ئې نه ادا كوی] ﴿فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ﴾ نو تاسو دوئ ته د يو لوئې دردناك عذاب خبر وركړئې ﴿يَّوْمَ يُحْمٰى عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ﴾ په هغه ورځ بهٔ ئې په سر راځی چې دا به [اول] د دوزخ په اور گرمولې شی، ﴿فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوْبُهُمْ وَظُهُوْرُهُمْ﴾ بيا به په پرې ددغې خلقو تندی، اړخونه او شاگانې داغ كولې شی [او دابهٔ پرې ضباطولې شی چې] ﴿هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ﴾ دا هغه دی چې تاسو خپلو خانونو دپاره جمع كړئ ايخودی وو ﴿فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ﴾ نو اوس ئې دجمع كولو مزه اوڅكئ.

## معارف اومسائل

په دې خلورو وارو آيتونو كښې ديهودو اونصاراؤ، عالمانو اوزاهدانو دگمراهئ اودهغوئ دقولی اوعملی كفرياتو بيان دې، احبار، دحَبْر، جمع ده، او، رهبان، دراهب جمع ده، حبر، د يهودو اونصاراؤ عالم ته، اوراهب ئې عابد اوزاهد [پادری] ته وئيلې شی.

په ړومبی آيت كښې وئيلې شويدی چه دې خلقو خپل علماء او عبادت كوونكی دالله تعالی نه سوا خپل پروردگاران اومعبودان جوړ كړيدی، دغه شان عيسی ؑ خوئ دمريم يې خپل رب جوړ كړيدې، حضرت عيسی ؑ لره رب اومعبود جوړول خو ځكه ښكاره دی چه هغوئ ﷺ به ئې دالله تعالی ځوئ منلو اوبللو، اوعالمانو اوعابدانو ته ئې خدائ اومعبود گرځول ځكه وئيلی دی

چه اګر که هغوئ به دوئ ته په ډاګه خپل رب نه وئیل خو دا به ئې کول چه خالص هم ددوئ تابعداری به ئې کوله کوم چه د الله تعالی حق دې او دغه حق ئې دوئ ته ورکړې وو چه په هرڅه کښې به ئې خالص هم ددوئ تابعداری کوله اګرچه ددوئ وینا به د الله تعالی او رسول الله ﷺ نه خلاف وه، نو دا ښکاره کفر شو،

دې نه معلومه شوه چه دینی مسئلونه ناواقفو عوامو د پاره د علماؤ د فتوې تابعداری کول او په اجتهادی مسئلو کښې د مجتهدینو امامانو تابعداری کول د دې آیت له مخې خکه بدنه دی چه دا په حقیقت کښې د الله تعالی او رسول الله ﷺ د حکمونو تابعداری کول دی، فرق صرف دومره دې چه د علم او نظر خاوندان عالمان صاحبان نیغ په نیغه د الله او رسول الله ﷺ کلام ګوری او په هغې عمل کوی او د دین نه ناواقفه عوام د اهلِ علم نه تپوس کولو سره په دغې احکامو عمل کوی او کوم عالمان چه د اجتهاد کولو درجې ته نه وی رسیدلی هغوئ هم په اجتهادی مسئلو کښې د مجتهدینو امامانو تابعداری کوی چه بعینه د قرآنې حکم مطابق دی او هم د الله تعالی فرمانبرداری کول دی لکه قرآن کریم پخپله فرمائ: ﴿فَسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ که تاسو پخپله د الله تعالی او د رسول الله ﷺ د حکمونو نه واقف نه ئې نو اهلِ علم نه په تپوس کولو سره عمل په کوئ! یهودو او نصاراؤ کتاب الله لره او د الله او رسول الله ﷺ حکمونو لره بیخی شاته غورځولی وو، د خودغرضو او کسبیانو عالمانو یا د جاهلو عبادت کوونکو وینا او عمل ئې خپل دین جوړ کړې وو چه بدیت ئې په دې آیت کښې بیان شویدې،

وریسې ئې اوفرمائیل چه دې خلقو ګمراهی اختیار کړه حالانکه دوئ ته د الله تعالی د طرفه صرف د یو الله تعالی د عبادت کولو حکم ورکړې شوې وو کوم چه د ټولو هغه څیزونو د شرک نه پاک دې کومو لره چه د اخلق د الله تعالی شریک ګرځوی،

په دې آیت کښې ددوئ د باطلو د تابعدارئ او د غیر الله د ناجائزې تابعدارئ ذکر وو وریسې آیت کښې ددوئ دیوې بلې ګمراهئ بیان داسې شویدې چه د اخلق یو اځې په دې صبر نه کوی چه پخپله په ګمراهئ کښې پراته دی بلکه د حق دین د ورکولو او ردکولو کوشش نه کوی، هم دا مضمون ئې د مثال په ډول داشان راغستې دې چه د اخلق د خپلو خلو په پوکو سره د الله تعالی نور مړ کول غواړی، حالانکه دا د دوئ دوس نه بهر خبره ده، الله تعالی ددې فیصله کړیده چه خپل نور [دینِ اسلام] به مکمل او پوره کوی اګرچه کافران خلق پر ناخوښه وی،

وریسې دریم آیت د مضمون خلاصه هم دغه ده چه الله تعالی خپل رسول الله ﷺ ته د هدایت سامان [یعنی قرآن] او حق دین [یعنی اسلام] ورکړو او ځکه ئې اولیږلو چه د اسلام دین په نورو ټولو دینونو ئې غالب کړی، تقریباً هم په داسې الفاظو کښې نورو آیتونو نه هم راغلی دی کومو کښې چه د اوعده کړیده شویده چه د اسلام دین به په نورو ټولو دینونو غالب کولې شی،

په تفسیر مظهری کښې راغلی دی چه په نورو ټولو دینونو باندې د برکولو د ازیرې د اکثرو زمانو او اکثرو حالتونو په اعتبار سره دې ځنګه چه د حضرت مقداد رضي الله عنه په حدیث کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په مخ د زمکې باندې به هیڅ کچه یا پوخ مکان پاتې نشی چه د اسلام کلمه به پکښې داخله شی، د عزتمنو په عزت سره او د ذلیله خلقو په ذلت سره یعنی چاله چه الله تعالی عزت ورکوی هغوئ به مسلمانان شی او څوک چه ذلیل کول غواړی هغوئ به اسلام قبول نکړی مګر د اسلامی حکومت تابع به شی، چنانچه د الله تعالی دا وعده پوره شوه

Scanned with Ca

ترزروکالوپورې د اسلام شان شوکت په ټولې دنیاخورپاتې شو.(۱)

د رسول الله ﷺ او د پخوانو بزرګانو په زمانه مبارکه کښې خو د دې نورکاملیدل او پوره کیدل ټولې دنیاپه خپلوسترګواولیدل او په آئنده کښې هم د دلیلونو او حقیقتونو په اعتبارسره په هره زمانه کښې دین اسلام داسې یومکمل دین دې چه معقول پسند انسان ته په دې باندې د ګتې ایښو موقعه نه ملاؤیږی، همدغه وجه ده چې د کفارو د مخالفتونو باوجود هم د خپلو حجتونو او دلیلونو په اعتبارسره دا حق دین همیشه د پاره غالب وی او کله چه مسلمانان د دې دین مکمله تابعداری کوی نو د دې ظاهری غلبه سلطنت او حکومت به هم خامخاوی، څنګه چه د اسلامی تاریخ تجربه د دې ګواه ده چه کله هم مسلمانانو په قرآن او سنت پوره عمل اوکړونو هیڅ یو غر او دریاب د مسلمانانو د اراد و په لارکښې خنډنه دې جوړشوې او د وئ په ټوله دنیا باندې غالب راغلی دی او کله اوچرته چه د وئ ماتې خوړلې ده یاپاتې راغلی دی نو د قرآن او سنت د حکمونو د غفلت او خلاف کولو په نتیجه کښې به راغلی وی چه دائې مخې ته راغلل نو حق دین بیاهم په خپل ځائې باندې کامیاب اوکامران پاتې شو،

په څلورم آیت کښې مسلمانانو ته خطاب شوید ې، او په دې کښې د یهودو، نصاراؤ د عالمانو اوبزرګانو داسې حالات بیان شویدی چه د هغې له کبله په عوامو کښې ګمراهی خوره شوه، په دې کښې مسلمانانو ته خطاب کولو سره شاید دې ته اشاره شوی وی چه اګرکه حالات خود یهودو او نصاراؤ بیانولې شی خو د وئ د هم بیدارا وسی چه داسې حالات ئې نشی،

په دې آیت کښې فرمائی چه د یهودو، نصاراؤ د ډیرو عالمانو او بزرګانو دا حال دې چه په باطلو طریقوسره د خلقو مالونه خوری او د الله تعالی د نیغې لارې نه د وئ ایساروی،

د یهودو او نصاراؤ اکثرو علماؤ او بزرګانو همدا حال وو په دې داسې حالاتو کښې په عام ډول دغسې ټولو خلقو ته بد وئیلې شی لیکن قرآن کریم چه د لته ﴿كَثِيرًا﴾ او وئیل نو په دې سره ئې مسلمانانو ته داښودنه اوکړه چه احتیاط د کوی او ټولو ته د د دې بد ونسبت نه کوی بلکه نسبت کوی نو صرف د دې کارکوونکو ته د نسبت کوی، چنانچه د دوئ ګمراهی دا او ښودلې شوه چه د خلقو مالونه په باطله طریقه خوری، د باطلې طریقې نه مراد دادې چه د دې خلقو په بعضې اوقاتو کښې د خلقونه پیسې واخستلې او د تورات د حکمونو په خلاف به ئې غلطې فتوې ورکولې او ځنې وختونو کښې به ئې د الله تعالی احکام پټول او سره ګډوډ کول به ئې، په دې باندې به ئې اضافه دا هم کوله چه صرف پخپله به ئې ګمراهی نه کوله بلکه د سمې لارې نه نورلټوونکی خلق به ئې هم د الله تعالی د لارې نه ایسارول، ولې چه هر کله خلق خپل مشران په داسې کار کولو باندې ګوری نو په هغوئ کښې هم د حق پرستئ جذبه مړه شی او علاوه دا چه د غلطو فتوؤ په بنیاد د وئ ګمراهئ او غلطئ له حق او صحیح ګڼړی،

د یهودو او نصاراؤ علماؤ او بزرګانو به د پیسو په لالچ کښې چه غلطې فتوې ورکولې د دې وجه د دوئ، مال سره محبت لرل او د دنیا لالچ کول وو، څکه په دې آیت کښې مال سره د ډیر زیات محبت کولو بد ې نتیجې او دردناک عذاب بیان شویدې او د غې بیمارئ نه د خان خلاصولو طریقه ښودلې شویده فرمائی: ﴿وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ

(۱) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۱۹۵، ومسند أحمد، حدیث المقداد بن الأسود رضی الله عنه رقم الحدیث: ۲۲۵۲۳

اَلْبِيْرَةُ﴾ څوک چه په مخه سره او سپين زر جمع کوي، او دا د الله تعالى په لار کښې نه خرچ کوي، دوئ ته د دردناک عذاب زيرې واوروه،

په ﴿وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا﴾ کښې دې خبرې ته اشاره ده چه هر کله د ضرورت په مطابق د الله تعالى په لار کښې څه مال خرچ کړې شي نو پاتې مال، ورد پاره مضر نه وي، چنانچه رسول الله ﷺ په يو حديث کښې پخپله فرمائيلي دي چه کوم مال نه زکوة ادا کړې شي هغه په کنزتم کښې داخل نه دې، [ابوداؤد احمد وغيره] (۱)

دې نه معلومه شوه چه د زکوة او نسکلو نه بس پاتې مال جمع او خوندي لرل د ګناه کار نه دې،

د جمهورو فقهاؤ او امامانو هم دا مسک دې چه د ﴿وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا﴾ ضمير ﴿فِضَّةً﴾ ته راجع دې چه معنى ئې چاندى ده، هر کله چه پورته سره او سپين زر دواړه ذکر شويدي او ضمير صرف سپينو زرو ته راجع کړې شونو تفسير مظهرى دا اشاره دې خبرې نه ګرځولې ده چه که چا سره او سپين زر لرل موجود وي نو چاندئ له به اعتبار وي، يعنى دواړه به يو ځائ کړې شي او زکوة به ئې د چاندئ د قيمت په مطابق ادا کولې شي (۲)

په پنځم آيت کښې د دغې، عذاب اليم، تفصيل دا سې راغلي دې ﴿يَوْمَ يُحْمٰى عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوْبُهُمْ وَظُهُوْرُهُمْ ۖ هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ﴾ يعنى زکوة نه ادا کوونکو ته به دا عذاب اليم په هغه ورځ وي چه د دوئ خوندى کړې سره او سپين زر به د جهنم په اور کښې ګرمولې شي بيا به د دوئ تندى، اړخونه او شاګانې پر داغلې شي او د زبانى سزا ور کولو په ډول به ورته وئيلې شي چه دا هغه څيز دې چه تا سو خپلو ځانونو د پاره جمع کړې وو نو خپله جمع کړې پنګه اوڅکئ] دې نه معلومه شوه چه د عمل بدله به بعينه هم دغه عمل وي، په ناجائزه جمع کړې پنګه يا هغه جائزه پنګه چه زکوة ئې ادا نکړې شي نو بعينه هم دغه پنګه به د مالک د پاره عذاب جوړ شي،

په آيت کښې د تندى، اړخونو او شاګانو داغلو ذکر راغلې دې چه مطلب ترټول بدن داغل دى يا د دې درې اندامونو ذکر کولو تخصيص په دې بناشويدې چه هر کله دا سې بخيل ته څوک سوالګر يا زکوة غوښتونکې ورو راندې شي نو د هغوئ په ليدلو سره د ټولونه اول د ده ① تندى باندې غټې راشي، بيا ② ترمخ واړوى هغه ته اړخ کړى چه په دې کار هم اونشي نو ③ ورته شا کړى، څکه دا درې اندامونه د يا د ولو د پاره مخصوص کړې شو،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ | عِدَّةَ الشُّهُوْرِ | عِنْدَ اللّٰهِ | اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا | فِيْ |
| بيشكه | اشماره دمياشتو | اپه نزد الله | ا دولس مياشتې دي | ا په |
| ا بيشكه د الله په نيز د الله په كتاب كښې د مياشتو شمير | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كِتٰبِ اللّٰهِ | يَوْمَ | خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | مِنْهَآ | اَرْبَعَةٌ |
| كتاب دالله كښې | ا دهغې ورځې نه | اچې پيدا كړي دى الله | ا اسمان | ا اوزمكه | ا دهغې نه | ا څلور |
| د كوم وخت نه چه الله زمكې او آسمانونه پيدا كړي دى دولس مياشتې دي ا په دې كښې څلور مياشتې | | | | | | |

---

(۱) سنن ابي داود، كتاب الزكاة، باب الكنز ما هو؟ ج ۱، ص ۲۱۸

(۲) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۱۹۶، ۱۹۷

حُرُمٌ ۭ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ڏ فَلَا تَظْلِمُوْا فِيْهِنَّ اَنْفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا

حرام دی | دا قاعده ده اصحیح | نو ظلم مه کوئ | په دې کښې | په ځانونو خپلو باندې | او جنګیږئ

معززې دی | دا محکم دین دې | نو په دې میاشتو کښې [د ګناهونو په وجه] په خپلو ځانونو ظلم مه کوئ

الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً كَمَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ كَآفَّةً ۭ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ

د مشرکانو سره | ټول | لکه څنګه چې | هغوئ جنګیږي تاسو سره | ټول | او پوهه شئ | چې بیشکه الله

او کافرانو سره ټول جنګ کوئ لکه څنګه چه هغوی تاسو سره ټول جنګیږي | او په دې خبره [هم] پوهه شئ

مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ۝ اِنَّمَا النَّسِيْۗءُ زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ يُضَلُّ بِهِ

د متقیانو سره دې | بیشکه | نسی | ایوزیات کار دې | په کفر کښې | چې ګمراه کیږي | په دې سره

چه د الله مدد د متقیانو سره دې | رستو کول په کفر کښې زیادت دې | په دې سره هغه کسان ګمراه کیږي کوم

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُحِلُّوْنَهٗ عَامًا وَّيُحَرِّمُوْنَهٗ عَامًا

هغه کسان | چې کافران شوي دي | حلالوي دوئ دغه حرامې میاشتې | یو کال | او حراموي هغه | بل کال

کافران دي | دوی دغه معززې میاشتې یو کال حلالوي [او جنګ په کښې جائز ګوي] او بل کال ته ئې حراموي

لِّيُوَاطِـُٔوْا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ فَيُحِلُّوْا

د دې د پاره چې پوره کړي دوئ | شمار | د هغې میاشتو | چې حرامې کړي دي الله | او چې حلالې کړي دوئ

دا دې د پاره کوي چه صرف هغه میاشتو شمار برابر کړي کومې چه الله حرامې کړي دي نو په دې طریقه دوی هغه

مَا حَرَّمَ اللّٰهُ ۭ زُيِّنَ لَهُمْ سُوْۗءُ اَعْمَالِهِمْ ۭ وَاللّٰهُ

هغه میاشتې | اچې حرام کړي دي الله | ښائسته شوي دي | ادوئ ته | ناکاره عملونه ددوئ | او الله

میاشتې حلالوی کومې چه الله حرامې کړي دي | ادوی ته د دوی بد عملونه ښائسته شوی دی | او الله پاک

لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ۝

هدایت نه کوی | اقوم | کافر ته

نافرمانو خلقو ته توفیق د هدایت نه ورکوی |

### آسان ترجمه قرآن

حقیقت دا دې چه دالله په نیز د میاشتو تعداد دولس دی چه د الله په کتاب ﴿لوح محفوظ﴾ کښې د هغه وخت نه را روان دې چه په کومه ورځ الله آسمانونه او زمکې پیدا کړي دي — دې ﴿دولس میاشتو کښې﴾ څلور د عزت والا میاشتې دي هم دا ﴿د﴾ دین صحیح ﴿تقاضا﴾ ده. پس ددې میاشتو په معامله کښې په خپلو ځانونو ظلم مه کوئ او تاسو ټول د مشرکانو سره داسې جنګیږئ لکه چه هغوئ تاسو سره جنګیږي . او یقین وکړئ چه الله د متقیانو سره دې اودا نسیئه ﴿یعنی میاشتو کښې مخکښې والې او وروستو والې دا﴾ خو په کفر کښې نور زیاتې دي چه ددې په ذریعه کافرانو لره ګمراه کولې شی دا خلق دا عمل یو کال حلالوی او یو کال ئې حراموي، دې د پاره چه الله کومې میاشتې مقرر کړي دي د هغې شمیر پوره کړي

Scanned with Ca

او ﴿دغه شان﴾ کومه خبره چه الله حرامه کړې ده هغه حلاله وګنړي ددوي بد عملي د دوی په نظر ښائسته کړې شوې ده او الله داسې کافرانو ته هدايت نه کوي.

## خلاصه تفسير

﴿اِنَّ عِدَّةَ الشُّهُوْرِ عِنْدَ اللّٰهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ﴾ يقينا شمير د مياشتو [چې] د الله ﷻ په کتاب [يعنى په شرعى احکامو] کښې د الله ﷻ په نزد [معتبر دی] دولس مياشتې [قمری] دی [اوخه د نن نه نه بلکه] ﴿يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ په کومه ورځ چې الله ﷻ آسمانونه او زمکه پيدا کړی وو [دهغې ورځې نه او] ﴿مِنْهَآ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ﴾ په دې کښې خاص څلورمې مياشتې د ادب دی [ذی قعده ، ذی الحجه ؤ، محرم او رجب] ﴿ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ﴾ هم دا [بيان شوي خبرې] دين نيغ برابر دې [چې مياشتې دولس دی او خاص کر څلور مياشتې حرامې دی اوپخلاف د جاهليت د عادت نه چې کله د مياشتو شمير زيات کړی اوکله د مياشتو حرامو په تخصيص باندې عمل نه کوی ، کومه چې بد دينی ده] ﴿فَلَا تَظْلِمُوْا فِيْهِنَّ اَنْفُسَكُمْ﴾ نوتاسو ددې مياشتو باره کښې [ددين پخلاف کولو چې موجب د ګناه دی] خپل نقصان مه کوئی [يعنی دجاهليت ددې عادت په جوړ عمل مه کوی] ﴿وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً كَمَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ كَآفَّةً﴾ او دې مشرکانو ټولو سره جنګيږئ څنګه چې هغوئ تاسو ټولو سره جنګيږی [يعنی هر وخت ئې تاسو سره جنګ کولو ته بډې وهلې وی] او [که د دوئ د کثرت او سازوسامان نه ويريږئی نو] ﴿وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ﴾ نو دا اوګنړئی چې الله ﷻ د متيقيانو ملګرې دې [پس ايمان اوتقوی خپل طبيعت اوګرځوئ او چا نه مه ويريږئ ،وريسې د دوئ د جاهليت دعادت بيان دې چې] ﴿اِنَّمَا النَّسِيْٓءُ زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ يُضَلُّ بِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ دا [د مياشتو يا ددې حرمت په مخه] بې خايه کول په کفر کښې نوره زياتی ترقی ده چې په دې سره [نور عالم] کافران ګمراه کولې شی [په دې شان] ﴿يُحِلُّوْنَهٗ عَامًا وَّيُحَرِّمُوْنَهٗ عَامًا﴾ چې دوئ دا مياشت يو کال [دخپل ذاتی غرض په وجه] حلالوی او بل کال ئې [کله چې ئې ذاتی غرض نه وی نو] حرامه ئې ګنړی ﴿لِّيُوَاطِـُٔوْا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ﴾ دپاره ددې چې الله ﷻ کومې مياشتې چې حرامې کړی دی [صرف] ددې شمير [ددې د خاص کولو او ټاکلو نه بغير] پوره کړی بيا [کله چې خاص کول او ټاکل اونه شو نو] ﴿فَيُحِلُّوْا مَا حَرَّمَ اللّٰهُ﴾ د الله ﷻ حرامه کړې مياشت حلالوی ﴿زُيِّنَ لَهُمْ سُوْٓءُ اَعْمَالِهِمْ﴾ د دوئ بد عملئ ورته ښه ښائسته معلوميږی او [په کفر باندې د دوئ په کلك پاتې کيدو باندې غم کول بې فائدې خکه دی چې] ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ﴾ الله ﷻ داسې کافرانو ته هدايت [ددې توفيق] نه ورکوی [ولې چې دوئ پخپله په لار راتلل نه غواړی].

## معارف اومسائل

په تيروشوؤ آيتونو کښې د کفارو اود شرک، کفر، ګمراهئ اوبد عمليانو بيان وو اوس په دې دوؤ آيتونو کښې هم ددې سلسلې يو مضمون اودعربو دجاهليت يو جاهلانه خراب رسم بيان شويدې، مسلمانانو ته دې نه دځان ساتلو هدايت شويدې، دغه خراب رسم يوې واقعې سره تعلق لری تفصيل ئې دادې چه دپخواز مانو راسې دپخوانو پيغمبرانو په شريعتونو کښې به د کال دولس مياشتې منلې شوې چه به پکښې څلورمياشتې ډيرې برکت، ادب او احترام مياشتې ګنړلې شوې، دږ مياشتې سره يو ځای وې چه ① ذی القعده ② ذی الحجه او ③ محرم وه

اویوه ځانله ④ درجب میاشت وه،

د ټولو انبیاؤ ﷺ شریعتونه په دې متفق دی چه دې څلورو میاشتو کښې د هر عبادت ثواب زیات وی او په دې کښې د ګناه کولو وبال او عذاب هم زیات وی، په وړاندینو شریعتونو کښې په دې میاشتو کښې جنګونه کول هم منع شوی وو،

د مکې مکرمې عرب خلق هر کله چه د حضرت اسماعیل ﷺ په واسطه د حضرت ابراهیم ﷺ اولاد دی په دې وجه، د اټول د حضرت ابراهیم ﷺ د پیغمبرۍ منونکی وو او د دوئ ﷺ د شریعت منلو دعوی به ئې هم کوله، او د حضرت ابراهیم ﷺ په ملت کښې هم، په دې څلورو میاشتو د حرمت کښې قتل وقتال او ښکار کول منع وو، په دې حکم باندې عمل کول د جاهلیت د زمانې په خلقو باندې ځکه ډیر زیات سخت وو چه جنګ جګړې کول د هغوئ کسب ګرځیدلی وو، ځکه په دې کښې د آسانئ پیدا کولو د پاره خپلو غرضونو داسې په مخه اغستی وو چه په دې کښې به ئې هم قسا قسم چلونه او ټګئ راویستلې د حرمت په میاشت کښې به چه د جنګ شروع کولو څه ضرورت پیښ شو، یا د جاری جنګ په دوران کښې به پرِ د حرمت میاشت راغله نو ویل به ئې چه په دې کال کښې به د امیاشت د حرمت نه وی، وروسته میاشت به د حرمت ګڼړلې شی، مثلاً د محرم میاشت به ئې صفرته واړوله او که دا ضرورت به ئې اوږد شونو د ربیع الاول میاشتې ته به ئې وروسته وروا اړوله، یا به ئې داسې او وئیل چه داخل د صفر میاشت وړاندې شوه محرم به وروسته راځی، په دې شان به ئې د غه میاشتې په خپل منځ کښې وړاندې وروسته کړې، غرض دا چه په کال کښې خو به ئې څلور میاشتې د حرمت ګرځولې خود الله تعالی د ترتیب او تاکلو لحاظ به ئې پکښې نه ساتلو ځکه به ئې چه خوښه وه د میاشتو نومونه او ځایونه به ئې هغسې بدلول، کله به داسې هم او شو چه ضرورت به ئې اوږد شو د کال به لس میاشتې تر تیرې شوې نو پاتې دوؤ میاشتو سره به ئې د راتلونکی کال دوه میاشتې یو ځائ کړې د غه څلور میاشتې به ئې د حرمت اوګرځولې د اکال به ئې د څوارلسو میاشتې او ګرځولو او وروسته کال به ئې د لسو میاشتو اوګرځولو. غرض دا چه د ابراهیمی ﷺ دین لحاظ به ئې دومره ساتلو چه په یو کال کښې به ئې څلور میاشتې د حرمت په خپله خوښه ټاکلې او په دې کښې به ئې جنګونه نه کول، په نتیجه کښې به دا ډیره ګرانه شوه چه رمضان میاشت کومه نوه شوه او د محرم، صفر وغیره کومه میاشت شوه؟ د هجرت په اتم کال کله چه مکه مکرمه فتح شوه او په نهم کال کښې رسول الله ﷺ د حج په موسم کښې صدیق اکبر ﷺ او علی ﷺ لره د مشرکانو او کافرانو نه د ویزارئ د اعلان کولو د پاره اولیږلو نو د غه میاشت په حقیقت کښې د ذی الحجې وه مګر د جاهلیت د دې زوړ دستور په جوړ د امیاشت د ذی القعدې ګرځولې شوې وه او په د غه کال د دغې جاهلانو په نزد د حج میاشت د ذی الحجې د ذی القعدې ټاکلې شوې وه، د حجة الوداع په کال کله چه رسول الله ﷺ مکې مکرمې ته تشریف یوړونو په قدرتی ډول داسې انتظام جوړ شو چه اصلی میاشت د ذی الحجې وه او د هغوئ په نزد هم د ذی الحجې میاشت وه په دې وجه رسول الله ﷺ په خپله خطبه کښې اوفرمائیل:

أَلَا إِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ اللهُ السَّمٰوَاتِ وَالأَرْضَ، (۱) زمانه بیا خپل هغه حالت ته

(۱) سنن ابی داود، کتاب المناسک، باب الأشهر الحرم: ج ۱، ص ۲۶۸، وصحیح البخاری، کتاب التفسیر، سورة التوبة، باب قوله ان عدة الشهور الآیة: ج ۱، ص ۶۷۳

را وګرځیده په کوم حالت چه الله تعالی دزمکې اوآسمانونو دپیدائیښ په وخت ایښې وه]
دجاهلي رسم مطابق دمیاشتو داصلي ترتیب، اووخت په ګډوډ کولو سره به په شرعي احکامو کښې هم خلل راتلو کوم به چه یوې خاصې میاشتې یاددې یوې خاصې نیتې سره تعلق لرلو ،دکال شروع اوختمیدل معلوم مول به ډیرزیات ګران شو ،مثلاً دا به نشو پیژندلې چه درمضان میاشت کومه ده چه روژې پکښې اونیولې شي؟دذی الحجې هغه لس ورځې کومې دی چه حج پکښې کولې شي؟دمحرم هغه لس ورځې کومې دی چه روژې پکښې اونیولې شي؟ کال کله ختم شوچه زکوة اداکړې شي؟
خبره خوهسې لنډه وه چه د میاشتې په نوم بدلولو سره په وروسته مخته کړه داسې چې محرم ئې صفرته واړولو اوصفرئې محرم ته راواړولو چه په نتیجه کښې به ئې ډیرشرعي احکام ګډوډ کیدل، ځکه په دې دوؤآیتونو کښې دجاهلیت ددغې رسم بدیت بیان کړې شو او مسلمانانو ته ترډخان ساتلو هدایت شویدې،
په رومبی آیت کښې فرمائی: ﴿إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا﴾ دلته ﴿عِدَّةَ﴾ دشمیرمعنی ورکوی،او[شهور] د، شهر،جمع ده چه دمیاشتې معنی ورکوی،ټوله معنی ئې داشوه چه دالله تعالی په نزدد میاشتوشمیر[۱۲] دولس ټاکلې شویدې چه پکښې دکمي زیاتي کولو هیڅوک اختیارنه لري.
وریسې ﴿فِي كِتَابِ اللَّهِ﴾ زیاتولو سره داواښودلې شوچه داخبره دازل نه په لوح محفوظ کښې لیکلې شوې وه،
په ﴿يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾ سره ئې دلته ته اشاره اوکړه چه اګرکه دالله تعالی فیصله په دې باره کښې دازل نه شوې وه لیکن په عمل کښې هغه وخت راغله چه زمکه آسمانونه پیداشو،
بیافرمائی ﴿مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ﴾ په دې کښې څلورمیاشتې دحرمت دی! دحرمت میاشتې ددوؤمعنوپه اعتبارسره ورته وئیلې شي ① یوپه دې اعتبارسره چه جنګونه کول پکښې حرام دی او② په دې اعتبارسره چه دامیاشتې برکتي اوقدرعزت کولو جوګه دی،په دې کښې د عبادتونو ثواب زیات ملاویږي ،رومبې حکم خوپه اسلامي شریعت کښې منسوخ شویدې، مګردویم حکم داحترام،ادب او د عبادت کولو اهتمام کول اوس هم په اسلام کښې باقي دی،
دحجة الوداع په خطبه دیوم النحرکښې رسول الله ﷺ ددې میاشتوتشریح داسې او فرمائیله چه درې میاشتې سره یوځای دی چه ① ذی القعده او② ذی الحجه او③ محرم ده اویوه بله میاشت درجب ده(۱) .دعربوځنې قبیلوبه درمضان میاشتې ته ① رجب وئیله اوقبیلې ② دمضربه هغه میاشتې ته رجب وئیله چه دجمادی الثانیه اودشعبان ترمنځه ده،په دې بنا رسول الله ﷺ ورته رجب مضرفرمائیلوسره دادویم قول اوټاکلو یعنی رجب هغه میاشت ده چه مضرورته رجب وائی اودجمادی الثانیه اوشعبان په منځ کښې راځي،
﴿ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ﴾ دادې دین مستقیم،یعنی دمیاشتو ټاکل اوترتیب اوپه دې کښې دهرې میاشتې خصوصادحرمت دمیاشتوپه باره کښې احکام دالله تعالی دازلي حکمونو مطابق اینبول دین مستقیم دې،په دې کښې دخپله ارخه کمې زیاتې راوستل اودلون بدلول پکښې

---

(۱) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، سورة التوبة، باب قوله ان عدة الشهور الآیة: ج ۱، ص ۶۷۲

کول کوږ دماغی او کوږ طبیعتی ده،

﴿فَلَا تَظْلِمُوْا فِیْهِنَّ اَنْفُسَکُمْ﴾ په دې مقدسو میاشتو کښې تاسو خپل نقصان مه کوئ چه ګني دمقررو احکامو او احترام خلاف ورزی اوکړئ یا په دې کښې په عبادت کولو کښې کوتاهي اوکړئ. امام جصاص په احکام القرآن کښې لیکلی دی چه په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه ددې میاشتو خصوصیت دا دې چه دې کښې عبادت کولو سره دکال په نورو میاشتو کښې هم دعبادت توفیق او همت نصیب کیږی، دغه شان په دې میاشتو کښې دګناهونو او بدو کارونو نه ځان ساتلو سره دکال په نورو میاشتو کښې هم بنده ته دبدو او ګناهونو نه ځان ساتل آسانیږی، ځکه ددې میاشتو نه فائده نه پورته کول یو لوئ نقصان دې،([1])

تر دې پورې دمکې دمشرکانو دجاهلیت یو خاص رسم بیان شو او دهغې باطلول او شو، په آخر دآیت کښې هغه حکم بیا را دوباره کړې شو کوم چه دسورت په اول سر کښې داسې بیان کړې شوې وو چه دلو ظنامې دنیتې ختمیدو نه پس ټولو مشرکانو دو کفارو سره جهاد کول واجب دی،

په دویم آیت کښې هم دجاهلیت ددې رسم بیان داسې راغلې دې فرمائی ﴿اِنَّمَا النَّسِیْٓءُ زِیَادَةٌ فِی الْکُفْرِ﴾ لفظ دنسي مصدر دې، معنی ئې مخ په شا روستو کول دی او دهسې روستو کولو په معنی هم راځی،

دعربو مشرکانو به دا میاشتې ځکه وړاندې روستو کولې چه خپل ذاتی غرضونو به ئې ورسره پوره کول او دالله تعالی حکم پوره کول به ئې هم ګڼړل، الله تعالی اوفرمائیل چه داسې کول او د خپل ځائ نه دمیاشتو بیځایه کول په کفر کښې زیاتې را وستل دی یعنی په دې سره د کفارو کفر نور هم زیاتیږی چه کله دحرمت میاشتې په خپل اصلی حکم کښې حرامې لری او کله ئې حلالې کړی ﴿لِّیُوَاطِئُوْا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ﴾ دپاره ددې چه دوئ پوره کړی شمیر دهغې میاشتو کومې چه الله تعالی حرامې ګرځولی دی] مطلب دا دې چه یواځې شمیر پوره کولو سره حکم باندې عمل کول نشې حسابیدې بلکه حکم پوره کول به هغسې کیږی څنګه چه حکم ورکړې شویدې یعنی هم په هغه میاشت کښې پرعمل اوکړې شی دکومې میاشتې دپاره چه جاری شویدې،

**احکام او مسئلې:** ددې آیتونو نه دا ثابته شوه چه دمیاشتو ترتیب او اسلامی مشهور شوی نومونه دانسانانو جوړې شوې اصطلاح نه ده، بلکه رب العالمین ددې ترتیب نومونه او هرې میاشتې سره ترلی خاص خاص حکمونه دهغې ورځې نه مقرر کړیدی دکومې ورځې نه ئې چه زمکه او آسمانونه پیدا کړل، دې نه دا خبره هم معلومه شوه چه په شرعی حکمونو کښې دالله تعالی په نزد قمری میاشتو له اعتبار دې، هم په دې قمری حساب باندې ټول شرعی احکام لکه روژه، حج، زکوة وغیره مرتب کیږی، خو څنګه چه تاریخ او کال معلومولو دپاره قرآن کریم قمر [سپوږمې] نخښه ګرځولې ده، دغه شان ئې نمر هم ددې نخښه ګرځولې ده لکه فرمائی ﴿لِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِیْنَ وَالْحِسَابَ﴾ ددې کبله په نمر او سپوږمئ دواړو سره تاریخ او حساب معلومول روا شو خو هر کله چه الله تعالی دخپلو حکمونو دپاره دسپوږمئ حساب غوره کړیدې او شرعی حکمونه ئې په دې باندې جاری کړل په دې وجه قمری حساب محفوظ ساتل فرض کفایه دی، که ټول امت قمری حساب پریږدی نو ګنهګار به ټول وی او که دا هم محفوظ لری نو دنورو حسابونو

[1]) أحكام القرآن للجصاص: ج ٤، ص ٣٣، تفسير سورة البراءة.

Scanned with Ca

استعمالول هم جائزدی لیکن د سنت الله او سنت سلف صالحین نه خلاف ضروردی، ځکه ئې ضرورته بل حساب اختیارول ښه نه وی،

دحساب پوره کولو په غرض په څلورو کالو کښې چه یو ځل په یو میاشت باندې یو ورځ زیاتولې شی، چې هغه ته لوند وئیلې شی بعضې خلقو دې آیت له مخې هغې ته دا هم ناروا وئیلی دی خو دا صحیح ځکه نه دی چه په کوم حساب کښې چې د لوند میاشت زیاتول دې سره په شرعی حکمونو باندې هیڅ اثر نه غورځیږی دجاهلیت خلقو به قمری میاشتو کښې په بدلون او کمی زیاتی را وستو سره شرعی احکام بدلول ځکه دهغې نه منع راغله او دلیپ [لوند] دحساب په وجه په شرعی حکمونو باندې هیڅ اثر نه پریوځی، ځکه په دې ممانعت کښې هغه داخل نه شو.

یَآاَیُّهَا الَّذِیۡنَ　اٰمَنُوۡا　مَا

ا اے هغه کسانو ا چې ایمان مو راوړې دې ا څه شوی دی

ا ای مؤمنانو ا په تاسو باندې څه شوی دی ......................

لَکُمۡ　اِذَا　قِیۡلَ　لَکُمُ　انۡفِرُوۡا　فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ　اثَّاقَلۡتُمۡ　اِلَی الۡاَرۡضِ ؕ

په تاسو ا کله چې ا اووئیلې شی ا تاسو ته ا چې اوځئ ا په لار د الله کښې ا نو درانه شئ تاسو ا زمکې ته

کله چه تاسو ته [دجهاد په موقع] اووئیلی شی چه د الله په لار کښې جهاد اوکړئ نو تاسو زمکې ته درانه شئ

اَرَضِیۡتُمۡ　بِالۡحَیٰوةِ الدُّنۡیَا　مِنَ الۡاٰخِرَةِ ۚ　فَمَا　مَتَاعُ　الۡحَیٰوةِ الدُّنۡیَا

آیا راضی شوئ تاسو ا په ژوند ا د دنیا ا په مقابله د آخرت کښې ا پس نه دې ا سامان ا د ژوند د دنیا

آیا تاسو د آخرت [د ژوند په مقابله کښې] د دنیا ژوند خوښوئ ا [خو یاد ساتئ] د دنیاوی ژوند نعمتونه

فِی الۡاٰخِرَةِ　اِلَّا قَلِیۡلٌ ۝　اِلَّا تَنۡفِرُوۡا　یُعَذِّبۡکُمۡ　عَذَابًا　اَلِیۡمًا ۙ

په آخرت کښې ا مگر لږ دې ا　که تاسو اونه وتئ ا عذاب به درکړی تاسو ته الله ا عذاب ا درد ناک

د آخرت [په مقابله کښې] ډیر کم دی ا که تاسو د جهاد د پاره اونه وتلئ نو تاسو ته به دردونکې عذاب درکړی

وَّیَسۡتَبۡدِلۡ　قَوۡمًا　غَیۡرَکُمۡ　وَلَا تَضُرُّوۡهُ　شَیۡئًا ؕ　وَاللّٰهُ　عَلٰی

او بدل راولی ا قوم ا　بې له تاسو نه ا او او به نه رسوئ تاسو ضرر الله ته ا هیڅ قدرله ا او الله ا　په

او ستاسو په ځائې به نور خلق راولی ا او تاسو ا جهاد ته په نه تلو ا الله تعالی ته څه نقصان نشئ رسولې ا او الله

کُلِّ شَیۡءٍ　قَدِیۡرٌ ۝　اِلَّا تَنۡصُرُوۡهُ　فَقَدۡ　نَصَرَهُ　اللّٰهُ

هر ا څیز باندې ا قادر دې ا که اونه کړو تاسو مدد دهغه ا نو په تحقیق سره ا مدد کړې وو دهغه سره ا الله

دهرڅیز د کولو طاقت لری ا او که تاسو د ده ا نبی کریم ا سره مدد نه کوئ ا نو د دوی ستاسو د مدد څه حاجت هم نشته ا یقیناً د

اِذۡ　اَخۡرَجَهُ　الَّذِیۡنَ　کَفَرُوۡا　ثَانِیَ　اثۡنَیۡنِ　اِذۡ

کله چې ا ویستلې وو هغه لره ا هغه کسانو ا چې کفر ئې کړې وو ا حال دا چې هغه دویم وو ا　په دوو کښې ا کله چې

د ده سره الله په هغه موقع مدد کړې وو کله چه کافرانو دې ا د مکې نه ا راویستې وو ا او دوی دوه په دوه وو ا په دغه وخت

Scanned with Ca

هُمَا فِي الْغَارِ اِذْ يَقُوْلُ لِصَاحِبِهٖ لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ

هغوئ دواړه|په غار کښې وو | کله چې | هغه ونيل | ملګرى خپل ته | مه غمژن کيږه | بيشکه الله

دا دواړه [نبى کريم او ابوبکر] په غار [ثور] کښې وو او دوى خپل ملګرى ته اوونيل ته مه پريشانه کيږه الله

مَعَنَا ۚ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلَيْهِ وَاَيَّدَهٗ بِجُنُوْدٍ

زمونږ سره دې|نو نازل کړو الله | آرام خپل | په هغه باندې | او مضبوط ئې کړو هغه | په داسې لښکرو سره

زمونږ سره دې نو الله خپل آرام په ده راوليږلو | او د ده مدد ئې په هغه لښکرو [د فرشتو سره] اوکړو

لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِيْنَ كَفَرُوا السُّفْلٰى ۗ وَكَلِمَةُ اللّٰهِ

چې نه ليدو هغه تاسو | او وې ګرزوله | خبره | د هغه کسانو | چې کافران وو | ښکته | او خبره د الله

چه تاسو نه ليدلې [دغه فرشتې] او الله تعالى د کافرانو سازش ناکامه اوګرځولو | او [د کافرانو د سازشونو په مقابله کښې]

هِيَ الْعُلْيَا ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝ اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا وَّجَاهِدُوْا

هم هغه | اوچته ده|او الله غالب دې | او حکمت والا دې | اوځئ | که سپک يئ | او که دارنه | او جهاد اوکړئ

هم دالله تدبير کاميابى وى | او الله غالب صاحب د حکمت دې | سپک او درانه [ټول دالله په لار کښې] اوځئ او په

بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۗ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ

په مالونو خپلو سره|او په خانونو خپلو سره | په لار د الله کښې | دا وتل ستاسو | بهتر دى | ستاسو دپاره | که

مالونو او خانونو سره د الله په لار کښې جهاد کوئ که تاسو پوهيږئ نو دا [په هرحالت کښې په جهاد کښې

كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيْبًا وَّسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوْكَ

چرى تاسو | پوهيږئ | که چرى وې | فائده | نزدې | او سفر | درميانه | نو خامخا به پيروى کړې وه دوئ ستا

شرکت ستاسو دپاره ډير غوره دې | که چرته نفع [د حاصلولو په اعتبار سره] نزدې وې او سفر درميانه وې نو دوى [منافقانو] ستا

وَلٰكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ۗ وَسَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَوِ

ليکن | لرې شو | په دوئ باندې | مزل | او زر دې چې قسمونه به خورئ دوئ | په الله | که چرى

تابعدارى کړې وې | خو ګران شو دوئ ته مزل کول [نو خکه پاتې شول] | او دوى به [تاسو ته] په الله قسمونه خورى

اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ ۚ يُهْلِكُوْنَ اَنْفُسَهُمْ ۚ

طاقت وې زمونږ | نو خامخا به وتلى وو مونږ | تاسو سره | هلاک کوى دوئ | خانونه خپل |

که زمونږ وس کيدلې نو تاسو سره به وتلې وې | په دې دروغو قسمونو | خپل خانونه هلاکوى [چه ګناهګاريږى]

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ۝

او الله پوهيږى | چې دوئ | دروغژن دى |

او الله پوهيږى چه دوى دروغژن دى |

**آسان ترجمه قرآن**

اې خلقو! چه تاسو ايمان راوړې دې په تاسو څه شوى دى چه کله تاسو ته وويلې شو چه دالله په لاره کښې ﴿د جهاد دپاره﴾ سفر وکړئ نو تاسو زمکې ته درانه شوئ؟ آيا تاسو د آخرت په مقابله کښې د دنيا په

Scanned with Ca

ژوند باندې خوشحاله یئ؟ ﴿که داسې وي﴾ نو ﴿یاد ساتئ﴾ چه د دنیا ژوند د آخرت په مقابله کښې هیڅ هم نه دې، مګر ډیر لږ. که تاسو نه وو ځئ نو الله به تاسو ته درد ناك عذاب درکړی، او ستاسو په ځائ به بل قوم راولي، او تاسو به هغه ته څه نقصان نه شئ ورکولې، او الله په هر یو څیز باندې پوره قدرت لري. که چرې تاسو ددې پیغمبر مدد نه کوئ نو ﴿دهغه څه نقصان نشته ځکه چه﴾ الله ددهٔ مدد هغه وخت کښې کړې دې چه دهٔ لره کافرانو په داسې وخت کښې ﴿د مکې نه﴾ ویستلې وو چه کله دې د دوو نه دویم وو، چه کله دوی دواړه غار کښې وو، او کله چه دهٔ خپل ملګری ته ووئیل چه: غم مه کوهٔ الله څمونږ سره دې نو الله تعالی دوی باندې دخپل طرف نه اطمینان نازل کړو، او د دوی ئې په داسې لښکرو باندې مدد وکړو چه تاسو نه لیدل او د کافرانو خبره ئې ښکته کړهٔ او وینا خو دالله اوچته دهٔ، او الله قدرت والا هم دې او حکمت والا هم دې ﴿د جهاد د پاره ووځئ﴾ خوا که تاسو سپك یئ او که درانه یئ او په خپلو ځانونو او مالونو سره دالله په لارهٔ کښې جهاد کوئ — که تاسو پوهیږئ نو دا تاسو د پاره بهترهٔ دهٔ که د دنیا سامان چرته نزدې ملاویدو، او سفر درمیانه وو، نو دا ﴿منافقان﴾ به ضرور تا پسې درتلل، لیکن دا ګرانه فاصله دوی د پاره ډیره لرې شوهٔ او س به دوی په الله قسمونه خوري چه که څمونږ طاقت وې نو مونږ به ضرور تاسو سرهٔ وتلی وو او الله پوهیږی چه دوی دروغژن دي.

## خلاصه تفسیر

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ ائې د ایمان خاندانو په تاسو خلقو څه شوی دی چې کله تاسو ته اووئیلې شی چې د الله ﷻ په لار کښې [یعنی جهاد دپاره] اوځئ ﴿اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ﴾ نو تاسو زمکه کلکه اونیسئ [په ځائې ښخ پاتې شئ] ﴿أَرَضِيتُم بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ﴾ آیا تاسو د آخرت په بدل کښې ددنیا ژوند خوښ کړې دې ﴿فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ﴾ نو ددنیاوی ژوند فائدې خو هیڅ نه دی ډیر لږ دی ﴿إِلَّا تَنفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ که تاسو او نه اوځئ نو الله ﷻ به سخته سزا درکړی [یعنی تاسو بهٔ هلاك کړی] ﴿وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ﴾ او ستاسو په ځائې به بل قوم پیدا کړی [او هغوئ نه به خپل کار اخلی] ﴿وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا﴾ او تاسو به الله ﷻ ته [دهغه دین] هیڅ ضرر اونه شی رسولی ﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ او الله ﷻ په هر څیز باندې قادر دې ﴿إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ که تاسو د نبی کریم ﷺ مدد نه کوئی نو [الله ﷻ به د هغوئ ﷺ مدد کوی ځنګه چې] الله ﷻ دهغوئ مدد هغه وخت کړې دې کله چې [د زیاتې پریشانئ او مصیبت وخت وو، ولې چې] هغوئ ﷺ لره کافرانو [په تنګولو سره دمکې مکرمې نه] ابې طنه کړې وو، ﴿ثَانِيَ اثْنَيْنِ﴾ کله چې د دوؤ څخه یو دوئ ﷺ وو [او دویم ئې ابوبکر صدیق رضي الله عنه ملګرې وو] ﴿إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ کله چې دواړه [ملګری] په غار [ثور] کښې [موجود] وو کله چې هغوئ خپل ملګری ته اوفرمائیل چې تاسو [هیڅ] غم کوئی بیشکه الله ﷻ [دهغه مدد] مونږ سره دې نو [هغه مدد ئې دا وو چې] ﴿فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ﴾ الله ﷻ دهغوئ ﷺ [په زړهٔ] باندې خپله [دخپل طرفنه] تسلی نازله کړه ﴿وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا﴾ او هغوئ ته ئې [د فرښتو] په داسې لښکرونو سره طاقت ورکړو چې تاسو خلقو نه لیدل ﴿وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ﴾ او الله ﷻ دکافرانو خبره [او تدبیر] ښکته کړو [چې هغوئ

ناکامه شو] ﴿وَكَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا﴾ اوهم د الله ﷻ د خبې برې اوشو [چې تدبير او حفاظت ئې بر پاتې شو] ﴿وَاللّٰهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ او الله ﷻ زبردست د حکمت خاوند دې [څکه هم دهغه خبره اوحکمت غالب پاتې شو ، جهاد دپاره] ﴿انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا﴾ اوځئ [خواه] په لږ سامان سره [وی] خواه په ډير سامان سره [وی] ﴿وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ او هم د الله ﷻ په لار کښې پخپل مال او ځان سره جهاد کوئى ﴿ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ دا ستاسو دپاره بهتر دی که تاسو يقين لرئ [نو ډيل مه کوئى] ﴿لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَاتَّبَعُوكَ﴾ که صرف په لاس ور اوړولو سره څه حاصليدې او سفر هم معمولى وې نو دا [منافقان] خلق به خامخا تاسو ﷺ سره شوى وو ﴿وَلٰكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ﴾ ليکن دوئ ته مزل ډير لرې معلوميدو [څکه هم دلته پاتې شو] او اوس [کل چې تاسو خلق واپس راشئ نو] ﴿وَسَيَحْلِفُونَ بِاللّٰهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ﴾ په الله ﷻ به قسمونه خوری چې که زمونږ دوس خبره وې نو مونږ به ضرور درسره تلى وو ﴿يُهْلِكُونَ أَنْفُسَهُمْ﴾ داخلق خپل ځان تباه[يعنى دعذاب حقدار] کوى ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ﴾ او الله ﷻ پوهيږى چې دا خلق يقينا دروغژن دی [بيشکه د دوئ وس وو خو بيا هم لانه رړل].

## معارف اومسائل

په دې آيتونو کښې درسول الله ﷺ ديوې اهمې تقريباً دآخرى غزابيان دې چه په تبوک سره يادېږى اوددې په ترڅ کښې ډير حکمونه اوهدايتونه راغلى دى،

تبوک دمدينې منورې شمال اړخ ته دشام په سرحدباندې ديومقام نوم دې دغه وخت کښې شام درومى عيسايانو دحکومت يوه صوبه وه،کله چه رسول الله ﷺ په [۸هـ] کښې دمکې مکرمې دفتح کولو او دحنين دغزانه فارغ شو اومدينې طيبې ته اورسيدونو دغه وخت دجزيرة العرب ضرورى برخې داسلامى حکومت قبضې لاندې راغلې وې دمکې مکرمې مشرکانو سره داته کلن [په مخه] جنګونونه پس مسلمانانوته لږآرام ملاؤشوې وو،

مګرد کوم ذات په باره کښې چه الله تعالى دروميې نه ﴿لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ﴾ نازل کړې وو اوپه دې سره ئې ورته دټول جهان دفتح کولو اوپه دې کښې دحق دين دغالب کولوزيرې ورکړې وونو هغوئ چرته اوزګارپاتې کيدې شو،مدينې ته په رسيدوسره سمدستى ورته سوداګروخلقو [کوموبه چه دشام ملک نه دزيتون تيل خرڅون دپاره مدينې منورې ته راوړل] داخبر راؤرسولو چه دروم بادشاه هرقل خپل فوځونه دتبوک په مقام دشام په سرحدراجمع کړيدى په مدينې منورې باندې ئې په يوخل دحملې کولو تيارې داسې کړيده چه خپلوفوځيانوته ئې هم په دې غرض رومبې نه ديوکال پيشګى تنخواه ورکړيده چه په تسلئ اوخوشحالئ سره دغه حمله اوکړى اودعربوځنوقبيلوسره ئې سازبازاوترون کړيدې،

رسول الله ﷺ ته په دې خبررسيدوسره پرسمدستى هم دغلته په تبوک مقام باندې دحملې کولواراده اوکړه [تفسيرمظهرى په حواله دمحمدبن يوسف صالحى]،[1]

دغه موسم دسختې ګرمئ وودمدينې خلق عموماً کروندګروو،دغه وخت ئې باغونه اوفصلونه پخيدوته نزدې وو،چه ټول ګذران ئې هم په دغې وو،ځنګه چه دنو کرپيشه خلقو

[1]) التفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۰۵

جیبونـه دمیاشتې پـه ختمید وسره خالي وی دغه شـان دکروند گروخلقو لاسونه هم دفصل پـه ختمیـدو تش وی، مطلب داچـه مسلمانان یوخواغریبانان وو، بـل خوائې دګټې امیدنژدې وو، علاوه داچه سخته ګرمی هم وه، مشرکانو دمکې سره ئې پـه مخـه داتوکالو دجنګونونه لاپوره ساه هـم نـه وه اغستې چـه داجنـګ ورتـه پـیښ شو، دصبردازمیښت سخت امتحـان وو. خودوخت تقاضا داوه چه جنګ دضرورځکه اوکړې شی چه ړومبی جنګونه خودخپل ځان پښان عوامو سره جنګ کول وواودغه وخت دروم دبادشاه هرقل دتربیت یافتـه فوځ سره جنګ کول دی، پـه دې وجـه رسـول الله ﷺ دمـدینې طیبې ټولو مسلمانانو ته ددې جهاددپـاره دوتلـوحکم اوکـړو اوخواؤشانورو قبیلوته ئې هم پـه دې جهاد کښې دشریکیدو دپاره بلنه ورکړه،

داعام اعلان داسلام دسربازانو دپاره یوسخت امتحان وو، اوداسلام دعوی لرونکو منافقانو بیلتون هم پـه دې سره راتلو، لازمی نتیجه ئې داراؤخته چه دکلمه ویوونکو حالات مختلف شو چه قرآن کریم پـه دې شان سره بیل بیل ښودلی دی،

یو حالت دداسې کاملو او مکملو مسلمانانو وو چه بې دڅه زړه وهلونه جهاد دپاره تیار شو، بل حالت دداسې خلقو چه پـه اول سر کښې دڅه زړه وهلونه پس جنګ دپاره تیارشو، ددې دوه قسمه صحابه کرامو رضي الله عنهم پـه باره کښې قرآن کریم داسې فرمائی ﴿الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ﴾ یعنی هغـه خلق دستائینې قـابـل دی چه دسختې تنګسیا پـه وخت کښې ئې درسول الله ﷺ تابعداری اوکړه پس دهغې نـه چه، پـه دوئ رضي الله عنهم کـښې دیـوې ډلې زړونـه خوټیـدو تـه قریب وو]. دریم حالت دهغـه خلقو وو چـه دیو صحیح عذرلـه کبلـه جهادتـه لاړنـشو، چنانچه الله تعالی ددوئ رضي الله عنهم دعذرد قبلید و اظهار داسې اوکړو ﴿لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى﴾([1])

څلورم قسم دهغـه خلقو وو چه عذرئې هیڅ نـه، وصرف دسستئ لـه کبلـه جهاد کښې شریک نـه نـه شوی، ددوئ پـه بـاره کـښې ډیر آیتونونـه نـازل شوی وو، مـثلا ﴿وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ﴾ ﴿وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ﴾ ﴿وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا﴾ درې واړه آیتونه دداسې صاحبانو پـه باره کـښې نـازل شوی ووچـه دهغوئ پـه سستئ کولو باندې ورتـه زړونـه هم ورکړې شوه اوپـه آخر کښې ددوئ دتوبې قبلیدو زیرې هم ورکړې شو. پنځم حالت دهغـه خلقو وو چـه دخپـل منافقت لـه کبلـه پـه جهاد کښې شریک نـه شو پـه سخت امتحان کښې راغلل اوخپل منافقت ئې هم پټ نـه کړې شو، ددې خلقو بیان پـه ډیرو آیتونو کښې راغلې دې.

شپږم حالت دهغـه منافقانو وو چه جاسوسئ اوورانئ دپاره مسلمانانو سره تلی وو، قرآن کریم ددوئ حالت پـه دې آیتونو کښې راغـستې دې ﴿وَفِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ﴾ ﴿وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ لَيَقُوْلُنَّ﴾ ﴿وَهَمُّوْا بِمَا لَمْ يَنَالُوْا﴾ خو باوجود ددې ټولو تکلیفونو د جهادنه دپاتې کیدونکو مجموعی شمیر بیاهم برائې نام وو، زیات اوګڼر مسلمانان هغـه ووچه ټولې نفعې اوآرام ئې قربان کړې وو اودالله تعالی پـه لار کښې دجهاد کولو هرقسم سختئ اوتکلیف زغملوتـه تیاروو چنانچـه دمجاهدینو دغـه لښکر د دیرشو زروپـه شمیر کـښې جوړشوې ووچـه ددې نـه وړانـدې پـه هیڅ یو جهاد کـښې پـه دومره شمیر کښې مسلمانان نه ووشریک شوی،

---

[1]) ددے پورا آیت ترجمه دا ده: په ضعیفانو او په نارونو او په هغه چا چه د جهاد خرچه نه بیاموی هیڅ ګناه نشته که دوی د الله تعالی او د ده درسول سره مخلص وی، په دا سے نیکانو هیڅ الزام نشته او الله تعالی بخونکے مهربان دے۔

Scanned with Ca

ددې جهاد نتيجه دا راؤختـه چـه هر کلـه د روم بادشاه هرقـل د مسلمانانو د لښکرد ګنړ شمير نه خبرشو نو رعب پرراغې او مقابلې ته را مخامخ هم نشو، رسول الله ﷺ خپل فرشته خويو صحابه کرامو ﷺ سره دغلته په محاذ باندې څوورځې تيکاؤ وو هرکله چه مقابلې تـه د مخالف راتلونـه نااميده شونو واپس ئې مدينې منورې تـه تشريف راؤړو، پورتـه دليکلوشوؤ آيتونو تعلق پـه ظاهره باندې دې څلورم ټولی سره دې چه د صحيح عذر دنيشتوالی باوجود د سستئ لـه کبلـه جهاد کښې شريک شوی نـه وو پـه رومبی آيت کښې ورتـه پـه دغې سستئ باندې خبرداری ورکړېشو، دې سره ئې ورتـه ددغې، سستئ سبب او بيا دهغې عـلاج اوښودلو ددې پـه ترڅ کښې داهم واضح شوچه:

**دنياسره مينه محبت لرل اوآخرت نه غافله کيدل دټولوجرمونوبنياد دې:** دلتـه دکوم مرض سبب اوعـلاج چه بيان کړې شو اګرچه ددې تعلق ديوې خاصې واقعې سره خو دې پـه غورکولو سره ثابتيږی چه دديـن پـه معاملـه کښې دهرې کوتاهئ، سستئ، غفلت، ټولوجرمونو او ګناهونو اصلی سبب همدغـه ددنيامحبت او دآخرت نـه غفلت دې، پـه دې وجـه رسول الله ﷺ پـه يـو حـديث کـښې فرمائی: حب الدنيا رأس كُلِّ خَطِيئَةٍ، (۱) د دنيا مينه، محبت دهرې ګناه اوخطابنياد دې،

څکه پـه آيت کښې فرمائی:

اې د ايمان خاوندانو، پـه تاسو څه شويدی چه کله تاسوتـه د الله تعالی پـه لارکښې دوتلو دپـاره وئيلې شی نو تاسو زمکه اونيسئ [دځـائ نـه نـه خوځئ] آيا، تاسو دآخرت پـه ځـائ ددنيا پـه ژوند کښې بوښت شوئ،

دمرض پـه ګـتـه کولونـه پس، پـه وروستې جملـه کښې ئې عـلاج داشان اوښودلې شوچه، [ددنيوی ژوندنه نفع پورته کول خوهيڅ هم نه دی] ډيرلږاوذليله دی،

حاصل ئې داشوچه لوئ فکر دآخرت دهميشه ژوند پکاردې او دآخرت دافکرپـه حقيقت کښې دټولومرضونويواځينې اومکمل علاج دې اودجرمونودبنديزدپاره بې مثاله اثرناکه نسخه ده،

داسلامی عقيدوبنيادی اصول درې دی، ① توحيـد، ② رسالت، او ③ آخرت، پـه دې کـښې د آخرت عقيـده پـه حقيقت کـښې دعملونو د درست کولـوروح اودجرمونو او ګنـاهونومخې تـه د اوسپنې يوديوال دې، کـه غوراوکړې شی نوبې دڅـه خوارئ کولونـه بـه معلومـه شی چـه ددې عقيدې نه بغيرپه دنياکښې امن اوسکون نشی قائيمدې، نن صباپه دنياکښې مادی ترقئ ښه پـه مستئ کښې دی، دجرمونو دبندولودپاره هم پـه يوملـک اوقوم کښې دمادی تدبيرونو څه کمې نشته، قانونی ګرفت او ددې دپاره انتظامی مشينری ورځ پـه ورځ پـه ترقئ ده، خودې سره داهم پـه سترګوليدلې شی چه جرمونه هرچرته او پـه هرقوم کښې پـه ترقئ دی، زمونږ پـه نظر کښې ددې وجه سوادې نـه بلـه نشته چـه دمرض تشخيص اودعـلاج رخ صحيح نـه دی دمرض چينـه ماده پرستئ اوپـه ماديات کښې بوښتيدل او دآخرت نـه غافلـه کيدل اوورتـه شا کـول دی، ددې يواځينې عـلاج د الله تعـالی ذکراو دآخرت فکر دې کـوم وخت اوچرتـه هـم چـه دنياکښې دا اکسيری نسخه استعمال کړې شوه، نو ټول قوم اوددئ معاشره دصحيح انسانيت تـصوير جوړ شو او فرشتو دپاره قابل رشک شوه، ددې غټ دليل درسول الله ﷺ او دصحابه کرامو ﷺ مبارکه زمانه ده،

---

۱) كنز العمال رقم الحديث: ۶۱۱۴

نن صباخو خلق جرمونه بندول غواړي خو دخدائ او د آخرت نه په غافله کيدو ئې غواړي، په قدم قدم داسې سامان جمع کوی چه دهغې له کبله خدائ او آخرت ته د چاخيال هم نه راځي، ددې لازمی نتيجه هم هغه کيدې شی کومه چه دسترګو مخې ته راځي، دغوره نه غوره قانون او قانونی مشيزيانې ټول فيل ښکاريږی يو اځې دا نه چه جرمونه په خپل ځائې موجود دی بلکه په طوفانی رفتار سره لګيا دی ترقئ کوی، کاش چه يو ځل ددنيا هوښياران په دې قرآنی نسخې استعمالولو باندې ازميښت او کړی او او ګوری چه څومره په آسانئ سره په جرمونو باندې قابو موندلې شی،

په دويم آيت کښې سستی کوونکی او ځان آسانی خلق ددوئ په مرض او علاج باندې خبرداره کړې شوا و وروستو آخری فيصله داهم واؤرولې شوه،

که تاسو جهاد د پاره او نه وتئ نو الله تعالی به تاسو په دردناک عذاب کښې ګرفتار کړی او ستاسو په ځائ به بل يو قوم اودروی او په دين باندې دعمل نه کولو په وجه به تاسو، الله ياد هغه رسول الله ﷺ ته هيڅ نقصان نشئ رسولې، ځکه چه الله تعالی په هر څيز قادر دې،

په دويم آيت کښې د رسول الله ﷺ د هجرت د واقعې په رامخې کولو سره دا او ښودلې شو چه دالله تعالی رسول ﷺ د چا انسان د مرستې او امداد حاجت نه لری، الله تعالی ورته نيغ په نيغه دغيبو امداد رسولې شی، څنګه چه د هجرت په واقعه کښې داسې او شو چه هر کله د خپلې برادرئ او د وطن خلقو د وطن نه په وتلو باندې رسول الله ﷺ مجبوره کړو په سفر کښې ورسره بې د صديق اکبر ﷛ نه بل څوک ملګرې نه وو، پياده او سواره دښمنان ئې درا ايسارولو په تکل کښې وروستو ورا و وتل، د پناه ځائ هم څه قلانه، بلکه يو غار وو، دهغې خلې ته وروستو دښمنان ور رسيدلی هم وو، دغار ملګری ﷛ سره د خپل ځان غم نه وو بلکه داغم و ور سره چه هسې نه په رسول الله ﷺ باندې دښمنان حمله او کړی خو رسول الله ﷺ پخپله ديو غر پشان په ځائ ټينګ ولاړ وو، يو اځې پخپله ئې تسلی نه وه بلکه خپل ملګری صديق اکبر ﷛ ته ئې فرمائيل: [﴿لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ ته ، هيڅ غم مه کوه الله مونږ سره دې]

داخو په ظاهره دخلې دوه تکی ښکاری چه وئيل څه ګران نه دی مګر ددې آؤريدونکی چه دغه حالات خپلې مخې ته راولی په خپل زړه باندې لاس کيږدی او او ګوری چه يو اځې ماديات و باندې نظر لرونکو ته دا اطمينان بيخی نشی حاصليدې، ددې وجه صرف او صرف دا ده چه قرآن په وروستو جمله کښې داسې فرمائی:

الله تعالی ستاسو ﷺ په زړه مبارک باندې تسلی نازله کړه او په داسې لښکرونو سره ئې ستاسو امداد او کړو چه تاسو نه دی ليدلی،

دا لښکر د فرښتو لښکر هم کيدې شی او دټولې دنيا قوتونه پخپله هم، خدائی لښکرونه دی، داهم کيدې شی، ددې نتيجه دا راؤخته چه آخر د کفر کلمه سر دلاندې ګذار شوه او دالله تعالی کلمه سر بالا شوه،

په څلورم آيت کښې د تاکيد په ډول بيا دا حکم دوباره کړې شو چه، هر کله رسول الله ﷺ تاسو ته جهاد د پاره د وتلو حکم او کړو نو په تاسو باندې وتل په هر حال کښې فرض شو او په دې حکم باندې په عمل کولو باندې ستاسو هره ښيګړه اړانره ده،

په پنځم آیت کښې د هغې خلقو عذر رد کړې شو کوم خلق چه د سستۍ له کبله په جهاد کښې نه وو شریک شوی، ولې چه دوئ د الله تعالی ورکړې وس د الله تعالی په لار کښې استعمال نکړونو دبې وسۍ عذر کول ئې څکه صحیح نه دی.

| |
|---|
| عفا الله عنك لم اذنت لهم |
| ا معافی اوکړه ا الله ا تاته ا ولې ا اجازت ورکړو تا ا دوئ ته |
| ا الله تا ته معافی کړې ده ا تا دوی [منافقانو] ته ولې [د ایساریدو] اجازت |
| حتى يتبين لك الذين صدقوا وتعلم |
| تر دې پورې ا چې ښکاره شوې وې ا تاته ا هغه کسان ا چې رښتنی دی ا اومعلوم کړې وې تا |
| ورکړو [اجازت بۀ دې نه ورکولو] تر دې چه تاته رشتیني کسان معلوم شوې وې او دروغژن دې پیژندلي وې |
| الكذبين ۝ لا يستاذنك الذين يؤمنون بالله واليوم الاخر |
| دروغژن ا نۀ غواړي ا اجازت ستانه ا هغه کسان ا چې ایمان راوړی ا په الله باندې ا اوپه ورځ داخرت باند |
| ..... ستانه هغه کسان [د جهاد نه د ایساریدو] اجازت نه غواړی ا چه په الله او په ورځ د اخرت ایمان راوړی |
| ان يجاهدوا باموالهم وانفسهم والله عليم |
| ددې نه چې جهاد اوکړی ا په مالونو خپلو سره ا اوپه نفسونو خپلو سره ا اوالله ا ښه عالم دې |
| چه [د الله په لار کښې] په خپلو ځانونو او مالونو سره جهاد اوکړی ا او الله پاک متقیان خلق پیژنی |
| بالمتقين ۝ انما يستاذنك الذين لا يؤمنون بالله |
| په متقیانو باند ا بیشکه اجازت غواړی ستانه ا هغه کسان ا چې ایمان نه راوړی ا په الله باندې |
| بیشکه ستانه خو هغه خلق [د جهاد نه د ایساریدو] اجازت غواړی چه په الله تعالی اود آخرت په ورځ. |
| واليوم الاخر وارتابت قلوبهم فهم في ريبهم يترددون ۝ |
| اوپه ورځ داخرت باند ا اوشکمن دی ا زړونه دهغوئ ا نو هغوئ په شك خپل کښې ا سرگردانه دی |
| یقین نه ساتی ا اود دوی زړونو [د آخرت په باره کښې] شک کړې دې ا نو دوی په خپل شک کښې سرگردان دی |
| ولو ارادوا الخروج لاعدوا له عدة ولكن |
| اوکه اراده وې ددوئ ا د وتلو ا نو خامخا تیار کړې به وو دوی ا د پاره ددې غزا ا اسباب ا لیکن |
| اوکه دوی [منافقانو د جهاد د] وتلو اراده لرله نو د هغې د پاره به ئې اسباب تیار کړی ووخو |
| كره الله انبعاثهم فثبطهم وقيل اقعدوا |
| خوښ نه کړو الله ا پورته کیدل ددوئ ا نو سست ئې کړل دوئ ا اوورته اوونیلې شو ا اچې کینئ |
| الله تعالی د دوی [جهاد د پاره] تلل نه خوښوی نو دوی ئې سست کړل [او دوی ته اوونیلی شو چه د ناستو |
| مع القعدين ۝ لو خرجوا فيكم ما زادوكم الا |
| دناستو خلقو سره ا که وتلې وې دوئ ا شریك په تاسو کښې ا نۀ به وۀ زیات کړې دوئ تاسو ته ا مگر |
| ناستو کسانو سره کینئ [او د دوی په نه تلو مه خفه کیږئ څکه] که دوی تاسو سره وتلې وو، نو تاسو ته |

Scanned with Ca

خَبَالًا وَّلَا۟اَوْضَعُوْا خِلٰلَكُمْ يَبْغُوْنَكُمُ الْفِتْنَةَ ۚ

شر | او خامخا به منډې ترړې وهلې دوئ | په منځ ستاسو کښې | په دا حال چې لټوله به دوی تاسو ته | فتنه

به ئې د نقصان نه سوا بل څه ته وو رسولي | او دوی به خامخا د نقصان رسولو د پاره ستاسو په مينځ کوششونه کړی وو.

وَفِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝

او شته په تاسو کښې | غوږ | ايښودونکي | اهغوئ د پاره | او الله | ښه پوهه دې | په ظالمانو |

او په تاسو کښې [دوی ته د خبرو اورولو د پاره] غوږ کيښودونکي هم شته | او الله په ظالمانو پوهه دې

لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ وَقَلَّبُوْا لَكَ

په تحقيق سره کوشش کړې دې دوئ | د فتنې | د مخکښې نه | او لټولي دي دوی | ستا د ناکام کولو

او دوی د دې [غزوې نه] وړاندې [هم تاسو ته] د نقصان رسولو کوشش کړې وو | او ستا خلاف ئې تدبيرونه

الْاُمُوْرَ حَتّٰى جَآءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ اَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ۝

تول تدبيرونه | ترڅو پورې | اچې راغلې حق | او غالب شو دين د الله | او دوئ | نه خوښونکې وو

جوړ کړي وو | تر دې چې حق راغلې او د الله دين غالب شو په داسې حال کښې چه دوی [د اغلبه] بد ګڼړی

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ ائْذَنْ لِّيْ وَلَا تَفْتِنِّيْ ۭ اَلَا

او ځينې د دوئ نه | اهغه څوک دې | اچې وائي | اجازت راکړه ماله | او مه اچوه ما په فتنه کښې | اخبردار

او په دوی [منافقانو] کښې څه داسې دی [تاته] وائي ماته [د نه تلو] اجازت اوکړه او ما په ازمائش کښې مه اچوه

فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوْا ۭ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ۝

په فتنه کښې | اپريوتلي دی دوئ | او بيشکه | دوزخ | اخامخا چاپيره کيدونکې دې | د کافرانو نه |

خبردار دوی [د نفاق په] فتنه کښې ورپريوتی دی | او جهنم کافرانو لره راګيرونکې دې [بچ کيدې ترې نشي]

اِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۚ وَاِنْ تُصِبْكَ مُصِيْبَةٌ يَّقُوْلُوْا

که اورسيږی تاته | څه ښيګړه | انو خفه کوی دوئ لره | او که اورسيږی تاته | څه مصيبت | انو وائي دوئ

که تا ته څه خوشحالي اورسي نو دوی خفه کوی | او که تاته څه تکليف اورسي نو دوی دا وائي چه

قَدْ اَخَذْنَآ اَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَيَتَوَلَّوْا وَّهُمْ فَرِحُوْنَ ۝ قُلْ

نيولې وو مونږ | اکار خپل | ا د مخکښې نه | او مخ اړوی دوئ | او حال دا چې دوئ | اخوشحاله وی | ورته اووايه

مونږ د وړاندې نه د خپل حفاظت بندوبست کړې وو | او د خوشحالئ په حالت کښې مخ اړوی | ته [ورته] اووايه

لَّنْ يُّصِيْبَنَآ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَنَا ۚ هُوَ مَوْلٰىنَا ۚ وَعَلَى

چی هر ګز نه رارسی مونږ ته | امګر هغه څه | چی ليکلی دی الله | د پاره زمونږ | اهغه مولی دې زمونږ | او په

مونږ ته صرف هغه تکليف رسی کوم چه زمونږ د پاره الله تعالی ليکلې دې | هغه زمونږ کارساز دې

اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ قُلْ هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ

الله باندې | پس پکار دی چی توکل اوکړی امومنان | ورته اووايه | آيا انتظار کوئ تاسو | ازمونږ په حقله | امګر

او خاص په الله دې مؤمنان بهروسه اوکړی | ته [ورته] او وايه چه تاسو زمونږ د پاره په دوو کښې د يوې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ۖ | وَنَحْنُ | نَتَرَبَّصُ | بِكُمْ | أَنْ يُصِيبَكُمُ | اللَّهُ |
| دیوي ښیګړي اد دوو ښیګړونه | او مونږ | انتظار کوو | استاسو په حقله | چي دررسوی تاسو ته | الله |
| خیګړي انتظار کوئ اچه یا بهٔ راته فتح حاصل شي او یا شهادت؛ او مونږ ستاسو په باره کښي د دې انتظار کوو | | | | | |
| بِعَذَابٍ مِنْ عِنْدِهِ | أَوْ بِأَيْدِينَا ۖ | فَتَرَبَّصُوا | إِنَّا | مَعَكُمْ | |
| عذاب دطرفه خپل نه | یا په لاسونو زمونږ | انو انتظار کوئ تاسو | ابیشکه مونږ هم | اتاسو سره | |
| چه د خپل طرفه یا زمونږ په لاسونو به تاسو ته عذاب درکړي | نو تاسو ازمونږ د هلاکت | انتظار کوئ مونږ | | | |
| مُتَرَبِّصُونَ ﴿٥٢﴾ | | | | | |
| انتظار کونکی یو | | | | | |
| ستاسود هلاکت انتظار کونکی یو | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

﴿اې پیغمبره!﴾ الله تا ته معافي کړې ده ﴿مګر﴾ تا دوی ته ﴿جهاد کښې د نه شریک کیدو﴾ اجازت ددې نه مخکښې ولې ورکړو تر دې چه تا ته ښکاره شوې وې چه څوک دوی کښې رښتیا وینا کوي، او تا به دروغژنو لره هم ښه پیژندلی وو. څوک چه په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان لري نو هغوی په خپلو ځانونو او مالونو سره جهاد کولو کښې تا نه اجازت نه غواړي او الله متقیانو ښه پیژني. تا نه اجازت هغه خلق غواړي چه هغوی په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان نه لري او دهغوي په زړونو کښې شك دې او هغوی د خپل شك د وجې نه په تردد کښې دي که د دوی اراده وه د وتلو نو د هغې د پاره به دوی څه تیاري کړې وه لیکن الله تعالی ته ددوي پاڅیدل خوښ نه وو دې وجې نه دوی ئې سست کړل او ووئیلې شو چه څوك ﴿د کوشل کیدو د وجې نه﴾ ناست دي نو تاسو هم د هغوی سره کیني که دا خلق تاسو سره ووځي نو سوا د فساد اچولو نه ستاسو مینځ کښې نورڅه اضافه نه کوي، او ستاسو په مینځ کښې د فتنې پیدا کولو کوشش کښې ستاسو په مینځ کښې چغلې به ئې کوله. اوخپله ستاسو په مینځ کښې داسې خلق موجود دي چه د هغوی د مطلب خبرې ښه آوری او الله ظالمان ښه پیژني. دې خلقو مخکښې هم د فتنې پیدا کولو کوشش کړې دې، او دوی تاسو ته د نقصان رسولو د پاره معاملات اړوی را اړوی [اکښ وډ کوی]، تر دې چه حق راغې او دالله حکم غالب شو او دوی پرې کنټرول او دوی کښې داسې خلق هم دی چه وائی: ما ته اجازت ورکړه او ما فتنه کښې مه اچوه خبردار فتنه کښې خو دوی په خپله پړاته دی او یقین وکړئ چه جهنم ټولو کافرانو لره راګیرونکې دې. که تا ته څه خوشحالي ملاؤ شي نو دوی ته تکلیف وي او که څه مصیبت درته ورسي نو وائي: چه مونږ خو مخکښې نه خپل بچاؤ کړې وو او دا ﴿وائی﴾ ډیر خوشحاله خوشحاله واپس شي. ته ووایه چه: الله تعالی څمونږ په تقدیر کښې چه کوم تکلیف لیکلې دې مونږ ته دهغې نه سوا چرې هم بل څه تکلیف نه شي رسیدې، اوهغه څمونږ ساتونکې دې او مؤمنانو ته پکار دي چه صرف په الله اعتماد وکړي. ته ووایه چه: تاسو مونږ د پاره د څه شي انتظار کوئ هغه دي نه سوا نور څه کیدې شي چه ﴿آخر﴾ د دوو فائدو نه یوه مونږ ته ملاؤ شي او مونږ ته ستاسو په باره کښې دا انتظار دې چه تاسو ته الله په خپله یا څمونږ په لاس سزا درکړي بس انتظار کوئ، مونږ هم تاسو سره انتظار کوؤ.

## خلاصه تفسیر

﴿عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ﴾ الله ﷻ [خو] تاسو معاف کړئی [لیکن] ﴿لِمَ اَذِنْتَ لَهُمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا﴾
تاسو دوئ ته [داسې په تلوار] اجازت ولې ورکړې وو چې تر څو ستاسو ﷺ په مخکښې
رښتینی خلق ښکاره شوي نه وی او [ترڅوچې] ﴿وَتَعْلَمَ الْكٰذِبِيْنَ﴾ دروغژن دې معلوم کړی نه وې
[دپاره ددې چې خوشحاله شوی خو نه وې چې مونږ درسره تګنی اوکړه او] ﴿لَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ
يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ يُّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ﴾ کوم خلق چې په الله ﷻ اود قیامت په ورځ ایمان
لری هغوئ پخپلو مالونو اوځانونو سره د جهاد کولو په باره کښې [په دې کښې د نه شریکیدو
په کله هم] تاسونه اجازت نه غواړئی [بلکه هغوئ به د حکم ملاویدو سره ورمنډه کوی] ﴿وَاللّٰهُ
عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ﴾ او الله ﷻ دا متقیان خلق ښه پیژنی .[دوئ ته بهٔ اجر وثواب ورکوی] ﴿اِنَّمَا يَسْتَاْذِنُكَ
الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ البته هغه خلق [جهاد ته د نه تلو] تاسونه اجازت غواړی چې په
الله ﷻ اودقیامت په ورځ باندې ایمان نه لری ﴿وَارْتَابَتْ قُلُوْبُهُمْ﴾ اود هغوئ زړونه[داسلام نه] په
شك کښې پراته دی ﴿فَهُمْ فِيْ رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُوْنَ﴾ نو هغوئ پخپلو شکونو کښې پراته حیران دی [کله
ئې د جوړښت خیال وی او کله ئې د مخالفت کولو] ﴿وَلَوْ اَرَادُوا الْخُرُوْجَ لَاَعَدُّوْا لَهٗ عُدَّةً﴾ اوکه دغې
خلقو [غزا ته] دتلو اراده لرلې [څنګه چې د خپل عذر کولو په وخت کښې ئې ښکاره کوی] نو
ددې [تلو] څه سامان خو بهٔ ئې سم کړې وې [څنګه چې سفر دپاره عادتا سموی] ﴿وَّلٰكِنْ كَرِهَ اللّٰهُ
انْۢبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ﴾ لیکن [دوئ سره اراده نه وه کړې اوپه کښې خیر وو لکه چې وړاندې را روان
دی ﴿لوخرجوا فیکم﴾ او ددې د خیر کیدو وجه داده] الله ﷻ دوئ خوښ نه کړل څکه ئې ورته
توفیق ورنکړو او [په تکوینی حکم سره ورته] ﴿وَقِيْلَ اقْعُدُوْا مَعَ الْقٰعِدِيْنَ﴾ داسې اووئیلې شو چې
شلو ګډو خلقو سره تاسو هم دلته پراته اوسئ [او ددوئ په تلو کښې د خیر دنیشتوالی وجه
داده چې] ﴿لَوْ خَرَجُوْا فِيْكُمْ مَّا زَادُوْكُمْ اِلَّا خَبَالًا وَّلَا اَوْضَعُوْا خِلٰلَكُمْ يَبْغُوْنَكُمُ الْفِتْنَةَ﴾ که داسې خلق تاسوسره
شامل وې نو سوا ددې نه به ئې نور ډیر فسادونه کولو نو به څه [هغه فساد کول بهٔ ئې دا وو
چې] ﴿وَفِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ﴾ ستاسو ترمینځه د فتنې راپورته کولو په فکر کښې به په منډه منډه
ګرځیدل [یعنی اخوا دیخوال به ئې کول ، او ستاسو تر مینځه بهٔ ئې بیلتون راوستو ، دروغ ،
افواګانې بهٔ ئې خورولې اوتاسو به ئې پریشانه کولئ ، ستاسو په زړونو کښې به ئې ددښمن د
رعب اچولو کوشش کولو څکه چې ددوئ نه تلل ښه شو] او [اوس هم] په تاسو کښې د دوئ څه
جاسوسان موجود دی [چې ددې نه د زیات فساد کولو ماهران نه دی] ﴿وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ﴾ او
په دې ظالمانو به الله ﷻ ښه پوهه شي [اوددې خلقو فسادونه راپورته کول او فتنې خورول
نوې کار نه دی] ﴿لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ﴾ دوئ خو رومبې [په جنګ احد وغیره کښې] هم د فتنې
خوررولو فکر کړې وو [چې درسره روان شو او بیا څکه بیل شو چې د مسلمانانو زړونه مات
شي] او [ددې نه علاوه هم] ﴿ وَقَلَّبُوْا لَكَ الْاُمُوْرَ﴾ ستاسو ﷺ [د ضرر رسولو]دپاره ئې اړولې
کارونه کول ﴿حَتّٰى جَآءَ الْحَقُّ﴾ تر دې چې رښتیا وعده راغله او [ددې راتلل دادی چې] ﴿وَظَهَرَ اَمْرُ اللّٰهِ
وَهُمْ كٰرِهُوْنَ﴾ د الله ﷻ حکم غالب پاتې شو او دوئ نشو برداشت کولې [دغه شان په آئنده
کښې هم بالکل تسلی لرئ هیڅ فکر مه کوئی] ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ ائْذَنْ لِّيْ وَلَا تَفْتِنِّيْ﴾ او په دې

Scanned with Ca

[روستو ناستو منافقانو] کښې ځينې کسان هغه دي چې [تاسو ﷺ] وائي چې ماته [غزانه د نه تلو اوپه کور کښې د ناست پاتې کيدو] اجازت راکړئ اوما په خرابئ کښې مه اچوئ ﴿أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا﴾ ښه پوهه شئ چې دا خلق په خرابئ کښې پريوتي دي [ولې چې د نبي کريم ﷺ د نافرمانئ کولو اود کفر کولو نه به زياته بله کومه خرابي وي] ﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ﴾او يقينا دوزخ به [په آخرت کښې] دا کافران راګير وي ﴿إِن تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ﴾که په تاسو څه ښه حالت راشي نودا ددوئ دپاره باعث د غم وي ﴿وَإِن تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ﴾ اوکه درته څه حادثه راپيښه شي نو [خوشحاله شي او] ﴿يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِن قَبْلُ﴾ وائي چې مونږ خو [ددې دپاره] د رومبې نه دخپل احتياط اړخ غوره کړې وو [چې مسلمانانو سره په جهاد دوغيره کښې نه وو شريك شو] ﴿وَيَتَوَلَّوا وَّهُمْ فَرِحُونَ﴾ او [په داسې وئيلو سره] هغوئ په خوشحالئ خوشحالئ روان شي ﴿قُل لَّن يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا﴾ تاسو [ورته په جواب کښې دوه خبرې] اوکړئ [يو خو دا چې] مونږ ته څه حادثه نشي راپيښيدې مګر هم هغه چې الله ﷻ زمونږ دپاره ليکلې ده [او زمونږ دپاره ئې مقرر کړې ده] ﴿هُوَ مَوْلَانَا﴾ هغه زمونږ مالك دې [نو مالك حقيقي چې څه تجويز اوکړي مملوك لره په هغې راضي پاتې کيدل واجب دي] او [زمونږ خصوصيت څه دې ؟] ﴿وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾ الله ﷻ ته خو ټولو مسلمانانو لره خپل ټول کارونه سپارل پکار دي [بله خبره ورته دا] ﴿قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ﴾ اوفرمايئ چې [مونږ لره څنګه چې ښه حالت غوره دې دغسې حادثات او راپيښئ هم او ګناهونه مو رژيږي پس] تاسو زمونږ په حق کښې د دوؤ غور والوڅخه د يو غور والي په انتظار کښې پاتې کيږئ [يعنې تاسو چې پخپل خيال کښې مونږ دپاره دښه او بد حالت په انتظار کښې يئ نو دا دواړه [خوشحالي او غم] زمونږ دپاره غوره دي ﴿وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ أَن يُصِيبَكُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِندِهِ أَوْ بِأَيْدِينَا﴾ اومونږ ستاسو په باره کښې انتظار کوؤنکي پاتې کيږو چې الله ﷻ به په تاسو څه عذاب راولي [خواه] د خپل طرفه ددې [په دنيا کښې يا په آخرت کښې] يا زمونږ دلاسه [کله چې تاسو خپل کفر ښکاره کړئ نو د نورو کافرانو پشان به د مسلمانانو دلاسه اووژلې شئ] ﴿فَتَرَبَّصُوا إِنَّا مَعَكُم مُّتَرَبِّصُونَ﴾ تاسو [پخپل شان] انتظار کوئ [او] مونږ به تاسو سره [پخپل شان] انتظار کوؤ.

**معارف اومسائل**

ددې رکوع په [۱۷] اولسو او تقريبا په ټولو آيتونو کښې دمنافقانو بيان دې چه د دروغ عذرونه ئې پيش کړل اوده غې په بنيادئې درسول الله ﷺ نه دا اجازت حاصل کړې ووچه دتبوک غزا ته به نه ځي، په دې ضمن کښې ډيرې مسئلې، هدايات اوحکمونه دي،

په رومبي آيت کښې په باريک اندازسره رسول الله ﷺ نه ددې خبرې ګيله شويده چه دوئ درته ددروغو عذرو راندې کړو او تاسو ورته بې تحقيقه دتبوک غزانه دپاتې کيدو اجازت ورکړو، اوس دا خلق په دې خوشحالي ښکاره کوي چه رسول الله ﷺ سره مو دهوکه اوکړه، اګرچه په راتلونکې آيتونو کښې الله تعالى دا هم ښکاره کړل چه دې خلقو دچل ول عذرونه وراندې کول، که دوئ ته دغې غزانه دپاتې کيدو اجازت نه وې ورکړې شوې نو بيا هم دوئ غزاته تلونکي نه وو، په يو آيت کښې الله تعالى دا هم ښکاره کړل چه که بالفرض دا خلق غزاته تلې هم وې، نو مسلمانانو ته ئې هيڅ فائده ځکه نه وه چه دوئ به هلته سازشونه کول، فتنې او

Scanned with Ca

فسادونه به ئې راپورته کول اونورې داسې خطرې به تررا پيښيدې،
ليکن منشاء خو داده چې که دوئ ته اجازت ورکول کيدې نه بيا هم دوئ تللو والانه وو مګر ددوئ منافقت په داسې رابرسيره شوې ووچه بيابه هم غزاته نه تلل اوداپيغوروونه به ئې مسلمانانوته هم نشوورکولې، چه مونږورسره چل ول اوکړومقصد ددې نه زورنه ورکول نه دي بلکه داضباطول ووچه آئنده دپاره ددوئ دچلونواو دهوکونه باخبره اوسيږئ که په ﴿لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ﴾ ولې دِاجازت ورکړو؟ سره چې دزورنې صورت ښکاريدونو الله تعالى ددې اثرلرې کولودپاره ددې نه ړومبې ورته ﴿عَفَا اللَّهُ عَنكَ﴾ الله تعالى معاف کړې ئې؟ اوفرمائيل،
کوم حضرات چې د رسول الله ﷺ دمنصب اومقام نه خبردی، او د الله تعالى سره دهغوئ ﷺ په تعلق باندې نظرلرى نوهغوئ وائى چه هرکله درسول الله ﷺ تعلق الله تعالى سره ډيرزيات ژوروو، که يواخې په ﴿أَذِنتَ لَهُمْ﴾ سره ورته خطاب شوې وې نودجواب طلبئ دصورت په رامخې کيدوسره به درسول الله ﷺ په زړه مبارک به دهغوئ ﷺ دزغم، برداشت نه زيات خفګان راغلې وې، ځکه ئې تړراندې ﴿عَفَا اللَّهُ عَنكَ﴾ اوفرمائيل يواړخ ته خوپه دې سره دااوښولې شوچه دالله تعالى په نزديونا خوښه کارشويدې خودهغې په کولوئې ورته دمعافئ اطلاع ړومبې نه ورکړه چه وريسې بيان شوې خبره ئې په زړه مبارک باندې ډيره درنه پريؤنه ځی،
دلته داشبه کيدې شوه چه هرکله معافى خودګناه نه کيدې شي اورسول الله ﷺ دګناه نه معصوم دې هغوئ نه ګناه نشى صادريدې نوځنګه وردپاره دمعافئ الفاظ راؤړې شو،
جواب دادې چه ځنګه دګناه نه معافى کيدې شى دغه شان ديوناخوښه کارکولونه هم معافى کيدې شي يعني يواخې دګناه نه معاف کيدل نه وى بلکه دناخوښه کارکولونه هم معاف کول وى،
په دويم اودريم آيت کښې دمؤمنانواومنافقانوترمنځه ئې هم دافرق اوښولوچه صحيح ايمان لرونکى، په داسې موقعوباندې خان اومال سره دمينې، محبت له کبله په جهاد کښې دنه شامليدلو دپاره اجازت نه غواړى، بلکه داسې هغه څوک وى چه په الله تعالى اودآخرت په ورځ صحيح ايمان نه لرى او الله تعالى متقيان خلق ښه پيژنى،
په څلورم آيت کښې دمنافقانودغلط عذريوه نخښه ئې داهم اوښوله ﴿وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً﴾ که دوئ جهادته دتلورشتيااراده لرلې نوخامخابه ئې دې دپاره څه تيارى کړې وې؟ چه تيارې يې هيڅ نه ده کړې نوپته اولګيده چه دعذربهانه ئې غلطه وه،
**دمنلواونه منلودعذرترمنځه پيلتون:** ادې آيت نه يواصول داهم رابرڅيره شوچه عذردهغه چا صحيح اوقبلولوجوګه کيدې شى چه حکم منلودپار هروخت تياروى اودڅه مشکل يابنديز راولاړيدو په وجه ديوحکم مطابق عمل اونشى کړې، چنانچه دمعذروخلقودتولو، عاملاتوهم دغه حکم دې، چاچه دحکم منلودپاره هيڅ تيارى نه وى کړې اودسره ئې وردپاره اراده هم نه وى کړې اوبياورته څه عذرهم پيښ شى نوداسې عذربه د[عذرګناه بدترازګناه] مثال لرى، دابه صحيح عذرنشى ګنړلې، ته که يوسړى دجمعې دمونځ دپاره تيارى مکمله کړې وى، هغې دپاره روان هم شى، ناڅاپه ورته داسې څه عذرراپيښ شى چه دهغې په وجه دجمعې دمونځ نه پاتې راشى نو دا دمنلوعذردې، اوالله تعالى ورته هم ددغې عبادت پوره اجر ورکوى، او چا چې د سره هيڅ تيارې نه وى کړې او بيا اتفاقا يو عذر هم مخې ته راشى نو هغه محض يوه بهانه ده.

Scanned with Ca

بل مثال ئې داسې واخلئ چه صباوختې مونځ دپاره دپاسيدوپوره انتظام څوک اوکړي دېائم پيس کړنګارئې هم لګولي وي، چاته ئې دخپلوويښولودپاره هم وئيلي وي، بياپه څه وجه داټول انتظام فيل شي اوصبامونځ ترقضاشي نوداعذردمنلودې، څنګه چه رسول الله ﷺ په [ليلة التعريس، کښې په وخت باندې دراويښيدو دا انتظام کړې ووچه حضرت بلال ﷺ دټولو راويښولو دپاره څوکيدارمقررکړې وو، خواتفاقا په هغه هم خوب غالبه شو، په نمرراختوسره ټول رابيدارشو، هرکله چه داعذردمنلوجوګه وو، څکه رسول الله ﷺصحابه کرامو ﷺ ته تسلي ورکړه چه، لاَتَفْرِيطَ فِي النَّومِ إِنَّمَاَ التَفْرِيطُ فِي اليَقْظَةِ، دخوب په وجه راتلونکې کوتاهي معتبره نه ده] هغه کوتاهي معتبره ده چه په ويښه چانه په قصدسره راشي[(۱)

غرض داچه دصحيح اوغلط عذر معلومولو يوه هم نخښه داهم ده چه دحکم منلودپاره تياري شوي وي هغه به صحيح عذروي اوچه هيڅ تياري وردپاره نه وي شوي نوهغه به غلط عذروي،

په پنځم آيت کښې په تګئ سره داجازت حاصلوونکومنافقانوداحال هم اوښولي شوچه ددوئ جهادته نه تلل څکه زيات غوره ووچه که دوئ تلې وې نوپه سازشونوکولواوغلطوافوا ګانوخورولوسره به ئې فسادونه راپورته کول لکه فرمائي [﴿وَفِيكُمْ سَمَّٰعُونَ لَهُمْ﴾ يعني په تاسوکښې ساده بوده داسې مسلمانان هم شته چه ددوئ غلطوافواګانوبه پراثرکولو]

﴿لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِن قَبْلُ﴾ يعني دې خلقوړومبې هم داسې فتنې اوفسادونه راپورته کړيدي] څنګه چه داحدپه غزاکښې ئې هم راپورته کړي وو،

﴿وَظَهَرَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ كَٰرِهُونَ﴾ يعني غالب شوحکم دالله تعالى سره ددې چه دمنافقان پر ديرترنيدل] دې کښې اشاره دې خبرې ته اوشوه چه غلبه اوفتح ورکول دالله تعالى په قبضه کښې دي، څنګه ئې چه په ړومبوواقعاتوکښې فتح درکړه په دې جهادکښې به هم دغسې وي اودمنافقانوټول چلونه به فيل شي،

په شپږم آيت کښې ديوخاص منافق جدبن قيس ديوې خاصې بهانې کولوپه وجه دهغه ګمراهي بيان شويده، هغه جهادته دنه تلوداعذرپيش کړې ووچه زه يوځوان سړې يم، که د روميانومقابلې ته ورشم دهغوئ دښکلوښکلوښځوپه ليدوبه ځان په قابوکښې اونه ساتلې شم، قرآن ددې جواب داسې اوفرمائيلو﴿أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا﴾ (۲) دې خلقوديوې وهمي فتنې بهانه اونيوله خوددې نه زياته يقيني فتنه کښې دوئ داوس نه اخته دي ولې چه درسول الله ﷺ دحکم خلاف ورزي کوي اوجهادته نه ځي کومه چه سخته ګناه ده،

﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌۢ بِالْكَٰفِرِينَ﴾ يعني جهنم دې ټولوله په ګيره کښې راوستونکي دي، چه د راوتو درک ئې ترنه لګي] ددې مراد خو دادې چې په قيامت کښې چې جهنم دوئ په ګيره کښې اخلي ياداچه په دنياکښې ددوئ کوم عملونه چې جهنم ته دتلوباعث اوموجب دي هغې دوئ لره په ګيره کښې راوستلي دي ګوياکښې ددوئ ناکاره عملونه ئې په جهنم سره تعبير اوکړو اووې فرمائيل چه اوس هم دجهنم په ګيره کښې دي،

(۱) سنن ابي داود، کتاب الصلاة، باب في نام عن الصلاة أو نسيها: ج ۱، ص ۳
(۲) المعجم الاوسط للطبراني رقم الحديث: ۵۳۳

Scanned with Ca

په اووم آیت کښې ددوئ یوه بله کم ظرفي داسې بیان شویده چه داخلق اګرچه په ښکاره مسلمانانو سره یوځائ پاتې کیږي، لیکن حال ئې دادې چه [﴿إِن تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ﴾] یعنی که تاسوته څه فتح او کامیابي حاصله شي نو دوئ به ئې بیخي نشي زغملې ﴿وَإِن تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِن قَبْلُ وَيَتَوَلَّوا وَّهُمْ فَرِحُونَ﴾ یعنی که تاسوته څه مصیبت دراورسي نو داخلق وئیل شروع کړي چه مونږ خو رومبې نه پدې پوه ووچه داخلق خپل ځانونه په مصیبت کښې اچوي خکه مونږه دخپلې ښیګړې په خاطر دوئ سره شریک نشو چه داسې اووائي نو په خوشحالي خوشحالئ بیرته روان شي]

په اتم آیت کښې الله تعالى رسول ﷺ او مسلمانانو لره منافقانو ددغه خبرو داثرنه قبلولو او خپلې مخې ته همیشه دپاره دحقیقت اینبو هدایت په دې الفاظو سره اوکړو ﴿قُل لَّن يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا هُوَ مَوْلَانَا ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾ یعنی تاسو هغه خلقوته اووائی څوک چه دمادي سامان پرستش کوي چه تاسو غولیږئ، دامادي سامان یوه پرده ده په دې کښې کار کوونکې قوت صرف الله تعالى دې، مونږ ته چه کوم حال راپیښیږي داټول هغه دي چه الله تعالى زمونږ دپاره لیکلي دي او هم هغه زمونږ مولى او مددګار دې مسلمانانو لره پکاردي چه اصل تکیه دې هم په دې لري، مادي اسباب دصرف اسباب او نخښې ګنړي په دې ددخیر او شر اډانړه نه ګنړي،

**دتقدیر عقیده سره دتدبیر اختیارولو پکار ده بې تدبیرئ ته توکل وئیل غلطه خبره ده!** دې آیت دتقدیر او توکل دمسئلې اصل حقیقت هم په ډاګه کړو هغه داسې چه ته تقدیر او توکل لرلو مطلب دانه دی اغستل پکار چه خلق ډېنبه په پښنه کښینې اووائي دچه دقسمت لیک به رارسي، بلکه پکاردادي چه دخپل وس په جوړتوان، همت او اسباب راجمع کولو او استعمالولو نه پس معامله تقدیر او توکل ته سپارل پکاردي، نظریواځې په الله تعالى باندې لرل پکاردي چه دهر کار نتیجې یواځې هم دهغه په قبضه قدرت کښې دي،

دتقدیر او توکل په مسئله کښې خلق ګډوډ شویدي چه بیدینه خلق خو بیخي دتقدیر او توکل نه منکردي، هغوئ مادي اسبابو لره خدائي ګنړلې دې، او داسې ناخبره خلق هم شته چه تقدیر او توکل ئې دخپلې کم همتئ او بیکارئ بهانه جوړه کړیده، د رسول الله ﷺ پخپله دجهاد دپاره پوره پوره تیاری کول، وریسې دا آیت نازلیدلو دکمې زیاتي لارې ئې تولې بندې کړې اوصحیح لارئې اوښوله؟ باتوکل زانوئې اشترببند،([1])

یعنی اختیاري اسباب هم دالله تعالى ورکړې شوي نعمتونه دي، دې نه فائده نه اغستل هم ناشکري او بیوقوفي ده، البته اسبابو لره ددرجې نه وړاندې مه اوړدوه خو عقیده دالره چه نتیجې او ثمرات په دې اسبابونه، بلکه دالله تعالى په حکم او اراده باندې اډانړه دي،

په نهم آیت کښې دمؤمن یو ځانګړې شان داسې بیان شو چه ددوئ [مؤمنانو] په مصیبت باندې خوشحالیدونکو منافقانو ته داسې جواب ورکړې شو چه کوم څیز زمونږ دپاره تاسو مصیبت ګنړئ او په هغې خوشحالیږئ نو زمونږ په نزد دغه مصیبت، مصیبت نه دې بلکه دراحت او کامیابئ یو بل صورت دې، ځکه چه مؤمن بنده په خپل عزم او قصد کښې ناکامه کیدو سره

---

[1]) ترجمه: توکل سره داوښ لګې اوتړه۔

هم، داجر او بدلې حقدار جوړيږي کوم چه د تولو کامیابو اصلي مقصود دي، ځکه په هغې کښې ناکامه کيدو سره هم کامیاب پاتې کيږي او په ورانه کښې هم جوړيږي:

نہ شوخی چل سکی باد صبا کی بگڑنے میں بھی زلف اس کی بنا کی

[د باد صبا چیرکولو هیڅ اونشو کړې؟ ولې چه د معشوقې زلف ئې چه څومره ورانولې هومره ښکلې او مزید اړي شوې]

چنانچه په دې آیت کښې د [﴿قُلْ هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ﴾] مطلب هم دغه دې، دې سره ئې او ښودل چه د کفارو حال د دې الټه داسې دې چه په هیڅ حال کښې هغوئ د عذاب نه خلاصیدې نشی، یا خو په دنیا کښې هم په دوئ باندې د مسلمانانو د لاسه د خدائ عذاب راشی، ورنه په آخرت کښې خو به په هیڅ شان د عذاب نه نشی خلاصیدې په دې شان به کفارو د دنیا او آخرت په دواړو قسمو عذابونو کښې اخته پاتې کیږي.

| |
|---|
| قُلْ اَنْفِقُوْا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا لَّنْ يُّتَقَبَّلَ |
| ا اووایه ا که خرچ کوئ ا په رضا سره ا یا په ناخوښئ سره ا هرگزبه قبول نه کړې شی |
| [ته [ورته] اووایه که په خوښه خرچ کوئ او که په ناخوښهٔ هیڅ کله به |
| مِنْكُمْ ۭ اِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ۝ وَمَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ |
| ستاسو نه ا بیشکه چی تاسو ا یئ هم تاسو ا یو قوم ا فاسقان ا اونهٔ دی منع کړی دوئ ا چی قبول کړې شی |
| ستاسو نه قبول نشی ا ځکه چه تاسو نافرمان خلق ئې ا او دوی چه د دې خبرې نه منع شوی دی چه د دوی |
| مِنْهُمْ نَفَقٰتُهُمْ اِلَّآ اَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَبِرَسُوْلِهٖ |
| د دوئ نه ا خرچ شوې مال د دوئ ا مگر دې خبری ا چی دوئ ا کافران شوی دی ا په الله ا او په رسول دهغه |
| صدقې د دوی نه قبول شی مگر د دې وجې چه دوی په الله او دهغه په رسول باندې کفر کړې دې |
| وَلَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ اِلَّا وَهُمْ كُسَالٰى وَلَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا |
| اونه راځی دوئ ا مانځه ته ا مگر ا حال دا چی دوئ ا سست وی ا اونهٔ خرچ کوی دوئ ا مگر |
| او دوی مانځه ته په نا راستیا سره راځی ا او دوی [چه د الله په لار کښې کوم] خرچ کوی نو په هغې |
| وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ۝ فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ ۭ |
| په دې حال چی دوئ ا ناخوښه وی ا نو په تعجب کښی دې نهٔ اچوی تا ا مالونه د دوئ ا اونهٔ ا دیر اولاد د دوئ |
| باندې هم خفه وی ا ........نو د دوی مالونه او اولاد دې تا په تعجب کښې وانچوی |
| اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ |
| بیشکه ا غواړی الله ا چی او عذابوی دوئ ا په دې څیزونو سره ا په ژوند د دنیا کښې ا او اوځی |
| بیشکه الله اراده لري چه دې منافقانو ته د دې مالونو په سبب په دنیا کښې عذاب ورکړی او په حالت د کفر |
| اَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ۝ وَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنَّهُمْ |
| روحونه د دوئ ا او حال دا چی دوئ ا کافران وی ا او قسمونه خوری دوئ ا په الله باندې ا چی بیشکه دوئ |
| کښې د دوی ساه اوځی ا او دوی [تاسو ته په دروغه] په الله تعالی باندې قسمونه خوری چه دوی [منافقان] هم |

Scanned with Ca

لَمِنۡكُمۡؕ وَمَا هُمۡ مِّنۡكُمۡ وَلٰكِنَّهُمۡ قَوۡمٌ يَّفۡرَقُوۡنَ۝

خامخا ستاسو نه دی او حال دا چې نه دی ا دوی ا تاسو نه ا او لیکن دوی ا داسې قوم دی ا چې یریږی

ستاسو څنې دی ا [خو] دوی ستاسو [مسلمانانو] نه نهٔ دی ا بلکه دوی داسې خلق دی چه ویریږی

لَوۡ يَجِدُوۡنَ مَلۡجَاً اَوۡ مَغٰرٰتٍ اَوۡ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوۡا اِلَيۡهِ

که مونډلي دوی ا ځائي د پناه ا یا غارونه ا یا بل ځائي د ننوتلو ا نو خامخا به ګرځیدلی وو ا هغې ته

که دوی ځائي د پناه یا غارونه یا بل څه د ننوتلو ځائي موندلي نو خامخا به هغې ته په منډو ورغلی او

وَهُمۡ يَجۡمَحُوۡنَ۝ وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ يَّلۡمِزُكَ فِي الصَّدَقٰتِۚ

او دوی ا به منډې وهلې ا او ځینی د دوی نه ا هغه څوك دی ا چې عیب لګوی په تا ا په صدقو کښې

ننوتي وو ا او په دوی [منافقانو] کښې څه داسې [منافقان] دی چه د صدقو په باره کښې په تا باندې عیب لګوی

فَاِنۡ اُعۡطُوۡا مِنۡهَا رَضُوۡا وَاِنۡ لَّمۡ يُعۡطَوۡا مِنۡهَاۤ اِذَا

نو که ا ورکړې شی دوی ته ا د هغې نه ا نو راضی کیږی ا او که ورنکړې شی دوی ته ا د هغې نه ا نو په دغه وخت

او د دوی حال دا دې که د هغې نه ورته څه ورکړې شی نو بیا خو خوشحاله وی او که څه ورته ورنکړې شی نو په

هُمۡ يَسۡخَطُوۡنَ۝ وَلَوۡ اَنَّهُمۡ رَضُوۡا مَاۤ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ

دوی ا غصه کیږی ا او که چری دوی ا راضی شوي وې ا په هغه ا چې ورکړې وو دوی ته ا الله

هغه وخت کښې بیا په غصه وی او چه ولې ئې ما ته څه رانکړل؛ خو که دوی په هغه څه راضی شوي وې کوم چه

وَرَسُوۡلُهٗۙ وَقَالُوۡا حَسۡبُنَا اللّٰهُ سَيُؤۡتِيۡنَا اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖ

او رسول د هغه ا او ویلی ئې وې ا کافی دې مونږ لره الله ا را به کړی مونږ ته الله ا د فضل خپل نه ا او

الله او د هغه رسول ورکړې وې او دا ئې ویلی وو چه الله زمونږ زمونږ د پاره کافی دې الله او د هغه رسول

وَرَسُوۡلُهٗۤ ۙ اِنَّاۤ اِلَى اللّٰهِ رٰغِبُوۡنَ۝

رسول د هغه ا بیشکه مونږ ا الله ته ا رغبت کونکی یو ا

به مونږ ته د خپل فضل [مال] نه را کړی او مونږ الله ته رغبت کوُنکی یو ا

## آسان ترجمه قرآن

ته ووایه چه خپل مال خواه که په خوشحالئ سره ورکوئ په چنده کښې او که په بد زړه سره هغه به تاسو نه چرې هم قبول نه شي تاسو داسې خلق ئئ چه مسلسل نافرماني کوئ او د دوی په چنده قبلیدو کښې رکاوټ دې نه بغیر بل څه نشته چه دوی د الله او د هغه د رسول سره د کفر معامله کړې ده او چه دوی مونځ ته راځی نو سست راځی . او چه ( څه د نیکئ کار کښې ) خرچ کوي نو بد ګنړلو سره خرچ کوي تا دې د دوی د مال او اولاد (ډیر والې) تعجب کښې وانه چوي. الله تعالی خو غواړي چه دوی ته په دغه څیزونو سره دنیا کښې عذاب ورکړي او د دوی روح هم د کفر په حالت کښې ووځی. دوي په الله باندې قسمونه خوري چه دوی تاسو نه دي . حال دا چه دوی ستاسو نه نهٔ دی بلکه دوی یو ویریدونکې خلق دي. که دوی ته څه پناهګاه ملاؤ شي یا څه قسم غار ملاؤ شي یاد ننه کیدو څه بل ځائ نو دوی به په

اختیاره هغې ته منډې وهي اودې ﴿منافقانو کښې﴾ هغه خلق هم دي چه هغوی د صدقاتو ﴿په تقسیم کښې﴾ تا باندې الزام لګوی پس که دې صدقاتو نه دوی ته ﴿د دوی د مرضۍ مطابق﴾ ورکړې شي نو دوی خوشحاله وي او که د دوی د مرضۍ مطابق ورنکړې شي نو دوی ډیر زر ناراضه کیږی او څه هم چه الله او دهغه رسول دوی ته ورکړي وو څه ښه به وه چه دوی په هغې راضی شوې وې او دا ئې وئیلې وې چه: الله زمونږ د پاره کافی دې، آئنده به مونږ ته الله د خپل فضل نه راکړي او د هغه رسول هم اومونږ الله طرف ته رغبت کوو.

## خلاصه تفسیر

﴿قُلْ اَنْفِقُوْا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا لَّنْ يُّتَقَبَّلَ مِنْكُمْ﴾ تاسو دې منافقانو ته] اوفرمایئ چې تاسو [په جهاد کښې] که په خوښه خرچ کوئ او که بې خوښې ستاسو نه په هیڅ شان [د الله ﷻ په نزد] مقبول نه دی [ځکه چې] ﴿اِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فٰسِقِيْنَ﴾ بیشکه تاسو نافرمانی کوؤنکی خلق یئ [مراد ترې کفر دې ، څنګه چې راروان دی] ﴿وَمَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقٰتُهُمْ﴾ اود دوئ دخیرات دقبلیدو نه ،بغیر ددې بل څه بندیز نشته ﴿اِلَّآ اَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَبِرَسُوْلِهٖ﴾ چې دوئ الله ﷻ اود هغه په رسول ﷺ سره کفر اوکړو [دې ته ئې پورته نافرمانی وئیلی وو او د کافر هیڅ عمل قبلیدونکې نه دې] او [ددې باطنی کفر نخښه په ښکاره داده چې] ﴿وَلَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ اِلَّا وَهُمْ كُسَالٰى﴾ دا خلق مونځونه نه کوی مګر په مات زړۀ سره او [په نیك کار کښې] ﴿وَلَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَهُمْ كٰرِهُوْنَ﴾ اوخرچ نه کوی مګر په ناخوښئ سره [ولې چې په زړه کښې خو ئې ایمان شته دې نه چې په هغې سره ئې دثواب امید وی او د امید په وجه ئې شوق وی ، خالص د بدنامئ نه دځان ساتلو دپاره ئې کوی او کله چې دوئ داسې مردود دی] ﴿فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ﴾ نو د دوئ مالونه او اولاد دې تاسو ﷺ [په دې] تعجب کښې نه اچوی [چې داسې نامقبول او مردود خلقو ته دومره انعامات څنګه ورکړې شو؟ ولې چې دا په واقع کښې دوئ دپاره نعمت ده دې یوقسم عذاب دې ځکه چې] ﴿اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ الله ﷻ ته یوازې دا منظور نه دی چې ددې څیزونو په وجه په دنیاوی ژوندې کښې [هم] دوئ لره په عذاب کښې ګرفتار لری ﴿وَتَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُوْنَ﴾ او چې د دوئ ساه هم دکفر په حالت کښې اوځی [چې د هغې په وجه په آخرت کښې هم په عذاب کښې ګرفتار وی نو د کوم مال او اولاد چې دا انجام وی هغه انعام ګڼړل غلطی ده] او دا [منافقان] ﴿وَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ﴾ خلق په الله ﷻ باندې قسمونه خوری چې دوئ هم ستاسو نه دی [یعنی مسلمانان دی] حالانکه [ په واقع کښې] ﴿وَمَا هُمْ مِّنْكُمْ﴾ دوئ ستاسو نه نه دی ﴿وَلٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَّفْرَقُوْنَ﴾ لیکن [خبره داده چې]دوئ ویریدونکی خلق دی [د ویرې په وجه په دروغه قسمونه خوری او خپل کفر پټوی ، چې هسې نه مسلمانان راسره د نورو کافرانو پشان معامله اونه کړی او بل چرته هم ددوئ څه داسې ځائې نشته چرته چې آزادئ سره پاتې کیږی ګنی] ﴿لَوْ يَجِدُوْنَ مَلْجَاً اَوْ مَغٰرٰتٍ اَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْا اِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُوْنَ﴾ دې خلقو ته که د پناه څه ځائې ملاویدو یا [چرته په غر وغیره کښې] غار[ورته ملاویدې] یا چرته ورته بل د ننوتو څه لږ شان ځائې ورته [ملاویدې] نو دوئ به ضرور په هسکه غړئ اخوا تلی وې [خو دا صورت دسره نشته ځکه په دروغه قسمونو خوړلو سره خپل ځانونه مسلمانان ښکاره کوی] ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ فِى الصَّدَقٰتِ﴾

Scanned with

پدوئ کښې خيني خلق هغه دي چې د خيراتونو [ويشلو] په باره کښې په تاسو الزام لګوي [چې په دې ويش کښې نعوذ باالله انصاف نه دې کړې شوې] ﴿فَإِنْ أُعْطُوا مِنْهَا رَضُوا﴾ نو که دوئ ته د صدقو څخه [ددوئ د خواهشاتو مطابق] ملاؤ شي نو دوئ راضي کيږي ﴿وَإِن لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَا إِذَا هُمْ يَسْخَطُونَ﴾ اوکه دوئ خيراتونو څخه دوئ ته [د دوئ دخواهش مطابق] ورنکړې شي نو دوئ خفه کيږي [دې نه معلومه شوه چې د دوئ د اعتراض منشا په اصل کښې څه اصولي خبره نه وي بلکه دنيوي لالچ او خود غرضي ده] ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا مَا آتَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ﴾ او ددوئ دپاره غوره خبره وه که په دې راضي پاتې کيدې کوم چې الله ﷻ دوئ ته [د ورکولو حکم کړې وو] اودهغه رسول ﷺ ورکړې وو ﴿وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ﴾ او [ددې باره کښې] داسې ئې وئيلې چې مونږ الله ﷻ [راکړې دې] کافي دې [مونږ ته هم دومره د قاعدې موافق راکول وو په دې کښې به خير او برکت وي او که بيا مو ضرورت شو او خير په کښې وي نو] ﴿سَيُؤْتِينَا اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَرَسُولُهُ﴾ په آئنده کښې به الله ﷻ پخپل فضل سره مونږ ته نور راکړي او د هغه رسول ﷺ به راکړي ﴿إِنَّا إِلَى اللَّهِ رَاغِبُونَ﴾ مونږ [د زړه نه] د الله ﷻ طرفته ماتې کوؤنکي يو [او هم دهغه نه اميدونه لرو].

## معارف اومسائل

په تيروشوؤآيتونو کښې دمنافقانودبد اخلاقئ اوبد عملئ بيان ووا وس په دې تولو آيتونو کښې هم دامضمون بيان شويدې ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم﴾ کښې چې دا اوفرمائيلې شوچه منافقانودپاره ددوئ مال اولادنعمت نه، بلکه عذاب دې، ددې وجه داده چه ددنياپه مينه کښې بوښتيدل، انسان دپاره هم په دنياکښې يوعذاب اومصيبت جوړيږي اول ددنيوي مال دحاصلولو په آرزوګانو اوبياپه تدبيرونو کښې، څنګه څنګه محنتونه، مشقتونه، جسماني اوروحاني تيرول راځي، نه ده ورځې آرام ورته نصيب کيږي، نوورته دشپې خوب نصيب کيږي، نه دخپل تن بدن نه خبروي، نه خپل بال بچ سره دمشغوليد ووخت ملاويږي، بياچه مال حاصل شي نودهغې حفاظت کول او ترقي ورکول دشپې ورځې بيل عذاب دې، که پوتې نقصان ئې اوشوياڅه رنځورتياورته راپيښه شوه نودغمونوغرونه پرې راپرويوځي، او که په اتفاقي ډول ټول څيزونه ورته دطبيعت او خواهش مطابق حاصل هم شي نوددې دکميد واند يښنه اوپه مخه ورته د ترقئ ورکولوفکرئې هيڅ وخت آرام ته نه پريږدي، بياچه کله په آخرکښې داڅيزونه دمرګ په وخت ياورانديء دده دلاسه اوځي نوافسوس اوناميدي ئې مل شي، داټول سراسري عذاب دې، کوم بيوقوف انسان چه دراحت اوآرام سامان ته آرام وائي اوداصلي آرام يعني دزړه دآرام اوتسلئ هوا هم ورته نه وي لګيدلې، بياهم په دې کښې داسې بوښت شي چه په حقيقت کښې ئې ددنيا دآرام هم دښمن دې اودآخرت دعذاب يوپيشګي قسط هم دې،

**آياد خيرات مال کافرته ورکولې شي؟** دآخرې آيت نه معلوميږي چه دخيراتو صدقاتو دمال نه به منافقانوته هم برخه ورکولې شوه چه هغه به دخواهش مطابق ورنکړې شوه نوناراضه کيدل به اوپيغورونه اوالزامونه به ئې په مخه راواغسته، دلته که دصدقاتونه مرادعامي صدقې واغستې شي چه فرض، واجب اونفل صدقې پکښې ټولې راځي نوپه دې صورت کښې څه اشکال څکه نشته چه غير مسلموته نفلي صدقې ورکول په اتفاق دامت سره جائزاوپه سنت سره ثابت دي، اوکه دلته دصدقونه مرادفرض اوواجب صدقې وي لکه عشر، زکوة وغيره شو نو

منافقانو ته په دې کښې برخه ورکول په دې ښاباندې ووچه هغوئ به خپل خانونه مسلمانان ښکاره کول او ددوئ په کفرباندې به ظاهری حجت اودلیل قائیم نه وو، الله تعالی دا حکم دڅه مصلحت په خاطرورکړې ووچه منافقانوسره دِهم هغه معامله اوکړې شی کومه چه مسلمانانو سره کولې شی. [بیان القرآن په لنډو]

﴿وَلَا يَأْتُونَ الصَّلٰوةَ اِلَّا وَهُمْ كُسَالٰى﴾ په دې آیت کښې دمنافقانو دوه نخښې ښولې شویدی ① یو داچه مونځ ته په مات زړه راځی، ② بله داچه دالله تعالی په لارکښې مال په ناخوالئ سره خرچ کوی،
په دې سره مسلمانانو ته خبرداری ورکول دی چه مانځه ته په مات زړه تلل او په زکوة خیرات ورکولو کښې دزړه ناخوالی راپورته کیدل دمنافقت علامې دی، مسلمانانولره ترِ ځان ساتل ضروری دی.

| |
|---|
| اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ |
| ا بیشکه صدقې ا دی دپاره دفقیرانو ا |
| ابیشکه زکاتونه د فقیرانو |
| وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ |
| اودپاره دمسکینانو ااودپاره دعاملانو اچی مقرروی په هغې باندې ااو دپاره دهغه کسانوچې الفت اچول غرض وی |
| مسکینانو اود زکاة راغونډونکو دپاره دی اودهغه [نوې مسلمانانو] دپاره چه د هغوی زړونو کښې د اسلام |
| قُلُوْبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ |
| زړونودهغوئ ته ااوپه ختونوآزادولوکښی ورکولې شی ااوقرضدارانوته ورکولې شی ااوپه لاردالله کښی ورکولې شی |
| محبت اچول مقصود وی ااودغلامانو آزادولو دپاره اود قرضدارو دپاره اود مجاهدینو دپاره |
| وَابْنِ السَّبِيْلِ ؕ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۞ |
| اومسافرانوته ورکولې شی ا دافریضه ده\|دطرفه دالله نه ااوالله په هر څه پوهه دې ادحکمت خاوند دې |
| اود مسافرو دپاره دې ادا زکاة د الله تعالی فرض حکم دې ااوالله تعالی پوهه اوصاحب دحکمت دې |

### آسان ترجمه قرآن

صدقات خو اصل کښې حق دې د فقیرانو او مسکینانو اودهغه خلقو چه د صدقاتو په اخستو باندې مقرر شوي دي اود هغه چا چه د هغوی زړونه مائل کول مقصود دي اود غلامانو په آزادولو کښې او د قرضدارو په قرض ورکولو کښې اود الله په لاره کښې او د مسافرو په مدد کولو کښې دې خرچ کړې شي دا یو فریضه ده د الله د طرف نه او الله علم والا هم دې او حکمت والا هم.

### خلاصه تفسیر

[فرض] ﴿اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا﴾ صدقې خو یوازې حق دې د غریبانان او محتاجو او دکارکوونکو ددې صدقو چې[صدقو د وصولو او حاصلولو په کارونو باندې] لګیدلی وی ﴿وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ﴾ او دچا چې زړونه ساتل [منظور] دی ﴿وَفِي الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ؕ﴾ او د غلامانو د ختونو په خلاصولو کښې [دې اولګولې شی] اود قرضدارو په

Scanned with Ca

قرض [ادا کولو] کښي اوجهاد [يعني دجهاد کوونکو په سامان] کښي او [د] مسافرو [په مدد] کښي ﴿فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ﴾ دا حکم د الله ﷻ د طرفنه مقرر دي، ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ او الله ﷻ د لوئې علم خاوند ، د لوئې حکمت خاوند دي.

## معارف اومسائل

**دصدقو [خيراتونو] داستعمال اولګولوځايونه:** په تيروشوؤآيتونو کښې دصدقو په باره کښې په رسول الله ﷺ باندې دبعضې منافقينو داعتراضونو اودهغې دجوابونو بيان وو، په رسول الله ﷺ باندې ددغه منافقانو الزام داووچه [معاذالله] تاسو ﷺ دخيراتونو په ويشلو کښې انصاف نه کوئ، په خپله خوښه، غوښتونکوته هغه څه ورکوئ چه هغه ئې غواړي،

اوس په دې آيت کښې الله تعالى دخيراتونو داستعمالولو ځايونه اوټاکل اودغه غلط فهمى اواعتراضونه ئې په داشان لرې کړل چه داټاکل الله تعالى پخپله کړيدى چه صدقې د چاته ورکړې شى اورسول الله ﷺ په دغې خدائى حکم باندې عمل کوى، په خپله رائې هيڅ نه کوى،

ددې تصديق دابى داؤداودارقطنى په حواله دهغه حديث نه کيږى چه دحضرت زيادبن حارث صدائى په روايت راوړلې شويدې، راوى فرمائى چه زه يوځل درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم، راته معلومه شوه چه هغوئ ﷺ زمادقوم دمقابلې دپاره يولښکرد مسلمانانو ورليږى، وائى چه ماعرض اوکړوچه يارسول الله [صل]: تاسو ﷺ لښکرمه ورليږئ زه ددې ذمه اخلم چه زماقوم به پخپله غاړه ايښودونکى ستاسو ﷺ په خدمت کښې حاضر شى، وائى چه بيام خپل قوم ته خط اوليږلو او هغوئ ټولو اسلام قبول کړو نوهغوئ ﷺ راته اوفرمائيل، ياأخاصُدَاءِ الْمُطَاعُ فِي قَوْمِهِ، په دې ورته ګوياکښې دخپل قوم دمحبوب مقتدا [مشر] خطاب ورکړې شو، وائى ماورته عرض اوکړوچه دازماڅه کمال نه دې دالله تعالى په فضل وکرم سره هغوئ ته هدايت اوشوځکه مسلمانان شو، وائى چه زه لادغه مجلس کښې موجودوم چه يوسړې دڅه غوښتلو دپاره درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو، هغوئ ﷺ ورته په جواب کښې اوفرمائيل:

الله تعالى دصدقاتو [خيراتونو] ويش، چانبى ياغيرنبى ته نه دې سپارلې، بلکه پخپله ئې د هغې دويش اته ځايونه ټاکلى دى که ته په دغه [۸] اتو کښې داخل ئې نودربه ئې کړم، [انتهى تفسيرقرطبى، ص ۱۶۸ جلد ۱] [1]

دآيت شان نزول معلومولونه پس دآيت مکمل تفسيراوتشريح آوريدونه وړاندې په دې خبره پوه کړه چه الله تعالى خپلوټولو مخلوقاتوته درزق ورکولو وعده داسې فرمائيلې ده ﴿وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا﴾ خوټول ئې دخپل حکمت بالغه په مطابق په دې کښې يوشان نه دى ګرځولى چه دغنى اوفقيرفرق پکښې پاتې شى، په دې کښې دانسان اخلاقى تربيت اوددنياد انتظام په باره کښې په سوؤنوحکمتونه دى چه دتفصيل موقعه ئې دانه ده، ددې حکمت په بنائې څوک مالدارجوړ کړل اوڅوک ئې فقيران اوبې ماله جوړ کړل، بيا د مالدارو په مال کښې ئې دبې ماله فقيربرخه مقررکړه لکه فرمائى،

---

[1] ) سنن ابى داود، کتاب الزکاة، باب من يعطى من الصدقة ـــ الخ: ج ۱، ص ۲۲۹، وسنن الدارقطنى رقم الحديث: ۲۰۸۶

﴿وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ﴾ يعنى الله تعالى دبې ماله فقير دحق په ډول دمالدارو غنيانو په مال كښې برخه مقرر كړيده] دې نه معلومه شوه چه صدقه وركول دمالدارو غنيانو خلقوڅه احسان كول نه دى بلكه دا ورسره دبې ماله فقيرانو يو قسم حق دې چه خامخا به ئې وركوى. دې نه بله خبره دامعلومه شوه چه دغه برخه الله تعالى ټاكلې ده، داسې نه ده چه دچاپه خپله خوښه ددې اداكول او نه اداكول ياكم وزيات اداكول اړه لرى، چنانچه ددغه ټاكلې حق داندازې ښودل هم، الله تعالى، رسول الله ﷺ ته اوسپارل، چه هغوئ ﷺ صرف زبانى طور اونه ښودل، بلكه ددې معاملې په باره كښې ئې تفصيلى فرمان مبارك اوليكلو اوحضرت عمر ﷺ او عمرو بن حزم ﷺ ته ئې اوسپارلو، (۱) چنانچه ددې نه په ډاګه ثابته شوه چه دهرقسم مال نصاب او دهرنصاب نه د زكوة اندازه، هميشه دپاره الله تعالى د خپل پيغمبر ﷺ په ذريعه ټاكلې ده په دې كښې د زمانې، ملك په لحاظ دڅه بدلون، ياكمى زياتى هيڅ امكان نشته،

صحيح خبره داده چه صدقه او زكوة داسلام په ابتدا كښې هم په مكه مكرمه كښې فرض شوې وه څنګه چې د تفسير امام ابن كثير رحمه الله د سورة مزمل د آيت ﴿فَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ﴾ نه استدلال كړې دې (۲) څكه چه داشورت دوحى دشروع كيدو په اوله زمانه كښې نازل شوې دې، په دې كښې مونځ سره دزكوة وركولو حكم هم راغلې دې، البته دحديثو مباركو د روايتونو نه معلوميږى چه داسلام په شروع كښې دزكوة دپاره څه نصاب، ياخاص اندازه ټاكلې شوې نه وه، بلكه دڅه به چه دمسلمان دضرورت نه باقى شو هغه ټول به ئې دالله تعالى په لار كښې وركول، دنصابونو تعين او اندازه دزكوتونو د هجرت نه روستو په مدينه طيبه كښې بيان شويدى، داشان دزكوة اوصدقاتو دوصولولو انتظام، په محكمانه اندازكښې د فتح د مكې نه پس په عمل كښې راغلې دې.

په دې آيت كښې دصحابه كرامو ﷺ اوتابعينو رحمهم الله په اجماع سره دواجبې صدقې د مصرفونو بيان دې چه دمونځ پشان په مسلمانانو باندې فرض دې، ولې چه كوم مصرفونه په دې آيت كښې ټاكلې شويدى هغه دفرضو صدقو مصرفونه دى، دډاګيزو روايتونو په مطابق د نفلى صدقو په باره كښې ډيره فراخى ده چه يواځې [۸] اته مصرفونه ئې نه دى،

اګرچه په پورته آيتونو كښې دصدقاتو لفظ عامو صدقاتو دپاره استعمال شويدې چه پكښې واجب اونفلى صدقات ټول داخل دى، خودې آيت كښې، دامت په اجماع سره دفرض صدقاتو دمصرفونو بيان دې اوپه تفسير قرطبى كښې راغلى دى چه چرته دصدقې لفظ مطلقا راغلې دې او هلته دنفلى صدقې هيڅ قرينه نه وى، نوفرض صدقه به ترمرادوى، (۳)

ددې آيت په اول سر كښې لفظ د [انما] راغلې دې، چه دحصر او انحار دپاره استعماليږى، مطلب ئې دا راووتو چه واجبې صدقې يواځې په هغه مصرفونو كښې خرچ كړې شى كوم چه په دې آيت كښې ټاكلې شويدى، دې نه سوا په بل هيڅ مصرف كښې داواجب صدقات نشى خرچ كولې، مثلا د جهاد تيارى، جماعتونه يامدرسې آبادول يانور دعامو فائدو كارونه كول اګرچه

---

(۱) تفصيل دپاره اوګورئې: سنن ابى داود، كتاب الزكاة، باب فى زكاة السائمة: ج ۱، ص ۲۱۸، وسنن الدارقطنى رقم الحديث: ۲۰۱۰

(۲) تفسير ابن كثير تحت سورة المزمل: ج ۸، ص ۲۵۹

(۳) تفسير القرطبى تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۶۸

ډیر ضروري دي اوثوابونه ئې هم زيات دي خوهغه فرض خيراتونه چه نصابونه او اندازې ئې ټاکلې شويدي په دې مصرفونو کښې نشي لګولې،

ددې آيت دويم لفظ،صدقات،دې چه دصدقې جمع ده،په لغت کښې صدقه ديومال هغه برخې ته وئيلې شي چه دالله تعالی دپاره خرچ کړې شي [قاموس][۱]. امام راغب رحمه الله په ،مفردات القرآن،کښې ليکلي دي چه صدقې ته صدقه ځکه وئيلې شي چه ددې اداکوونکې،ګوياکښې داد عوی کوی چه زه په خپل قول اوفعل کښې دشتونې يم،په دې کښې م هيڅ دنيوی غرض نشته،بلکه دالله تعالی درضاپه خاطرئې کوم.[۲] همدغه وجه ده چه په کومه صدقه کښې نوم نمائش يابل څه دنيوی غرض شامل شی نوقرآن کريم هغې لره په نيشت حساب کړيده،

داصلی معنې په اعتبارسره دصدقې لفظ عام دې،يعنی نفلی اوفرض صدقوټولودپاره استعماليږی، چنانچه فرض صدقې دپاره په قرآن کريم کښې ﴿خُذۡ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ صَدَقَةً﴾ اوپه دې آيت کښې ﴿إِنَّمَا ٱلصَّدَقَٰتُ﴾ اوپه نوروځايونو کښې هم استعمال شويدې،بلکه دقرطبی دتحقيق مطابق کله چه په قرآن کريم کښې لفظ دصدقې راشی اوهلته دنفلی صدقې مراداغستوهيڅ قرينه نه وی نوهم فرض صدقه به ترمرادوی،اودحديثوپه روايتونوکښې دصدقې لفظ دهرنيک کاردپاره استعمال شويدې،لکه حديث شريف کښې راغلی دی چه،يومسلمان سره په رونړ تندی ملاويدل هم صدقه ده،دپيتی خاوندسره پيتې پورته کول هم صدقه ده،خپل ځان دپاره دکوهی نه راوښکلې اوبه بل چاته ورکول هم صدقه ده،[۳] چنانچه په دې احاديثوکښې لفظ د صدقې په عامه معنی کښې مجازا استعمال شويدې،

وريسې دريم لفظ﴿لِلۡفُقَرَآءِ﴾ نه شروع دې،ددې په اول سرکښې لګيدلې لام دتخصيص [خاص کولو] معنی ورکوی،نودټولې جملې معنی به داشی چه ټولې صدقې يوازې ددې خلقوحق دې چه وريسې بيانيږی،[دبل چاحق نه دې] دابيان شوی خلق [۸] اته قسمه دی،

① رومبی مصرف فقراء② دويم مصرف مساکين دې،ددې دواړوپه اصلی معنی کښې اګرچه اختلاف دې چه ديومعنی بيخی نيستمن ده اودبل معنی دومره شتمن ده چه دغه شته [مال] ئې دنصاب اندازې ته نه رسی،ليکن دزکوة اداکولوحکم دواړودپار يوشان دې،هيڅ اختلاف پکښې نشته،مطلب دادې چه داصلی ضروریاتونه زياتی دچامال دنصاب اندازې ته نه رسی نوهغه ته زکوة ورکولې شی،اوزکوة اغستل هم وردپاره روادی،په ضروریاتوکښې د استوګنې مقام،دعام استعمالولوښی، د اغستو جامې او فرنيچروغيره ټول داخل دی، چا سره چه اوه نيمې تولې سره زر،دوه پنځوس نيمې تولې چاندی ياددې قيمت وی،هغه دپاره زکوة اغستل جائزنه دی اونه ورته زکوة ورکول جائزدی،داشان چاسره چه څه قدرې چاندی،څه نغدئيت اولره شان سونا[سره زر] وی نوددې ټولوقيمت که د دوه پنځوس تولوچاندئ قيمت ته رسيدونوداهم دنصاب خاونددې،ده ته زکوة ورکول اوزکوة اغستل ورلره جائزنه دی، څوک چه ديونصاب مالک هم نه وی،مګرروغ،جوړاودګټې وټې کولوجوګه وی اوديوې ورځې دګذارې

---

۱ ) القاموس المحيط: ج ۲، ص ۲۸۳
۲ ) مفردات القرآن للاصفهانی: ج ۱، ص ۲۴۸
۳ ) شعب الإيمان للبيهقی رقم الحديث: ۹۲۸۳

خرچ ورسره موجود وي، ده ته اګرچه زکوة ورکول روادي خوداورله جائزنه دي چه دخلقونه د سوال کوي، په دې کښې ډیرخلق بې پروائی کوي، داسې خلقولره سوال کول حرام دي، که په سوال کولوسره داسې کس څه بیامومي نوهغې ته رسول الله ﷺ دجهنم انګاره [ څروټکه] فرمائیلې ده، [ابوداؤد] په روایت دعلی ﷺ، قرطبي] [1]

حاصل دادې چه دزکوة اغستوحقدارفقیراومسکین [دواړه] دي یعنی مسلمان وي او ورسره دنصاب په اندازه یاددې نه زیات مال داصلي ضروریاتونه زیاتی نه وي البته دوصیت په باره کښې فرق شته دې یعنی که چادمسکینانودپاره وصیت اوکړونومال به ئې کوم قسم غریبانوته ورکولې شی اوکه دفقیرانودپاره ئې وصیت اوکړونودغه مال به ئې کوم قسم غریبانانوته ورکولې شي، چه ددې تفصیلي بیان دلته څه ضرورت نشته، په فقیر او مسکین دواړو مصرفو کښې دا خبره مشترك ده چې چا ته مال د زکوة ورکولې کیږي چې هغه مسلمان وي او د حاجت اصلي څخه زیات د نصاب مالك نه وي .

اګرچه عام صدقات [خیراتونه] غیرمسلموته ورکولې شی لکه رسول الله ﷺ فرمائي: تصدقوا علی أهل الأدیان کلها، [2] یعنی دهرمذهب خاوندته خیرات ورکوئ] خوفرض صدقه [زکوة] صرف مسلمانانوغریبانوته ورکول دي، څکه رسول الله ﷺ کله چه حضرت معاذ ﷺ یمن ته لیږلونوهغه وخت ئې ورته داهدایت کړې ووچه زکوة دې واخې غنیانومسلمانانونه اغستې شی اوهم مسلمانانوغریبانوته دورکولې شي، [3] مطلب داچه زکوة نه سوا، نوره هرقسم صدقه تردې چه صدقه دفطر [سرسایه] هم غیرمسلم فقیر [غریب] ته ورکول روا ادی [هدایه] [4]

اودویم شرط دادې چې پخپله مالك د نصاب نه وي نو ددې څخه پخپله د فقیر او مسکین معنی واضح کیږي . په فقیر او مسکین دواړو کښې دومره خبره مشترکه ده چې دوئ سره په قدر د نصاب مال موجود نه وي . ددې دواړو مصرفونو څخه ورستو د نورو شپږ مصرفونو بیان شویدی چه په هغې کښې رومبې مصرف د عاملین مصرف دي.

دریم مصرف ﴿وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا﴾ دي ، عاملین هغه خلق دي چه اسلامی حکومت د زکوة عشروغیره [خیراتونو] دراغونډولودپاره مقرر کړي وي کوم چه خلقونه خیراتونه وصولوی اوپه بیت المال کښې ئې جمع کوي، نو ددې خلقوټول وخت په دې خدمت کښې تیریږي څکه ددوئ د ضروریاتوذمه دار اسلامی حکومت دې قرآن کریم ددوئ برخه هم د زکوة په مال کښې ددوئ د [حق الخدمت] په ډول مقرر کړیده،

ددې اصلي وجه داده چه الله ﷻ د مسلمانانو څخه د صدقاتو د وصولولو فریضه نیغ په نیغه د نبي کریم ﷺ په حواله کړې ده چې دهغې ذکر هم دې سورت کښې راتلونکی آیت مبارك دی چې [خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً] یعنی د مسلمانانو د مال څخه صدقه وصول کړئی ددې آیت مبارك تفصیلي بیان راروان دې دې ځائې کښې ددې وینا مطلب دادې چې ددې آیت مبارك تر مخه د مسلمانانو په امراء [حاکمانو] باندې دا فریضه لازم کیږي چې هغوئ زکوة او صدقات وصول

[1] ) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۲۲٦، وصحیح مسلم. کتاب الزکاة. باب النهي عن المسئلة: ج ۱، ص ۳۳۳
[2] ) مصنف ابن ابي شیبه رقم الحدیث ۱۰۳۹۸، ونصب الرایة: ج ۲، ص ۳۸٦
[3] ) صحیح مسلم. کتاب الإیمان. باب الدعاء الی الشهادتین الخ: ج ۱، ص ۳٦
[4] ) الهدایة. کتاب الزکاة. فصل في العروض: ج ۱، ص ۱۱۳

کړي ، او دا ښکاره خبره ده چې امراؤ د خپلو کارکنانو د مدد څخه بغیر دا کار نشي کولی. هم ددې کارکنانو او مددکوونکو ذکر په دې مذکوره آیت مبارك کښې په ﴿وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا﴾ الفاظو سره راغلی دی

په دې وجه نبی کریم ﷺ دیر صحابه کرام ﷺ عاملان جوړ کړي وو اود دې کاردپاره ئې مختلفو علاقوته د صدقاتو وصولولو دپاره لیږلی وو ، او ددې مذکوره آیت مبارك د هدایت مطابق یې د زکوة وصول شوی رقم څخه یې هغوئ ته ،حق الخدمت] ورکړیدې. او په هغوئ کښې هغه حضرات هم شامل وو چې مالدار وو. یو حدیث پاك کښې دی چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه صدقه یوغنی اومالداردپاره اخستل حلال نه دی خوپنځو قسمو غنیانودپاره حلال دی،

① هغه مجاهد چه په جهاد کښې مصروف وی اوهلته ورسره دضرورت په اندازه مال نه وی اگرچه په کوریانديې مالداروی،

② دویم دصدقاتوعامل چه دصدقوراغونډولو په کارباندې مقرروی، ③ دریم هغه کس چه هغه سره مال شته خو د موجوده مال څخه زیات قرضداري دې ④ څلورم هغه مالدارچه د صدقې مال د یوغریب نه په قیمت سره واخلی ، ⑤ پنځم هغه مالدار چه یوغریب ورته دصدقې مال په تحفه [ډالۍ] کښې ورکړی،([1])

پاتې شودامسئله چې د زکاة عاملینوته به ددې څخه څومره رقم ورکولې شی،دهغې حکم دادې چه ددوئ دخوارئ اوعمل مطابق دې دوی ته حق الخدمت ورکړې شی[احکام القرآن جصاص، قرطبی]([2])

البته دا ضروری ده چه دعاملینو تنخواګانې د دنیم زکوة نه زیاتې نه وی، که بیت المال ته دومره زکوة وصول شوې وی چه که دهغې نه عاملینوته پوره پوره تنخواګانې ورکړې شی نونیم نه کم پاتې کیږی، په داسې صورت کښې به دهغوئ په تنخواګانو کښې کمې راوستې شی، د نیم څخه زیات رقم به نشی خرج کولې [تفسیر مظهری، ظهیریه]([3])

ددې بیان نه معلومه شوه چه د صدقې کارکنانوته دزکوة دمدنه چه کوم رقم ورکولې شی دادهغوئ خدمت معاوضه ده دصدقې اوزکوة په ډول نشی ورکولې، په دې وجه ددوئ غنی والې اومالداری پکښې خندنه جوړیږی، په دې شان په دې [۸] اتومدونو کښې یواځې دوئ ته زکوة د زکوة په ډول نه، بلکه دخدمت په بدل کښې ورکولې شی حالانکه زکوة یواځې د غریبانو حق دې چه بې بدله به ورکولې شی، اوکه غریبوته دڅه خدمت په بدل کښې زکوة ورکړې شونوزکوة ئې اونشو،

دلته اوس دوه سوالونه داسې پیداکیږی چه ① د زکوة مال به د معاوضې په خدمت کښې څنګه ورکړې شو ② دویم دا چې د مالدار دپاره د زکوة دا مال څنګه حلال شوددې دواړو سوالونو هم یوجواب داسې دې چه د صدقې د عاملینو اصلی حیثیت دې معلوم کړې شی. هغه

---

[1]) سنن ابی داود، کتاب الزکاة، باب من یجوز له اخذ الصدقة ــ الخ: ج۱، ص ۲۳۱
[2]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۸، ص ۱۷۷، وأحکام القرآن للجصاص، تفسیر سورة براءة، فصل فی وجوب الزکاة: ج ۷، ص ۳۰
[3]) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۲۳۷

دا چې دا حضرات د فقیرانو یو قسم وکیلان دي او دې ټولو ته معلوم دي چې د وکیل قبضه د اصل مؤکل د قبضې په حکم کښې وي. که یو کس د خپل قرض وصولولو دپاره یو کس لره وکیل او مختار جوړ کړي، او قرضدار دا قرض وکیل ته حواله کړي، نو څنګه چې د وکیل په قبضه کښې راشي نو د قرضدار ذمه داري پوره شوه. نو کله چې عاملینو د زکوة رقم د فقیرانو دپاره وصول کړو نو دهغوئ زکوة ادا شو. اوس دا ټول رقم د فقیرانو ملکیت دی کوم چې ددوئ وکیلانو وصول کړې شو، اوس چې هغوئ ته کوم رقم د حق الخدمت ورکولې کیږي هغه د مالدارو د طرفه نه دې بلکه د فقیرانو د طرفه دې، او فقیرانو ته په دې کښې د پوره پوره تصرف اختیار دې، ددوئ دا هم حق دې چې کله ددې خلقو څخه کار اخلي نو د خپل رقم څخه هغوئ ته د خدمت معاوضه ورکوي.

اوس سوال دا پیدا کیږي چې فقیرانو خو هغوی خپل واکداران وکیلان نه دی جوړ کړي نو دوی د هغوئ وکیلان څنګه جوړ شو؟ ددې وجه داده چې دیو اسلامي ملك سربراه چې ورته امیر وئیلې کیږي، هغه د الله ﷻ د طرفه قدرتي طور د ټول ملك د فقرانو وکیل وي، څکه چې ددې ټول د ضرورتونو ذمه داري په ده باندې وي، د ملك امیر چې څوك هم د صدقاتو په وصولئ باندې مامور کړي هغه به ددې امیر نائبان وي او ددې فقیرانو وکیلان به وي.

ددې څخه معلومه شوه چې عاملین صدقات ته چې څه ورکړې شو هغه په اصل کښې زکوة نه دې، بلکه زکوة چې د کومو فقیرانو حق دې هغه دې عاملینو ته دخدمت په بدله کښې ورکړې شو، لکه څنګه چې یو غریب فقیر څوك د خپلې مقدمې وکیل جوړ کړي، او د هغه د خدمت بدله ددې حاصل شوی زکوة څخه ورکړې شي، نو دلته خو نه ورکوونکئ د زکوة په طور ورکوي او نه اخستونکئ د زکوة په طور اخلي.

**فائده:** ددې تفصیل څخه معلوم شو چې نن صبا داسلامي ادارو، انجمنونو او مدرسو د مهتمینانو یا ددوئ دارخه چه کوم سفیران د صدقاتو او خیراتونو وصولولو دپاره لیږلې شي نوهغه دغریبانو وکیلان نشي جوړیدې، څکه ورته دعاملینو پشان د زکوة دمدنه تنخواګانې ورکول نه دي پکار، بلکه ضروري دی چه انجمنونه او ادارې ورته دخپله ارخه دنورومدونو نه تنخواګانې ورکوي، ولې چه دغه سفیران وغیره په حقیقت کښې د زکوة اداکوونکو نمائندګان او وکیلان داسې دی چه زکوة ددې حقدارانو ته د ورکولو اختیار ورکړې شوې دې هم په دې وجه د هغوئ د قبضه کولو نه پس هم زکوة تر هغې پورې نه ادا کیږي چې تر څو چې دا حضرات هغه په مصرف باندې خرچ نه کړي.

د فقیرانو دوکیل نه کیدل خکه ښکاره کړی چې په حقیقي معنو کښې یو فقیر دې خپل وکیل نه وو جوړ کړې، او د امیر المؤمنین د طرفه دوئ د فقیرانو وکیل جوړیدې شی، خو هغه هم نشته دې، هرکله چه سفیر ته دا هیڅ حیثیت حاصل نه دې نو ددوئ وصول کړې زکوة به داسې ګڼرلې شی چه د زکوة اداکوونکو په قبضه کښې لاتر اوسه پورې دې.(۱)

(۱) دا د مصنف قدس الله سره اولنۍ رائے وه بعد کښې تر دېنه مصنف رجوع رکړی وه، چه د دې تفصیل او تحقیق: امداد المفتین (کتاب المتفرقات، رساله اماطة الشکوک في الحیلة الزكاة بالتملیک: ص ۸۸۳ تا ۸۹۱) کښې موجود دے۔

په دې معامله کښې ډېرې بې پروائي کولې شي، ډېرې ادارې وصول کړې زکوة په کلونو ځان سره ایږدي، او زکوة اداکوونکي داګڼي چه زمونږ زکوة اداشو حالانکه د دوئ زکوة به هله اداکیږي چه په خپل مصرف کښې اولګولې شي،

دغه شان ډېرې ادارې خپلو سفیرانو له عاملین ګڼړي او د زکوة د مد څخه تنخواګانې ورکوي، دا ډېرزیات بدیت لري، او ناروا هم دي.

**یو اهم سوال، په عبادت باندې اجرت اخستل:** دلته یو سوال دا راپورته کیږي چه د قرآن مجید د اشارو او د رسول الله ﷺ داحادیثونه په ډاګه داخبره ثابته شوه چه په عبادت باندې اجرت او معاوضه اغستل حرام دي، د مسند احمد په حدیث کښې په روایت د عبد الرحمن بن شبل منقول دي چه رسول الله ﷺ او فرمائیل: إقراء والقرآن ولا تأکلوا به،(1) [قرآن لولئ خو د خوراک ذریعه ئې مه جوړئ] ځنې روایتونو کښې هغې معاوضې ته د جهنم ټوټه وئیلې شوې ده چه په قرآن کریم باندې واغستې شي،(2) په دې بِنا دامت فقها په دې متفق دي چه په عبادتونو باندې اجرت اغستل ناروا دي، او دا ښکاره خبره ده چه د صدقاتو وصولولو کار یو دیني خدمت او عبادت دې چه رسول الله ﷺ ورته یو قسم جهاد وئیلې دي(3) ځکه پر اجرت اغستل حرام ایدل پکار وو، خو دا آیت ښائي چه جائز بلکه د زکوة د لګولو په اتو ځایونو کښې ئې یو ځائ ګرځولې دې،

امام قرطبي ﷫ په خپل تفسیر کښې لیکلي دي چه په هغه عبادتونو باندې اجرت مطلقا حرام دي کوم چه فرض قطعي یا عین واجب وي لیکن د دې آیت له مخې په فرض کفایه عبادت باندې معاوضه اغستل جائز دي،(4) فرض کفایه دې ته وائي چه په ټول امت یا په ټوله علاقه ښار فرض کړې شوي وي لیکن په ټولو باندې ئې اداکول لازم نه دي که ځنې خلق ئې اداکړي نو د ټولو غاړه خلاصه شي، که هیڅوک ئې ادانکړي نو ټول به ګناهګاروي،

امام قرطبي ﷫ فرمائیلي دي چه په امامت او خطابت باندې معاوضه اغستل ځکه جائز ثابتیږي چه دا قطعي واجب نه بلکه کفائي واجب دي [انتهی](5) همدغه حال د قرآن وحدیث او د نورو ديني علومو د تعلیم ځکه دې چه دا د ټول امت په ذمه فرض کفایه دې بعضې مسلمانان ئې چه اوکړي نو د ټولو غاړه پرخلاصه شي په دې وجه پرمعاوضه او تنخواه اغستل هم جائز دي،

د زکوة د لګښت څلورم ځائ، مؤلفة القلوب، دي، دا هغه خلق دي چه د دوئ د زړه ساتنې د پاره به ورته صدقې ورکولې شوې په عامه توګه دا بیانولې شي چه په دوئ کښې درې څلور قسمه خلق شامل وو چه څه پکښې مسلمانان وو او څه پکښې غیرمسلم وو، بیا په مسلمانانو کښې ځنې هغه خلق وو چه غریب حاجتمن هم وو او نوي مسلمانان شوي وو د دوئ زړه به په دې غرض ساتلې شو چه په اسلام باندې پاخه شي او ځنې په دوئ کښې مالدار هم وو چه مسلمانان شوي وو خو ایمان ئې په زړونو کښې ورننوتې نه وو، ځنې خلق داسې هم وو چه مسلمانان شوي لا نه وو خو د دوئ د شر نه به د ځان ساتلو په غرض د دوئ زړونه ساتلې شو، بعضې داسې خلق په

---

1) مسند أحمد رقم الحديث: ۱۳۹۸۶
2) كنز العمال رقم الحديث: ۲۸۶۸
3) سنن ابي داود، كتاب الخراج والامارة والفئ، باب في السعاية على الصدقة: ج ۲، ص ۲۰۷
4) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۱۷۸
5) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۱۷۸

تجربې سره معلوم شوی وو چه تبليغ او تعليم پرهيڅ اثر نه کولو په جنګ او سختۍ کولو سره هم سميد و نکی نه وو، احسان کولو او ښه سلوک کولو سره سميدلې شو، رحمة للعالمين ﷺ په دې پوهيدلو چه د الله تعالى مخلوق د کفر د تيرونه را وباسي او د ايمان نور ته ئې راولی، دې د پاره هغوئ ﷺ هر جائز انتظام کولو کوم به چه په دغه خلقو اثر کولو، دا ټول قسمونه به په عامه توګه په [مؤلفة القلوب] کښې داخل ګنړلې شو، کوم چه په آيت کښې د زکوة د لګښت ځلورم ځائ ګرځولې شويدې،

د [مؤلفة القلوب] ټولو قسمونو ته به د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې، ديو خاص علت مصلحت او مقصد د پاره صدقات ورکولې شو چه بيان ئې په تفصيل سره اوکړې شو، نو د هغوئ ﷺ د وفات نه پس هر کله چه اسلام ته مادی قوت هم حاصل شو، د کفار و د شر نه د بچ کيدو ياد نوؤ مسلمانانو په اسلام باندې د مضبوطولو د دغې تدبير و نو ضرورت هم پاتې نشو نو دغه علت او مصلحت ختم شو، ځکه د دوئ برخه هم ختمه شوه، چه ځنې فقهاؤ رحمهم الله ورته منسوخ وئيل دی، لکه چه فاروق اعظم رضی الله عنه حسن بصری رحمه الله شعبی رحمه الله ابی حنيفه رحمه الله مالک بن انس ته ئې چه نسبت شويدې،

ځنې حضرات د [مؤلفة القلوب] برخه اوس هم منسوخه نه بولی بلکه د صديق اکبر رضی الله عنه او فاروق اعظم رضی الله عنه په زمانه کښې د دې د ساقطولو مطلب دا دې چه د ضرورت نه پاتې کيدو په وجې سره د دوئ برخه بنده کړې شوه، که بيا ضرورت پيښ شی نو دا برخه ورکيدې شی، ځنګه چه دا د امام زهری رحمه الله قاضی عبد الوهاب رحمه الله ابن عربی رحمه الله امام شافعی رحمه الله او امام احمد مذهب دې، ليکن تحقيقی او صحيح خبره دا ده چه غير مسلمو ته د صدقاتو وغيره نه کله هم په هيڅ زمانه کښې برخه نه وه ورکړې شوې او نه هغوئ په [مؤلفة القلوب] کښې داخل دی کوم چه د صدقاتو د لګښت ځائ ګرځولې شويدی،

امام قرطبی رحمه الله په خپل تفسير کښې د هغې ټولو خلقونو مونه په تفصيل سره شمير کړيدی د کومو د زړونو ساتلو د پاره چه ورته رسول الله ﷺ د صدقاتو د مد نه برخه ورکړيده او د دې ټولو د شميرلو نه پس ئې فرمائيلی دی:

[وبالجملة فكلهم مؤمن ولم يكن فيهم كافر، مطلب دا چه، مؤلفة القلوب، ټول د خيرمې مسلمانان وو هيڅ قسم کافران پکښې شامل نه وو، (١)

دغه شان تفسير مظهری کښې راغلی دی، لم يثبت أن النبي صلى الله عليه وسلم أعطى أحدا من الكفار للايلاف شيئا من الزكوة، يعنی دا خبره د هيڅ روايت نه نه ده ثابته شوې چه رسول الله ﷺ د چا کافر د زړه ساتنې د پاره هغه ته د زکوة نه څه برخه ورکړې وی، (٢) د دې تائيد، د کشاف د دې خبرې نه هم کيږی چه د زکوة د لګښت د [٨] اته ځايونه د هغه کفارو او منافقانو د اعتراض په جواب کښې په ګنه کړې شويدی چه وئيل به ئې چه مونږ ته ولې په زکوة کښې برخه نشی راکولی، د دې نه مقصد دا ښودل وو چه کافر په مال د صدقو کښې هيڅ حق نه لری، (٣) که په، مؤلفة القلوب، کښې کافر هم داخل وې نو د دې جواب ورکولو ضرورت نه وو،

(١) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ٨، ص ١٧٨ نه ١٨١ پورې
(٢) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ٤، ص ٢٣٥
(٣) الكشاف تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٢٤٨

تفسیر مظهري هغه مغالطه هم ښه په ډاګه کړیده کومه چه د حدیثو د بعضو روایتونو نه د خلقو رامخې ته شویده، هغه دا سې چه رسول الله ﷺ صفوان بن امیه ته هغه وخت څه عطیات ورکړي وو کله چه لا مسلمان شوي نه وو خنګه چه د صحیح مسلم او ترمذي په روایتونو کښې راغلي دي،(۱) په دې باره کښې ئې د امام نووي په حواله سره لیکلي دي چه دا عطیات د زکوة د مال نه نه وو، بلکه د غزوة حنین د غنیمت د هغې پنځمې برخې نه ورکړې شوي وو کومه چه بیت المال کښې داخله شوې وه، چنانچه د بیت المال د دغې مدنه مسلم او غیر مسلم دواړو باندې خرچ کول، په اتفاق د فقهاؤ سره روا دي، بیائې او فرمائیل چه امام بیهقي رحمه الله، ابن سید الناس رحمه الله امام ابن کثیر رحمه الله وغیره هم تولو وئیلي دي چه دغه ورکړه د زکوة د مال نه نه وه بلکه د غنیمت د پنځمې برخې نه وه.(۲)

**یوه لویه فائده:** دې نه دا هم معلومه شوه چه پخپله د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې د صدقو مالونه به اګرچه په بیت المال کښې جمع کولې شو خو حساب ئې بیخي بیل وو، او د بیت المال د نورو مدونو حساب به بیل وو لکه د غنیمت د مال د پنځمې برخې یادګانو د پنځمې برخې، دغه شان د هریو د لګښت ځائ به هم جدا وو، خنګه چه فقهاؤ حضراتو په ډاګه د دې بیان کړیدې چه د اسلامي حکومت په بیت المال کښې څلور مدونه بیل بیل لرل پکار دي دې باره کښې اصل حکم دا دې چه یو اخې خساب بیل بیل ساتل نه دي بلکه د هریو مد بیت المال هم خان خاله څکه پکار دي چه پوره پوره احتیاط او کړې شي، البته که څه وخت په یو خاص مد کښې کمي وي نو د بل مدنه د قرض په ډول خرچ کولې شي، د بیت المال دغه مدونه دا دي:

① اول خمس د غنائم، دا هغه مال دې چه د کفارو سره په جنګ کښې تر لاسه کړې شوي وي، د دغې مال څلور برخې په مجاهدینو کښې دویشلو نه پس پاتې پنځمه برخه د بیت المال حق جوړیږي، دغه شان د مختلف قسم قدرتي کانونو نه حاصل شوي څیزونه هم پنځمه برخه د بیت المال حق دي، چه، ② خمس معادن، ورته وئیلې شي، او ③ دریم خمس رکاز، د پخوانو ښخو کړو خزانو نه برآمد شوي مال کښې هم پنځمه برخه د بیت المال حق ګیږي، د دې درې واړو مد په بیت المال کښې هم یو دې.

② د بیت المال دویم مد د صدقاتو او خیراتونو دي، چه د مسلمانانو نه حاصل کړې زکوة، صدقه فطر [سر سایه] او د زمکو د فصل عشر وغیره داخل دي.

③ دریم مد د خراج او د مال فئی دې، دا هغه مال دې چه د غیر مسلمو د زمکو نه حاصل شوې خراج، د دوئ نه حاصله شوې جزیه، د دوئ نه حاصل شوي تجارتي ټیکسونه او هغه ټول مالونه داخل دي چه د غیر مسلمونه په رضا، صلاح حاصل کړې شوي وي.

[څلورم مد د ضوائع دې، چه لاوارث مال، د لاوارث بنده میراث وغیره پکښې داخل دي د دې څلورم مد ونو د لګښت ځایونه [مصرفونه] اګرچه بیل بیل دي خو په دې ټولو کښې د فقیرانو او مسکینانو حق اینبوي شوې دې، د دې نه اندازه لګیدې شي چه په اسلامي حکومت کښې د دې

(۱) صحیح مسلم، کتاب الفضائل، باب في سخاوته صلى الله عليه وسلم الخ: ج ۱، ص ۲۵۳، وجامع الترمذي، أبواب الزكاة، باب ما جاء في اعطائه ـــــ الخ: ج ۱، ص ۸۳
(۲) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۲۳۵، ۲۳۶

کمزورو خلقو د قوي کولو څومره خيال ساتلې شوې دې چه په حقيقت کښې د اسلامي حکومت يو خصوصي نشاني ده، ځکه چه د دنيا په عام و نظامونو کښې هم يو ه خاص طبقه ترقي کوي، غريبو خلقو ته په خپلو خپو د او دريدو موقعه نشي ورکولې ځکه خو د دې په نتيجه کښې اشتراک او کميونزم راپيدا شو چه د فطرت خلاف د اسې يو نظام دې چه مثال ئې د اسې جوړيږي،
دباران نه تښتيدم د ناوے لاندې مې شپه شوه، او د انساني اخلاقو د پاره زهر قاتل جوړيږي،
خلاصه دا شوه چه په اسلامي حکومت کښې څلور بيت المالونه بيل بيل د څلورو مدونو د پاره تاکلې شويدی، په دې څلورو واړو کښې د فقيرانو او مسکينانو حقونه ايښودې شويدی، په دې کښې د دريؤ رومبو مدونو مصارف [د لګښت ځايونه] پخپله په تفصيل سره قرآن کريم تاکلی دی چه په دې شان دی، ① د رومبی مد [د خمس غنائم] مصارف په سورت انفال کښې د لسمې سپارې په اول سر کښې بيان شويدی، ② د دويم مد [يعنې د صدقاتو] مصارف [د لګښت ځايونه] د سورت توبه په دې شپيتم آيت کښې بيان شويدی چه اوس پرتفصيلي بحث لګيا دې کيږي، ③ دريم مد د هغه مال دې چه په اصطلاح کښې ورته مال فئي وئيلې شي، د دې بيان په سورت حشر کښې په تفصيل سره راغلې دې او د اسلامي حکومت اکثر مدونه لګه فوځي اخراجات او د حکومت د نوکرانو تنخواګانې وغيره، هم د دې مد نه پوره کولې شي، ④ څلورم مد [يعنې لاوارثه مال] د رسول الله ﷺ د هغه اياتو او د خلفائي راشدينو د عملي کاروايانو مطابق شلو، ګډو او لاوارثه ماشومانو د پاره مخصوص دې [شامي، کتاب الزكوة] (¹)
د کلام خلاصه دا ده چه فقهاؤ د بيت المال د څلورو واړو مدونو په بيلو بيلو ځايونو کښې د لګښت چه کوم هدايتونه ورکړيدی دا ټول د قرآن کريم، د رسول الله ﷺ نه او د خلفائې راشدينو د کاروايانو نه په ډاګه ثابت دی.
د دې ضمني فائدې نه پس بياد ،مؤلفة القلوب، په اصلي مسئله باندې خان پوه کړئ، چه په تيرشوې بيان کښې د تحقيق کوونکو محدثينو او د فقهاؤ د دا ګيز و خبرونه دا ثابت شويدی چه، مؤلفة القلوب، برخه چرې هم، کافرته نه ده ورکړې شوې، نه د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې، نه د خلفائ راشدينو رحمهم الله په زمانه کښې. کوم و غير مسلمو ته چه څه ورکول ثابت دی هغه د صدقاتو [خيراتونو] او زکوة د مد نه نه دی ورکړې شوی بلکه د غنيمت د خمس نه ورکړې شويدی، ځکه چه د دې مد نه هر قسم حاجتمند ته ورکولې شی چه مسلم او غير مسلم دواړه پکښې برابردی، په دې بنابه، مؤلفة القلوب، يو اخې مسلمان ګيدې شی البته په دې باندې د ټول امت اتفاق دې چه د فقيرانو غير مسلمو برخه په خپل ځائ هم هغه شان پاتې ده د اختلاف صورت هله راپيدا کيږي کله چه د وئ غنيان، د نصاب خاوندان وی، چنانچه امام شافعی رحمه الله امام احمد رحمه الله فرمائی چه په مؤلفة القلوب کښې غنيان او د نصاب خاوندان غير مسلم هم داخل دی ځکه چه د دوئ په نزد، د زکوة په ټولو مصرفونو کښې [د لګښت په ځايونو] کښې فقيری او حاجتمندی شرط نه ده، ليکن د امام اعظم ابی حنيفه رحمه الله او د امام مالک رحمه الله په نزد د عاملين صدقه [د صدقاتو] خيراتونو په محکمه کښې د کار کوونکو] نه علاوه نورو ټولو مصرفونو د پاره فقيری او حاجتمندی شرط ده، په دې بناد [مؤلفة القلوب، برخه هم غير مسلمو ته په دې شرط ورکولې

¹) الشامية، كتاب الزكاة، باب قبول المصرف، مطلب في بيان بيوت المال ومصارفها: ج ۲، ص ۳۳۲

شي چه هغوئ فقیران او حاجت مندد ی، لکه غارمین، رقاب، ابن سبیل وغیره تولوته چه په دې شرط زکوة ورکولې شي چه دوئ په دغه موقعه حاجتمندوی اګرچه په خپل کور کلي باندې مالداروی،

ددې تحقیق نتیجه دا راؤوته چه د ، مؤلفة القلوب، برخه دڅلوروواړو امامانو په نزد منسوخ نه ده، البته څیني امامان پکښې دمصرف د الګښت دخاځ دفقیرۍ او حاجتمندۍ شرط لګوی او څوک ئې نه لګوی [تفسیر مظهری] (۱)

تردې پورې دصدقاتو اتو په مصرفونو کښې د څلورو مصرفونو بیان شو دې. ددې څلورو تقسیمونو حقوق تر حر لام لاندې راؤړلې شوی دی [﴿لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ﴾ په اول سرباندې لام داخل کړې شویدې او نوردې لاندې [یعنی په دې بناعطف] راؤړې شویدی، یعنی العالمین او مؤلفه القلوب وروسته څلور مصرفونه په ،فی، راؤړلو سره یاد [فی] لاندې بیان کړې شویدی لکه ﴿وَفِي الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ﴾ په تفسیر کشاف کښې زمخشری ددې وجه دا بیان کړیده چه په دې سره دا اشاره کول دی چه دا آخری څلور د څلورو رومبنو په نسبت زیات مستحق دی، ولې چه ،فی، دظرفیت دپاره استعمالولې شي او په دې بنا ،ئې معنی دا راوؤخی چه صدقات [خیراتونه] ددې خلقو کښې دننه کیښودلې شي، څکه چه د زیاتې ضرورتمندۍ له کبله دوئ زیات حقدار دی، چنانچه دعامو فقیرانو په نسبت غلام انسان په زیات تکلیف کښې وی، دغه شان قرضه دارېنده ته زیات تکلیف څکه وی چه قرضخواهان ترقرض غواړی دخپلو ضروریاتونه علاوه ورسره بل فکر د قرضخواهانو هم وی،

په دې روستو څلورو کښې دټولونه وړاند [فی الرقاب] راؤړې شویدې، رقاب د رَقَبَةٌ جمع ده ددې معنی ګردن [څټ] ده، په عرف کښې رقبه هغه انسان ته وئیلې شی چه څټ ئې دچا غلامۍ کښې ګیروی،

دلته د رقاب نه په مراد اغستلو کښې دفقهاؤ اختلاف دې، جمهور فقهاء او محدثین تر هغه غلامان مراد اخلی چه مالکانو ورته څه مال مقرر کړې وی چه دهغې په برابرولو سره به ئې آزادوی کوم ته چه دقرآن او سنت په اصطلاح کښې مکاتب وئیلې شي، داسې غلام ته دهغه مالک، دا اجازت ورکړی چه دتجارت یا د خوارۍ مزدورۍ په ذریعه د مال ګټی او مالک ته د ئې ورکوی، نو په آیت کښې به د رقاب نه مراد داشی چې داسې کس د زکوٰة دمدنه په برخې ورکولو سره دهغه په آزادولو کښې امداد کولې شی،

په دې صورت کښې خود ټولو مفسرینو او فقهاؤ اتفاق دې چه د زکوة نه په برخې ورکولو سره دهغه د آزادولو انتظام کولې شی البته په هغه صورت کښې اختلاف دې چه غلامان د آزادولو په غرض د زکوة په مال باندې خرید کولې شی یا دیو غلام مالک ته د زکوة د مال په ورکولو سره دهغه د آزادولو په وعده تراغستې شي؟ چنانچه جمهور امامان رحمه الله ابو حنیفه رحمه الله شافعی رحمه الله احمد بن حنبل رحمه الله وغیره داسې کول جائز نه بولی، او دیو روایت له مخه امام مالک رحمه الله هم په دې کښې د جمهور وملګرې دې او ﴿وَفِي الرِّقَابِ﴾ نه خاص مکاتب غلامان مراد اخلی، دیو بل روایت له مخه امام مالک رحمه الله د ﴿وَفِي الرِّقَابِ﴾ نه مراد د غلامانو آزادولو ټول صورتونه اخلی چه

---

(۱) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۲۳۵

جائز نې بولی، [احکام القرآن ابن عربي مالكي][1]

جمهور امامان او فقهاء دا صورت ځکه روانه بولی چه دې کښې فقهی اشکال دادې چه د زکوة په مال سره دا غستلی شوی غلام په آزادولو باندې د صدقې اطلاق ځکه نشی کیدې چې صدقه هغه مال ته وئیلې شی چې یو مستحق ته بغیر د څه معاوضې ورکړې شی، مالک د زکوة مستحق نه دې کوم چه د دغه غلام قیمت وصول کړو اونه بې بدله شو، د زکوة مستحق خو غلام وو چه ورته زکوة ورنکړې شو، دا بیله خبره ده چه د دغې رقم فائده هم غلام ته اورسیده چه د آزادید و صورت ئې جوړ شو خو آزادول ئې د صدقې [زکوة] په تعریف کښې نه راځی، دلته حقیقی معنی پریښول او بې ضرورته مجازی معنی د صدقې اغستل [یعنی د غلام آزادول] څه جواز نه لری ولې چه په هر آیت کښې هم د صدقو مصرفونه بیانولې شی، نو د ﴿وَفِي الرِّقَابِ﴾ اطلاق به په داسې خیز نشی کیدې په کوم باندې چه د صدقې تعریف نشی صادقیدې. که دا رقم پخپله غلام ته ورکړې شی بیا هم د هغه ځکه نشی کیدې چه د غلام هیڅ ملك نه وی، هغه په خپله د مالك مال جوړیږی، بیا آزادول اونه آزادول ئې هم د هغه په اختیار کښې نه پاتې کیږی. هر کله چه دا فقهی اشکال راپورته کیدو ځکه جمهورو امامانو او فقهاؤ فرمائیلی دی چه د ﴿وَفِي الرِّقَابِ﴾ نه مراد یواځې مکاتب غلام دې، دې نه دا هم معلومه شوه چه د صدقې دا داکولو د پاره شرط دادې چه دیو مستحق په قبضه کښې راوستو سره ئې هغه مالك جوړ کړې شی، ورنه زکوة به نه اداکیږی،

شپږم مصرف [د لگښت ځای] ﴿الْغَارِمِينَ﴾ دې، داد، غارم، جمع ده، معنی ئې قرضدار ده، داروميې وئیلې شوی وو چه پنځم او شپږم مصرف چه په حرف د ،في، سره بیان شوي دی، داد وړاندینو څلورو مصرفونو نه زیاته حقداری لری، په دې بناء د غلام د آزادولو د پاره ورکول یاد قرض د خلاصولو د پاره ورکول عامو فقیرانو او مسکینانو ته د ورکولو نه زیات غوره دی خو شرط دادې چه د قرضدار سره دومره مال نه وی چه په هغې سره قرض اداکړې شی ځکه چه ،غارم، په لغت کښې هم د غسې قضدار ته وئیلې شی او څنې فقهاؤ او امامانو دا شرط هم لگولې دې چه دغه قرض ئې څه ناجائز کار د پاره نه وی اغستې او که د څه گناه د پاره ئې قرض اغستې وولکه شرابو وغیره یا د غم ښادئ د ناجائز ورسمونو وغیره د پاره، نو داسې قرضدار ته به د زکوة د مدنه نشی ورکولې ځکه چه په گناه او اسراف کښې ئې بې ځایه ملاتړ اونشی،

اوم مصرف [د لگښت ځای] ﴿فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ دې، دلته بیا په اول سر کښې ،في، راوړې شو، تفسیر کشاف د دې ،في، بیا راوړلو وجه دا بیان کړې ده چه دې سره دا اشاره کول منظور دی چه دا مصرف د تېرو مصرفونو نه زیات غوره[2] ځکه دې چه دې کښې دوه فائدې دی، یو د خوار، غریب امداد کول دی او بل یو دینی خدمت کښې لاس کول دی،

ځکه چې د [﴿فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ نه هغه غازی او مجاهد مراد دې چه وسلې او د جنگ ضروری سامان اغستو [خرید کولو] د پاره ورسره مال نه وی، یا هغه کس مراد دې چه یو خل ئې په ذمه حج فرض شوی وی خو ورسره اوس دومره مال نه وی پاتې شوې چه دغه فرض شوې حج پر اوس اداکړې شی، دا دواړه کارونه خالص دینی خدمت او عبادت دې، نو په دې کښې د زکوة مال لگول د

---

[1] ) أحكام القرآن لابن العربي لتفسير سورة التوبة: ج ۲، ص ۳۳۱
[2] ) تفسير الكشاف تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۳۸

Scanned with Ca

يو غريب مسكين امداد كول هم دي او په عبادت اداكولو كښې امداد كول هم دي، دغه شان فقهاؤ ديني طالب علمان هم په دې كښې شامل كړيدي چه په دوئ باندې لګول هم په عبادت باندې لګول دي [روح په حواله د مظهري] (۱)

او صاحب د بدائع فرمائيلي دي چه هر هغه څوک چې يو نيک کار يا عبادت کول غواړي او د هغې په اداکولو کښې د مال ضرورت وي هغه هم په ،في سبيل الله، کښې داخل دې، خو شرط دادې چه دومره ورسره نه وي چه په هغې سره دغه کار پوره کولې شي، (۲) لکه ديني تعليم او تبليغ او ددې خورول او عام کول که څوک د زکوة مستحق دا کار کول غواړي نو د هغه امداد د زکوة د مال نه کولې شي خو دغسې يو مالدار او د نصاب خاوند ته به نشي ورکولې،

دې تفصيل نه معلوم شو چه کوم کوم صورتونه د ،في سبيل الله، جوړيدې شي په هغې ټولو کښې به د فقيرئ او حاجتمندئ د شرط خيال ساتلې شي، يو مالدار د نصاب خاوند ته به په دې مد کښې هم برخه نشي ورکولې سوا ددې څخه چه دده موجوده مال ئې دغه ضرورت نشي پوره کولې کوم چه د جهاد او يا د حج په سلسله کښې ورته راپيښ دې، نو اګرچه د نصاب په اندازه ورسره د مال د موجودګئ په وجه ورته غني وئيلې شي لکه په يو حديث کښې چه ورته غني وئيلې شويدې مګر په دې لحاظ سره فقير او حاجتمند حسابيږي چه موجوده مال ئې ضرورت نشي پوره کولې، په فتح القدير کښې شيخ ابن همام رحمه الله فرمائيلي دي چه د صدقاتو په آيت کښې چه څومره مصرفونه بيان کړې شويدي په هغې کښې د هر يو مصرف الفاظ په دې دلالت کوي چه هغه د فقيرئ او حاجتمندئ له کبله مستحق دي (۳) چنانچه د فقير او مسکين په لفظ کښې خو د ښکاره دي، درقاب، غارمين في سبيل الله او ابن سبيل الفاظ هم دې ته اشاره کوي چه دا قسم خلق د حاجتمندئ په بنا د دې مستحق جوړيږي، البته عاملينو ته د خدمت په عوضانه کښې ورکولې شي، څکه پکښې غني او فقير برابر دي لکه د غارمين په مصرف کښې بيان کړې شويدي چه د چا په ذمه چه لس زره روپئ قرض دي او پنځه زره روپئ ورسره موجود دي نو هغه ته د پنځو زرو روپو په اندازه زکوة ورکولې شي چه دده سره موجود مال د قرضدارئ له کبله په نيشت حسابيږي،

**خبرداری:** د ،في سبيل الله، د لفظ معنى ډيره عامه داسې ده چه دې کښې ټول هغه کارونه داخل دي کوم چه د الله تعالى د رضا د پاره کولې شي، کوم خلق چه د قرآن تفسير، د دې بيان او د تفسير د امامانو ارشادات په لحاظ کښې نه ساتي او خالص د قرآن کريم لفظي ترجمه په خپل خيال کښې کافي ګنړي داسې خلق د لته په [سبيل الله] کښې سخته غلطي داسې کوي چه ټول هغه کارونه د زکوة په مصرف کښې داخلوي چه په څه حيثيت سره نيکي يا عبادت وي مثلا جوماتونه، مدرسې، شفاخانې، مسافرخانې وغيره آبادول، کوهې، پلونه او سرکونه جوړول او د هغه رفاهي ادارو د ملازمينو تنخواګانې او ټول دفتري ضروريات ټول په في سبيل الله کښې داخلولو سره د زکوة مصرف حسابوي چه بيخي غلط او د اجماع امت نه خلاف دي، صحابه کرام رضي الله عنهم چا چه قرآن کريم نيغ په نيغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه لوستې دې او څان ئې پرې پوه کړيدې د هغوئ رضي الله عنهم او د

(۱) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۲۷۱

(۲) بدائع الصنائع، كتاب الزكاة، فصل وأما الذي ترجع الى المؤدى اليه الخ: ج ۲، ص ۴۵

(۳) تفصيل دپاره اوګورئ: فتح القدير، كتاب الزكاة، باب من يجوز دفع الصدقة اليه ومن لا يجوز: ج ۲، ص ۲۶۱ تا ۲۷

تابعینو امامانو ﷭ څومره تفسیرونه چه ددې لفظ په باره کښې منقول دی په هغې ټولو کښې د الفظ [دفی سبیل الله] دحاجیانو او مجاهدینو د پاره مخصوص ګرځولې شویدې،

په یو حدیث کښې راغلی دی چه یو سړی یو اوښ،فی سبیل الله،وقف کړې وو ،رسول الله ﷺ هغه ته او فرمائیل چه دا اوښ دحاجیانو د سفر د پاره استعمالوه [مبسوط سرخسی ص ۱۰ ج ۳]

امام ابن جریر،ابن کثیر چه دقرآن کریم تفسیر په پابندئ سره دحدیث په روایتونو سره کوی دې ټولو د ،فی سبیل الله،مصرف داسې مجاهدینو او حاجیانو د پاره مخصوص کړیدې چه ورسره دجهاد یا حج سامان نه وی،([1]) او کومو فقهاؤ چه دینی طالب علمان یا نور نیک کار کوونکی په دې کښې شامل کړیدی نو شرط ئې ورسره دا ایښې دې چه دوئ فقیران او حاجتمن وی لیکن دا ښکاره خبره ده چې ددې څه ضرورت څکه نشته چه فقیران او حاجتمن خلق هسې هم په دا که باندې دزکوة رومبنی مصرفونه ګرځولې شویدی که دوئ فی سبیل الله کښې نه وی شامل کړې شوی بیا هم د زکوة مستحق وو البته په څلور وارو امامانو کښې یو هم درفاه عام اداري، جوماتونه او مدرسې آبادول او ددې ټول ضروریات دزکوة په مصرف کښې داخل نه دی منلی بلکه په دا که ئې فرمائیلی دی چه دزکوة مال په دې څیزونو کښې خرچ کول جائز نه دی، دحنفی فقهاؤ څنې شمس الائمه سرخسی ﷫ په مبسوط ([2]) او په شرح سیر ([3]) کښې او دشافعی ﷫ فقهاؤ څنې ابو عبید ﷫ په کتاب الاموال کښې،او دمالکی فقهاؤ څنې دردیر ﷫ په شرح مختصر خلیل ([4]) کښې او دحنبلی فقهاؤ څنې مؤفق ﷫ په مغنی کښې دې لره په پوره تفصیل سره لیکلی دی،

دتفسیر امامانو او دامت فقهاؤ ددغې بیان شوؤ دا ګیزو خبرونه علاوه که په یوه خبره هم غور او کړې شی نو په دې مسئله باندې ځان پوهولو د پاره بیخی کافی ده هغه دا چه که دزکوة په مسئله کښې دومره عموم وې چه په ټولو عبادتونو او په هر قسم نیکیانو کښې خرچ کول پکښې هم داخل وې نو بیا په قرآن کریم کښې د اتو مصرفونو بیان [معاذالله] بې مطلبه دې ، او د رسول کریم ﷺ هغه ارشاد دکوم لـه مخه ئې چه داسې او فرمائیل: الله تعالى دصدقاتو د مصرفونو ټاکل هم پیغمبر ﷺ ته او نه سپارل بلکه پخپله ئې ددې [۸] اته مصرفونه او ټاکل.([5])

که د ،فی سبیل الله،په مفهوم کښې ټول عبادتونه او نیکئ داخلې وې چه په هر یو کښې دزکوة مال خرچ کیدې شوې نو معاذ الله دا ارشاد نبوی ﷺ به بالکل غلط وو ،دې بیان نه ثابته شوه چه د ،فی سبیل الله،لغوی ترجمې نه چه نا واقفو خلقو ته کوم مطلب په خیال کښې راځی، هغه دالله تعالى مراد نه دې بلکه ددې مراد یو اځې هغه کیدې شی چه رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷡ او تابعینو بیان کړیدې،

اتم مصرف،ابن سبیل،دی،دسبیل معنی لاره ده،ابن په اصل کښې دځوئ معنی ورکوی لیکن په عربی محاورو کښې ابن،اب،او اخ،وغیره دهغه څیزونو د پاره هم استعمالولې شی چه

---

[1]) مزید تفصیل دپاره اوګورئ: تفسیر الطبری رقم الحدیث: ۱۶۸۶۲ تا ۱۶۸۶۸ و تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۳۶۶

[2]) مبسوط: ج ۲، ص ۲۰۲

[3]) شرح سیر: ج ۴، ص ۲۴۴

[4]) شرح مختصر الخلیل: ج ۱، ص ۲۶۱

[5]) سنن ابي داود، کتاب الزکاة، باب من یعطی من الصدقة الخ: ج ۱، ص ۲۳۹

Scanned with Ca

په د ځیزسره ئې ژور تعلق وی، د دې محاورې مطابق، ابن سبیل، لاروی او مسافر ته څکه ونیلې شی چه د ده زیات تعلق لارې مزل غوځولو او منزل مقصود ته رسید وسره وی، چنانچه د زکوة په مصرفونو کښې د دې نه مراد هغه مسافر دې چه ورسره په سفر کښې د خپلو ضرورتونو په جوړ مال نه وی، اګرچه په وطن، کور، کلی باندې هغه غنی او مالدار وی، داسې مسافر ته د زکوة مال څکه ورکولې شی چه هغه ورسره د سفر خپل ضروریات پوره کړی او خپل وطن ته واپس لاړ شی،

تردې پورې د هغه اتو مصرفونو بیان پوره شو کوم چه د زکوة او د نورو صدقو [خیراتونو] د پاره ټاکلې شوی وو اوس داسې څه مسئلې بیانولې شی چه تعلق ئې د دې ټولو مصرفونو سره یوشان دې،

**د تملیک مسئله**: جمهور فقهاء په دې خبره اتفاق لری چه د زکوة په ټاکلی مصرفونو کښې د لګولو یو شرط دا هم دې چه په دې باندې مستحق بنده ته مالکانه قبضه ورکړې شی، هرکله چه د غسې مالکانه قبضه ورنکړې شوه نو که هرڅومره د مستحقو خلقو په فائده او خیر بښیګړه باندې خرچ کړې شو، زکوة ئې نه اداکیږی په دې بنا څلور واړو امامان او د امت جمهور فقها په دې اتفاق لری چه د زکوة مال په جوماتونو، مدرسو، شفاخانو او دیتیم خانو په آبادولو یا د دې په نور وضروریاتو پوره کولو او لګولو شی، نو دا جائز نه دی او زکوة ئې ادانه شو، اګرچه د دې سره فقیرانو او هغه خلقو ته فائده اورسی کوم چه د زکوة اغستو مستحق دی،

البته په یتیم خانو کښې چه د یتیمانو کړې خوراکه وغیره که په مالکانه حیثیت سره ورکړې شی نو یوا څې د دغې خرچ ترحده پورې د زکوة مال خرچ کیدې شی د غه شان په شفاخانو کښې چه کوم دارو درمل [دواء] حاجتمند و غریبانو ته په مالکانه حیثیت سره ورکړې شی نو د هغې قیمت د زکوة په مال کښې حسابولې شی، د غه شان د امت فقهاؤ ښه په ډاګه دا وئیلی دی چه د لاوارثه مړی کفن د زکوة په مال کښې نشی حسابیدې، ولې چه مړې مالک جوړیدې نشی، البته داسې کیدې شی چه د زکوة څه مال یو مستحق غریب ته ورکړې شی او هغه په خپلې خوښې سره د غه مال د لاوارثه مړی په کفن باندې اولګوی، د غه شان د مړی د قرض اداکولو په سلسله کښې نیغ په نیغه د زکوة مال نشی لګولې البته د دغه مړی مستحقو وارثانو ته چه د زکوة مال ورکړې شی نو وارثان د دې په مال مالک ګرځید وسره د دغه مړی قرض اداکولې شی، د غه شان د عوامی فائدو ټول کارونه لکه کوهې، پل یا سړک وغیره جوړول د زکوة په مال سره جائز نه دی، اګرچه د دې فائده د زکوة حقدارانو ته هم رسی خو هرکله چه د دې کښې مالکانه قبضه د مستحق رانغله نو زکوة ادانه شو،

په دې مسئلو کښې څلور واړه مجتهدین امامان ابوحنیفه رحمه الله شافعی رحمه الله مالک رحمه الله احمد بن حنبل رحمه الله او د امت جمهور فقهاء اتفاق لری، شمس الائمه سرخسی رحمه الله دا مسئله د امام محمد رحمه الله د کتابونو په شرح مبسوط او شرح سیر کښې پوره تحقیق او تفصیل سره لیکلی دی[1] او د شافعی رحمه الله مالکی رحمه الله حنبلی رحمه الله په عامو کتابونو کښې دا مسئله ښه په ډاګه بیان شویده،

یو شافعی فقیه، امام ابو عبید رحمه الله په کتاب الاموال، کښې لیکلی دی چه د مړی دا رخه د ده د قرض په اداکولو یا د ده د دفن په اخراجاتو او د جوماتو په تعمیر باندې یا د نهر په جوړولو وغیره باندې د زکوة مال خرچ کول جائز څکه نه دی چه سفیان ثوری رحمه الله او ټول امامان رحمه الله په دې

---

[1] مبسوط للامام سرخسی، کتاب الزکاة، ج ۲، ص ۲۲۷

اتفاق لري چه په داسې خرچ کولوسره زکوة نشي اداکیدې ولې چه دادهغواتو مصرفونوځني نه دی چه بیان ئې په قرآن کریم کښې راغلې دې،

دغه شان حنبلي فقیه موفق رحمه الله په مغني کښې لیکلي دي چه قرآن کریم کوم مصرفونه بیان کړیدي دهغې نه سوا په بل څه نیک کارکښې دزکوة مال خرچ کول جائزنه دي مثلاً دجوماتونو پلونو اوداوبو دسبیلونو په جوړولو یادسړکونو په درستولو یادمړي په کفن باندې دلګولو یا دمیلمنو په خوراک، څښاک وغیره باندې لګولو سره زکوة نه اداکیږي اګرچه دثواب کارونه خودي مګر دصدقو، [خیراتونوزکاتونو] په مصرفونو کښې شامل نه دي. (۱)

په بدائع کښې ملک العلماء رحمه الله دزکوة دادا کولو دپاره دتملیک دشرط لګولو دادلیل بیان کړیدې چه عموماً قرآن کریم دواجبو صدقو اودزکوة اداکول په لفظ د، ایتاء، سره بیان کړیدی لکه فرمائی ﴿اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ﴾ ﴿وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾ [﴿وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَآءَ الزَّكٰوةِ﴾ ﴿وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ﴾ وغیره، (۲)] اولفظ د، ایتاء، په لغت کښې د، عطا اورکولو] معنی ورکوی امام راغب اصفهاني رحمه الله په مفردات القرآن کښې فرمائي چې [والایتاء الاعطاء وخص وضع الصدقة في القرآن بالایتاء] یعنی دایتاء معنی ورکول ده، او قرآن کریم دواجب صدقې اداکول په، ایتاء، سره مخصوص کړیدی (۳) چه مفهوم حقیقي ئې هم دادې چه څوک مستحق بنده ددغې مال مالک جوړ کړیشي. دغه شان په نوروځایونوکښې هم قرآن کریم، لفظ د، ایتاء، لره دمالک جوړولو دپاره راوړیدې مثلاً ﴿وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ﴾ ښځوته په ښه زړه ددوئ مهرونه ورکوئ! ښکاره خبره ده چه مهراداکول هله منلې شي چه دمهر په مال باندې ښځې ته مالکانه قبضه ورکړې شی،

دویمه داچه قرآن کریم کښې دزکوة نه دصدقې په لفظ سره تعبیر کړې شویدې لکه فرمائی ﴿اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ﴾ اودصدقې حقیقي معنی داده چه څوک فقیر، حاجتمن ددې مالک جوړ کړیشي چاباندې روټئ خوړول یادعوامي فائدو په کارونو کښې مال لګول، دحقیقي معنی په اعتبار سره صدقه نشي بللې، شیخ ابن همام رحمه الله په فتح القدیر کښې لیکلي دي چه دصدقې حقیقت همدغه دې، چه یوفقیرددې مال مالک جوړ کړیشي، (۴) دغه شان امام جصاص په احکام القرآن کښې فرمائیلي دي چه دلفظ دصدقې دتملیک نوم دې، [جصاص ص ۱۵۲ ج ۲]

**دزکوة په باره کښې ښې دېرې ضروري مسئلې:** مسئله په صحیح حدیث کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته دصدقو وصولو په باره کښې داهدایت ورکړې ووچه، ‌تُؤْخَذُ مِنْ اَغْنِيَائِهِمْ وَتُرَدُّ فِي فُقَرَائِهِمْ، [صدقې دمسلمانانو غنیانو نه اخله اوهم ددوئ په فقیرانوئې لګوه (۵) په دې بنا فقهاؤ فرمائیلي دي چه بې ضرورته دیوې علاقې یاښار زکوة بلې علاقې یا ښارته اوړل دِنشي کولې بلکه هم ددغې علاقې یا ښار فقیران، ددې زیات حقداردی، البته که دچا نزدې

(۱) المغني. كتاب الزكاة. مسألة وفصل تحديد مصرف الزكاة الخ: ج ۲، ص ۵۲۵
(۲) بدائع الصنائع. كتاب الكفارات. فصل وأما شرائط جواز كل نوع الخ: ج ۵، ص ۱۰۱
(۳) مفردات القرآن للأصفهاني: ج ۱۰، ص ۹
(۴) فتح القدير. كتاب الزكاة، باب من يجوز دفع الصدقة: ج ۲، ص ۲۶۵
(۵) صحيح مسلم. كتاب الإيمان، باب الدعاء الى الشهادتين: ج ۱، ص ۳۶

Scanned with Ca

خپلوان عزيزان غريبانان وي او هغوئ په يو بل ښار كښې وي نو خپل زكوة هغوئ ته ورليږلې شي ځكه چه رسول الله ﷺ د دې ثواب دوچنده بيان كړيدې،[1]

داشان كه ديوې بلې علاقې دخلقو فقيرى، لوږه او ضرورت دخپل ښار نه زيات چاته ښكاريدونو بيا هم هلته زكوة ليږلې شي، ولې چه دصدقو وركولو مقصد، دفقيرانو حاجتونه پوره كول دى، چنانچه حضرت معاذ ﷺ به ديمن په صدقو كښې كپړې، جامې په دې غرض زياتې اغستې چه مهاجرينو فقيرانو دپاره ئې مدينې منورې ته اوليږى، [قرطبى په حواله ددارقطنى][2]

كه يو كس يو ځائ كښې اوسيږى او مال ئې بل ځائ كښې وى نو ددې استوګنې لره اعتبار دې يعنى زكوة وركول به هلته كوى چرته چه پخپله اوسيږى ولې چه دزكوة وركولو حكم هم دغه بنده ته دې [قرطبى][3]

**مسئله:** دكوم يو مال مثلاتجارتى كپړو، لوښو فرنيچروغيره واجب شوې زكوة دغې مال نه هم وركولې شى او داسې هم كولې شى چه ددغې مال دقيمت ځلو يښتمه برخه قيمت په حقدارانو اوويشلې شى ځكه چه د صحيح احاديثونه ثابت دى [قرطبى][4] ځنې امامانو فقهاؤ فرمائيلى دى چه په نن زمانه كښې نغد قيمت په زكوة كښې وركول ځكه زيات غوره دى چه د فقيرانو ضرورتونه مختلف او ډيردى نغديت دخپل خروخت ضرورت پوره كولو دپاره پكارراوستې شى،

**مسئله:** دزكوة حقدار وخپلوانو عزيزانو ته دزكوة او صدقو وركول د زكوة وركولو په وخت زياته بهترى او دونړه ثواب داسې لرى چه يو ثواب دصدقې وركولو او بل ثواب دخپلوئ پاللو شو كښې ضباطول هم ځكه ضرورى نه دى چه هسې نه اغستونكې ئې خپل سپكاوى اوګنړى بلكه دهدئې، ډالئ وغيره په نوم ورته وركول غوره دى،

**مسئله:** څوک چه په خپلې وينايا عمل سره خپل ځان دزكوة حقدار او حاجتمن ښكاره كړى او د صدقو وغيره سوال اوكړى، نو آيادا ضرورى دى چه زكوة وركوونكى دى دهغه داصلى حالاتو تحقيق نه پس ورته زكوة وركوى، كه مستحق ثابت نه شونو نه دوركوى، په دې باره كښې د حديثو روايتونه او دفقهاؤ اقوال دادى چه دتحقيق كولو ضرورت نشته بلكه دظاهرى حالت نه ئې كه غالب ګمان پردفقيرئ او محتاجئ راغلونوزكوة وركولې شى، لكه په حديث شريف كښې راغلى دى چه دديرې خوارئ په حالت كښې څه خلق رسول الله ﷺ ته راغلل، دوئ دپاره ئې د صدقو راجمع كولو انتظام اوكړو، دغه راجمع شوې صدقې ئې دوئ ته وركړې او هغوئ ﷺ ددوئ داندرونى او اصلى حالاتو دتحقيق ضرورت اونه ګنړلو [قرطبى][5]

البته قرطبى په احكام القرآن كښې فرمائيلى دى چه دزكوة په مصرفونو [دلګښت په ځايونو] كښې يو مصرف قرضدارې هم دې، كه څوک دا اووائى چه زما په ذمه دومره قرض دې دهغې دادا كولو دپاره دِ ماته دزكوة مال راكړېشى نو دهغې قرض ثبوت ترِغوښتل پكاردى

[1] ) السنن الكبرىٰ للنسائى رقم الحديث: ۹۳۰۲
[2] ) سنن الدارقطنى رقم الحديث: ۱۹۵۳، تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۱۷۵
[3] ) تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۱۷۶
[4] ) تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۱۷۵
[5] ) تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۱۸۷

Scanned with Ca

[قرطبي] (۱) اوبنكاره داده چه دغارم، في سبيل الله او ابن سبيل په باره كښې هم داسې قسم تحقيق كول څه گرانه خبره نه ده په دې كښې دموقعې په مناسبت سره تحقيق كول پكاردي،

**مسئله:** خپلوانو اوعزيزانو ته زكوة وركول زيات ثواب لرى خوبښځه خاوند، او والدين خپل منځ كښې يوبل له زكوة نشي وركولې چه زكوة به گوياكښې خپل ځان سره اوساتى، ولې چه ددې خلقوخرڅ اخراجات، عموماخپل منځ كښې شريک وى، ښځه خاوندچه خپل منځ كښې يوبل له زكوة وركړى نوپه حقيقت كښې ئې هغه په خپل استعمال كښې راوستلو، دغسې معامله د والدينو او اولادتر منځه ده، دنمسوكړوسو اودنيكه اوغرنيكه حكم هم هغه دې چه دوئ هم خپل منځ كښې يوبل ته زكوة نشي وركولې [يعنى جائزنه دى]

**مسئله:** چاچه خپل گمان سره څوک مستحق اوگنړلو اوزكوة ئې وركړو روستوبيامعلومه شوه چه دهغه غلام وويابل څوک كافروونوزكوة ئې ادانشو، دوباره وركړى، ولې چه دغلام هريو څيز دمالک وى او داسې شوه چه دغه زكوة هډوده دلاسه اونه وَتو اوهم ده سره پاتې شو اوكافر د زكوة مستحق نشي كيدې،

كه چاته دزكوة وركولونه پس ثابت شي چه زكوة اغستونكې ئې مالدار، سيدهاشمي ياخپل پلار، خوئ، ښځه ياخاونددې نوزكوة ئې اوشودوباره وركول ئې ضرورى نه دى ځكه چه دزكوة مال دده دلاسه وتلې اودثواب ځائ ته رسيدلې دې كه داسې غلطى دتيرې يادنظرد كمزورئ وغيره په وجه شوى وى نومعاف ده، [درمختار] (۲) دصدقاتو دآيت تفسيراو ورسره د ترلو مسئلو تفصيل دضرورت په اندازه پوره شو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنْهُمُ | الَّذِيْنَ | يُؤْذُوْنَ | النَّبِيَّ | وَيَقُوْلُوْنَ | هُوَ | أُذُنٌ ؕ |
| اوځينى ددوئ نه | هغه كسان | چې تكليف وركوى | نبى ته | اووائى | | چى داسړې اغوږونه دى |
| اوبعضې په دوى كښې هغه كسان دى چه نبى ته تكليف رسوى اودا وائى چه دې ډير اوريدونكې دې | | | | | | |
| قُلْ | أُذُنُ | خَيْرٍ | لَّكُمْ | يُؤْمِنُ | بِاللّٰهِ | وَيُؤْمِنُ |
| اووايه | داپه غوږونوكچه والې | بهتر دې | استاسو دپاره | ايمان لرى | په الله باندى | اواعتمادكوى |
| ته ورته اووايه په الله تعالى باندې ايمان راوړى اوپه مؤمنانو باندې اعتماد كوى | | | | | | |
| لِلْمُؤْمِنِيْنَ | وَرَحْمَةٌ | لِّلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | مِنْكُمْ ؕ | وَالَّذِيْنَ | |
| په مومنانو | اورحمت دې | دپاره دهغه كسانو | چى ايمان ئې راوړې دې | ستاسو نه | اوهغه كسان | |
| ......... اوپه تاسو كښې چه كومو كسانو ايمان راوړې دې دهغوى دپاره رحمت دې او كوم كسان | | | | | | |
| يُؤْذُوْنَ | رَسُوْلَ اللّٰهِ | لَهُمْ | عَذَابٌ | اَلِيْمٌ ۝ | يَحْلِفُوْنَ | |
| چى تكليف وركوى | رسول دالله ته | دې دهغوئ دپاره | عذاب | دردناک | قسمونه خورى دا خلق | |
| چه دالله رسول ته تكليف رسوى نو د هغوى دپاره دردناک عذاب دې دوى [تاسو ته] په الله تعالى | | | | | | |

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۱۸۷

(۲) الدر المختار، كتاب الزكاة، باب المصرف: ج ۲، ص ۳۵۲ (طبع رشيديه كوئټه)

Scanned with CamScanner

بِاللّٰهِ لَكُمْ لِيُرْضُوْكُمْ وَاللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗٓ اَحَقُّ اَنْ

په الله باند | تاسو ته | دپاره ددې چې راضي کړي تاسو | او الله | او رسول دهغه | ازيات حقدار دی | چې

بانديږ قسمونه خوري چه تاسو راضي کړي | اخو | الله تعالی او د هغه پيغمبر زيات حقدار دي چه دوی ئې

يُّرْضُوْهُ اِنْ كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۝ اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّهٗ مَنْ

راضي کړي هغه | که وی هغوی | مومنان | آيا نه ده معلومه دوی ته | اچې بيشکه شان دادی | چې هغه څوک

راضي کړي | که دوی مؤمنان وي | آيا دوی | منافقان | په دې نه پوهيږي چه څوک د الله تعالی او د هغه د رسول

يُّحَادِدِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاَنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا

چې مخالفت کوی | د الله | او د رسول دهغه | نو بيشکه | مقرر دی هغه لره | اور د دوزخ | اچې هميشه به وی

مخالف کوی ..............نو دده دپاره د جهنم اور دي چه هميشه به په هغې کښې وی

فِيْهَا ۭ ذٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيْمُ ۝ يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ اَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ

په هغې کښې | دا | رسوائی ده | لويه | يريږي | منافقان ددې نه | اچې نازل کړې شي | په مومنانو باند

........ اودا | جهنم ته داخليدل | لويه رسوائی ده | منافقان د دې نه ويريږي چه | هسې نه | په مؤمنانو

سُوْرَةٌ تُنَبِّئُهُمْ بِمَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۭ قُلِ اسْتَهْزِءُوْا ۚ

يو سورة | اچې خبر ورکړي هغوی ته | دهغه | اچې په زړونو دهغوی کښې دي | ورته ووايه | چې کوئ توقې

بانديږ څه سورت نازل شي چه مسلمانانو ته دهغه رازونو خبر ورکړي کوم چه د دوی په زړونو کښې دی ته ورته ووايه

اِنَّ اللّٰهَ مُخْرِجٌ مَّا تَحْذَرُوْنَ ۝ وَلَىِٕنْ

بيشکه الله | ښکاره کوونکې دی | دهغه څيز | اچې يريږئ تاسو د ښکاره کيدو دهغې نه | او که چرې

تاسو توقې کوئ | بيشکه الله تعالی دهغه څه ښکاره کونکې دی د کومې د ښکاره کيدو نه چه تاسو ويريږئ او که

سَاَلْتَهُمْ لَيَقُوْلُنَّ اِنَّمَا كُنَّا نَخُوْضُ وَنَلْعَبُ ۭ

تپوس اوکړې ته ددوئ نه | نو خامخا به وائي | اچې بيشکه | اوؤ مونږ | اچې مشغوليدو مونږ | او لوبې کولې مونږ

ته ددوی نه تپوس اوکړې | اچه تاسو داسې ولې دی | نو دوی به وائی چه مونږ خو هسې گپ شپ لگولو

قُلْ اَبِاللّٰهِ وَاٰيٰتِهٖ وَرَسُوْلِهٖ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِءُوْنَ ۝

ورته ووايه | آيا په الله پورې | او په آياتونو دهغه پورې | او په رسول دهغه پورې | اوئ تاسو | چې توقې موکولې

ته ورته ووايه آيا تاسو په | الله تعالی او دهغه په آياتونو او دهغه په رسول پورې توقې کوئ

لَا تَعْتَذِرُوْا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ ۭ اِنْ نَّعْفُ

عذرونه مکوئ | په تحقيق سره | کفر کړی دی تاسو | اروستو | د ايمان راوړلو ستاسو نه | که | معاف کړو مونږ

تاسو عذرونه مه کوئ | اچه مونږ نه غلطی شوې ده بلکه | تاسو د خپل ظاهری ايمان نه پس کافران شوې ئې که

عَنْ طَاۗىِٕفَةٍ مِّنْكُمْ نُعَذِّبْ طَاۗىِٕفَةًۢ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا

يوه ډله | ستاسو نه | نو ضرور به عذاب ورکوو | ابلې ډلې ته | په سبب دهغې چې هغوی اوؤ

ستاسو يوې ډلې ته معافی اوکړو | اچه توبه اوباسی | نو بلې ډلې ته به عذاب ورکړو څکه چه دغه ډله

| |
|---|
| مُجۡرِمِيۡنَ ﴿٦٦﴾ |
| مجرمان ا |
| نافرمانه ده. |

## آسان ترجمه قرآن

او دغه ﴿منافقانو نه﴾ هغه خلق دي چه نبي ته تکلیف رسوي . او ﴿د هغوی په باره کښې﴾ داوائي چه دا خو ټول غوږ دي. ته ووايه چه: دي غوږ دي د هغه څيز د پاره چه هغې کښې ستاسو خير دي. هغه په الله باندې ايمان لري او د مؤمنانو په خبره باندې يقين کوي . او تاسو کښې چه څوک ﴿ظاهري طور﴾ باندې ايمان راوړي دي ، هغوی د پاره هغه درحمت ﴿ معامله کونکې ﴾ دي. او څوک چه دالله رسول ته تکلیف رسوي هغوی د پاره يو دردناك عذاب تيار کړې شوې دې ﴿اې مسلمانانو !﴾ دا خلق ستاسو مخکښې په الله قسمونه دې وچې نه خوري چه تاسو خوشحاله کړي . حال دا چه که دوی واقعی مؤمنان وی نو الله او د هغه رسول زيات مستحق دي چه دوی هغوی لره راضی کړي. آيا دوی ته دا معلومه نه ده چه څوك دالله او د رسول خلاف کوي نو دهغه د پاره د دوزخ اور دې هغې کښې به دې هميشه وي ؟ دا ډيره لويه رسوائی ده ! منافقان دې خبرې نه ويريږي چه مسلمانانو باندې چرته داسې سورت نازل نه شي چه دوی ته د دې ﴿منافقانو﴾ د زړه خبرې ووائي. ته ووايه چه ﴿ښه ده﴾ تاسو ټوقې کوئ الله هغه خبره ښکاره کونکې دې کومې نه چه تاسو ويريدلئ. که تاسو دوی نه تپوس وکړئ نو دوی به يقيناً دا وائي چه : مونږ خو ټوقې کولې او زړه مو مشغوله کولو. ته ووايه چه: آيا تاسو په الله او د هغه په آيتونو اودهغه په رسول پورې ټوقې کوئ ؟ بهانې مه جوړوئ تاسو د ايمان ښکاره کولو نه وروستو کفر کړې دې که مونږ تاسو کښې يوی ډلې ته معافی هم وکړو نو دويمې ته به ضرور سزا ورکوو ځکه چه دا مجرمان دي.

## خلاصه تفسير

﴿وَمِنۡهُمُ الَّذِيۡنَ يُؤۡذُوۡنَ النَّبِيَّ﴾ پدوئ [ؤ منافقانو] کښې ځينې داسې دی چې نبی کريم ﷺ ته ضرر رسوی [يعنی دهغوئ په شان کښې داسې خبرې کوی چې دهغې په آوريدو سره ورته تکليف وی] او [کله نې چه څوك منع کوی نو] ﴿وَيَقُوۡلُوۡنَ هُوَ اُذُنٌ﴾ وائی چې دوئ ﷺ هره يوه خبره په غوږ اينبو سره آوری [دوئ ته په دروغو وئيلو سره دهوکه ورکول آسان دی ، ځکه هيڅ فکر نشته] ﴿قُلۡ﴾ تاسو [په جواب کښې] اوفرمايئ چې [تاسو پخپله دهوکه شوئ ، نبی کريم ﷺ چې څه خبره آوری نو هغه دوه ارخونه لری ، يو په دې شان چې په صحيح گڼړلو سره ئې تصديق کوی ، بل د خوش اخلاقئ اود شرافت په ډول چې خبره ورته غلطه معلومه شی او سره دهغې نه دشرافت اونيك خويئ په وجه پرې خان ناغرضه کړی ، ويونکی پسې ئې هيڅ قسم مخه نه اوړی او په ښکاره ئې دروغژن نه ضباطوی نو] ﴿اُذُنُ خَيۡرٍ لَّكُمۡ﴾ دغه نبی ﷺ په غوږ اينبو سره هم هغه خبره آوری چې ستاسو په حق کښې [سراسری] خير وی [حاصل او نتيجه ئې داده ] ﴿يُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ وَيُؤۡمِنُ لِلۡمُؤۡمِنِيۡنَ﴾ چې هغوئ د الله ﷻ [په هغه خبرو په وحی سره معلوم] باندې ايمان راوړی [چې دهغې د تصديق خير کيدل تولې دنيا دپاره ښکاره دی ولې چې تعليم اوعدل هم په دې تصديق باندې اړه لری] او د [مخلصو] مؤمنانو [په خبرو چې د ايمان اواخلاص په حيثيت

Scanned with Ca

سره وي] يقين كوي [ددې خبر كيدل هم داسې ښكاره دي چې په عام عدل اړه لري د حالاتو په صحيح اطلاع باندې چې ذريعه ئې هم دغه مخلصان مؤمنان دي ، غرض دا چې په غوږونو اينبو او په رښتيا گنړلو سره خو يوازې د رښتينو او مخلصانو مؤمنانو خبرې آورې] او [ستاسو شرارتي خبرې چې آورې نو دهغې وجه داده چې] ﴿وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ﴾ هغوئ ﷺ دهغې خلقو په حال مهرباني كوي چې په تاسو كښې ايمان ښكاره كوي [اگو چې په زړهٔ كښې ئې ايمان نه وي ، پس ددغې مهربانئ اوخوش اخلاقئ په وجه ، ستاسو خبرې آورې اوپه دې حقيقت باندې دپوهيدو باوجود ځان ناغرضه كوي ، او چې پاتې كيږي نو ددې خبرې آوريدل په بيل ډول دي ، تاسو دخپلې بيوقوفئ نه دا هم داول ډول پښان اوگنړل ، خلاصه داده چې ستاسو په خيال چې هغوئ ﷺ په حقيقت نه پوهيږي اوپه واقع كښې په حقيقت باندې تاسو نه پوهيږئ] ﴿وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ رَسُولَ اللَّهِ﴾ اوكوم خلق چې نبي كريم ﷺ ته ضرر رسوي [خواه په هغې خبرو چې دهغې د وئيلو نه پس ئې اذن ورته وئيلي وو يا پخپله هم ددې هو اذن په وئيلو سره ، ولې چې د دوئ هغوئ ﷺ ته اذن وئيل په هغوئ ﷺ باندې عيب لگول وو چې [معاذ الله] هغوئ ﷺ پوهه نه لري ، هر څه چې آورې هغه مني] ﴿لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ دې خلقو دپاره به دردناكه سزا وي ، ﴿يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ لِيُرْضُوكُمْ﴾ دا خلق ستاسو [د مسلمانانو] په مخكښې [په دروغه] قسمونه خوري [چې مونږ فلانئ خبره نه وه كړې ، يا مونږ غزا ته د فلاني عذر په وجه لاړ نشو] دپاره ددې چې تاسو راضي كړي [چې ورسره ددوئ ځان اومال محفوظ پاتې شي] ﴿وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَقُّ أَن يُرْضُوهُ إِن كَانُوا مُؤْمِنِينَ﴾ سره ددې چې الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ زيات حق لري چې كه دوئ رښتيني مسلمانان وي نوهغه دې راضي كړې [چې دا په اخلاص او ايمان اړه لري] ﴿أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّهُ مَن يُحَادِدِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ آيا دوئ خبر نه دي چې څوك چه د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ مخالفت كوي [څنگه چې دا خلق ئې كوي] ﴿فَأَنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا فِيهَا﴾ نو داخبره پخه ده چې داسې كس ته به د دوزخ اور په داسې شان نصيب كيږي چې هغه به په كښې هميشه پاتې كيږي [او] ﴿ذَٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيمُ﴾ دا لويه شرمندگي [دلوئې شرمندگئ خبره] ده ، ﴿يَحْذَرُ الْمُنَافِقُونَ أَن تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُورَةٌ تُنَبِّئُهُم بِمَا فِي قُلُوبِهِمْ﴾ منافقان خلق [يعنى طبيعت ئې] ددې انديښنه لري چې په مسلمانانو باندې [د وحی په ذريعه نبي كريم ﷺ ته] څه داسې سورت [الكه يا آيت] نازل نشي چې ورته دمنافقانو د زړونو د خبرې اطلاع وركړي [يعنى دوئ چې كومې پټې خبرې د توقو كړي دي چې د مسلمانانو په نسبت هغه د دوئ يو قسم رازونه دي او په زړونو كښې ئې پټې دي چې هسې نه مسلمانان پرې خبر شي] ﴿قُلِ اسْتَهْزِئُوا﴾ تاسو اوفرمايئ چې ښه ده تاسو مسخرې كوئي [پدې كښې ئې ددوئ په مسخرو كولو باندې خبريدل ضباط كړل لكه چې وريسې پخپله فرمائي] ﴿إِنَّ اللَّهَ مُخْرِجٌ مَّا تَحْذَرُونَ﴾ بيشكه الله ﷻ به هغه څيز ښكاره كوي دكوم [د ښكاره كيدو نه] چې تاسواندېښنه لرله [نو په توقو كښې ئې ښكاره كړل چې تاسو توقې كولې اود ښكاره كيدو نه پس] ﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ﴾ كه تاسو ﷺ د دوئ ﷺ نه [ددې توقو وجه] اوپوښتئ نو اول به وائي چې مونږ خو هسې توقې اوگپ مو لگولو [ددې خبرو اصلي معنى مو مقصود نه وې هسې مو زړهٔ مشغولولو په غرض زباني خبرې كولې چې په آسانئ سره سفر غوخ شي] ﴿قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ﴾ تاسو [ورته] اوفرمايئ چې آيا

Scanned with Ca

الله ﷻ پوري او دهغه د آيتونو پوري ، او دهغه رسول ﷺ پوري تاسو توقي كولې [يعنى كه غرض مو هر څه وو خو دا هم اوګورئى چې تاسو چا پوري توقي كوئ . چې ورسره توقي كول په هيڅ شان كښې هم سمه خبره نه ده] ﴿لَا تَعْتَذِرُوا﴾ تاسو اوس [دا بې پرتوګه] بې عذر مه كوئ [مطلب دا دې چې دا عذر قبول نه دې اونه پدې عذر كولو سره توقي روا كيږي] ﴿قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ﴾ تاسو د اسلام په جامه كښې كفر كول شروع كړل [ولې چې دين پورې توقي كول مطلقا كفر دې اګرچې په زړهٔ كښې مو د مخكښې نه هم ايمان نه وؤ البته كه څوك د زړهٔ نه توبه اوكړي او مخلص مؤمن جوړشي نو يقينا چې دكفر كولو اودكفر د عذاب نه بهٔ خلاص شي ، خو ټولو ته ددې توفيق به نه نصيب كيږي ، ځيني به يقينا مسلمانان شي او هغوئ به معاف كړې شي نو حاصل ئې دا شو چې] ﴿إِنْ نَعْفُ عَنْ طَائِفَةٍ مِنْكُمْ نُعَذِّبْ طَائِفَةً﴾ كه مونږ د تاسوځيني پريږدو هم [په دې وجه هغوئ مسلمانان شو نو مونږ به ځينو ته [خامخا] سزا وركوؤ په دې وجه چې دوئ [په علم ازلى كښې] ﴿بِأَنَّهُمْ كَانُوا مُجْرِمِينَ﴾ مجرمان وو [يعنى مسلمانان شوى نه وو].

## معارف اومسائل

دږومبو آيتونوپشان په دې آيتونو كښې هم دمنافقانوبې سريتوبه اعتراضونه رسول الله ﷺ ته ضرر رسول او بيا په دروغو قسمونه خوړلوسره خپل ايمان ضباطول اوپه دې باندې خبردارې وركول بيان شويدى، او په دې باندې خبرداري وركړى شوى دى.

ږومبى آيت مبارك كښې ذكر دې چې دا خلق د رسول ﷺ په حق كښې د خندا په طور وائى چې هغه خوسوده غوږدى، يعنى چه څه واورى په هغې يقين كوى، كه زمونږسازش ښكاره هم شي نوهيڅ فكرمو خكه نشته چه په قسم خوړلوسره به ځان ترخلاص كړو، په جواب كښې الله تعالى ددوئ بيوقوفى څرګنده كړه چه كه هغوئ ﷺ دمنافقانواو مخالفو خلقو په آوريدو باندې چپ پاتې شي نودا دهغوئ ﷺ دا خلاقو ښه والې دې، هغې نه داغلطه اندازه مه لګوئ چه هغوئ په حقيقت باندې خبرنه وى او يواځې ستاسو په ويناباندې يقين كوى، بلكه هغوئ ﷺ دټول حقيقت نه ټكې په ټكې خبردى، ستاسو په غلطو خبر وآوريدو به ستاسو رشتينوالى هيڅرې اونكړى البته دخپل شرافت اوښه سريتوب له كبله ستاسو مخامخ ستاسو خبره نه رد كوى،

﴿إِنَّ اللَّهَ مُخْرِجٌ مَا تَحْذَرُونَ﴾ په دې آيت كښې داخبرور كړې شويدې چه الله تعالى به دمنافقانو پټ سازشونه اوشرارتونه ښكاره كړى چه يو واقعه ئې دتبوك دغزانه په واپسئ ده كله چه ځنې منافقينو دهغوئ ﷺ دوژلو سازش كړې وو ، الله تعالى دجبرائيل ؑ په ذريعه ددې نه خبر كړل اودهغې لارې نه ئې واړول چرته چه دې كار دپاره دغه منافقان جمع شوى وو ، [مظهرى دبغوى نه] [۱]

حضرت عبد الله بن عباس ؓ فرمائى چه الله تعالى داويامنافقينو نومونه، سره دهغوئ دولديت او د پوره نخښې پتې نه رسول الله ﷺ ته ښولى وو مګر رحمة للعالمين دغه منافقان خلقوته اونه ښودل [مظهرى] [۲]

---

[۱] ) التفسير البغوى تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۶۸
[۲] ) التفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۵۶

اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ بَعْضُهُمْ مِّنْ بَعْضٍ ۘ يَاْمُرُوْنَ

| منافقان سړي | اومنافقانې ښځې | ځيني ددوئ | دځينو نه دي | حکم کوي دوئ

منافقان سړي اومنافقانې ښځې ټولو کښې سره يو دي (خلقوته) د ګناهونو حکم کوي

بِالْمُنْكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوْفِ وَيَقْبِضُوْنَ اَيْدِيَهُمْ ؕ نَسُوا اللّٰهَ

په بدئ باند | اومنع کوي | دنيکئ نه | اومنع ساتي دوئ | لاسونه خپل | اهير کړودوئ | الله

او د نيکئ د کارونو نه منع کوي او خپل لاسونه (د الله په لار کښې د خرچ کولونه) بندوي | دوي الله

فَنَسِيَهُمْ ؕ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝ وَعَدَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ

نو الله هير کړل دوئ | بيشکه منافقان | هم دوئ | فاسقان دي | اوعده کړې ده الله | دمنافقانو سړو سره

هير کړې دې نو الله تعالى دوي هم هير کړل | هم منافقان نافرمان دي | الله تعالى د منافقانو سړو او

وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ هِيَ

اودمنافقانو ښځوسره | اودکافرانو سره | د اور | اددوزخ | اهميشه به وي دوئ | اپه هغې کښې | هغه

منافقانو ښځو او د کافرانو سره د جهنم د اور وعده کړې ده په جهنم کښې به هميشه دپاره وي

حَسْبُهُمْ ۚ وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ۝

کافي دې دوئ لره | اولعنت کړې دې په دوئ الله | اودې دوئ لره | عذاب | هميشه

جهنم د دوي دپاره کافي دې او الله په دوي باندې لعنت کړې دې. او د دوي دپاره هميشه عذاب دې

كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْكُمْ قُوَّةً

اے منافقانو تاسو پشان دهغه کسانو يئ | چې مخکښې ستاسونه وو | اوو هغوئ | زيات سخت ستاسونه | په قوت کښې

امنافقانو ستاسو مثال په منافقت کښې) ستاسو نه د وړاندې خلقو پشان دي (حالانکه) هغوي ستاسو نه زيات طاقتور وو

وَّاَكْثَرَ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ؕ فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ

اوزيات | اپه مال کښې | اوپه اولاد کښې | انو فائده واغستله هغوئ | په حصه خپله ددنيا

او په مال او اولاد کښې ستاسو نه زيات وو انو هغوي اپه دنيا کښې) په خپله حصه باندې فائده واخستله

فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

اوفائده واغسته تاسو | په حصې خپلې سره | الکه څنګه چې | فائدې اغستې وې | هغه کسانو | چې مخکښې ستاسونه وو

اوتاسو اهم | په خپله حصه باندې فائده واخستله لکه څنګه چه هغه خلقو د خپل حصې مطابق فائده اخستې وه

بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا ؕ

په حصې خپلې سره | اواخته شوئ تاسو | اپه هغسې خبرو کښې لکه چې هغوئ اخته شوي وو په هغې کښې

کوم چه ستاسو نه وړاندې وو | اوتاسو هم په هغه خبرو کښې مشغوله شوې څنګه هغوي مشغوله شوي وو |

اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ

دغه کسان چې دي اضائع شول | اعملونه دهغوئ | په دنيا کښې | اوپه آخرت کښې | اودغه کسان دي

د دغه خلقو عملونه په دنيا او په آخرت کښې ضائع شوي دي | او هم دوي اګه په دنيا کښې نه وي خو به

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ ﴿۶۹﴾ | اَلَمْ يَاْتِهِمْ | نَبَاُ الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ |
| چه هم هغوئ دي | نقصانيان | آيا نه دي راغلي دوئ ته | اخبر د هغه كسانو | چي مخكښي د دوئ نه وو |
| آخرت كښي ضرور | تاوانيان دي | آيا دوی ته د هغه خلقو [ دعذاب ] واقعات نه دي راغلي كوم چه د | | |
| قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ | وَّثَمُوْدَ ۵ | وَقَوْمِ اِبْرٰهِيْمَ | وَاَصْحٰبِ مَدْيَنَ | وَالْمُؤْتَفِكٰتِ ط |
| دقوم دنوح ا اودعاد | اودثمود | اودقوم دابراهيم | اودملګرو دمدين | اودپاسته كړي شوي كلي |
| دوی نه وړاندي ووچه د نوح ﷺ قوم عاديان ثموديان د ابراهيم ﷺ قوم د مدين خلق اود الټه شوو كلي وو | | | | |
| اَتَتْهُمْ | رُسُلُهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ | فَمَا كَانَ اللّٰهُ | لِيَظْلِمَهُمْ |
| راوړي ووهغوئ ته | ارسولانو دهغوئ | ابنكاره نښي | نو نهٔ وو الله | چي ظلم ئي كړي وي په هغوئ باندي |
| هغوی ته د هغوی پيغمبران په ښكاره نښو سره راغلي وو اخو په دي عذابولو كښي الله تعالى په هغوی باندي | | | | |
| وَلٰكِنْ كَانُوْا | اَنْفُسَهُمْ | يَظْلِمُوْنَ ﴿۷۰﴾ | | |
| ليكن ووهغوئ | اپه نفسونو خپلو | اچي ظلم ئي كوؤ | | |
| ظلم نه وو كړي بلكه هغوی په خپله په خپلو ځانونو ظلم كونكي وو ا | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

منافقان سړی او منافقاني ښځي ټول يو شان دي. دوی د ګناه دعوت وركوي او د نيكو نه خلق منع كوي او خپل لاسونه پنډوی دوی الله لره هير كړي دي نو الله هم دوی لره هير كړل. بې شكه دا منافقان ډير نافرمانه دي. الله د منافقانو سړو او ښځو او ټولو كافرانو سره د جهنم وعده كړي ده. دي كښ به دوی هميشه وي ځُمدا به دوی د پاره بس وی، الله تعالى دوی لره لعنت كړی دی، او دوی د پاره يو سخت عذاب دي. ﴿اې منافقانو﴾ تاسو د هغه خلقو پشان يئ چه تاسو نه مخكښ تير شوي دي. هغوی په طاقت كښ ستاسو نه مضبوط وو او مال او اولاد كښ ستاسو نه ډير زيات وو بس هغوی د خپلې حصې مزې واخستې پس تاسو هم هغه شان مزې واخستې لكه چه هغوی اخستي وې او تاسو هم د غه شان بې هوده خبرو كښ پراته يئ لكه چه هغوی بې هوده خبرو كښ پراته وو دا هغه خلق دي چه په دنيا او آخرت كښ د دوی اعمال تباه شوي دي او دا هغه خلق دي چه دوی د تاوان سودا اوكړه. آيا دي ﴿منافقانو ته﴾ د هغه خلقو خبرنه دي رارسيدلي كوم چه دوی نه مخكښ تير شوي دي؟ د نوح عليه السلام قوم، او عاديان او ثموديان، او د ابراهيم عليه السلام قوم، او د مدين والا، او هغه كلي كوم چه اړولي شوي وو! دوی ټولو ته د دوی رسولانو واضحه دلائل راوړي وو — بيا الله داسې نه وو چه په دوی ئې ظلم كړې وي. ليكن دوی خپله پخپلو ځانونو ظلم كړې وو.

### خلاصه تفسير

﴿اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ بَعْضُهُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۘ﴾ منافقان سړي او منافقاني ښځي ټول يو شان دي ﴿يَاْمُرُوْنَ بِالْمُنْكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوْفِ﴾ چي دبدي [خرابي] خبري [يعني دكفر او داسلام دمخالفت] تعليم وركوي اودښي خبري نه [يعني د ايمان اود نبي ﷺ دتابعدارئ نه] منع كوي او [د الله ﷻ په

لار کښې د خرچ کولو نه] ﴿وَيَقۡبِضُونَ أَيۡدِيَهُمۡۚ﴾ خپل لاسونه بند لري ، ﴿نَسُواْ ٱللَّهَ فَنَسِيَهُمۡۚ﴾ دوئ د الله ﷻ خيال اونه کړو [يعنی فرمانبرداری ئې اونه کړه] نو الله ﷻ ددوئ خيال اونه کړو [يعنی پدوئ ئې خاص رحمت اونه کړو] ﴿إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ هُمُ ٱلۡفَٰسِقُونَ﴾ بيشکه دا منافقان ډير سرکشه دی ﴿وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلۡكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ﴾ الله ﷻ منافقانو سړو او منافقانو ښځواو [په ښکاره] کفر کوونکو سره د دوزخ د اور لوظ کړې دې ﴿خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ﴾ چې په کښې به هميشه پاتې کيږي ﴿هِيَ حَسۡبُهُمۡۚ﴾ دا دوئ دپاره [سزا] کافي ده ﴿وَلَعَنَهُمُ ٱللَّهُۖ﴾ او الله ﷻ به دوئ دخپل رحمت نه لرې کړي ﴿وَلَهُمۡ عَذَابٞ مُّقِيمٞ﴾ اودوئ لره به [ددغې لوظ په وجه] هميشه عذاب وی . [اې منافقانو!] ﴿كَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ كَانُوٓاْ أَشَدَّ مِنكُمۡ قُوَّةٗ وَأَكۡثَرَ أَمۡوَٰلٗا وَأَوۡلَٰدٗا﴾ ستاسو حالت [په کفر او د کفر دبدلې په حقدارئ کښې] دهغې خلقو پشان دې چې تاسو نه پخوا [زمانه کښې] وو دقوت په سختوالی او په ډيروالی د اولاد اومالونو کښې تاسو نه هم زيات وو ، ﴿فَٱسۡتَمۡتَعُواْ بِخَلَٰقِهِمۡ فَٱسۡتَمۡتَعۡتُم بِخَلَٰقِكُمۡ﴾ نو هغوئ خپلې [دنيوی] حصې نه ښه فائده پوره کړه نو تاسو هم خپلې فائده حاصله کړه ﴿كَمَا ٱسۡتَمۡتَعَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُم بِخَلَٰقِهِمۡ﴾ څنګه چې تاسو نه مخکښې خلقو خپله [دنيوی] حصې نه فائده حاصله کړې وه ﴿وَخُضۡتُمۡ كَٱلَّذِي خَاضُوٓاْۚ﴾ او تاسو هم [په خرابو خبرو کښې] او تاسو هم [په خرابو خبرو کښې]اداسې ورداخل شوئ څنګه چې دغه خلق [په خرابو خبرو کښې] داخل شوی وو ، ﴿أُوْلَٰٓئِكَ حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۖ﴾ ددې خلقو[نيک] عملونه په دنيا اوآخرت [دواړو کښې] برباد شو [چې په دنيا کښې د دوئ په عملونو باندې دثواب زيرې نشته او آخرت کښې پرې ثواب نشته] او [په دنيا او آخرت کښې ددې بربادئ په وجه] ﴿وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ﴾ دغه خلق په ډير نقصان کښې دی [چې په دواړو جهانونو کښې د خوشحالئ اوآرام نه محرومه دی نو دغه شان که تاسو هم دهغوئ پشان کفر کوئې نوهم دهغوئ پشان به نامرادهيڅ او زيانکار يئ او څنګه چې دهغوئ مالونه او اولاد ئې پکار رانغلل نو تاسو خو ترې پدغه څيزونو کښې کم يئ ،ستاسوخوب يقينا پکار رانشی، دا خو د آخرت د زيان ذکر ده ، وريسې ددنيا د زيان په وريادولو سره خبردارې ورکوی چې!] ﴿أَلَمۡ يَأۡتِهِمۡ نَبَأُ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ﴾ آيا دې خلقو ته دهغوئ [دعذاب او هلاکيدو] خبر نه دې رسيدلې چې دوئ نه پخوا تير شوی دی ﴿قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ وَقَوۡمِ إِبۡرَٰهِيمَ﴾ لکه دنوح عليه السلام قوم ، عاد ، ثمود ، د ابراهيم عليه السلام دقوم ، ﴿وَأَصۡحَٰبِ مَدۡيَنَ وَٱلۡمُؤۡتَفِكَٰتِۚ﴾ د اهل مدين او د اپوته شوؤ آباديانو ﴿أَتَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِۖ﴾ چې هغوئ ته دهغوئ پيغمبرانو عليهم السلام صفا نخښې [دحق] راوړې اليکن په نه منلو ئې برباد شوانو [په دې بربادئ کښې] ﴿فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظۡلِمَهُمۡ﴾ الله ﷻ خو په دوئ باندې ظلم اونه کړو ﴿وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ﴾ ليکن دوئ پخپله خپلو ځانونو باندې ظلم کولو [دغه شان دې منافقانو لره هم ويريدل پکار دی].

## معارف اومسائل

ددې آيتونوځنې په رومبی آيت کښې دمنافقانوبوحال ئې دااوښودلو چه دوئ خپل لاسونه بند لري ﴿وَيَقۡبِضُونَ أَيۡدِيَهُمۡۚ﴾ په تفسير قرطبی کښې دلاس بندلرلو مطلب دابيان شويدې چه جهادنه کوی اوواجب حقوق نه اداکوی، ﴿نَسُواْ ٱللَّهَ فَنَسِيَهُمۡۚ﴾ ددې ظاهری معنی داده چه دې خلقوالله تعالی هيرکړو اوالله تعالی دوئ هيرکړل،خوهرکله چه الله تعالی دهيرې نه پاک دې نودلته به

Scanned with Ca

ئې مطلب داوی چه، دوئ د الله تعالی حکمونه داسې پرېښول لکه چه هیر کړی ئې وی نو الله تعالی هم د آخرت دثواب په باره کښې همداسې پرېښول چه په نیکئ او په ثواب کښې ئې نوم هم پاتې نشو۔

د ﴿كَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ یو تفسیر دادې چه داخطاب منافقانو ته دې، څنګه چې په خلاصه تفسیر کښې بیان شو، او دویم تفسیر دادې چې خطاب هم مسلمانانو ته دې یعنی ﴿اَنتُمْ كَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ تاسو هم دهغې پخوانو خلقو پشان ئې چه تاسونه وړاندې وو، یعنی څنګه چه دغه خلق د دنیا په خوندونو کښې داسې بوښت شو چه آخرت ئې هیر کړو او په قسما قسم ګناهونو او بداخلاقو کښې ګیر شو تاسو هم دغسې خلق ئې،

ددې آیت په تفسیر کښې دحضرت ابی هریره ﷺ په روایت رسول الله ﷺ او فرمائیل چه: تاسو به هم هغه طریقې اختیار کړئ چه تاسونه وړاندې امتونو اختیار کړې وې، لاس په لاس، لیشت په لیشت یعنی هوبهو به دهغوئ نقل کوئ، تردې پورې چه که هغوئ کښې څوک دسمسرې په غار کښې ننوتی وونو تاسو به هم ننوځئ، حضرت ابی هریره ﷺ چه داروایت نقل کړونو وې فرمائیل چه ددې حدیث تصدیق کول که غواړئ نو د قرآن کریم داآیت اولولئ: ﴿كَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ (۱) حضرت عبدالله بن عباس ﷺ ددې په آوریدو او فرمائیل: مَا أَشْبَهَ اللَّيْلَةَ بِالْبَارِحَةِ، [ننني شپه پرونئ شپې سره څومره یوشان او مشابه ده] دابنی اسرائیل دې چه ورسره زمونږ تشبیه ورکړې شویده [قرطبی] (۲)

دحدیث مقصد واضح دې چه په آخره زمانه کښې به مسلمانان هم دیهودو، نصاراؤ په طریقو روان شی، او دمنافقینو دعذاب بیانولو نه پس ددې بیانولو کښې دې اړخ ته هم اشاره ده چه دیهودو دنصاراؤ په طریقو باندې تلونکی مسلمانان به هغه وی دچا په زړونو کښې چه مکمل ایمان نه وی، دمنافقت جراثیم پکښې موندې شی، دامت نیکانو خلقو ته ددوئ نه دځان ساتلو او دبل د ساتلو هدایت په دې آیت کښې کړې شویدې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْمُؤْمِنُونَ | وَالْمُؤْمِنٰتُ | | | | |
| اومومنان سری ا | اومومناني ښځې ا | | | | |
| او مؤمنان سری او مؤمناني ښځې | | | | | |
| بَعْضُهُمْ | أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ | يَأْمُرُونَ | بِالْمَعْرُوفِ | وَيَنْهَوْنَ | عَنِ الْمُنكَرِ |
| خینی ددوئ | ادوستان دی ادخینو | ا حکم کوی دوئ | ا په نیکئ سره | اومنع کوی | ا دبدئ نه |
| دوی په خپل مینځ کښې ملګری دی ا ایوبل ته ا د نیکئ حکم کوی او د بدئ نه منع کوی | | | | | |
| وَيُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ | وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ | وَيُطِيعُونَ | اللّٰهَ | وَرَسُولَهُ | |
| او قائموی مونځ ا | او ورکوی زکاة ا | اوحکم منی | ا دالله | ا اود رسول دهغه | |
| اومونځ قائموی او زکاة ورکوی [الندوه دا چه په ټولو کارونو کښې] د الله اود هغه د رسول تابعداری کوی | | | | | |

---

(۱) مسند ابی یعلی الموصلی رقم الحدیث: ۶۲۳

(۲) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۸، ص ۲۰۱

Scanned with Ca

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أُولَٰٓئِكَ | سَيَرْحَمُهُمُ اللَّهُ ۗ | إِنَّ اللَّهَ | عَزِيزٌ | حَكِيمٌ ۝ | |
| دا کسان چې دي ا زربه رحم اوکړي په دوئ باند الله ا بیشکه الله ا غالب دي ا دحکمت خاوند دي | | | | | |
| په دغه خلقو به الله تعالى رحم اوکړي ا او الله غالب دې ا څوک ئې د ارادې نه منع کولې نشي ا اوصاحب دحکمت دي | | | | | |
| وَعَدَ | اللَّهُ | الْمُؤْمِنِينَ | وَالْمُؤْمِنَاتِ | جَنَّاتٍ | تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا |
| وعده کړې ده ا الله ا دمومنانو سړو سره ا اودمومنانو ښځو سره ا دباغونو ا چې بهيږي به الاندې دهغې نه | | | | | |
| الله تعالى د مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو سره د جنتونو وعده کړې ده چه د هغې د ا بنګلو ا لاندې به | | | | | |
| الْأَنْهَارُ | خَالِدِينَ | فِيهَا | وَمَسَاكِنَ | طَيِّبَةً | فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ۚ |
| نهرونه ا هميشه به وي ا په هغې کښې ا اوکورونه ا پاك ا په باغونو ا هميشه شنو کښې | | | | | |
| ولې بهيږي په هغې کښې به هميشه وي او ا په جنت کښې به ا د هميشه اوسيدو ځايونه وي | | | | | |
| وَرِضْوَانٌ مِنَ اللَّهِ | أَكْبَرُ ۚ | ذَٰلِكَ هُوَ | الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ۝ | يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ | |
| اورضا دطرفه دالله نه ا ډيره لويه ا خبره ده ا اهم دا ا کاميابي لويه ده ا اے نبی | | | | | |
| اود الله تعالى رضا ډير لوئې څيز دي ا کومه چه به دوی ته په جنت کښې حاصله وی ا اودا لويه کاميابي ده اې پيغمبر | | | | | |
| جَاهِدِ | الْكُفَّارَ | وَالْمُنَافِقِينَ | وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ | وَمَأْوَاهُمْ | جَهَنَّمُ ۖ |
| جهادکوه ا دکافرانوسره ا اودمنافقانوسره ا اوسختي کوه ا په هغوئ ا اوآخری ځائې دهغوئ ا دوزخ دي | | | | | |
| دکافرانو او منافقانو سره جهاد کوئ او په دوئ باندې سختي کوی اود دوی ځائې جهنم دي | | | | | |
| وَبِئْسَ | الْمَصِيرُ ۝ | | | | |
| اوبد ځائې دي اد ورتلو ا | | | | | |
| اود ورتلو په اعتبار سره ډيرېد ځائې دي ا | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

مؤمنان سړي او ښځې خپلو کښې د يو بل مددګار دي، دوی نيکۍ طرف ته دعوت ورکوي او بدو نه خلق منع کوي. او د مونځ پابندي کوي او زکوٰة ادا کوی او د الله او د هغه د رسول تابعداری کوی دا داسې خلق دي چه دوی باندې به الله خپل رحمت کوي يقيناً الله قدرت والا هم دې حکمت والا هم الله د مؤمنانو سړو او ښځو سره وعده کړې ده دهغې باغونو چه د هغې د لاندې به ولې بهيږی هغې کښې به دوی هميشه وي. او دهغه پاکو کورونو چه دهميشه والی په باغونو کښې به وي او دالله د طرف نه رضامنتيا خو د ټولو نه لوئې څيز دې (چه جنتيانو ته به نصيب کيږی) دغه زبردسته کاميابي ده. اې نبی د کافرانو او منافقانو سره جهاد وکړه او دوی باندې سختي وکړه. اود دوی ځائې جهنم دي. او دا ډير بد ځائې دي.

## خلاصه تفسير

﴿وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ﴾ او مسلمانان سړی او ښځې په خپل مينځ کښې د يو بل (ديني) ملګری دی ﴿يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ دنيکو خبرو تعليم ورکوی او دبدو خبرو نه ايسارول کوی ، ﴿وَيُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ﴾ د مونځ پابندی کوی او زکوة ورکوی ، ﴿وَيُطِيعُونَ اللَّهَ

وَرَسُوْلَهٗ﴾ اود الله ﷻ او دهغه درسول ﷺ خبره مني ، ﴿أُولَٰٓئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّٰهُ﴾ په دې خلقو به الله ﷻ ضرور رحمت کوی [چې تفصيل ئې په وَعَدَاللّٰه کښې اوس دادې نزدې راروان دې] ﴿إِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ بيشکه الله ﷻ قادر مطلق دې [مکمله بدله ورکولې شی] دحکمت خاوند دې [مناسبه بدله ورکوی اوس ددغې رحمت بيان داسې کيږی چې] ﴿وَعَدَ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ﴾ الله ﷻ مسلمانانو سړو او مسلمانانو ښځو سره دداسې باغونو وعده کړې ده ﴿تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا﴾ چې دهغې لاندې به نهرونه روان وی ، چې په کښې به دوئ هميشه اوسيږی ﴿وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ﴾ اود نفيسو [سپيځلو] مکانونو [وعده کړې ده] چې د هميشوالی په هغه باغونو کښې به وی او [دې نعمتونو سره] ﴿وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ أَكْبَرُ﴾ د الله ﷻ رضامندی [چې د جنتيانو نه به تل ترتله وی ددې]تولو [نعمتونو] نه لوئې څيز دې ، ﴿ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ﴾ ، دا [بيان شوې بدله] لويه کاميابی ده . ﴿يٰٓأَيُّهَا النَّبِيُّ جٰهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ﴾ ائې نبی ﷺ کافرانو سره [په وسله] او منافقانو سره [په ژبه] جهاد کوئ او په دوئ سختی کوئ [پدنيا کښې خو دوئ ددې حقدار دی] ﴿وَمَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ﴾ او [په آخرت کښې] د دوئ ځائې دوزخ دې ﴿وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴾ اوهغه خراب ځائې دې .

**معارف اومسائل**

په تيروشوؤآيتونو کښې دمنافقانو دحالاتو ،ددوئ دسازشونو ،ضررونورسولو او وردپاره د عذاب بيان وو ، دقرآنی طرز په جوړ مناسب داووچه ورسره دمخلصانو مؤمنانو حالات ،ثواب اودرجې ئې بيان کړې شی ،ځکه اوس دابيانولې شی ،دلته په دې خبره ژورنظر اچول پکاردی چه هرکله د مخلصانو مؤمنانو او د منافقانو حالات سره په مقابله کښې بيان شويدی نود منافقانو په باره کښې د [﴿بَعْضُهُمْ مِّنْ بَعْضٍ﴾ اود مؤمنانو په باره کښې ﴿بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ﴾ الفاظ راوړی شو ،په دې سره دااشاره اوشوه چه دمنافقانو خپل مينځ کښې يو بل سره تعلقات اوتړون خويو اخې دخاندانی شريکوالی يادنورودنيوی غرضونو په بناوی ،چه زيات وخت نه پائی ،اونه ترهغه نتيجې رابرڅيره کيږی چه کومې دزړه ددوستئ اوهمدردئ نه رابرڅيره کيږی ،په خلاف دمؤمنانو چه دوئ ديو بل مخلص دوستان اورشتينی همدردان دی [قرطبی] [۱]

چونکه چه دادوستی اوهمدردی خالص دالله تعالی دپاره وی ،هغه په ظاهر ،باطن ، مخامخ اوپټی شايوشان وی ،اوتل دپاره پائيداره وی ،چنانچه دمخلص مؤمن هم دانخښه ده دايمان اونيک عمل خاصيت هم دادې چه خپل منځ کښې دوستی اومينه پيدا کوی ،دقرآن کريم ارشاد ددې په باره کښې داسې دې ﴿إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا﴾ څوک چه ايمان راوړی اودنيک عمل پابند شی نو الله تعالی ددوئ ترمنځه دزړه دکومې ژوره دوستی پيدا کوی ، نن صبا زمونږ د ايمان اونيک عمل کوتاهی ده ،چه دمسلمانانو په خپل منځ کښې داسې تعلقات نشته .بلکه داپه دنيوی غرضونو ادانړه وی .

﴿جٰهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ﴾ په دې آيت کښې کفارو اومنافقينو دواړو دلو سره د جهاد اوددوئ په معامله کښې رسول الله ﷺته دسختئ کولو حکم ورکړې شويدې ، داګيزو کفارو

---

[۱] تفسير القرطبی تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۰۳

سره د جهاد کولو معامله خو په ډاګه ده، لیکن منافقانو سره د جهاد کولو مطلب دوئ سره په ژبه جهاد کول دی، څنګه چه د هغوئ ﷺ د کړو وړو او دوئ سره د روزګار کولو نه ئې ثابته ده، دوئ سره د جهاد کولو مطلب دادې چه دوئ ته د د اسلام په حقانیت باندې د پوهیدو د پاره څکه بلنه ورکړې شی چه دوئ د اسلام په خپله دعوی کښې مخلصان شی [قرطبی و مظهری][1]

﴿وَاغۡلُظۡ عَلَيۡهِمۡ﴾ د ،غلظ، اصلی معنی داده چه مخاطب د کوم سلوک اوروني چه مستحق دې په هغې کښې دورسره هیڅ نرمی او رعایت نشی کولې، دالفظ د ،رَأۡفَة، په مقابله کښې استعمالولې شي دکوم معنی چه رحمت او نرم دلی ده،

امام قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چه دلته دغلظت [سختئ] استعمالولو نه مطلب عملی سختی استعمالول مراد دی چه دوئ سره په شرعی احکامو جاری کولو کښې څه سرعایت او نرمی اونکړې شی دژبې او کلام غلظت استعمالول ترمراد نه دی څکه چه دا، د انبیاؤ علیهم السلام د سنت نه خلاف دی ولې چه هغوئ علیهم السلام سخت کلامی نه کوی کنځل او بدې ردې نه وائی، لکه په یو حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: إِذَا زَنَتۡ أَمَةُ أَحَدِكُمۡ فَلۡيَجۡلِدۡهَا الۡحَدَّ وَلَا يُثَرِّبۡ عَلَيۡهَا، [قرطبی][2] ستاسو یوه وینځه چه زنا اوکړی نو په هغې د دروشرعی حد جاری کړئ خو بدې ردې ورته مه وائې، پیغور مه ورکوئ]،

بلکه د رسول الله ﷺ په باره کښې خو پخپله الله تعالی فرمائی ﴿وَلَوۡ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الۡقَلۡبِ لَانفَضُّواْ مِنۡ حَوۡلِكَ﴾ یعنی که تاسو ﷺ سخت کلامه او دسخت زړه خاوندوې نو خلق به ستاسو ﷺ د خوانه تښتیدلی وو] دغه شان د رسول الله ﷺ د کړو وړو نه هم چرته دا ثابت شوی نه دی چه کفارو او مشرکانو سره ئې سخت کلامی کړی وی،

**خبرداری:** د کفارو په مقابله کښې هم، اسلام چرې سخت کلامی نه ده اختیار کړې خو افسوس دې چه نن صبا مسلمانان خپل منځ کښې د سخت کلامئ او بد کلامئ په استعمال باندې هم صرفه نه کوی، ډیر خلق خوښې د دین خدمت بولی او په ډیر فخر سره ئې استعمالوی بلکه خوشحالی پرې هم کوی [انا لله]

| |
|---|
| قَالُواْ وَلَقَدۡ مَا قَالُواْ بِٱللَّهِ يَحۡلِفُونَ |
| ا قسمونه خوری داخلق ا په الله ا چی نه دی وئیلی دوئ هیڅ څه ا حالانکه اونیلی وه دوئ |
| ا په الله قسمونه خوری چه دوی [ستاسو خلاف] هیڅ خبره نه ده کړې حالانکه |
| كَلِمَةَ ٱلۡكُفۡرِ وَكَفَرُواْ بَعۡدَ إِسۡلَٰمِهِمۡ وَهَمُّواْ بِمَا |
| خبره د کفر ا او کفرئې اوکړو ا پس اد [ظاهری] اسلام راوړلو خپلو نه ا او اراده ئې اوکړه ا د هغه کار |
| د کفر خبره یې کړې ده ا او د خپل ظاهری اسلام نه پس کافران شوی دی ا او د هغه څه قصد ئې کړې وو چه |
| لَمۡ يَنَالُواْ وَمَا نَقَمُوٓاْ إِلَّآ أَنۡ أَغۡنَىٰهُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ |
| چی اونه رسیدل هغې ته ا اونه کوی دشمنی دوئ ا مګر ا په دې خبره ا چی غنیان کړی دی دوئ ا الله ا او رسول د هغه |
| کامیاب په کښې نشو ا او دوی صرف په دې وجه دشمنی کوی چه الله او د هغه رسول په خپل فضل سره |

[1] ) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۸، ص ۲۰۴، والتفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج۴، ص ۲۴۶
[2] ) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۸، ص ۲۰۵

Scanned with Ca

مِنْ فَضْلِهٖ ۚ فَاِنْ يَّتُوْبُوْا يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ وَاِنْ يَّتَوَلَّوْا

په فضل خپل سره انو که چرې اتوبه اوويسته دوئ اوى به ابهتره ادپاره ددوئ ا اوکه مخ واړوو دوئ

مالداران کړل اکه دوی توبه وېستله نو دا به د دوی دپاره ډیره ښه وی اؤ که دوی اعراض اوکړو

يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ

نو عذاب به ورکړی دوئ ته الله ا عذاب دردناك ا په دنيا ا اوپه اخرت کښې ا اونشته ادپاره ددوئ

[د توبې ويستلو نه] نو الله تعالى به دوی ته په دنيا او په آخرت کښې دردناک عذاب ورکړي ا اود دوی دپاره

فِى الْاَرْضِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۞ وَمِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللّٰهَ

په زمکه کښې اخوك دوست ا اونه مددګار ا اوځينې ددوئ نه ا هغه خلق دي ا چې وعده ئې کړی وه د الله سره

به په زمکه کښې هيڅ څوک دوست او مددګار نه وی ا اوپه دوی [منافقانو] کښې ځينې هغه څوک دي چه د الله سره

لَئِنْ اٰتٰىنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۞

که چرې اراکړه مونږ ته [الله] ا دفضل خپل نه انو مونږ به خيرات اوکړو ا اوشو به مونږ ا دنيکانو نه

وعده کړې وه که الله تعالى مونږ ته د خپل فضل [مال] نه راکړل انو مونږ به خيراتونه کوو او د نيکانو څخه به شو

فَلَمَّآ اٰتٰىهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَتَوَلَّوْا

خوکله چې ورکړو الله هغوئ ته ا د فضل خپل نه ا نوبخل ئې شروع کړو ا په هغې سره ا اومخ ئې واړوو دوعدې خپلې نه

خوچه کله ورته الله تعالى دخپل فضل [مال] نه ورکړل نو د هغې په خرچ کولو ئې بخل اوکړو نو ا اود وعدې نه ئې

وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ۞ فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِىْ قُلُوْبِهِمْ اِلٰى يَوْمِ

اودی هغوئ امخ اړونکی انوپيدا کړو الله هغوئ لره [منافقت] په زړونو دهغوئ کښې ا دهغې ورځې پورې ا

مخ واړولو اولادزکاة ورکولو نه [ انکاريان شو اد دې په نتيجه کښې الله تعالى د دوی په زړونو کښې داسې نفاق واچولو

يَلْقَوْنَهٗ بِمَآ اَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا

چې يوځائې کيږي به هغوئ دهغه سره ا په سبب دهغې ا چې خلاف کړې وؤ هغوئ دالله ا دهغه خبرې

کوم چه به ترقيامته پورې باقى وى اځکه چه دوی دالله تعالى سره دهغه څه وعده خلافى

وَعَدُوْهُ وَبِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ۞ اَلَمْ

چې وعده ئې کړې وه دهغه سره ا اوپه سبب دهغې چې وؤ هغوئ اچې دروغ به ئې وئيل ا آيا

اوکړله کومه وعده چه ئې ورسره کړې وه ا اوددې وجې دروغ به ئې وئيل ا آيا دوی ته پته نه لګى

يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوٰىهُمْ

معلومه نه ده دې خلقو ته ا چې بيشکه الله ا پوهيږي اپه پټو رازونو ددوئ ا اودغوږ په خبرو ددوئ

چه الله تعالى د دوی په پټو او په ښکاره خبرو باندې پوهيږي ا او آيا دوی په دې نه پوهيږي چه ا

وَاَنَّ اللّٰهَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ۞

اوبيشکه الله ا ښه خبردار دې اپه ټولو غيبي خبرو باندې ا

الله تعالى په پټو [خبرو او کارونو باندې] پوهيږي ا

## آسان ترجمه قرآن

دا خلق په الله باندې قسمونه خوري چه دوی فلانئ خبره نه ده کړې، حال دا چه دوی د کفر خبره کړې ده او دوی د اسلام نه پس کفر اختیار کړې دې دوی د هغه کار کولو اراده کړې وه چه هغې کښې دوی کامیاب نه شو، او دوی صرف ددې خبرې بدله ورکړه چه الله او د هغه رسول دوی لره په خپل فضل باندې مالدار کړي دي، او اوس که توبه وباسي نو دا به ددوي په حق کښې بهتره وي، او که دوی مخ واړوي نو الله به دوی ته دنیا او آخرت کښې دردناك عذاب ورکړي، او زمکه کښې به ددوی څوك معاون او امدادي نه وي. او دوی کښې داسې خلق هم دي چه هغوی دالله سره وعده کړې وه چه که هغه په مونږ باندې خپل فضل وکړو نو مونږ به ضرور صدقه کوو او یقینًا په نیکانو کښې به شامل شو. لیکن چه کله الله په دوی خپل فضل اوکړو نو هغې کښې ئې بخل شروع کړو، او واپس شول مخ اړونکي نتیجه دا شوه چه الله په طور د سزا نفاق د دوی په زړونو کښې تر هغه ورځې پورې مضبوط کړې دې چه په کومه ورځ به دوی د الله سره ملاؤ شي، ځکه چه دوی الله تعالی سره کومه وعده کړې وه د هغې خلاف ئې وکړو، او ځکه چه دوی دروغ وئیل. آیا دوی ته دا پته نه وه چه الله د دوی په ټولو پټو خبرو او رازونو باندې پوهیږي. او دا چه هغه ته د غیب د ټولو خبرو علم دې؟

## خلاصه تفسیر

﴿يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَالُوا﴾ دغه خلق قسمونه خوری چې مونږ فلانئ خبره [الکه دا چې نبی کریم ﷺ بهٔ وژنو] نه ده کړې ﴿وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ﴾ یقینا دوئ د کفر خبره کړې ده [اولې چې هغوئ ﷺ دوژلو باره کښې خبرې اترو کول په ښکاره کفر دې] او [ددې خبرې په کولو سره] ﴿وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ﴾ دخپل [ظاهر] اسلام نه پس [په ښکاره هم] کافران شو [اګر چې دا خبره ئې په خپله ډله کښې کړې وه چې مسلمانان هم پرې خبر شو او کفر ئې ښه په جاره ښکاره شو] ﴿وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا﴾ او دوئ دداسې خبرې اراده اوکړه چې لاس ئې پرې نه رسیدو [یعنی د نبی کریم ﷺ په وژلو ئې څه وس نه رسیدو] ﴿وَمَا نَقَمُوا إِلَّا أَنْ أَغْنَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ مِنْ فَضْلِهِ﴾ او دا خو دوئ صرف دهغې خبرې بدله ورکړې ده چې دوئ لره الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ الله ﷻ په رزق سره مالدار کړل [د دوئ په نزد بهٔ ښیګړې بدله ورکول ګنی بدی کول وو] ﴿فَإِنْ يَتُوبُوا يَكُ خَيْرًا لَهُمْ﴾ نو که [ددې نه پس هم] توبه اوباسی نو دوئ دپاره به [په دواړو جهانو کښې] زیات غوره وی [نو جلاس ﷺ ته د توبې کولو توفیق نصیب شو] ﴿وَإِنْ يَتَوَلَّوْا﴾ او که [توبې نه ئې] مخ واړولو [او په کفر او منافقت باندې کلك پاتې شو] ﴿يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ نو الله ﷻ به ورته په دنیا کښې او آخرت [دواړو] کښې دردناك عذاب ورکړی [نو ټول عمر بدنام اوسر وهلی بر وهلی او په ویره ګرخیدل او دمرګ په وخت ئې خپل مصیبت لیدل، ددنیا عذاب شو او په آخر کښې ئې دوزخ ته تلل ښکاره خبره ده] ﴿وَمَا لَهُمْ فِي الْأَرْضِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ﴾ اود دوئ په دنیا کښې نه خو څوك یا رشته او نه مددګار [چې عذاب نه ئې خلاص کړی، هر کله چې په دنیا کښې ئې څوك یارومددګار نشته چې اکثر په کښې هرقسم بنده ته مدد ملاویدې شی نو په آخرت کښې خو به ورته د سره هیڅ مدد ملاؤ نشی] ﴿وَمِنْهُمْ مَنْ عَاهَدَ اللَّهَ﴾ او په دوئ [منافقانو] کښې ځینې

Scanned with Ca

كسان داسې دي چې الله ﷻ سره لوظ كوي [ولې چې نبي كريم ﷺ سره لوظ كول گويا كښې الله ﷻ سره لوظ كول دي دغه لوظ دا وو چې] ﴿لَئِنْ اٰتٰىنَا مِنْ فَضْلِهٖ﴾ كه الله ﷻ مونږ ته په خپل فضل سره راكړي [ډير څه مال] ﴿لَنَصَّدَّقَنَّ﴾ نو مونږ به [دهغې خيښې] ښه خيرات اوكړو ﴿وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ۝﴾ او مونږ به [دهغې په ذريعه] ښه نيك نيك كارونه كوو ﴿فَلَمَّآ اٰتٰىهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ﴾ كله چې الله ﷻ ورته خپل فضل سره [ډير څه] مال وركړو ﴿بَخِلُوْا بِهٖ﴾ نو په كښې ئې كنجوسي شروع كړه [چې زكوة ئې په كښې نه وركولو] او [د فرمانبردارئ كولونه ئې] ﴿وَتَوَلَّوْا﴾ مخ اړول شروع كړل ﴿وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ۝﴾ او دوئ خود مخ اړولو [وخت دسره] عادت دی ﴿فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِيْ قُلُوْبِهِمْ اِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ﴾ نو الله ﷻ د دوئ [ددې كولو] په سزا كښې د دوئ په زړونو كښې منافقت [كلك پاتې] كړو چې الله ﷻ ته دورتلو تر وخته پورې ، ﴿بِمَآ اَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ﴾ د الله ﷻ سره ئې پخپله وعده كښې خلاف اوكړو ﴿وَبِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ۝﴾ او په د وجه چې دوئ به [ددې وعدې په كولو كښې وخت دسره] دروغ وئيل . [يعنې د وعدې پوره كولو نيت ئې دغه وخت هم نه وو، نو منافقت ئې دغه وخت هم په زړه كښې وو، چې دهغې يوه حصه دا دورغ وئيل او وعده خلافي كول دی ، او ددې په وجه نور هم زيات دغضب مستحق شو ، او ددې زيات غضب اثر د دا شو چې دغه مخكښني منافقت ئې اوس هميشه دپاره اونه ختميدونكې شو چې توبه به ئې هم نه نصيب كيږي ، په داسې حالت باندې مړ كيدو سره به هميشه دپاره په جهنم كښې اوسيدل به ئې په برخه شي او سره ددې چې په پټه كافران دی ، بيا هم اسلام او فرمانبردارئ ښكاره كول نو] ﴿اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوٰىهُمْ﴾ آيا دوئ [منافقان] په دې خبر نه دی چې الله ﷻ ته ددوئ د زړه راز او د دوئ پټې مشورې ټول هر څه معلوم دی ﴿وَاَنَّ اللّٰهَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ۝﴾ اودا چې الله ﷻ دغيب ټولې خبرې ښه پيژني [په دې وجه د دوئ دا ښكاره اسلام به د دوئ هيڅ پكار رانشي او نه به ئې د فرمانبردارئ دغه دعوې كول څه پكار راشي ، خاص كر په آخرت كښې ، نو دجهنم سزا ضروري ده] .

## معارف او مسائل

ددې آيتونو ځنې په رومبي آيت ﴿يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ كښې بيادمنافقانو بيان دې چه هغوئ په خپلو مجلسونو كښې دكفر كلمې ، لگيادي په مخه وائي ، كه مسلمانان پرخبرشي نوپه دروغه قسمونه خوري اوخپل ځانونه ددې نه بې گناه ثابتوي ، ددې آيت په شان نزول كښې بغوي رحمه الله داواقعه نقل كړيده چه رسول الله ﷺ دغزوهٔ تبوک په موقعه يوه خطبه وركړه چه پكښې دمنافقانو بدحالي اوخراب انجام ئې بيان كړو ، په دغه موقعه يومنافق جلاس هم موجودوو هغه چه خپل مجلس ته ورغلونووې وئيل چه محمد ﷺ چه څه وائي كه هغه رشتياوائي نومونږ خودخرونونه هم زيات بدتريو ، دده دخبرې په آوريدويوصحابي عامربن قيس رضي الله عنه اوفرمائيل چه بيشكه د رسول الله ﷺ داوينامباركه رشتياده چه تاسوواقعي دخرونونه هم زيات بدترئې ،

كله چه رسول الله ﷺ دتبوک دغزانه مدينې منورې ته راوړسيدونوعامربن قيس رضي الله عنه دا واقعه رسول الله ﷺ ته بيان كړه خوجلاس دخپلې وينانه واوړيداوووئ وئيل چه عامربن قيس رضي الله عنه راباندې هسې توږپورې كړيدې رسول الله ﷺ دواړوته اووئيل چه دوئ دواړه دې دمنبرنبوي ﷺ په خوا كښې اودريږي اوپه خپله خپله خبره د قسم او خوري ، جلاس ښه په داډه زړه دروغ

قسم اوخوړو او وې وئيل چه عامر ﷺ دروغ وائي، دحضرت عامر ﷺ وارچه راغلو نو هغه هم قسم اوخوړو او بيائې دعا د پاره لاس پورته کړو چه يا الله، خپل رسول ﷺ ددې واقعې په حقيقت باندې دوحی په ذريعه خبر کړې، ددوئ ﷺ په دعا باندې رسول الله ﷺ او تولو حاضرينو صحابه کرامو ﷺ امين او وئيلو اوس دغه خلق لا په خپلو ځايونو ناست وو چه جبرائيل آمين هم دا آيت په وحی کښې راؤرسولو،

جلاس ددې آيت په آؤريدو سمدستي پاسيدو او وې وئيل چه يارسول الله ﷺ زه دخپلې دې غلطې اقرار کوم واقعي چه دا غلطي را نه شويده، عامر بن قيس ﷺ رشتيا وئيلي دی، خو په دې آيت کښې راته الله تعالی دتوبې حق هم راکړيدې زه دالله تعالی نه بخښنه غواړم او توبه کوم، رسول الله ﷺ دهغه توبه قبوله کړه چه ترآخره پورې په دې توبه ټينګ پاتې شو او حالات ئې سمدم شو، [مظهری] (۱)

ځنې مفسرينو دا شان نور واقعات ددې په شان نزول کښې بيان کړيدی خصوصا په دې وجه هم چه ددې آيت يو جمله داسې ده ﴿وَهَمُّوا۟ بِمَا لَمْ يَنَالُوا۟﴾ يعنی دوئ ددا سې يو کار نيت اوکړو چه وس ئې پرې ونشو، دې نه معلوميږی چه دا آيت دداسې څه واقعې په باره کښې دی چه په کښې منافقانو د رسول الله ﷺ او د مسلمانانو په خلاف څه سازش کړې وو او دوئ په کښې ناکامه شوی وو، لکه ددې غزا د تبوک په باره کښې چه يو واقعه داسې مشهوره ده چه هر کله رسول الله ﷺ دغزوة تبوک نه په واپسئ کښې راتلل نو دولس کسان ورته دغر په يو کنډاؤ کښې دهغوئ ﷺ دوژلو د پاره ناست وو، خو حضرت جبرائيل ﷺ ورته ددې خبر ورکړو، هغوئ ﷺ دغه لار بدله کړه نو سازش ئې خاؤروسره خاؤرې شو،

دمنافقانو داسې نور واقعات هم راپيښ شوی دی خو دا ورسره بې سمونه نه دی چه ټول واقعات ددې آيت شان نزول وی،

په دويم آيت کښې ﴿وَمِنْهُم مَّنْ عَـٰهَدَ ٱللَّهَ﴾ هم ديو خاص واقعې په باره کښې راغلې دې ابن جرير ﷺ ابی حاتم ﷺ، ابن مردويه ﷺ طبرانی ﷺ او بيهقی ﷺ دحضرت ابی امامه ﷺ باهلی په روايت سره نقل کړيدی چه يو سړې ثعلبه بن حاطب انصاری ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او دا درخواست ئې اوکړو چه زما د مالدارکيدو دعا اوکړئ، هغوئ ورته اوفرمائيل چه آيا، زما طريقه درته غوره نه ده، په هغه ذات م دقسم وی دچا په قبضه کښې چه زما ځان دې، که ما غوښتلې نو دمدينې منورې غرونه به ټول سره زر شوی وو او ماسره به ګرځيدل، خو زما دغسې مالداری نه ده خوښه داسرې لاړو خو بيا راغلو هم هغه خواست يې بيا سره ددې لوظ نه وړاندې کړو چه که ماته مال ملاؤ شو نو زه به هر حقدار ته ترحق وررسوم، د رسول الله ﷺ په دعا سره دهغه چيلئ [ابزې] په ډيروزياتيدو شوې، تردې چه د مدينې منورې ځائ پرتنګ شو نو بهرته اووتو د ماسپخين او مازيګر مونځ به ئې مدينه کښې هغوئ ﷺ سره کولو، نور مونځونه به ئې بهرهلته اداکول چرته ئې چه دغه مال وو،

بيائې چيلئ [ابزې] نورې هم زياتې شوې دغه ځائ پرهم تنګ شو او د مدينې د ښار نه بهر چرته لرې ديره شو هلته نه به يو اخې دجمعې مانځه د پاره بمدينې منورې ته راتلو او نور پنځه

(۱) تفسير البغوی تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۵۵، والتفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۲۶۱، ۲۶۲

واړه مونځونه به ئې هلته اداکول بیاچه په چیلو کښې ئې نورهم زیاتې راغلونودغه ځائې یې هم پریښواودومره لرې دیره شوچه دجمعې مونځ اودپنځه واړه وختـه مونځونه ترې هم پاتې شو،

ځه موده پس رسول الله ﷺ خلقونه دده په باره کښې تپوس اوکړوخلقوورتـه اووئیـل چه مال ئې دومره زیات شویدې چه ښارته په نزدې اوسیدوسره ګذران دهغه نه کیږي، په دې وجه چرتـه لرې دیـره شـویدې چـه اوس دلتـه لیـدلې کیـدې نشي، رسول الله ﷺ ددې په آوریـدودرې ځـل داسې اوفرمائیل، وَيحَ ثَعلَبَة، په ثعلبه افسوس، په ثعلبه افسوس، په ثعلبه افسوس،

اوشوداسې چه په دغه زمانه کښې دصدقوآیت نـازل شو، په کوم کښې چه دمسلمانانونه دصدقاتوراغونډولوحکم رسول الله ﷺ ته شویدې ﴿خُذۡ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ صَدَقَةً﴾ هغوئ ﷺ دځاروود زکوتونومکمـل قـانون اولیکلـو اودوه کـسان ئـې دصـدقاتوراغونډولودپاره خلقوپسې ور اولیږل، ورته ئې دا حکم هم اوکړوچه ثعلبه بن حاطب نه دهم زکوة وصول کړی اودغه شان دبنی سلیم دیوسړی نه دهم زکوة وصول کړی،

دادواړه چه ثعلبه له ورغلل اودرسول الله ﷺ فرمان مبارک ئې ورته ښکاره کړوثعلبه اووئیـل چه داخو جزیه شوه، بیائې اووئیل چه ښه ده، نوپه واپسئ کښې بیادلته راشئ، هغه دواړه لاړه.

بل سړی سلیمی له چه ورغلل درسول الله ﷺ په فرمان آوریدوهغه دهرقسمه ځاروونه غوریز ځاروی راغونډ کړل اودغې دواړوکسانوته ئې پیش کړل هغوئ ورته اووئیل چه مونږ خو دچانړ کړوځاروژداغستونه منع کړې شوی یوسلیمی ورتـه اووئیـل چه داخوزه پخپله خوښـه درکوم اوددې په اغستوئې ورته تینګاراوکړو. چه دغسې ئې دنوروخلقونه زکوة راغونډ کړو بیاثعلبه تـه ورغلـل هغـه ترې زکـوة وصـولولو حکمنامه رابرځیـره کـول اوغوښـتل، دهغې کـتوئې بیـاهم اووئیل چه داخویوقسم جزیه شوه چه مسلمانانونه ئې وصولول نه دی پکاربـه نواوس خو ځئې زه به غورکوم هله پس ته به ځه فیصله کوم،

چه دوئ دواړه مـدینې منـورې تـه راورسـیدل نورسـول ﷺ دثعلبـه دحـال پوښـتلونه وړانـدې بیاهغـه کلمـه، یَاوَیحَ ثَعلَبَة، یَاوَیحَ ثَعلَبَة، یَاوَیحَ ثَعلَبَة، درې ځـل اوفرمائیلـه چنانچـه ددې واقعې پـه بـاره کـښې داآیت مبارک نـازل شو ﴿وَمِنۡهُم مَّنۡ عَٰهَدَ ٱللَّهَ﴾ پـه دوئ کـښې ځنې خلق داسې هـم دی چـه الله تعـالی سـره ئـې لـوظ کـړې وو، کـه مـال دراکړونوهغـه بـه صـدقه او خیـرات کوؤاودامـت دنیکـانو پـشان بـه د ټولـو حقـدارانو، خپلـو خپلوانـو، او غریبـانو حقونـه اداکوؤ، بیاچـه ورتـه الله تعـالی پـه خپـل فـضل سـره مـال ورکړونوبخیلي ئـې کولـه، اوالله تعالی اودهغه درسول ﷺ دفرمانبرداریٔ نه واوړیدل،

﴿فَأَعۡقَبَهُمۡ نِفَاقٗا فِي قُلُوبِهِمۡ﴾ الله تعالی ددوئ دبدعملئ اوبدعهدئ [بدلوظئ] په وجه ددوئ په زړونو کښې منافقت نورهم پوخ کړوچه اوس به ورته دتوبې توفیق نه نصیب کیږي،

**فائده:** ددې نه معلومـه شوه چه دځنو عملونو سپیرتوب داسې وی چه دتوبې توفیق تـرې واغستې شی [نعوذبالله منه] ابن جریر رحمه الله دحضرت ابی امامه رضی الله عنه دتفصیلي روایت پـه آخر کښې لیکلی دی [کوم چه اوس بیان شو] چه هرکله رسول الله ﷺ درې ځل، یَاوَیحَ ثَعلَبَة، فرمائیـل نوپـه دغه مجلس کښې د[ثعلبه] ځه خپلوان عزیزان ناست وو، ددې په آوریـدوتریوکس پـه سفرروان شو اوثعلبه ته وراورسید وهغه ئې ملامته کړواو ورته ئې اووئیل چه ستاپه باره کښې دقرآن کریم آیت نازل شوی دې، ثعلبه، اوبوګنید واومدینې منورې ته په ورتلوئې خواست اوکړوچه زمازکوة

Scanned with Ca

دقبول کړې شي، هغوئ ﷺ ورته اوفرمائيل چه الله تعالی ستاد صدقې [زکوة] اغستونه منع کړې يم، ددې په آوريدو ثعلبه په خپل سرباندې خاوړې اړولې،

رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه داخو ستا خپل عمل دې، ما درته حکم اوکړو تا اونه منلو اوس ستا صدقه [زکوة] نشي قبلولې، ثعلبه نامراده واپس شو، ددې نه څو ورځې پس رسول الله ﷺ وفات شو، صديق اکبر رضی الله عنه خليفه شو، هغوئ رضی الله عنه له ورغلو او ورته ئې اووئيل چه زما صدقه قبوله کړه، صديق اکبر رضی الله عنه ورته اوفرمائيل چه هرکله رسول الله ﷺ قبوله نکړه، زه ئې څنګه قبوله کړم،

بيا ابوبکر صديق رضی الله عنه د وفات نه پس، ثعلبه د فاروق اعظم رضی الله عنه په خدمت کښې د خپلې صدقې قبلولو خواست اوکړو، دغه شان د حضرت عثمان رضی الله عنه نه ئې هم د هغوئ رضی الله عنه د خلافت په زمانه کښې همدغسې خواست اوکړو، خو هغوئ رضی الله عنه هم قبول نکړو او د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په زمانه کښې مړ شو [نعوذ بالله من سيات الاعمال]، مظهری] (١)

مسئله: ؟ دلته دا سوال پيدا کيږي چه هرکله ثعلبه توبه ګارشونو دهغه توبه ولې قبوله نکړې شوه، ددې وجه ښکاره داسې ده چه رسول الله ﷺ ته د وحی په ذريعه معلومه شوې وه چه د ثعلبه اوسنئ توبه هم د اخلاص نه ده، په زړه کښې ئې منافقت شته دې، خالص وختی ښيګړه ئې په نظر کښې ده، مسلمانانو ته د وکه ورکول غواړی څکه قبوله نه ده، او اوس هرکله چه رسول الله ﷺ يو خل منافق اوبللونو وروسته راتلونکو خلفائې راشدينو دهغه د صدقې قبلولو حق نه لرلو، ولې چه زکوة د پاره مسلمانيدل شرط دی، البته د رسول الله ﷺ نه پس هر کله چه د زړه منافقت چا ته په يقينی دول نشی معلوميدل څکه دا آئنده حکم دغه دې چه څوک توبه اوکړی او د اسلام او ايمان اقرار اوکړی نو هغه سره د مسلمانانو پشان معامله اوکړې شي خواه دهغه په زړه کښې هر څه چه وی [بيان القرآن] (٢)

| |
|---|
| اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ |
| هغه کسان اچې عيب لګوی ا په خوشئ سره مال ورکونکو باندې |
| اهغه منافقان [په مؤمنانو کښې] په خپله خوښئ خرچ کونکو |
| مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي الصَّدَقٰتِ وَالَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ |
| د مومنانو نه اپه صدقو کښی [اوپه هغه کسانو باندې اچې نه مومی امګر اکوشش خپل |
| باندې ملامتيا وائی او [په مؤمنانو کښې] هغه کسان چه هغوی د خپل وس مطابق خرچ کوی [اګرچه لږ وی] |
| فَيَسْخَرُوْنَ مِنْهُمْ سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ |
| نو دوئ توقې کوی اپه هغوئ پورې اتوقې کوی الله اپه دغه توقو کونکو پورې ااو دې دهغوئ د پاره |
| نو منافقان په هغوی پورې توقې کوی الله تعالی به هغوی ته د هغې سزا ورکړی او د هغوی د پاره |

١) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۶۱، ۲۶۰ـ و تفسير الطبری تحت هٰذه الآية رقم الحديث: ۱۶۹۸۷، و دلائل النبوة للبيهقی رقم الحديث: ۲۰۳۶

٢) بيان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۴۲

Scanned with Ca

عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٩﴾ اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ۭ اِنْ تَسْتَغْفِرْ

عذاب | دردناك | بښنه اوغواړه | دپاره دهغوئ | يا بښنه مه غواړه | دپاره دهغوئ | كه ته بښنه اوغواړې

دردناک عذاب دې | كه ته د دوی دپاره بښنه اوغواړې اوكه اونه غواړې | كه ته د دوی دپاره

لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا

دپاره دهغوئ | اويا | خله | نوهرگز به اونه بښي الله | هغوئ لره | دانه بښنه | په سبب دهغې چې هغوئ | كفر اوكړو

اويا كرته بښنه اوغواړې نو هم الله تعالى دوته مغفرت نه كوى | اودا ئنه بښل د دې وجې نه دى چې دوى په الله تعالى او دهغه په

بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۭ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿٨٠﴾

په الله سره | اودرسول دهغه نه | او الله ئنه ښاني لار | قوم | | فاسق ته |

رسول باندې كړې دې | او الله تعاى كافرانو ته [د جنت] خودنه نه كوى |

## آسان ترجمه قرآن

﴿دا منافقان هغه خلق دى﴾ چه كوم كسان په خوشحالئ سره صدقه كوي هغوى ته هم پيغور وركوي، او هغه خلقو ته هم چه هغوى ځنه دخپل محنت ﴿د پيسو نه﴾ علاوه نور څه نه وي دي وجې نه هغوى دوى پورې توقې كوى. الله تعالى به دوى پورې توقې وكړى او دوى دپاره دردناك عذاب تيار شوې دې او ﴿اې پيغمبره !﴾ ته دوى دپاره بخښنه غواړې او كه نه غواړې كه چرې ته دوى لره اويا ځله هم بخښنه وغواړې نو الله دوى لره نه معاف كوي دې وجې نه چه دوى دالله او د هغه رسول باندې كفر كړې دې. او الله نافرمانو ته هدايت نه نصيب كوي.

## خلاصه تفسير

﴿اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي الصَّدَقٰتِ﴾ دوئ [منافقان] داسې دى چې نفلى صدقې وركوونكو مسلمانانو ته د صدقو [خيراتونو] باره كښې [د لږ والى په وجه] پيغورونه وركوى [او خاص كر] ﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ﴾ هغه خلقو ته [نور هم زيات پيغورونه وركوى] چاته چې سوا د محنت مزدورئ [د كتې] بل څه په لاس نه ورځى [او دغه غريبانان مراته اوكړى او ددغې مزدورئ نه هم څه خيرات كوى] ﴿فَيَسْخَرُوْنَ مِنْهُمْ ۭ﴾ يعنى دوئ ور پورې توقې كوى [يعنى هسې خو پيغورونه ټولو ته وركوى چې څومره لږ څيز ئې خيرات كړو خو دغې خوارى كوونكو پورې خو توقې هم كوى چې اوگورئ داخلق هم خيراتونه كوى ؟!] ﴿سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ﴾ الله ﷻ به دوئ ته ددې توقو كولو [خاص] بدله وركړى او [دعامو پيغورونو كولو بدله به ترې واخستې شى چې] ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ دوئ دپاره [په آخرت كښې] درد ناك عذاب دې، ﴿اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ۭ﴾ تاسو ﷺ دې منافقانو دپاره بخښنه غواړئ يا دوئ دپاره بخښنه نه غواړئ [دواړه خبرې برابر دى چې دوئ ته به ددې يوې هم فائده نه وى او بخښلې به نشى] ﴿اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً﴾ كه تاسو ﷺ دوئ دپاره اويا خلې [يعنى ډيره زياته] بخښنه هم غواړئ ﴿فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ۭ﴾ بيا به هم الله ﷻ دوئ ﷺ نه بخښى، ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۭ﴾ دا ځكه چې دوئ الله ﷻ او رسول ﷺ باندې كفر كړې دې ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿٨٠﴾﴾ او الله ﷻ داسې سركشو خلقو

Scanned with

ته [چې د ایمان او حق لټون بالکل نه کوی] هدایت نه کوی [ځکه ټول عمر په کفر کلك پاتې شو او مړهٔ پرې هم شو]

## معارف او مسائل

په رومبی آیت کښې نفلی خیرات کوونکو مسلمانانو ته دمنافقانو د پیغورورکولو بیان دې، په صحیح مسلم کښې راغلی دی چه حضرت ابو مسعود ﷛ اوفرمائیل چه الله تعالی مونږ ته د خیرات کولو حکم راکړو او زمونږ حال داوو چه خواری مزدوری به مو کوله بل هیڅ مال را سره نه وو، په دې خوارئ مزدورئ کښې به مو خیراتونه هم کول، چنانچه ابو عقیل نیم صاع [اوړه] [تقریبا پاؤ کم دوه سیره] خیرات پیش کړو بل کس دې نه لږ شان زیات خیرات پیش کړو منافقانو ورته پیغورونه ورکول شروع کړل چه دومره لږ څیزئې ولې خیرات کولو؟ الله تعالی خو د دومره څیز ضرورتمن نه دې، اوچا به چه ډیر خیرات اوکړو په هغوئ به ئې داتورپورې کولو چه ریا [ښودنې] د پاره ئې خیرات کړیدې په دې سلسله کښې دا آیت نازل شو، (۱)

﴿سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ﴾ دلته د ټوقو کولو بدلې ته ئې ټوقې کول فرمائیلی دی]

په دویم آیت کښې د منافقانو په باره کښې رسول الله ﷺ ته دا اوفرمائیلې شو چه، دوئ د پاره ستاسو ﷺ غوښتل او نه غوښتل دواړه برابر دی او که هر څومره بخښنه ورد پاره غواړې، الله تعالی هیچرې نه بخښی، د دې بیان په آیت، ﴿تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ﴾ کښې راتلونکې دې،

| |
|---|
| فَرِحَ |
| ا خوشحاله شو |
| ا کوم کسان چه [د جهاد نه |
| الْمُخَلَّفُوْنَ　بِمَقْعَدِهِمْ　خِلٰفَ　رَسُوْلِ اللّٰهِ　وَكَرِهُوْٓا　اَنْ |
| پاتې شوی خلق ا په کیناستنو خپلو سره ا په ملګرتیا نه کولو ا د رسول دالله ا اوبد اوګڼړل هغوئ ا چې |
| روستو] پاتې شوی دی په خپله ناسته باندې خوشحالیږی چه د رسول الله نه پاتې شوی دی ا او د الله په لار |
| يُّجَاهِدُوْا　بِاَمْوَالِهِمْ　وَاَنْفُسِهِمْ　فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ　وَقَالُوْا |
| جهاد اوکړی ا په مالونو خپلو سره ا او په نفسونو خپلو سره ا په لار د الله کښې ا او اوئیل هغوئ ا |
| په خپلو مالونو او جانونو سره جهاد کول بد ګڼړی ا او [په خپل مینځ کښې یو بل ته] وائی [دا سخته |
| لَا تَنْفِرُوْا　فِي الْحَرِّ　قُلْ　نَارُ جَهَنَّمَ　اَشَدُّ　حَرًّا |
| مه اوځئ ا په ګرمئ کښې ا ورته ا او وایه ا اور د دوزخ ا زیات سخت دې ا په لحاظ د ګرمئ سره ا |
| ګرمی ده] په ګرمئ کښې مه ځئ ا ته ورته او وایه د جهنم اور [د دنیا د ګرمئ نه] زیات سخت دې |
| لَوْ　كَانُوْا　يَفْقَهُوْنَ ﴿٨١﴾　فَلْيَضْحَكُوْا　قَلِيْلًا　وَّلْيَبْكُوْا |
| کاش ا چې وې دوئ ا چې پوهیدلې ا پس او دې خاندی دوئ لږ ا او او دې ژاړی |
| کاش که دوی پوهیدلې [نو داسې خبرې به ئې نه کولې] دوی دی [په دنیا کښې] لږ غوندې او خاندی ا او [په آخرت |

(۱) صحیح مسلم، کتاب الزکاة

Scanned with Ca

| |
|---|
| كَثِيرًا ۚ جَزَآءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۝ فَإِن رَّجَعَكَ اللَّهُ |
| دیر ا دا سزا ده ا په سبب دهغه عمل اچی دوئ کولو ا نو که چری اواپس راولی تا الله |
| كنبي به ا دير اوژاړی ادا [ژړل] د دوی د کړو سزا ده ا که الله تعالی چرته ته [د جهاد نه] د دوی یوې |
| إِلَىٰ طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ فَقُل لَّن تَخْرُجُوا |
| يوې ډلې ته ا ددوئ نه ا اواجازت اوغواړی ستانه ا دپاره دوتلو انواووایه ته ا هرګز به نه اوځی تاسو |
| ډلې ته راواپس کړې ا نودوی به ستانه د جهاد د تلو دپاره اجازت غواړی اته ورته اووایه چه هیڅ کله |
| مَعِيَ أَبَدًا وَلَن تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا ۖ إِنَّكُمْ |
| زماسره ا همیشه ا اوهرگزبه اونه کړئ اجنګ تاسو ازماپه ملګرتیاکښې اد دشمن سره ا بیشکه چی تاسو |
| به تاسو ما سره اونه اوځئ اوهیڅ کله به تاسو زما په ملګرتیا کښې د دشمن سره جهاد اونکړئ ا ځکه چه |
| رَضِيتُم بِالْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوا مَعَ الْخَالِفِينَ ۝ |
| راضی شوی یئ ا په کیناستلوباندې ا په اول ځل ا نوکینئ ادروستوپاتې شوؤسره ا |
| تاسو په اول ځل [د جهاد نه] په ایساردو باندې راضی شوې وئ انو [اوس هم] دناسو سره کینئ ا |

## آسان ترجمه قرآن

کوم خلق چه ﴿د غزوه تبوك نه﴾ وروستو پاتې کړې شوي وو ، هغوی د پیغمبر د تللو نه وروستو ﴿ په کوروکو کښې﴾ په ناسته باندې ډیر خوشحاله شو اوهغوی ته دا خبره بده لګیده چه دوی دالله او د رسول په لار کښې په مال او بدن سره جهاد وکړي اوهغوی وئیلي وو چه: دې ګرمئ کښې مه اوځئ "ته ووایه چه د جهنم اور په ګرموالی کښې ډیر سخت دې اارمان چه دوی پوهیدې ! اوس دا خلق دې ﴿دنیا کښې﴾ لږ ډیروخاندی، او بیا ﴿آخرت کښې﴾ به ښه وژاړی، کوم څه چه دوی کوي دهغې هم دا بدله ده. ﴿اې پیغمبره !﴾ که دې نه وروستو الله تعالی ته دوی کښې یوې ډلې ته واپس راوستې او دوی ﴿بل جهاد کښې﴾ وتلو د پاره تا نه اجازت وغواړي نو دوی ته ووایه چه :اوس تاسو مولې سره چرې هم نه شئ وتلې، او ماسره یو ځائې د یو دښمن سره چرې هم نه شئ جنګیدلې. تاسو په اول ځل کیناستل خوښ کړی وو . نو اوس هم هغه خلقو سره کینئ چه هغوی ﴿ دڅه عذر د وجې نه﴾ وروستو پاتې کیدو لګې دي:

## خلاصه تفسیر

﴿فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ رَسُولِ اللَّهِ﴾ دا روستو پاتې کیدونکې خوشحاله شو د رسول کریم ﷺ دتلو نه پس پخپلو تاستو پاتې کیدو باندې ﴿وَكَرِهُوا أَن يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ اودوئ ته د الله ﷻ په لار کښې پخپل مال او ځان سره جهاد کول ناخوښه شو [د دوؤ وجو نه یو دکفر په وجه او بل د آرام لټولو په وجه] او [نورو ته ئې هم] ﴿وَقَالُوا لَا تَنفِرُوا فِي الْحَرِّ﴾ هم وئیل چې تاسو [پداسې سختې] ګرمئ کښې [د کوره] مه اوځئ ﴿قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا﴾ تاسو ﷺ [په جواب کښې] اووایئ چې د جهنم اور [د دې نه هم] زیات [تیز او] ګرم دې نو عجیبه ده چې دې ګرمئ نه خو ځان ساتئ او جهنم ته پخپله دتلو انتظام کوئ چې کفر او مخالفت نه پریږدئ ﴿لَوْ كَانُوا

Scanned with Ca

﴿يَفْقَهُونَ﴾ څه به ښه وو که دوئ پوهيدلې نو [ددې بيان شوو څيزونو نتيجه دا شوه چې په دنيا کښې] ﴿فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا﴾ لږې ورځې [الوبې] خندا اوکړی [او بيا په آخرت کښې به] ﴿وَلْيَبْكُوا كَثِيرًا﴾ ډيرې ورځې [يعني هميشه] ژاړی [يعنی خندل يې د لږو ورځو دی بيا يې ژړل هميشه دپاره دی] ﴿جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ ددې کارونو په بدله کښې چې څه [کفر ، منافقت او خلافت وغيره ئې] کول [کله چې د دوئ حال معلوم شو] ﴿فَإِنْ رَجَعَكَ اللَّهُ إِلَىٰ طَائِفَةٍ مِنْهُمْ﴾ نو که الله ﷻ تاسو لره [ددغې سفر نه مدينې منورې ته صحيح سلامت] ددوئ يوې ډلې ته واپس راولی [دله ئې څکه اوونيله چې کيدې شی څينې په کښې تر دغه وخته پورې مړه شوی وی يا چرته وتلی وی او] ﴿فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ﴾ بيا داخلق [دخوشامندو په ډول يا د څپل خان نه د رومبی الزام لرې کولو په غرض يو جهاد ته تاسو سره] د تلو نه اجازت غواړی [او په زړه کښې ئې دا وخت هم دا خبره وی چې خالص د تلو وخت به څه بهانه اوکړو] ﴿فَقُلْ لَنْ تَخْرُجُوا مَعِيَ أَبَدًا﴾ نو تاسو ﷺ داسې اووايئ چې [اگر که دا وخت تاسو د څان خلاصولو دپاره خبرې جوړوئ ، ليکن الله ﷻ ستاسو هغه خبرې خودلی دی کومې چې په زړونو کښې دی څکه په ډير يقين سره وايم چې تاسو به کله هم ماسره [جهاد ته] نه څئ] ﴿وَلَنْ تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا﴾ او نه به زما په ملگرتيا کښې يو دښمن سره جنگ کوئ [چې اصل مقصود دې د تلو نه ولې چې] ﴿إِنَّكُمْ رَضِيتُمْ بِالْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ تاسو رومبې هم ناست پاتې کيدل خوښ کړی وو [او اوس هم هغه قصد لرئی] نو [خامخا دروغ خبرې ولې جوړوئ ،بلکه د اول پشان اوس هم] ﴿فَاقْعُدُوا مَعَ الْخَالِفِينَ﴾ هغې خلقو سره ناست اوسئ [چې واقعی] د روستو پاتې کيدو جوگه دی [لکه معذوره ، بوډاگان ، ماشومان او ښځې].

## معارف اومسائل

پورته نه دمنافقانو دحالاتو لړئ راروانه ده، چه دتبوک په غزاکښې هم شريک نشو حالانکه په دې کښې دبرخې اغستودپاره حکم عام وو اوس په دې آيتونو کښې هم ددوئ يو حال او بيا د دوئ دآخرت دسزا وعيد په دنيا کښې آئنده تول عمر دپاره دمجاهدينو دلړنه ددوئ ويستل او په هيڅ جهاد کښې ورته دشريکيدو اجازت نه ورکول بيان شويدی،

﴿مُخَلَّفُونَ﴾ د ﴿مُخَلَّفٌ﴾ جمع ده، معنی ئې متروک، [پريښودلې شوي] ده، هر کله چه دا خلق په جهاد کښې دنه شريکيدو په وجه خوشحاليدل او گنړل ئې چه مصيبت نو موڅان خلاص کړو ليکن په دې لفظ سره دا اشاره اوکړې شوه چه حقيقت دا دې چه الله تعالی ته په جهاد کښې ددوئ شريکيدل منظور نه شو ولې چه دهغې دفضيلت موندلو دوئ جوگه نه وو ، څکه ددې جهاد پريښودونکی نه دی، بلکه پريښودل شوی دی چې د الله تعالی اورسول الله ﷺ له ارخه جهاد ته دوئ پرې نښودې شو ،

﴿خِلَافَ رَسُولِ اللَّهِ﴾ د ، خلف، معنی دلته روستو او پس هم کيدې شی او ابو عبيده رحمه الله هم دا معنی اغستې ده، مطلب ئې دا شو چه هر کله رسول الله ﷺ جهاد ته لاړونو ددې نه پس په روستو پاتې کيدو باندې دوئ خوشحاليدل چه په حقيقت کښې دخوشحالئ څيزنه دې ﴿بِمَقْعَدِهِمْ﴾ مقعد ، دلته په مصدری معنی اغستې شويدې، چه معنی ئې قعود [کښيناستل] ده ،

Scanned with Ca

دلته د خلف بله معنی، مخالفت هم اغستې شی چه دا خلق د رسول الله ﷺ د حکم نه د مخالفت کولو په بنا، په کور ناست پاتې شو او یوازې خپله هم په کور نه کښیناسته بلکه نورئې هم د جهاد و تلو نه منع کول وئیل به ئې ﴿لَا تَنْفِرُوْا فِي الْحَرِّ﴾ د گرمئ په موسم کښې جهاد د پاره مه اوځئ،

دا خو دوړاندې نه معلومه شوې ده چه د تبوک د غزا حکم د سختې گرمئ په موسم کښې شوې وو الله تعالی د دوئ د خبرې جواب داسې ورکړو ﴿قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا﴾ یعنی دا بد نصیبه خلق دا موسمی گرمی خو وینی او ددې نه د ځان ساتلو غم کوی، د الله او رسول الله ﷺ د نافرمانئ په نتیجه کښې د جهنم په اور کښې د پریوتو نه د ځان ساتلو هیڅ فکر نه کوی، آیا دا موسمی گرمی د جهنم گرمئ نه زیاته ده څه. ورپسې فرمائی:

﴿فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا﴾ لفظی معنی ئې دا ده چه خاندئ لږ او ژاړئ ډیر] دا صیغه اگرچه د امر راغلې شوې دې لیکن مفسرینو په معنی د خبر کښې اغستې ده، او د امر په صیغې سره د راوړلو حکمت ئې دا بیان کړیدې چه داسې کیدل یقینی دی، یعنی دا خبره کیدونکې ده چه ددې خلقو دا خندا خوشحالی یو اخې د څو ورځو ده په آخرت کښې به ئې همیشه سراسری ژړاوی، چنانچه ابن ابی حاتم ﷫ د حضرت عبد الله بن عباس ؓ نه ددې آیت په تفسیر کښې نقل کړیدی چه: اَلدُّنْيَا قَلِيْلٌ فَلْيَضْحَكُوْا فِيْهَا مَا شَاءُوْا فَإِذَا انْقَطَعَتِ الدُّنْيَا وَصَارُوْا إِلَى اللّٰهِ فَلْيَسْتَأْنِفُوا الْبُكَاءَ بُكَاءً لَا يَنْقَطِعُ أَبَدًا [مظهری] (۱)

دنیا د څو ورځو ده په دې کښې چه څومره غواړئ هومره اوخاندئ بیا چه دنیا ختمه شی او الله تعالی ته مخامخ شئ نو ژړا به موشروع شی چه هیڅ کله به نه ختمیږی]،

په دویم آیت کښې د ﴿لَنْ تَخْرُجُوْا﴾ مطلب په تیر شوی خلاصه تفسیر کښې دا اغستې شویدې چه که دا خلق بیا په څه جهاد کښې د شریکیدو اراده ښکاره کړی نو هر کله چه په زړونو کښې ئې ایمان نشته هغه اراده به ئې هم اخلاص سره نه وی کله به چه ورته د تلو موقعه په لاس ورشی دغه وخت به د رومبې پشان په بهانو جوړولو سره ځان د جهاد نه پاتې کړی، ځکه هغوئ ﷺ ته حکم او شو چه که دوئ په جهاد کښې د شریکیدو د پاره پخپله هم اووائی نو تاسو ﷺ ورته حقیقت ښکاره کړئ چه ستاسو په قول، فعل باندې اعتبار نشته، تاسو به نه جهاد د پاره اوځئ او نه به زما په ملگرتیا کښې د اسلام د ښمن سره جنگ اوکړئ،

اکثرو مفسرینو ﷭ فرمائیلی دی چه دا حکم ورد پاره د دنیاوی سزا په ډول جاری کړې شو، که په رشتیا ؤ هم په یو جهاد کښې د شریکیدو د پاره اووائی نو هم ئې شریکیدو ته مه پریږدئ، (۲)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تُصَلِّ | | | | | | | |
| او مه کوه مونځ د جنازې | | | | | | | |
| او ته په | | | | | | | |
| عَلٰٓى اَحَدٍ | مِّنْهُمْ | مَّاتَ | اَبَدًا | وَّلَا تَقُمْ | عَلٰى قَبْرِهٖ | اِنَّهُمْ | كَفَرُوْا |
| په هیڅ یو کس باند | د دوئ نه | چی مړ شی | همیشه | او مه ودریږه | په قبر د هغه | بیشکه دوئ | کفر کړي دي |
| په دوی کښې که څوک مړ شی هیڅ کله د جنازې مونځ مکوه | | | | او مه [د دعا غوښتلو د پاره] د هغه د قبر سره اودریږه | | | |

(۱) تفسیر ابن ابی حاتم تحت هذه الآیة رقم الحدیث: ۱۰۶۴۳، والتفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۴، ص ۲۶۳
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۴، ص ۱۴۳، وتفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۲۱۷، وروح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۲۱۸

Scanned with Ca

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ | وَمَاتُوْا | وَهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۸۴﴾ | |
| په الله او په رسول دهغه | او مړه شو دوئ | او حال دا چې دوئ فاسقان وو | |
| خکه چه دوی په الله او دهغه په رسول باندې کفر کړی دی | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او ﴿اې پيغمبره!﴾ دې ﴿منافقانو نه﴾ چه څوك مړه شي لو ته په هغه باندې چرې هم ﴿جنازه﴾ مه کوه . اومه د هغه په قبر باندې اودریږه یقین وکړه چه دا هغه خلق دي چه دوی دالله او دهغه په رسول باندې کفر کړې دې او داسې حالت کښې مړه شوي دي چه دوی نافرمانه وو.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَا تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا﴾ او په دوئ کښې چې څوك مړ شي نو په هغه [دهغه په جنازه] چرې هم مونځ مه کوئ ﴿وَلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ﴾ او مه [دښخولو وغيره دپاره] دهغه په قبر اودريږې [ځکه چې] ﴿اِنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾ دوئ الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ سره کفر کړې دې ﴿وَمَاتُوْا وَهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۸۴﴾﴾ او دوئ د کفر په حالت کښې مړه شوی دی.

## معارف اومسائل

دصحيح احاديثونه په اتفاق دامت سره ثابت دی چه داآيت دعبدالله بن ابی منافق په مرګ اوپه هغه باندې دجنازې دمونځ کولو په باره کښې نازل شويدې، اودصحيحينو دروايت نه ثابت دی چه دهغه په جنازه باندې رسول الله ﷺ مونځ کړيدې، خوداآيت دهغې نه روستو نازل شو چه بياهيچرې هم رسول الله ﷺ دمنافق په جنازې باندې مونځ نه دې کړې،

په صحيح مسلم کښې دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه په روايت سره ددې آيت دنازليدو واقعه په تفصيل سره داسې بيان کړې شويده چه: کله عبدالله بن ابی بن سلول مړ شو اودهغه ځوئ عبدالله [چه يو مخلص مسلمان وو] صحابی رضي الله عنه وو درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوخواست ئې اوکړو چه تاسو راته خپل قميص راکړئ چه پلار ته م ئې کفن کړم، هغوئ ﷺ ورکړو، بيا حضرت عبدالله رضي الله عنه داخواست ورته هم اوکړو چه دده دجنازې مونځ هم اوکړئ، چه دجنازې مونځ دپاره اودريدونو حضرت عمر رضي الله عنه دهغوئ ﷺ جامه اونيوه اوعرض ئې اوکړو چه تاسو ﷺ دمنافق جنازه کوئ، سره ددې چه الله تعالى تاسو ﷺ دده دجنازې کولو نه منع کړی ئې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه، الله تعالى راته دبخښنې غوښتلو يانه غوښتلو اجازت دوئ [منافقانو] دپاره راکړيدې نوزه داويا خلونه زيات بخښنه هم غوښتلې شم دا اجازت په هغه آيت کښې ورکړې شوي ووکوم چه لږشان وړاندې هم په دې سورت [توبه] کښې تير شويدې يعنی ﴿اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ۭ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ۭ﴾ بيا رسول الله ﷺ دده دجنازې مونځ اوکړو، دمانځه نه پس داآيت نازل شو ﴿وَلَا تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ﴾ چنانچه دې نه پس هغوئ ﷺ چرې هم دمنافق دجنازې مونځ نه دې کړې،(۱)

(۱) صحيح مسلم، کتاب الفضائل، باب فضائل عمر رضي الله عنه: ج ۲، ص ۲۷۶، وصحيح البخاری، کتاب اللباس، باب لبس القميص: ج ۲، ص ۸۶۳

**په دې واقعاتوباندې څوانشکالونه اودهغې جوابونه :** دلته یو سوال دا هم پیدا کیږي چه عبد الله بن ابي داسې یو منافق وو چه منافقت یې په څوځایونوکښې ښکاره شوې وو او دټولو منافقانو سردار منلې شو ، هغه سره درسول الله ﷺ په داسې بیل ډول سلوک څنګه اوشو چه ورته ئې کفن دپاره خپل قمیص مبارک ورکړو؟

جواب ئې دادې چه ددې دوه سببه کیدې شي ، ① یو داچه دهغه ځوئ حضرت عبد الله صاحب رضی الله عنه یو مخلص صحابی رضی الله عنه وو دهغوئ رضی الله عنه سوال ئې کوخ نشوغورځولې اودهغوئ رضی الله عنه دخاطره ئې داغسې اوکړل ، بل داچه دبخاری شریف په یوحدیث کښې په روایت دحضرت جابر رضی الله عنه منقول دی چه کله دبدرپه غزاکښې درسول الله ﷺ تره حضرت عباس رضی الله عنه هم دقریشي سردارانو په لړکښې ګرفتارشو دهغوئ رضی الله عنه په بدن قمیص نه وو ، رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه دوئ رضی الله عنه ته دې قمیص واغوستلې شي ، په هغه باندې دبل چاقمیص برابرنشو سوا دعبد الله بن ابي نه ولې چه دادواړه دیو قدخاوندان وو ، دواړه لوړلوړ وو ، چنانچه دهغې په بدل کښې ورته دهغه دمرګ په وخت خپل قمیص رسول الله ﷺ ورکړو ، [قرطبي] (¹)

بل سوال دا راپورته کیدې شي چه دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه دا عرض کول درسول الله ﷺ په خدمت کښې په څه بناوو چه تاسو ﷺ دمنافق دجنازې دمونځ کولو نه الله تعالی منع کړې ئې ، ولې چه ددې نه وړاندې په بل یوآیت کښې دمنافق دجنازې دمونځ نه هغوئ ﷺ په ډاګه نه وومنع کړې شوی؟ ښکاریږي داسې چه حضرت عمر رضی الله عنه دامطلب دسورت توبه دآیت ﴿اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ﴾ نه اغستې وی ، نو اوس سوال دا پیدا کیږي چه که دې آیت دجنازې دمونځ په منعوالی باندې دلالت کولو نورسول الله ﷺ تر دغه مطلب ولې وانغستلو ، بلکه داسې ئې ولې اوفرمائیل چه په دې آیت کښې ماته اختیار راکړې شوې دې ،

جواب ئې دادې چه په حقیقت کښې دآیت ظاهری مطلب هم دغه اختیارورکول معلومیږي اوداهم ښکاره خبره ده چه داویاخلوبیانول څه حدبندئ دپاره نه بلکه دزیاتوالی دپاره دی ، نو ظاهری مطلب ئې دا راختو چه دمنافق بخښنه به نشي کولې اګرچه تاسوهرڅومره وار هغه دپاره بخښنه اوغواړئ چه په دې کښې په ډاګه هغوئ ﷺ دبخښنې غوښتلو دمنافق نه منع نکړې شو ، چنانچه په قرآن کریم کښې ددې بل یو مثال داسې راغلې دې ، سورت یسین کښې فرمائی ، ﴿سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ په دې سره هغوئ ﷺ دا انذاراوتبلیغ نه منع نکړې شو بلکه دنورو آیتونوله مخې دتبلیغ اوبلنې سلسله دوئ دپاره جاري لړل ثابت دی لکه فرمائی ﴿بَلِّغْ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ﴾ ﴿اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ﴾ وغیره ،

حاصل دا شو چه په ﴿سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ آیت سره خو هغوئ ﷺ ته اختیار ورکول ثابت شوی وو ، بیا په مستقل دلیل سره انذارجاري لړل هم ثابت شوی وو هغوئ ﷺ ته دا هم ثابت شوی وو چه ده ته به بخښنه نه کیږي لیکن دبل حکم الهی له مخې هغوئ ﷺ دبخښنې غوښتلو نه منع کړې شوی هم نه وو ، چنانچه رسول الله ﷺ په دې پوهید وچه دهغوئ ﷺ په قمیص ورواغوستلو یاپردجنازې په مونځ کولو سره به ئې بخښنه نشي کولې خوهرکله چه دې سره نورو اسلامی ښیګړوترون لړلو لکه داسې چه دده دخاندان خلق یانور کفار چه

(¹) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة : ج ۸ ، ص ۲۲۰

دهغوئ ﷺ دا رویه او گوری نو اسلام ته به را نزدې شي او مسلمانان به شي، او د جنازې د مونځ کولو نه پرېږده دا گه منع شوی نه وو ځکه ئې پر د جنازې مونځ او کړو،

ددې جواب دپاره يو دليل خو هغه جمله كيدې شي چه په صحيح بخاری كښې دحضرت ابن عباس ﷺ په روايت سره داسې منقول ده چه ،كه ما ته دا معلومه وی چه د[ ۷۰ ] او يا ؤ ځلو نه په زياته كړته دعا كولو سره ده ته بخښنه كيدې شوې نو ما به دغسې هم كړی وو ، [قرطبی] (۱)

بل دليل ئې هغه حديث شريف كيدې شي په كوم كښې چه رسول الله ﷺ فرمائيلی وو ، چه زما قميص ده لره دالله تعالى دعذاب نه نشی بچ كولې، خو دا كارم ځكه او كړو چه په دې عمل سره دده دقوم دزرگونو كسانو د مسلمانيدو اميدم لرلو چنانچه په مغازی .. او ځنې كتابونو د تفسير كښې راغلی دی چه ددې واقعې په ليدلو سره دخزرج قبيلې يو زر كسان مسلمانان شو ، (۲)

خلاصه دا شو چه د رومبی آيت نه پخپله رسول الله ﷺ ته دا يقين شوې وو چه زمونږ د څه عمل په له كبله به ددې منافق بخښنه نشي كولې، مگر هر كله چه د ظاهری الفاظو له مخه په يو آيت كښې اختيار ور كړې شوې وو او تر دغه وخته پورې په دا گه د ممانعت بل څه آيت نه وو نازل شوې، بل ارخ ته د كافر د احسان نه د ځان خلاصولو فائده هم په دې طريقې سره كيدې شوه او د نورو كافرانو د مسلمانيدو اميد هم په داسې كولو سره كيدې شو ځكه پرهغوئ ﷺ د جنازې مونځ كول غوره او گنړل، او فاروق اعظم ﷺ دا گنړل چې هر كله ددې آيت مبارك نه دا ثابته شوه چې دده بخښنه كيږی نو آيت له مخه دده بخښنه نه كيدل ثابت شوی وو ځكه پر د جنازې مونځ كول او ور دپاره د بخښنې دعا غوښتل ورته عبث او بيكاره ښكاريدل چه د نبوت شان سره ئې بې سمونه گنړلو ،ځكه ئې دا په ممانعت باندې حمل كړو ، رسول الله ﷺ دا كار اگر چه بې فائدې گنړلو خو بل ارخ ته د نورو كافرانو د مسلمانيدو فائده ترور ته ښكاريدله ځكه دا يو عبث كار نشو ، په دې شان نه خو د رسول الله ﷺ په عمل مبارک باندې څه اشكال پاتې شو او نه د فاروق اعظم ﷺ په قول باندې [بيان القرآن] (۳)

البته كله چه دا د اگيز آيت ﴿ وَلَا تُصَلِّ ﴾ نازل شو نو معلومه شوه كه يو خو د رسول الله ﷺ په نظر كښې دې نه يو دينی ښيگړه حاصليدې شوه ، خو يو بې سمونی او خرابی ترړا او لا ړيدې شوه چه ورته د رسول الله ﷺ فكر نه وو رسيدلې ، هغه دا وه چه مسلمانان به دې عمل سره زړه ماتی شی او خيال به ئې راشی چه گنې دلته مسلمانان او منافقان په يو تول تللې شی ، چنانچه ددې ممانعت نازليدو نه پس هغوئ ﷺ د هيڅ يو منافق جنازه نه ده كړې ،

**مسئله :** ددې آيت نه دا هم ثابته شوه چه د يو كافر د عزت كولو په غرض د هغه قبر ته او دريدل ياد هغې د زيارت دپاره تلل حرام دی البته د عبرت حاصلولو په غرض يا د څه مجبورئ له كبله جائز دی ، لكه هدايه (۴) كښې چه راغلی دی چه هر كله يو كافر مړ شی او د هغه د ښخولو دپاره څوک

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۱۹، وصحيح البخاري، كتاب التفسير، باب سورة التوبة، قوله استغفر لهم اولا تستغفر لهم الآية: ج ۲، ص ۶۷۳

(۲) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۲۱

(۳) بيان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۲۷، ۱۲۸

(۴) الهداية، كتاب الجنائز، قبيل فصل في حمل الجنازة: ج ۱، ص ۹۳

Scanned with Ca

کافر خپلوان نه وي نو مسلمان خپلوان ئې په دې شان ښخولې شي چه يو کنده کښې ئې وراومنډي او د مسلمان مړي پشان په شرعي طريقې سره ئې په عزت ښخ نکړي [بيان القرآن] (۱)

وَلَا تُعْجِبْكَ

او په تعجب کښې دې وانه چوي تا لره

او دوي په داسې حالت کښې مړه شوي دي چه کافران دي او

أَمْوَالُهُمْ وَأَوْلَادُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي

مالونه د دوئ او اولاد د دوئ بيشکه اراده لري الله چې عذاب ورکړي دوئ ته په دې سره په

د دوي مالونو او اولاد ته مه حيرانيږه [چه خومره ډير دي] الله غواړي چه د دې په سبب دوي ته په دنيا

الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ ۝ وَإِذَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ

دنيا کښې او اوځي ارواحونه د دوئ حال دا چې دوئ کافران وي او کله چې نازل کړې شي يو سورت

کښې عذاب ورکړي او دوي ته د کفر په حالت کښې مرګ راځي او کله چه يو سورت نازل شي او په هغه

أَنْ آمِنُوا بِاللَّهِ وَجَاهِدُوا مَعَ رَسُولِهِ اسْتَأْذَنَكَ

چې ايمان راوړئ په الله باندې او جهاد اوکړئ په ملګرتيا د رسول د هغه کښې نو غواړي اجازت ستا نه

کښې وي چه په الله باندې ايمان راوړئ او د رسول په ملګرتيا کښې جهاد اوکړئ نو په هغوي کښې

أُولُو الطَّوْلِ مِنْهُمْ وَقَالُوا ذَرْنَا نَكُنْ مَعَ الْقَاعِدِينَ ۝

خاوندان د قدرت د دوئ نه او وائي چې پريږده مونږ چې شو مونږ د کور ناستو سره

چه کوم طاقت لري هغوي ستا نه اجازت غواړي او وائي مونږ پريږده چه د ناستو خلقو سره پاتې شو

رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ

راضي شول دوئ چې شامل شي دوئ د روستو پاتې شوو ښځو سره او مهر وهلې شوې دې په زړونو د دوئ

دوي په دې باندې راضي دي چه د روستو پاتې شوو خلقو سره ايسار شي او د دوي په زړونو باندې مهر لګولې شوې دې

فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ ۝ لَٰكِنِ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ

نو دوئ نه پوهيږي ليکن رسول او هغه کسان چې ايمان ئې راوړې دې د هغه سره

نو دوي [په خبره] نه پوهيږي خو رسول او کومو کسانو چه د ده سره ايمان راوړې دې هغوي په خپلو

جَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ۚ وَأُولَٰئِكَ لَهُمُ

جهاد کوي هغوئ په مالونو خپلو سره په نفسونو خپلو سره او دا کسان چې دي هم دوئ لره دي

مالونو او جانونو سره [د الله په لار کښې] جهاد کوي او د دوي د پاره [په دنيا او آخرت کښې] د نيکو

الْخَيْرَاتُ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ

ټولې نيکيانې دي او دا کسان هم دوئ دي خلاصې موندونکي تيار کړي دي الله د پاره د دوئ

بدلې دي او هم دوي کامياب [او کامران] دي الله د دوي د پاره باغونه تيار کړي دي چه

(۱) بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۳۸

Scanned with Ca

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا ؕ | ذٰلِكَ | الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝ |
| باغونه | چې بهيږي | لاندې هغې نه | نهرونه | هميشه به اوسيږي | په هغې كښې | دا | كاميابي ده لويه |
| د هغې د بنګلو د لاندې به ولې بهيږي او دوی به په هغې كښې همېشه وی | | | | | | [يقيناچه] دا لويه كاميابي ده | |

## آسان ترجمه قرآن

او تا لره دې د دوی مال او اولاد ﴿ډېر والې﴾ تعجب كښې نه اچوې . الله تعالى خو غواړې چه دوی ته په دغه څيزونو باندې په دنيا كښې سزا وركړې او د دوی روح هم د كفر په حالت كښې اوځي. او كله چه يو سورت په دې حكم نازل شي چه: په الله باندې ايمان راوړئ او د هغه د رسول په ملګرتيا كښې جهاد وكړئ. نو دې ﴿منافقانو﴾ كښې هغه خلق چه هغوی مالدار دی تا نه اجازت غواړې او وائي چه مونږ هم هغه خلقو كښې شامل كړه كوم چه ﴿كورونو كښې﴾ ناست دي. دوی په دې خوشحاله دي چه وروستو پاتې كيدونكو ښځو كښې شامل شي . او د دوی په زړونو باندې مهر لګولې شوې دې پس دوی نه پوهيږی ﴿چه دوی څه كوي﴾ ليكن رسول او كومو خلقو چه ده سره ايمان راوړې دې. هغوی په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد كړې دې هم دوی د پاره ټولې نيكئ دي. او هم دوی كامياب دي. الله تعالى دوی د پاره داسې باغونه تيار كړې دي چه د هغې د لاندې نهرونه بهيږی . هغې كښې به دوی هميشه وي . او دا لويه كاميابي ده.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَاَوْلَادُهُمْ ؕ﴾ او د دوئ مالونه او اولاد دې تاسو ﷺ [په دې] تعجب كښې نه اچوی [چې په دې ناكاره او غضب شوؤ خلقو باندې دا نعمتونه څنګه اوشو ، نو په واقع كښې دا د دوئ دپاره نعمتونه نه دی بلكه د عذاب ذريعې څكه دی چې] ﴿اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الدُّنْيَا﴾ الله ﷻ ته صرف دا منظور دی چې ددې [بيان شوؤ] څيزونو په وجه په دنيا كښې [هم] دوئ لره په عذاب كښې ښكيل كړی اولري ﴿وَتَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ۝﴾ او د دوئ ساه د كفر په حالت كښې اوخيژی [چې په هغې سره په آخرت كښې هم په عذاب كښې ښكيل پاتې شی] ﴿وَاِذَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ اَنْ اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَجَاهِدُوْا مَعَ رَسُوْلِهِ﴾ او كله چې څه حصه د قرآن عظيم الشان ددې مضمون نازلولې شی چې تاسو [د زړهٔ د اخلاصه] په الله ﷻ باندې ايمان راؤړئ او دهغه درسول ﷺ په ملګرتيا كښې جهاد اوكړئ ﴿اسْتَاْذَنَكَ اُولُوا الطَّوْلِ مِنْهُمْ﴾ نو په دوئ كښې د وس خاوندان تاسونه اجازت غواړی او [د اجازت مضمون دا وی چې] ﴿وَقَالُوْا ذَرْنَا نَكُنْ مَّعَ الْقٰعِدِيْنَ ۝﴾ وائی مونږ ته اجازت راكړئی چې مونږ هم دلته ايساريدونكو سره پاتې شو [البته د ايمان او اخلاص په دعوې كښې څه كول نه راځی ، صرف دومره ئې اووئيل چې مونږ مخلصان يو] ﴿رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ﴾ دا خلق [په ډيرې بې ننګئ سره] په كور كښې ناستو ښځو كښې پاتې كيدو باندې راضی شو ﴿وَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ﴾ او الله ﷻ ددوئ په زړونو مهر اولګولو ﴿فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ۝﴾ چې دهغې په وجه بې عزتی نه پيژنی ﴿لٰكِنِ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ﴾ ليكن د رسول ﷺ او دهغوئ ﷺ په ملګرتيا كښې چې كوم مسلمانان دی ﴿جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ؕ﴾ هغوئ [البته دا حكم اومنلو او] پخپلو مالونو او ځانونو سره ئې جهاد اوكړو ﴿وَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْخَيْرٰتُ ؗ﴾ او هم دوئ

لره تـولې خوبيـانې دي ﴿وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ﴾ او هـم دا خلـق كاميـاب دي [او هغـه خـوبى اوكاميابى ئې داده چې] ﴿أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ﴾ الله ﷻ دوئ دپاره داسې باغونه تيار ساتلى دي ﴿تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ﴾ چې ترې لاندې ولې بهيږي [او] دوئ په كښې هميشه پاتې كيږي ﴿ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ﴾ او دا لويه كاميابى ده.

## معارف او مسائل

په دې آيتونو كښې هم ددغې منافقانو حال بيـان كړې شوچه آنو، بهانو سره دتبوک په غزا كښې دشريكيدونه ئې خانونه پاتې كړى و، په دوئ كښې ځنې منافقان مالداراوآسوده هم وو ددوئ ددغې حال په وجه مسلمانانو داخيال كولې شوچه داخلق هركله چه دالله تعالى په نزد نامقبول اورد كړې شويدى نو ددنيادا دومره نعمتونه ولې وركړې شو؟

جواب ئې په رومبى آيت كښې داسې اوشوچه په غوركولوسره ددوئ مالونه اواولادخو دوئ دپاره نعمت اورحمت نه بلكه په دنياكښې وردپاره عذاب دې اودآخرت عذاب به ئې دې نه سواوى، مال، دولت اواولادوردپاره عذاب په دنياكښې داسې دې چه ددې په مينه، حفاظت اوودې وركولوپه فكركښې داسې ډوب پاتې كيږى چه آرام ترنشى كولې، اګرچه د آرام اوراحت سامان ورسره ډيرزيات هم وى، ولې چه آرام اوراحت دزړه آرام اوراحت ته وئيلې شي مګرددوئ زړونه هروخت بې آرامه اوپه تراره وى، دې نه علاوه ددنيادې مال، متاع، دوئ لره دآخرت نه هم بې پرواكړيدى اوپه كفراونافرمانئ كښې ئې اخته كړيدى، نوپه دې وجه هم ورته عذاب په دنياكښې ښكـه وئيلې شي چه دآخرت دعذاب سبب جوړيږى، چنانچه قرآن كريم هم دلته ﴿لِيُعَذِّبَهُم بِهَا﴾ ښكه اوفرمائيل چه هم ددې مالونوپه ذريعه ورته الله تعالى سزا وركول غواړى،

د ﴿أُوْلُواْ ٱلطَّوۡلِ﴾ لفظ د تخصيص دپاره نه دې بلكه دې نه دغيراولى الطول [بې سوه] خلقوحال ښه زيات په ډاګه شوچه هغوئ سره خويوظاهرى عذرداهم وو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَجَآءَ | ٱلۡمُعَذِّرُونَ | مِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ | لِيُؤۡذَنَ | لَهُمۡ | |
| اوراغلل [عذركونكى] | دباندې دخلقو نه [ | دپاره ددې چې اجازت وركړې شي [هغوئ ته] | | | |
| اود ميرو والوخلقو نه عذر كونكى خلق راغلل [اوعذرونه د دې دپاره پيش كو] چه دوى ته [د پاتې | | | | | |
| وَقَعَدَ | ٱلَّذِينَ | كَذَبُواْ | ٱللَّهَ | وَرَسُولَهُۥ | سَيُصِيبُ |
| او كيناستل [هغه كسان] اچې دروغو ئې وئيلى وو [الله] اودهغه رسول ته [زر به اورسيږى | | | | | |
| كيدواجازت اوشي] اوهغه كسان ناست پاتې شوى دي چه الله او د هغه رسول ته ئې دروغ وئيلى وو زرده چه | | | | | |
| ٱلَّذِينَ | كَفَرُواْ | مِنۡهُمۡ | عَذَابٌ | أَلِيمٞ | |
| هغه كسانوته [چې دكفرپه لار تلى دي] [ددوئ نه] [عذاب] [دردناك] [ | | | | | |
| كومو كسانو په دوى كښې كفر كړې دې [هغوى ته به دردناك عذاب اورسيږى] | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او د باندنو نه هم بهانې كونكي خلق راغلل چه دوى لره ﴿د جهاد نه﴾ چُهټى وركړې شي او ﴿دغه هان﴾

کومو خلقو چه په الله او رسول باندې دروغ وئیلي وو، هغوی هم کیناستل. په دوی کښې چه چا کفر (مستقلاً) اختیار کړې دې، هغوی دپاره دردناك عذاب دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَجَآءَ الْمُعَذِّرُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ﴾ او څه بهانه ګر خلق د کلي والو دڅخه راغلل ﴿لِيُؤْذَنَ لَهُمْ﴾ دپاره ددې چې دوئ ته [په کور د پاتې کیدو] اجازت ورکړې شي [دهغوئ کلي والو خپنې] ﴿وَقَعَدَ الَّذِيْنَ كَذَبُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ چا چې په الله ﷻ اودهغه په رسول ﷺ [دایمان په دعوی کښې] بالکل دروغ وئیلي وو هغوئ بالکل ناست پاتې شو [په دروغه عذرونو کولو دپاره هم حاضر نشو] ﴿سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ په دوئ کښې څوك چې [تر آخره پورې] کافر پاتې کیږي هغوئ لره به [په آخرت کښې] دردناك عذاب وی [او څوك چې توبه کړی نو عذاب نه به خلاص پاتې شي].

## معارف او مسائل

ددې تفصیل نه معلوم شو چه په دغې کلي والو کښې دوه قسمه خلق وو یو داسې خلق وو چه په دروغو بهانو کولو سره ئې ځانونه دجهاد کولو نه پاتې کړل او بل داسې قسم سرکش خلق وو چه بهانې کولو دپاره هم حاضر نشو او په خپل مخ سره جهاد د تلو نه بیخی ناست پاتې شو،

حضرت جابربن عبد الله ﷠ فرمائیلی دی چه کله رسول الله ﷺ جدبن قیس ته دجهاد نه د پاتې کیدو اجازت ورکړو نو نور منافقان هم داجازت غوښتو دپاره خدمت کښې حاضر شو او په جهاد کښې دنه شریکیدو دپاره ئې څه انې بهانې وړاندې کړې، هغوئ ﷺ اګرچه اجازت خو ورکړو، مګر په پوه شو چه په دروغه بهانې کوی[1] خکه ئې ترمخ واړوو، په دې موقعه داآیت نازل شو په کوم کښې چه ددوئ عذرنه قبیلدل بیان شویدی او دردناک عذاب وعید ورته آورولي شویدې البته په ﴿اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ﴾ فرمائیلو سره اشاره اوکړې شوه چه په دوئ کښې دخینو عذر د کفر او منافقت له کبله نه وو بلکه د طبعی سستئ له کبله وو دغه کفار په دې عذاب کښې شامل نه دی،

| |
|---|
| لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ |
| ا نشته ا په کمزورو باندې ا |
| ا اوپه کمزور خلقو |
| وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى وَلَا عَلَى الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ مَا يُنْفِقُوْنَ حَرَجٌ |
| اونهٔ ا په بیمارانو باندې ا اونهٔ په هغه کسانو باند ا چې نهٔ مومی ا هغه څه ا چې ونې لګوی ا هیڅ ګناه |
| اوپه ناجوړو اوپه هغه کسانو چه دومره ورسره څه نه وی چه [په جهاد کښې ئې] خرچ کړی څه ګناه نشته |
| اِذَا نَصَحُوْا لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ مِنْ سَبِيْلٍ |
| هله چې اخلاص لرې هغوئ ا د الله سره ا او د رسول دهغه سره ا نشته په نیکانو خلقو باند ا څه لاره د الزام |
| خو چه په اخلاص سره د الله او د هغه د رسول ملګری وی ا او په نیکانو باندې [هم] څه ملامتیا نشته |

[1]) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۲۸۸

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٩١﴾ وَّلَا عَلَى الَّذِيْنَ اِذَا مَآ اَتَوْكَ

اوالله ا بښونکي ا رحم کونکي دي ا او نشته اعتراض ا په هغه کسانو باندي ا کله چي ا راغلي وړ تاته

اوالله ښونکي او مهربان دي ا اونه په هغه خلقو [ملامتيا شته] چه تا ته راشي [اوراتلل ئې په دي غرض وي]

لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَآ اَجِدُ مَآ اَحْمِلُكُمْ

دپاره ددي چي ته سواره کړي هغوئ ا نو اواونيل تا ا چي نه مومم زه ا هغه څيز ا چي سواره کړم تاسو

چه ته دوی [په سورلۍ] سوارهٔ کړې ا [خو] تا ورته اوونيل ما سره دومره څاروی نشته چه زه پرې تاسو

عَلَيْهِ ۠ تَوَلَّوْا وَّاَعْيُنُهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا اَلَّا

په هغې باند انو واپس شو هغوئ ا اوسترګي دهغوئ ا بهيدلې ا داوښکونه ا په وجه دغم ا چي نه

سوارهٔ کړم ا نودوی په داسې حال کښې واپس شی چه د هغوی د خفګان په وجه اوښکې بهيږی ا چه

يَجِدُوْا مَا يُنْفِقُوْنَ ﴿٩٢﴾ اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ

مومی هغوئ ا هغه څه ا چي خرچ ئې کړی په جهاد کښې ا بيشکه الار داعتراض ا په هغه کسانو ده

دوی سره دومره څه نشته چه [په جهاد کښې ئې] خرچ کړی ا ملامتيا په هغه کسانو باندې ده چه

يَسْتَاْذِنُوْنَكَ وَهُمْ اَغْنِيَآءُ ۚ رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ

چي اجازت غواړی ستا نه ا اودی هغوئ ا مالداران ا راضي شوهغوئ ا چي وی هغوئ ا سره ا

هغوی مالدارن وی اوستانه [دايساريدو] اجازت غواړی ا دوی غواړی چه د ليسارو شوو کسانو سره

الْخَوَالِفِ ۙ وَطَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٩٣﴾

دپاتې شوو ښځو ا اومهراووهلو ا الله ا په زړونو دهغوئ ا نو دوئ ا نه پوهيږی ا

شی ا اوالله تعالی د دوی په زړونو باندې مهر لګولې دې انودوی نه پوهيږی اچه په ايساريدو کښې زمونږ تاوان دې

## آسان ترجمه قرآن

په کمزورو خلقو باندې (په جهاد کښې د نه تلو) څه ګناه نشته ، نه په ناجوړو باندې او نه په هغه خلقو باندې چه هغوی څخه د خرچ کولو د پاره څه نه وي ، کله دوی د الله او د هغه د رسول د پاره مخلص وي په نيکانو باندې هيڅ الزام نشته ، او الله ډير بخونکې ، ډير مهربان دې . او نه په هغه خلقو څه ګناه شته چه دهغوی حال دا دې چه هغوی تا ته دې د پاره راغلل چه ته دوی ته څه سورلي ورکړې ، او تا او وئيل: چه ما څخه هيڅ سورلې نشته چه په هغې تاسو سواره کړم "نو هغوی په دې حالت کښې واپس شول چه د هغوی دسترګو نه ددې غم د وجې نه اوښکې بهيدلې چه دوی څخه د خرچ کولو د پاره څه نشته الزام خو په هغه خلقو دې چه دمالدار کيدو باوجود تا نه اجازت غواړي هغوی په دې خوشحاله دي چه هغوی په وروستو پاتې کيدونکو ښځو کښې شامل شول او الله تعالی د دوی په زړونو باندې مهر لګولې دې ، د دې وجې نه دوی ته د حقيقت پته نشته.

## خلاصه تفسير

﴿لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى﴾ په کم طاقته خلقو باندې څه ګناه نشته او نه په بيمارانو باندې

Scanned with Ca

﴿وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ حَرَجٌ﴾ او نه په هغه خلقو باندې چې د کومو [دجهاد سامان په تيارئ کښې] د لګولو دپاره څه درك نه لګي ، ﴿إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ کله چې دا خلق الله ﷻ او رسول ﷺ سره [په نورو حکمونو کښې] اخلاص لری [او د زړه نه فرمانبرداره پاتې کيږی نو] ﴿مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ﴾ پدغه نيکانو خلقو باندې څه قسم الزام نشته] نشی پرې لګيدې ، ولې چې الله ﷻ فرمائي چې ﴿لَا يُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ ، ﴿وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ او الله ﷻ لوئې بخښونکې دلوئې رحمت خاوند دې [که دا خلق د خپلې پوهې په جوړ معذوره وی او دخپل طرفنه په اخلاص او تابعدارئ کولو کښې کوشش کوی او په واقع کښې څه کمې پاتې شی نو معاف به ئې کړی] ﴿وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ﴾ او نه په هغه خلقو [څه ګناه او الزام شته] چې څه وخت هغوئ تاسو ﷺ ته دې دپاره راغلی چې تاسو ﷺ ورته څه سورلی ورکړئ او تاسو ﷺ [ورته] ﴿قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ﴾ وايئ چې ما سره خو هيڅ څيز نشته چې تاسو پرې باندې سوارۀ کړم [يعنی ستاسو سورلئ کولو دپاره ئې درکړم] ﴿تَوَلَّوا وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا﴾ نو هغوئ پداسې حال کښې [نامراده] واپس لاړ شی چې سترګو نه ئې اوښکې بهيږی ددې غمه چې [افسوس دې] ﴿أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ﴾ دوئ سره [دجهاد دسامان تيارولو دپاره] دلګولو هيڅ [مال] نشته [نه خپل ورسره شته او نه دبل خائې نه ورته ورکړې شو ، غرض دا چې دې بيان شوؤ معذورو خلقو باندې هيڅ ګرفت نشته] ﴿إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَاءُ﴾ بس الزام [لګيدل او ګرفت کول] خو يوازې په هغه خلقو دی چې سامان او وس لری او په کور باندې د پاتې کيدو] اجازت غواړی ﴿رَضُوا بِأَن يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ﴾ دغه [د ډيرې بې عزتئ نه] کور ناستو ښځو سره په پاتې کيدو باندې راضی شو ﴿وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ﴾ او الله ﷻ ددوئ په زړونو باندې مهر اولګولو ﴿فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ چې دهغې په وجه هغوئ [په ګناه اوثواب باندې] نه پوهيږی .

### خلاصه تفسير

په تيروشوؤ آيتونو کښې دداسې خلقو حالات بيان شوی ووچه په حقيقت کښې جهادته دتلونه معذوره وومګردسستئ په وجه ئې عذراوکړو ،اوناست پاتې شو ،يا دداسې منافقانووچه دخپل کفراومنافقت په وجه ئې په دروغوانوبهانوسره درسول الله ﷺ نه دناست پاتې کيدو اجازت غوښتې ووداسې ناتراشه او سرکش پکښې هم ووچه دڅه عذرپيش کولو اواجازت حاصلولو نه بغيرپه کورباندې ناست پاتې شوی وو ،ددوئ نامعذوره کيدل اوپه دوئ کښې کافرانو او منافقانو دپاره دردناک عذاب بيان په دغه تيروشوؤ آيتونو کښې راغلې وو ،

اوس په دې آيتونو کښې دهغه مخلصانو مسلمانانو بيان دې چه په حقيقت کښې دمعذور والی په وجه په جهاد کښې دشريکيدونه پاتې راغلل ،په دې کښې څه خلق نابينا ،رنځوران يا هغه معذوران ووچه ښکاره عذرئې لرلو ،اوڅه هغه خلق هم ووچه په جهاد کښې شريکيدو دپاره تيارو و ،بلکه په جهاد کښې شريکيدو دپاره ناقلاره وو ،خو سفر کښې دسورلئ دپاره ئې څه څاروې نه لرلو ،سفر اوږداوموسم دسختئ ګرمئ وو ،هغوئ درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو ،دجهاد کولوئې خپله جذبه ورته ښکاره کړه ،دسورلئ دنيشتوالی خپله مجبوری ئې

ورته بیان کړه، رسول الله ﷺ ته ئې خواست او کړو چه مونږ د پاره د سورلئ برابرولو څه انتظام او بند و بست او کړئ،

د تفسیر او تاریخ په کتابونو کښې داسې قسم ګنړ واقعات لیکلی شوي دي، ځنې خو داسې وو اول د سره ورته رسول الله ﷺ د سورلئ د ځاروي د نیشتوالی عذر او کړو چې زمونږ سره د سورلئ څه انتظام نشته نو دا خلق په ژړا روان شو، د الله تعالی انتظام ته ګورئ چه هم په دغه وخت شپږ اوښان رسول الله ﷺ ته د پیش کولو د پاره راوستې شوا و هغه ئې دوئ ﷺ ته ورکړل [مظهري] [۱] هم په دغې کسانو کښې دریو تنو د پاره حضرت عثمان غني ﷺ د سورلئ انتظام او کړو، سره د دې چه دې نه وړاندې ئې هم ډیر غټ انتظام په خپل ذاتي خرچ کړې وو،

ځنې پکښې داسې هم وو چه تر آخره پورې ورته سورلئ ملاؤ نشوې او د مجبورئ له کبله په جهاد کښې د شاملیدو نه پاتې شو، هم په دې آیتونو کښې د دې تولو حضراتو بیان راغلې دې چه عذر ئې الله تعالی قبول کړو په آخر کښې الله تعالی خبرداري ورکړو چه وبال خو د هغه خلقو دې څوک چه سره د وس لرلو نه یې په جهاد کښې شریکیدل لګه د ښځو خو ښ نه کړل لکه فرمائي: ﴿إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَاءُ﴾

الحمد لله د [۱۰] لسمې سیپارې د پښتو ترجمه ختمه شوه، وریسې د الله تعالی په تکیه د یولسمې سیپارې ترجمه شروع کوم،

[الحمد لله پاره نمبر ۱۰ ختمه شوه]

| |
|---|
| يَعْتَذِرُونَ إِلَيْكُمْ إِذَا رَجَعْتُمْ إِلَيْهِمْ ۚ قُلْ لَا تَعْتَذِرُوا |
| عذرونه به پیش کوی \| تاسو ته \| کله چې \| واپس ورشئ تاسو \| دوئ ته \| ورته اووایه \| چې عذرونه مه کوئ |
| دوئ به تاسو ته [رنګ رنګ] عذرونه پیش کوی \| کله چې ورته تاسو واپس شئ \| ورته اووایه چې عذرونه مکوئ |
| لَنْ نُؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّأَنَا اللَّهُ مِنْ أَخْبَارِكُمْ ۚ |
| هرګز باور نه کوو مونږه \| په خبره ستاسو \| په تحقیق خبر کړی یو مونږه \| الله \| د حالاتو ستاسو نه |
| مونږ هیڅکله ستاسو خبره نه منو \| ........مونږ ته الله پاک ستاسو د حالاتو خبر راکړې دي |
| وَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَى |
| اواوس به ګوری الله \| عمل ستاسو ته \| او رسول د هغه [هم] \| بیا \| به واپس بوتلې شئ تاسو \| هغه الله ته |
| اوبیا به هم الله او د هغه رسول ستاسو کارونه وینی \| اوبیا به هغه ذات [الله] ته واپس کیږئ |
| عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٩٤﴾ |
| چې عالم دې په پټه \| اوپه ښکاره \| نو خبر به درکړی تاسو ته \| په هغه عملونو \| چې وئ تاسو چې کول به مو |
| چې هغه ته پټ او ښکاره هرڅه معلوم دی \| نو تاسو چې کوم عملونه کول د هغې خبر به درته درکړی |
| سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انْقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ |
| قسمونه به خوری دا خلق \| په الله باندې \| تاسو ته \| کله چې \| واپس راشئ تاسو \| دوئ ته \| |
| چې تاسو واپس شئ نو دوئ به درته په الله قسمونه خوری \| دې د پاره چې تاسو ترې |

[۱]) التفسیر المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۲۸۱

لِتُعْرِضُوْا عَنْهُمْ ۭ فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمْ ۭ اِنَّهُمْ رِجْسٌ ۡ

دپاره ددې چې مخ واړوئ تاسو | دسزا ددوئ نه | نومخ واړوئ | دسزا ددوئ نه | بیشکه دوئ | پلیت دی

نه ددوه اوکړئ | په ایساریدنې نه ملامته کوئ | نوتاسوترې ډډه اوکړئ | ............دوئ پلیت دی

وَّمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۹۵﴾

اوځائې دورتلو ددوئ | دوزخ دې | په وجه دبدلې | په هغه کارونو | چې وو دوئ | چې کول به ئې

اوددوئ ځائې دوزخ دې | ............اودا د دوئ د عملونو بدله ده

يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۚ فَاِنْ تَرْضَوْا

قسمونه خوری دوئ | تاسوته | دپاره ددې چې راضی شئ تاسو | ددوئ نه | نو که تاسو | راضی شئ

دوئ تاسو ته ځکه قسمونه خوری | چې تاسوترېنه رضا شئ | نوهرڅوکه تاسود دوی نه راضی هم شئ

عَنْهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَرْضٰى عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۹۶﴾

ددوئ نه | نو بیشکه الله | نه راضی کیږی | دخلقو | فاسقانونه |

نو الله ﷻ دداسې شرارتی خلقونه نه رضا کیږی |

## آسان ترجمه قرآن

﴿مسلمانانو!﴾ چه کله تاسو ﴿تبوك نه﴾ واپس دې﴿منافقانو﴾ ته لاړشئ، نو دوی به تاسو ته ﴿قسم قسم﴾عذرونه پیش کوي ﴿اې پیغمبره !﴾ دوی ته اووایه چه (اوس) بهانې مه کوئ: مونږ چرې هم ستاسو په خبره یقین نه کوو . الله تعالی مونږ ستاسو د حالاتو نه خبر کړي یو.او آئنده هم الله ستاسو عمل وینی، او دهغه رسول هم.بیا به تاسو هغه ذات ته واپس شئ چه هغه ته د ښکاره او د پټو خبرو پوره پوره علم دې . بیا به هغه تاسو خبر کړي په هغه څه چه تاسو کول چه کله تاسو دوی ته واپس شئ نو دا خلق به تاسو ته په الله باندې قسمونه خوری . دې دپاره چه تاسو د دوی نه مخ واړوئ نو تاسو هم دوی نه مخ واړوئ یقین وکړئ چه دوی سراسر ګندګی ده، اوڅه چه دوی کوي د هغې د وجې نه د دوی ځائې جهنم دې دوی تاسوته دې وجې نه قسمونه خوري چه تاسو دوی نه خوشحاله شئ . حال دا دې که تاسو دوی نه خوشحاله هم شئ نو الله د داسې نافرمانو خلقونه نۀ راضی کیږی.

## خلاصه تفسير

[يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ ۭ] دا خلق به [تول] ستا په وړاندې عذر پیش کوی کله چې ته دوئ ته واپس ورشې [قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ] انو انې محمد ﷺ ! [ تاسو [ د ټولو د طرفنه صفا اووایئ چې [پرېږدئی] دا عذر مه کوئی مونږ به تاسو لره ریښتونی نه منو [قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ ۭ] [ځکه ] الله ﷻ مونږ ته ستاسو [داصلی حالت] خبر راکړې دې [ چې ستاسو دپاره هیڅ عذر صحیح نه وو] [وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ] او [ خیر دې] بیا دپاره هم به هم الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ ستاسو حالت ګوری [ معلومه به شی چې د ګمان مطابق تاسو څومره تابعدار او مخلص یئ] [ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ] بیا به تاسو داسې ذات ته واپس شئ چې هغه ته پټ او ښکاره هر څه معلوم دی [اوهغه ذات نه ستاسو هیڅ عقیده او هیڅ عمل پټ نه دې] [

Scanned with Ca

يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٩٤﴾] بيا به هغه ذات تاسو ته اووائي چې تاسو څه کول [او دهغې بدله به درکوي ] [سَيَحْلِفُونَ بِاللّٰهِ لَكُمْ] او اوس هغوئ تاسو ته په الله تعالى قسمونه خوري [چې مونږ ته عذر وو ] [إِذَا انْقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ] کله چې تاسو هغوئ ته واپس شئ چې تاسو هغوئ لره د هغوئ په حالت باندې پريږدئ [او ملامتيا وغيره نه کوئ] [فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ] نو تاسو [دهغوئ مطلب پوره کړئ او] هغوئ د هغوئ په حالت باندې پريږدئ [دې فاني غرض سره نه دهغوئ هيڅ اونشي څکه چې] [إِنَّهُمْ رِجْسٌ ۖ] هغه خلق بالکل پليت دي او [ اخير کښې ] [وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۚ] دهغوئ ځائې دوزخ دې ، [جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٩٥﴾] د هغه کارونو په بدله کښې چې کوم به هغوئ د [انفاق وخلاف وغيره] کول [او ددوئ هم دا تقاضا ده چې دوئ هم ددوئ په حال پريږدئی څکه چې د تعرض نه مقصود اصلاح کول دی او ددوئ دخبيث توب نه ددې اميد نشته دې او داشان] [يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۖ] دوئ به په دې وجه قسمونه خوري چې تاسو ددوئ نه راضي شئ نو [ اول خو ته د الله تعالى دښمنانو نه ولې راضي کيږې خو بالفرض ] [فَإِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ] که تاسو ددوئ نه راضي شئ نو [دوئ ته به څه فائده اوشي څکه چې] [فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يَرْضَىٰ عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِينَ ﴿٩٦﴾] الله تعالى داسې شرخوښې خلقو نه نه راضي کيږی [او د الله تعالى د رضا نه سوا د مخلوق رضا بې فائدې ده]

## معارف او مسائل

په تيروشوؤآيتونو کښې دهغه منافقانو بيان ووچه دتبوک غزاته دوتلونه وراندې ئې په غلطو او درغو بهانو کولو سره عذر کړې وو ،اوس په دې آيتونو کښې دهغو بيان دې چه دجهادنه په واپسې باندې درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشواودځپل جهادنه ئې د غير حاضر کيدو د دروغو عذرونه پيش کړل دا آيتونه مدينې طيبې ته واپس راتلونه وراندې نازل شوې ووچه پکښې دآئنده راپيښيدونکې واقعې خبروو ،هغه داچه کله تاسو ﷺ واپس مدينې طيبې ته راشئ نومنافقان به دعذرکولو دپاره ستاسو خواته راشي چنانچه هم دغسې اوشو.

په دې آيتونو کښې رسول الله ﷺ ته درې حکمونه ورکړې شو ،اول داچه کله د دروغو عذرونو پيش کولو دپاره درته راشي نوتاسو ﷺ ورته اووائي چه فضول دروغ عذرونه مه کوئ ،مونږ به ستاسو دخبرې تصديق نه کوؤ ،ولې چه الله تعالى دوحې په ذريعه مونږ ته ستاسو ټول حالات ،خيالات ،ستاسو ورانکارئې اودزړونو پټې ارادې خودلې دی ،چه دهغې په ذريعه راته ستاسو دروغ په ډاګه شوه څکه عذر بيانول مو فضول دی .وريسې فرمائی ﴿وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ﴾ په دې کښې دوی ته مهلت ورکړې شو چه اوس دې هم توبه اوکړي دمنافقت په پريښودودې سوچه مسلمانان جورشی ،څکه چه په دې کښې اوئيلې شوچه په آئنده کښې به الله تعالى اودهغه رسول ﷺ ستاسو عمل گوري چه هغه به څنګه وی ،دهغې په جوربه درسره عمل کولې شی که په توبې کولو سره سوچه مسلمانان شوې نوګناهونه به مو معاف شی ورنه په دروغه دابهانې به درته هيڅ فائده درنه کړی.

دويم حکم په دويم آيت کښې دا بيان شوې دې چه ستاسو په واپسې به دا خلق په دروغو قسمونو خورلوسره ستاسو تسلی کوی ،مقصد به ئې دا وی چه ﴿لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ﴾ [جهادته ددوی نه تللوپسې مخه مه اوړې ،په دې باندې ملامتيامه کوې.څکه ارشاد اوشوچه ددوی دا خواهش

پوره کړي لکه فرمائي ﴿فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ﴾ يعنې تاسو دوی پسې مخه مهٔ اوړئ، مهٔ پرې ملامتيا واړئ او مهٔ ورسره تېنګ تعلقات ساتئ، ولې چه د ملامته کولو نه خو ئې څه فائده نشته. هر کله چه د دوی په زړونو کښې ايمان نشته او په لټون کښې ئې هم نه دی نو د تش ملامته کولو نه څه جوړيږي؟ ولې خپل وخت برباد وئ؟

په دريم آيت کښې دريم حکم داديے: داخلق په دروغو قسمونو خوړلو سره تاسو صلی الله عليه وسلم او مسلمانان راضي کول غواړي، ددې په باره کښې الله تعالی داهدايت اوکړو چه ددوی داخواهش دې پوره نه کړې شي، تاسو ترې راضي نه شئ او داڻې هم اوفرمائيل چه که بالفرض تاسو ترې راضي هم شوئ نو هغوی ته هيڅ فائده ځکه نشته چه الله ترې راضي نه دی، خو الله تعالی به څنګه ترې راضي شي، هر کله چه دوی په خپل کفر او منافقت باندې ټينګ دي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَلْاَعْرَابُ | | | | | | |
| دعربو دباندې خلق | | | | | | |
| [باندېچيان [منافقان] په کفر | | | | | | |
| اَشَدُّ | كُفْرًا | وَّنِفَاقًا | وَّاَجْدَرُ | اَلَّا يَعْلَمُوْا | حُدُوْدَ | |
| زيات سخت دی | په کفر کښې | او په منافقت کښې | او زياته مناسبه خبره ده | چې پوهه نه وی | په حدونو | |
| او نفاق کښې ډير سخت دی | هغوئ د پاره هم دغه شان خبره پکاروه | چې الله ﷻ | | | | |
| مَآ | اَنْزَلَ اللهُ | عَلٰى رَسُوْلِهٖ | وَاللهُ | عَلِيْمٌ | حَكِيْمٌ ۞ | |
| دهغه دين باندې | چې نازل کړي دې الله | په رسول خپل باندې | او الله | ښهٔ پوهه دې | ښهٔ حکمت والا دې | |
| په خپل پيغمبر کوم حکمونه نازل کړی دی | دهغې حدونه اونه پيژنی | الله په هرڅه پوه دې | دحکمت خاوند دې | | | |
| وَمِنَ الْاَعْرَابِ | مَنْ | يَّتَّخِذُ | مَا | يُنْفِقُ | مَغْرَمًا | وَّيَتَرَبَّصُ |
| او دباندېچيانونه | خينې هغه څوك دی | چې نيسی | هغه څه | چې خرج کوی | تاوان | او انتظار کوی |
| او په باندېچيانو کښې بعضې کسان داسې دی | چې دالله ﷻ په لار کښې کوم خرج کوی | نو هغه نقصان ګڼري | | | | |
| بِكُمُ | الدَّوَآئِرَ | عَلَيْهِمْ | دَآئِرَةُ السَّوْءِ | وَاللهُ | سَمِيْعٌ | عَلِيْمٌ ۞ |
| په تاسو باندې | دګردش دزمانې | دې په دوئ باندې | ګردش دبدئ | او الله | اوريدونکې | پوهه دې |
| او په تاسو باندې دانقلاب راتلو انتظار کوی | اخو هم په دوئ خراب وخت راتلونکې دې | او الله آوريدونکې او پوهه دې | | | | |
| وَمِنَ الْاَعْرَابِ | مَنْ | يُّؤْمِنُ | بِاللهِ | وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ | وَيَتَّخِذُ | |
| او خينې دباندېچيانونه | هغه څوك دی | چې ايمان لری | په الله باندې | او په ورځ دآخرت باند | او نيسی | |
| او په باندېچيانو کښې څينې خلق داسې هم دی | چې په الله ﷻ يقين ساتی | او کوم خرچ چې کوی | | | | |
| مَا | يُنْفِقُ | قُرُبٰتٍ | عِنْدَ اللهِ | وَصَلَوٰتِ | الرَّسُوْلِ | اَلَآ اِنَّهَا |
| هغه څه | چې خرج کوی | ذريعه دنزديکت | په نزد الله | او ذريعه ددعاګانو | درسول | خبردار بيشکه دا |
| هغه دالله ﷻ په دربار کښې دنزديکت او دپيغمبر نه ددعا اخستلو ذريعه ګڼري | بيشکه ددوئ دا خرځ کول | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُرْبَةٌ | لَّهُمْ ۭ | سَيُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ | فِيْ رَحْمَتِهٖ ۭ | اِنَّ اللّٰهَ |
| ذريعه دنزديکت ده | دپاره ددوئ | ضروربه داخل کړي دوئ لره الله | په رحمت خپل کښې | بيشکه الله |
| ددوئ دنزديکت ذريعه ده | الله ﷻ به ئې ډيرزردخپل رحمت دسيورى لاندې راولي | | | بيشکه الله ﷻ |
| غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ﴿٩٩﴾ | | | |
| بښونکې | مهربان دې | | | |
| بښونکي مهربان دې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

کوم چه بانډچيان (منافقان) دي ، هغوی په کفر او منافقت کښې ډير سخت دي ، اود لورو نه زيات ددې لايق دي چه د هغه دين د احکامونه ناخبره وي کوم چه الله په خپل رسول باندې رالیږلي دي او الله علم والا هم دې او حکمت والا هم. دغه بانډچيانو کښې هغه خلق هم دی چه (دالله په نوم باندې) خرچ شوي مال لره تاوان گنړي، او په دې انتظار کښې وی چه تاسو (مسلمانانو) باندې څه مصيبت راشي (حال دادې چه) بد ترين مصيبتونه خو په دوی باندې دې — او الله هر څه آوري ، او په هر څه پوهيږی اوپه دې بانډچيانو کښې هغه خلق هم دې چه په الله او په ورځ دآخرت باندې ئې ايمان راوړې دې،اوڅه چه (دالله په نوم) خرچ کوي هغه الله ته د نزديکت د حاصلولو دپاره اود رسول د دعاگانو اخستو دپاره يوه ذريعه گنړي، بالکل! دا د دوی دپاره يقيناً د نزديکت ذريعه ده.الله تعالیٰ به دوی لره خپل رحمت کښې داخل کړي.بې شکه الله ډير بخونکې ، ډير مهربانه دې.

## خلاصه تفسير

[په دې منافقانو کښې چې کوم] [اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّنِفَاقًا] د کلی اوسيدونکی [دی هغه] خلق [د سخت مزاج په وجه] په کفر او نفاق کښې ډير زيات سخت دی [وَاَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ ۭ] او [د علماء کرامو او عاقلانو نه د لرې والی په وجه] پکار ده چې دوئ داسې وی چې دوئ ته د هغه احکامو علم نشته دې چې کوم الله تعالیٰ پخپل رسول ﷺ باندې نازل کړی دی [ځکه چې دوئ هر کله د پوهه خلقو نه لرې اوسيږی نو لازمی خبره ده چې دوئ به جاهلان وی ، او هم په دې وجه به ددوئ په مزاج کښې سختی وی او د کفر او نفاق سختوالې به په کښې وی] [وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿٩٧﴾] او الله تعالیٰ ډير لوئې علم لرونکې او ډير حکمت والا ذات دې [هغه لوئې ذات ته ددې ټولو کارونو ورته پته ده او په حکمت سره به مناسب سزا ورکوی] [وَمِنَ الْاَعْرَابِ مَنْ يَّتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ مَغْرَمًا وَّيَتَرَبَّصُ بِكُمُ الدَّوَاۗىِٕرَ ۭ] او په دې [مذکوره منافقانو] کلی والو کښې خينې داسې دی چې [ دوئ کفر او نفاق او جاهليت سره سره په بخل او عداوت سره هم موصوف دی تر دې چې] څه چې [ د جهاد او زکوة وغيره په موقعو باندې د مسلمانانو د شرمه خرچ کوی نو هغه دوئ جرمانې [په مثال] گنړی [ دا خو بخل شو] او [عداوت دادې چې] تاسو مسلمانانو د دپاره [د زمانې] د گردشونو په انتظار کښې وئ [چې هسې په دوئ باندې څه حادثه راشي او دوئ ختم شي] [عَلَيْهِمْ دَاۗىِٕرَةُ السَّوْءِ ۭ]په دې [منافقانو] باندې خراب وخت راتلونکې دې[ ځکه چې فتوحات زيات شو ، کافران ذليل شو ، د دوئ ټول حسرتونه هم په زړه

کښې پاتې شو، او ټول عمر ئې په خفګان او ویره کښې تیر شو] [وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ] او الله تعالی [ددوئ د کفر او نفاق خبرې] [ آوریدونکې دې [ او ددوئ د زړه په خیالاتو د اتخاذ مغرم او تربص دوائر] ورته معلوم دی [نو دې ټولو ته به سزا ورکوی ] [وَمِنَ الْاَعْرَابِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ] او ځینې کلی والو کښې داسې هم دی چې په الله ﷻ باندې او د قیامت په ورځ باندې [پورا پورا] ایمان لری [وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ قُرُبٰتٍ عِنْدَ اللّٰهِ وَصَلَوٰتِ الرَّسُوْلِ] او څه چې [دوئ په نیکو کارونو کښې ] خرچ کوی نو دا د الله تعالی د قرب ذریعه اود رسول کریم ﷺ د دعا [اخستو] ذریعه جوړوی [ځکه چې د رسول کریم ﷺ عادت مبارك وو چې په داسې موقعو باندې به ئې هغه خلقو ته دعا کوله چې خرچ به ئې کولو لکه څنګه چې احادیثو کښې دی] [اَلَآ اِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ] یاد ساتئ چې ددوئ دا خرچ کول بیشکه ددې خلقو دپاره موجب د قربت د [ الله تعالی ] دی [او د دعا کیدل او آوریدل خو ددوئ مخکښې دی او ددې خبر ورکولو ضرورت نه وو او هغه قرب دادې چې] [سَيُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ] دوئ لره به الله تعالی ضرور پخپل [خاص] رحمت کښې داخل کړی [ځکه چې] [اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ] الله تعالی لوئې مغفرت والا او رحمت والا دې [نو ددوئ خطاګانې به معاف کړی او دوئ به خپل رحمت کښې داخل کړی]

**معارف او مسائل**

په تیروشوو آیتونو کښې د مدینې منورې د منافقانو بیان وو، اوس دې آیتونو کښې د هغه منافقانو بیان دې چه د مدینې منورې خواؤ شا کښې په کلو کښې به اوسیدل.

[ اَلْاَعْرَابُ] دعرب لفظ جمع نه ده، بلکه اسم جمع ده چه کلی والو د پاره استعمالولې شی ددې مفرد به [ اعرابی]وی څنګه چه د[انصار]مفرد انصاری راځی.

په دې آیت کښې د دوی حال دا اوښودلې شو چه دوی په کفر او منافقت کښې د ښار د منافقانو نه ځکه زیات دی چه دعلم او علماؤ نه لرې پاتې کیږی او عموماً په ناپوهې او د زړونو په سختوالی کښې اخته وی، دسختو زړونو خاوندان وی لکه الله تعالی فرمائی[وَاَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ] [یعنی دا خلق په داسې ماحول او چاپیریال کښې پاتې کیږی چه د هغې په وجه د الله تعالی د نازل کړې شوې حدودو نه بې خبره پاتې شی، ولې چه نه خو قرآن کریم د دوی مخې ته راځی او نه د هغې په معنو، مطلبونو او په احکامو باندې واقف وی.

په دویم آیت کښې هم د دغې اعرابو یو حال دا بیان شوې دې چه دا خلق په زکوة وغیره کښې مال لګول د یو تاوان کولو په ډول ګڼری، ځکه چه ایمان خو ئې په زړه کښې شته دې نه، خالص د خپل کفر پټولو دپاره مونځ هم کوی او فرض زکوة هم ورکوی خو په زړه کښې ئې تلوسه وی چه دا مال مې عبث لاړو، ځکه په دې انتظار کښې اوسیږی چه ماتې اوخوری او مونږه د دې مصیبت نه خلاص شو.

[اَلدَّوَآئِرَ] د[دائرة]جمع ده، د عربی لغت په اعتبار[دائرة] هغه بدل شوی حالت ته وئیلې شی چه ړومبې ښه وی او بیا خراب شی ځکه قرآن کریم د دوی په جواب کښې اوفرمائیل[عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ] [یعنی هم په دوی خراب حالت راتلونکې دې او دوی به د خپلو خبرو او کارونو په وجه نور زیات ذلیله شی.

Scanned with Ca

د کلي والو منافقانو د حالاتو بيانولو نه پس د قرآني طرز مطابق د هغه کلي والو بيان په دريم آيت کښې مناسب اوګنړلې شو کوم چه سوچه او پاخه مسلمانان دي، دپاره د دې چه معلومه شي چه د کلو اوسيدونکي هم ټول يو شان نه وي، په دوی کښې مخلصان مسلمانان او پوهه خلق هم وي، د دوی حال دا دې چه زکوتونه او خيراتونه ورکوي نو الله تعالی ته د نزديکت ذريعه ئې ګنړي او د رسول الله ﷺ د دعاګانو اميد لري.

زکوة، خيرات ورکولو سره خو د الله تعالی نزديکت حاصليدل ښکاره خبره ده او په دې سره د رسول الله ﷺ د دعاګانو اميد لرل په دې بنياد دی چه چرته الله تعالی ورته د مسلمانانو نه د خيرات وصولولو حکم ورکړې دې ورسره ئې دا هدايت ورکړې دې چه زکوة ادا کونکو ته دعا هم کوې لکه په يو راتلونکي آيت کښې فرمائي: خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيْهِمْ بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ؕ هرکله چه په دې آيت کښې دعا دپاره د [صل عليهم] لفظ استعمال شو ځکه په دې آيت کښې هم د رسول الله ﷺ دعاګانو دپاره لفظ د [صلوٰت] راوړې شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالسّٰبِقُوْنَ | الْاَوَّلُوْنَ | مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ | وَالْاَنْصَارِ | وَالَّذِيْنَ | |
| او رومبني | اولني | دمهاجرينو نه | اودانصارونه | اوهغه کسان | |
| او هغه مهاجرين او انصارچې دټولونه رومبي ئې ايمان ته سبقت کړې دې اوځوک چې | | | | | |
| اتَّبَعُوْهُمْ | بِاِحْسَانٍ ۙ | رَّضِيَ اللّٰهُ | عَنْهُمْ | وَرَضُوْا | عَنْهُ |
| چې روستوراغلل په دوئ پسې | په نيکئ سره | راضي شوالله | دهغوئ نه | اوراضي شوهغوئ | دهغه نه |
| په اخلاص ورپسې روان شوی دی دهغوئ ټولونه الله ﷻ راضي شوي دې اوهغوئ دالله ﷻ نه راضي دې | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاَعَدَّ | لَهُمْ | جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | تَحْتَهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ |
| اوتيار کړی دی الله | دپاره دهغوئ | باغونه | چې بهيږی | لاندې دهغې نه | نهرونه | هميشه به اوسي |
| اوداسې باغونه ئې ورله تيار کړی دی چې دهغې لاندې ولې بهيږی هميشه هميشه به په کښې اوسيږی | | | | | | |
| فِيْهَآ | اَبَدًا ؕ | ذٰلِكَ | الْفَوْزُ | الْعَظِيْمُ ۝ | | |
| په هغې کښې | تل تر تله | دا | کاميابی ده | لويه | | |
| دا ډيره لويه کاميابی ده | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او مهاجرينو او انصارو کښې چه کوم د مخکښې نه ايمان راوړې دې . او چا چه په نيکئ سره د دوی تابعداري کړې ده الله د دې ټولونه خوشحاله دې، او دوی دالله نه راضي دی، او الله تعالی دوی دپاره داسې باغونه تيار کړی دی چه دهغې د لاندې نهرونه بهيږی، هغې کښې به دوی هميشه هميشه وي– دا لويه کاميابي ده.

## خلاصه تفسير

[وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ] او چې کوم مهاجرين او انصار [په ايمان قبلولو کښې د ټول امت نه] سابق او مقدم دی [وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ؕ] او [باقي امت کښې] چې څومره خلق

اخلاص سره [ایمان راوړو کښې] د هغوئ تابعدار دی [رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ] الله تعالی د دوئ نه راضی شو [د دوئ ایمان ئې قبول کړو او په دې به دوئ ته جزا ملاویږی] [وَرَضُوا عَنْهُ] او هغوئ ټول د الله تعالی نه راضی شو [چې دوئ اطاعت اختیار کړو چې د دې جزاء نه به دا رضا زیاته وی] [وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا] او الله تعالی د دوئ دپاره داسې باغونه تیار کړی دی چې د هغې لاندې نهرونه بهیږی او په دې کښې به همیشه همیشه وی [او] [ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ] دا لویه کامیابی ده.

## معارف او مسائل

دې نه وړاندې آیت کښې د کلی والو مخلصانو مؤمنانو بیان وو، اوس په دې آیت کښې د ټولو مخلصانو مؤمنانو بیان دې چه په کښې د دوی د فضیلت درجې هم بیان شوې دی.

﴿وَالسَّٰبِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَٰجِرِينَ وَالْأَنصَارِ﴾ په دې جمله کښې اکثرو مفسرینو ﴿مِنْ﴾ لره تبعیضیه ګرځولې دې او په دې بنا ئې د مهاجرینو رضی الله عنهم او د انصارو رضی الله عنهم دوه ډلې قائمې کړې دی چه یوه ډله د سابقینو اولینو ده او دویمه ډله د دویمې درجې د صحابه کرامو رضی الله عنهم ده.

بیا په دې کښې مختلف اقوال دی چه څنو په کښې هغه صحابه کرام رضی الله عنهم سابقین اولین ګرځولی دی چه دواړو قبلو ته ئې مونځ کړې دې، مطلب دا چه د قبلې د بدلیدو نه وړاندې مسلمانان شوی صحابه کرام رضی الله عنهم ئې په سابقینو اولینو کښې حساب کړې دی دا قول د سعید بن مسیب رحمه الله او د قتاده رحمه الله دې، عطا بن رباح رحمه الله هغه صحابه کرامو ته سابقین اولین وائی چه په غزوهٔ بدر کښې شریک شوې وو، او شعبی رحمه الله هغوی رضی الله عنهم ته سابقین اولین وائی چه د حدیبیې په بیعت رضوان کښې شریک شوې دی، دا شان د هر قول مطابق، د دې نه علاوه نور صحابه کرام رضی الله عنهم به د سابقینو اولینو نه په دویمه درجه کښې راځی. [مظهری، قرطبی] [1]

تفسیر مظهری کښې یو قول دا هم نقل شوې دې چه ﴿مِنْ﴾ حرف بیانیه شی، مطلب به ئې دا وی چه ټول صحابه کرام رضی الله عنهم که انصار دی او که مهاجرین، په سابقینو اولینو کښې راځی، او نور ټول امت د دې نه پس لاندې درجو کښې راځی، [2] چنانچه د بیان القرآن په [خلاصهٔ تفسیر] کښې هم دا تفسیر اختیار کړې شوې دې.

د رومبی تفسیر مطابق په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دوه ډلې جوړیږی، یوه د [سابقینو اولینو] او بله د هغه صحابه کرامو رضی الله عنهم چه د قبلې د بدلیدو، د بدر د غزا نه، یا د بیعت رضوان نه پس مسلمانان شوې وی، او د دې بل آخری تفسیر خلاصه دا ده چه ټول صحابه کرام رضی الله عنهم په سابقینو اولینو کښې راځی ځکه چه دوی رضی الله عنهم د نور امت په نسبت په ایمان کښې پخوانی او رومبی دی.

﴿وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَٰنٍ﴾ [یعنی کوم خلق چه په عملونو او اخلاقو کښې سابقینو اولینو تابعداری په مکمله طریقې سره او کړه] د رومبې جملې د تفسیر مطابق په دې خلقو کښې اوله درجه د هغه انصارو او مهاجرینو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم ده چه د قبلې د بدلېدو یا د بدر د غزا، یا د

[1]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۸، ص۲۳۶، والتفسیر المظهری: ج۴، ص۲۸۵
[2]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۴، ص۲۸۶

بیعت رضوان نه پس په مسلمانیدو سره په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې داخل شوې وی، دویمه درجه د دوی نه پس د ټولو مسلمانانو ده کوم چه تر قیامته پورې په ایمان، نیکو عملونو او ښو اخلاقو کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم په طریقه باندې روان وی او د دوی مکمله تابعداری کوی.
او د دویم تفسیر مطابق د ﴿ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُم﴾ نه د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه پس مسلمانان مراد دی چه ورته په اصطلاح کښې تابعین رحمهم الله وئیلې شی، او بیا ددې اصطلاحی تابعینو رحمهم الله نه پس هغه ټول مسلمانان په دې کښې داخل دی چه په ایمان او نیک عمل کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم مکمله تابعداری کوی.

**صحابه کرام رضی الله عنهم ټول د خپلې جنتیان دی او د الله تعالی په رضاسره مشرف دی**: محمد بن کعب قرظی رحمه الله نه چا تپوس اوکړو چه د رسول صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو رضی الله عنهم په باره کښې تاسو څه وائې؟ هغوی رحمه الله اووئیل چه ټول صحابه کرام رضی الله عنهم جنتیان دی اګرچه دوی رضی الله عنهم کښې چا نه غلطیانې او ګناهونه هم شوې وی. دغه کس ترې بیا تپوس اوکړو چه: په څه دلیل دې دا اووئیل؟ وې فرمائیل چه د قرآن کریم دا آیت اولوله ﴿وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلْأَوَّلُونَ﴾ په دې کښې بغیر د څه شرط نه د ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم په باره کښې [﴿رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا۟ عَنْهُ﴾ فرمائیلې شوې دې، البته د تابعینو رحمهم الله په معامله کښې ورسره د ﴿ٱتَّبَعُوهُم بِإِحْسَٰنٍ﴾ شرط لګولې شوې دې مطلب دا چه د خپلې ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه الله تعالی راضی دې او د نورو مسلمانانو نه په دې شرط راضی دې چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم مکمله تابعداری کوی.

تفسیر مظهری کښې ددې قول نقل کولو نه پس فرمائی چه زما په نزد د ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم په جنتی کیدو باندې ددې نه هم واضح او ښکاره دلیل دا کیدې شی چه قرآن کریم فرمائی ﴿لَا يَسْتَوِى مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ ٱلْفَتْحِ وَقَٰتَلَ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ ٱلَّذِينَ أَنفَقُوا۟ مِنۢ بَعْدُ وَقَٰتَلُوا۟ ۚ وَكُلًّا وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلْحُسْنَىٰ﴾ چنانچه په دې آیت کښې ښه په ډاګه دا بیان کړې شوې دی چه صحابه کرام رضی الله عنهم که اولین دی او که آخرین دی ټولو سره الله تعالی د [حسنی] یعنی جنت وعده کړې ده. (۱)
او په یو حدیث کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلې دی: د جهنم اور هغه مسلمان ته نه شی رسیدې چا چه زه لیدلې یم یا زما لیدونکی ئې لیدلی دی. [ترمذی د جابر رضی الله عنه] (۲)

**خبرداری**: څوک چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په خپل مینځ مناقشې، خفګانونه وغیره په داسې انداز کښې وړاندې کوی چه د هغوی رضی الله عنهم په باره کښې ترې بد ګمانیانې راپیدا کیږی نو هغوی په یو خطرناکه لار روان دی. [نعوذ بالله منه]

(۱) التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۴، ص ۲۸۷
(۲) جامع الترمذی، أبواب المناقب، باب ما جاء في فضل من رأى النبي صلى الله عليه وسلم وصحبه: ج ۲، ص ۲۲۵

وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ

| اوخينې دهغه كسانو نه | چې چاپيره ستاسو نه دي

[او ستاسو نه گير چاپيره په بانديچيانو كښې ډير كسان منافقان دي

مِّنَ الْأَعْرَابِ مُنٰفِقُوْنَ ۛ وَمِنْ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ۛ مَرَدُوْا

دبانديچيانو نه | منافقان دي | اوخينې | دمدينې داوسيدونكونه دي | چې عادت ئې نيولې دې

اودمدينې په خلقو كښې هم داسې كسان دي | چې په منافقت كښې كمال ته رسيدلي دي

عَلَى النِّفَاقِ ۣ لَا تَعْلَمُهُمْ ۭ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ ۭ سَنُعَذِّبُهُمْ

په منافقت كښې | نه پيژنې ته هغوئ | مونږه پيژنو هغوئ (۱) | زربه په عذاب كړو مونږ هغوئ |

ته ئې پيژنې [خو] مونږئې ښه پيژنو | مونږبه ورته [دنيا كښې] دوه سزاگانې وركړو |

مَّرَّتَيْنِ ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ ۝۱۰۱

دوه خله (۲) | بيا | به واپس كړې شي هغوئ | عذاب لوى ته |

اوبيا [آخرت كښې] به لوئې عذاب ته اوسپارلې شي |

---

۱) **حضرت حذيفه ته د بعضې منافقانو نومونه خودل:**- سعيد دَ قتاده (رح) نه روايت كړې دې چه حضور ﷺ دَ حضرت حذيفه (رض) په غوږ كښې اوفرمائيل چه دولس منافقان دي په دوى كښې دَ شپږو دَ پاره دبيله كافى دِه دا دَ دوزخ دَ اور يوه شغله ده چه د هغوى په اوږو باندې به لگى اود سينې پورې به رسى يعنى د خيټې دننه بيمارو سره به مرى او باقى شپږ به په خپل مرگ مرى. (ابن كثير) (دا روايت مرسل دې خوهم دا روايت متصلاً صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب صفات المنافقين واحكامهم:۲۷۷۹ كښې موجوددې نو دا صحيح دې.)

**په منافق باندې د جنازې كولو كښې احتياط:**- سعيد (رح) مونږ ته بيان كړې چه حضرت عمر بن خطاب (رض) چه به كله څوك مړكيدونكې ليدو اودَ هغوى په نظر كښې به شك من وو نودَ حذيفه (رض) طرف ته به ئې كتل. كه هغه به د دې مړى د جنازې مونځ كولو نويخيله به ئې هم كولو په دې يقين سره چه دا مړې د هغه دولسو منافقانونه نه دې اوكه حذيفه (رض) به نه كولو نو بيا به ئې يخيله هم نه كوله. معلومه شوه چه حضرت عمر (رض) دَ حضرت حذيفه (رض) نه دا هم معلوم كړى وو چه د الله تعالى قسم اوخوره اوښايه چه زه خو به دغه دولسوكښې نه يم نوحضرت حذيفه (رض) ونيلې وو چه نه ته نه ئې خو ستاسو نه علاوه زه د بل چا ذمه وارى نه اخلم.

۲) **د دوه خله عذاب وضاحت:**- حضرت ابن عباس (رض) نه دَ دې آيت باره كښې روايت دې چه حضور ﷺ يو ځل دَ جمعې خطبه وركولو دَ پاره اودريدو او وئې فرمائيل اې فلانكو فلانكو خلقو تاسو دَ جمات نه اوځئ تاسو منافقان ئې. ډير په رسوائى سره هغوى د جمات نه اووتل. هغوى د جمات نه وتل او حضرت عمر (رض) راننوتلو. نو عمر (رض) دا اوكنړل چه خلق واپس كيږى كيدې شي چه د جمعې مونځ اوشو اوشرميدو او د شرم د وجې هغه د دې خلقو نه پټيدو اودې خلقو هم د عمر (رض) نه خپل ځان پټولو هغوى دا گنړل چه حضرت عمر (رض) ته هم زمونږ د دې نفاق علم شوې دې. كله چه عمر (رض) جمات ته راغلونومعلومه شوه چه لامونځ نه دې شوې او يو مسلمان هغوى ته خبروركړو چه اې عمر (رض)! خوشحاله شه نن منافقان الله تعالى رسوا كړل. ابن عباس (رض) فرمائى چه دا د جمات نه ويستل اولنې عذاب دې او دويم عذاب، عذاب وركول د قبر به وى. (المعجم الاوسط:۷۹۶)

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

او ستاسو نه چاپيره چه کوم بانډچيان دی، هغوی کښې هم منافقان دی، او مدينې والو کښې هم داخلق په منافقت کښې (دومره) ماهران شوي دي (چه) ته دوی لره نه پيژنې، مونږ دوی لره پيژنو، مونږ به دوی لره دوه ځله سزا ورکړو، بيا به دوی يو لوئ عذاب طرف ته ورډيکه کړې شي.

## خلاصه تفسير

[وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِّنَ الْاَعْرَابِ مُنٰفِقُوْنَ ۛ وَمِنْ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ۛ] او ستاسو په چاپير چل کښې څه خلق او د مدينې والو کښې څه منافقان داسې دی [مَرَدُوْا عَلَى النِّفَاقِ ۣ] چې د نفاق حد کمال ته [ داسې] رسيدلی دی [چې] [لَا تَعْلَمُهُمْ ۭ] تاسو [هم] هغوئ نه پيژنئی [چې دا منافقان دی بس] [نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ ۭ] مونږ دوئ پيژنو [سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ] مونږ دوئ ته [ د نورو منافقانو په نسبت آخرت نه مخکښې هم] دوچند سزا ورکوؤ [يو د نفاق او بله د کمال نفاق او] [ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ] بيا [آخرت کښې هم] به ډير په سخت عذاب [يعنی جهنم مع خلود دائمی] طرفته ليږلې کيږی.

## معارف او مسائل

په تيرو شوؤ ډيرو آيتونو کښې د منافقانو بيان راغلې دې چه منافقت ئې د اقوالو او افعالو نه ښکاره شوې وو او رسول الله ﷺ به پيژندل چه دا منافقان دی. په دې آيت کښې د داسې منافقانو بيان دې چه ښه پاخه منافقان وو او رسول الله ﷺ هم تر اوسه پورې نه وو پيژندلې، په دې آيت کښې د دغسې منافقانو د پاره د آخرت نه وړاندې دوه عذابونه داسې بيان شوې دی چه يو خو په دنيا کښې هر وخت د خپل منافقت د پټولو په فکر او ددې د ښکاريدو په ويره کښې وو او دا هم په دنيا کښې د عذاب نه څه کمه خبره نه وه چه مسلمانانو او اسلام سره به ئې بغض، کينه او دشمنی لرله او سره ددې نه په ظاهره کښې به د دوی ﷺ په عزت او احترام کولو او د اسلام په تابعدارې کولو باندې مجبوره وو، او دويم [برزخی] عذاب دې چه د قيامت او آخرت نه وړاندې به پرې راځی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | وَاٰخَرُوْنَ | اعْتَرَفُوْا |
| | | | | او ځينی نور خلق دی | چې قائله شوی دی |
| او بعضې نور کسان داسې دی چې دخپلو ګناهونو اقرار کوی | | | | | |
| بِذُنُوْبِهِمْ | خَلَطُوْا | عَمَلًا صَالِحًا | وَّاٰخَرَ سَيِّئًا ۭ | عَسَى اللّٰهُ | |
| په ګناهونو خپلو | چې ګډ کړی دی هغوئ | عمل نيک | او بل بد | نزدې دې الله | |
| او څه نيک او ... عملونه ئې ګډوډ کړی دی امید دې چې الله ﷻ به ددوئ توبه قبوله کړی | | | | | |
| اَنْ يَّتُوْبَ | عَلَيْهِمْ ۭ | اِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ | خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ |
| چې ... کړی | په هغوئ باندې | بيشکه الله | بخښونکې دې | مهربانه دې | واخله د مالونو دهغوئ نه |
| ... بيشکه الله ﷻ بخښونکې مهربان دې (اې پيغمبره) د دوی د مالونو نه | | | | | |

صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ۖ

صدقه | چې پاك كړې ته هغوئ | اوبركتناك كړې هغوئ | په هغې سره | اودرحمت دعا كوه | په حق دهغوئ كښې

صدقه وصول كړه | .............. چې ددې په ذريعه ئې پاك صفا كړې | د دوى دپاره دعا كوه

إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝

بيشكه | چې دعا ستا | سبب دتسكين دې | دپاره دهغوئ | اوالله | هر څه اورى | هر څه پيژنى

ستا دعا د دوئ د تسلئ سبب دې | ..............اوالله ﷻ هرڅه آورى په هرڅه پوهه دې

أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَأْخُذُ

آيا معلوم نه ده دې خلقو ته | چې بيشكه الله | هم هغه | قبلوى | توبه | دبندګانو خپلونه | اواخلى

آيا دوئ نه پوهيږى چې هغه يوازې الله ﷻ دې | چې دخپلو بندګانو توبه قبلوى | اوهم هغه صدقه

الصَّدَقَاتِ وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ۝ وَقُلِ اعْمَلُوا

صدقې | او بيشكه چې الله | هم هغه | ډيرتوبه قبلونكې دې | رحم كونكې دې | اووايه | چې عمل كوئ

قبلوى | اوهم هغه الله ﷻ دې چې توبه قبلونكى | اومهربان دې | اوورته اووايه چې تاسو | نيک | كارونه كوى

فَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ وَالْمُؤْمِنُونَ ۖ وَسَتُرَدُّونَ

نوګورى | به الله | عمل ستاسو ته | او رسول دهغه | اومومنان | اوبيا به واپس راوستلې شئ تاسو

الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ اومومنان ستاسو طرزعمل ته ګورى | .........اوهغې ذات ته به واپس

إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝

هغه ذات ته چې پوهه دې په پټه | اوپه ښكاره | نو خبريه كړى تاسو | په هغه څه | چې وئ تاسو | چې كول به مو

كيږى | چې پټ | و ښكاره هرڅه ورته معلوم دى | نوهغه به مو خبر كړى چې تاسو څه كارونه كول.

وَآخَرُونَ مُرْجَوْنَ لِأَمْرِ اللَّهِ إِمَّا يُعَذِّبُهُمْ

اوځينى نور خلق دى | چې پاتې كړې شوى دى هغوئ | حكم دالله ته | يا به عذاب وركړى هغوئ له

او ځينې نورخلق دى | چې د هغوئ معامله دالله ﷻ حكم ته پاتې ده | يا به سزا وركړى

وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝

اويابه مهربانى اوكړى | په هغوئ | اوالله | په هرڅه پوهه دې | دحكمت خاوند دې |

اويابه ئې توبه قبوله كړى | اوالله ﷻ په هرڅه پوهه دې | صاحب د حكمت دې |

## آسان ترجمه قرآن

اوڅه خلق داسې دى چه هغوى د خپلو ګناهونو اقرار كړې دې. هغوى ګډ وډ عمل كړې دې څه نيك او څه بد. اميد دې چه الله به د دوى توبه قبوله كړې يقيناً الله ډير بخونكې، ډير مهربان دې ﴿اې پيغمبره!﴾ د دوى د مالونو نه صدقه واخله چه د هغې په ذريعه ته دوى لره پاك كړې او دوى لره سبب د بركت به جوړ شې او دوى ته دعا وكړه. يقيناً ستا دعا دوى د پاره سبب د اطمينان دې. او الله هر څه آورې او په هر

څه پوهیږي آیا دوی ته دا معلومه نه ده چه دا صرف یوالله دي چه د خپلو بندګانو توبه قبلوي . او صدقات هم قبلوي اودا چه الله ډیر معاف کوونکي، ډیر مهربان دي؟ او﴿دوی ته﴾ اووایه چه: تاسو عمل کوئ،اوس الله هم ستاسو طریقه د عمل ګوري اودهغه رسول هم او مؤمنان هم.بیا به تاسو هغه ذات ته واپس کړې شئ چه هغه ته د پټو او د ښکارو د ټولو خبرو پوره پوره علم دې نوهغه به تاسو خبر کړي په هغه څه چه تاسو کول اونور څه خلق دي چه دهغوی فیصله د الله د حکم راتلو پورې وروستو کړې شوې ده یا به الله هغوی ته سزا ورکړی او یا به ئې معاف کړي . او الله کامل علم والا هم دې او کامل حکمت والا هم دې.

## خلاصه تفسير

[وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ] او څه نور خلق دی چې دخپلو ګناهونو اعتراف ئې اوکړو [خَلَطُوْا عَمَلًا صَالِحًا وَّاٰخَرَ سَيِّئًا ؕ] او هغوئ دوه رنګه عملونه کړي وو څه ښه [لکه اعتراف چې ددې غرض پښیمانتیا ده ، او هم دا توبه ده ، او لکه نور غزوات چې مخکښې تیر شوې دی ، غرض دا کارونه ئې خو ښه اوکړل] او څه خراب [اعمال ئې اوکړل لکه تخلف ، بلاعذر نو] [عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ ؕ] الله تعالی نه امید [یعنی دهغه وعده ] ده چې دهغوئ [ په حال ] باندې [رحمت سره] توجه اوفرمائی[ یعنی توبه قبوله کړی] [اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۞] بیشکه الله تعالی ډیر مغفرت والا او رحمت والا دې [هرکله چې دې آیت سره توبه قبوله شوه او هغه حضرات ئې د ستنو نه راخلاص کړل نو خپل مالونه ئې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پیش کړو ، او خواست ئې اوکړو چې دا دالله تعالی په لار کښې خرچ کړئ ، نو ارشاد اوشو چې] [خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً] تاسو ددوئ د مالونو نه صدقه[ کومه چې دوئ راوړې ده] واخلئ [تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيْهِمْ بِهَا] او [ ددې د اخستلو په ذریعې سره به] تاسو دوئ لره [ دګناهونو د آثار نه] پاك کړې [او کله چې تاسو ﷺ واخلئ نو] [ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ؕ] دوئ دپاره دعا اوفرمائې ، [اِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ؕ] بیشکه ستاسو دعا ددوئ دپاره د [زړه] د اطمینان موجب ده [وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۞] او الله تعالی [ ددوئ اعتراف لره] ښه آوری [او ددوئ پښیمانتیا لره ] ښه پیژنی [په دې وجه ددوئ اخلاص ته د کتلو نه پس دا احکام ورته ورکړئ ، ددې مذکوره نیکو عملونو یعنی توبه او ندامت او د انفاق فی الخیر ترغیب ..... او خراب عملونو نه لکه تخلف وغیره راتلونکی وخت دپاره ترهیب ، نو اول ترغیب دې یعنی] [اَلَمْ يَعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ] آیا دوئ ته معلوم نه دی چې الله تعالی د خپلو بندګانو توبه قبلوی [وَيَاْخُذُ الصَّدَقٰتِ] او صدقات ئې هم قبلوی [وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۞] او [آیا دوئ ته] دا [خبر نشته ] چې هم الله تعالی [ددې] توبې قبلولو [په صفت ] کښې او رحمت کولو [ په صفت ] کښې کامل دې [په دې و جه ئې ددوئ توبه قبوله کړه ، او خپل رحمت سره ئې دمال قبلولو حکم او دوئ دپاره ئې د دعا غوښتلو حکم اوفرمائیلو ، نوبیا دپاره هم که ستاسو نه خطا او ګناهونه اوشي نو په دې توبه کوئی او که ستاسو وس وی نو خیرخیرات ورکوئ] [وَقُلِ اعْمَلُوْا فَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ] او [ترغیب نه پس مخکښې ترهیب دې یعنی] تاسو [دوئ ته دا هم] اووائې چې [ څه] عمل کوئی نو[اول خو په دنیا کښې] اوس الله تعالی ستاسو عملونه ګوری او دهغه رسول او اهل ایمان [نو په خراب عمل به په دنیا کښې ذلت وی] [وَسَتُرَدُّوْنَ اِلٰى

Scanned with Ca

عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ] او [بيا آخرت كښې ] تاسو به ضرور داسې [ الله تعالى] ته ورځئ چې هغه ته ستاسو د پټو او ښكاره څيزونو علم دې [فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ] نو هغه به تاسو ته ستاسو هر څه اوښائي [ نو تاسو د خراب عمل يعنى تخلف وغيره نه آئند دپاره محتاط اوسئ ، دا د اول قسم بيان وو ، وراندې د دويم قسم ذكر دې ] [وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ] ياخو ا وځه نو رخلق دى چې د الله تعالى د حكم راتلو پورې دهغوئ معامله ملتوى ده چې [ د توبې د عدم اخلاص په وجه سره] [اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَاِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ] هغوئ ته سزا وركوى يا [د اخلاص په وجه سره] ددوئ توبه قبوله كړى [وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ] او الله تعالى [ته دخلوص او عدم خلوص حال] ښه معلوم دې [او] ډير لوئې حكمت والا دې [ نو دحكمت د تقاضا مطابق د خلوص توبه قبلوى او بغير د خلوص نه توبه نه قبلوى اوكله كله بغير دتوبې معاف كولو كښې حكمت وى نو داسې هم كوى].

**معارف او مسائل**

كله چه رسول الله ﷺ تبوک غزا ته د تلو عام اعلان اوكړو اوټولو مسلمانانو ته ئې د تلو حكم اوكړو نو زمانه د سختې ګرمې وه، مزل ډير اوږود وو، او د يو باقاعده لوئې حكومت تربيت موندونكى فوځ سره مقابله كول وو چه د اسلام په تاريخ كښې يو ړومبې واقعه وه، دا هغه وجوهات وو چه د دې حكم په باره كښې د خلقو حالات مختلف شو او دوى كښې څو قسمه دلې جوړې شوې۔

① يو خو هغه اخلاصى مسلمانان وو چه د اول حكم په آوريدو سره ښه په اخلاص جهاد د پاره تيار شو.

② دويم قسم هغه خلق وو چه په اول ځل خو ئې ځان روستو كولو ليكن بيا د جهاد تلو د پاره تيار شو لكه په دې آيت ﴿اَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ﴾ كښې ئې چه بيان دې.

③ دريم قسم هغه خلق وو چه په واقع كښې معذوره وو خكه لاړ نه شو ،د دوى بيان په [لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ] كښې راغلې دې۔

④ څلورم قسم د هغه مخلصانو مؤمنانو دې چه څه عذر ئې نه لرلو او بيا هم په جهاد كښې د سستې له كبله شريک نه شو ،د دوى بيان په دې آيتونو كښې داسې راغلې دې ﴿وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا﴾ او ﴿وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ﴾.

⑤ پنځم قسم د هغه منافقانو وو چه د منافقت له كبله په جهاد كښې شريک نه شو ،د دوى بيان په تيرو شوؤ آيتونو كښې راغلې دې خلاصه داده چه په تيرو شوؤ آيتونو كښې زيات بيان د پنځم قسم منافقانو راغلې دې، اوس په دې آيتونو كښې د څلورم قسم د هغه منافقانو بيان راغلې دې چه د سستې له كبله په جهاد كښې نه وو شريک شوې۔

په ړومبى آيت كښې فرمائى چه ځنې خلق داسې هم دى چه د خپلو ګناهونو اقرار ئې اوكړو، د دوى اعمال ګډوډ داسې دى چه څه په كښې ښه او څه خراب دى. اميد دې چه الله تعالى به ئې توبه قبوله كړى، حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چه دا لس كسان وو چه صحيح عذر ئې نه وو او بيا هم د تبوک غزا له نه وو تلى، په خپل دې كار باندې بيا خپيمانه شو په دوى كښې اووه [۷] كسانو خپل ځانونه د مسجد نبوى ﷺ ستنو پورې اوتړل او دا ئې لوظ اوكړو چه تر څو زمونږ توبه قبوله شوې نه وى او پخپله رسول الله ﷺ نه يو پرانستې نو مونږ به هم دا

Scanned with Ca

شان ترلي يو، په دې حضراتو کښې د ابی لبابه ﷺ په نوم باندې تول روايتونه متفق دی او نورو نومونو کښې روايتونه مختلف دی.

رسول الله ﷺ چه دوی ﷺ ترلی اوليدل او ورته دا معلومه شوه چه دوی داسې لوظ کړې دې [چه رسول الله ﷺ مو پرا نه نيځی تر هغې به مونږ ترلی يو] نو هغوی ﷺ اوفرمائيل چه زه هم په خداې قسم خورم چه تر هغې پورې به ئې نه پرانيځم چه راته الله تعالی د پرانستو حکم نه وی راکړې. ولې چه جرم لوئې دې. په دې موقع دا آيت نازل شو او رسول الله ﷺ ئې د پرانستو حکم ورکړو، هغوی ﷺ پرانستې شو [قرطبی] (۱)

د سعيد بن المسيب ﷺ د روايت مطابق کله چه د ابی لبابه ﷺ د پرانستو اراده اوکړې شوه نو انکار ئې اوکړو او وې وئيل [چه تر څو مې رسول الله ﷺ په خپلو لاسونو مبارکو پرانه نيځی زه به هم دغسې ترلې يم] چنانچه څه وخت هغوی ﷺ د صبا مانځه د پاره تشريف راوړونو په خپلو لاسونو مبارکو ئې پرانستو.

**نیک او بد ګډوډ عملونه څوک يو دي:** په آيت کښې د بيان شوو نيک او بد عملونو نه مراد څه دی؟ د نيکو عملونو نه مراد ايمان، د مونځ او روژې پابندی کول، د تبوک د غزا نه وړاندې په نورو غزاګانو کښې د رسول الله ﷺ ملګرتيا کول، او د تبوک په غزا کښې د نه شريکيدو په خپل جرم باندې اقرار کول، په هغې خپيمانه کيدل او ترې توبه کول وغيره دی. او د بد عمل نه مراد د تبوک په غزا کښې نه شريکيدل او خپل عمل سره د منافقينو ملګرتيا کول دی.

**د ګومو مسلمانانو چه نیک او بد عملونه په خپل منځ کښې سره ګډوډ لري تر قيامته پورې هغوی په دې حکم کښې داخل دي:** تفسير قرطبی کښې راغلې دی چه اګر که دا آيت د يو خاص ټولی په باره کښې نازل شوې دې خو حکم ئې تر قيامته پورې عام داسې دې چه د کومو مسلمانانو نيک او بد ګډوډ عملونه وی او د خپلو ګناهونو نه توبه ګار شی نو اميد دې چه الله تعالی به ئې اوبخښی.

ابو عثمان ﷺ اوفرمائيل چه د قرآن کريم دې آيت سره د امت ډير اميدونه ترلی دی، (۲) او د صحيح بخاری په حواله د سمره بن جندب ﷺ په روايت د معراج نبوی ﷺ په يو تفصيلی حديث کښې راغلې دی چه په اووم اسمان کښې هر کله چه رسول الله ﷺ د ابراهيم ﷺ سره ملاقات اوکړو نو د هغوی ﷺ سره ئې څه خلق سپين مخی اوليدل او څه ئې ورسره داسې اوليدل چه په مخونو ئې تور داغونه وو، دوی يو نهر [ولې] ته ورغلل په هغې کښې ئې غسل اوکړو چه راغلل نو مخونه ئې سپين شوی وو. حضرت جبرائيل ﷺ هغوی ﷺ ته اوښودل چه دا خلق ګناهګار وو چه نيک او بد ګډوډ عملونه ئې کړې وو چه توبه ئې اوکړه الله تعالی قبوله کړه او ګناهونه ئې معاف شو، بالکل سپين مخی هغه خلق دی چه د ايمان راوړلو نه پس د ګناهونونه پاک او صفا پاتې شوی وو، لکه قرآن کريم کښې ارشاد دې ﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ﴾ [قرطبی] (۳)

---

(۱) تفسير القرطبی تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۴۲
(۲) تفسير القرطبی تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۴۳
(۳) صحيح البخاری، کتاب التفسير، باب سورة التوبة، قوله يحلفون لكم الآية: ج ۱، ص ۲۲، وتفسير القرطبی تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۴۳

Scanned with Ca

﴿خُذۡ مِنۡ اَمۡوَالِهِمۡ صَدَقَةً﴾ كوم صحابه كرام ﷺ چه بې عذره د غزوۀ تبوک نه پاتې شوي وو په دې جرم كښې ئې ځانونه د جومات ستنو پورې تړلي وو ،توبه ئې قبوله شوه او بيا پرانستې شو نو ددې په شكريه كښې هغوى ﷺ خپل ټول مالونه د ځيلمې د خيرات كولو د پاره د رسول الله ﷺ په خدمت كښې پيش كړل،هغوى ﷺ ترې انكار اوكړو او وې فرمائيل چه ما ته د مال اخستو حكم نه دې شوې،دا آيت﴿خُذۡ مِنۡ اَمۡوَالِهِمۡ﴾ نازل شو ،نو رسول الله ﷺ ترې دريمه برخه د مال ئې په خيرات كښې ځكه قبوله كړه چه په ﴿مِنۡ﴾ سره ورته اشاره شوې وه چه بعضې مال دې ترې واخستې شي.

**د مسلمانانو خيرات زكوة وصولول او په خپل خپل ځاې خرڅول ئې لګول د اسلامي حكومت په ذمه دي** په دې آيت كښې اګرچه د شان نزول په اعتبار سره د يو خاص ټولى نه د صدقې [خيرات] وصولولو حكم شوې دې خو د مفهوم په اعتبار سره عام دې په تفسير قرطبي،احكام القرآن د جصاص او په تفسير مظهرى وغيره كښې هم دا خبره غوره ګڼړلې شوې ده او قرطبي او جصاص ﷺ دا هم واضح كړې دى چه كه ددې آيت په شان نزول كښې هم دغه خاص واقعه اوګرځولې شى چه ذكر ئې پورته راغلې دې نو بيا به هم د قرآنى اصولو له مخې دا حكم عام پاتې كيږى،او تر قيامته پورې به په مسلمانانو جارى پاتې كيږى(١) ولې چه د قرآن كريم زيات حكمونه اګرچه په خاص خاص واقعاتو كښې نازل شوې دى خو د هغې د عمل دائره هم دغه خاص واقعې پورې محدوده نه وى بلكه تر څو پورې چه د تخصيص د پاره څه دليل نه وى دغه حكم به ټولو مسلمانانو د پاره عام او شامل ګرځولې شى.بلكه د ټول امت په دې اتفاق دې چه په دې آيت كښې اګر كه خطاب رسول الله ﷺ ته دې خو حكم ئې هغوى ﷺ پورې مخصوص نه دې نه د هغوى ﷺ زمانې مباركې پورې خاص دې،بلكه هر هغه څوک چه د هغوى ﷺ قائم مقام،د مسلمانانو امير وى هغه به ددې حكم مخاطب او مامور وى د هغه په فرائضو[ذمه دارېانو]كښې به دا داخل وى چه د مسلمانانو نه به صدقې[خيراتونه]وصولوى او په خپل خپل ځاې به ئې لګوى چنانچه د صديق اكبر ﷺ د خلافت د اول سر په زمانه كښې زكوة منع كوونكو سره دجهاد كولو كومه واقعه چه راپيښه شوه،په هغې كښې هم زكوة نه وركونكى څه خلق خو په ډاګه د اسلام نه باغيان او مرتدان شوې وو او څه داسې خلق هم وو چه ځانونو ته به ئې مسلمانان وئيل خو يواځې د زكوة نه وركولو د پاره به ئې دا بهانه جوړوله چه په دې آيت كښې د زكوة وصولولو حكم خاص رسول الله ﷺ ته شوې دې چه د هغوى ﷺ تر ژوندنه پورې خوموږ ئې عمل اوكړو اوس د ابوبكر ﷺ حق نشته چه زكوة دې زمونږ نه وصولوى په اول سر كښې خو حضرت عمر ﷺ هم دوى سره په جهاد كولو كښې زړه ځكه وهلو چه ورته مسلمانان ښكاريدل او د زكوة نه د ځان ساتلو د پاره دا آيت وړاندې كولو ځكه ئې دا ګنړل چه د عامو مرتدانو پشان معامله دې دوې سره نه شي كولې،خو ابوبكرصديق ﷺ ښه په عزم او يقين سره اوفرمائيل چه څوک د مونځ او زكوة تر مينځه فرق راولي مونږ به ورسره جهاد كوو.

دا ارشاره دې خبرې ته وه چه هر كله دا خلق نن دا وائى چه د زكوة حكم رسول الله ﷺ سره مخصوص وو ،د هغوى ﷺ په وفات سره دا حكم جارى پاتې نه شو ،صبا دا هم وئيلې شى چه

(١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج٨، ص ٢٤٣، وأحكام القرآن للجصاص، تفسير سورة التوبة: ج٤، ص ٣٣١

Scanned with Ca

مونځ هم هغوی ﷺ پورې مخصوص وو، د هغوی ﷺ د وفات نه پس مونځ هم نشته او په دليل کښې به دغسې يو آيت ﴿أَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ﴾ هم پيش کوی مطلب دا چه هر کله د مونځ په باره کښې غلط تاويل کوونکی کافران او مرتدان دی دغسې په آيت ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ﴾ کښې تاويل کوونکی هم کافران او مرتدان دی، چنانچه په دې سره د فاروق اعظم ﷺ اطمينان اوشو او د صحابهٔ کرامو ﷺ اجماع سره د دغې خلقو په خلاف جهاد اوکړې شو.[1]

**زکوة د حکومت ټيکس نه دې بلکه عبادت دې:** قرآن کريم کښې د ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ﴾ نه پس ﴿أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا﴾ فرمائيل دې ته اشاره ده چه زکوة، صدقات[خيراتونه]د حکومت څه ټيکس نه دی چه عام حکومتونه ئې د خپل انتظام چلولو د پاره وصولوی بلکه ددې مقصد دادې چه د مالونو خاوندان د گناهونو نه پاک او صفا شی.

دلته داخبره هم د ژور نظر کولو قابله ده چه د زکوة او صدقو د وصولولو نه په حقيقت کښې دوه فائدې داسې حاصليږی چه يوه فائده په خپله د مال خاوند ته رسی چه هغه د گناهونو، د مال د لالچ او مينې له کبله د پيدا کيدونکو اخلاقی رنځونو د جراثيمو نه پاک او صفا شی، بله فائده ئې داده چه ددې په ذريعه د قوم د هغه کمزورو غړو خصمانه او پالنه کيږی کوم چه خپل ضروريات په خپله نه شی پوره کولې، لکه يتيمانان، کونډې رنډې، شل گډ او معذوره نارينه، زنانه، عام فقيران او مسکينان واخله. بيا هم دلته قرآن کريم صرف يوه فائده بيان کړه چه اشاره دې ته شوه چه د زکوة اصلی مقصد هم رومبې فائده ده، دويمه فائده ترې په ضمنی دول حاصليږی، که بالفرض چرته يا څه وخت څوک يتيم، کنډه ښځه، فقيراو مسکين وغيره موجود هم نه وی، بيا به هم د مالونو خاوندان خامخا زکوة ادا کوی. ددې خبرې تائيد دې سره هم کيږی چه د پخوانو امتونو د ويستلی شوی زکوة استعمال به هيچا د پاره جائز نه وو، طريقه ئې داوه چه هغه به په يو بيل ځای کيښودې شو، آسمانی بجلی به راتله او هغه به ئې اوسوځولو خو دا هله چه دغه زکوة به د الله تعالی په نزد قبول وو چه داسې به او نه شو نو دغه مال به د ناقبول گڼلو په وجه سپيره گڼړلې شو چه هيچا به لاس نه وراوړو.

دې نه پس په داګه شوه چه زکوة په اصل کښې د چا د حاجت پوره کولو د پاره نه وی بلکه دا يو مالی حق او عبادت دې، څنګه چه مونځ، روژه جسمانی او بدنی عبادتونه دی، دا د امت مرحومه يو خصوصيت دې چه د الله تعالی په نوم دا اوښکلې مال ددې امت د فقيرانو او مسکينانو د استعمال د پاره جائز کړې شو څنګه چه د مسلم شريف په يو حديث کښې هم د رسول الله ﷺ نه دا ښکاره خبره نقل شوې ده.

**يو سوال او د هغې جواب:** دلته سوال دا پيدا کيږی چه دغه بيان شوې واقعه کښې هر کله چه په توبې قبليدو سره گناه معاف شوه او پاکيزگی حاصله شوه، بيا د مال اخستل ذريعه د پاکيزگې ولې اوګرځولې شوه؟

جواب ئې دادې چه هر کله په توبې سره گناه معاف شوه بيا هم د هغې څه خړوالې او خيرنوالې پاتې کيدې شی چه د گناه کولو سبب جوړيدې شی نو په صدقې کولو سره دغه خيرې هم لرې شی او پوره پاکيزگی حاصله شی.

[1] تفصيل دپاره اوګورئی: تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۴۲، ۲۴۵

﴿وَصَلِّ عَلَيْهِمْ﴾ دلته د صلوة نه مطلب د رحمت دعا كول دي چنانچه د رسول الله ﷺ نه منقول هم داسې دي چه هغوی ﷺ د څنې خلقو د پاره په لفظ د [صلوة] سره دعا فرمائيلې ده لكه [اللهم صل على آل ابی اوفى] (۱) بيا د صلوة استعمالولو لفظ يواځې دپيغمبرانو ﷺ د پاره خاص اوګرځولې شو، او په دې وجه فقهاء ﷺ فرمائی چه په لفظ د صلوة سره دې بغير د پيغمبرانو ﷺ نه بل چا د پاره دعا نه شی كولې چه اشتباه او ګډون په كښې را نه شي. [بيان القرآن وغيره] (۲)

دلته په آيت كښې صدقې ادا كونكو د پاره د دعا كولو حكم شويدې، په دې بنا څنې فقهاء ﷺ فرمائی چه صدقې وركونكو د پاره دې امير او امام خامخا دعا كوى [يعنی دعا كول پرې واجب دی] او څنې فقهاء ﷺ فرمائی چه دا استحبابی امر دې چه دعا كول صدقې وركونكو د پاره مستحب دی [قرطبی] (۳).

﴿وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ﴾ لس صحابهٔ كرام ﷺ چه بې عذره د تبوك په غزا كښې د شريكيدو نه پاتې شوې وو، اووه خو په داګه په خپلې دغه ګناه دومره سخت خپيمانه شو چه د مسجد نبوی ﷺ د ستنو سره ئې په ځان تړلو سره دا خپيمانتيا څرګنده كړه چه ﴿وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا﴾ كښې ئې پوره بيان اوكړې شو، نورودرې حضراتو ﷺ داسې په داګه خپيمانتيا ښكاره نه كړه اګر چه په زړونو كښې ئې خپيمانتيا وه، دوی سره رسول الله ﷺ د قطع تعلق كولو حكم اوكړو چه سلام كلام ورسره بند كړې، په دې سره د هغوی ﷺ حالت سم شو، ښه په اخلاص ئې د خپلې ګناه اقرار اوكړو او توبه ګار شو نو دوی د پاره هم د معافې احكام وركړې شو [صحيح بخاری او مسلم] (۴) نو دې آيت مبارك كښې د هغه باقی درې حضراتو بيان دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | | | | | |
| اودخينی هغه كسان | | | | | |
| او خينې هغه كسان چې | | | | | |
| اتَّخَذُوْا | مَسْجِدًا | ضِرَارًا | وَّكُفْرًا | وَّتَفْرِيْقًا | بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ |
| چې جوړې كړو | يو جماعت | دپاره دضرررسولو | اودكفر كولو | اودجدايي راوستلو | په منځ دمومنانو كښې |
| يو جمات ئې جوړ كړې دې | دضرر په غرض | اودكفر دپاره | | اودمسلمانانو په مينځ كښې دجدائی راوستو | |
| وَاِرْصَادًا | لِّمَنْ | حَارَبَ اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ | مِنْ قَبْلُ | |
| اوځائي دانتظار كولو | دپاره دهغه چا | چې جنګ كوی دالله سره | اود رسول دهغه سره | دمخكښې نه | |
| په نيت | اودهغه چا داستوګنې په خاطر چې پخوا راسې دالله ﷻ اودرسول ﷺ مخالفت كوی | | | | |

۱) صحيح البخاری، كتاب الزكاة، باب صلاة الامام ودعائه لصاحب الصدقة: ج۶، ص ۲۰۳
۲) بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۵۵
۳) تفسير القرطبی تحت هذه الآية: ج۸، ص ۲۴۹
۴) صحيح البخاری، كتاب التفسير، باب سورة التوبة، باب قوله وعلى الثلاثة الذين خلفوا الآية، وصحيح مسلم، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه: ج ۲، ص ۳۶۰

Scanned with Ca

وَلَيَحْلِفُنَّ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا الْحُسْنَىٰ ۖ وَاللَّهُ يَشْهَدُ
او خامخا به قسمونه خوری دوئ | چی اراده نه ده کړې مونږ | مګر | دنیکئ | او الله | ګواهی کوی
او دوئ به درته قسمونه خوری اچې زمونږ غرض دنیکړې نه بغیر هیڅ نه وو | او الله ﷻ ګواهی کوی
إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ۝ لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا ۚ لَمَسْجِدٌ
چی بیشکه دوئ | خامخا دروغژن دی | مه ودریږه | په هغې کښې | هیڅ کله | خامخا هغه جومات
چې دوئ درغژن دی | ......ته په دغه جمات کښې هیچرې [مونږ ته] مه اودریږه | البته دکوم جمات بنیاد
أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَنْ تَقُومَ
چی بنیادنې ایښودې شوې دې | په تقوی باندې | داولې ورځې نه | هغه زیات لائق دې | چی ته ودرېږې
چې د اولنۍ ورځې نه په تقوی ایخودې شوې دې | هغه ددې قابل دې چې ته په هغې کښې
فِيهِ ۚ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا ۚ وَاللَّهُ يُحِبُّ
په هغې کښې | په هغې کښې | داسې خلق دی | چی خوښوی | چی پاك اوساتی خان خپل | او الله | خوښوی
[مونږ ته] اودرېږې | په هغې کښې داسې خلق دی اچې پاکه استوګنه خوښوی | او الله پاک
الْمُطَّهِّرِينَ ۝ أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ تَقْوَىٰ مِنَ اللَّهِ
خان پاکونکې خلق | آیا نو هغه څوك | چی ایښې نې وی | بنیاد دودانۍ خپلې | په تقوی باندې | دالله نه
پاکان خلق خوښوی | آیا چا چه د خپل عمارت بنیاد دالله ﷻ په ویره اودهغه د رضامندئې په خاطر
وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ أَمْ مَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ شَفَا
اوپه خاطر درضاد الله | بهتر دې | یا هغه څوك | چی ایښې نې وی | بنیاد دودانۍ خپلې | په غاره باندې
ایخې دې | هغه بهتر دې او که هغه څوک چې دخپل عمارت بنیاد ئې دیوزوړند غورزیدنکی کمر په سر
جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ ۗ وَاللَّهُ
د یو کندې | غورزیدونکې وی | پس اوغورزیږی | سره ددې جوړونکی | په وور ددوزخ کښې | او الله
ایخودې وی | اوهغه عمارت دغه سرې خپل خان سره د دوزخ په اور کښې اوغورزوی | او الله ﷻ
لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ۝ لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا
نه ښائی لار | قوم | ظالم ته | همیشه به وی | ودانۍ ددوئ | هغه | چی جوړه کړې ده دوئ
ظالمانو ته هدایت نه کوی | کوم عمارت چې دوئ جوړ کړې دې | دابه همیشه دپاره د دوئ
رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ إِلَّا أَنْ تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝
شك په زړونو ددوئ کښې | مګر | چی ټوټې شی | زړونه ددوئ | او الله | ښه پوهه دې | حکمت والا دې
په زړونو کښې د شک سبب وی | البته دا که زړونه ئې ټکړې ټکړې شی | او الله ښه پوهه د حکمت خاوند دې

## آسان ترجمه قرآن

او نور څه خلق دي چه هغوی جمات دي د پاره جوړ کړي دي چه ﴿مسلمانانو ته﴾ نقصان ورسوی. او د کفر خبري وکړي او مسلمانانو کښې جدا والي راولي او د هغه کس د پاره پوه اډه جوړه کړي چه هغه د الله او د هغه د رسول سره د مخکښې نه په جنګ دي او دوی به ضرور قسمونه خوري چه د نیکئ نه علاوه څمونږ نور څه نیت نشته . لیکن الله ددې خبرې ګواهي ورکوي چه دوی یقیناً دروغژن دي.﴿اې پیغمبره !﴾ ته دې ﴿د نوم جمات﴾ کښې چرې هم ﴿د مونځ د پاره﴾ مه اودرېږه خو هغه جمات چه د هغې بنیاد د اولې ورځې نه په تقوئ کیښودې شوې دې . هغه ددې نه زیات لائق دې چه ته هغې کښې اودرېږې هغې کښې داسې خلق دي چه هغوی خوښوي چه ځان پاک کړي ، او الله پاکو خلقو لره خوښوي آیا هغه کس بهتر دې چه هغه د خپلې آبادئ بنیاد د الله نه په وېرې او په رضا باندې ایښودې وی یا هغه کس بهتر دې چه هغه د خپلې آبادئ بنیاد د یو داسې پړه یو ټوټې غاړې باندې ایښودې وی بیا هغه دې سره جهنم کښې ونړېږي؟ او الله داسې ظالمانو ته هدایت نه کوي. کومه آبادي چه دغه خلقو جوړه کړې وه، دا به د دوی په زړونو کښې شک پیدا کوي تر څو چه د دوی زړونه ټکړې ټکړې شوي نه وي او الله کامل علم والا هم دې او کامل حکمت والا هم.

## خلاصه تفسیر

[وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا ضِرَارًا وَّكُفْرًا] او ځینې داسې دی چې هغوئ ددې اغراضو د پاره مسجد جوړ کړې دې چې [اسلام ته ] ضرر اورسوی او [ په دې کښې کینی ] د کفر [ یعنی د رسول ﷺ د دښمنئ] خبرې اوکړی [وَتَفْرِيْقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ] او [ددې په وجه چې د مؤمنانو [په ډله کښې تفرقه واچوی [ ځکه چې کله بل مسجد جوړ کړې شی او ظاهر کړې شی چې دا مو ښه نیت سره جوړ کړې دې نو دې کښې دا خبره ضرور کیږی چې د اول مسجد مجمع منتشر شی] [وَاِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ مِنْ قَبْلُ ؕ] او [ دا هم یو غرض دې چې] هغه سړی د قیام سامان واخلی چې ددې [مسجد د جوړولو] نه وړاندې د الله او د هغه رسول ﷺ مخالف دې [ ددې نه مراد ابو عامر راهب دې] [وَلَيَحْلِفُنَّ اِنْ اَرَدْنَاۤ اِلَّا الْحُسْنٰى ؕ] او [که تپوس ترې اوکړئ] نو قسمونه به خوری [لکه ځنګه چې ئې یو ځل مخکښې ئې هم په تپوس کولو قسم خوړلي وو] چې زمونږ خو د خیر نه سوا بله اراده نشته دې [ خیر نه مراد آسانی او ګنجائش دې] [وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ۝] او الله تعالی ګواه دې چې هغوئ [په دې دعوی کښې ] بالکل په دروغه دې [کله چې ددې مسجد دا حالت دې چې دا په اصل کښې هډو مسجد نه دې بلکه اسلام ته ضرر سوونکې دې نو] [لَا تَقُمْ فِيْهِ اَبَدًا ؕ] تاسو دې کښې هیڅ کله [ مونځ د پاره] مه اودریږئ ، [لَمَسْجِدٌ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى مِنْ اَوَّلِ يَوْمٍ اَحَقُّ اَنْ تَقُوْمَ فِيْهِ ؕ] البته د کوم مسجد بنیاد چې اولې ورځې نه [یعنی د تجویز کولو د ورځې نه ] په تقوی [او اخلاص ] باندې ایښودې شوې دې [ دې نه مراد مسجد قبا دې] هغه [واقعی] ددې لائق دې چې تاسو په هغې کښې [مونځ ته اودریږئ [ځنګه چې تاسو هلته کله کله تشریف اوړئ او مونځ کوئ] [فِيْهِ رِجَالٌ يُّحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا ؕ] په [مسجد قبا ] کښې داسې [ښهٔ ] سړی دی چې هغوئ ښه پاکوالئ خوښوی [وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ ۝] او الله تعالی ته پاکیزه خلق خوښ دی [هر

Scanned with Ca

كله چې د دوارو مسجدونو د مشرانو حال معلوم شو نو ] [ أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ تَقْوَىٰ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ ] بيا [ پوهه شئ ] آيا داسې سړې بهتر دې چې هغه د خپل عمارت [ يعنى مسجد ] بنياد د الله تعالى د ويرې او دهغه د رضا دپاره ايخودې دې [ أَم مَّنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ ] يا هغه كس [ به بهتر وى ] چې هغه د خپل عمارت [ يعنى مسجد ] بنياد د يو كندې يعنى غار په اړخ باندې چې هغه هم پريوتلو والا دې ايخودې وى [ ددې نه مراد هغه اغراض او كفر دې چې په ناپائيدارئى كښې دې سره تشبيه وركړې شوې وى ] بيا هغه [ عمارت ] دا [ مشر ] خان سره واخلي او په دوزخ كښې ورپريوزى [ يعنى هغه عمارت خو پريوتو ځكه چې دا د غار په غاړه دې ، هركله چې هغه غاړه اوبه يوسى نو هغه عمارت بهٔ هم پريوزى ، اومشر به هم پريوزى ځكه چې هغه په دې عمارت كښې اوسيدو ، او ددې نه مراد كفريه اغراض دې چې موصل الى النار دې ، ځكه ئې اوفرمائيل چې هغه به دې جهنم ته داخلوى ] [ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ] او الله تعالى داسې ظالمانو ته [ د دين ] پوهه نه وركوى [ چې عمارت ئې د مسجد په نوم جوړ كړو چې د دين په شعائرو كښې دې ، او ددې غرضونه فاسد دى ] [ لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ ] ددوئ دا عمارت [ يعنى مسجد ] چې دوئ جوړ كړې دې هميشه به ددوئ په زړونو كښې [ يو ازغې ] وى [ ځكه چې دكوم غرض دپاره ئې جوړ كړې وو هغه پوره نشو او ددوئ راز ښكاره شو ، نو بيا دا ويران كړې شو ، غرض دا چې ددې نه ئې ارمان پوره نشو ، په دې وجه به ددوئ افسوس او ارمان باقى وى ] [ إِلَّا أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمْ ] مگر دا چې دهغوئ په زړونو كښې [ چې كوم ارمان دې ] هغه ختم شى نو خير [ هغه ارمان بهٔ په هغه وخت كښې ختم شى ] [ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ] او الله تعالى لوئې علم والا او لوئې حكمت والا دې [ ددوئ حالت ورته معلوم دې او ددې مناسب سزا به وركوى ]

## معارف او مسائل

د منافقانو حالات او د اسلام په خلاف د دوى حركتونه په ډيرو تيرو شوو آيتونو كښې راغلى دى، اوس په دې آيتونو كښې هم ددوى يو سازش داسې بيان شوې دې چه په مدينه منوره كښې ابو عامر نومې يو سړې د جاهليت په زمانه كښې عيسائى شوې وو او تر مرگه پورې عيسائى پاتې شو، د ابى عامر راهب په نوم باندې مشهور شوې وو، د هغه حنظله ﷺ صحابى پلار وو چا ته چه د شهيدكې په مرگ كښې فرشتو غسل وركړې وو په (غسيل ملائكه) سره يادېدو.

كله چه رسول الله ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړو نو دغه ابو عامر راهب د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او په اسلام باندې ئې اعتراضونه اوكړل، د رسول الله ﷺ په جواب باندې د دغه بدنصيب تسلى او نه شوه، بلكه دا خبره ئې اوكړه چه مونږ دوارو كښې چې كوم دروكې وى هغه دې دروغژن شړلې شوې، خپلوانو، دوستانو نه لرې په سفر كښې مړ شى. دا ئې هم اووئيل چه ستاسو ﷺ په مقابله كښې د هر راتلونكى دشمن به زه امداد كوم، چنانچه تر د حنين غزا پورې ئې د اسلام د هر دشمن په ملكرتيا كښې د مقابلې جنگ مسلمانانو سره كړې دې چه د هوازن دې لوئې او مضبوطې قبيلې هم ماتې اوخوړو نو دې د نا اميدې له كبله شام ته اوتښتيدو، چرته چه د عيسايانو لوئې مركز وو، او هم هلته د خپلو خپلوانو او دوستانو نه لرې مړ شو او خپله خبره ئې په خپله په خپل ځان اولگيده، دا د الله تعالى كار دې چه د خپلو

Scanned with Ca

دشمنانو د خلې او اندامونو نه داسې حرکتونه صادروي چه هم هغوی پرې په خپله تباه کيږي.دا سړې چه تر کومې ژوندې وو اسلام او مسلمانانو ته په زيان ورکولو کښې اړم وو، چنانچه د روم بادشاه قيصر ئې په مدينه منوره باندې د چپاو کولو د پاره راپارولې وو چه مسلمانان ترې اوباسی،بل خوا ئې د مدينې منورې هغې خلقو[منافقانو] ته ئې خط اوليږلو چه د قيصر چپاو به هله نبه کامياب شي چه تاسو اجتماعي طاقت پيدا کړې او دغه وخت د قيصر مدد اوکړی تولـه منصوبه ئې ورتـه داسې په ګته کړه چه دغلته پـه مدينـه منوره کښې د جومات په نوم باندې د مسلمانانو د شبهې لرې کولو له غرض داسې يو مکان جوړ کړې چه خپل خلق په کښې جمع کوې،اوتر خپله وسه په کښې سامانونه او وسلې جمع کوې او مسلمانانو ته د زيان ورکولو د پاره دغلته خپل مينځ کښې مشورې کوې،په دغې مشورې باندې د عمل کولو په غرض دولسو منافقانو د مدينې طيبې د قبا په محله کښې د جومات په نوم د يو عمارت بنياد کينبودو چرته چه د هجرت په اول کښې رسول الله ﷺ ايسار شوې وو او هلته ئې د يو جومات [مسجد قبا]بنياد اينبې وو،ابن اسحاق رحمه الله وغيره د دغې دولسو منافقانو نومونه هم نقل کړې دی،مسلمانانو ته ئې د يوې بلې دهوکې ورکولو په غرض دا منصوبه جوړه کړه چه دغلته رسول الله ﷺ د مونځ د افتتاح کولو د پاره راوغواړی،ددې منصوبې له مخې د دوی يو وفد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو،اوئې وئيل چه د قبا رومبې جوړ شوې جومات د ډيرو خلقو نه لرې دې،کمزوری او رنځور مسلمانان هلته مونځ د پاره نه شی ور رسيدې اوس خلق ګڼې شوې دی په هغه رومبی جومات کښې ځاې کيدې هم نه شی،ځکه مو دا بل جومات جوړ کړو اوس تاسو ته خواست دې چه دغلته د مونځ افتتاح اوکړې چه برکت په کښې نور هم راشي.

دغه وخت رسول الله ﷺ د تبوک د غزا په تيارې کښې په سفر روانيدونکې وو ځکه ئې اوفرمائيل چه په واپسې کښې به دغلته مونځ اوکړم.د تبوک د غزا نه په واپسې کله چه رسول الله ﷺ مدينې منورې ته نزدې په يو ځاې کښې پړاو اوکړو نو دا آيتونه پرې نازل شو چه دغه تول سازش په کښې برخيره کړې شو.ددې آيتونو په نازليدلو باندې رسول الله ﷺ خپلو يو څو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم ته [چه په کښې عامر بن سکن رضی الله عنه او د حمزه رضی الله عنه قاتل وحشي رضی الله عنه هم شامل وو] حکم ورکړو چه سمدستي دغه جومات وران ويجاړ کړی او اور ورته کړی،دغه تول حضرات لاړل او د فرمان نبوی ﷺ مطابق ئې لوټې لوټې کړو او اور ئې ورته کړو.دا تولـه واقعه مې د تفسير قرطبي او تفسير مظهری د بيان کړو روايتونو نه راخستې ده.(۱)

په تفسير مظهری کښې د محمد بن يوسف صالحي په حوالـه دا هم ذکر شوې دی چه رسول الله ﷺ د قبا نه مدينې منورې ته راورسيدونو د مسجد ضرار دغه ځاې خالي پروت وو،عاصم بن عدی رضی الله عنه ته رسول الله ﷺ په دغه ځاې د کور جوړولو اجازت ورکړو،هغه رضی الله عنه عرض اوکړو چه د کوم ځاې په باره کښې دا آيتونه نازل شوې دی په داسې سپيره ځاې کښې زه کور جوړول نه خوښوم،وې وئيل چه ثابت بن اقوم رضی الله عنه محتاج دې،بې کوره دې هغه ته دغلته دکور جوړولو اجازت ورکړې،هغه ته ئې اجازت ورکړو،کور ئې پرې جوړ کړو،په دغې کور کښې يا خو د هغه اولاد به نه کيدو که او به شو نو ژوندې به نه پاتې کيدو.(۲)

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۸، ص۲۵۳، والتفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج۴، ص۲۹۵ تا ۲۹۷ پورے۔

(۲) التفسير المظهری: ج۴، ص۲۹۷

Scanned with Ca

په تاريخ كښې ليكلې دى چه انسان خو لا څه كوې چه دغلته هيڅ يو چرګې چرته اګې نه د اچولې او نه ئې په كښې بچى چرته راوړې دى، هيڅ قسم مارغه او كونترې په كښې څه وده نه ده كړې، چنانچه د هغې نه پس تر ننه پورې دغه ځاې د مسجد قبا نه لږ شان اخوا وران ويجاړ پروت دې.

د واقعې تفصيل مو واوريدو اوس د آيتونو په متن باندې نظر واچوې په رومبى آيت كښې فرمائى ﴿وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مَسْجِدًا﴾ يعنى څنګه چه دې نه وړاندې د نورو منافقانو د پاره عذاب، ذلت او رسوائى بيان كړې شوې ده، دا منافقان په كښې هم داخل دى چا چه د جومات په نوم داسې يو عمارت جوړ كړو چه مقصد ئې مسلمانانو ته نقصان رسول وو.

په دې آيت كښې د دغه جومات د جوړولو درې غرضه بيان كړې شوې دى. ① [ضِرَارًا] يعنى مسلمانانو ته زيان رسول ئې غرض وو الفظ د ضرر او ضرار دواړه په عربۍ كښې د زيان رسولو د پاره استعمالولې شى، ځنې حضراتو ئې په منځ كښې دا فرق بيان كړې دې چه ضرر هغه زيان رسولو ته وئيلې شى چه زيان رسونكى ته په كښې څه فائده وى او ضرار هغه زيان رسول دى چه بل ته زيان رسولو نه علاوه خان ته ئې هم څه فائده نه وى، هر كله چه د دې جومات شان هم داسې وو چه په خپله جوړونكو ته ترې هم څه فائده رسول نه وو ځكه ئې دې د پاره [ضرار] لفظ استعمال كړو.

② دويم غرض په كښې ﴿وَتَفْرِيقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ ښودلې شوې دې يعنى د دوى مقصد د جومات جوړولو دا وو چه مسلمانان سره خپل مينځ كښې بيل بيل شى، څه په مسجد قبا كښې مونځونه كوى او څه دلته مونځ كوى چه په دې سره د مسجد قبا مونځ ګذار كم شى.

③ دريم غرض په كښې ﴿وَإِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللَّهَ﴾ ښودلې شوې دې، حاصل ئې دا دى چه دې جومات نه دا كار اخستل هم وو چه دغلته د الله تعالى دشمنان پناه بيا مومى او د مسلمانانو په خلاف سازشونو جوړولو كښې لګيا شى

په حقيقت كښې مسجد ضرار جومات نه وو كوم چه د رسول الله ﷺ په حكم لوټې لوټې كړې شو او اور ورته كړې شو دا په حقيقت كښې مونځونو كولو د پاره نه وو جوړ كړې شوې بلكه د دې هغه درې مقصد ونه وو كوم چه بيان شو. په دې بنا اوس كه څوك مسلمانان د يو جومات په مقابله كښې بل جومات په دې غرض جوړ كړى چه د مسلمانانو تر مينځه بيلتون راولى، د رومبى جومات جمع خرابول غواړى. دا ناروا قسم غرضونه ئې وى نو د داسې جومات جوړونكو هيڅ ثواب نشته، بلكه د مسلمانانو تر مينځه د بيلتون راوستو په وجه به ګناهګار وى، ليكن بيا هم دغه به شرعى جومات ګڼړلى شى، د جومات شرعى آداب او احكام به پرې جارى كيږى، د دې ورانول او اور ورته كول به جائز نه وى او څوك به چه دې كښې مونځ كوى د هغوى مونځ به هم ادا كيږى اګر چه د داسې كولو ګناه به وى.

دا هم ترې معلومه شوه چه څوك مسلمان د ريا او نمائش په غرض ياد ضد او عناد په وجه يو جومات جوړونكى ته خو به هيڅ ثواب نه ملاويږى، بلكه ګناه به ئې وى. خو د قرآن د اصطلاح په جوړ به ورته مسجد ضرار نه شى وئيلې، څوك چه داسې جومات ته مسجد ضرار وائى نو دا درست نه دى البته د مسجد ضرار په شان ورته وئيلى شى او د داسې جومات جوړونكې د دې كار نه منع كولې هم شى، ځنګه چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه كښې دا

فرمان جاري کړې وو چه يو جومات سره نزدې دې بل جومات نه شي جوړولې چه ورسره د رومبي جومات ته جمع او رونق کښې فرق راځي[تفسير کشاف] .(۱)
د دغې مسجد ضرار په باره کښې د دويم آيت له مخې رسول الله ﷺ ته دا حکم ورکړې شوې دې. ﴿لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا﴾ دلته د قيام نه مراد مونځ کول دي يعنى تاسو ﷺ د دغې نوم په جومات کښې هيچرې مونځ مه کوې.
**مسئله**: نن هم که داسې يو جومات د بل جومات په مقابله کښې د نوم، نمائش يا د ضد ضدې په بنياد جوړ شي نو مونځ کول په کښې غوره نه دي اګرچه مونځ په کښې کيږي.
هم په دې آيت کښې رسول الله ﷺ ته دا هدايت ورکړې شوې دې چه ستاسو مونځ کول په دې جومات کښې درست دي چه بنياد ئې اول د سره په تقوى اېښودې شوې دې او په دې کښې داسې خلق مونځونه کوى چه د پاکې او پاکيزګۍ په باره کښې ورته پوره احتياط کول ډير خوښ دي او الله تعالى هم داسې پاکدامن خلق خوښوى.
د آيت د روانۍ نه دا خبره ښکاره ده چه مراد ترې مسجد قبا دې په کوم کښې به چه دغه وخت رسول الله ﷺ مونځ کولو ځکه چه د بعضې روايتونو د حديث نه ددې تائيد هم کيږي[لکه چه ابن مردويه د ابن عباس ﷠ نه، او عمر وبن شيبه د سهل انصاري ﷠ نه او ابن خزيمه په خپل صحيح کښې د عويمر ابن ساعده نه روايت کړې دې[مظهرى] .(۲)
د بعضې روايتونو په جوړ دې نه مسجد نبوى مراد اخستلو کښې څه بنديز ځکه نشته چه ددې بنياد د وحى الهى مطابق رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک اېښې دې، د دې بنياد په تقوى ځکه اېښودې شوې دې چه د رسول الله ﷺ نه زيات پاکى پسند او پاکدامن څوک کيدې شي؟[ترمذى روايت کړو اوصحيح ئې ورته وئيلې دى چه د ابى سعيد خدرى ﷠ نه مرفوع روايت شوې دې[په حواله د قرطبى] .(۳)
﴿فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا﴾ په دې آيت کښې د رسول الله ﷺ د پاره هغه جومات زيات مناسب ګرځولې شوې دې چه بنياد ئې اول د سره په تقوى اېښودې شوې دې[مراد ترې مسجد قبا او مسجد نبوى دواړه کيدې شي،]د دې جوماتو يو بل غوره والې دا اوښودلې شو چه د دې مونځ ګذار داسې خلق دى چه د پاکې ډير زيات خيال لرى او پوره بندوبست ئې کوى، دلته د طهارت نه مراد د عامو پليتو او ګندګو نه پاکوالى دى او د ګناهونو او خرابو اخلاقو نه ځان پاک لرل هم دى، چنانچه د مسجد نبوى او مسجد قبا ټول مونځ ګذار د دې شان صحابهٔ کرام ﷡ وو.
**فائده**: دې نه دا هم معلومه شوه چه د يو جومات د غوره والى اصلى بنياد خو په دې ده چه هغه په اخلاص سره د الله تعالى د پاره جوړ شوې وى، په هغې کښې د ريا، او نوم نمائش څه خيال نه وى لرلې شوې او نه په کښې بل څه ناکاره غرض وى، دې نه دا هم معلومه شوه چه مونځ ګذار نيکان، صالحان او عابدان وى نو هغې سره هم د جومات فضيلت زياتيږى او د کوم جومات

۱) تفسير الكشاف تحت هذه الآيات: ج ۲، ص ۲۱۳
۲) التفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۲۹۸
۳) جامع الترمذى، أبواب الصلاة، باب ما جاء فى المسجد الذى أسس على التقوى: ج ۱، ص ۴۳

Scanned with Ca

مونځ ګذار چه عموماً عالمان صالحان تقوی دار وی نو په هغې کښې مونځ ادا کول زيات فضيلت لري۔

په دريم او څلورم آيت کښې ددې قبول شوی جومات په مقابله کښې د منافقينو د جوړ کړی جومات[مسجد ضرار]بدی او خرابی بيان شوې ده،د دې مثال داسې ښودلې شوې دې لکه د درياب داسې غاړه چه دننه برخه ئې د سيند اوبو ډډه کړې وی خو د پاسه هواره زمکه ښکاري، که څوک پرې آبادی اوکړی نو ښکاره خبره ده چه سمدستی به په درياب لاهو شی،دغه شان د مسجد ضرار بنياد هم پائيدار نه وو،انجام ئې پريوتل وو چه اوشو او د جهنم اور ته ور اورسيدو. جهنم ته پريوتل په مجازی معنی داسې هم کيدې شی چه د دې جوړونکی د پاره ئې د جهنم لاره هواره کړه او ځنې حضراتو ﷺ په حقيقی معنی باندې داسې حمل کړې دې چه جومات هم حقيقتاً جهنم ته ور اورسيدو[والله اعلم] ـ وروستو فرمائی چه د دوی دا تعمير به هميشه د دوی شک او منافقت زياتوی تر څو چه د دوی زړونه قطع نه شی يعنی تر څو چه د دوی ژوند ختم نه شی،د دوی شک،منافقت،حسد او غصه به په مخه زياتيږی۔

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ | اشْتَرٰى | مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ | اَنْفُسَهُمْ | وَاَمْوَالَهُمْ | بِاَنَّ |
| بيشکه چې الله | اغستلی دی | د مومنانونه | نفسونه دهغوی | اومالونه دهغوی | په دې چې بيشکه |

بيشکه الله ﷻ د مومنانو سرونه اومالونه دجنت په بدل کښې په بيعه اخستی دی |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَهُمُ | الْجَنَّةَ | يُقَاتِلُوْنَ | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | فَيَقْتُلُوْنَ | وَيُقْتَلُوْنَ |
| وی به دهغوی دپاره | جنت | جنګيږی دوی | په لاره دالله کښی | نو قتلوی دوی | اووژلی کيږی |

څوک چې دالله ﷻ په لار کښې جنګيږی | نور هم وژنی او دوی هم وژلی شی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَعْدًا عَلَيْهِ | حَقًّا | فِي التَّوْرٰىةِ | وَالْاِنْجِيْلِ | وَالْقُرْاٰنِ | وَمَنْ |
| وعده ده | په ذمه دهغه | حقه | په تورات کښی | اوپه انجيل کښی | او په قرآن کښی | اوڅوک دې |

دا[جنت ورکول] دالله ﷻ په ذمه کلکه وعده ده |چې په تورات انجيل اوقران پاک کښې [ليکلې]ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَوْفٰى | بِعَهْدِهٖ | مِنَ اللّٰهِ | فَاسْتَبْشِرُوْا | بِبَيْعِكُمُ | الَّذِيْ |
| زيات پوره کونکې | وعدې خپلې لره | دالله نه | نو خوشحاله شئ | په بيعه خپله سره | هغه بيعه |

او څوک دې چې دالله ﷻ نه زياته خپله وعده پوره کولې شی |نوتاسو په دې خپلې کړې سودا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَايَعْتُمْ | بِهٖ | وَذٰلِكَ | هُوَ | الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ | اَلتَّآئِبُوْنَ |
| چې معامله کړې ده تاسو | په هغې | اودا | هم دا | کاميابی ده لويه | توبه ايستونکی دی |

باندې زيرې قبول کړئ |اوهم دا ډيره لويه کاميابی ده |دغه کسان چې توبه ويستونکی،

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْعٰبِدُوْنَ | الْحٰمِدُوْنَ | السَّآئِحُوْنَ | الرّٰكِعُوْنَ |
| عبادت کونکی دی | شکر ايستونکی دی | ګرځيدونکی دی | رکوع کونکی دی |

عبادت کونکی | ثناء ويونکی | روژه ساتونکی | رکوع کونکی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| السّٰجِدُوْنَ | الْاٰمِرُوْنَ | بِالْمَعْرُوْفِ | وَالنَّاهُوْنَ | عَنِ الْمُنْكَرِ |
| سجدې كونكي دی | حكم كونكي دی | په نيكۍ باندې | اومنع كونكي دی | دبدۍ نه |
| سجده كونكي \| دنيكۍ حكم كونكي \| دبدۍ نه منع كونكي | | | | |
| وَالْحٰفِظُوْنَ | لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ؕ | وَبَشِّرِ | الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ | |
| اوحفاظت كونكي دی | حدونو دالله لره | اوزيرې وركړه | مومنانو لره | |
| اودالله ﷻ داحكامو خيال لرونكي دی \| اوداسې مومنانو ته [دجنت] زيرې وركړه \| | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

واقعه دا ده چه الله د مسلمانانو نه د دوی ځانونه او د دوی مالونه ددې په بدله کښې اخستي دي چه جنت هم د دوی دې. دوی دالله په لاره کښې جنګ کوي، دهغې په نتيجه کښې دوی نور هم وژني او ځېله هم وژلې کيږي دا يوه رښتينې وعده ده چه ددې ذمه داري الله په تورات او انجيل کښې هم اخستې ده ، او قرآن کښې هم، او څوک دي چه دالله نه زيات د وعدې پوره کونکې وی ؟ پس په خپلې هغه سودا باندې خوشحالي وکړئ چه تاسو الله سره کړې ده او دا لويه کاميابي ده ﴿چا چه دا کاميابه سودا کړی ده هغه څوک دي؟﴾ توبه وېستونکي ا دالله عبادت کونکي ا د هغه حمد کونکي ا روژه نيونکي رکوع کونکي ا سجده کونکي ا دنيکۍ حکم کونکي او د ګناه نه منع کونکي ا اود الله د مقرر شوؤ حدونو حفاظت کونکي ا ﴿اې پيغمبره ا﴾ داسې خلقو ته خبرې ورکړه.

## خلاصه تفسير

[اِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰى مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنْفُسَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ بِاَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ؕ] بيشکه الله تعالى مسلمانانو نه ددوئ د ځانونو او ددوئ مالونه ددې خبرې په بدله کښې اخستی دی چې دوئ ته بهٔ جنت ملاويږی [يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيَقْتُلُوْنَ وَيُقْتَلُوْنَ ۫] [او د الله ﷻ په لاس د مال او ځان خرڅولو مطلب دادې چې] هغه خلق دالله تعالى په لار کښې [يعنى جهاد کښې ] جنګيږی چې په هغې کښې [کله] قتل شی او [کله ] دوئ قتل کړې کوی [يعنى هغه بيع جهاد کول دی که په دې کښې قاتل جوړ کشتې يا مقتول جوړ شی] [وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ وَالْقُرْاٰنِ ؕ] په دې [قتال] باندې دوئ سره د جنت رېښتونې وعده شوې ده تورات کښې [هم] او انجيل کښې [هم] او قرآن عظيم الشان کښې [هم] [وَمَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ مِنَ اللّٰهِ] او [دا حقيقت دی] چې الله ﷻ نه زيات خپله وعده څوک پوره کوی [او هغه په دې بيع باندې د جنت وعده کړې ده] [فَاسْتَبْشِرُوْا بِبَيْعِكُمُ الَّذِيْ بَايَعْتُمْ بِهٖ ؕ] نو [دې حالت کښې] تاسو خلق [چې جهاد کوئ] پخپله دې [مذکوره] بيع باندې چې تاسو دا معامله الله تعالى سره اوکړه خوشحاله شئ [ځکه چې په دې بيع باندې به تاسو ته ددې مذکوره وعدې مطابق جنت ملاويږی] [وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝] او دا [جنت ملاويدل] لويه کاميابي ده [نو تاسوله ضرور دا سودا کول پکار دی] [اَلتَّآئِبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ الرّٰكِعُوْنَ السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ] هغه [مجاهدين چې دجهاد نه علاوه هغوئ کښې دا صفات موجود دی چې دګناهونو نه] توبه کوی [اود الله تعالى] عبادت کوی [ او دالله تعالى ] حمد وثناء وائی [او روژې نيسی اورکوع او سجده کوؤنکی دی [يعنى مونځ کوی او] دنيکو

خبرو تعليم ورکوي او د خرابو خبرو نه منع کوي [وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ] او د الله ﷻ د حدودو [يعني داحکامو] خيال ساتي [وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ] او داسې مؤمنانو ته [چې هغوئ جهاد کوي او دا صفات په کښې دي] زيرې ورکړئي [چې دوئ سره جنت مذکوره وعده ده]

## معارف او مسائل

**دآيتونو ترون:** په تيرو شوو آيتونو کښې بې د څه عذره په جهاد کښې د نه شاميليدو بدي بيان شوې وه اوس په دې آيتونو کښې د جهاد کوونکو فضيلت او غوره والې بيان شوې دې.

**شان نزول:** څنګه چه اکثرو مفسرينو رحمهم الله په دا ګه وئيلې دي، دا آيتونه په بيعت عقبه کښې د شاملو کسانو رضي الله عنهم په باره کښې راغلې دي چه د هجرت نه وړاندې په مکه مکرمه کښې د مدينې منورې د انصارو رضي الله عنهم نه اخستې شوې وو، څکه خو دې آيتونو ته مکي وئيلې شي حالانکه دا ټول سورت مدني دې.

عقبه د غر يو برخې ته وئيلې شي، دلته د عقبه نه مراد د غر هغه برخه ده چه جمرې عقبې سره ده، [خو نن صبا دغه برخه څکه هواره کړې شوه چه حاجيان صاحبان ډير زيات وي صرف دغه جمره پاتې شوې ده] په دې عقبه باندې د مدينې منورې د حضراتو رضي الله عنهم نه درې کرته بيعت اخستې شوې دې، رومبى ځل هغه وخت بيعت واخستې شو چه د رسول الله ﷺ د پيغمبر کيدو يوولسم کال وو، په دغه موقع مسلمانان شوو شپږو کسانو بيعت اوکړو، چه مدينې منورې ته بيرته لاړل نو دغلته کور په کور د رسول الله ﷺ په باره کښې مشهورتيا اوشوه، د دغې نه په راتلونکي کال کښې دغلته دولس کسان بيا راجمع شو چه پينځه په کښې وړاندينى او اووه په کښې نوي وو، چه دغې ټولو [دولسوواړو] بيعت اوکړو، اوس په مدينه منوره کښې د مسلمانانو شمير زيات شو چه د څلويښتو نه زيات جوړيدل هغوي د قرآن کريم د لو لولو د پاره د چا د راليږلو خواست اوکړو، رسول الله ﷺ مصعب بن عمير رضي الله عنه اوليږلو، هغوي رضي الله عنه دغې مسلمانانو ته قرآن کريم لوستو او د اسلام تبليغ به ئې هم ورته کولو د دې په نتيجه کښې د مدينې منورې ډيرې ډلې مسلمانانې شوې.

د نبوت په ديارلسم کال اويا سړي او دوه زنانه د مدينې منورې دغلته راجمع شو، دا دريم او آخري بيعت عقبه دې چه عموماً د بيعت عقبه نه هم دا مراد اخستې شي. دا بيعت[الاس نيوې] د اسلام په اصولي عقيدو او عملونو باندې واخستې شو، دې سره په دې هم لوظ واخستې شو چه خصوصاً کفارو سره به جهاد هم کوي او کله چه رسول الله ﷺ مدينې منورې ته ورشي نو د هغوي ﷺ حفاظت او مرسته به هم کوي، په دوی کښې حضرت عبد الله بن رواحه رضي الله عنه عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ اوس دا وخت لګيا دې لوظ، قول کولې شي، تاسو ښه په داګه د الله تعالى او د خپل ځان له اړخه مونږ ته ددې شرطونه بيان کړې هغوي ﷺ اوفرمائيل چه زه خو الله تعالى د پاره دا شرط اړدم چه تاسو ټول به د هغه عبادت کوئ، د هغه نه سوا د بل چا عبادت به نه کوئ، او خپل ځان د پاره مې دا شرط دې چه زما ساتنه به په دې شان کوئ څنګه چه د خپلو ځانونو، د مالونو او اولاد حفاظت کوئ. دغې خلقو رضي الله عنهم عرض اوکړو چه د دې دواړو شرطونو پوره کولو په بدله کښې به مونږ ته څه ملاويږي؟ ورته ئې اوفرمائيل چه جنت به درته ملاويږي، دغه ټول خوشحاله شو او وې فرمائيل چه مونږه په دې سودا راضي يو او داسې راضي يو چه ددې د ماتولو د پاره به په خپله خواست هم نه کوو او نه به ددې ماتول خوښوو.

Scanned with Ca

دي بيعت [لاس نيوې] هر كله چه په ښكاره د يو لين دين او معاملې صورت اختيار كړو خكه دي د پاره په آيت كښې د بيع شراء [اخستل، خرڅول] لفظ راوړلې شو لكه فرمائي ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾ د دې آيت په اوريدو سره د ټولو نه اول حضرت براء بن معرور، ابو الهيثم او اسعد رضي الله عنهم د رسول الله ﷺ په لاس مبارک كښې خپل لاس كيښودو او وې وئيل چه مونږه دې معاملې ته تيار يو، ستاسو ﷺ حفاظت به لكه د خپلو بيبيانو او بچو په شان كوو او كه د دنيا ټول تورپوستى او سپين پوستى ستاسو ﷺ د مقابلې د پاره راجمع شي نو بيا هم ستاسو ﷺ په ملا تړ كښې درسره ولاړ يو.

**د ټولو نه رومبې د جهاد آيت هم دادې:** په مكه معظمه كښې د جنګ او جهاد احكام نه وو، د ټولو نه رومبې په مكه معظمه كښې د جهاد دا آيت نازل شو، خو عملدرآمد پرې د هجرت نه پس شروع شو، وروستو د جهاد دويم آيت دا نازل شو ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ﴾ كله چه دا بيعت عقبه د مكې د كفارو نه په پرده كښې سر ته اورسيدو نو رسول الله ﷺ صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم ته د مكې مكرمې نه مدينې منورې ته د هجرت كولو حكم اوكړو او په وار وار د صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم د هجرت سلسله شروع شوه. رسول الله ﷺ د الله تعالى دا ړخه د هجرت كولو د اجازت ملاويدو په انتظار كښې وو. كله چه صديق اكبر رضي الله عنه د هجرت قصد اوكړو نو هغوى رضي الله عنه ئې دې د پاره ايسار كړل چه ځان سره به ئې ملګرې كوى. [دا واقعه په تفسير مظهرى كښې سره د حوالې بيان شوې ده] [1]

﴿يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ ۖ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ﴾ د دې آيت نه معلوميږى چه په ټولو آسمانى كتابونو كښې هم د ټولو امتونو د پاره د جهاد حكم نازل شوې وو او دا چه مشهور دى چه په انجيل كښې د جهاد حكم نشته ممكنه ده چه روستو راتلونكو خلقو چه په دې كښې كوم بدلون راوستې دې په هغې سلسلې كښې ئې ترې جهاد هم خارج كړې او ويستې وى [والله اعلم].

﴿فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ﴾ د ظاهرى شكل په اعتبار سره بيعت عقبه ته د اخستلو خرڅولو د معاملې نوم وركړې شو، په دې اعتبار مسلمانانو ته خطاب اوشو چه دا اخستل او خرڅول ستاسو د پاره سود من او بركتى دې خكه چه د ځان او مال غوندې فانى څيز په بدله كښې تاسو ته هميشه باقى پاتې كيدونكې څيز ملاو شو. كه غور اوكړې شى نو لګيدل يو اځې د مال كيږى چه هغه هم د خداې تعالى وركړه ده، هيڅوک خپل ځانى څه څيز نه دې چه ګنې پيدا كيدو سره ئې د ځان سره راوړې وى او ځان [يعنى روح] خو به مرګ سره هم باقى وى چه هميشه به پاتې كيږى، په دې بنا په خپل وركړى مال دولت باندې جنت وركول بې انتها لويه مهربانى ده، چنانچه حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه فرمائيلې دى چه دا عجيبه بيعه ده چه مال او قيمت دواړه هم الله تعالى وركړل حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائيلې دى چه واورې دا څنګه سود من تجارت دې چه الله تعالى هر مؤمن د پاره د دې لار پرانستې ده او وې فرمائيل چه هم الله تعالى تاسو ته مال بخښلې دې، تاسو د دې څنې په لږ مال لګولو سره جنت واخلې [مظهرى] [2]

---

[1] ) التفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۰۲، ۲۰۳

[2] ) التفسير المظهرى: بحواله بالا۔

﴿التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ﴾ دا د هغه مومنانو صفتونه دي د چا په باره کښې چه لږ شان وړاندې داسې فرمائیلې شوې دي چه[الله تعالى د دوی ځانونه او مالونه د جنت په بدله کښې اخستې دي]اګرچه دا د بیعت عقبه د خاوندانو د پاره نازل شوې دې خو د آیت مفهوم د الله تعالى په لار کښې تولو جهاد کوونکو لره شامل دې[التَّائِبُونَ الخ]نه چه کوم صفتونه بیان شوي دي دا د شرط په ډول ځکه نه دي چه د جنت وعده مطلقا په جهاد فی سبیل الله باندې راغلې ده،د دې صفتونو بیانولو مقصد دادې چه څوک د جنت حقدار وي د هغوی صفتونه هم دغه وي، خصوصا په بیعت عقبه کښې د شریکیدونکو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم هم دغه حال وو.

د جمهور مفسرینو رحمهم الله په نزد د(السَّائِحُونَ)معنی صائمون[روژه دار]ده.په اصل کښې دا لفظ د [سیاحت] نه راخستې شوې دې.د اسلام نه وړاندې به د نصرانیت په دین کښې سیاحت یو عبادت ګنړلې شو یعنی انسان به کور کلې پریښودو او عبادت د پاره به بهر ته اووتو،اسلام کښې دې ته رهبانیت اووئیلې شو او منع ترې اوکړې شوه او ددې په ځاې روژه عبادت اوګرځولې شو،ولې چه د سیاحت مقصد دنیا پریښودل وو،روژه هم داسې یو څیز دې چه په خپل کورکښې تر یو مقرر وخته پورې د دنیا ټول خواهشات پریښودل دی او هم په دې بنا په ځنې روایتونو کښې جهاد هم سیاحت ګرځولې شوې دې،چنانچه ابن ماجه،حاکم او بیهقی په صحیح سند سره روایت کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی،

[سیاحة امتي الجهاد في سبیل الله][1][زما د امت سیاحت جهاد فی سبیل الله دې]

حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمائیلې دی چه په قرآن کریم کښې چرته چه د سائحین لفظ راغلې دې،دې نه مراد روژه دار دی.حضرت عکرمه رضي الله عنه د سائحین تفسیر په هغه طالب علمانو سره کړې دې چه د علم حاصلولو په غرض ئې کور کلې پریښې وی[مظهری][2].

دلته د مجاهدینو مومنانو کوم اووه صفتونه﴿التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدُونَ الْآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾چه بیان شو دې نه پس اتم صفت [الْحَافِظُونَ لِحُدُودِ الله] یې اوفرمائیل چې د سابقه اوو صفتونو د پاره یو جامع لفظ دې[یعنی دا د هغې اجمال او هغه ئې تفصیل وو]مطلب ئې دا دې چه دا خلق په هر یو کار کښې د حدود الله یعنی دشرعی احکامو پابند دی او د دې حفاظت کوی.

په آخر د آیت کښې فرمائی﴿وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ﴾یعنی په دغې بیان شو و صفتونو سره موصوف مومنانو ته د داسې نعمتونو زیرې ورکړه چه د چا په وهم او خیال کښې هم نه راځی،او نه په الفاظو سره پرې څوک پوهولې شی او نه د چا غوږونو د دې بیان اوریدلې دې چه مراد ترې د جنت نعمتونه دی.

[1]) السنن الکبری للبیهقی: ج ۹، ص ۲۱۱

[2]) التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۴، ص ۲۰۳

مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ

| نه ښائي | پيغمبر لره

| پيغمبر

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْٓا

اوهغه کسانولره|چي ايمان ئي راوړي دي|چي دبخښنې دعاغواړي|دپاره دمشرکانو|اګرکه وي هغوئ

او مومنانو سره دا نه ښائي | چي دمشرکانو دپاره بخښنه اوغواړي | ........ اګر که

اُولِيْ قُرْبٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ

خاندان دخپلوئ | روستو | ددې خبرئ نه | چي ښکاره شوي وي | هغوئ ته | چي بيشکه دا مشرکان

نزدې خپلوان وي | ددې نه پس چي دا ورته ښکاره شوه | چي هغوي

اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ۝ وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ اِلَّا

دوزخ والا دي | اونه وه | غوښته دبښنې | دابراهيم ﷺ | دپاره دپلارخپل | مګروه

دوزخيان دي | او [حضرت] ابراهيم ﷺ چي د خپل پلار دپاره استغفار کړې وو

عَنْ مَّوْعِدَةٍ وَّعَدَهَآ اِيَّاهُ ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗٓ

په سبب دهغه وعدې | چي کړې وه هغهٔ هغه وعده | دهغه سره | خو کله چي | معلومه شوه | هغه ته

نودهغې وعدې په وجه ئې کړې وو | چي دپلار سره ئې کړې وه | اخو بيا چي کله دا ورته ښکاره شوه

اَنَّهٗ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّاَ مِنْهُ ؕ اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ لَاَوَّاهٌ

چي بيشکه هغه | دشمن دې | دالله | نو ويزاره شو | د هغه نه | بيشکه | ابراهيم ﷺ | ډير په زړه نوم ووْ

چي هغه دالله ﷻ دښمن دې | نو ويزاره شو ترې | ابراهيم ﷺ ډير الله ترس او رحمدل وو

حَلِيْمٌ ۝

صبرناك ووْ |

## آسان ترجمه قرآن

دا خبره خو نه ده پولې سره ښائي او نه د مؤمنانو سره چه هغوی مشرکانو لره بخښنه وغواړي ، خواه هغوی خپلوان ولې نه وي ، هرکله چه دوی ته دا خبره ښه واضحه شوې وي چه دوی دوزخيان دي او ابراهيم عليه السلام چه دخپل پلار دمغفرت دپاره کومه دعا غوښتې وه دهغې وجه دې نه سوا بله نه وه چه هغه د ده (پلار) سره وعده کړې وه بيا چه کله هغه ته دا خبره واضحه شوه چه دې دالله دښمن دې نو دهغه نه بيزاره شو حقيقت دا دې چه ابراهيم عليه السلام ډير آه ونه کونکې ډير صبرناك وو.

## خلاصه تفسير

[مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْٓا اُولِيْ قُرْبٰى] پيغمبر ﷺ او نورو مسلمانانو دپاره جائز نه دی چي مشرکانو دپاره دمغفرت دعا اوکړی اګر که هغه رشته دار [ولي] نه وی

[مِنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمۡ أَنَّهُمۡ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَحِيمِ] ددې امر د ظاهرېدو نه پس چې دا خلق دوزخيان دي [په دې وجه چې دوئ كافر شي او مړهٔ شي] [وَمَا كَانَ ٱسۡتِغۡفَارُ إِبۡرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ] او [كه د ابراهيم عليه السلام په قصه كښې شبه اوشي چې هغوئ خپل پلار دپاره د مغفرت دعا كړې وه نو ددې جواب دادې چې] د ابراهيم عليه السلام دخپل پلار دپاره دمغفرت دعا غوښتل [هغه ددې نه مخكښې وو چې دهغه جهنم ته تلل ظاهرشي او] [إِلَّا عَن مَّوۡعِدَةٖ وَعَدَهَآ إِيَّاهُ] هغه [هم] صرف د وعدې په وجه وو چې هغوئ عليه السلام هغه سره وعده كړې وه [دې قول كښې سأستغفرلك ربي .](١)غرض جواز په دې وجه وو چې د هغه دوزخې كيدل ښكاره نه وو ، او وقوع ته په دې وجه ترجيح وركړې شوې وه چې وعد ئې كړې وه ، گنې د جواز نه باوجود وقوع نه وو] [فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُۥٓ أَنَّهُۥ عَدُوّٞ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنۡهُ] بيا كله چې دوئ ته خبره واضحه شوه چې هغه د الله ﷻ دښمن [يعنى كافر مړ شوې] دې نو هغه صرف بې تعلقه شو [ چې هغه دپاره ئې استغفار هم پرېخودو ، ځكه چې دې وخت كښې د مغفرت دعا كول څه معنى نه لرى ، ځكه چې كافر دپاره د مغفرت هډو احتمال نشته دې . په خلاف د ژوندى په حالت كښې چې هغه دپاره د هدايت دعا كولې شى چې ورته د هدايت توفيق ملاؤ شى ، او پاتې شوه دا چې وعده ئې كړې وه نو ددې وجه داده چې ] [إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ لَأَوَّٰهٌ حَلِيمٞ] واقعى ابراهيم عليه السلام ډير رحيم المزاج حليم الطبع وو [چې اگر چې ددهٔ پلار وو او بيا ئې هم ډيرې سختې خبرې اوكړې ، خو حلم نه ئې كار واخستو ، او بلـه دا چې د شفقت دجوش نه ئې وعده اوكړه او د احتمال نفع پورې ئې دا وعده پوره كړه ، هر كله چې نااميده شو او شكست ئې پرېخودو په خلاف ستاسو د استغفار چې د مشركانو دمرگ نه پس كيږى ، اوهغه حالت معلوم دې چې په شرك باندې مړ شوې دې او په شرعى احكامو كښې داسې ښكاره دى ، بيا قياس كله صحيح كيږى ، او په دې قياس باندې شبه كله مبنى كيدې شى ؟!

## معارف او مسائل

ټول سورت برآءة د كفارو او مشركانو نو نه د ويزارۍ او بيلتون په حكمونو باندې مشتمل دې،د دې سورت شروع هم د ﴿بَرَآءَةٞ مِّنَ ٱللَّهِ﴾نه شوې ده ځكه خو د دې سورت يو مشهور نوم برآءت دې.دې نه وړاندې ځومره احكام چه بيان شو هغه د دنيا په ژوند كښې د كفارو نه د ويزارۍ او بائيكاټ په باره كښې دى،په دې آيت كښې دا حكم د ويزارۍ او بائيكاټ د آخرت د ژوند د پاره راغلې دې چه د مرگ نه پس د كافر او مشرك د پاره د بخښنې دعا غوښتل جائز نه دى،لكه چه دې نه وړاندې په يو آيت كښې رسول الله ﷺ په منافقانو باندې د جنازې مونځ كولو نه كړې شوې دې۔

د صحيح بخارى او مسلم د روايت مطابق ددې آيت د نازليدو واقعه داده چه د رسول الله ﷺ تره ابو طالب اگرچه مسلمان شوې نه وو،خو ټول عمر ئې د رسول الله ﷺ حفاظت او مرسته كړې وه،او په دې باره كښې ئې د خپلې برادرۍ او هيڅ يو كافر خبره نه وه منلې،رسول الله ﷺ سره هم د دې ډير غم وو چه هغه دې د اسلام كلمه اولولى او ايمان دې راورى چه ما ته د ده د شفاعت كولو موقعه په گتو راشى او دې د جهنم د عذاب نه خلاص شى.د ده د مرض وفات په آخرى وخت كښې هم رسول الله ﷺ سره د ده د اسلام راوړلو ډير زيات غم ځكه وو چه آخرت ئې

(١) ترجمه: اوس په زه ستا دپاره دخپل رب نه دمغفرت درخواست وكړم۔

بنه شي په ځنکدن کښې چه هغوی ﷺ ورا ورسیدل نو ابو جهل، عبد الله بن امیه رومبی نه هلته موجود وو، هغوی ﷺ ورته اوفرمائیل چه اې ځما تره د لااله الاالله کلمه او لوله نو زه به ستا د پاره د بخښنې کوشش اوکړم، ابوجهل سمدستی دا اووئیل چه ولې د عبد المطلب دین به پریږدې څه؟ رسول الله ﷺ دا خپله خبره دوباره بیا بیا اوکړه خو هر ځل به ابوجهل دا وئیل، تر دې چه په آخری کلام کښې ابو طالب هم دا اووئیل چه زه د عبد المطلب په دین یم او هم په دغه حالت کښې مړ شو. رسول الله ﷺ قسم اوخوړو چه زه به په مخه ورله بخښنه غواړم تر څو چه څه دې نه منع نه کړې شم، (۱)

په دې باندې دا آیت د منع نازل شو چه په دې سره رسول الله ﷺ د کفارو او مشرکانو د پاره د بخښنې د دعا کولو نه منع کړې شو اګرچه دوی نزدې خپلوان هم وی. په دې باندې د بعضې مسلمانانو شک شو چه ابراهیم علیه السلام خو د خپل کافر پلار د پاره دعا د بخښنې کړې وه نو د هغې په جواب کښې دویم آیت دا ﴿وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ الاية﴾ نازل شو چه حاصل ئې دا دې [ابراهیم علیه السلام چه خپل پلار د پاره دعا کړې وه په اول سر کښې ابراهیم علیه السلام ته دا معلومه نه وه چه تر آخره پورې به دې په کفر باندې ټینګ وی او هم په دې به مری، په دې بنا دده دوزخی کیدل هم یقینی نه وو، دغه وخت دوی علیه السلام وعده کړې وه چه زه به دوی د پاره د بخښنې دعا کوم لکه فرمائی ﴿سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي﴾ بیا کله چه حضرت ابراهیم علیه السلام ته دا خبره په ډاګه شوه چه دې د الله تعالی دشمن دې او خاتمه ئې په کفر شوې ده نو د هغه نه ئې بې تعلقی اختیار کړه او بخښنه غوښتل ئې ورله پریښودل.

د قرآن کریم په مختلفو موقعو کښې چرته چه د ابراهیم علیه السلام خپل پلار د پاره د بخښنې غوښتو بیان راغلې دې نو د هغې مطلب هغه د پاره هم دا وو چه د ایمان او اسلام توفیق ورته الله تعالی ورکړی چه بخښنه ئې نصیب شي.

د احد په غزا کښې د رسول الله ﷺ مخ مبارک چه کفارو زخمی کړو نو هغوی ﷺ د خپل مخ مبارک نه وینې پاکولې او دا دعا ئې کوله [اللهم اغفر لقومی انهم لایعلمون] (۲) [اې الله ځما قوم اوبخښې دوی نه پوهیږی] چنانچه د کفارو د پاره د بخښنې د دې دعا حاصل هم دا دې چه الله تعالی دې دوی ته د ایمان او اسلام توفیق ورکړی چه د بخښنې جوګه شي.

امام قرطبی رحمه الله فرمائیلې دی چه دې نه ثابته شوه چه ژوندی کافر د پاره په دې نیت د بخښنې دعا کول روا دی چه ورته د ایمان توفیق ورکړې شي او دهغې له مخه هغه د بخښنې جوګه شي (۳)

﴿إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ﴾ د [اواه] لفظ ډیرو معنو د پاره استعمالیږی، چنانچه امام قرطبی رحمه الله په دې کښې پنځلس اقوال نقل کړې دی چه ټول یوې بل سره نزدې دی څه حقیقی خلاف ئې تر منځه نشته یو څو معنې په کښې دادی، ① ډیر ډیر آه کونکې ② ډیر دعا کونکې ③ د الله تعالی په بندګانو باندې رحم کونکې، د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه هم دغه معنې منقول دی (۴)

---

(۱) صحیح البخاری، کتاب الجنائز، باب اذاقال المشرک عند الموت لا اله الا الله: ج ۱، ص ۱۸۱، وصحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب الدلیل علی صحة اسلام من حضره الموت الخ: ج ۱، ص ۴۰

(۲) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ۵۵۳

(۳) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الایات: ج ۸، ص ۲۷۳، ۲۷۴

(۴) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الایات: ج ۸، ص ۲۷۵، ۲۷۶

Scanned with Ca

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ اِذْ

| اونه دي الله | چې بې لارې کړی | يو قوم (۱) | وروستو | دهغه وخت نه

او الله ﷻ دا کار نه کوی | چې يو قوم د هدايت موندلو نه پس

هَدٰىهُمْ حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَّا يَتَّقُوْنَ ؕ

چې لاره ئې اوښودله هغوئ ته | ترهغې پورې | چې بيان کړی | هغوئ ته | هغه څه | چې ترې ځان اوساتی هغوئ

بې لارې کړی | ترڅو چې ورته صفا اونه ښائی | چې دکومو کومو څيزونو نه ورله بچ کيدل پکار دی

اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِيْمٌ ۝ اِنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

بيشکه الله | په هرڅيز باند | خبرداردې | بيشکه چې الله | هم خاص دهٔ لره ده | بادشاهی داسمانونو (۲)

بيشکه الله ﷻ په هر څه باندې پوهه دې | بيشکه داسمانونو او زمکې بادشاهی صرف د

وَالْاَرْضِ ؕ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ

اودزمکې | ژوندی کول کوی | اومړه کول کوی | اونشته | تاسو لره | بې د الله نه | څوک دوست

الله ﷻ ده | هغه ژوندی کول کوی | او مړه کول کوی | او دالله ﷻ نه سوا ستاسو بل هيڅوک دوست

وَّلَا نَصِيْرٍ ۝

اونهٔ مددګار |

يا مددګار نشته |

## آسان ترجمه قرآن

او نه دې الله چه يو قوم د هدايت کولو نه وروستو ګمراه کړی تر څو چه ئې ورې دا خبره نه وي واضحه کړې چه دوی لره د کومو خبرو نه ځان بچ کول پکار دي. يقين وکړه چه الله په هر څه پوهيږی يقيناً الله هغه ذات دې چه دچا په قبضه کښې د ټولو آسمانونو او زمکو بادشاهي ده. هغه ژوند هم ورکوي او مرګ هم او دالله نه سوا نه ستاسو څوک ساتونکې شته او نه مددګار.

## خلاصه تفسير

[وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ اِذْ هَدٰىهُمْ حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَّا يَتَّقُوْنَ ؕ] او الله ﷻ داسې نه کوی چې يو قوم ته هدايت اوکړی او بيا ئې ګمراه کړی تر کومې چې ورته هغه څيزونه صفا صفا او نه ښائی چې د کومو نه هغوئ بچ کيدو (نو هر کله چې مونږ تاسو [مسلمانانو ته] هدايت اوکړو او ددې نه وړاندې مو د مشرکانو دپاره د استغفار نه منع کړې وه نو دهغې په کولو سره به تاسو ته دا سزا

(۱) دالله تعالى دطرف نه اتمام حجت ضرور وی: يعنی اتمام حجت اواظهار حق نه مخکښې الله تعالى هيڅوک نه ګمراه کوي . ګمراهي داده چه کله الله تعالى خپل احکام صفاصفابيان کړی ، بيا امتثال اونکړې شی ، يعنې اشاره ئې اوکړه چه کومو خلقو دممانعت نه مخکښې دمشرکانودپاره استغفار کړې دې په هغې نيول نشته دي . اوس دخبرداری نه پس داسې کول ګمراهی ده .

(۲) هرکله چه دهغه سلطنت دې نو دهغه حکم چليدل پکار دی . هغه ذات چه په خپل قدرت اوعلم محيط سره کوم احکام نافذ کړی نو دبندګانو کار دې چه په خوف وخطر دې دهغې تعميل اوکړی . دې دپاره درعايت دخل نشته دې . ځکه چه الله تعالى نه سوا بل څوک په کار راتلو واله نشته دې .

نه ملاویږی چې تاسو کښې دې دګمراهۍ ماده پیدا کړې شی ] [اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ] بیشکه الله تعالی ته هر څیز ښه معلوم دې [او هغوئ ته دا هم معلوم دی چې زمونږ د احکامو نه بغیر هغوئ په دې نشی پوهیدې ، په دې وجه ددې افعالو سره مضرت هم نه رسوی او] [اِنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ] بیشکه دا الله تعالی بادشاهی ده په آسمانونو او زمکه کښې [یُحْیٖ وَیُمِیْتُ] هم هغه مړهٔ کول کوی او ژوندی کول کوی [یعنی هر قسم حکومت او قدرت هغه لوئې ذات دپاره خاص دې . په دې څه حکم چې غواړی نو ورکولې شی ، او څوك چې د ضرر نه بچ کول غواړی نو بچ کوی یې] [وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِیٍّ وَّلَا نَصِیْرٍ] او د الله ﷻ نه سوا ستاسو هیڅ مددګار او دوست نشته [بلکه هم هغه یار و مددګار دې ، په دې تاسو دضرر نه بچ کوی ، او که تاسو اطاعت اونه کړو نو ستاسو هیڅوك بچ کوونکی نشته ]

لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِیِّ وَالْمُهٰجِرِیْنَ وَالْاَنْصَارِ

|به تحقیق سره مهربانی اوکړه| الله|په نبی باندې | اوپه مهاجرینو باندې| اوپه انصارو باندې

| الله ﷻ د خپل پیغمبر او د هغې مهاجرو او انصارو

الَّذِیْنَ اتَّبَعُوْهُ فِیْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْۢ بَعْدِ مَا

دا هغه کسان دی | چې پیروی ئې کړې وه دهغه | په وخت دتنګئ [سختئ] کښې | روستو | دهغې نه

په حال توجه اوکړه | چې سختې تنګدستئ کښې ئې د پیغمبر سره ملګرتیا اوکړه | اګر چې د

كَادَ یَزِیْغُ قُلُوْبُ فَرِیْقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ

چې نزدې شوی ووچې کاږه شی| زړونه | دیوې ډلې | دهغوئ نه | بیا ئې | رجوع په رحمت سره اوکړه

څینو زړونه کږیدو والا وو | ..............خو بیا الله ﷻ ددوئ توبه قبوله کړه

عَلَیْهِمْ اِنَّهٗ بِهِمْ رَءُوْفٌ رَّحِیْمٌ وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ

په هغوئ|بیشکه هغه|په دوئ|مهربانه دې| رحم کوونکې دې|اورجوع درحمت ئې اوکړه په دریو کسانو

هغه په دوئ باندې شفیق او مهربان دې |..............او په هغه دریو کسانو چې

الَّذِیْنَ خُلِّفُوْا حَتّٰۤى اِذَا ضَاقَتْ عَلَیْهِمُ

هغو باند| چې روستو کړې شوی وو هغوئ | ترهغې پورې | چې کله | تنګه شوه | په هغوئ باندې

دهغوئ فیصله ملتوی شوې وه | تر دې چې زمکه پرې سره د فراخئ تنګه شوه

الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَیْهِمْ اَنْفُسُهُمْ وَظَنُّوْۤا اَنْ لَّا مَلْجَاَ

زمکه | سره دفراختیا دزمکې| اوتنګه شوه| په هغوئ باند| ځانونه دهغوئ| اوپوهه شو| چې نشته ځائې دپناه

اوخپل ژوند ورباندې بارشو| اوپه دې پوهه شو چې دالله ﷻ قهر نه بل هیڅ ځائې کښې پناه نشته بې دهغه نه

مِنَ اللّٰهِ اِلَّاۤ اِلَیْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَیْهِمْ لِیَتُوْبُوْا

دالله نه | مګر| خاص هم هغه ته دې| بیا| توجه اوکړه الله | په هغوئ | دپاره ددې چې واپس شی الله ته

نو الله ﷻ پرې مهربانه شو | چې دوئ ائنده هم توبه اوباسی

Scanned with Ca

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ اللَّهَ | هُوَ | التَّوَّابُ | الرَّحِيمُ ۝ | يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا |
| بیشکه الله | هم هغه | ډیر توبه قبلونکي | رحم کونکي دي | اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړي دي |
| الله ﷻ توبه قبلونکي او مهربان دي | | ......اي مومنانو د الله ﷻ نه ویره کوئ | | | |
| اتَّقُوا اللَّهَ | وَكُونُوا | مَعَ الصَّادِقِينَ ۝ | | | |
| اوویریږئ د الله نه | او شئ | د صادقانو سره | | | |
| او د رښتیا خلقو سره ملګری شئ | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

حقیقت دا دی چه الله مهربانۍ کړې ده په نبي باندې او په هغه انصارو او مهاجرینو چه هغوی په مشکل وخت کښې د نبي تابعداري کړې وه چه نزدې وه چه په هغوی کښې د یوې ډلې زړونه کاږه شوی وو، بیا الله د هغوی حالت ته توجه وکړه. یقیناً الله ډیر نرمي کونکې، ډیر مهربانه دې. او په هغه دریو باندې هم (الله مهربانی کړې ده) چه د هغوی فیصله وروستو کړې شوې وه تر دې چه په هغوی دا زمکه سره د فراختیا نه تنګه شوې وه، او د هغوی ژوند په هغوی باندې تنګ شو او هغوی په دې پوهه شوی وو چه د الله (د نیولو نه) هم د هغه په پناه کښې راتلو نه بغیر چرته پناه نه شي ملاویدې بیا الله په دوی رحم وکړو چه دوی آئنده الله طرف ته رجوع وکړي. یقین وکړئ چه الله ډیر معاف کونکې، ډیر مهربان دې اي د ایمان خاوندانو! د الله نه اوویریږئ، او د رښتینو خلقو سره شئ.

## خلاصه تفسیر

[لَقَدْ تَابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ] الله تعالی د پیغمبر ﷺ حال ته متوجه شو [چې هغوئ ﷺ ته یې نبوت او د جهاد امامت او ټول صفتونه ورکړو] [وَالْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ] او د مهاجرینو او انصارو په حال باندې هم [توجه اوفرمائیله چې هغوئ یې داسې مشقت په جهاد کښې مستقیم اوساتلو] [الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ] چې هغوئ په داسې وخت کښې د پیغمبر ﷺ سره ملګرتیا کړې وه، [مِن بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِّنْهُمْ] پس د دې نه چې په دوئ کښې د یوې ډلې په زړونو کښې تزلزل وو [او په جهاد کښې حوصلې بائیللو ته نزدې وو خو] [ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ] بیا الله ﷻ د هغوئ په حال رحم اوکړو آخر بیا [چې هغوئ نې سنبال کړل او هغوئ سره شول نو] [إِنَّهُ بِهِمْ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ] بیشکه الله تعالی په ټولو باندې شفیق او مهربان دې [چې دیریو په حال باندې ځنګه توجه فرمائی] [وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا] او د هغه دریو سړو په حال نې هم [توجه اوفرمائیله] د کومو معامله چې ملتوی شوې وه [حَتَّىٰ إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ] تر دې چې کله [په هغوئ باندې پریشانی راغله چې] زمکه د خپل [د ومره] فراخوالي باوجود په هغوئ باندې تنګه شوه [وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ] او د خپلو ځانونو نه هم تنګ شول [وَظَنُّوا أَن لَّا مَلْجَأَ مِنَ اللَّهِ إِلَّا إِلَيْهِ] او هغوئ دا اوګڼل چې د الله تعالی [د ګرفت نه] پناه نشي ملاویدې سوا د دې نه چې هغه طرفته رجوع اوکړې شی [په هغه وخت هغوئ د خاص توجه قابل شو] [ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا] بیا د هغوئ په حال باندې [هم خاص] توجه اوفرمائیله چې بیا د پاره هم [داسې د مصیبت او معصیت موقعو

Scanned with Ca

باندې] الله تعالی طرفته رجوع کوی [اِنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ] بیشکه الله تعالی ډیر توجه کولو والا او ډیر لوئې مهربان دې ، [ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَكُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ ] ائې ایمان والو دالله تعالی نه ویریږئې او [عمل کښې ] د رېښتونو سره شئ [یعنی کوم چې په نیت او خبره کښې رېښتونی وی دهغوئ په لار روان شئ چې تاسو کښې صدق راشی

## معارف او مسائل

یو څو آیتونه وړاندې په آیت د ﴿وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا﴾ په بیان کښې لیکلې شوې وو چه غزوه تبوک د پاره هر کله چه د ټولو مسلمانانو د وتلو حکم عام وو نو دغه وخت د مدینې خلق پنځه قسمه جوړ شوې وو ،دوه قسمه د منافقانو وو چه تفصیل ئې په رومبو آیتونو کښې تیر شو اوس په دې آیتونو کښې د مومنانو مخلصانو د درېو قسمونو بیان راغلې دې،

① اول قسم هغه وو چه د جهاد د پاره حکم کیدو سره سمدستی تیار شو چه بیان ئې د دې آیت په رومبې جمله ﴿اِتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ﴾ کښې راغلې دې،

② دویم قسم هغه وو چه په اول کښې څه خپه نیولې شان وو خو بیا ډاډه او زړور شو او جهاد د پاره ټولو سره روان شو ،د دوی بیان د آیت په دې جمله ﴿مِنْۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ﴾ کښې راغلې دې

③ دریم قسم هغه مومنان وو چه د سستې د کبله خو جهاد له لا نړل خو بیا پښیمانه او توبه ګار شو ،او په آخر کښې د دوی ټولو توبه قبوله شوه مګر په دوی کښې بیا دوه قسمه مومنان په داسې شان شو چه ټول لس کسان وو ،اوو[۷] کسانو د رسول الله ﷺ په راواپس کیدو باندې خپله پښیمانی او توبه په دې شان ښکاره کړه چه خپل ځانونه ئې د مسجد نبوی ستنو سره په دې غرض اوتړل چه تر څو زمونږ توبه نه وی قبوله شوې مونږ به هم داسې تړلې یو ،د دوی په باره کښې د توبې آیت هغه وخت نازل شو د کوم بیان چه اوس اوس شوې دې،درې پاتې کسانو دغسې او نه کړل چه رسول الله ﷺ ورسره د بائیکاټ کولو حکم اوکړو ،وې فرمائیل چه هیڅوک دې ورسره سلام کلام هم نه کوی،دې سره دغه درې کسان ډیر سخت پریشانه شو چه بیان ئې په دویم آیت کښې دا شان ﴿وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا﴾ راغلې دې،چه بالاخر د دوی توبه هم قبوله شوه او ورسره د بائیکاټ حکم هم ختم شو فرمائی ﴿لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ﴾ [الله تعالی توبه قبوله کړه د نبی ﷺ او د هغه مهاجرینو او انصارو چه د تکلیف په وخت کښې ئې د نبی ﷺ تابعداری کړې وه]

دلته دا سوال پیدا کیږی چه توبه خو د ګناه او د معصیت د وجهې نه کیږی،رسول الله ﷺ خو د ګناه نه پاک او معصوم دی،د هغوی ﷺ د توبې قبلولو څه مطلب شو؟بل دا چه اول نه کومو صحابهٔ کرامو ﷺ جهاد ته تلل سمدستی منظور کړې وو نو د هغوی ﷺ ګناه او قصور هم څه نه وو نو د هغوی د توبې قبلولو مطلب څه شو ؟

جواب ئې دادې چه دلته د توبې قبلولو نه مراد د ګناه نه ساتل دی،یا دا چه دلته د توبې قبلولو نه مطلب اشاره کول دی د دې خبرې ته چه هر بنده ته تر دې چه رسول الله ﷺ ته د توبې کولو ضرورت څکه شته چه الله تعالی په خپله فرمائی ﴿وَتُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا﴾ [الله تعالی ته ټول توبه ګار شئ]پوره مطلب ئې دادې چه الله تعالی ته د نزدیکت ډیرې درجې دی چه نه ختمیدونکې

دي، هر بنده چه کوم مقام ته اورسي د هغې پورته مقامونه نور هم شته چه هغې سره ئې نسبت اوکړي شي نو موجوده مقام باندې ايسار پاتې کيدل يو نقص او کوتاهي ده، لکه مولانا رومي رحمه الله فرمائي؛

اے برادر بے نهايت در گهی ست
هر چه بروے مى رسى بروے مائست

[اې روره الله تعالى ته د نزديکت ډير زيات مقامات دي، کوم يو ته چه اورسې نو هلته مه ايساريږه] [مطلب د زيات نزديکت حاصلولو کوشش کوه].

يعني دلته د توبې مطلب دا شو چه دغه رسيدلى مقام باندې د ايساريدو په ځاې نور پورته تلل پکار دي.

﴿سَاعَةِ الْعُسْرَةِ﴾ دغې وخت ته ساعة العسرة ځکه وئيلې شوې دی چه مسلمانان په دغه وخت کښې نيستمن او په تنګيسا کښې وو، چنانچه حسن بصرى رحمه الله فرمائيلې دي چه لسو کسانو د پاره يوه يوه سورلی وه چه په وار وار به ئې پرې سورلی کوله، د سفر خرچه ورسره هم ډيره لږه او معمولی وه، د سختې ګرمې موسم وو، اوبه هم په لاره کښې چرته چرته او لږې بيا موندې شوې.

﴿مِنْۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ﴾ دلته د زيغ نه مراد دين نه اوړيدل نه دي بلکه د بيان شوو تکليفونوله کبله مړانه پريښودل او د جهاد نه ځان پاتې کول ترې مراد دی ځنګه چه په احاديثو کښې راغلې دي. او توبه ئې هم د دې قصور نه معاف شوه.

﴿وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا﴾ د [خلفوا] لفظي معنى ده روستو پريښولې شوې، يعني هغه صحابهٔ کرام رضي الله عنهم چه د توبې معامله ئې روستو کړې شوه. دا درې صحابه رضي الله عنهم کعب بن مالک شاعر، مراره بن ربيع، او هلال بن اميه رضي الله عنهم وو، درې واړه انصاري بزرګان وو، چه دې نه وړاندې په بيعت عقبه کښې او په نورو غزاګانو کښې هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره شريک شوې وو، خو د غزوهٔ تبوک په موقع باندې اتفاقي په دې غلطي کښې مبتلا شو، منافقانو هم ورته هم داسې مشورې ورکړې وې ځکه ترې دا کار اوشو. کله چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د دغې جهاد نه واپس راغلو نو ټولو منافقانو د دروغو په عذرونو او دروغو قسمونو خوړلو سره ځان خلاص کړو، رسول الله صلى الله عليه وسلم ئې هم دغه ظاهري قسمونه قبول کړل او د دوی باطني حالت ئې الله تعالى ته اوسپارلو او دا خلق په مزو کښې اوسيدل، ځنې خلقو دې درې واړو انصارو بزرګانو ته هم د دغسې کولو مشوره ورکوله. چه په دروغو عذرونو پيش کولو سره ځانونه خلاص کړې مګر په دې باندې هغوئ لره د هغوی زړونو ملامته کول چه يو خو جهاد ته د نه تلو ګناه رانه شوې ده او بل د هغوی رضي الله عنهم په وړاندې د دروغ وئيلو ګناه پرې لا زياتي اوکړو، نو د داسې کولو په ځاې ئې بنه په ډاګه د خپل قصور اقرار اوکړو چه د بائيکاټ او سلام کلام نه کولو سزا پرې جاري کړې شوه د دې ټولې واقعې انجام دا شو چه الله تعالى په قرآن کريم کښې د دې ټولو حقيقت ځرګند کړو په دروغه د قسم خوړونکو راز ئې هم ښکاره کړو چه د هغې ذکر او د هغوې د خراب انجام بيان د دې نه وړاندې په نورو آيتونو کښې بيان شوې دې لکه فرمائي ﴿يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ﴾ نه تر ﴿عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ﴾ او دې درې واړو بزرګانو چه رښتيا اوئيل او د خپل قصور اقرار ئې اوکړو نو توبه قبليدل ئې په دې آيت کښې نازل شو. پنځوس ورځې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مخ مبارک ړولو او صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم د سلام کلام نه کولو ډيرې سختې سزا تيرولو نه پس ډير په رونړتيا او مبارکې سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د ټولو مسلمانانو په نزد مقبول شو.

Scanned with Ca

**د دې درېو واړو انصاري بزرګانو د واقعې تفصيل د احاديثو له:**: په صحيحينو [بخاري او مسلم] او د احاديثو په اکثرو کتابونو کښې ددې واقعې په باره کښې د حضرت کعب بن مالک ﷺ ير اوږد حديث ليکلې شوې دې[۱] چه په ډيرو فائدو، مسئلو او حقيقتونو باندې مشتمل دې، خکه مناسب ښکاری چه د هغې پوره ترجمه دلته نقل کړې شی، چنانچه کعب بن مالک ﷺ خپله دا واقعه دا شان نقل کوی.

رسول الله ﷺ چه څومره غزوات کړې دی زه په هغې تولو کښې د هغوی ﷺ سره شريک ووم سوا د غزوهٔ تبوک نه، البته د بدر واقعه چونکه ناڅاپه پيښه شوې وه او رسول الله ﷺ تولو ته په هغې کښې د شريکيدو حکم هم نه وو کړې او په نه شريکيدونکو باندې ئې څه ملامتيا هم نه وه کړې نو په هغې کښې هم نه ووم شريک شوې، او زه د ليلة العقبه په بيعت کښې هم شريک ووم چه په کوم کښې مونږ د اسلام د مرستې او حفاظت لوظ او قول کړې وو او ما ته دا په بيعت عقبه کښې حاضريدل د غزوهٔ بدر د حاضرۍ نه هم ډير خوښ دی، اګرچه د بدر غزا په خلقو کښې زياته مشهوره ده، فرمائی چه د تبوک په غزا کښې د نه شامليدو وجه مې دا وه چه زه کله هم دومره آسوده حال او مالداره نه ووم څومره چه د تبوک د غزا په موقعې باندې ووم، قسم په خداې چه دغه وخت راسره دوه سورلۍ هم وې چه ددې نه وړاندې چرې هم راسره نه وې، فرمائی چه د رسول الله ﷺ عادت شريفه به د غزواتو په معامله کښې دا وو چه د غزا د پاره به ئې تشريف اوړو نو د غزا د مقام د اړخ نه به په بل اړخ د مدينې منورې نه وتلو دې د پاره چه منافقان جاسوسان هغې خلقو ته زمونږ جاسوسی او نه کړی، هغوی ﷺ به فرمائيل چه جنګ کښې [دا شان] خداع [دهوکه] کول روا دی.

د تبوک غزا چه راپيښه شوه نو دغه وخت سخته ګرمی وه، مسلمانان بې ماله او غريبانان وو، سفر هم ډير اوږد وو، د دشمن شمير او طاقت هم ډير زيات وو، خکه رسول الله ﷺ په ډاګه د دې جهاد اعلان اوکړو چه مسلمانان دی د پاره پوره تياری اوکړې شی. د صحيح مسلم د روايت مطابق په دې جهاد کښې د شريکيدونکو شمير د لسو زرو [۱۰۰۰۰] نه زيات وو، [۲] او د حاکم په حواله د حضرت معاذ ﷺ نه روايت دې چه کله مونږ د رسول الله ﷺ سره دې جهاد ته اووتلو نو زمونږ شمير د د ديرش زرو [۳۰۰۰۰] نه زيات وو.

وائی چه په جهاد کښې د وتونکو څه فهرست نه وو ليکلې شوې، چا چه د جهاد نه پاتې کيدل غوښتل نو خيال ئې دا وو چه زمونږ په نه تلو به هيڅوک خبر نه شی، کله چه رسول الله ﷺ دغه جهاد له وتلو نو د قجورو پخيدو موسم وو، د باغونو خاوندان په دې کار کښې لګيا وو، په دې دوران کښې رسول الله ﷺ د زيارت يعنی جمعرات په ورځ د مدينې منورې نه سفر کول شروع کړل ولې چه رسول الله ﷺ به د زيارت ورځ د هر قسم سفر [جهاد يا بل سفر] د پاره خوښوله. زما حال دا وو چه د هر صبا په وخت دغې جهاد ته د تلو اراده لرله خو چه به واپس کور ته راتلم نو هغې د پاره به مې هيڅ تياری نه وو کړې، په زړه کښې مې هر وخت وئيل چه د جهاد کولو وس لرم خکه ما د پاره تلل پکار دی، خو په نن صبا کولو به پاتې راتلم چه رسول الله ﷺ د جهاد

---

[۱]) صحيح البخاري، كتاب المغازي، باب حديث كعب بن مالك: ج ۲، ص ۳۳، وصحيح مسلم، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه: ج ۲، ص ۳۶۰، ومسند أحمد، حديث كعب بن مالك رقم الحديث: ۱۵۲۲۹

[۲]) صحيح مسلم، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه: ج ۲، ص ۳۶۳

دپاره روان شو نو بیا مې هم په زړه کښې راتلل چه ورپسې به روان شم او په لاره کښې به ورسره چرته ملګرې شم. کاش؛ چه داسې مې کړې وې خو[افسوس دې چه]او مې نه شو کړې.
رسول الله ﷺ چه تشریف یوړو نو مدینه منوره کښې به چرته چه لاړم ما به داسې خلق لیدل چه غټ منافقان به وو، داسې رنځوران او معذوران به وو چه د سفر کولو بیخې جوګه به نه وو نو ډیر خفګان به راباندې تیریدو[چه زه ولې لا نه رم؟]رسول الله ﷺ ته د سفر په ټوله لار زما خیال رانغلو، تبوک ته په رسیدو ئې په یو مجلس کښې زما ذکر اوکړو او اوئې فرمائیل چه په کعب بن مالک څه شو؟[هغه چرته دې؟]
د بنی سلمه یو کس اووئیل چه یارسول الله ﷺ هغه ښکلو جامو او هغې ته کتل په جهاد کښې د شاملیدو نه پاتې کړې دې. حضرت معاذبن جبل ﷺ عرض اوکړو چه تا دا بده خبره اوکړه او اوئې وئیل چه یارسول الله ﷺ قسم په خداې چه په هغه کښې مې د خیر نه سوا بل څه نه دی موندلی، د دې په اوریدو باندې رسول الله ﷺ خاموشه شو.
حضرت کعب ﷺ وائی چه کله د رسول الله ﷺ د واپس راتلو نه خبر شوم نو زیات فکر راسره مل شو، نزدې وه چه د خپلې ویرې مې د خپلې غیر حاضرې په دروغه عذرتیا کړې وې او داسې خبرې مې ورته کړې وې چه رسول الله ﷺ په رانه ناراضه شوې نه وې، دا مې خیال وو چه په دې کښې د خپلو دوستانو نه هم څه مدد واخلم. کله چه د رسول الله ﷺ په تشریف راوړلو خبر شوم نو خراب خیالات مې تول د زړه نه اووتل او په دې مې یقین راغلو چه په دروغو سره زه د رسول الله ﷺ د ناراضګې نه ځان نه شم خلاصولې، په دې وجه مې د رښتیا وئیلو قصد اوکړو ځکه چه هم رښتیا به مې خلاصولې شي.
رسول الله ﷺ د خپل عادت مطابق هغه وخت مدینې منورې ته داخل شو چه نمر یو نیزه دوه اوچت شوې وو[یعنی د څاښت وخت وو]د خپل عادت مطابق ئې اول جمات ته تشریف یوړو دوه رکعته مونځ ئې ادا کړو[عام عادت ئې دا وو چه د څاښت دوه رکعته مونځ ادا کولو نه پس به د حضرت فاطمه ﷺ خوا ته ورغلو، بیا به د نورو بیبیانو خوا ته ورغلو]
هم ددې عادت مطابق نبی کریم ﷺ مسجد ته تشریف یوړو، دوه رکعته مونځ ئې ادا کړو، بیا مسجد کښې کیناستل، هر کله چې خلقو دا اوکتل چې کوم خلق غزوهٔ تبوک کښې نه وو شریک شوی او دهغوئ شمیر څه پاسه اتیا کسان وو او دا منافقان وواو د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او په دروغه قسمونه ئې اوخوړل او خپل د دروغو عذرونه ئې بیان کړل. رسول الله ﷺ د هغوی دا ظاهری خبره، قسمونه او عذرونه قبول کړل، بیعت ئې کړل او ورله ئې د بخښنې دعا اوکړه خو د هغوی باطنی او اندرونی حالات ئې الله تعالی ته اوسپارل. په دې دوران کښې زه هم ورغلم او مخامخ رسول الله ﷺ ته کښیناستم، سلام مې چه پرې واچولو نو رسول الله ﷺ داسې مسکا اوکړه لکه چه د خفګان مسکا وی. په ځنی روایاتو کښې راځی چه رسول الله ﷺ خپل مخ مبارک واړولو، نو ما عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ تاسو رانه مخ مبارک ولې اړوې قسم په خداې ما خو منافقت نه دې کړې او نه مې په دین کښې څه شک شبه راغلې ده او نه مې په کښې تبدیلی کړې ده. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه بیا جهاد ته ولې نه وې راغلې؟ ایا تا سورلی نه وه اخستې؟

ما ورته عرض اوکړو چه بیشکه یارسول اللهﷺ که په دنیا کښې ستاسو نه سوا د بل انسان په مخکښې څه ناست وې نو یقین مې دې چه د خانه به مې څه عذر جوړ کړې وو او د هغه د ناراضګۍ نه به مې ځان ساتلې وو ، ځکه چه په بحث، جنګ جګړې کولو او خبرې جوړولو کښې زه ډیر ماهر یم، لیکن قسم په خدای زما یقین دې که دروغ خبره مې درته اوکړه او هغه وخت د پاره تاسو راضي هم شې نو څه لرې خبره نه ده چه الله تعالى دې په حقیقت خبر کړی او ما نه به دې ناراض کړی، که رښتیا مې درته اوئیل نو اوس خو به پرې ناراض شې خو امید مې دې چه الله تعالى به مې معاف کړی، صحیح خبره داده چه د جهاد نه د پاتې کیدو زما هیڅ عذر نه وو ،زه کله هم د دومره مال مالک نه ووم د څومره مال چه اوس یم، په بدنې ډول چرې هم دومره قوی نه ووم څومره چه اوس یم.

رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه دې سړی خو رښتیا وئیلې دی، او بیا ئې اوفرمائیل چه ښه ده نو لاړ شه، چه الله تعالى ستا په باره کښې څه فیصله اوکړی. وائی چه زه د دغه ځای نه پاسیدم او روان شوم نو د بنی سلمه یو څو کسان راپسې وو او راته ئې وئیلې چه د دې نه وړاندې خو زمونږ په علم کښې تا څه ګنا نه ده کړې دا دې څه بې وقوفي اوکړه که دا وخت دې څه عذر پیش کړې وې لکه چه نورو پاتې کیدونکو پیش کړو نو ستا د ګناه د معاف کیدو د پاره به د رسول اللهﷺ بخښنه غوښتل کافی وو ، قسم په خدای دغه خلقو زه بیا بیا ملامته کولم، تر دې چه زړه کښې مې دا خیال راغلو چه زه واپس شم او بیا عرض اوکړم چه ما اولنې خبره غلطه کړې وه، زما صحیح عذر موجود وو ـــــــ خو بیا مې زړه کښې اوئیل چه د یو ګناه نه دوه ګناهونه نه جوړوم، یو ګناه خو مې د جهاد نه د پاتې کیدو اوکړه او بله ګناه د دروغو وئیلو اوکړم، بیا مې د دغه خلقو نه تپوس اوکړو چه د جهاد نه په پاتې کیدونکو کښې نور هم زما څوک داسې ملګری شته چه د خپل جرم اقرار ئې کړې وی؟ـــــــ هغوی راته اوئیل چه او دوه کسان داسې شته دې او هغوی ته هم دغه جواب ورکړې شو ځنګه چه تا ته اوئیلې شو (چه د الله تعالى د فیصلې انتظار کوئ) اما د هغې دوو کسانو تپوس اوکړو چه څوک دی، هغوی راته اوئیل چه یو مراره بن ربیع العمری دې او بل هلال بن امیه واقفی دې.

د ابن ابی حاتم د روایت مطابق چه په دې کښې د ړومبی کس مراره بن ربیع العمری د جهاد نه د پاتې کیدو سبب خو دا شو چه دغه وخت د ده د یو باغ میوه پخیدونکې وه، هغه په زړه کښې وئیل چه په ډیرو غزاګانو کښې مې برخه اخستې ده که دا ځل دې جهاد له لاړ نه شم نو څه جرم دې، بیا چه دې په خپله ګناه خبردار کړې شو نو هغه الله تعالى سره دا لوظ اوکړو چه دغه باغ مې د الله تعالى په لار کښې خیرات کړو.

د بل بزرګ هلال بن امیهؓ واقعه داسې وه چه دده آل اولاد د ډیرې مودې نه سره بیل وو. دغه وخت راجمع شوې وو نو دا خیال ئې اوکړو چه دا ځل جهاد ته لاړ نه شم او خپل بال بچ سره دا وخت تیر کړم، د دویؓ چه هم خپلې ګناه ته خیال شو نو لوظ ئې اوکړو چه اوس به زه د خپل بال بچ نه بیلتون اختیار کړم.[1]

---

[1] ) تفسیر ابن ابی حاتم رقم الحدیث: ۱۰۹۱۸

کعب بن مالک ﷺ فرمائی چه دې خلقو د دوو هغه بزرګانو بیان اوکړو چه د بدر په غزا کښې ئې برخه اخستې وه نو او مې وئیل چه بس هم د دوی په پل باندې مې تلل دی دا مې اووئیل او کور ته لاړم.

بل خوا رسول الله ﷺ صحابهٔ کرامو ﷺ لره مونږ درې واړو سره د سلام کلام نه منع کړې وو دغه وخت خو مونږه ټولو مسلمانانو سره مینه لرله خو هغوی ﷺ مونږ نه مخ اړولې وو.

د ابن ابی شیبه په روایت کښې دې، چه اوس زمونږه دا حال شو چه د چا خوا ته به تلو نو هغه به راسره سلام کلام نه کولو، سلام به ئې راباندې نه اچولو او نه به ئې د سلام جواب راکولو.[1]

په مسند عبدالرزاق[2] کښې راغلې دی چه دغه وخت زمونږه دنیا بیخی بدله شوه داسې راته ښکاریده چه نه خو دا خلق هغه وړاندینی دی، نه دغه مکانونه او باغونه زمونږه وړاندینی باغونه دی، ټول هر څه راته پردی ښکاریدل ما سره د ټولو نه لوئې فکر دا وو چه که زه په دې حال کښې مړ شوم نو رسول الله ﷺ به مې د جنازې مونځ نه کوی او که خدای دې نه کړی په دې موده کښې رسول الله ﷺ وفات شو نو ټول عمر به په خلقو کښې ذلیل او خوار پاتې کیږم په دغه وجه ما ته ټوله زمکه نا آشنا او ورانه ویجاړه ښکاریده.

په دې حال کښې په مونږه پنځوس شپې تیرې شوې، په دې دوران کښې زما نور دوه ملګری [مراره او هلال] په کور کښې زړه ماتی کښیناستل او شپه ورځ ژړیدل، خو زه ځوان ووم بهر ته به وتم ګرځیدم راګرځیدم به، په مونځونو کښې به ټولو مسلمانانو سره شریکیدم او په بازارونو کښې به ګرځیدم راګرځیدم خو چا به راسره سلام کلام نه کولو نه به ئې راباندې سلام اچولو او نه به ئې زما د سلام جواب راکولو، د رسول الله ﷺ په مجلس کښې به د مونځ نه پس حاضریدم، او کتل به مې چه د رسول الله ﷺ شونډې مبارکې زما د سلام جواب ورکولو د پاره حرکت کوی او که نه؟ بیا به مې ورسره حجت مونځ کولو په غلا غلا به مې ورته کتل چه ما ته ګوری او که نه؟ راته معلومه شوه چه مونځ کوم نو رسول الله ﷺ راته ګوری او چه زه ورته ګورم نو مخ رانه واړوی.

کله چه د خلقو دا بې وفائی اوږده شوه نو یوه ورځ د خپل تره ځوئی قتاده ﷺ خوا ته ورغلم چه د ټولو نه مې زیات دوست وو، د هغه د باغ په دیوال ورواوړیدم او سلام مې ورته اوکړو، قسم په خدای هغه هم زما د سلام جواب رانه کړو، ما تپوس اوکړو چه اې قتاده ﷺ ته مې نه پیژنې چه زه الله تعالی او رسول الله ﷺ سره مینه لرم، د دې جواب ئې هم را نه کړو، چه ډیر ځل مې دا خبره واړوله راواړوله نو په دریم، څلورم ځل کښې هغوی ﷺ صرف دومره اوئیل چه [الله پوهیږی او د هغه رسول ﷺ] اما اوژړل او هغه شان په دیوال راواوړیدم او بهر ته راغلم ـــــ په دې دوران کښې یو ځل د مدینې بازار کښې روان ووم چه ناڅاپه د شام ملک یو نبطی کس چه د غلې خرڅولو د پاره د شام نه مدینې منورې ته راغلې وو هغه مې اولیدلو چه د خلقو نه ئې زما په باره کښې تپوس کولو، خلقو چه اولیدم نو په اشاره ئې ورته اوښولم هغه سرې مې خوا ته راغې او د غسان د بادشاه یو خط ئې راکړو چه په ریښمین رومال داسې لیکلې شوې وو.

---

[1] ) مصنف ابن ابي شيبة: ج ۸، ص ۵۵۹، ۵۶۰

[2] ) مسند عبدالرزاق: ج ۵، ص ۴۰۲، ۴۰۳

Scanned with Ca

اما بعد: زه خبر شوې يم چه ستاسو نبي ﷺ درسره بې وفائي کړې ده او ته ئې ځان نه لرې کړې ئې، الله تعالى ته د ذلت او هلاکت په ځاې کښې نه ئې لرلې، ته که زمونږ خوا ته راتلل خوښ کړې نو راشه مونږ به دې مدد اوکړو۔
د دې خط په لوستو مې اووئيل چه دا په ما يو بل ازميښت او امتحان راغلو چه اهل کفر هم رانه طمع لرى[چه زه ورسره يو ځاې شم]دا خط مې يوړو او د يو دوکان په تنور کښې مې ور اوغورځولو۔
حضرت کعب رضي الله عنه فرمائي چه پنځوسو کښې څلويښت شپې راباندې تيرې شوې، ناڅاپه مې اوليدل چه د رسول الله ﷺ يو ريبار خزيمه بن ثابت رضي الله عنه مې خوا ته را روان دې چه راغلو نو راته ئې اووئيل چه رسول الله ﷺ حکم درکړې دې چه د خپلې بي بي نه هم کناره شه، ما تپوس اوکړو چه آيا طلاق ورکړم او که بل څه اوکړم؟ هغوی رضي الله عنه راته اووئيل چه نه عملاً ترې بيل شه او هم داسې حکم زما نورو دوو ملګرو ته هم ورکړې شو. ما خپلې بي بي ته اووئيل چه خپلې مور کره لاړه شه او هم هلته اوسه تر څو چه الله تعالى څه فيصله اوکړي۔
د هلال بن اميه رضي الله عنه بي بي خوله بنت عاصم چه دا حکم واوريدلو نو رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې اوکړو چه هلال بن اميه يو بوډا کمزورې انسان دې بل څوک خادم ئې هم نشته، د ابن آبي شيبه رضي الله عنه په روايت[1] کښې دا هم دي چه د سترګو نظر ئې هم کمزورې دې نو آيا ستاسو ﷺ دا خوښه نه ده چه هم زه ئې خدمت کوم. وې فرمائيل چه د خدمت کولو نه منع نه ده راغلې البته نه دې در نزدې کيږی، هغې عرض اوکړو چه هغه د بوډا توب په وجه هسې هم دغسې شوې دې، داسې هيڅ حرکت نه شي کولې او والله په مخه لګيا وی ژاړی، توله شپه ورځ ژاړی۔
کعب بن مالک رضي الله عنه فرمائي چه ما ته هم ځنې متعلقينو مشوره راکړه چه ته هم د خپلې بيبي ځان سره د ساتلو اجازت واخله څنګه چې هغوی هلال ته اجازت ورکړو، ما اووئيل زه به داسې اونه کړم معلومه نه ده چه رسول الله ﷺ به څه جواب راکړی، دې نه علاوه زه ځوان سړې يم[بيبي راسرې وی نو احتياط کول به راته ډير ګران وی]چنانچه په داسې حالت کښې مې نورې لس شپې تيرې کړې چه پنځوس شپې پوره شوې نو د مسند عبد الرزاق په روايت[2] کښې دی چه دغه وخت زمونږ د توبې د قبليدو حکم په رسول الله ﷺ باندې نازل شو کله چه د دغې شپې دريمه برخه تيره شوې وه، ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها چه دغه وخت حاضره وه عرض ئې اوکړو که اجازت وی نو کعب بن مالک رضي الله عنه ته دې دا وخت خبرداری ورکړې شی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه اوس به د خلقو ډيره ګنړه شی او د شپې خوب کول به ډير ګران شی. کعب بن مالک رضي الله عنه فرمائي چه د پنځوسمې شپې نه پس مې د صبا مونځ کړې وو د کور د چت د پاسه ناست ووم او حالت مې هغه وو کوم چه الله تعالى داسې بيان کړې دې چه خپل ځان او زمکه راباندې سره د فراخې نه تنګه شوې وه، ناڅاپه مې د سلع نومې د غر نه د يو چغې وهونکي آواز ښه په زوره داسې واوريدو چه[اې کعب زيرې دې وی الزيری مې درباندې]د محمد بن عمرو رضي الله عنه د روايت مطابق دا په زوره آواز کونکې حضرت ابوبکر رضي الله عنه وو چه په سلعه نومې غر د

[1] ) مصنف ابن ابي شيبه: ج ۸، ص ۵۶۱
[2] ) مسند عبد الرزاق: ج ۵، ص ۴۰۴

پاسه ئې چغه کړه چه الله تعالى د کعب رضي الله عنه توبه قبوله کړه زيرې دې وي او د حضرت عقبه رضي الله عنه په روايت کښې دادي چه حضرت کعب رضي الله عنه ته د زيرې ورکولو د پاره دوه کسان سرې په منډه رازغليدل چه په هغې کښې تړې يو وړاندې شو نو هغه روستو پاتې کس په سلع غر د پاسه دا آواز اوکړو او وئيلې شي چه دا منډې وهونکي دوه کسان شيخين [حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما] وو.

کعب بن مالک رضي الله عنه فرمائي چه د دې آواز په اوريدو په سجده پريوتم او د ډيرې خوشحالۍ نه په ژړا شوم راته معلومه شوه چه اوس فراخي راغله، رسول الله صلى الله عليه وسلم د صبا د مانځه نه پس صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم ته زمونږ د توبې د قبليدو خبر ورکړې وو، اوس د هر طرف نه خلق مونږ ته د مبارکې راکولو د پاره را په منډه شو، ځنې خلق په آس سواره شو او زما خوا ته راورسيدل خو د غر نه د آواز کونکي آواز د ټولو نه اول را رسيدلى وو ـــــ کعب بن مالک رضي الله عنه فرمائي چه زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضريدو د پاره اووتم نو ډلې ډلې خلق، ما ته د مبارکې د پاره راروان وو، وائي چه مسجد نبوي صلى الله عليه وسلم کښې ورننوتم نو او مې ليدل چه رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف ايښې دې، ګير چاپيره ترې صحابهٔ کرام رضي الله عنهم ناست دي زما په ليدو د ټولو نه اول طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه راپاسيدو ما ته راغلو راسره ئې مصافحه اوکړه او د توبې قبليدو ئې راته مبارکي راکړه، د طلحه دا احسان زه کله هم نه شم هيرولې، چه ما رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې سلام واچولو نو مخ مبارک ئې د خوشحالۍ نه ځليدو، رسول الله صلى الله عليه وسلم راته اوفرمائيل اې کعبه رضي الله عنه تا ته دې د داسې مبارکې ورځې زيرې وي چه ستا په ټول عمر کښې د پيدا کيدو نه واخله تر دې وخته پورې د ټولو نه غوره ورځ ده، ما عرض اوکړو چه يارسول الله صلى الله عليه وسلم دا حکم ستاسو صلى الله عليه وسلم د طرفه دې يا د الله تعالى د طرفه؟

وې فرمائيل چه نه دا حکم د الله تعالى دې، رښتيا دې وئيلې وو الله تعالى دې رښتيا ښکاره کړل.

وائي چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخې ته کښيناستم نو عرض مې اوکړو چه يارسول الله صلى الله عليه وسلم زما توبه داده چه زه خپل ټول مال متاع نه لاس واخلم، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه څه مال د خپل ضرورت د پاره اوساته دا بهتر دې ما عرض اوکړو چه ښه ده نو نيم مال به خيرات کړم، رسول الله صلى الله عليه وسلم دا هم او نه منل بيا مې د دريمې برخې د خيرات اجازت واخستو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم دا خبره قبوله کړه. عرض مې اوکړو چه الله تعالى د رښتيا وينا په وجه زه خلاص کړې يم ځکه مې لوظ کړې دې چه تر څو ژوندې يم کله به هم د رښتيا نه سوا بله خبره او نه کړم بيا ئې اوفرمائيل چه د کله نه مې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د رښتيا وئيلو لوظ کړې دې د هغې نه تر اوسه پورې مې الحمدلله چرې هم دروغ نه دي وئيلې، اميد لرم چه ټول ژوند کښې به مې هم د دروغو وئيلو نه ساتي. کعب رضي الله عنه فرمائي چه قسم په خداې د اسلام نه پس راته د دې نه لوئې نعمت نه دې حاصل شوې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخکښې مې رښتيا وئيلې وو او دروغ نه مې ځان اوساتلو که دروغ مې وئيلې وې نو زه به هم هغسې هلاکت کښې پريوتې ووم ځکه چه په دروغه قسم خوړونکي کسان هلاک شو او د هغوى باره کښې قرآن کريم داسې فرمائي:

(سَيَحْلِفُونَ بِاللهِ لَكُمْ إِذَا انْقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ إِنَّهُمْ رِجْسٌ ۖ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۝ يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۖ فَإِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنَّ اللهَ لَا يَرْضَىٰ عَنِ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ۝)

خني حضراتو فرمائيلي دی چه دې درې واړو حضراتو سره تر پنځوسو ورځو پورې قطع تعلق جاري پاتې کيدل په دې حکمت باندې بنا کيدې شي چه د رسول الله ﷺ هم په غزوه تبوک کښې پنځوس ورځې لګيدلې وې[دا پوره روايت او تفصيلي واقعه د تفسير مظهری نه اخستې شوې ده] ـ([1])

**د کعب بن مالک رضي الله عنه په باره کښې بيان شوې حديث سره تړلې فائدې:** حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه چه په تفصيل سره خپله واقعه بيان کړې ده په هغې کښې مسلمانانو د پاره ډيرې فائدې او هدايتونه دی ځکه دلته دا حديث پوره ليکلې شوې دې،هغه فائدې دادی.

①په دې حديث شريف کښې دا ښودلې شوې دی چه په عامو غزاګانو کښې د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو چه کوم خوا به تلل وو د هغې په مخالف طرف به د مدينې منورې نه بهر وتلو،دې د پاره چه د اسلام مخالفينو ته دا پته او نه لګی چه رسول الله ﷺ کوم قوم يا قبيلې ته د جهاد په غرض ور روان شو،او په دې باره کښې ئې اوفرمائيل چه[الحرب خدعة]([2])
په جنګ کښې دهوکه ورکول جائز دی په دې سره بعضې خلق دا غلطی کوی چه په جنګ او جهاد کښې په دروغو وئيلو سره مخالف ته دهوکه ورکول جائز ګڼړی نو دا صحيح خبره نه ده،بلکه مراد ددې دهوکې نه دا دې چه داسې عمل اوکړی چه مخالفين ترې په دهوکه کښې پريوزی لکه جهاد د پاره په مخالف طرف بهر ته وتل،په دروغو وئيلو سره دهوکه ورکول مراد نه دی،ولې چه جنګ کښې هم دروغ وئيل جائز نه دی۔۔۔۔۔دا شان په دې هم ځان پوهول پکار دی چه جائز شوې عملی دهوکه کول عهد ،معاهدې او لوظ قول سره هيڅ تعلق نه لری،چنانچه لوظ،قول ماتول د صلحې يا د جنګ په هيڅ حالت کښې جائز نه دی.

②سفر باندې روانيدو د پاره به د زيارت يعنی جمعرات ورځ د رسول الله ﷺ خوښه وه،سفر به د جهاد وو او که د بل څه ضرورت د پاره به وو.

③د خپل يو بزرګ،مرشد،استاد يا پلار راضی کولو د پاره هم دروغ وئيل روا نه دی،او ددې انجام هم ښه نه وی،رسول الله ﷺ ته خو به د حال حقيقت د وحی په ذريعه معلوميدو،ځکه د دروغو وئيلو انجام به خراب وو،څنګه چه د کعب بن مالک رضي الله عنه او د هغه د نورو ملګرو د بيان شوې واقعې نه په ډاګه شوه،د رسول الله ﷺ نه پس نورو بزرګانو ته خو وحی نه شی کيدې،په الهام او کشف سره علم راتلل هم څه ضروری نه دی،خو تجربې نه ثابته شوې ده چه دروغ وئيل يو داسې سپيره توب لری چه په قدرتی ډول داسې اسباب جمع کيږی چه په آخر کښې دا بزرګ د هغه نه خامخا ناراض شی.

④د دې واقعې نه دا ثابته شوه چه د څه جرم په سزا کښې د مسلمانانو امير ته دا حق حاصل دې چه يو کس سره د سلام کلام کولو نه خلق بند کړی څنګه چه دغه درې واړه بزرګانو سره اوشو.

⑤دې واقعې نه د رسول الله ﷺ سره د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم بې کچه مينه داسې معلوميږی چه د داسې ناراضګې او سلام کلام بندولو په زمانه کښې به ئې هم د رسول الله ﷺ په خدمت کښې

---

[1] ) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۳۲۳ نه ۳۲۹ پورې.
[2] ) صحيح البخاری، کتاب الجهاد والسير، باب الحرب خدعة: ج ۱، ص ۴۲۵

په مخه حاضري ورکوله او د سترګو په کوتونو به ئې د رسول الله ﷺ د توجو او تعلق د حال معلومولو کوشش کولو.

⑥ کعب بن مالک رضی الله عنه سره چه خپل مضبوط دوست قتاده رضی الله عنه هم سلام کلام نه کولو او نه ئې د سلام جواب ورکړو، دې نه څرګنده شوه چه دا د څه دشمنۍ، بعضی، مخالفت په وجه نه وو بلکه د رسول الله ﷺ د حکم د پوره کولو په غرض وو، دې نه معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ جوړ کړې شوي قانون يواځې د خلقو په ظاهر نه جاري کيدو بلکه په زړونو هم د هغې حکومت وو. او موجود او غير موجود مسلمانانو به په هيڅ حال کښې د هغې خلاف نه کولو اګرچه دا قانون به د يو مشر، ښه دوست يا رشته دار خلاف هم راتلو.

⑦ حضرت کعب رضی الله عنه چه د غسان د بادشاه راغلي خط په تنور کښې اوغورځولو دې نه د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم د ايمان پوخوالي او مضبوط والي داسې معلوميږي چه داسې د پريشانۍ په حالت کښې چه رسول الله ﷺ او مسلمانانو ورسره قطع تعلق کړې وو، سلام کلام کول ئې ورسره هم بند کړي وو بيا هم د يو لوئې بادشاه په لالچ کښې رانغلو او نه ئې په زړه کښې دغې اړخ ته څه ميلان پيدا شو.

⑧ د توبې قبليدو نه پس کعب رضی الله عنه ته د زيرې ورکولو په غرض د حضرت ابو بکر رضی الله عنه او د حضرت عمر رضی الله عنه د منډې راوهلو نه د دوی تر منځه د ژور تعلق او بې کچه مينې اندازه لګيدې شي او دا د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم د ايمان د پوخوالی يو زبردست دليل دې چه د رسول الله ﷺ د مقاطعې د حکم په وړاندې دوی رضی الله عنهم دغه ذاتی مينه هم په لته وهلې وه او هيڅ حيثيت ئې د دې په مقابله کښې نه ورکولو.

⑨ حضرت کعب رضی الله عنه ته د زيرې ورکولو په غرض د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم د تلو نه معلوميږي چه د خوشحالۍ په موقع چا ته مبارکی او زيرې ورکول سنت طريقه ده.

⑩ د ګناه نه د توبې کولو په موقع مال خيرات کول د ګناه د اثر لرې کولو د پاره ډير غوره دی، خو ټول مال خيرات کول هم ښه نه دی او دا هم ترې معلومه شوه چه د ټول مال د دريمې برخې نه زيات مال خيرات کول رسول الله ﷺ خوښ نه کړل.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَكُونُوا۟ مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ﴾ څنو مخلصانو مؤمنانو نه چه دا غلطی اوشوه چه په جهاد کښې بې عذره شريک نه شول او بيا ئې د هغې نه توبه اوښکله چه قبوله شوه دا ټوله د الله تعالی نه د ويرې او د تقوی نتيجه وه څکه دې آيت کښې عامو مسلمانانو ته د تقوی د پاره هدايت اوکړې شو او په [كونوامع الصدقين] سره دې ته اشاره اوکړې شوه چه د تقوی حاصليدو طريقه داده چه په صحبت او عمل کښې د هغوی ملګرتيا اوکړې شی، دې کښې دې خبرې ته هم اشاره کيدې شی چه د بعضې صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم نه دغه بيان شوي لغزش صادريدل منافقانو سره د صحبت او ناستې پاستې په وجه شوې وو، په دې وجه د نافرمانه خلقو د ناستې پاستې نه ځان ساتل او صادقينو سره ناسته پاسته کول پکار دی، دلته قرآن حکيم د عالمانو، صالحانو په ځائې د [صادقينو] لفظ راوړلو سره د عالم او صالح پيژند ګلنه هم اوښودله چه صالح صرف هغه څوک کيدې شی چه ظاهر باطن ئې دواړه يو شان وی، د نيت او ارادې هم ريښتينې وی. د قول هم ريښتينې وی او د عمل هم.

مَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ

| نه دی مناسب | دپاره دخلقو دمديني

|............ د مديني خلقو دپاره

وَمَنْ حَوْلَهُمْ مِّنَ الْأَعْرَابِ أَنْ يَّتَخَلَّفُوا

او دګيرچاپيره بانديچيانو لره اودپاره دهغه چا | چې چاپيره دهغوئ نه دی | ادبانديې دخلقو نه | داخبره چې روستوپاتې شوې دې

او د دوی نه ګيرچاپيره بانديچانو دپاره مناسب نه دی | چې د الله ﷺ د رسول نه روستو پاتې شي

عَنْ رَّسُولِ اللّٰهِ وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنْفُسِهِمْ عَنْ نَّفْسِهٖ ط

درسول دالله نه | اونه دا چې مينه اوکړې | دخانونو خپلو سره اوچې بې پروا شي دنفس دهغه نه

............اوخپل خان ورته د پيغمبر نه خوږ ښکاره شي | دا خکه چې دوئ ته

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَّلَا نَصَبٌ وَّلَا مَخْمَصَةٌ

دا | خکه چې بيشکه دوئ چې دی | نه رسيږی دوئ ته | تنده اونه ستړې والې | اونه لوږه

د الله ﷺ په لار کښې تنده يا ستوماني يا لوږه نه ده رسيدلې

فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَلَا يَطَئُونَ مَوْطِئًا يَّغِيظُ الْكُفَّارَ وَلَا

په لار دالله کښې | اونه ږدی دوئ قدمونه | په داسې لار چې غصه کوی | کافران | اونه

............ | او په داسې لاره نه دی تلې چې کافر پرې غصه کيږی | او د دښمن نه

يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ

حاصلوی دوئ قابو | په دشمن باند | په قابو حاصلولو سره | مګر | ليکلې کيږی | دپاره ددوئ

ئې بدله نه ده اخستې | مګر په دې هر يو کار باندې د ددوئ دپاره

بِهٖ عَمَلٌ صَالِحٌ ط إِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ۝ وَلَا يُنْفِقُونَ

په هغې سره | عمل نيک | بيشکه | الله | نه ضائع کوی | بدله | دنيکانو خلقو | اونه لګوی

نيکی ليکلې شی | الله ﷺ دنيکانو اجر نه ضائع کوی | اوداسې نه کيږی

نَفَقَةً صَغِيرَةً وَّلَا كَبِيرَةً وَّلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ

څه خرچه | لږه | اونه ډيره | اونه وهی لار | ديو ميدان | مګر | ليکلې کيږی | دپاره ددوئ

چې دوئ دې خرڅ اوکړی لږ يا ډير او يا دې دوی د يو ميدان نه تير شی | او هغه دې اونه ليکلې شی

لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝

چې بدله ورکړی دوئ له | الله | د ډيرو ښو کارونو | هغو | چې وو دوئ | چې کول به ئې

دا خکه چې الله ﷺ دوئ ته دنيکو کارونو ډيره ښائسته بدله ورکړی

## آسان ترجمه قرآن

د مدینې والو او ددې نه ګیرچاپیره بانډو والا ته دا جائز نه دي چه هغوی د الله او د هغه د رسول ﴿ملګرتیا نه﴾ وروستو پاتې شي او نه دا جائز وو چه هغوی صرف خپلو ځانونو سره مینه وکړي د هغوی ﴿یعنی د نبي﴾ نه بې فکره شي. دا ځکه چه دې مجاهدینو ته کله د الله په لاره کښې تنده ولګي، یا ستړې والې ورسي، یا لوږه ورسي، یا څه داسې قدم واخلي چه کافرانو ته غصه ورولي یا د دښمن په مقابله کښې ورته څه کامیابي ملاؤ شي نو د دوی په عمل نامه کښې ﴿د هر داسې کار په وخت کښې﴾ یو نیک عمل ضرور لیکلې کیږي، یقینًا الله د نیکانو خلقو یو عمل هم نه بیکاره کوي. او دوی چه څه ﴿د الله په لاره کښې خرچ کوي﴾ خواه که هغه خرچ ډیر وي او که لږ، او یا یو ډ وادې پار کوي، دا ټول ﴿د دوی په عمل نامه کښې د نیکۍ په طور﴾ لیکلې شي دې د پاره چه الله تعالی دوی ته ﴿په هر داسې عمل﴾ باندې هغه بدله ورکړي چه کومه د دوی د بهترینو اعمالو د پاره مقرر ده.

### خلاصه تفسیر

[مَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُمْ مِّنَ الْأَعْرَابِ] د مدینې منورې والا او کوم کلي والاچې د دوئ چاپیر چل کښې [اوسیږی] هغوئ د پاره مناسب نه وو [أَن يَتَخَلَّفُوا عَن رَّسُولِ اللَّهِ] چې د رسول کریم ﷺ ملګرتیا ئې او نه کړه، [وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنفُسِهِمْ عَن نَّفْسِهِ] او نه دا [مناسب وو] چې خپل ځانونونه دهغوئ د ځانونو نه عزیزا وګنړی [چې نبی کریم ﷺ دې دا تکالیف برداش کوی او دوئ دې ښه په آرام سره ناست وی بلکه دوئ ﷺ سره تلل ضرورې وو او] [ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ وَلَا مَخْمَصَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ] دا [دوئ ﷺ ضرور تلل] په دې وجه وو چې د نبی کریم ﷺ سره دمحبت نه سوا به دې مجاهدینو ته قدم په قدم ثواب ملاویږی که دوئ اخلاص سره تلې وې نو دوئ بهٔ هم دا ملاویدې نو] د الله تعالی په لار [یعنی جهاد] کښې دوئ چې کوم تږی شی او پریشانه شی او اوږی شی [وَلَا يَطَئُونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ الْكُفَّارَ] او دا تلل ددوئ چې د کفارو د پاره د غصې موجب شوی وی [وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُم بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ] او دوئ ته چې د دښمن کوم خبر اوشو په هغه ټولو باندې ددوئ په نوم یوه یوه نیکی اولیکلې شوه [ددې باوجود دا کارونه ددوئ په اختیار کښې نشته دې، خو د مقبولیت د تقاضا مطابق او د محبوبیت د تقاضا مطابق دی چې د پریشانئ امور هم د اختیاریه عملونو په شان موجب د ثواب شو، او په دې وعده کښې دتخلف احتمال نشته دې ځکه چې] [إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ] یقینی طور سره الله تعالی د مخلصینو اجر نه ضائع کوی] [وَلَا يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً] او [داشان] څه چې دوئ واړه لوئې خرچ کړل [وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ] او څومره میدانونو کښې چې دوئ مزلونه اوکړل دا ټول ددوئ [په نیکو کښې] اولیکلې شو [لِيَجْزِيَهُمُ اللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ] ځکه چې الله ﷻ به دوئ ته ددوئ د ښه نه ښه بدله ورکوی [ځکه چې کله ثواب اولیکلې شونو بدله ورته ضرور ملاویږی].

### معارف او مسائل

په دې دواړو آیتونو کښې روستو پاتې کیدونکو ته په روستو پاتې کیدو باندې ملامتیا،

Scanned with Ca

پوهول، په جهاد کښې د شريکيدونکو غوره والې او د جهاد په سلسله کښې قدم په قدم، په هرې خبرې او په هر کار، په هر محنت مشقت باندې د لوئې اجر ذکر دې، چه په کښې هغه هم داخل دی چه د جهاد په وخت کښې چه کوم تکليف ئې دشمن ته رسولې دې، يا داسې چال او تګ ئې کړې دې چه په هغې سره دشمن قهريدلې وو، دغه ټول نيک کارونه دی چه ثواب به پرې ورته خامخا ملاويږي۔

وَمَا كَانَ

اونه وه ضرور

اوداسې نه شي کيدې............

الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً ۭ فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا

چې مؤمنان ا وتلې وې ټول ا خو ولې اونه وتل ا دهرې ډلې ا ددوئ نه ا يوه ډله ا چې پوهه ئې حاصله کړې وې

چې مومنان دې ټول په يوځل روان شي ا خو داسې ولې نشي کيدلې چې دهرې ډلې نه دې يو ډله

فِي الدِّيْنِ وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْٓا اِلَيْهِمْ

په دين کښې ا او چې خبردار کړې ئې وې ا [خلق دقوم] خپل ا کله چې ا واپس تللې وې ا هغوئ ته

[ په سفر] اوځي ا چې ددين مسئلې زده کړې ا او چې واپس راشي ا نو نور خلق خبر کړي

لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ ۝

دپاره ددې چې هغوئ ا ځان بچ کړې وې ا

چې هغوئ ځان [دکفر او ګناه نه بچ کړي] ا

## آسان ترجمه قرآن

او مسلمانانو لره دا هم مناسب نه دي چه دوی ﴿هميشه﴾ ټول په ټوله ﴿د جهاد دپاره﴾ اوځي نو داسې دې ولې نه وی چه د يو لوئ ډلې نه يو ډله ﴿د جهاد دپاره﴾ اوځي، دې دپاره ﴿چه کوم خلق جهاد کښې نه وي تللي﴾ هغوی دين کښې د پوهې حاصلولو دپاره محنت وکړي او کله چه د هغوی د قوم خلق ﴿کوم چه جهاد کښې تللي وي﴾ دوی ته واپس راشي نو دوی هغوی لره خبر کړی چه هغوی ﴿د ګناهونو نه﴾ بچ شي.

## خلاصه تفسير

[وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً] او [هميشه دپاره] مسلمانانو ته دا [هم] نه دی پکار چې [د جهاد دپاره] ټول په ټوله اوځی [فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ] [ چې په دې کښې نور اسلامی ضروريات معطل کيږی] بو يو جماعت دې] جهاد ته ځی [او څه دې خپل وطن کښې پريږدی ] نو داسې ولې اونه شوه چې دهغوئ هر غټ جماعت نه چې باقی خلق د قرآن عظيم الشان په وخت کښې ستاسونه اوستاسونه پس د ښار عالمانو نه] څه ددين پوهه حاصله کړی [لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ] او داخلق خپل قوم لره] چې جهاد ته تلی دی] او هغوئ بۀ دوئ ته واپس راشي [وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ [ددين خبرې ورته کوی او د الله تعالی د نافرمانئی نه بچ کوی] [اِذَا رَجَعُوْٓا اِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ ۝] او چې دا خلق ويروی چې دوئ [نه د دين خبرې واؤری او خرابو کارونه] ځان اوساتی

## معارف او مسائل

په سورت توبه کښې په لوړ شان سره د تبوک د غزا بيان راروان دې، د کومې د پاره چه د رسول الله ﷺ د اړخه د عامو مسلمانانو د تللو اعلان شوې وو، بې د څه شرعي عذر نه دې نه پاتې کيدل جائز نه وو. بيا هم اکثر پاتې کيدونکې خلق په کښې منافقان وو چه بيان ئې په تيرو شوو ډيرو آيتونو کښې راغلې دې. څه مخلصان مؤمنان هم وو چه د سستۍ او د بې پروائۍ له کبله پاتې شوې وو الله تعالى د هغوی توبه قبوله کړه. د دغې واقعاتو نه په ظاهره خلقو دا ګنړله چه هر يو جهاد او غزا د پاره د ټولو مسلمانانو تلل ضروري او فرض دی او نه تلل حرام دی، حالانکه شريعت دا حکم ورکوی چه جهاد کول په عامو حالاتو کښې فرض کفايه دې، مطلب دا دې چه دومره مسلمانان دې جهاد د پاره لاړ شی کوم چه د هغې د پاره کافي کيدې شی. د نورو پاتې مسلمانانو په دې سره غاړه خلاصه شی، البته که جهاد له تلې خلق نا کافي وی هغوی کمزوري شی او د کومک ضرورت لري نو خواوشا مسلمانانو لره د هغوی د مضبوطيا د پاره وتل او په جهاد کښې شريکيدل فرض کيږي، که دغه هم ناکافي وی نو ورسره نزدې مسلمانانو د پاره په جهاد کښې شامليدل فرض عين ګرځي. په دې شان که ټول نزدې نزدې خلق درجه په درجه ناکافي کيدل نو د ټولې دنيا په مسلمانانو باندې جهاد د پاره تلل فرض عين ګرځي او د هغې نه پاتې کيدل حرام ګرځي. دغه شان د جهاد د فرض ګرځيدو يو صورت دا هم دې چه د مسلمانانو امير دې د پاره عام اعلان اوکړي او ټول مسلمانان جهاد ته راوبلي، نو په دغه وخت کښې هم جهاد فرض عين ګرځي او وروستو پاتې کيدل ترې حرام ګرځي لکه څنګه چه د تبوک د غزا صورت وو، اوس په دې آيت کښې دا فرق ښودلې شوې دې چه د عام اعلان په وجه د تبوک په غزا کښې شامليدل فرض عين وو ليکن په عامو حالاتو کښې فرض عين نه دی، وجه ئې داده چه د جهاد په شان د مسلمانانو نورې اجتماعي مسئلې او ضروري کارونه وی چه د جهاد په شان هغه هم فرض کفايه دی، دې د پاره چه د کار د ويش د اصولو مطابق هر کار په خپل خپل ځاې چليږي او دا ټول اجتماعي فرائض ادا کيږي، نارينو مسلمانانو باندې د مسلمان د جنازې مونځ، د مسلمان د کفن دفن انتظام، د جوماتونو آبادول او انتظام ئې کول، اسلامي جهاد او د اسلامي سرحدونو حفاظت کول، ټول فرض کفايه دی، يعني د دې ذمه داري خو د ټولې دنيا په مسلمانانو باندې ده خو دا ضرورت که څه مسلمانان پوره کړي نو د نورو ټولو مسلمانانو غاړه خلاصه شي، د فرض کفايه يو ډير اوچت کار ديني تعليم دې، په آيت کښې د دې بيان په خصوصيت سره څکه راغې چه د جهاد د راپيښ شوې فرض [کفايه] په دوران کښې هم د ديني تعليم فرض [کفايه] پريښودل نشته صورت ئې دا دې چه د هرې لوئې ډلې نه دې يو وړوکې ټولې د جهاد د پاره اوځي او نور مسلمانان دې علم دين حاصلوی، چه حاصل ئې کړي نو جهاد ته تلونکو او نورو مسلمانانو ته دې اوښائی.

**د علم دين طلب کول فرض کيدل او د دې اداب او فرائض:** امام قرطبي رحمه الله فرمائی چه دا آيت د علم دين د طلب کولو اصل او بنياد دې[۱] او که غور اوکړې شی نو هم په دې آيت کښې د علم دين اجمالي نصاب هم بيان کړې شوې دې او د علم حاصلولو نه پس ديو عالم فرائض هم بيان

---

[۱]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۹۵، وجامع الترمذي، أبواب العلم. باب ما جاء في فضل الفقه على العبادة: ج ۲، ص ۹۶

Scanned with

کړې شوې دی په دې وجه دا مضمون په څه قدرې تفصیل سره بیانولې شی۔

**د علم دین فضیلتونه:** د علم دین په فضیلتونو او لوئې شان باندې او دا شان دې سره تړلې نورو څیزونو باندې علماؤ ﷺ مستقل کتابونه لیکلې دی. دلته څو مختصر روایتونه نقل کولې شی، ترمذی د حضرت ابو درداء ﷺ نه روایت کړې دې وائی چه ما د رسول الله ﷺ نه د فرمان اوریدلې دې چه[څوک په یو لاره دې د پاره روان وی چه مقصد ئې علم دین حاصلول وی نو الله تعالی د دې تلو په ثواب کښې د هغه لاره جنت طرف ته کړی او دا چه د الله تعالی فرشتې د [دینی] طالب علم د پاره وزرونه غوړوی، او دا روایت هم راغلې دې چه د عالم د پاره د آسمانونو او زمکې ټول مخلوقات او د ابو کبان دعا کوی او بخښنه ورله غواړی، او دا چه ډیر زیات نفلی عبادت کونکی باندې عالم دومره فضیلت لری څومره چه د څوارلسمې شپې سپوږمې په نورو ستورو باندې لری، او دا چه علماء د انبیاء ﷺ وارثان دی او دا چه انبیاء ﷺ د سرو او سپینو هیڅ میراث نه پریږدی لیکن د علم میراث پریږدی نو چا چه د علم دا میراث حاصل کړو هغه لوې دولت حاصل کړو[قرطبی]۔(۱)

دارمی په خپل مسند کښې دا حدیث روایت کړې دې چه رسول الله ﷺ نه یو سړی تپوس اوکړو چه په بنی اسرائیلو کښې دوه کسان وو یو عالم وو چه صرف مونځ به ئې کولو نور وخت به ئې خلقو ته دینی تعلیم ورکولو، بل به ټوله ورځ روژه نیوله او د شپې به عبادت ته ولاړ وو په دې دواړو کښې څوک غوره دی؟

رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د دغه عالم فضیلت په عبادت کونکی باندې داسې دې څنګه چه زما فضیلت په تاسو کښې په یو ادنی سړی باندې دې، (۲)[دا روایت امام عبد البر په کتاب جامع بیان العلم(۳) کښې سند سره د حضرت ابو سعید خدری ﷺ نه نقل کړې دې[قرطبی]۔(۴)

رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه یو فقیه، د شیطان په مقابله کښې د یو زر عبادت کونکو نه زیات مضبوط او وزنی دې، [دا روایت د ترمذی دې د ابن عباس ﷺ نه، از مظهری](۵)

او رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه انسان مړ شی نو عمل ئې منقطع شی خو درې عملونه داسې دی چه ثواب ئې انسان ته د هغه د مرګ نه پس هم په مخه رسیږی، یو صدقۀ جاریه لکه جومات د دینی تعلیم د پاره عمارت یا د عامې فائدې اداری جوړول شو، دویم هغه علم چه د هغه نه پس هم ترې خلق فائدې پورته کوی مثلاً شاګردان ئې عالمان شو دا شان د هغوی شاګردان عالمان شو او د دین د ښودلو سلسله ئې جاری وه، یا ئې څه کتاب جوړ کړو چه خلق ترې د هغه د مرګ نه پس هم فائده پورته کوی، دریم نیک اولاد شو چه ورله دعا کوی او د ثواب وررسولو عمل کوی[قرطبی]۔(۶)

---

۱) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۸، ص ۲۹۳

۲) مسند دارمی رقم الحدیث: ۳۳۹

۳) جامع بیان العلم وفضله، باب فضل العالم علی العابد کفضل علی أمتی رقم الحدیث: ۷۷ (بالاختصار)

۴) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۸، ص ۲۹۱

۵) جامع الترمذی، أبواب العلم، باب ما جاء فی فضل الفقه علی العبادة: ج ۲، ص ۹۷، والتفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۳۳۳

۶) تفسیر القرطبی فی آخر تفسیر سورة آل عمران: ج ۴، ص ۲۲۵، وصحیح مسلم، کتاب الوصیة، باب ما یلحق الانسان من الثواب بعد وفاته: ج ۲، ص ۴۱

Scanned with Ca

**د فرض عين او فرض كفايه علم ديني تفصيل:** ابن عدي رحمه الله او بيهقي رحمه الله په صحيح سند سره د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كړې دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمائيل [طلب العلم فريضة على كل مسلم، مظهری] (۱) [علم حاصلول په هر مسلمان باندې فرض دې] ښكاره خبره ده چه په دې حديث او په نورو تيرو شوو احاديثو كښې د علم نه مراد علم دين دې، بيا علم دين يو قسم علم نه دې بلكه په ډيرو قسمو علمونو باندې مشتمل يو جامع نظام دې او دا هم ښكاره خبره ده چه هر مسلمان د دغه ټولو علمونو د حاصلولو وس نه لرى. لهذا په مسلمان باندې د فرض شوې علم نه مراد به هغه علم دين وى چه د هغې نه بغير هغه فرض نه شى ادا كولې او نه د حرامو څيزونو نه ځان ساتلې شى او دا د ايمان او اسلام د پاره ضرورى دې. باقى د علمونو تفصيلات د قرآن كريم ټول علمونه او مسئلې بيا د دې نه راوښكلى شوى حكمونه او قانونونه او د دې پوره تفصيل خو نه د هر مسلمان په وس كښې شته او نه په هر يو فرض عين دې البته د ټولو مسلمانانو په ذمه فرض كفايه دې. په هر ښار كښې چه د دې ټولو علمونو، شريعتونو او قوانينو څوك ماهر عالم موجود وى نو د نورو مسلمانانو هم دا فرض پوره كيږى، او په كوم يو ښار يا لوئي كلى كښې چه يو عالم هم دغسې نه وى نو په ښار والو فرض دى چه څوك عالم په خپلو كښې دغسې جوړ كړى يا د بهر نه دغسې عالم راولى او ځان سره ئې اوساتى د پاره د دې چه د ضرورت په راپيښيدو په باريكو مسئلو باندې د دغې نه په تپوس كولو سره ځان پوه كړى او عمل پرې اوكړى، په دې بيان د فرض عين او فرض كفايه تفصيل دا دې چه؛

**فرض عين:** په هر مسلمان نارينه او زنانه باندې د اسلام د صحيح عقيدو علم حاصلول فرض دى، دا هم پرې فرض دى چه د پاكې پليتې حكمونه زده كړى، د مونځ، روژې او د هغې ټولو عبادتونه چه شريعت فرض كړې يا واجب كړې دى د هغې علم حاصل كړى د حرام شوې او مكروه شوې څيزونو د شريعت علم حاصل كړى، د نصاب خاوند باندې فرض عين دى چه د زكوة مسئلې او حكمونه معلوم كړى، په چا چه حج فرض شوې دې په هغه د حج حكمونه او مسئلې زده كول فرض عين دى، اخستل خرڅول چه څوك كوى، تجارت، كاريگرى يا مزدورى چه څوك كوى هغه لره د دې ټولو مسئلې او حكمونه زده كول فرض عين دى، غرض دا چه كوم كارونه د شريعت له مخه په مسلمانانو باندې فرض او واجب شوې دى د هغې د حكمونو او مسئلو علم حاصلول هم په هغه مسلمان نارينه او زنانه باندې فرض عين دى.

**د تصوف علم هم په فرض عين كښې داخل دې:** هر څوك پيژنى چه ظاهرى حكمونه مثلاً مونځ، روژه وغيره كوم چه فرض عين دى د هغې علم حاصلول هم فرض عين دى. حضرت قاضى ثناءالله پانى پتى رحمه الله په تفسير مظهرى (۲) كښې د دې آيت لاندې ليكلې دى چه د باطنى علمونو او د باطنى حرام شوى څيزونو علم حاصلول [چه په عرف كښې ورته علم تصوف وئيلې شى] فرض عين ځكه دى چه باطنى عملونه كول هم په هر مسلمان باندې فرض عين دى. ننن صبا علم تصوف هم ډيرو علمونو، معرفتونو، كشفونو او وارداتو وغيره مجموعه جوړه شوې ده، دلته د

---

(۱) سنن ابن ماجة المقدمة، باب فضل العلماء والحث على طلب العلم: ج ۱، ص ۲۰، وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ۱۶۶۳، والتفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۳۲۳

(۲) التفسير المظهري: ج ۴، ص ۳۲۴

Scanned with Ca

فرض عین نه مراد د دې یو اخیښې هغه برخه ده چه په کښې د باطنی فرضو، واجبو عملونو تفصیل دې مثلا صحیح عقیدې چه د کومې تعلق د باطن سره دې یا صبر، شکر، توکل، قناعت وغیره په یو خاص درجه کښې فرض دی، یا غرور، تکبر، حسد، بغض، بخل او دنیاوی لالچ وغیره چه قرآن او سنت حرام گرځولې دی، د دې د حقیقت او د دې د حاصلولو یا د حرام ځیزونو نه د ځان ساتلو طریقې معلومول هم په هر مسلمان نارینه او زنانه باندې فرض دی، د علم تصوف اصلی بنیاد هم دومره دې کوم چه فرض عین دې.

**فرض کفایه:** د ټول قرآن مجید په مسئلو باندې ځان پوهول، په ټولو احادیثو باندې ځان پوهول، او په دې کښې د معتبر او غیر معتبر پیژندل، د قرآن او سنت نه چه کوم احکام او مسئلې راوځی د هغې ټولو علم حاصلول، په دې کښې د صحابهٔ کراموﷺ د تابعینو ﷺ او د مجتهدینو امامانو ﷺ او آثارو نه ځان خبرول دومره لوئې کار دې چه ټول عمر او ټول وخت هم که په دې کښې اولگولې شی نو پوره حاصلول ئې اسان نه دی، په دې وجه دې علم لره شریعت فرض کفایه گرځولې دې چه د ضرورت په اندازه څه خلق دا ټول علمونه حاصل کړی نو د نورو مسلمانانو غاړه خلاصه شی.

**د علم دین نصاب:** قرآن کریم دلته د علم دین حقیقت او نصاب دواړه هم په یو لفظ سره اوښودل فرمائی ﴿لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ دلته په ظاهره د داسې فرمائیلو موقع وه چه ﴿يَتَعَلَّمُونَ الدِّينَ﴾ [علم دین حاصل کړی]خو قرآن کریم دلته د تعلم په ځاې د تفقه لفظ اختیار کړو، دې سره ئې اشاره دې ته اوکړه چه د علم دین صرف لوستل کافی نه دی، هسې خو ئې ډیر کافران، یهودیان او عیسایان هم لولی او شیطانان خو بیا په دې کښې د ټولو نه زیات دی، بلکه په علم دین باندې ځان پوهول ترې مراد دی کوم چه د تفقه ترجمه ده. چنانچه دا د فقه نه مشتق دې چه معنی ئې ځان پوهول دی، دلته په دې هم ځان پوهول پکار دی چه قرآن کریم د مجرد صیغې ﴿لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ یعنی چه هغوې دین باندې پوه شی]په ځاې د مزیدو صیغه د باب تفعل ﴿لِيَتَفَقَّهُوا﴾ استعمال کړه چه په معنی کښې ئې د محنت او مشقت مفهوم شامل دې، مطلب ئې دا شو چه د دین د پوهې په حاصلولو کښې د پوره خوارې او مشقت نه کار واخلې، او ځانونه په کښې ماهر کړې، دا هم ښکاره خبره ده چه د پاکې، پلیتې، د مونځ، روژې، زکوة او حج مسئلې معلومول او په دې حساب ځان پوهول دا مطلب لری چه په دې ځان پوهه کړی چه د هر قول، فعل، حرکت او سکون حساب به په قیامت اخستې شی، او په دې باندې هم ځان پوهول پکار دی چه په دې دنیا کښې څنګه اوسیدل پکار دی، په اصل کښې د دې فکر نوم په دین باندې ځان پوهول دی، چنانچه امام اعظم ابو حنیفه ﷺ د فقه تعریف داسې کړې دې چه انسان په هغې ټولو کارونو باندې ځان پوه کړی چه کول ئې ده لره ضروری دی او په هغه ټولو کارونو باندې هم ځان پوه کړی چه ځان ساتل ترې ضروری دی، [1] نن صبا علم فقه چه د جزئی مسئلو علم ته وئیلې شی دا روستونې اصطلاح ده، په قرآن او سنت کښې د فقهې حقیقت هغه دې چه امام اعظم ﷺ بیان کړې دې، چه چا د دین کتابونه ټول اولوستل او ځان ئې پرې پوه نه کړو د قرآن او سنت په اصطلاح کښې هغه عالم نه دې ــــــ د دې تحقیق نه معلومه شوه چه د علم دین حاصلولو

[1]) البحر الرائق، مقدمة الكتاب: ج ۱، ص ۹، والشامی، مقدمة: ج ۱، ۱۳

مطلب د قرآن کریم په اصطلاح کښې د دین پوهه پیدا کول دی، دا چه په کومو ذریعو پیدا کیږی که دغه ذریعه کتابونه وی یا د استاذانو سره صحبت لرل دی، دا ټول د دې د نصاب برخې دی.

**د علم دین حاصلولو نه پس د عالم فرائض څه دی:** دا فرض ادا کول قرآن کریم په یو جمله کښې بیان کړې دې فرمائی [لینذروا قومهم] [چه خپل قوم د الله تعالی د نافرمانۍ نه اویروی] دلته هم په دې خبره باندې نظر اچول پکار دی چه دې جمله کښې د فرض د قوم انذار ښودلې شوې دې. د [انذار] لفظی معنی د قوم یرول دی خو دا د دې پوره ترجمه ځکه نه ده چه یرول په څو څو شانه کولې شی، دشمن، غل، ډاکو، یو درنده، زهریله ځناور وغیره نه هم یرول کولې شی، اوبل یرول داسې وی لکه چه پلار د شفقت له کبلې خپل اولاد د مضر څیزونو نه یروی لکه د اور، زهریله ځناور، درنده، ضرری غذا نه ئې یروی او منشاء ئې شفقت او محبت وی، د دې لب و لهجه هم څه بل قسم وی، دلته انذار د داسې یرولو نوم دې او هم په دې لحاظ پیغمبرانو او رسولانو ﷺ ته د نذیر لقب ورکړې شوې دې او د عالم دا فریضه [انذار] په حقیقت کښې د پیغمبری میراث یوه برخه ده چه د حدیث په نص سره عالم ته حاصلیږی.

دلته په دې خبره هم غور کول پکار دی چه د پیغمبرانو ﷺ دوه لقبونه بشیر او نذیر دی، د نذیر معنی خو داده چه اوس درته اوښودلې شوه، او د بشیر معنی [زیرې ورکونکې] ده، چنانچه د انبیاء ﷺ یو کار دا هم دې چه نیک عمل کونکو ته زیرې اوروی، دلته اگرچه په ښکاره د انذار ذکر شوې دې مگر د نورو نصونو نه معلومیږی چه د عالم فرض دا هم دې چه نیکو کارو خلقو ته زیرې اوروی خو دلته یواځې د انذار ذکر کول دې ته اشاره ده چه انذار د زیری ورکولو نه ډیر زیات ورانده‌ی او ډیر ضرری دې. ځکه چه د انسان په ذمه دوه کارونه دی یو دا چه کوم عمل ورله په دنیا او اخرت کښې مفید دې هغې لره اختیار کړی او بل هغې کار نه ورله ځان ساتل دی کوم چه ورله ضروری دی، چنانچه په اتفاق د عالمانو او د عقلمندو خلقو سره په دې دواړو کارونو کښې دویم کار د ټولو نه ورانده‌ې او ډیر زیات ضروری دې چه د فقهاؤ ﷭ په اصطلاح کښې ورته جلب منفعت او دفع د مضرت وئیلې شی او دفع د مضرت د جلب منفعت نه ورانده‌ې گرځولې شوې دې، دې نه علاوه دفع مضرت کښې په یو حیثیت سره د جلب منفعت مقصد هم پوره کیږی، ځکه چه کوم یو کار انسان د پاره مفید اوضروری دې نو د هغې پریښودلو کښې سخت نقصان دې نو څوک چه د عملونو د ضرر نه د ځان ساتلو بندوبست کوی نو هغه به د ضرری اعمالو د پریښودلو نه هم د ځان ساتلو انتظام کوی.

دلته نه دا هم معلومه شوه چه نن صبا عموما وعظ او تبلیغ ډیر کم اثر کوی د هغې لویه وجه داده چه په کښې د انذار [یرولو] آداب نه وی، د چا طرز بیان او لب او لهجې نه چه شفقت، رحمت او خیر خواهی داسې محسوسیږی چه مخاطب ته دا یقین وی چه د دې کلام مقصد نه خو زما شرمول دی او نه د خپل زړه تاؤ اوښکل دی، بلکه دې زما د پاره فائده من او ضروری څیز ما ته د محبت او مینې د وجهې نه ښائی، که نن زمونږ د تبلیغ او شریعت نه خلاف کار کونکو د اصلاح د پاره د دعوت د دې طرز نه کار واخستې شی نو د دې یوه لازمی نتیجه خو به دا خامخا وی چه مخاطب به زمونږ په وینا سره په ضد کښې نه راځی، هغه به د جواب ورکولو په فکر کښې د پریوتو په ځاې د خپلو عملونو جائزه اخستو او په انجام باندې سوچ کولو ته مخه کړی، او که دا سلسله جاری پاتې شوه نو چرته خو به ئې قبول هم کړی او بله لازمی نتیجه به ئې

دا وي چه کم نه کم د دې نه به جګړه نه پیدا کیږي او نه به ورسره کرکه او نفرت پیدا کیږي په کومه کښې چه زمونږ ټول قوم اخته دې.

په آخر کښې ﴿لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ فرمائيلو سره ئې دې اړخ ته هم اشاره اوکړه چه د عالم کار يواځې د عذاب نه په يرولو سره نه پوره کيږي بلکه په دې هم نظر لرل دی چه د تبليغ او بلنې اثر خومره او څه اوشو؟ که په يو ځل کار او نه شي نو بيا بيا دې ئې کوي د پاره د دې چه نتيجه ئې [يحذرون] را اوخيژي، يعنې قوم ن ګناه نه ځان اوساتي. والله سبحانه وتعالى اعلم

| | | | |
|---|---|---|---|
| | يَآيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | قَاتِلُوا |
| | اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | جنګ کوئ |
| | اائ مؤمنانو | کوم کافران چې ستاسو نه ګيرچاپيره دی | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | يَلُوْنَكُمْ | مِّنَ الْكُفَّارِ | وَلْيَجِدُوْا | فِيْكُمْ |
| دهغه کسانو سره | چې نزدې دی تاسو ته | د کافرانو نه | او پکار دی چې بيا مومي هغوئ | په تاسو کښې |
| هغوئ سره جنګونه کوئی | | | او پکار دی چې هغوئ په تاسو کښې سختې بيا مومي | او پوهه شی |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| غِلْظَةً | وَاعْلَمُوْا | اَنَّ اللّٰهَ | مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿١٢٣﴾ | وَاِذَا | مَآ اُنْزِلَتْ | سُوْرَةٌ |
| سختی | او پوهه شئ | چې بيشکه الله | دمتقيانو سره دې | او کله چې | نازل کړې شی | يو نوې سورت |
| چې الله ﷻ | د پرهيزګارانو ملګرې دې | | او هر کله چې يو نوې سورة نازل شی | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَمِنْهُمْ | مَّنْ | يَّقُوْلُ | اَيُّكُمْ | زَادَتْهُ |
| نو ځينی دهغوئ نه | هغه څوک دی | چې وائی | کوم يو دې په تاسو کښې | چې زيات کړو هغه لره |
| نو بعضې په هغه خلقو کښې [ دخندا په طور ] دا وائی چې [اوښائی کنه] دې سورة د چا په ايمان کښې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| هٰذِهٖٓ | اِيْمَانًا ۚ | فَاَمَّا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | فَزَادَتْهُمْ |
| دې سورت | په لحاظ دايمان سره | نو هرچې دی هغه کسان | چې ايمان ئې راوړې دې | نو زيات کړې دی هغوئ لره |
| زياتې راوستو | نو چا چې ايمان راوړې دې | دهغوئ پرې يقينی طور ايمان زياتيږی | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِيْمَانًا | وَّهُمْ | يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿١٢٤﴾ | وَاَمَّا الَّذِيْنَ | فِيْ قُلُوْبِهِمْ |
| په لحاظ دايمان سره | او هغوئ | خوشحاليږی | او هر چې دی هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې |
| او هغوئ [په هر نوی سورة] خوشحاليږی | | | او د چا په زړونو کښې چې دنفاق [ مرض ] پروت وو | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَّرَضٌ | فَزَادَتْهُمْ | رِجْسًا | اِلٰى رِجْسِهِمْ | وَمَاتُوْا |
| مرض دې | نو زيات کړل هغوئ لره | په لحاظ دپليتئ سره | دپليتئ دهغوئ سره | او مړه کيږی هغوئ |
| نو دهغوئ په پليتئ باندې [دې نوی سورة] يوه بله پليتی سوا کړه | | | او تر مرګه پورې | |

وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿١٢٥﴾ اَوَلَا يَرَوْنَ اَنَّهُمْ يُفْتَنُوْنَ فِيْ كُلِّ

اوحال داچې هغوئ | کافران وی | آیاداخلق گوری نه | چې بیشکه دوئ | آزمائیلې کیږی | په هر

په کفر کښې اخته پاتې شو | آیا دې ته نه گوری چې دوئ هر کال یو خل یا دوه خله

عَامٍ مَّرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوْبُوْنَ وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿١٢٦﴾

کال کښې | یو خل | یا دوه خله | خو بیا هم | نه اوباسی توبه دوئ | اونه دوئ | نصیحت قبلوی

په یو آفت کښې غورزولې شی | خو بیا هم توبه نه اوباسی | او نه ترې عبرت اخلی

وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ ؕ هَلْ يَرٰىكُمْ

او هر کله | چې نازل کړې شی | یو سورت | نو اوگوری | خینی ددوئ | اخینو نورو ته | اووائی چې آیا وینی تاسو

او هر کله چې یو نوې سورة نازل شی | نو دوئ په سترگو سترگو کښې یو بل سره خبرې اوکړی

مِّنْ اَحَدٍ ثُمَّ انْصَرَفُوْا ؕ صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿١٢٧﴾

یو کس | بیا واپس لاړ شی | اړولی دی الله | زړونه ددوئ | خکه چې دوئ | هغه قوم دی | چې نه پوهیږی

چې څوک درته گوری څو نه | بیا غلی شان اوځی | الله ﷻ ددوئ زړونه گرزولی دی | خکه چې دوئ ناپوه خلق دی

## آسان ترجمه قرآن

اې د ایمان خاوندانو! د هغه کافرانو سره جنگ وکړئ چه کوم تاسو سره نزدې دی او پکار ده چه هغوی تاسو کښې سختي محسوس کړي او یقین وکړئ چه الله د متقیانو سره دې، او کله چه یو سورت نازلیږی نو هم دې ﴿منافقانو﴾ کښې هغه خلق دی چه وائی: دې ﴿سورت﴾ تاسو کښې د چا ایمان کښې زیاتوالې وکړو ؟ اوس هغه خلق چه هغوی ﴿واقعی﴾ مؤمنان دي د هغوی په ایمان کښې خو دې سورت واقعی زیاتوالې کړې دې، او هغوی ﴿په دې باندې﴾ خوشحالیږی. پاتې هغه خلق چه د هغوی په زړونو کښې مرض دې. نو دې سورت د هغوی په گندگۍ کښې د نوری گندگۍ زیاتوالې کړې دې او هغوی ته مرگ هم د کفر په حالت کښې راغې. آیا دا خلق نه وینې چه دوی په کال کښې یو یا دوه ځله په امتحان کښې مبتلا کیږي بیا هم دوی توبه نه اوباسي او نه څه سبق اخلي؟ او کله چه یو سورت نازلیږی نو دوی یو بل ته گوري ﴿او په اشارو کښې یو بل ته وائي﴾ چه تاسو ته څو څوک گوري څو نه ؟ بیا دوی د هغه ځائ نه پاځی روان شی الله تعالی د دوی زړونه اړولی دی، ځکه چه دوی د پوهې نه کار نه اخلی.

## خلاصه تفسیر

[يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَاتِلُوا الَّذِيْنَ يَلُوْنَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ] ائې ایماندارو ! دې کافرانو سره جنگ کوئ کوم چې تاسو سره چاپیر کښې [اوسیږی] [وَلْيَجِدُوْا فِيْكُمْ غِلْظَةً] او ددوئ خلاف تاسو کښې سختی پکار ده [یعنی د جهاد په وخت کښې هم مضبوط او سیدل پکار دی او هسې هم د امن په زمانه کښې دوئ ته خان کمزورئ کول نه دی پکار] [وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿١٢٣﴾] او دا یقین ساتئ چې د الله تعالی [مدد] متقیانو خلقو سره دی [نو تاسو دوئ نه ویریږئ مه] [وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ] او کله چې سورت [نوې] نازلیږی [فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ اَيُّكُمْ زَادَتْهُ هٰذِهٖٓ اِيْمَانًا] نو خینې منافقان [اغریبانان مسلمانانو ته د خندا په طور] وائی چې [اووائی] ددې سورت په وجه ستاسو په ایمان کښې څه

Scanned with

ترقي اوشوه [الله تعالى ارشاد فرمائي چې تاسو څه جواب غواړئي] نو [ واورئ] [فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا] كوم خلق چې ايماندار دى دې سورت هغوئ ته [خو] په ايمان كښې ترقى وركړه [وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ] او هغوئ [ددې ترقۍ په وجه] خوشحاليږى [خو چونكه هغه قلبى امر دې او هغه تاسو ته نصيب نه دې نو په دې تاسو ددې په ادراك باندې هم نه پوهيږئ او خنداګانې كوئ] [وَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ] او د كومو خلقو په زړونو كښې چې [دنفاق] مرض دې [فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا إِلَى رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَافِرُونَ] دې سورت هغوئ كښې دهغوئ [اولنۍ] ګندګۍ سره نوره [نوې] ګندګى زياته كړه [ځكه چې اول د قرآن د يوې حصې نه انكار وو او اوس ددې نوې حصې انكار نور هم زيات شو] او هغوئ د كفر په حالت كښې مړۀ شو [يعنى دوئ كښې چې كوم مړۀ شوى دى هغوئ كافران مړۀ شو او څوك چې په دې اصرار باندې اوسيږى نو هغوئ بۀ كافران وى، د جواب حاصل دادې چې بيشكه قرآن پاك كښې د ايمان دترقۍ خاصيت موجود دې خو كه محل كښې قابليت هم وى اوكه د اول نه خباثت مستحكم وى نو نور به هم دې ته استحكام اوشى ،درباغ لاله رويدو درشوره بوم خس][1] [أَوَلَا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ] او آيا دوئ ته نه ښكارى چې دا خلق هر كال يو يو ځل يا دوه ځل په څه نه څه مصيبت كښې اخته كيږى [خو] [ثُمَّ لَا يَتُوبُونَ وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُونَ] بيا هم [د خپلو خرابو كارونو نه] نه منع كيږى او نه هغوئ دا ګڼړى [او ددې نه د منع كيدو بيا دپاره اميد وى يعنى دوئ ته پكار دى چې د حوادثو نه عبرت زده كړى او عبرت زده كولو نه پس اصلاح كول پكار دى ، دا خو ددوئ د خندا بيان شو چې دوئ به خپلو مجلسونو كښې كول. وړاندې د نفرت بيان دې چې دنبى كريم ﷺ په مجلس كښې دوئ نه صادره كيدو ، نو ارشاد اوشو چې ] [وَإِذَا مَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ نَظَرَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ] او كله چې يو سورت [نوې] نازل شى نو يو بل ته ګورى [او اشارو سره خبرې كوى] [هَلْ يَرَاكُمْ مِنْ أَحَدٍ] چې تاسو ته يو [مسلمان] خو نه ګورى [چې په پورته كيدو ئې اوګورى اوبيا د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شى] [ثُمَّ انْصَرَفُوا صَرَفَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ] بيا [اشارو اشارو كښې خبرې كوى او هغه ځائې نه پورته شى] او ځى [ دا خلق مسجد نبوى ﷺ نه واپس شو] الله تعالى ددوئ زړه [ د ايمان نه واړولو په دې وجه چې هغه صرف ناپوهه خلق دى [ چې د خپلې فائدې نه منډې وهى].

## معارف او مسائل

په تيرو شوو آيتونو كښې د جهاد شوق پيدا كول وو او اوس په دې آيت [( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قَاتِلُوا)] كښې دا تفصيل ښودلې شوې دې چه كفار خو په ټوله دنيا كښې خوار دى،دوى سره په جهاد او جنګ كښې ترتيب څه پكار دې؟په دې آيت كښې ارشاد دا دې چه په كفارو كښې كوم خلق چه تاسو سره نزدې دى،رومبى دې هغوى سره جهاد اوكړې شى،دلته د نزدې والى مطلب دا هم كيدې شى چه په خپلولې تعلقاتو او نسب كښې ورسره څوك نزدې وى،هغوى سره دې اول جهاد اوكړې شى،هر كله چه اسلامى جهاد كول په حقيقت كښې هم د هغوى خير خواهى

[1]) ترجمه: باغ كښې ګلونه راټوكيږى او هوغه زمكه باندې ازغى.

کول دي او په خير خواهۍ او همدردۍ کښې د ټولو نه وړاندې هم خپلوان او تعلقداران دي
خکه رسول الله ﷺ ته هم حکم ورکړې شو ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ [اخپل نزدې عزيزان د الله
تعالى د عذاب نه اويروه]

چنانچه رسول الله ﷺ په دې باندې پوره عمل داسې اوکړو چه د ټولو نه اول ئې د خپل خاندان
خلق راغونډ کړل او کلمه د حق ئې ورته اورسوله، په مقامي نزدې والي ئې داسې عمل اوکړو
چه د مدينې منورې د خواؤشا کفار، بنی قريظه، بنی نضير، او د خيبر يهوديان ئې په نورو باندې
وړاندې کړل، وروسته ئې نورو عربو [کفارو] سره جهاد اوکړو او د ټولو نه په آخر کښې ورته د
روم کفارو سره د جنګ کولو حکم ملاو شو چه په نتيجه کښې ئې د تبوک غزا راپيښه شوه.

﴿وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً﴾ د [غلظة] معنى سختوالې او مضبوطوالې دې مراد دا دې چه کفارو سره
دې ستاسو رويه او سلوک په دې شان وی چه د يو مخ نه هم ستاسو کمزوری محسوسه نه
کړی ﴿فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا﴾ د دې آيت نه معلومه شوه چه د قرآنی آيتونو تلاوت، په دې کښې غور او
فکر کول او د دې په مقتضى باندې عمل کول په ايمان کښې وده او زياتوالې داسې راولى چه
د ايمان نور او خوږوالې ورسره زياتيږی، د دې اثر او نتيجه دا شی چه انسان ته د الله تعالى او
د رسول الله ﷺ په تابعدارۍ کولو کښې اسانی ښکاری، عبادت ورته خوند ورکوی، د ګناهونو
نه ئې طبعی کرکه پيدا شی او د دې په کولو کښې تکليف محسوسوی، چنانچه حضرت
علی ﷺ فرمائيلې دی چه کله په زړه کښې ايمان راشی نو شکل ئې د يو نورانی روښانه سپين
داغ په شان وی په ايمان کښې چه څومره وده کيږی دومره دغه ټکې هم وده کوی تر دې پورې
چه ټول زړه نورانی شی، هم دغه مثال د کفر او منافقت هم دې چه په اول کښې ئې په زړه باندې
د تور داغ شکل وی، بيا چه هر څومره ګناه کوی او کفر ئې زياتيږی نو دغه تور داغ هم ورسره په
مخه زياتيږی تر دې چه ټول زړه تور شی [مظهری] [1]

هم دغه وجه ده چه صحابهٔ کرامو ﷺ به خپل مينځ کښې يو بل ته وئيل چه راځې څه وخت د پاره
يو ځای کښينو د دين او د آخرت د خبرو يادګيرنه کوؤ چه زمونږ ايمان زيات شی [2]

﴿يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ﴾ په دې سره منافقانو ته خبردارې ورکړې شوې دې چه دوی د خپل
منافقت او لوظ ماتولو غونډې ګناهونو په وجه هر کال په مختلف قسم مصيبتونو کښې کله يو
خل او کله دوه خل اخته کيږی، کله د دوی دوستان د [مکې مکرمې کفار] مغلوب شی، کله د
دوی د منافقت خبرې څرګندې شی او د هغې په وجه په پريشانۍ کښې پراته وی ــــ دلته د
يو يا دوو خلو خاص شمير مراد نه دې بلکه دا ښودل دی چه داسې په مخه باندې لګيا دې
کيږی، ايا د دې څيزونو په ليدلو سره هم دوی ته عبرت نه حاصليږی.

---

[1] ) التفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۳۳۶
[2] ) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ۳۶، ومصنف ابن ابي شيبة: ج ۷، ص ۲۲۷ ورقم الحديث: ۴۵

لَقَدْ　جَآءَكُمْ　رَسُوْلٌ　مِّنْ اَنْفُسِكُمْ　عَزِيْزٌ　عَلَيْهِ　مَا

په تحقيق سره | راغلي دي تاسو ته | يو رسول | دجنسه ستاسو نه | گران دي | په هغه باندې | هغه كار

تاسوته يو داسي رسول ﷺ راغلي دي چي ستاسو دخپل جنس نه دي | ستاسو نقصان په هغه بد ليگي

عَنِتُّمْ　حَرِيْصٌ　عَلَيْكُمْ　بِالْمُؤْمِنِيْنَ　رَءُوْفٌ

چي په تكليف كښې اچوی تاسو | ستاسو د ښيگړې ډير خواهش مند دي | د مومنانو دپاره ډير رحم دل

چي په تكليف كښې اچوی تاسو | حرصناك دي | په تاسو باندې | په مؤمنانو باندې | مهربان دي

رَّحِيْمٌ ۝　فَاِنْ تَوَلَّوْا　فَقُلْ　حَسْبِيَ اللّٰهُ ۗ　لَآ اِلٰهَ

رحم كونكي دي | نو كه مخ واړوي ستانه دا خلق | نو اووايه | كافى دي ما لره الله | نشته دي لائق دعبادت

او مهربان دي | نو كه اوس هم دوئ مخ اوگرزولو | نو ورته اووايه | چي زما دپاره يو ازي الله ﷻ بس دي

اِلَّا هُوَ ۭ　عَلَيْهِ　تَوَكَّلْتُ　وَهُوَ　رَبُّ　الْعَرْشِ　الْعَظِيْمِ ۝

مگر هغه دي | په هغه باندې | بروسه اوكړه ما | او هغه | مالك دي | دعرش | لوئ |

بې دهغه نه معبود نشته | په هغه مې توكل دي | او هغه دلوئي عرش خاند دي

﴿خلقو﴾ تاسو ته يو داسې رسول راغلي دي چه ستاسو نه دي، چه هغه باندې ستاسو هر يو تكليف بوج وي هغه ستاسو په فائدو باندې ډير حرص ناك دي، مؤمنانو دپاره انتهائي نرم او ډير مهربان دي ! بيا هم كه دا خلق مخ واړوي نو ﴿اې رسوله ! دوی ته﴾ اوايه چه : ما دپاره الله كافي دي، د هغه نه سوا بل معبود نشته په هغه باندې ما اعتماد كړې دي، او هغه د لوئ عرش مالك دي.

**خلاصه تفسير**

[اې خلقو] [لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ] تاسو ته يو رسول تشريف راوړې دي چې هم ستاسو د جنس [بشر] نه دي [ چې تاسو ته ترې نفع اخستل آسان شي] [عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ] او په ده ستاسو د نقصان خبره ډيره خرابه لگي [غواړي چې تاسو ته دې هيڅ ضرر اونه رسي] [حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ] او ستاسو دفائدې ډير زيات خواهش مند دي [ دا حالت خو د ټولو دې بيا خاص كر] [بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝] ايمان والو سره [خو] ډير زيات شفيق [او] مهربان دي [داسې رسول نه مستفيد نه كيدل ډيره لويه محرومي ده] [فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ ۗ] بيا كه [په دې باندې دوئ تاسو رسول نه مني او ستاسو د اتباع كولونه ] مخ واړوی نو تاسو اووايئ [خما په دې كښې څه نقصان دې] ما لره [خو] الله تعالى [حافظ او ناصر] كافى دې ، [لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۭ] د هغه نه سوا بل څوك د معبود كيدو لائق نشته [نو معبوديت هغه سره خاص دې نو لامحاله د علم او قدرت ټول كمالات په دې كښې بې مثله شو بيا ماته د چا د مخالفت څه ويره ده ] [عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ] ما هم په هغه باندې بهروسه اوكړه [وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ۝] او هغه د ډير لوئې عرش مالك دې [نو نور څيزونه به خامخا دده ملكيت كښې وی ، نو په ده باندې د بهروسې كولو نه پس ماته هيڅ انديښنه نشته . البته تاسو خپل فكر اوكړئ چې د حق نه د انكار كولو نه پس به تاسو چرته ځئ].

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

دا د سورت توبه آخرى آيتونه دى په كښې دا بيان راغلې دې چه رسول الله ﷺ په ټولو باندې عموما او په مسلمانانو باندې خصوصا بې حده مهربان، زړه سواندې او همدرد دې په آخرى آيت كښې ئې بيا رسول الله ﷺ ته دا هدايت كړې دې چه ستاسو د ټولو كوششونو باوجود كه بيا هم څه خلق ايمان نه راوړى نو تاسو ﷺ صبر كوې او په الله تعالى باندې تكيه لرې.

د سورت توبه په آخر كښې د دې مضمون راوړل ځكه مناسب وو چه په ټول سورت كښې د كفارو نه د ويزاره كيدو، ورسره د مقاطعې كولو، ورسره د جنګ او جهاد كولو بيان وو كوم چه د الله تعالى اړخ نه د بلنې وركولو آخرى صورت دې كله چه په زبانى بلنې او تبلغ سره كار نه كيږى، خو د پيغمبرانو ﷺ اصل كار هم دا دې چه په زړه سواندئې، رحمت، همدردې او خيرخواهې سره خلق د الله تعالى اړخ ته بلى او كه دخلقو د اړخه مخ اړول يا څه تكليف راپيښى شى نو الله تعالى ته ئې سپارل پكار دى او هم په هغه تكيه كول پكار دى ځكه چه هغه د عرش عظيم رب دې. دلته ئې چه د عرش عظيم رب اوفرمائيلو نو په دې سره دا څرګندول مقصود دى چه هغه د ټولو كائناتو [مخلوق]انه را چاپيره دې.

دا آخرى دوه آيتونه د حضرت ابى بن كعب ﷛ د قول مطابق د قرآن كريم آخرى آيتونه دى چه دې نه پس څه بل آيت نه دې نازل شوې او وروستو رسول الله ﷺ وفات شوې دې، دا قول د ابن عباس ﷛ هم دې [قرطبى] (١).

د دې دوو آيتونو لوئې فضيلتونه په حديث شريف كښې بيان شوې دى، حضرت ابو درداء ﷛ فرمائيلې دى چه صبا ماښام دا آيتونه اووه كرته څوك لولى نو الله تعالى به ئې ټول كارونه اسان كړى [قرطبى] (٢) والله سبحانه وتعالى اعلم.

ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم،

اللهم وفقنى لتكميله كما تحب وترضى

والطف بنا فى تيسير كل عسير

فان تيسير كل عسير عليك يسير،

---

(١) تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: واتقوا يوما ترجعون الآية: ج ٣، ص ٣٧٥

(٢) سنن ابى داود، كتاب الادب، باب ما يقول اذا اصبح، وتفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ٨، ص ٣٠٣

| ركوعګاني | سورة یونس مكية وهي مائة وتسع آيات واحد عشر ركوعا | آياتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ① | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دي | ۱۰۹ |

الۗرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ① اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا اَنْ

ال ر | دا | آيتونه دكتاب دی | چی دحكمت نه ډك دي | آيا دي | خلقو ته | تعجب شوه | داخبره چي

الف لام را | داد داسې كتاب آيتونه دی | چې د حكمت نه ډک دی | آيا دا خلق دې خبرې ته تعجب كوی

اَوْحَيْنَآ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ

وحی اوكړه مونږه | يو سړی ته | ددوئ نه | چی | اوېروه خلق | اوزيرې وركړه | هغه كسانو ته

چې مونږ په دوئ كښې يو سړی (ﷺ) ته وحی اوليږله | [اودا مو ورته اووئيل] چې خلق [ د الله ﷻ د عذاب ] وېروه

اٰمَنُوْٓا اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ

چی ايمان ئې راوړی دې | چی بيشكه | شته دوئ لره | مرتبه لويه | رېښتنی | په نز درب ددوئ

او چې څوک ايمان راوړی هغوئ ته زيرې وركوه | چې هغوئ د پاره خپل پروردګار سره اوچته مرتبه ده

قَالَ الْكٰفِرُوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيْنٌ ② اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ

نواووئيل كافرانو | بيشكه چی داسړی | خامخاجادوګردې | ښكاره | بيشكه رب ستاسو | هغه الله دي

[اوپه دې خبره] كافروائی چې داسړې خو ښكاره جادوګر دې | بيشكه ستاسو پروردګار صرف يو الله دي

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ

چی پيدا ئې كړل اسمانونه | اوزمكه | په شپږو | ورځو كښی | بيا | برابرشو هغه | په عرش باندې

چې اسمانونه او زمكې ئې په شپږو ورځو كښې پيدا كړل | بيا په عرش باندې برابر شو

يُدَبِّرُ الْاَمْرَ ؕ مَا مِنْ شَفِيْعٍ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اِذْنِهٖ ؕ

تدبير كوی | دټولو كارونو | نشته | هيڅوك | شفاعت كونكې | مګر | روستو | داجازت دهغه نه

هغه د هر كار تدبير كوی | هيڅوک [دهيچا] سفارش نشی كولې | اخود هغه داجازت نه پس

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ③

هم داالله دې ستاسو | چی رب ستاسو دې | نو عبادت كوئ هم دهغه | آيا نو نصيحت نه قبلوئ تاسو

هم دغه الله ستاسو پروردګار دې | نودهغه عبادت كوئی | آيا تاسو [اوس هم] نصيحت نه قبلوئ

اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا ؕ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ؕ اِنَّهٗ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ

هم هغه ته | واپسی ده ستاسو | دټولو | وعده ده دالله | حقه | بيشكه هغه | اول شروع كوی | دپيدا وښت

هغه ته ستاسو د ټولو واپس كيدل دی | دا دالله ﷻ رېښتونې وعده ده | هغه مخلوق اول پيدا كړې دې

ثُمَّ يُعِيْدُهٗ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

بيا | به ئې دوباره پيدا كوی هم هغه | دپاره ددې چی بدله وركړی | هغه كسانولره | چی ايمان ئې راوړو

اوبيا به ئې هم دوباره ژوندې كوی | چې هغې كسانو ته په انصاف بدله وركړی | چې ايمان ئې راوړې

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ بِالْقِسْطِ ۗ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ

اوعملونه ئې اوکړل | نيك | په انصاف سره|اوهغه کسان| چې دکفر په لاره لاړل اوی به دهغوئ دپاره

دي | اونيک کارونه ئې کړی دی | او چا چې کفر غوره کړې دې | [نو] د هغوئ د څکلو دپاره

شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ۝

څکل | دگرمواوبونه| اوعذاب | درد ناك| په سبب دهغې| چې وو هغوئ| چې كفر به ئې کړو|

ويشيدلي اوبه دی| او دردناک عذاب مقرر دې | دا ځکه چې کفر به ئې کولو |

## آسان ترجمه قرآن

الرٰ دا د هغه کتاب آيتونه دي چه د حکمت نه ډك دي آيا خلقو دپاره دا د تعجب خبره ده چه مونږ هم دو ي کښې يو کس ته وحي راليږلې ده چه : خلق(دالله د خلاف کولو نه) وويروه او هغه خلقو لره زيري ورکړه چه د هغوی دالله څخه په صحيح معنو کښې لويه درجه ده (خوچه دغه خلقو ته دا پيغام ورکړولو) کافرانو ووئيل چه دا خو ښکاره جادوګر دې. حقيقت دا دې چه ستاسو پروردګار الله دې چه زمکه او آسمانونه ئې په شپږو ورځو کښې پيدا کړی دی . بيا هغه په عرش باندې داسې استواء وکړه چه هغه د هر يو څيز انتظام کوی هيڅوك د هغه د اجازت نه بغير (د هغه مخې ته) د چا سفارش کولنکې نشته. هم هغه دې ستاسو پروردګار! نو دهغه عبادت وکړئ. بيا هم تاسو توجه نه کوئ؟ هغهٔ طرف ته ستاسو ټولو واپس کيدل دي. دا دالله رښتينی وعده ده. يقيناً ټول مخلوق په شروع کښې هم هغه پيدا کړې دې او دوباره به ئې هم هغه پيدا کوي. دې دپاره چه کومو خلقو ايمان راوړې دې او نيك عمل ئې کړې دې هغوی ته په انصاف سره د هغوی بدله ورکړي. او کومو خلقو چه کفر اختيار کړې دې هغوی دپاره د ګرمو اوبو څکل دی او دردناك عذاب دې ځکه چه دوی به د حق نه انکار کولو.

## خلاصه تفسير

﴿ الٓرٰ ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ۝ ﴾ ددې معنی خو الله ته معلومه ده داکوم چه وړاندې راځې دحکمت نه ډك کتاب [قران] اياتونه دی کوم چه دحقانيت په وجه مستحق دمنلو اودخان پوهولو دی بيا منکرينو دنبوت ته جواب فرمائی ﴿ اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا اَنْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۗ ﴾ ايا دې[دمکې] خلکو ته ددې نه تعجب دې چه مونږ په دوی کښې يو سړی [چه ددوی په شان انسان دې] وحی ولېږله چه خلاصه ئې داده [چه عام طور] ټولو خلقو لره دالله دحکمونو د مخالفت نه] ويروی او کوم چه ايمان راوړي هغوی ته داخوشخبري ورکوی چه دوی ته به خپل رب ته[په رسيدو] پوره مرتبه حاصله شي [که داسي مضمون په يو بشر د وحی په ذريعه نازل شی نو څه عجيبه نده مګر].

﴿ قَالَ الْكٰفِرُوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيْنٌ ۝ ﴾ کافران[ دومره تعجب کښې شو ستا په نسبت] وائی چه [نعوذبالله] دا سړی بيشکه ښکاره جادوګر دی [نبی ندی ځکه چه نبوت د بشر لپاره نشي کيدی]

﴿ اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ ۖ مَا مِنْ شَفِيْعٍ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اِذْنِهٖ ۚ ﴾ بيشکه ستاسو رب [حقيقي] الله دی چا چه اسمانونو او ځمکو لره په شپږ ورځې

Scanned with Ca

[مقدار] کې پیداکړه [نوکامل قدرت لري] بیا په عرش [چه مشابه دئ دتخت دسلطنت سره داسي]قائم شو[ چه څنګه دهغه دشان سره لائق وي چه دعرش نه اسمان اوځمکي ته حکمونه جاري کړي لکه چه مخکښې فرمائي چه] هغه دهر کار[مناسب ] تدبیرکوي [پس حکيم هم دی دهغه په مخکښې] څوك سفارش کوونکی[ سفارش]نشي[کولې ی] مخکې دهغه داجازت نه نوعظیم هم شو﴿ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ۭ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ۝﴾ پس داسي الله ستاسورب [حقيقي] دی پس تاسو دهغه عبادت کوئ [اوشرك مه کوئ ] ایا تاسو [ددي دليلونواوريدو نه پس]بياهم نه پوهيږئ ستاسي بيرته ورتلل دئ الله ته .﴿اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا ۭ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ۭ اِنَّهٗ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ بِالْقِسْطِ ۭ﴾ [ددي ] رشتوني وعده نی کړیده بیشکه هغه اول وار هم پيداکوي بياهغه دويم خل هم [په قيامت کي ]به پيداکوي ددي لپاره چې کوم خلك چه ايمان راوړي اونيك اعمال وکړي په انصاف سره [پوره پوره ]جزاور ورکړی [اوهيڅ قسمه کمی به پکښې ونکړي بلکه ډيرزيات به هم ورکړي] .﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ۝﴾ اوکوموخلکوچه کفروکړوددوی دپاره [په اخرت کښې]به جوشيدلي اوبه دڅکلو لپاره وي اودردناك عذاب به وي ددوی دکفر په وجه.

## معارف او مسائل

سورت يونس مکی سورتونونه دې، بعضې حضراتو د دې صرف درې آيتونه مدني وئيلې دی چه د مدینې منورې د هجرت نه پس نازل شوې دی.

په دې سورت کښې هم د قرآن او اسلام بنيادی مقصدونه يعني توحيد ،رسالت او آخرت وغيره په کائنات کښې د راتلونکو تغيراتو او مشاهداتو نه په استدلال کولو سره ذهن کښې کښينولی شوی دی، دغه شان د عبرتناکو تاريخي واقعاتو او قيصو په ذريعه هغه خلق يرولې شوې دی کوم چه د الله تعالى دغې ښکاره نخښو نښانو ته نظر نه کوی او د دې په ضمن کښې د شرک د باطلوالی او د دې په باره کښې د څنو شبهو ورکړې شوې جواب بيان شوې دې، دا د دې سورت د مضمونونو خلاصه ده، د سورت په مضمونونو باندې د غور کولو نه دا خبره په اسانې ذهن ته راتلې شی چه د دې سورت او د تير شوی سورت[سورت توبه]تر منځه ترون څه دې، په سورت توبه کښې هم د دې مقاصدو د پاره، منکرينو او کفاروسره جهاد کول او د کفر او شرک طاقت لره په مادی اسبابو سره د ماتولو بيان وو او دا سورت هر کله چه د جهاد دحکمونو د نازليدو نه وړاندې په مکه مکرمه کښې نازل شو نو هم د مکی دور د قانون په جوړ دغه مقصدونه صرف د دليلونو او برهانونو په ذريعه ثابت کړې شوې دی.

﴿الۗرٰ﴾ته حروف مقطعات وئيلې شی چه د قرآن کريم د ډيرو سورتونو په اول سر کښې راغلې دی، د الم،حم،عسق وغيره د معنو په بحثونو باندې مفسرينو ډير اوږده بحثونه کړې دی، د صحابهٔ کرامو ﷺ، تابعينو ﷺ او د جمهورو پخوانو علماؤ ﷺ د تحقيق په جوړ ددې قسم د ټولو حروف مقطعاتو په باره کښې خبره داسې ده چه دا خصوصی اشارې دی چه معنې ئې غالبا رسول الله ﷺ ته ښودلې شوې دی خو رسول الله ﷺ عام امت لره صرف د دې په معلمونو او معرفتونو باندې خبر کړل کوم چه د دوی ذهنونه زغملې شی او په نه معلوميدو ئې څه کار کښې څه بنديز نه راځی. د حروف مقطعاتو په اشارو باندې د امت هيڅ کار موقوف نه دې لونه د دوی

څه کار په دې باندې خرابیږي چه په معنی باندې ئې ځان پوه نه کړي، هم دغه وجه ده چه رسول الله ﷺ هم د دې معنې امت د پاره ضروري او نه ګڼرلې او بیان ئې نه کړې، مونږ لره پکار دی چه دې پسې نه شو، ولې چه زمونږ یقین دې که د دې په معنو باندې پوهیدلو کښې زمونږ څه ښیګړه وې نو رحمة للعالمین ﷺ به د دې بیانولو باندې هیڅ کوتاهي نه وه کړې.

﴿تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ الْحَكِيمِ﴾ کښې د [تلك] په لفظ سره د دې سورت هغه آیتونو ته اشاره ده چه بیان به ئې اوس کولې شي، کتاب نه مراد قرآن کریم دې د دې صفت دلته [حکیم] راوړلې شو چه معنی ئې [حکمت والا کتاب] ده.

په دویم آیت کښې د مشرکانو د یوې شبهې او اعتراض جواب دې، حاصل د شبهې دا دې چه په خپل خیال کښې دوی دا خبره غټه کړې وه چه د الله تعالی د اړخه څوک بشر او انسان رسول نه شي مقرریدلې بلکه پکار دی چه فرشته دې رسول وي، قرآن کریم د دې بیهوده خبرې جواب په ډیرو ځایونو کښې په مختلفو عنوانونو سره ورکړې دې په یو آیت کښې فرمائي:

﴿قُل لَّوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلَائِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَاءِ مَلَكًا رَّسُولًا﴾

[که په زمکه فرشتې اوسیدې نو مونږ به ورله رسول هم فرشته جوړه کړې وه] حاصل ئې دا شو چه رسول به داسې وي چه هغه قوم سره به جوړښت او سمون لرې کوم ته چه هغه لیږلې شوې وي، فرشته، فرشتو سره او انسان، انسانانو سره سمون او جوړښت لرې، ځکه انسانانو د پاره هم انسان رسول جوړول پکار دی.

اوس په دې آیت کښې د دې انداز څه داسې دی چه په دې خبره باندې د دې خلقو تعجب کول چه مونږ ته انسان پیغمبر ولې راولیږلې شو؟ او د رسول الله ﷺ ذمه داري دا ولې اوګرځولې شوه چه نافرمانه انسانان دې د الله تعالی د عذاب نه اویروي او فرمانبردارو ته دې د ثواب زیرې ورکوي؟ دا تعجب پخپله د تعجب خبره ځکه ده چه انسانانو ته هم انسان پیغمبر لیږل د عقل مطابق خبره ده.

﴿أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ په دې آیت مبارك باندې ایمان والو ته د خوشحالۍ زیرې په دې الفاظ سره اوکړې شو. د [قدم] اصلي معنی خپه ده، هر کله چه د انسان د کوشش او عمل د ودې کولو ذریعه هم دا [قدم] ځکه وي چه د دې په حرکت کولو سره داسې کیدې شي خو دلته مجازاً لوړې مرتبې ته هم قدم اووئیلې شو ﴿قَدَمَ﴾ ئې ﴿صِدْقٍ﴾ ته مضاف کړو، په دې سره دا ښودل مقصود دی چه دوی ته ملاویدونکې مرتبه حق او یقیني هم ده او نه ختمیدونکې او پائیداره هم ده، د دنیوی مرتبو په شان داسې نه ده چه اول خو د عمل په نتیجه کښې یقیني حاصلیدونکې نه وي او بیا د دې ختمیدل او فنا کیدل یقیني وي، کله خو ئې په ژوند کښې د لاسه اوځي او د مرګ په وخت کښې خو یقیناً هر انسان د هرې مرتبې، منصب او هر دولت او نعمت نه تش لاسې شي، غرض دا چه د صدق لفظ په مفهوم کښې یقیني کیدل هم شامل دي، او کامل، مکمل او نه ختمیدونکې هم، ځکه د جملې معنی دا شوه چه ایماندارو ته دا زیرې واوروه چه دوی د پاره د رب خوا ته لویه درجه ده چه یقیني به ورته ملاویږي او دا داسې یو دولت دې چه نه به ختمیږي.

بعضې مفسرینو حضراتو ﷺ فرمائیلې دي چه دلته د ﴿صِدْقٍ﴾ د لفظ په راوړو سره دې ته هم اشاره ده چه د جنت دا لوړې درجې صرف د صدق او ربښتیني په برکت ملاویدې شي یواځې د

ژبې په کلمې د ایمان وئیلو سره نه حاصلیږي.خو پورې چه د ژبې او د زړه په صدق او اخلاص سره او نه وئیلې شي،د دې لازمي نتیجه به د نیکو عملونو پابندي کول او د بدو عملونو نه پرهیز کول وي۔
په دریم آیت کښې توحید په داسې یو حقیقت سره ثابت کړې شوې دې چه انکار ترې بیخی نه شي کیدې،هغه حقیقت دا دې چه هر کله د اسمانونو او زمکې په پیدا کولو او بیا د ټولې دنیا په کارونو په انتظام کولو او په چلولو کښې د الله تعالی څوک شریک او امدادي نشته نو بیا ئې په عبادت کښې بل څوک شریک څنګه جوړیدې شي؟بلکه بل څوک ئې شریک جوړول خو ډیره بې انصافي او لوئې ظلم دې۔
په دې آیت کښې ئې دا ارشاد فرمائیلې دی[الله تعالی اسمانونه او زمکه په شپږ ورځو کښې پیدا کړې دی]خو هر کله چه زمونږ حساب د ورځو د نمر په راختو او ډوبیدو کولې شي،دغه وخت چه نمر،بلکه زمکه اسمانونه لا پیدا نه وو نو د شپږو ورځو حساب په څه طریقه سره اوشو؟______جواب ئې دا دې چه دا اندازه د نمر د راختو او ډوبیدو د الله تعالی په علم کښې وه او د شپږو ورځو حساب هم په دغې طریقې سره اوکړې شو.په شپږو ورځو کښې دومره لوئې جهان جوړول او انتظام ئې کول چه ستوري،سپوږمې،زمکه،اسمانونه او په دې کښې شامل هر څه جوړول یواځې د الله تعالی کار کیدې شي چه قادر مطلق دې،هغه لره د دې ضرورت نشته چه دې د پاره ړومبی نه خام مواد،د دې ټول اجزاء اودې د پاره ټوله عمله،خادمان،او کاریګران موجود وي،بلکه هغه ته دا قدرت حاصل دې چه د څه سامان او د چا د امداد نه بغیر د یو سکینډ په کم نه کم وخت کښې صرف په کلمې د[کُن]سره ئې پیدا کړي،خو په شپږو ورځو کښې د دې جوړول د الله تعالی په بې شمیره حکمتونو باندې بنا دی۔
بیا فرمائي﴿ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ﴾[بیا قائم شو په عرش باندې]د قرآن او حدیث نه دومره ثابت دی چه د رحمن عرش داسې یو لوئې مخلوق دې چه د ټولو اسمانونو او زمکې نه راوتاو دې او دا ټول جهان[د هر څه سره]د هغې دننه ځاې شوې دې،دې نه زیات د دې حقیقت معلومول د انسان د وس خبره نه ده.هر کله چه انسان د خپل سائنس د زیاتې ودې په دې زمانه کښې هم صرف د اسمان نه لاندې ستوروته د رسیدو په تیارې کښې دې چه لا تر اوسه پورې ورته نه دې رسیدلې،انسان د دې هم اقرار کوي چه دغه پورتني ستوري مونږ نه دومره لرې دی چه د رصدي آلاتو په ذریعه د هغې معلومول د تخمیني او اندازې په درجه کښې دی،دې نه زیات بل څه حقیقت نه لري،دې کښې بعضې ستوري داسې هم دی چه پلوشې ئې لا تر اوسه پورې زمکې ته نه دی رارسیدلې،سره د دې چه د نمر پلوشې یو منټ کښې د لکونو میلونو نه زیات رفتار کوي،دې نه بره خو ړومبې اسمان دې بیا نور شپږ آسمانونه دی د هغې نه پورته بیا کرسي ده او د دې ټولو نه زیات پورته عرش د رحمن دې،د چا انسان د علم رسیدل چرته هغې ته کیدې شي؟
په آیت کښې دومره معلوم شو چه الله تعالی په شپږو ورځو کښې زمکه،آسمانونه او ټول کائنات جوړ کړل بیا ئې په عرش باندې قیام اوکړو.دا خو یقیني او ښکاره خبره ده چه الله تعالی د جسم،جسمانیت او د دې د ټولو صفتونو او خصوصیتونو نه زیات پورته دې،د هغه وجود یو خاص طرف او اړخ سره هیڅ تعلق نه لري،او نه د هغه قیام په یو ځاې کښې داسې دې څنګه چه د دنیا د نورو څیزونو قیام په خپل ځاې کښې دې،په عرش باندې د هغه قیام د

Scanned with Ca

متشابهاتو نه دی چه د هغې شان او طریقه د انسان په عقل او فهم کښې راتلل ناممکن دی، په دې وجه قرآن کریم د هغې په باره کښې داسې فرمائی ﴿وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ ۘ وَالرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ ۙ﴾ [مطلب دا چه د الله تعالی نه سوا بل هیچا ته دا نه شی معلومیدې، مضبوط او صحیح علم لرونکی په دې باندې د ایمان راوړو اقرار کوی خو حقیقت معلومولو پسې ئې کیږی نه] په دا شان تولو هغه معاملاتو کښې د جمهورو عالمانو د عقیدې په جوړ صرف ایمان راوړل پکار دی حقیقت معلومولو پسې ئې کیدل نه دی پکار، لکه په قرآن کریم کښې چه د الله تعالی نسبت یو مکان طرف ته شوې دې، یا د الله تعالی د پاره څه اندام مثلا ید ،وجه ،ساق وغیره یاد کړې شوې دی، په دې باره کښې هم دا ګڼړل پکار دی چه دې نه کوم مراد الله تعالی اخستې دې هم هغه صحیح دې،

نه هر جائے مرکب توان تاختن         که جاها سپر باید انداختن

[هر چرته چه څوک اسونه نه شی زغلولې ؛ په ډیرو ځایونو کښې ډال [وسله] غورزول پکار دی] چرته چه روستنو علماؤ د متشابهاتو څه معنی بیان کړې ده، د هغوی په نزد دغه هم د احتمال په درجه کښې دی، د یقین درجه ورته نه ورکوی، په دې بنا خالص احتمالی څیزونو سره څه حقیقت نه شی معلومیدې، په دې وجه صفا او سیدها مسلک د پخوانو بزرګانو [صحابهٔ کرامو ﷺ او تابعینو ﷺ] دې کوموچه ددې څیزونو حقیقت د الله تعالی علم ته سپارلې دې او بس.

وریسې فرمائی؛ یدبر الامر [په عرش باندې تیکاو شو د ټولو عالمونو انتظام د خپل قدرت په لاس سره چلوی]

﴿مَا مِنْ شَفِيْعٍ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اِذْنِهٖ ۭ﴾ [یعنی یو نبی او پیغمبر هم د هغه په دربار کښې تر هغې سفارش نه شی کولې تر څو چه د الله تعالی اجازت ورته نه وی] .

په څلورم آیت کښې د آخرت د عقیدې بیان دې فرمائی ﴿اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا ۭ﴾ [هم د هغه طرف ته ستاسو د ټولو واپسی ده] ﴿وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ۭ﴾ [داوعده ده د الله تعالی حق او صحیح] ﴿اِنَّهٗ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ﴾ [یعنی هغه اول د سره پیدا کوی مخلوق او بیا به ئې د قیامت په ورځ دوباره ژوندی کوی] په دې جمله کښې دا اوښودلې شو چه په دې هیڅ تعجب کول پکار نه دی چه د فنا کیدو نه پس به مخلوق دوباره څنګه راپیدا کولې شی؟ ولې چه د اوله سره بې د څه مادې او نمونې نه ئې پیدا کړل نو دوباره هم دغه مخلوق پیدا کول څه ګران خو نه دی۔

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هُوَالَّذِيْ | جَعَلَ | الشَّمْسَ | ضِيَآءً | وَّالْقَمَرَ | نُوْرًا | وَّقَدَّرَهٗ |
| هغه هغه ذات دې | چې جوړ ئې کړو | نمر | خلیدونکې | او سپوږمۍ | روښانه | او مقرر ئې کړل هغې لره |
| [الله تعالی] هغه ذات دې | چې نمر ئې پر قیدونکې جوړ کړې دې | او سپوږمۍ ئې خلانده جوړه کړې ده | او دا ئې سم | | | |
| مَنَازِلَ | لِتَعْلَمُوْا | عَدَدَ | السِّنِيْنَ | وَالْحِسَابَ ۭ | مَا خَلَقَ | اللّٰهُ |
| ځایونه دراختلو | دپاره ددې چې تاسو معلوم کړئ | شمار | دکلونو | او دحساب | نه دی پیدا کړی | الله |
| په حساب منزلونه مقرر کړی دی | چې تاسو ترې نه دکلونو په شمیر او | دوخت | په حساب پوهه شئ | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ | إِلَّا | بِالْحَقِّ | يُفَصِّلُ | الْاٰيٰتِ | لِقَوْمٍ | يَّعْلَمُوْنَ ۞ إِنَّ |
| دا هر څه | مګر | په حقه سره | هغه واضحه بيانوي | آيتونه | دپاره دهغه خلقو | چي پوهيږي | بيشکه |

الله ﷻ دا ټول څيزونه [دلوبو دپاره نه بلکه] په مطلب پيدا کړي دي| هغه پوهانو خلقو ته خپلي نښي په تفصيل سره بيانوي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي اخْتِلَافِ | الَّيْلِ | وَالنَّهَارِ | وَمَا | خَلَقَ اللّٰهُ | فِي السَّمٰوٰتِ |
| په بدليدو کښي | دشپي | او دورځي | او په هرهغه څيزونو کښي | چي پيدا کړي دي الله | په آسمانونو کښي |

بيشکه دشپي او ورځي په بدلون کښي او الله ﷻ چي په آسمانونو او زمکه کښي څه پيدا کړي دي|

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْاَرْضِ | لَاٰيٰتٍ | لِقَوْمٍ | يَّتَّقُوْنَ ۞ |
| اوپه زمکه کښي | خامخا نښي دي | دپاره دهغه قوم | چي خان ساتي دغلطي لاري نه |

په دي ټولو کښي| دهغي خلقو دپاره نښي دي | چي د الله ﷻ نه ويريږي |

## خلاصه تفسير

﴿هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَآءً وَّالْقَمَرَ نُوْرًا وَّقَدَّرَهٗ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ﴾ دغه الله هغه ذات دی چه لمر ئي پرقيدونکی جوړ کړو اوسپوږمۍ لره [هم] نوراني جوړه کړه اوددوی [دتللو] دپاره ئي منزلونه مقرر کړه [چه روزانه يويو منزل قطع کوي ] ددي دپاره چه [اجرامو په ذريعه]تاسو دکلونو شمار اوحساب معلوم کړئ.

﴿مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ إِلَّا بِالْحَقِّ يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۞﴾ الله تعالی داڅيزونه بي فائدی ندي پيداکړي هغه دادلائل دهغو خلقو لپاره صفاصفا بيانوي کوم چه پوهه لري.

﴿إِنَّ فِي اخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِقَوْمٍ يَّتَّقُوْنَ ۞﴾ بيشکه دشپي اوورځي په يوبل پسي په راتلوکي او څه چه الله تعالی په اسمانونواوځمکي کښی پيداکړي دي په دي ټولوکی دهغوخلقولپاره [دتوحيد] دليلونه دي کوم چي [دالله نه]ويريږي.

## معارف او مسائل

په دې درې آيتونو کښې د دنيا د ټول مخلوق ډيرې نخښې بيان شوې دی چه د الله تعالی په کامل قدرت باندې ګواه او د هغې د ليلونه دی چه الله تعالی دا قدرت لری چه د دې جهان د فنا کولو او پوتې پوتې کولو نه پس بيا دغه پوتی راجمع کړی او د نوی سره دغه ټول راژوندی کړی او د حساب کتاب نه پس د جزا او سزا قانون پرې جاری کړی، چه د عقل او حکمت تقاضا هم ده، دغه شان دا درې واړه آيتونه د هغه اجمال تفصيل دی چه په تير شوی دريم آيت کښې د زمکې او اسمانونو په شپږو ورځو کښې د پيدا کيدو او بيا په عرش باندې د قائميدو نه پس د ﴿يُدَبِّرُ الْاَمْرَ﴾ په الفاظو سره بيان شوې وو، چه هغه داسې نه دی کړې چه عالم ئې پيدا کړو او هم دغسې ئې پريښودو بلکه هر وخت او هره لمحه د هر څيز انتظام د هغه په لاس کښې دې.

د دغې انتظام يوه برخه داده ﴿هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَآءً وَّالْقَمَرَ نُوْرًا﴾ د ضيا او نور دواړو معنی خلا او رڼرا ده، په دې بنا د لغت ټول اماماندې دواړو ته مترادف[هم معنی] الفاظ وائی، علامه زمخشری او طيبی وغيره فرمائيلي دی چه اګرچه که د رڼرا معنی په دې دواړو کښې شريکه ده خو د نور لفظ عام دې چه هرې تيزې او تتې، مضبوطې او کمزورې رڼرا ته وئيلې شی او ضوء

او ضیاء خاص دي مضبوطې او تیزې رڼا ته وئیلې شي،[1] انسان ته د دواړو رڼاګانو ضرورت راځي، عام کاروبار د پاره د ورځې تیزه رڼا پکار ده او معمولي کارونو د پاره د شپې کمزورې رڼا خوښولې شي، که د ورځې هم د سپوږمۍ کمزورې رڼا وې نو کار، روزګار کښې به خلل راتلو او که د شپې د نمر تیزه رڼا وې نو د خلقو خوب او مناسبو کارونو کښې به خلل راتلو، په دې بنا باندې قدرت د دواړو قسمو رڼاګانو دا شان انتظام اوکړو چه د نمر رڼا ته ئې د ضوء او ضیاء درجه ورکړه او کار روزګار په وخت کښې ئې دا څرګنده کړه، او د سپوږمۍ رڼا ئې کمزورې او تته اوګرځوله او د شپې ئې ښکاره کړه.

قرآن کریم د خپل بیان په مختلفو عنوانونو سره د نمر او سپوږمۍ د رڼا فرق ښکاره کړې دې لکه سورت نوح کښې فرمائي ﴿وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا﴾ په سورت فرقان کښې فرمائي ﴿وَجَعَلَ فِيهَا سِرَاجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا﴾ د سراج معنی ډیوه ده، هر کله چه د ډیوې رڼا ذاتي او ځاني وي د بل څه نه ئې نه وي اخستې په دې بنا بعضې حضراتو د ضیاء مطلب ذاتي او ځاني اخستې دې او د نور مطلب ئې هغه رڼا اخستې ده چه د بل څیز نه اخستې شوې وي، خو ښکاره خبره ده چه دا فرق د یوناني فلسفې نه د اثر قبلولو په وجه کړې شوې دې ورنه په لغت کښې د دې هیڅ اصل نشته او قرآن کریم هم د دې څه قطعي فیصله نه ده کړې.

زجاج رحمه الله وئیلې دي چه ضیاء د ضوء جمع ده، په دې لحاظ دې ته اشاره کیدې شي چه د دنیا اووه واړه مشهور رنګونه چه په دنیا کښې موندې شي هغه ټول د نمر په رڼا کښې موندې شي چه د باران اودریدو نه پس د قوس قزح [بودۍ ټال] په شکل کښې ښکاریږي [منار]

د نمر او سپوږمۍ په نظام کښې د قدرت د نخښو ځنې یو نښداره دا هم ده چه ﴿وَقَدَّرَهُ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ﴾ [قدره] د تقدیر نه جوړ دې، معنی ئې داده چه څه څیز د زماني، مکان یا د صفتونو په لحاظ سره په خاص اندازه لرلې شي لکه قرآن کریم فرمائي ﴿وَاللَّهُ يُقَدِّرُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ د مکان او مزل په لحاظ، په یو خاص انداز باندې د شام او سبا د آبادو تر منځه د فاصلې لرلو د پاره قرآن کریم بل ځاې کښې فرمائي ﴿وَقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ﴾ او د عامو اندازو په باره کښې فرمائي ﴿وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا﴾

منازل: د منزل جمع ده اصلي معنی ئې د راکوځیدو ځاې دې، الله تعالی د نمر سپوږمۍ د رفتار د پاره خاص حدونه ټاکلې دي چه هر یو ته منزل وئیلې شي. سپوږمۍ خپله دوره په هره میاشت کښې پوره کوي ځکه د دې منزلونه دیرش یا یو کم دیرش دي، خو هر کله چه هره میاشت کښې سپوږمۍ کم نه کم یوه ورځ غائبه پاتې کیږي نو ځکه عموما د سپوږمۍ منزلونه اته ویشت وئیلې شي. لیکن نمر ټول کال کښې خپله دوره پوره کوي، ځکه د دې ټول منزلونه درې سوه شپیته یا درې سوه پنځه شپیته وي. د عربو په زوړ جاهلیت کښې هم او د اهل هیئت او ریاضي د پوهانو په نزد هم د دې منزلونو خاص خاص نومونه د دې ستورو په مناسبت سره ایښودې شوې دي چه د دې منزلونو په برابرې کښې موندې شي، قرآن کریم د دې اصطلاحي نومونو نه بالاتر دې ځکه ترې مراد صرف هغه فاصلې دي چه نمر او سپوږمۍ ئې په خاص خاص ورځو کښې لاندې کوي.

---

[1]) كشاف تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۳۳۳، ولي تفسير سورة النوح آيت: ۵، ص ۲۷

په آیت کښې ﴿قَدَّرَهٗ مَنَازِلَ﴾ کښې د مفرد ضمیر استعمال شوې دې حالانکه منزلونه د نمر او سپوږمۍ دواړو دي، خکه بعضې مفسرینو رحمهم الله فرمائیلې دي چه اګر که ذکر د مفرد دې خو د هر واحد په اعتبار سره مراد ترې دواړه دي چه مثالونه ئې د قرآن کریم او عربی په محاورو کښې په کثرت شمیر موندې شي.

بعضې حضراتو رحمهم الله فرمائیلې دي چه اګرچه دا منزلونه الله تعالی د نمر او سپوږمۍ دواړو د پاره قائم کړي دي خو دلته ترې مقصود یواځې د سپوږمۍ منزلونه بیانول دي، په دې بنا په [قدره] کښې ضمیر نمر ته راجع دې خکه چه د نمر منزلونه خو صرف په رصدی آلاتو او په حسابونو سره خکه معلومولې شي چه نمر په یو شکل کښې د کال دولس میاشتې هره ورځ راخیژي او ډوبیږي، صرف د دې په لیدلو کتلو سره د دې امروزه منزل هیڅوک نه شي معلومولې، خو د سپوږمۍ حالات هره ورځ بدل بدل وي په آخر د میاشتې کښې دسره ښکاره هم نه شي، دغې حالاتو ته په کتلو سره بې علمه خلق هم د تاریخونو او نیټو پته لګولې شي مثلاً نن د مارچ اتم تاریخ دې څوک نمر ته په کتو سره نه شي معلومولې چه اتم دې او که یویشتم دې په خلاف د سپوږمۍ چه دې سره په کتو هم انسان تاریخ معلومولې شي.

په دې آیت کښې هر کله چه دا ښودل مقصود دي چه د الله تعالی د عظیم الشانه نخښو نخښانو سره دا انسانی فائده هم تړون لري چه د دې په ذریعې سره انسان د کال، میاشتې او د دې د نیټو حساب معلوموی، دا حساب اګرچه نمر، سپوږمۍ دواړو سره معلومیدې شي او په دنیا کښې دواړه قسمه [شمسی او قمری] میاشتې د پخوا راسې مشهورې هم دي قرآن کریم هم د سورت اسراء په دولسم آیت کښې فرمائی ﴿وَجَعَلْنَا الَّيْلَ وَالنَّهَارَ اٰيَتَيْنِ فَمَحَوْنَآ اٰيَةَ الَّيْلِ وَجَعَلْنَآ اٰيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً لِّتَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ ؕ﴾ په دې آیت کښې د [اٰية الیل] نه مراد سپوږمۍ او د [اٰية النهار] نه مراد نمر دې، د دواړو ذکر کولو نه پس فرمائی چه په دې سره تاسو د کلونو شمیر او د میاشتو د تاریخونو حساب معلومولې شې او په سورت رحمن کښې فرمائی ﴿اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ﴾ په دې آیت کښې دا ښودلې شوې دې چه د نمر او سپوږمۍ دواړو په ذریعه د تاریخ میاشتې او کال حساب معلومیدې شي.

لیکن د سپوږمۍ په ذریعه د میاشتې او د تاریخ حساب په مشاهدې او تجربې سره معلوم دې، په خلاف د نمر چه د دې په حسابونو سوا د ریاضې د پوهانو نه نور څوک نه پوهیږي، دې د پاره په دې آیت کښې د نمر او د سپوږمۍ د ذکر کولو نه پس هر کله چه ئې د دی د منزلونو مقرر کولو ذکر اوفرمائیلو نو وروستو ئې په [قدره] کښې د مفرد په ضمیر سره منزلونه صرف د سپوږمۍ بیان کړل.

هر کله چه په اسلام کښې هر چرته دا خیال ساتلې شوې دې چه د دې د حکمونو په ادا کولو کښې دې هر مسلمان ته اسانی وي، که امی وي او که غیر امی وي، که د ښار وي او که د کلی وي، په دې لحاظ سره په اسلامی احکامو کښې عموما د قمری کال، میاشتو، او ورځو حساب کول تاکلې شوې دې، لکه مونځ، روژه، حج او عدت وغیره کښې چه قمری حساب لره اعتبار ورکړې شوې دې.

د دې دا مطلب نه دې چه ګنې شمسی حساب ساتل ناروا دی بلکه د مونځ، روژې حج، زکوة او عدت وغیره په معامله کښې خو د شریعت په جوړ قمری حساب کول ضروری دی، البته په خپل

کاروبار کښې ورته د شمسي حساب چلولو اختيار شته دې خو شرط دا دې چه په مجموعي ډول مسلمانانو کښې قمري حساب کول جاري پاتې شي چه ورسره د رمضان، حج، او عدت وغيره احکام او وختونه معلوم پاتې کيږي، داسې نه دی پکار چه د جنوري، فروري وغيره نه علاوه نورې مياشتې ورته د سره معلومې نه وي، په دې بناء فقهاء ﷺ قمري حساب لګول د مسلمانانو په ذمه فرض کفايه ګڼړي.

په دې کښې هم شک نشته چه د پيغمبرانو ﷺ په سنت، د رسول الله ﷺ او د خلفاء راشدين ﷺ په سنت کښې يواځې د قمري حساب استعمال راغلې دې چه تابعدارې کولو کښې ئې برکت او ثواب دې.

غرض دا چه په دې بيان شوی آيت کښې د الله تعالى قدرت او کامل حکمت بيان شوې دې چه هغه د رڼړا دوه عظيم الشانه خزانې د حال مناسب پيدا کړې، او بيا د هر يو د رفتار د پاره ئې داسې پيمانې او تاکلې چه ورسره د کال، مياشتې، تاريخ او وختونو د يو يو منټ حساب معلوميدې شي، نه ئې چرته په رفتار کښې فرق راځي، نه چرته وړاندې وروستو کيږي، نه د خداې جوړ کړې په دې مشينونو کښې چرې د مرمت د پاره څه بنديز راوستې شي، نه ورته د ګريس ورکولو ضرورت وي نه خو دا چرې سوليږي او ماتيږي، د ازل نه تر اوسه پورې په مخه هم داسې چليږي او تر قيامته پورې به چليږي ـــــــ وريسې په آخر د آيت کښې د زياتې خبردارې د پاره فرمائي ﴿مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ اِلَّا بِالْحَقِّ ۚ يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ۝﴾ [يعنى دا ټول څيزونه الله تعالى بې فائدې نه دی پيدا کړې بلکه په دې کښې لوئې لوئې حکمتونه او انسان د پاره بې شميره فائدې پټې پرتې دی او دا دليلونه هغې خلقو ته صفا صفا ښائی چه عقل او پوهه لري.

دا شان په بل آيت کښې ارشاد فرمائي؛ چه يو بل پسې د شپې او د ورځې په راتلو کښې او چه الله تعالى په اسمانونو او زمکه کښې پيدا کړې دی په دې ټولو کښې هغې خلقو د پاره [د توحيد او آخرت] دليلونه دی چه د الله تعالى يره مني.

د توحيد دليلونه خو د قدرت او کاريګرې يواځې والې او بغير د چا د امداد نه دا ټول څيزونه پيدا کول دی او په داسې نظام ئې چلول دی چه دا نظام نه چرته ماتيږي او نه بدليږي.

او د آخرت دليلونه داسې دی چه کوم حکيم ذات چه دا ټول څيزونه د انسانانو د فائدې د پاره جوړ کړل او دو يو محکم نظام پابند ئې کړل، نو دا خو کيدې نه شي چه هغه دې د کائناتو دا مخدوم [انسان] بې فائدې او خالص خوراک څښاک له پيدا کړې وی د هغه په ذمه دې ئې څه فرض او ذمه دارې نه وی لګولې، هر کله چه دا معلومه شوه چه د کائناتو په دې مخدوم دې هم څه پابندې وی، نو دا هم معلومه شوه چه د دې پابنديانو د پوره کونکو او نه پوره کونکو دې حساب وی، اول قسمه خلقو ته دې ښه بدله ورکړې شي او نه پوره کونکو ته دې سزا ورکولې شي او دا هم ښکاره ده چه په دې دنيا کښې خو د جزا او سزا دا دستورنه دې ولې چه دلته خو مجرم او ناکاره بنده په اکثرو وختونو کښې د متقی او پرهيزګار نه زيات ښه ژوند تيروی، د دې کبله حساب کتاب او جزا او سزا د پاره څه ورځ مقرره پکار ده چه هغه د قيامت او آخرت ورځ ده.

إِنَّ الَّذِينَ

بیشکه | هغه کسان

| بیشکه خوک چې زمونږ

لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا وَرَضُوا بِالْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّوا بِهَا

چې امید نه لري | دملاقات زمونږه | اوراضي شوي دي | په ژوندد دنیا | اومطمئن شوي دي | په هغې

سره دملاقات امید نه ساتي ||اوددنیا په ژوند رضا شوي دي ||او په هغې پورې ئې زوړنه لګولې دي

وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا غَافِلُونَ ۝٧ أُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمُ

اوهغه کسان | چې هغوئ | دآيتونو زمونږ نه | غافله دي | دغه کسان چې دي | آخري ځائې دهغوئ

او خوک چې زمونږ د نښونه بیخي غافله دي | . هم دغه خلق دي چې ټکاڼوه ئې [ د دوزخ]

النَّارُ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۝٨ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا

ووردي |په سبب دهغې بدوکارونو |چې ووهغوئ |چې کول به ئې | بیشکه هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو

اور دي | د دوی د خرابو عملونو په سبب | ........ بیشکه چاچې ایمان راوړې دي ||او نیک کارونه کوي

وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ يَهْدِيهِمْ رَبُّهُمْ بِإِيمَانِهِمْ ۚ تَجْرِي

اوکول ئې نیک کارونه | اوبه ښائي هغوئ ته نیغه لار | رب دهغوئ | په سبب دایمان دهغوئ | بهیږي به

هغوئ به خپل رب د ایمان په برکت سره [داسې ځایونه ته] اورسوي |چې لاندې به ترې ولې

مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ۝٩ دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ

لاندې دهغوئ نه | نهرونه | په جنتونو کښې | دك دنعمتونو | ویناد هغوئ به | په هغې کښې | پاکي ده تالره

بهیږي | د عیش عشرت په باغونو کښې به وي | هلته به هغوئ وائي چې ائې الله ﷻ ته پاک ئې ||او هلته به

اللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ ۚ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ

اے خدایا | او دعا دهغوئ به | په هغې کښې | سلام [سلامتیا] وي | اوخاتمه | دوینا دهغوئ به داوي

دهغوئ [یو بل ] سره دعا دا وي |چې سلامت اوسیږئ ||اودهغوئ روستئ وینا به همیشه دا وي |چې

أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝١٠

چې ثنا ده | الله لره | چې پالونکي دټولو مخلوقاتو دي |

ټول تعریفونه الله ﷻ لره دي |چې پالونکی د ټولو مخلوقاتو دي |

## آسان ترجمه قرآن

او الله هغه دې چه هغه نمر ټوله رڼرا کرځولې ده او سپوږمئی ئې ټول نُور، او دهغه (دسفر) دپاره ئې پړاؤنه مقرر کړی دی دې دپاره چه تاسو د کال شمېر او (د میاشتو) حساب معلوم کړئ الله تعالیٰ دا ټول بې د څه مقصد نه نهٔ دې پیدا کړي هغه دا نښې دهغه خلقو دپاره بیانوي چه پوهیږي حقیقت دا دې چه د ورځې او شپې په مخکښې وروستو راتلو کښې او الله چه په آسمانونو او زمکه کښې څه پیدا کړي دي هغې

کښې د هغه خلقو دپاره لوئ لښې دي چه د هغوی په زړونو کښې د الله ویره وي. کوم خلق چه مونږ سره (په آخرت کښې) د ملاویدو امید نه ساتي، او د دنیا په ژوند کښې مشغوله دی او په دې مطمئین شوی دی، او ځمونږ د نښو نه غافله دی د دوی ځائې د ځېلو کړو د وجې نه جهنم دې. (بل طرف ته) هغه کسانو چه ایمان ئې راوړې دي او نیک عمل ئې کړي دي، د دوی د ایمان د وجې نه الله تعالی به دوی داسې منزل ته ورسوي چه د نعمتونو نه په ډکو باغونو کښې به ددوی لاندې نهرونه بهیږي. د دوی به دې ته (دننه کیدو په وخت کښې) داخبره وی چه: اې الله ستا ذات د هر عیب نه پاک دې او د یو بل د پیش کشي دپاره به چه دوی کوم لفظ وائې هغه به سلام وي او د دوی آخری خبره به دا وي چه: ټول تعریفونه الله لره دي چه د ټولو جهانونو پروردګار دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا وَرَضُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّوا بِهَا وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا غَافِلُونَ ﴾ د کومو خلکو چه زمونږ خواته د راتللو امید نشته اودوئ د دنیا په ژوند خوشحاله شوی دي [داخرت طلب هرګزنه کوي ] او په دي پوري ئې زړه ترلی دئ [د راتلونکي يې هيڅ خبرنشته] او کوم يا خو خلق چه زمونږ د اياتونو نه [کوم چه په نبوت دلالت کوي] بلکل غافله دي. ﴿ أُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾ دداسي خلکو ځای ددوئ [دي] عملونو په وجه سره دوزخ دی. ﴿ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ يَهْدِيهِمْ رَبُّهُمْ بِإِيمَانِهِمْ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴾ [او] يقينا کوم خلک چه ايمان راوړي او نيک کاروکري ددوئ رب دوی ته ددوی د مومن کیدو په وجه ددوئ مقصد [یعنی جنت] ته ورسوي ددوی [دځایونو] لاندي به نهرونه جاري وي دخوشحالئ په باغونو کي ﴿ دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ [څه وخت چه دوی جنت ته ورسیږي او ناڅاپه د جنت عجایبات ويني نو دغه وخت به ] ددوی د خولونه دا خبره ووځي چه سبحان الله او [کله چه په اطمینان [کښینی] هلته کیني او خپل تیر مصیبتونو او تکلیفونه او د دغي وخت دغیرفاني خوشحالی موازنه اوکړي] ددوی [ددغي وخت په خبروکي به ] اخیري خبره داوي [الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ] لکه چه په نوروایاتونو کي دي. [الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ][1]

## معارف او مسائل

په تیرو شوو آیتونو کښې د الله تعالی کامل قدرت، د هغه د حکمت د خاصو خاصو نندارو، آسمانونو او زمکې، د نمر او سپوږمۍ وغیره د پیدا کولو بیان سره د توحید او آخرت عقیده په یو بلیغ انداز سره ثابته کړې شوه، اوس د دې آیتونو نه په رومبو درې آیتونو کښې دا ښودلې شی چه د دنیا د داسې ښکاره نخښو او شهادتونو باوجود د انسانانو دوه ډلې جوړې شوې، یوه هغه ډله شوه چه د قدرت نشانیانو ته ئې هیڅ خیال او نه کړو، نه ئې خپل پیدا کونکې مالک اوپیژندو چه مونږه د دنیا د عامو ښناورو په شان یو قسم ښناور نه یو، رب العزت راته د ټولو ښناورو نه ډیر زیات شعور او پوهه، عقل او فکر راکړې دې، ټول مخلوق ئې زمونږه خادمان جوړ کړې دی، نو زمونږ په ذمه خو به ئې هم څه کار لګولې وی چه د هغې حساب ورکول به هم زمونږ په ذمه وی او هغې د پاره به د حساب کتاب او د جزا سزا ورځ مقرر وی، کومې ته چه د

[1] ) ترجمه: دالله لاکه لاکه شکر دے چه مونږنه ئې غم لرے کړو۔

قرآن کریم په اصطلاح کښې د قیامت او د حشر ،نشر ورځ وئیلې شي.بلکه هغوی خپل ژوند لکه د عامو ځناورو په شان تیر کړو.په رومبو دوو آیتونو کښې د دغې خلقو خاص نخښې او ښودلې شوې او د هغوی د آخرت د سزا ذکر کړې شوې دې،او ئې فرمائیل چه چا سره زمونږ خوا ته د راتلو غم نشته او د هغوی حالت دادې چه د آخرت دائمي ژوند او د هغې راحت او تکلیف ئې هیر کړو او صرف د دنیا په ژوند راضي شو.

دویمه دا چه په دې دنیا کښې داسې بې غمه اوسیږی لکه چه دې ځای نه ئې د سره بل خوا ته تلل نشته او همیشه د پاره ئې هم دلته اوسیدل دی،د دوی په خوا خاطر کښې هم دا خبرې چرې نه راځي چه دې دنیا نه د هر چا رخصتیدل داسې یوه ښکاره خبره ده چه د هیچا په کښې شک نه شي کیدې او کله چه د دې ځای نه تلل یقیني دی نو هغه بل ځای د پاره خو څه تیاری کول پکار دی.

دریمه دا چه دا خلق زمونږ د آیتونو او نشانیانو نه په مخه بې پروا پاتې کیږی،که دوی په اسمانونو ،زمکه او د دې په منځ کښې په عامو مخلوقاتو باندې او په خپله په خپل نفس باندې پوتې قدرې هم غور کولې نو په حقیقت باندې پوهیدل څه گرانه خبره نه وه او دوی د بې وقوبې د دغې بې پروائې نه وتلې شو_____د داسې خلقو سزا په آخرت کښې دا ده چه تیکانه ئې د جهنم اور دې او دا سزا په خپله د دوی د خپل عمل نتیجه ده.

افسوس دې چه قرآن کریم د منکرانو او کفارو چه کوم علامات ښودلې دی،نن ورځ د مسلمانانو حالت بالکل هو بهو هغه شان دې،زمونږ امروزه کار روزگار او فکرونو او عملونو باندې چه نظر واچولې شي نو هیڅوک په دې نه پوهیږی چه د دې دنیا نه سوا مونږ سره بل څه فکر هم شته،بیا هم مونږه خپل ځانونه پاخه او سوچه مسلمانان گڼړو،حالانکه حقیقت دا دې چه پاخه او سوچه مسلمانان هغه څوک کیدې شی چه د هغوی په لیدو سره د الله تعالی یاد راځي او دا محسوسیږی چه دوی سره د لوئې هستې یره مل ده او د څه حساب کتاب فکر ئې په زړونو کښې چپې وهي،څنگه چه زمونږ پخوانی مشران تیر شوې دی،چنانچه د رسول الله ﷺ هم دغه حال وو سره د دې نه چه رسول الله ﷺ د گناه نه پاک وو،په شمائل ترمذی کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ به اکثر غمژن او فکرمن ښکاریدلو.[1]

په دریم آیت کښې د هغه خوش قسمته خلقو بیان دې چا چه د الله تعالی د قدرت په نخښو کښې غور اوکړو هغه ئې او پیژندلو،په هغه ئې ایمان راوړو،او د ایمان په مقتضی باندې د عمل کولو په وجه د نیکو عملونو پابند شو_____داسې کسانو د پاره الله تعالی د ښې بدلې بیان داسې فرمائی﴿أُولَٰئِكَ يَهْدِيهِمْ رَبُّهُم بِإِيمَانِهِمْ﴾ایعنی د دوی پرودگار به دوی ته د ایمان په وجه منزل مقصود یعنی جنت اوښائی چه په کښې به د آرام او راحت په باغونو کښې نهرونه بهیږی.

په دې کښې د هدایت لفظ راغلې دې چه مشهوره معنی ئې لار ښودل دی،او کله منزل مقصود ته د رسیدلو معنی هم ورکوی،په دې مقام باندې هم دغه معنی مراد ده،منزل مقصود نه مراد جنت دې،چه وضاحت ئې په ورستو بیان شوې الفاظو کښې شوې دې.څنگه چه د اولنې دلې سزا د هغوی د بدو عملونو نتیجه وه هم دغسې د دویمې دلې چه د مومنانو ده په باره کښې ئې

[1]) شمائل ترمذی، باب کیف کان کلام رسول الله صلی الله علیه وسلم: ص ۲

اوفرمائیل چه دا بهترین اجر دوی ته د دوی د ایمان په وجه ملاو شو.هر کله چه دلته ایمان سره د عمل صالح ذکر راغلی دې نو په دې وجه به د ایمان نه هغه ایمان مراد وی چه ورسره ئې نیک عملونه هم وی، مطلب دا چه د ایمان او عمل صالح د بې مثله راحتونو اونعمتونو مقام جنت دې.

په څلورم آیت کښې د جنتیانو هغه مخصوص حالات بیان شوې دی چه جنت ته د رسیدو نه پس به ئې وی اول دا چه ﴿دَعْوٰىهُمْ فِيهَا سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ﴾ دلته د دعوی مشهوره معنی مراد نه ده چه مدعی ئې د حریف په مقابله کښې کوی بلکه دلته ئې معنی دعاء ده چه جنتیان به جنت ته په رسیدو داسې کوی [سبحنك اللهم] یعنی د الله تعالی تسبیح وائی.

دلته سوال دا پیدا کیږی چه په عرف عام کښې خو دعاء د یو څیز خواست کولو او مقصد طلب کولو ته وئیلې شی، خو په ﴿سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ﴾ کښې خو نه خواست شته او نه طلب شته، بیا ورته څنګه دعا وئیلې شوې ده؟

جواب ئې دا دې چه دلته دا ښودل مقصود دی چه جنتیانو ته به په جنت کښې هر راحت او هر مطلب د خپلې خوښې په انداز کښې پخپله حاصل وی، د یو څیز د خواست کولو او غوښتلو به هیڅ ضرورت نه وی، ځکه به د دعا په ځاې کومه چه د خواست او طلب عامه معنی ورکوی، د جنتیانو دعا د الله تعالی تسبیح وی، او هغه هم د دنیا په شان دیو عبادت د ادا کولو په دول به نه وی بلکه دا به د لذت او خوند محسوسولو په خاطر وی چه په خپلې خوشحالې سره به ﴿سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ﴾ وائی. بله خبره دا ده چه په یو حدیث قدسی کښې الله تعالی فرمائی، کوم بنده چه زما ثنا صفت هر وخت په دې شان بیانوی چه دعا غوښتلو د پاره هم ترې نه نۀ اوزګاریږی نو زه به ورته د ټولو غوښتونکو نه زیات غوره څیز ورکوم(۱) یعنی بغیر غوښتو به د هغه ټول کارونه پوره کوم په دې بنا هم ﴿سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ﴾ ته دعا وئیلې شی.

په دې لحاظ سره د صحیح بخاری او د مسلم په یو حدیث کښې راغلې دی چه کله به رسول الله ﷺ ته څه تکلیف یا پریشانی راپیښه شوه نو دا دعا به ئې فرمائیله لا اله الا الله العظیم الحلیم لا اله الا الله رب العرش العظیم لا اله الا الله رب السموات ورب الارض ورب العرش الکریم.

امام طبری رحمه الله فرمائیلې دی چه پخوانو بزرګانو به دې ته د کرب [غم او مصیبت] دعا وئیله او د مصیبت او پریشانۍ په وخت به ئې د دې کلماتو لوستلو سره دعا غوښتله، تفسیر قرطبی] (۲)

د امام ابن جریر او ابن منذر رحمه الله وغیره نه د یو روایت مطابق کله به چه د جنتیانو څه خواهش یا ضرورت وی نو [سبحنك اللهم] به وائی د دې په اوریدو به ورته فرشتې د ده د مطلب څیز حاضر کړی ګویا د [سبحنك اللهم] کلمه به د جنتیانو یوه خاص اصطلاح وی چه د دې په ذریعه به خپل خواهش ښکاره کوی او ملائیکې به ئې هر څل پوره کوی[روح المعانی و قرطبی] (۳) په دې لحاظ سره هم ﴿سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ﴾ ته دعا وئیلې شی.

---

(۱) مسند البزار، رقم الحدیث: ۳۷

(۲) صحیح البخاری، کتاب الدعوات، باب الدعاء عند الکرب: ج ۲، ص ۹۳۹، وصحیح مسلم، کتاب الذکر والدعاء الخ، باب دعاء الکرب: ج ۲، ص ۳۵۱، وتفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۸، ص ۳۳

(۳) تفسیر الطبری رقم الحدیث: ۱۷۵۳۳ وتفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۸، ص ۳۱۳، وتفسیر روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۷، ص ۴۴۳

Scanned with Ca

د جنتیانو بل حال بیان کړې شو ﴿وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَٰمٌ﴾ په عرف کښې [تحية] هغه کلمې ته وئیلې شی چه خلق ئې هر کلې د پاره استعمالوی لکه سلام یا خوش آمدید، پخیر راغلې، هر کله راشې، وغیره شو.

په دې آیت کښې اوښودلې شو چه د الله تعالی پخپله یا د هغه د فرشتو تحیة به سلام سره وی، یعنی دا زیرې به وی چه تاسو به د هر تکلیف او ناخوښه څیز نه په امن او سلامتیا کښې ئې، دا سلام پخپله د الله تعالی د اړخه هم کیدې شی لکه په سورت یس کښې فرمائی ﴿سَلَٰمٌ قَوْلًا مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ﴾ او د فرښتو د اړخه هم کیدې شی لکه بل ځای کښې فرمائی ﴿وَالْمَلَٰٓئِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ ۝ سَلَٰمٌ عَلَيْكُم﴾ [یعنی په جنتیانو باندې به د هرې دروازې نه فرښتې ﴿سَلَٰمٌ عَلَيْكُم﴾ وئیلو سره داخلیږی] او دا دواړه څکه کیدې شی چه کله به پرې الله تعالی سلام وائی او کله به پرې فرښتې وائی، ـــــ د سلام لفظ اګرچه په دنیا کښې دعا ده مګر جنت ته په رسیدو به دا زیرې څکه وی چه د جنتی هر یو مقصد به حاصل وی دعا او خواست او طلب ته به ئې هیڅ ضرورت نه وی [اروح] ـ (۱)

د جنتیانو دریم حال ئې دا اوښودلو ﴿وَءَاخِرُ دَعْوَىٰهُمْ أَنِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ [یعنی د جنتیانو آخری دعا به ﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ وی]

مطلب دا دې چه هر کله چه جنتیان جنت ته اورسیږی نو د الله تعالی په معرفت کښې به ئې ترقی کول نصیب شی، لکه چه حضرت شهاب الدین سهروردی رحمه الله په خپله یوه رساله کښې فرمائی چه عامو جنتیانو ته به په جنت کښې هغه مقام حاصل شی کوم چه په دنیا کښې عالمانو ته حاصل وی، عالمانو ته به هغه مقام حاصل شی چه په دنیا کښې د پیغمبرانو علیهم السلام وی او پیغمبرانو علیهم السلام ته به هغه مقام حاصل شی کوم چه په دنیا کښې د محمد رسول الله ﷺ وو او سردار د انبیاؤ محمد رسول الله ﷺ ته به هغه مقام حاصل شی کوم چه الله تعالی ته د انتهائی زیات نزدیکت مقام وی، کیدې شی چه دا هغه مقام وی کوم د پاره چه رسول الله ﷺ د دعا کولو ښودنه امت ته کړې ده.

خلاصه دا ده چه د جنتیانو ابتدائی دعا به ﴿سُبْحَٰنَكَ ٱللَّهُمَّ﴾ او اخری دعا به ﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ وی، په دې کښې د الله تعالی دوه قسمه صفتونو ته اشاره ده، یو صفت د جلال دې چه د هر عیب نه د پاکیدو ذکر ئې په کښې دې او بل صفت د اکرام دې چه په کښې د هغه د بزرګی د ډیر لوئیوالی او د اعلی کمال بیان دې چنانچه د قرآن کریم په یو آیت ﴿تَبَٰرَكَ ٱسْمُ رَبِّكَ ذِى ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ﴾ کښې دې دواړه قسمه صفتونو ته اشاره کړې شوې ده، چه غور اوکړې شی نو معلومیږی چه سبحانیت د الله تعالی د جلال صفت دې، او د ثنا، صفت جوګه کیدل ئې صفت د اکرام کیدې شی.

او د ترتیب طبعی په جوړ صفتونه د جلال د صفتونو د اکرام نه وړاندې دی څکه به جنتیان په اول کښې جلالی صفتونه د الله تعالی په لفظ د ﴿سُبْحَٰنَكَ ٱللَّهُمَّ﴾ بیانوی او په آخر کښې به ئې د

---

(۱) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج۷، ص ۳۳۲

Scanned with Ca

اکرام صفتونه د ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ د لفظ سره بیانوی چه شپه ورځ به نې هم دا کار وی.
د دې درې وارو حالاتو طبعی ترتیب به داسې وی چه هر کله جنتیان ﴿سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ﴾ وائی، نو الله تعالی به ورته په جواب کښې سلام وائی، د دې په نتیجه کښې به جنتیان [الحمد لله رب العلمين] وائی [روح المعانی] (١)

**احکام او مسائل:** امام قرطبی رحمه الله په احکام القرآن کښې فرمائیلې دی چه په خوراک څښاک او تولو کارونو کښې، د جنتیانو د دې عمل په جوړ سنت طریقه داده چه شروع دې بسم الله سره کولې شی او په الحمد لله دې ختمولې شی، چنانچه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه الله تعالی دا خوښوی چه بنده کله خوراک څښاک کوی نو په بسم الله سره دې شروع کوی او په فارغیدو دې الحمد لله وائی.

مستحب دا دی چه دعا کونکې دې په آخر کښې دا وائی ﴿وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ او قرطبی رحمه الله فرمائیلې دی چه زیاته غوره خبره دا ده چه دې سره دې د سورت صافات دا آخری آیتونه ﴿سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۝ وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۝ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ هم او لولی. (٢)

| |
|---|
| وَلَوْ يُعَجِّلُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ |
| او که چرې \| جلتی کولې \| الله \| دپاره دخلقو |
| او که الله ﷻ خلقو ته بدی هم داسې زر |
| الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ لَقُضِيَ اِلَيْهِمْ اَجَلُهُمْ |
| په رسولو دشر \| پشان دزر غوښتلو ددوی \| نیکئ لره \| نو فیصله شوې به ووَ \| مهلت دعمل ددوی \| |
| ښکاره کولې \| څومره چې دوی د ښیګړې په باره کښې تلوار کوی نو ددوی نیته به [پخوا] پوره شوې |
| فَنَذَرُ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ۝ |
| نو پریږدو مونږه \| هغه کسان \| چې نه لری امید \| دملاقات زمونږ \| په سرکشئ دهغوئ کښې \| چې سرګردانه به وی |
| وه \| نو مونږ هغه خلق چې زمونږ دملاقات امید نه ساتی \| پخپله سرکشئ کښې سروهلی بروهلی پریږدو |
| وَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنْۢبِهٖٓ اَوْ قَاعِدًا |
| او کله چې \| اورسیږی \| انسان ته \| تکلیف \| نو رابلی مونږه \| پروت په اړخ خپل \| یا په ناسته \| |
| او کله چې په انسان باندې سخته راشی \| نو هغه وخت کښې مونږ رابلی \| هم په ملاسته هم په |
| اَوْ قَآئِمًا فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهٗ مَرَّ كَاَنْ لَّمْ |
| یا په ولاړه \| نو هر کله چې لرې کړو مونږه \| دهغه نه تکلیف دهغه \| نو تیر شی \| الکه چې \| هغه هډو نه ووَ کړې |
| ناسته او هم په ولاړه \| خو بیا چې کله مونږ ترې تکلیف لرې کړو \| نو داسې [په مخه] روان شی \| الکه |

(١) روح المعانی تحت هذه الآيات: ج ٧، ص ۳۲۲ نه ۳۲۳ پورې.
(٢) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ٨، ص ۳۱۳
(٢) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ٨، ص ۳۱۳

يَدْعُنَآ اِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ

اواز موږ ته | دفع کولو دهغه ضرر ته چې رسیدلی ووهغه ته | دغه شان | ښائسته کړې شوې دي |

چې ده هلو په دغه سخته کښې موږ رابللی نه وو | داسې دحد نه تیریدونکو خلقو ته

لِلْمُسْرِفِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۱۲ وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا

دپاره دحدنه داوړیدونکو خلقو | هغه عملونه | چې ووهغوئ | چې کول به ئې || او په تحقیق سره | هلاک کړل موږه

دهغوئ کارونه ښائسته کولې شي || او یقیني طور موږ ستاسو نه مخکښې ډیر نسلونه تباه کړي دي

الْقُرُوْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا ۙ وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ

خلق دزماني | چې ووږمخکښې ستاسونه | هر کله چې | ظلم اوکړو هغوئ || او راغلي ووهغوئ ته | رسولان دهغوئ

هر کله چې به د حد نه تیر شو | او هغوئ ته دهغوی پیغمبران په واضحه دلیلونو سره راغلي وو

بِالْبَيِّنٰتِ وَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ۱۳

دواضحه نښو سره | اونه ووهغوئ | چې ایمان ئې راوړي وي | ادارنګې | بدله ورکوو موږه قوم | مجرمانو ته

خو هغوئ د ایمان راوړلو خلق نه وو . | موږ مجرمانو خلقو ته دغه شان سزا ګانې ورکوو

ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِي الْاَرْضِ مِنْۢ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ

بیا | اوګرځولي موږ تاسو | روستو پاتې کیدونکي | په زمکه کښې | روستو دهغوئ نه | دپاره ددې چې اوګورو موږه

بیا موږ تاسو دهغوئ نه پس په مخ د زمکې نائبان جوړ کړني | د دې دپاره چې اوګورو

كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ۱۴ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيَاتُنَا بَيِّنٰتٍ ۙ

چې څه رنګې | عمل کوئ تاسو | او کله چې | اولوستې شي | په هغوئ باندې | آیتونه زموږه | واضحه

چې تاسو څنګه کارونه کوئ || وهر کله چې دوئ ته زموږ څرګنده آیتونه اولوستې شي انو خوک چې

قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَآ اَوْ بَدِّلْهُ ؕ

نو وایي: هغه کسان | چې امید نه لري | د ملاقات زموږ | راوړه | یو قرآن | چې بدل وي ددې نه | یا بدل کړه دا قرآن

زموږ د ملاقات امید نه لري | هغوئ وائي چې ددې نه بغیر یو بل قران راوړه | یا هم په دې کښې (لږه ډیره) تبدیلي اوکړه

قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآئِ نَفْسِيْ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ

ورته اووایه | چې نه ښائي | ماله چې بدل کړم دا قرآن | د طرفه | د نفس خپل نه | نه کوم پیروي زه |

ورته | ووایه چې څه داسې نشم کولي | چې د خپل خانه په دې کښې بدلون اوکړم | زه خو په هغې حکم

اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ۚ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ

مګر | دهغه حکم | چې وحي کیږي | ماته | بیشکه زه | یریږم | که نافرماني اوکړه زه | د رب زما | دعذاب

پسې روان یم | کوم چې ماته دوحي په ذریعه رارسي | که زه دالله ﷻ دحکم نا فرماني اوکړم انو د (قیامت)

يَوْمٍ عَظِيْمٍ ۱۵ قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا تَلَوْتُهٗ عَلَيْكُمْ وَلَآ

دورځې لوئ | ورته اووایه | که چرې غوښتلي الله | نه به وو اوروله ما دا قرآن | په تاسو . | او نه به

په ورځ دلویې عذاب نه ویریږم | نه ورته اووایه که دالله ﷻ رضا وي | نو ما به دا کلام تاسو ته اورولي نه وي

Scanned with Ca

أَدْرٰىكُم بِهٖ ۖ فَقَدْ لَبِثْتُ فِيكُمْ عُمُرًا

الله خبردر کړي ووتاسوته | په دې قرآن | نو په تحقیق سره اوسیدلی وم زه | په تاسو کښې | ډیر عمر

او نه به پرې | الله ﷻ تاسو خبر کړې وې | او بیا زه خو په تاسو کښې ددې نه پخوا ډیر عمر پاتې شوې یم

مِّن قَبْلِهٖ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٦﴾ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى

مخکښې ددې نه | آیا نه چلوئ عقل تاسو | نو څوك دې | زیات ظالم | دهغه چانه | چې اوتړی هغه

آیا تاسو دعقل نه کار نه اخلئ . | نو د هغه چا نه غټ ظالم به څوك وی | چې په الله ﷻ باندې د دروغو

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ۚ إِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ

په الله باندې | دروغ | یا دروغ اوګڼړی | آیتونه دهغه | بیشکه شان دادې چې | خلاصې نه شی مومندلې

تهمت لګوی | یا دهغه ریښتونې نښې دروغ ګڼړی | بیشکه مجرمان نشی کامیابیدې

الْمُجْرِمُونَ ﴿١٧﴾

مجرمان خلق |

## آسان ترجمه قرآن

اوکه الله تعالی دې (کافرانو) خلقوته په بدئ (یعنی عذاب) ورکولو کښې هم دومره د تلوارنه کار اخستو څومره تلوار چه دوی په خیر غوښتو کښې کوې نو ددوی مهلت به ختم کړې شوې وو (لیکن داسې تلوار څوئکه دحکمت خلاف دے) نو څوك چه مونږ سره (آخرت کښې) د ملاویدو امید نه لرې مونږ دوی لره د دوی په حال باندې پرېږدو چه دوی په سر کشئ کښې حیران او پریشان وې. اوکله چه یو انسان ته تکلیف ورسی نو هغه په ملاسته، په ناسته او ولاړه (هرحالت کښې) مونږ رابلی بیا چه مونږ کله د ده نه هغه تکلیف لرې کړو نو دې داسې شی لکه چه ده څه تکلیف کښې مونږ هېڅ رابللي هم نه وو کوم خلق چه دحد نه تیر ووځی هغوی ته خپل کارونه دغسې ښائسته معلومیږی اومونږ ستاسونه مخکښې (څو)قومونه په هغه موقع باندې هلاك کړي وو چه کله هغوی ظلم کړې وو، او دهغوی پیغمبرانو هغوی ته روښانه دلائل راوړي وو، اوهغوی داسې نه وو چه ایمان ئې راوړې وې. او داسې مجرمانو ته مونږ هم داسې بدله ورکوو بیا دهغوی نه وروستومونږ تاسولره زمکه کښې جانشین جوړکړل دې دپاره چه دا وګورو چه تاسوڅنګه عمل کوئ؟ اوهغه خلق چه (آخرت کښې) څمونږ سره د ملاویدو امید نه ساتي چه کله هغوی ته څمونږ آیتونه لوستې شي چه هغه بالکل واضح وي نو هغوی وائي چه: دا نه، چرته بل قرآن راوړه یا دې کښې بدلون وکړه (اې پیغمبره) ته ووایه چه: ما ته دا حق نشته چه څه په دې کښې د خپل څان نه څه بدلون وکړم. څه د بل څه نه صرف د هغه وحې تابعداری کوم چه ما ته نازلولې شی که څه چرته د خپل رب نافرمانئ وکړم نو څه دیو زبردستې ورځې دعذاب نه ویریږم. ته ووایه چه که الله غوښتله نو ما به دا قرآن تاسو ته نه وو وئیلې، او نه به الله تاسو په دې باندې پوهه کړي وئ نو دې نه مخکښې خو ما تاسو کښې عمر تیر کړې دې، آیا بیا هم تاسو دعقل نه کار نه اخلئ؟ بیا د هغه کس نه به

Scanned with Ca

لوئ ظالم څوك وي چه په الله پاندې دروغ جوړوي یا دالله آیتونه دروغ گڼي؟ یقین وکړه چه مجرمان نه کامیابیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَوْ يُعَجِّلُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ لَقُضِيَ إِلَيْهِمْ أَجَلُهُمْ فَنَذَرُ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴾ اوکه چیرې الله تعالى زرپه خلکو [ددوی د زرغوښتلو موافق ]په جلدئ سره نقصان واقع کولې لکه څنګه چه دوی دفائدې دپاره زرغوښتنه کوي [اوددې موافق هغه فائده زرواقع کوی دغه شان که نقصان ئی هم واقع کولی]نوددوی وعده [دعذاب]به زرپوره کیده[لیکن زمونږ حکمت چه اوس بیانیږی څنګه چه ددی مقتضی نده] پس [په دی وجه ]مونږ هغو خلکو لره چه زمونږ سره دملاقات امید نشته ددوی په حال [بی دعذاب نه یو څوورخی ]پاتی کوو چه دوی پخپلی سرکشی کښی سرګردانه ګرځی [اودعذاب مستحق شی ، اوهغه حکمت هم داده

﴿ وَإِذَا مَسَّ الْإِنْسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنْبِهِ أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهُ مَرَّ كَأَنْ لَمْ يَدْعُنَا إِلَىٰ ضُرٍّ مَسَّهُ ﴾

اوکله چی انسان ته [په دوی کښي بعضوته ] څه تکلیف رسي نو مونږ لره اوازکوي په ملاستي هم په ناستي هم په ولاړي [اودغه وخت ورته څه بت وغیره نه وی یاد : ضَلَّ مَنْ تَدْعُونَ إِلَّا إِيَّاهُ] بیاچه کله [ددي دعاء اوزاری نه پس] مونږ دده هغه تکلیف لری کړو نو بیا په خپل حالت راشی [اوزمونږ نه داسی بی تعلقه شی ]چه ګویا کوم تکلیف چه ده ته رسیدلی وو دهغی لری کیدو لپاره ده کله هم مونږ نه وو بللی [اوبیاهغه دشرك خبری شروع کړی :[نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُو إِلَيْهِ مِنْ قَبْلُ وَجَعَلَ لِلّٰهِ أَنْدَادًا] دي.

﴿كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ دی دحدنه تیریدونکوته خپل [بد]عملونه داسی ښانسته معلومیږی [لکه چه مونږ ئی اوس بیان کړی دی ]

﴿ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوا وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ وَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ﴾ اومونږ ستاسونه وړاندی دیرو ډلولره [په قسماقسمو عذابونو سره ] هلاك کړي دی کله چه دوی ظلم [یعنی کفر اوشرك]وکړو حال دادی چه دوی ته ددوی پیغمبرانو هم دلیلونه راوړي وو اودوی [په وجه دعناد سره ]داسی کله وو چه ایمان ئی راوړی وی مونږمجرمانوخلکوته هم دغسی سزاورکوو [لکه چه اوس مونږ بیان کړه.

﴿ ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ مِنْ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴾ بیاددوی نه پس مونږ په دنیاکښی دهغوی په ځای تاسو لره اباد کړه ددی لپاره چه[په ظاهری طورسره هم] مونږ ووینو چه تاسو څنګه کار کوئ [چه ایا همدغه شان شرك اوکفر کوی که ایمان راوړئ].

﴿ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ ﴾اوکله چه ددوی مخکی زمونږ ایاتونه لوستلی شی چه بالکل صاف صاف دی نو داخلك کوموچه زمونږ طرف ته دراتلو امید نشته[تاته داسی وائی چه [یاخو ]ددی نه سوا څه [پوره ]بل قرآن راوړه [چه په هغی کښی زمونږ دمسلك خلاف مضامین تری حذف کړی اوددی بیان نه داهم معلومه شوه چه دغو خلکو قرآن لره کلام محمدی [ص ] منلو الله تعالى جواب ورکوی چه ] ته ورته داسی ووایه چه [علاوه ددی نه چه ددداسی مضامینو حذف کول څنګه دي پخپله ] زمانه داسی نشی کیدي چه دخپل طرف نه

بدي كښې ترميم وكړم [او هر كله چه د بعضو حذف كول هم ممكن ندي نو د ټولو حذف كول خو په طريقه اولى غير ممكن دى ځكه چه داخو بالكل زما كلام ندى بلكه د الله كلام دى كوم چه دوحي په ذريعه راغلى دى هر كله چه خبره داسې ده نو ] زه خو د دې تابعداري كوم كوم چه ماته دوحي په ذريعه راغلى دى.

﴿ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنۡ عَصَيۡتُ رَبِّي عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٖ ﴾ [او فرضا خداى مكړه ]كه زه [ دوحي تابعداري ونكړم بلكه ]دخپل رب نافرماني وكړم نو ځه ديوې ډيرى لوئى ورځى دعذاب نه ويريږم [هغه چه دګنهګارو لپاره مخصوصه ده او ستاسو په نصيب كښې دګناه په وجه ده پس زه خو د دغى عذاب يادى دسبب يعني ګناه جرائت نشم كولې

﴿ قُل لَّوۡ شَآءَ ٱللَّهُ مَا تَلَوۡتُهُۥ عَلَيۡكُمۡ وَلَآ أَدۡرَىٰكُم بِهِۦ ﴾ اوكه دوى دې لره وحي نه منى او ستا كلام ئې منى نو] ته ورته ووايه چه [داخو ظاهره ده چه دا كلام خو معجزدى يو بشر په دى نشي قادريدى خواكه زه يم اوكه تاسو پس] كه الله ته منظوره وي [چه زه دا معجز تاسو ته وانه ورووم او الله تعالى زما په ذريعه تاسو ته ددې خبر درنكړي]نو [په مابه ئې دانه وونازل كړى پس ]نه به ما تاسو ته دا [كلام] اوروولى وواونه به الله تعالى تاسو ته ددې اطلاع دركړى وه [پس هر كله چې ئې تاسو ته بيانوم او زما په واسطه تاسو ته اطلاع كيږي نو ددې نه معلومه شوه چه الله تعالى ته ددې معجز كلام اورول او اطلاع كول منظور شواو اورول او اطلاع كول بغير دوحي نه په وجه ددې دمعجز كيدو ممكنه نده ،ددې نه معلومه شوه چه دا نازله شوى وحئ او كلام الهى دى].

﴿ فَقَدۡ لَبِثۡتُ فِيكُمۡ عُمُرٗا مِّن قَبۡلِهِۦٓۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ﴾ ځكه چه [آخر] ددى [كلام ظاهرولو]نه وړاندې هم يوه لويه برخه دعمرپورې زه په تاسو كې اوسيدلى يم [بياكه دا زما كلام وي نو بيا خو به ددومره وخته پورې يوه جمله هم ددې طرزنه وو وتلى او بيا بيانا څاپه دومره لويه خبره جوړول داخو بالكل دعقل نه خلاف ده ] بيا آيا تاسو دومره عقل نلرئ [پس هر كله چه ددې كلام الهى او حقوالى ثابت شو او بيا هم زمانه ترميم غواړئ او دانه منئ نو پوهه شئ چه ].

﴿ فَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوۡ كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِهِۦٓۚ ﴾ ددغې سړي نه زيات ظالم څوك دى كوم چه په الله دروغ وتړي [لكه چه زما دپاره تجويز كوئ ]يا دهغه اياتونه دروغژن كوئ[لكه چې دخان دپاره تجويز كړي دي ]. ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ ٱلۡمُجۡرِمُونَ ﴾ يقينا داسې مجرمانو لره به هيڅكله كاميابي نه وي [بلكه هميشه به په عذاب وي ].

### معارف او مسائل

د دې آيتونو نه رومبې آيت د آخرت د منكرو خلقو سره تړون داسې لرى چه هر كله هغوى د آخرت د عذاب نه يرولې شي نو هغې پورې په دې شان خندا كوى چه كه رښتيا دغه عذاب راتلونكې وى نو سمدستى ئې راوغواړې يا ولې دا عذاب زر تر زره نه راځي؟ لكه چه نضر بن حارث وئيلې وو : يا الله كه دا خبره رښتيا وى نو په مونږ باندې د آسمان نه كانړى راو ورووه يا څه بل سخت عذاب رابانديې راوليږه.

په دې رومبى آيت كښې د دې جواب داسې وركړې شوې دې چه الله تعالى خو په هر څه قادر دى، دغه وعده كړې شوې عذاب خو اوس اوس سمدستى هم نازلولې شى خو د خپل زور حكمت او د خپل لطف او كرم په خاطر داسې نه كوى، دا نا پوهه خلق چه په خپل حق كښې دعا كوى او مصيبت طلب كوى، كه الله تعالى د دوى دا خبرې هم په داسې شان زر قبلولې څنګه ئې

چه ښه دعا اکثر قبلوي نو دوی ټول به هلاک شوي وو.
معلومه شوه چه الله تعالى ښه او د خير دعا د خپل عادت مطابق اکثر او زر قبلوي، او کله ئې چه د حکمت يا مصلحت په بنا زر قبوله نه کړي نو دا ورسره څه منافي نه ده، مگر کوم انسان چه د خپلې ناداني يا د غصې او خفگان له کبله خپل ځان يا مال بچ د پاره خيرې اوکړي، يا د آخرت د انکار په بنياد، عذاب د آخرت لوبه، توقه گڼري او خپل ځان د پاره سمدستي غواړي نو الله تعالى ئې سمدستي دغه بلنه او غوښتل نه قبلوي بلکه ډيل په دې غرض ورکوي چه غور او فکر اوکړي او دغې انکار کولو نه منع شي، که څه وخت ئې د خفگان غصې او زړه تنگيدو له خبرې کړې وي نو د دې په قبلولو کښې ئې ډيل ځکه کولې شي چه خپل ښه او بد اوپيژني او په انجام باندې ئې نظر کولو سره د دې نه منع شي.
امام ابن جرير طبري رحمه الله په روايت د قتاده رضي الله عنه او امام بخاري او مسلم په روايت د مجاهد رحمه الله نقل کړې دي چه دلته د خيرو نه مراد دا دې چه کله يو انسان د غصې په حالت کښې د خپل اولاد يا مال دولت د تباه کيدو خيرې اوکړي، يا په دغې ځيزونو باندې د لعنت الفاظ اووائي نو الله تعالى په خپل لطف او کرم سره دغه خيرې زر نه قبلوي.[1] امام قرطبي رحمه الله دلته يو بل روايت داسې نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ما د الله تعالى نه سوال کړې دې چه هغه، د خپل عزيز يا دوست د پاره د چا کړې خيرې قبولې نه کړي ـــــــ او شهر بن حوشب رحمه الله فرمائيلې دي چه: ما په بعضې کتابونو کښې لوستې دي چه کومې فرشتې د انسانانو په حاجتونو پوره کولو باندې مقرر دي هغوی ته الله تعالى په خپل فضل او کرم سره دا هدايت ورکړې دې چه زما يو بنده په غم، خفگان او غصه کښې څه نقصاني خبره د خلې نه اوباسي هغه مه ليکئ. [قرطبي][2]
خو بيا هم د قبليدو وخت داسې وي چه د بنده د خلې نه وتې خبره سمدستي قبليږي، په دې بنا رسول الله ﷺ فرمائيلې دي چه خپل اولاد او مال د پاره هيچرې خيرې مه کوئ، هسې نه چه دغه وخت د دعا د قبليدو وي او سمدستي دغه خيره قبوله شي [او تاسو پرې پښيمانه شئ] په صحيح مسلم کښې دا حديث د حضرت جابر رضي الله عنه په روايت د بواط د غزا د واقعې په ضمن کښې نقل کړې شوې دې.[3]
د دې ټولو روايتونو حاصل دا دې چه د دې آيت اصل خطاب اگر چه د آخرت منکرانو ته دې چه هغوی د سمدستي عذاب راوستو غوښتنه کړې وه خو د دې په عموم کښې هغه مسلمانان هم داخل دي چه د غم، خفگان، يا د غصې له کبله خپلو ځانونو يا خپل مال اولاد د پاره خيرې کوي، چنانچه د الله تعالى عادت په خپل فضل وکرم سره دا دې چه داسې خيرې سمدستي ځکه نه قبلوي چه انسان ته د سوچ او فکر کولو موقع ملاو شي.
په دويم آيت کښې د توحيد او آخرت منکران په يو بل بليغ انداز سره د دې خبرې قائل کړې شوي دي چه په عامو حالاتو کښې کله چه دوی اسوده او په آرام وي، د الله تعالى او د آخرت په خلاف حجت بازي کوي او نور مخلوق الله تعالى سره شريکان گرځوي او هغوی نه د حاجت

[1]) صحيح البخاري، كتاب التفسير، سورة يونس وقال ابن عباس فاختلط به الآية: ج ۲، ص ۶۷۱
[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۳۱۵
[3]) صحيح مسلم، كتاب الزهد، باب حديث جابر الطويل وقصة أبي اليسر: ج ۲، ص ۴۱۵

روائي امید و نه لري خو د مصیبت راتلو په وخت کښې دغې تولو ته شا کړي او یواځي الله تعالی ته سوالونه کوي، په ناستې ملاستې او ولاړې الله تعالی لره بلي، خو چه الله تعالی ترې هغه مصیبت لرې کړي نو د هغه احسان بالکل هیر کړي او داسې ورته شا کړي چه ګویا دوی هیچرې بللې نه وي او نه ئې ترې څه خپل حاجت غوښتې وي. دې نه معلومه شوه چه الله تعالی سره په حاجت روائۍ کښې څوک بل شریک ګرځونکې خلق د خپلې عقیدې باطلوالې پخپله وینې ګوري خو بیا هم په خپلې دغې باطلې عقیدې باندې ټینګ وي چه خالص ضد او عناد دې.

په دریم آیت کښې د دویم آیت زیات وضاحت او تاکید په دې شان شوې دې چه هر کله الله تعالی ډیل ورکړي نو څوک دې دا نه ګڼړي چه ګنې عذاب بیخي نه شي راتلې، ولې چه په پخوانو قومونو باندې د هغوی د سرکشۍ او نافرمانۍ په سزا کښې مختلف قسم عذابونه هم په دې دنیا کښې راغلې دي. د رسول الله ﷺ په خاطر اګرچه په دې امت کښې عام عذاب راتلل بند شوي دي خو د الله تعالی د دې مهربانۍ له کبله خلق داسې بې باکه شوي دي چه د الله تعالی عذاب ته ډیر په بې باکۍ سره بلنه ورکوي، لیکن یاد لري چه د الله تعالی د عذاب نه بې فکره کیدل په هیڅ حالت کښې څکه جائز نه دي چه الله تعالی په دې امت باندې د عام عذاب نه راوستو اګرچه وعده کړې ده مګر په خاص خاص ګسانو او قومونو اوس هم عذاب راتلې شي.

په څلورم آیت کښې فرمائي: ﴿ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِي الْاَرْضِ مِنْۢ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ﴾ یعنی د تیرو شوو قومونو د هلاکولو نه پس مو د هغوی ځایونه تاسو ته درکړل او د زمکې واکمن مو تاسو جوړ کړې، خو دې نه مطلب دا مه اخلې چه د زمکې دا واکمني مو درته ستاسو د مزو چرچو کولو د پاره درکړې ده، بلکه ستاسو امتحان اخستل د دې اصل مقصد دې چه تاسو به څنګه عمل کوئ، چه د پخوانو امتونو د تاریخ نه په عبرت اخستو سره به خپل اصلاح کوئ او که د حکومت او دولت په نشه کښې به مستیږئ؟

د دې نه معلومه شوه چه د دنیا حکومت او اقتدار څه د فخر او ویاړ څیز نه دې بلکه دا یو داسې درونډ پیټې دې چه ذمه داریانې ئې ډیرې دي.

د پنځم نه اتمه پورې څلورو آیتونو کښې د آخرت د منکرانو د یو غلط خیال او بې ځایه فرمائش تردید کول دي، دې خلقو نه خداې پیژندلو، نه د وحی او پیغمبرۍ د سلسلې نه خبر وو، پیغمبران ﷺ ئې هم د عامو انسانانو په شان ګڼړل، په رسول الله ﷺ باندې د الله تعالی نازل کړې قرآن کریم ئې هم د رسول الله ﷺ کلام او تصنیف ګڼړلو او په دې بنا ئې د رسول الله ﷺ نه دا غوښتنه اوکړه چه د دې قرآن په ځاې مونږ ته بل قرآن راوړې څکه چه دا څو زمونږ د اعتقادونو او نظریو خلاف دې. زمونږ پلارانو، نیکونو به بتانو لره حاجت روا ګڼړلو او د دې تعظیم به ئې کولو او قرآن کریم د دې برعکس خبرې کوي، ډیر داسې څیزونو او زمونږ رواوو معاملو ته حرام وائي، او بیا راته لا دا هم وائي چه د مرګ نه پس به بیا ژوندي کیدل وي او حساب کتاب ورکول به وي، دا ټول څیزونه زمونږ په پوهه کښې نه راځي څکه د دې منلو ته مونږ تیار نه یو اوس تاسو داسې اوکړئ چه د دې په ځاې بل قرآن کریم جوړ کړئ په کوم کښې چه زمونږ د عقیدو او معاملو په خلاف هیڅ قسم خبرې نه وي، یا په کښې چانړ اوکړئ او دا قرآن د دې څیزونو نه پاک کړئ.

قرآن کریم اول د دوی د غلط اعتقاد تردید اوکړو او رسول الله ﷺ ته ئې دا هدایت اوکړو چه

Scanned with Ca

تاسو ورته اووائې چه دا قرآن کریم زما خپل کتاب نه دې ځکه په کښې د هیڅ بدلون راوستو توان نه لرم، زه خو صرف د الله تعالی د وحی تابع یم، که په خپل اختیار سره په دې قرآن کښې څه بدلون راولم نو سخت گناهگار به شم او د نافرمانو خلقو د پاره د مقررشوی لوئې عذاب نه سخت یریږم ځکه داسې نه شم کولې.

بیا ئې اوفرمائیل چه: زه هر څه د الله تعالی د فرمان په تابعدارې کښې کوم که د الله تعالی دا خوښه وې چه دا کلام تاسو ته واو نه رولې شی نو نه به مې تاسو ته اورولې وو او نه به الله تعالی پرې خبر کړې وې او کله چه الله تعالی ته دا منظوره ده چه هم دا کلام تاسو ته واورولې شی نو څوک به داسې اوکړې شی چه په دې کښې به زره برابر کمې زیاتې راولې؟

وریسې فرمائی چه دا کلام ځکه خالص د الله تعالی کلام دې چه ﴿فَقَدْ لَبِثْتُ فِيكُمْ عُمُرًا مِّن قَبْلِهِ﴾ [یعنی تاسو خو لږ شان سوچ اوکړې چه د قرآن کریم د نازلیدو نه وړاندې ما تاسو سره څلویښت کاله تیر کړې دی، په دې موده کښې چرې تاسو زما نه شعر، کلام یا لیکلې مقاله نه ده اوریدلې، که داسې مې د خپله ځانه څه کلام وئیلې شوې نو کم نا کم په دې څلویښت کاله کښې به مې څه خو وئیلې وو] د دې نه علاوه په دې څلویښت کاله کښې به تاسو زما د چال چلن معلومات اخستې وی چه ټول عمر مې دروغ نه دی وئیلې نو بیا به اوس ولې دروغ وایم؟ دې نه په ډاگه ثابته شوه چه رسول الله ﷺ صادق او امین دې، قرآن ټول د الله تعالی کلام دې چه هم د هغه د اړخه راغلې دې۔

ډیره ضروری فائده: د قرآن کریم دې دلیل پیش کولو یواځې دا مکمل کار او نه کړو چه قرآن کریم د الله تعالی کلام ثابت شو بلکه په عامو معاملاتو کښې د کره، کوټه د حق او د باطل د پیژندلو یو اصول ئې هم اوښودلو، هغه داسې چه کله چا ته یو مرتبه او منصب سپارل وی نو د هغه د قابلیت او صلاحیت د معلومات اخستو بهترین اصول دا دی چه د هغه د تیر کړی ژوند اندازه واخستې شی که تیر شوې ژوند ئې په رښتیاؤ او امانتدارې کښې تیر کړې وی نو آینده کښې هم ترې ددې امید کیدې شی او که تیر شوی ژوند نه ئې د دې ثبوت نه شی موندې نو راتلونکی وخت د پاره یواځې د ده په دعوو او وعدو باندې اعتبار کول څه هوښیاری نه ده، نن صبا د عهدو او منصبونو په سپارلو کښې چه څومره غلطې کیږی اوبیا د هغې نه لوې فسادونه پیدا کیږی د هغې اصلی وجه داده چه د فطرت اصول پریږدی او رسمی څیزونو له د هغې ځاې ورکړی،

په اتم آیت کښې هم د دې مضمون زیات تاکید داسې راغلې دې چه په دروغه باندې یو کلام لره الله تعالی ته په منسوب کولو سره د سخت عذاب ورکولو بیان دې۔

| |
|---|
| وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا |
| \| اوداخلق عبادت کوی \| ماسوادالله نه \| د هغې چې ضررنشی رسولې دوی ته \| اونه |
| اودوی دالله ﷻ نه سوا دداسې څیزونو عبادت کوی \| چې نه ورته نقصان رسولې شی \| او نه فائده |
| يَنفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِندَ اللَّهِ ۚ قُلْ |
| نفع رسولې شی دوی ته \| اووائی دوی \| چې دا \| سفارشیان دی زمونږه \| په دربار دالله کښې \| اووایه اے نبی |
| او وائی چې دوی دالله ﷻ په دربار کښې سفارشیان دی \| ......... ورته اووایه آیا تاسو |

Scanned with Ca

أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ ۚ

آیا خبرورکوئ تاسو | الله ته | په هغه څیز | چی معلوم نۀ دې هغه ته | په آسمانونو کښی | او نه په زمکه کښی

الله ﷻ دهغه خبرې نه خبروئی | کومې چې هغه ته نه خو په آسمانونو کښې معلومې دی | او نه په زمکه

سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُونَ ۝ وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّا أُمَّةً

پاك دې هغه | او اوچت دې | دهغه څیزنونه چه شریك کوی نې دوئ | او نۀ وو | دا خلق | مګر | امت

کښې هغه پاک دې | او ددوئ دشرک نه ډیر اوچت دې | او [په اول] کښې خلق په یو لار روان وو | بیا په

وَّاحِدَةً فَاخْتَلَفُوْا ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ

یو | روستو اختلاف اوکړو هغوئ | او که نه وې | خبره هغه | چی مخکښی فیصله شوی ده | د طرفه درب ستانه

کښې اختلاف پیدا شو | او که ستا د پروردګار د طرفنه اول یو خبره فیصله شوې نه وې | نو د دوی

لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيْمَا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۝

نو خامخا به فیصله شوی وه | په منځ د دوئ کښی | په هغه څیز کښی | چی په هغې کښی | اختلاف کوی دوئ

په مینځ کښې به ددې اختلاف په حقله [ پخوا ] فیصله شوې وه | او دوئ چې وائی چې ولې په ده

وَيَقُوْلُوْنَ لَوْلَآ أُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۚ فَقُلْ إِنَّمَا

او وائی دوئ | ولې نازله نۀ کړې شوه | په ده باندې | څه نښه | د طرفه درب خپل نه | نو او وایه | چی بیشکه

باندې [زمونږ د وینا مطابق] دخپل پروردګار نه یوه نښه نه راځی | نو ته ورته او وایه چې

الْغَيْبُ لِلّٰهِ فَانْتَظِرُوْا ۚ إِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ۝

غیب علم | الله لره دې | نو انتظار کوئ تاسو | بیشکه زۀ | ستاسو سره | د انتظار کونکونه یم |

د غیبو اختیار صرف یو الله سره دې | نو تاسو انتظار اوکړئی | زه هم تاسو سره انتظار کونکې یم

## آسان ترجمه قرآن

او دا خلق د الله نه علاوه د هغه (دروغو خدایانو) عبادت کوي چه دوی ته نقصان نه شي رسولې او نه فائده رسولې شي او وائي چه دا خلق څمونږ سفارش کوي الله ښخه. (اې پیغمبره ! دوی ته) ووایه چه: آیا تاسو الله ته دهغه څیز خبر ورکوئ چه دهغې وجود دالله په علم کښ نه په آسمانونو او نه په زمکه کښ شته؟ (حقیقت دا دې چه) الله تعالی د داسې د شرك د خبرونه بالکل پاك او اوچت دې. او (شروع کښ) ټول انسانان د یو دین که صرف د یو دین قائل وو بیا وروستو دوی خپلو کښ اختلاف وکړو او جدا جدا شو. او که ستا د پروردګار د طرف نه یو خبره د اول نه فیصله شوې نۀ وې نو کومه معامله کښ چه دا خلق اختلاف کوي، دهغې فیصله به (دنیا کښ) شوی وه. او دا خلق وائي چه: په دې نبي باندې د دۀ د رب د طرف نه څه نښه ولې نه ده راغلې؟ نو (اې پیغمبره ! په جواب کښ) ووایه چه: د غیبو خبرې خو صرف دالله په اختیار کښ دي — نو تاسو انتظار کوئ څه هم تاسو سره انتظار کوم.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ ﴾ او داخلك [توحيد د] دالله پريږدي دداسي څيزونوعبادت كوي كوم چه [دعبادت نه كولو په صورت كي ]نه دوى ته ضرر رسولي شي اونه دعبادت كولو په صورت كي ]دوى ته نفع رسولي ى شي او[دخپل طرف نه بي دليله يوه نفع جوړوي ]وائى چه دا [معبودان ] دالله سره زمونږ سفارشيان دي [پدى وجه مونږ ددوى عبادت كوو].

﴿ قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ ته ووايه چه آياتاسوالله تعالى ته داسي شى ښائى كوم چه الله تعالى ته معلوم ندى نه په اسمانونو كښي نه په زمكه كښي [يعنى كوم شى چه د الله تعالى په علم كي نه وي دهغى واقع كيدل اووجود محال دى نوتاسوپه يومحال شي پسي ئى ] الله تعالى پاك اولوى دى ددى خلكودشرك نه.

﴿ وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّا أُمَّةً وَاحِدَةً فَاخْتَلَفُوا ﴾ او [اول]ټول بنى ادم په يوه طريقه وو [يعنى ټول موحدان وو څكه چه ادم [عليه السلام] دتوحيد دعقيدي سره راغلي وودده اولادهم تريوى زمانى پورى په دي عقيده اوطريقه وو ]بيا [بخپلو كږيدوسره ]دوى [يعنى بعضو ]اختلاف پيدا كړو[يعنى دتوحيدنه وكرزيدل مشركان شو.

﴿ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيمَا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴾ اودامشركان خلك داسى دعذاب مستحق دي چه ]كه يوه خبره نه وى كومه چه ستادرب دطرف نه اول مقررشويده [چه پوره عذاب به دوى ته اوس نه بلكه په اخرت كښي وركولى كيږي ]نوپه كوم شى كښى چه داخلك اختلاف كوى ددوى قطعى فيصله به [په دنياكښى ]شوى وه.

﴿ وَيَقُولُونَ لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِنْ رَبِّهِ ﴾ اوداخلك [په وجه دعنادد سونومعجزوښكاره كيدوباوجود اوخاصكر دقرآن معجزه ليدواوددي د مثال نه دعاجزكيدوباوجود]داسى وائى چه په ده [يعنى محمد [صلى الله عليه وسلم] زمونږ دفرمائشى معجزونه ]څه معجزه ولى نه نازليږى؟

﴿ فَقُلْ إِنَّمَا الْغَيْبُ لِلَّهِ فَانْتَظِرُوا إِنِّي مَعَكُمْ مِنَ الْمُنْتَظِرِينَ ﴾ ته ووايه چه [دمعجزى اصل مقصد درسول رشتنوالى اوحقوالى ثابتول وي اودغه خوپه ډيرومعجزوسره شوى دى اوس دفرمائشى معجزو ضرورت بيخى نشته هان امكان شته چه ظاهرى شى اوياظاهرى نشى ددى تعلق دعلم غيب سره دى او ]دغيبوعلم فقط څداى لره دى [ماته نشته ]پدى وجه تاسو هم منتظراوسئ زه هم ستاسو سره انتظاركوم [چه ستاسو هريوفرمائش پوره كيږى اوكه نه اودفرمائشى معجزودنه ظاهرولوحكمت په قرانكريم كښى څو ځايه خودلى شوى دى چه ددي ظهورنه بعد دالله تعالى عادت دادى چه كه بياهم ايمان رانه وړى نوټول قوم هلاكولي شى الله تعالى ته ددى امت لپاره داسي عام عذاب منظورندى بلكه دوى لره ترقيامته پورى باقى ساتلو تقدير مقررشوى دى ].

## معارف او مسائل

**کافران اومسلمانان دوه بيل بيل قومونه دي،د نسل او قوم په لحاظ بيل بيل قوم جوړول عبث او بې کاره دي:**

﴿ وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّا أُمَّةً وَاحِدَةً ﴾ [يعنى د آدم عليه السلام اولاد په شروع كښي يو قوم او يو امت يو اخي د

موحدینو وو، د کفر او شرک نوم هم په کښې نه وو، بیا چه توحید کښې ئې اختلاف اوکړو نو مختلف قومونه او مختلفې ډلې ترې جوړې شوې، د امت د یو والی او د مسلمانۍ زمانه تر د حضرت نوح ﷺ زمانې پورې وه، د حضرت نوح ﷺ په زمانه کښې کفر او شرک ښکاره شو چه حضرت نوح ﷺ ئې مقابله اوکړه [مظهري] (۱)

د حضرت آدم ﷺ نه تر د حضرت نوح ﷺ پورې یوه اوږده زمانه ده په دغه زمانه کښې د بنیادمو نسلونه او آبادي په دنیا کښې ښه زیاته خوره شوې وه، چه رنګونه او د ژوند تولې طریقې هم په کښې مختلف کیدل یوه طبعي خبره ده، مختلفو علاقو ته په ورغزیدو سره یقینا چه د دوی وطنونه هم ګڼ او بیل بیل شوې وو، خو قرآن کریم دغه نسبي، قبائیلي، د رنګ او وطن اختلاف لره چه فطري او طبعي څیزونه دي د امت د یو والی د پاره ضروري او نقصاني او نه بلل او نه ئې په دغه بنیاد باندې بیل بیل قومونه او بیل بیل امتونه او بلل، بلکه په دغه زمانه کښې دغه ټول خلق ئې یو امت اوبلل، البته کله چه د ایمان په خلاف کفر او شرک خور شو نو کافران او مشرکان ئې بیل بیل امت اوبللو لکه وروستو فرمائي ﴿فَاخْتَلَفُوا﴾ چنانچه د قرآن کریم بل یو آیت ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ﴾ (۲) دا مضمون نور هم داسې په ډاګه کړو چه د الله تعالی مخلوق اولاد آدم ﷺ لره په مختلف قومونو کښې تقسیمونکې څیز صرف د ایمان او اسلام نه اوریدل دی، ولې چه د نسبي او وطني رشتو په اختلاف سره بیل بیل قومونه جوړیږي، په دې بنا باندې بیل بیل قومونه جوړول نوې بې وقوفي او نوې جهالت دی چه د نوې رنړا پیدا وار دې، او نن صبا ډیر تعلیم یافته خلق دې نیشنلزم پسې شو چه زرګونه فتنې او فسادونه ئې په بدوه دی، اعاذالله المسلمین منه۔

| مَسَّتْهُمْ | مِّنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ | رَحْمَةً | النَّاسَ | أَذَقْنَا | وَإِذَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې رسیدلې وی دوئ ته | دغه مصیبت نه | رحمت روستو | خلقو ته | ور او څکوؤ مونږ | او کله چې |
| او هر کله چې مونږ [ناشکره] خلقو ته د رحمت خوند او څکوو (۳) | | | | له د مصیبت نه پس چې رسیدلی وی ورته | |

(۱) التفسیر المظهري تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۱۷
(۲) ترجمه: الله هغه ذات دے چه تاسو ئې پیداه کړی نو بعضے په تاسو کښې کافر دی او بعضے په تاسو کښې مومنان دی
(۳) د اهل مکې حیله او دهوکه:- په اهل مکه باندې الله تعالی اووه کاله قحط مسلط کړو. هر کله چه هلاکت ته نزدې شو نو ویریدل او نبی کریم ﷺ ته ئې ددعا درخواست اوکړو. او وعده ئې اوکړه چه عذاب اوچت شی نو مونږ به ایمان راوړو . ددوی په دعا سره الله تعالی فضا ښه کړه او قحط لرې شو . نو دوی بیا شرارتونه شروع کړل . د الله تعالی آیتونه ئې په دروغه ګڼړل . او د هغه ذات رحمتونه او قدرتونه ئې نظرانداز کول . بلکه د الله تعالی د نعمتونو نسبت ئې ظاهری اسبابو بې اصل خیالاتو او وهمونو طرف ته کولو.
ددې په جواب کښې الله تعالی فرمائی چه ښه ده تاسو ښه مکرونه او دهوکې اوکړئ . خو یاد ساتئ چه ستاسو دهوکې او حیلې بو بولیکلې کیږی . هغه ټول دفتر به د قیامت په ورځ ستاسو په مخکښې وی . نو هر کله چه ستاسو هیڅ یو دهوکه او فریب د الله تعالی د فرښتونه پټ نه دی نو د الله تعالی د علم نه به څنګه پټ شی. تاسو په خپل مکر او فریب کښې ئې د الله تعالی تدبیر ستاسو د مکر او فریب نه زیات دې. هغه د مجرم واګې دومره سستوی چه مجرم د نشې په غفلت کښې وی او د سزا ...

بقیه په راروانه صفحه

إِذَا لَهُم مَّكْرٌ فِي آيَاتِنَا ۚ قُلِ اللَّهُ أَسْرَعُ

نو فوراً وی دوی لره | بهانه | په آیتونو زمونږ کښی | دوی ته اووایه | چې الله | زیات تیز دی

نو هغوی زر زمونږ د آیتونو په حقله فریبونه شروع کړی | ورته اووایه چې الله ﷻ په فریبونو کښې

مَكْرًا ۚ إِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُونَ مَا تَمْكُرُونَ ﴿٢١﴾ هُوَ الَّذِي

په لحاظ دپټ تدبیر سره | بیشکه | فرښتې زمونږه | لیکی | هغه مکرونه چې کوئ تاسو | هغه | هغه ذات دی

هغوئ نه هم وړاندې دی | بیشکه چې زمونږ استاذې ستاسو فریبونه لګیا دي لیکی | [الله] هغه ذات

يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا كُنتُمْ فِي الْفُلْكِ

چې ګرځوئ تاسو | په اوچه کښی | او په دریاب کښی | تردې پورې | چې کله | سواره شئ تاسو | په کشتو کښی

دی چې تاسو (۱) په اوچه مزکه او په سمندر کښې ګرځوی | تردې چې کله تاسو په کشتئ کښې سواره شئ

وَجَرَيْنَ بِهِم بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ وَفَرِحُوا بِهَا

اوروانې شی | ددغه خلقو سره | په باد | بنه موافق سره | اوخوشحاله شی هغوئ | په هغې سره

او هغه بیړئ دا خلق د موافق بادونو په ذریعه روان کړی | او دوئ پرې خوشحاله شی

جَاءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ وَجَاءَهُمُ الْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَظَنُّوا

نو راشی هغه کشتئ ته | باد | تیز مخالف | او راشی هغوئ ته | چپې | دهرخائې نه | او ګمان وشی دهغوئ

نو په دې کښې پرې ناڅاپه د مخالف بادونو یوه چپه راشی | او دهرطرف نه پرې د اوبو چپې راخورې شی

أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ ۙ دَعَوُا اللَّهَ

چې بیشکه هغوئ چې دی | احاطه اوکړې شوه | په هغوئ باندې | نو په دغه وخت کښی رابلې | الله

او دوئ پوهه شی | چې [بس] اوس مو راګیر شو | نو هغوئ الله ﷻ ته آواز اوکړی | ډیر په اخلاص

...بقیه دتیرمخ].. ورته هډو (دسره) تصور نه وی . هرکله چه د بدبختئ پیمانئ ډکه شی نو بیائې راونیسی لهذا عاقل ته پکار دی چه دالله تعالی نرمئ اوښه حالاتو په کتلو سره مغروره کیدل نه دی پکار نه ده معلوم چه دنرمئ نه پس څنګه سختئ راتلونکې ده . لکه څنګه چه مخکښې دبحرسفر په مثال کښې بیان فرمائی .

(۱) بیا ارشاد فرمائی چه الله تعالی ستاسو دَ اوچې اولوندې دَ سفر دپاره تاسو له آسانتئ راپیدا کړې او په اوبو کښې دننه هم هغه تاسو په خپله پناه او حفاظت کښې اخلی او چه کله تاسو په کشتو کښې نې هواګانې دا کشتئ چلوی نو تاسو د هغې په نرم رفتار یا تیزوالې باندې خوشحالیږئ. نوچې بالکل د خوشحالئ په وخت دا کشتئ دهوا تیزې چپې راګیرې کړی او د هرطرف نه موجونه وی نو ستاسو دا یقین پیدا شی چه اوس خو هلاک شو نو په دې وخت کښې په زارو زارو دَ الله تعالی نه دعا ګانې غوارئ، په دغه وخت کښې تاسو ته نه یو صنم یاد وی او نه یو بت، لات او هبل، بلکه هم مونږ ته چغې وهئ. نو چه کله الله تعالی تاسو د سمندر غاړې ته صحیح سالم اورسوی نو بیا زمونږ نه مخ اړونئ. انسان ډیر ناشکره دی. دلته اوونیلې شو چه ﴿دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ یعنی ډیر مخلص جوړ شی رابلل کوی، او دا وائی که ته مونږ ته د دې مصیبت څخه خلاصې راکړې نو مونږ به ډیر شکر ګذار شو او چه کله هغه دوی ته نجات ورکړی نود الله تعالی په ملك کښې هغوی ناحقه شرارت کوی لکه چه په دوی چرې څه مصیبت راغلې نه وو.

مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ لَئِنْ اَنْجَيْتَنَا مِنْ هٰذِهٖ

چي خالص کونکي وي | هغه لره | دين | که چرې | خلاصي راکړې تا مونږ لره | ددې مصيبت نه

سره | که تا مونږ [ددې طوفان] نه خلاص کړو | نو مونږ به ستا ډير ډير شکر ادا کړو

لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٢٢﴾ فَلَمَّآ اَنْجٰىهُمْ اِذَا هُمْ

نو خامخا به شو مونږه | دشکر کونکونه | نوهر کله چي | خلاصي ورکړو دوئ ته الله | نو بيا دوئ

خو هر کله چي الله ﷻ ورته نجات ورکړي | نو لا ساعت تير شوې نه وي | چي دوئ د زمکي په مخ

يَبْغُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۭ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا بَغْيُكُمْ

بغاوت کوي | په زمکه کښې | په ناحقه سره | اے خلقو | بيشکه | بغاوت ستاسو[1]

برناحقه سرکشي شروع کړي | ..........اې خلقو! داستاسو سرکشي هم ستاسو په خپلو

عَلٰٓي اَنْفُسِكُمْ ۙ مَّتَاعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۡ ثُمَّ اِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ

په نفسونو ستاسو باندې دي | نفعه | دژوند ددنيا ده [وې کړئ] | بيا | مونږ ته | واپسي د ستاسو

سرونو راپريوتونکي ده | ددنيا ژوند [ ديو خوورخو ] فائده ده | [مزې په کښې اوکړئ] بيا هم مونږ

فَنُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٢٣﴾ اِنَّمَا مَثَلُ

نو مونږ به خبر درکړو تاسو ته | په هغه عمل | چي وئ تاسو | چي کوئ به تاسو | بيشکه | مثال

ته واپسي ده | نو مونږ به درته ستاسو ټول کارونه ښه په ګوته کړو | د دنيا د ژوند حال خو بس داسې

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَاۗءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَاۗءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ

دژوند | ددنيا | پشان داوبو دي | چي نازلې کړې مونږه هغه | داسمان نه | نوګډ اوشو | په دې سره

دې | لکه مونږ دبره نه اوبه راوروو | نو دهغې په ذريعه دزمکې نه ګڼ سبزې رازرغون شي | چي خلق او خاروي

نَبَاتُ الْاَرْضِ مِمَّا يَاْكُلُ النَّاسُ وَالْاَنْعَامُ ۭ حَتّٰٓي اِذَآ اَخَذَتِ الْاَرْضُ

پيداوار دزمکې | دهغې نه | چه خوراك کوي انسانان | اوخاروي | ترهغې پورې | کله چي | واغستو زمکې

ټول ئې خوري | تر دې چي زمکه [ په ښه شان ] خپل رونق ته اورسيده | اوښائسته شوه

زُخْرُفَهَا وَازَّيَّنَتْ وَظَنَّ اَهْلُهَآ اَنَّهُمْ قٰدِرُوْنَ

ښايست خپل | اوښائسته شوه | اوخيال اوکړو | مالکانو دهغې | چي بيشکه هغوئ | قادر دي

او مالکانو ئې دا خيال اوکړو | چي د هغوئ په لاس کښې راتلونکي ده | په دې کښې [ناګهانه]

---

[1]) بيا ارشاد کيږي ﴿يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلٰٓي اَنْفُسِكُمْ﴾ اې خلقو ستاسو دَ بغاوت نقصان به په تاسو وي ښه باد ساتئ چه په بل چا باندې به د دې هيڅ نقصان نه وي. لکه څنګه چه په حديث شريف کښې دي چه د الله تعالى نه بغاوت او صله رحمي نه کول دوه داسې ګناهونه دي چه په آخرت کښې خو به عذاب وي ولې په دنيا کښې به هم ډير زر د دې سزا ملاويږي. (ابوداؤد:۴۹۰۲ ترمذي:۲۵۱۱) په دې نه پاتې کيدونکي دنيا کښې ستاسو د پاره د يو خوورخو متاع ده بيا ستاسو واپس کيدل هم زمونږ طرف ته دي. اوچه کله زمونږ طرف ته واپس شئ نو ستاسو په ټولو اعمالو به تاسو پوهه کړې شئ. او د دې به پوره پوره بدله درکولې شي. چاته چه ښه بدله ملاوشوې وي نو هغه خو به د الله تعالى شکر اداکړي اوچاته چه سزا ملاوشي هغه به خپل ځان ملامت کوي.

| |
|---|
| عَلَيْهَآ اَتٰىهَآ اَمْرُنَا لَيْلًا اَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنٰهَا |
| په فائده دهغې باندې \| انوراغې هغې ته \| حکم زمونږ \| دشپې \| یا دورځې \| نو اوګرځوله مونږ هغه زمکه |
| زمونږ حکم ورته د شپې یا د ورځې اورسیدو \| نو هغه مو داسې سپینه داګه کړه |
| حَصِيْدًا كَاَنْ لَّمْ تَغْنَ بِالْاَمْسِ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ |
| ریبلی شوی \| لکه چې نه اوسیدل هیڅوک هلته \| پرون \| دارنګې \| واضحه بیانوو مونږ \| آیتونه |
| لکه چې پرون په کښې هډو هیڅ نه وو \| امونږ هم دغسې خپل آیاتونه په تفصیل سره بیانوو \| هغه کسانو ته چې |
| لِقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝۲۴ |
| دپاره دهغه قوم \| چې فکر کوی \| |
| دفکر نه کار اخلی \| |

## آسان ترجمه قرآن

اود انسانانو حال دادئ چه کله هغوی ته د رسيدونکی تکليف نه پس مونږ په هغوی د رحمت مزه اوڅکوو، نوپه لږ وخت کښې هغوی زمونږ د نښو باره کښې چالبازی شروع کوی، (ورته) اووايه چه: الله ددیٔ نه هم زر څه چال چلولې شی، يقيناً زمونږ فرښتې ستاسو ټولې چالبازۍ ليکی. هم دغه الله دیٔ چه هغه په تاسو په اوچه کښې هم او په سمندر کښې هم سفر کوی تردیٔ چه کله تاسو په کشتو کښې سوريږئ، او دغه کشتۍ خلق روان کړی د خوشګوارې هوا سره په اوبو دپاسه روانه شی او خلق په دیٔ خبره خوشحاله شی، نو اچانک په هغوی باندې يوه تيزه هوا راوالوځی، او د هر طرفه په هغوی باندې څپې راوچتې شی او هغوی داګنړی چه هغوی د هر طرفه ګيرشول. نوپه دغه وخت هغوی خلوص سره صرف په الله باندې اعتقاد کوی، صرف هغه رابلی (او وائی چه: يا الله!) که تا مونږ ته ددیٔ (مصيبت نه) نجات راکړو نو مونږ به ضرور بالضرور په شکرګذارو خلقو کښې شامل شو ليکن کله چه الله هغوی ته نجات ورکړی نو زيات وخت نه وی تيرشوې چه هغوی په زمکه کښې په ناحقه سرکشی شروع کړی اې خلقو! ستاسو دا سرکشی په حقيقت کښې پخپله ستاسو خلاف پريوځی، اوس خو د دنياوی ژوند مزې واخلئ آخر به مونږ ته ستاسو واپس راتلل وی، په هغه وخت به مونږ تاسو ته وښايو چه تاسو به څه څه کول. د دنياوی ژوند مثال خو داسې دیٔ لکه چه مونږ د آسمان نه اوبه راووروليږې، چه دهغې په وجه د زمکې نه زرغونيدونکی هغه څيزونه ښه راټوکيدل، چه هغې لره انسانان او ځناور خوری، تردیٔ چه کله زمکې خپل داکالی واخوستل، او ډول سنګار کولو سره ښائسته شوله او دهغې مالک پوهه شو چه بس اوس دا پوره زما په قابو کښې ده، نو د شپې يا د ورځې په وخت کښې زمونږ حکم راغې (چه دیٔ باندې ږ آفت راغی) او مونږ هغوی د بيخې د لو شوې ږمکې په شان داسې کړل لکه چه دوی پرون نه وو او دغه شان مونږ دا نښې د هغه خلقو د پاره صفا صفا بيانوو چه د سوچ او فکر نه کار اخلی.

### خلاصه تفسير :

**حل لغات:** عاصف تيزه سخته هوا: حصيدا کټ شوی فصل :کان لم تغن دادغنی بالمکان نه

مشتق دی يوځای كښي قيام كولوته وائي.

﴿ وَإِذَآ أَذَقْنَا ٱلنَّاسَ رَحْمَةً مِّنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُمْ إِذَا لَهُم مَّكْرٌ فِىٓ ءَايَاتِنَا ﴾ اوكله چه مونږ خلكوته پس دد ينه چه په دوی څه مصيبت راغلی وي دڅه نعمت مزه وڅكوو نوفورا څمونږ داياتونو په باره كښې شرارت شروع كړي [يعنی ددې تری وكړي اوتوقی مسخری وريوری كوي اوپه اعتراض اوعناد سره دنوړومعجزوفرمايشونه كوي اودتير مصيبت نه عبرت نه اخلي پس معلومه شوه چه ددوی داعتراض اصل سبب دالله تعالی دنازلوكړومعجزواواياتونونه ددې كول ددنيا په نعمتونوكي د مستيدونه پيداشويده وراندي دعذاب زورنه ده چه ].

﴿ قُلِ ٱللَّهُ أَسْرَعُ مَكْرًا ۚ إِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُونَ مَا تَمْكُرُونَ ﴾ ووايه چه الله تعالی به ددی شرارت سزا ډير زردركړي په يقين سره زمونږه فرشتي ستاسوتول شرارتونه ليكي [پس پوهاخي دانه چه په علم الهی كی محفوظ دی په ليكلوسره هم محفوظ دی].

﴿ هُوَ ٱلَّذِى يُسَيِّرُكُمْ فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا كُنتُمْ فِى ٱلْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِم بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ وَفَرِحُوا۟ بِهَا جَآءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ ﴾ هغه [الله ]داسی دی چه تاسو په وچويه اودرياب كښی كرځوي [يعنی په كوموالاتواواسبابوسره چه تاسوگرځی دغه ټول الله تعالی پيداكړي دي اودركړيدي ترددی چه[ بعضی وخت ]كله تاسوپه كشتئ كښي سواره ئی اودغه كشتئ خلكولره په موافق هواسره روان كړی وي اودغه خلك په [رفتارد]دي خوشحاله وي [بدي حالت كښی ناساپه]په دوی يوه چپه د [مخالفی] هواراشی.

﴿ وَجَآءَهُمُ ٱلْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ ۙ ﴾ اودهرطرف نه په دوی چپی راپورته شوی وی اودوی گنی چه [په بدحال] كيرشو [دغه وخت ].

﴿ دَعَوُا۟ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ لَئِنْ أَنجَيْتَنَا مِنْ هَٰذِهِۦ لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ﴾ تول په خالصه عقيده سره الله لره په رابللوشی [چه ای الله ]كه ته مونږ لره ددی[مصيبت]نه بچ كړی نومونږ به خامخا حق پيژندونكی[يعنی موحدين ]جوړشو[يعنی دغه وخت دتوحيد په عقيده باندی قائم شی ].

﴿ فَلَمَّآ أَنجَىٰهُمْ إِذَا هُمْ يَبْغُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ۗ ﴾ بياچه كله الله تعالی دوی لره[ددی هلاكت نه ]بچ كړی نوفورا دوی په زمكه [يعنی دځمكی په مختلفو حصو ]كښی په ناحقه سركشی كونكی شي [يعنی په شرك اوگناه كښی اخته شی].

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُم ۖ مَّتَٰعَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ فَنُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾
ای خلكو[واورئ ]داستاسوسركشی ستاسو وبال كيدونكی ده [بس]په دنيوی ژوند كښی [الږ ددی نه] فائده واخلئ بياتاسولره زمونږ خواته راتلل دي بيا به مونږ تاسوته ستاسوتول كړي دروښايواوسزابه نی دركړو].

﴿ إِنَّمَا مَثَلُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا كَمَآءٍ أَنزَلْنَٰهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَٱخْتَلَطَ بِهِۦ نَبَاتُ ٱلْأَرْضِ مِمَّا يَأْكُلُ ٱلنَّاسُ وَٱلْأَنْعَٰمُ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذَتِ ٱلْأَرْضُ زُخْرُفَهَا وَٱزَّيَّنَتْ وَظَنَّ أَهْلُهَآ أَنَّهُمْ قَٰدِرُونَ عَلَيْهَآ أَتَىٰهَآ أَمْرُنَا لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنَٰهَا حَصِيدًا كَأَن لَّمْ تَغْنَ بِٱلْأَمْسِ ۚ ﴾ بس ددنيادژوند حالات خوداسي دی لكه چه مونږ داسمان نه اوبه ووروويبا په دي [اوبو]سره دځمكي شينكي كوم چه خاروي خوري ښه كن راوخيژی ترددی چه دغه ځمكه كله خپل پوره رونق ونيسي اوښه خائسته شي [خائسته ښكاره شی شينكي سره ] اوددی ځمكي مالكان گمان وكړي چه اوس مونږ په [فصلونود]دی بالكل قابض شو نو[په داسي حالت كي دورځی يادشپي په دي زمونږ دطرف نه څه حادثه راپريوځی [الكه ږلئ ياسوكره

یا بل څه آفت ] پس مونږ دي لره داسې صاف کړو چه ګویا پرون [ دلته] دغه موجود نه وو.
﴿ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝﴾ [پس ددې نباتاتو په مثل ددنیا ژوند دی مونږ دغه شان ایتونه صاف صاف بیانوو دداسې خلکو [دپوهولو] لپاره کوم چه سوچ کوي.

## معارف او مسائل

﴿ قُلِ اللّٰهُ اَسْرَعُ مَكْرًا ۭ ﴾ د عربي لغت د مخې [مکر] پټ تدبیر ته وئیلې شي چه ښه او بد دواړه کیدې شي، د اردو ژبې د محاورې نه په دهوکه کښې مه پریوځې، چنانچه په اردو ژبه کښې د [مکر] الفظ دهوکې او فریب د پاره استعمالیږي چه د الله تعالی د شان سره جوړښت نه لري.
﴿ اِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ ۙ ﴾ [یعنی ستاسو د ظلم وبال هم په تاسو راځی، دې نه معلومه شوه چه د ظلم وبال یقیني دې او د آخرت نه وړاندې په دنیا کښې د دې تیرول راتللې شي.
په حدیث شریف کښې راغلې دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل [چه الله تعالی د خپلولې پالونکو او خلقو سره د احسان او ښیګړې کوونکو بدله هم زر ورکوی [یعنی د آخرت نه وړاندې په دنیا کښې د دې برکتونه ښکاره کیږي] او د ظلم او خپلولې پریښولو بدله هم زر ورکوی [چه په دنیا کښې ئې هم سزا تیرول راځی] [دا حدیث ترمذی او ابن ماجه روایت کړې دې په حسن سند سره [۱]
او په یو حدیث کښې په روایت د حضرت عائشې رضی الله عنها راغلې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل؛ درې ګناهونه داسې دی چه د هغې وبال هم دهغې په کوونکو باندې راځی، د ظلم، بې لوظی او د دوهوکې تګې. [ابوالشیخ او ابن مردویه په تفسیر کښې روایت کړې دې، مظهری] [۲]

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لِقَوْمٍ | يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝ | وَاللّٰهُ | يَدْعُوْٓا | اِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ۭ | وَيَهْدِيْ | مَنْ |
| دپاره دهغه قوم | چې فکر کوی | او الله | رابلی | کور د سلامتیا ته | اولاره ښائی | هغه چاته |

دفکر نه کار اخلی | او الله [ ددې مقابله کښې ] دسلامتیا کور ته رابلل کوی | او چاته چې ئې خوښه شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَّشَاۗءُ | اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ | | لِلَّذِيْنَ | اَحْسَنُوا |
| چې اوغواړی هدایت دهغه | لارې نیغې ته | | دپاره دهغه کسانو | چې نیکه لار ئې اختیار کړه |

نو په نیغه لار ئې روان کړی | ...........کوم کسان چې نیکان دی د هغوی دپاره

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْحُسْنٰى | وَزِيَادَةٌ ۭ | وَلَا يَرْهَقُ | وُجُوْهَهُمْ | قَتَرٌ | وَّلَا ذِلَّةٌ ۭ | اُولٰۗىِٕكَ |
| ښه بدله ده | او زیات فضل | او نه به راخوریږی | په مخونو دهغوی باندې | رسوائی | او نه ذلت | دا کسان |

ښکلې بدله ده | او [د الله دیدار په کښې لا] زیاتې هم دې | دهغوی په مخونو به نه تیاره راخوریږی او نه ذلت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ | هُمْ | فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ ۝ | وَالَّذِيْنَ | كَسَبُوا |
| صاحبان د جنت دی | هغوی به | په هغې کښې | همیشه اوسیږی | او هغه کسان | چې کسب ئې اوکړو |

دغه خلق جنتیان دی | او همیشه به په دې کښې اوسیږی | او چا چه ګناهونه کړی وی | نو د ګناه سزا به

[۱] جامع الترمذي، أبواب الزهد، باب منه قبيل أبواب صفة الجنة: ج ۲، ص ۷۷، وسنن ابن ماجة، كتاب الزهد، باب البغي: ج ۲، ص ۳۱۰
[۲] التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۱۹ وكنز العمال رقم الحديث: ۴۴۰۸۰

Scanned with Ca

السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۢ بِمِثْلِهَا ۙ وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ مَا لَهُمْ

دبدو | نویدله | دبدئ | په قدر دهغې ده | اوخور به وی په هغوئ باند | ذلت | نه به وی دهغوئ دپاره

بده وی | اوذلت به پرې راخور شی | او هیڅوک به نې دالله ﷻ د عذاب نه بچ نه کړی

مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ كَاَنَّمَآ اُغْشِيَتْ وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ

دالله نه | څوك بچ كونكې | لكه چې | راخوره شوی وی | په مخونو دهغوئ باند | ټوټه | دشپې نه

دهغوئ په مخونو باندې داسې تیرې خورې ښكاری | لكه چې د تورې شپې ټوټې پرې راخورې

مُظْلِمًا ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٧﴾ وَيَوْمَ

توره | دا كسان | صاحبان دوور دی | هغوئ به | په هغې كښې | همیشه وی | اوپه كومه ورځ

شوې وی | هم دغه خلق دوزخیان دی | همیشه به په كښې [الوغړنا] پراته وی | .............او په كوم ورځ

نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا مَكَانَكُمْ

چې راجمع كړومونږه | ټول | بیا به اووایو مونږه | هغه كسانوته | چې شرك ئې كړې دی | ودریږئ په خپل ځائې

چې مونږ دوئ ټول رایوځائې كړو | نو مشركانو ته به اووایو | چې تاسو | و ستاسو [جوړ كړی] خدایان

اَنْتُمْ وَشُرَكَآؤُكُمْ ۚ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ وَقَالَ شُرَكَآؤُهُمْ

تاسو | اوشریكان ستاسو | انولرې په كړونا اشناوالې | په منځ دهغوئ كښې | اواوبه وائې | شریكان دهغوئ

په خپل ځائې اودریږئ | نو بیا به د دوئ تر مینځه جدائی راولو | اودهغوئ [جوړ كړی] شریكان به

مَّا كُنْتُمْ اِيَّانَا تَعْبُدُوْنَ ﴿٢٨﴾ فَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًۢا

چې نه وئ تاسو | چې خاص مونږ لره | به عبادت كوئ تاسو | نو كافی دې | الله | په لحاظ دګواهئ سره

ورته اووائی | چې تاسو خو زمونږ عبادت هیڅكله نه كولو | الله زمونږ او ستاسو په مینځ كښې ګواه كافی دې

بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اِنْ كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغٰفِلِيْنَ ﴿٢٩﴾

په منځ زمونږ | اوپه منځ ستاسو كښې | بیشكه وو مونږه | دعبادت ستاسو نه | بالكل ناخبره

چې مونږ خو ستاسو دعبادت نه خبر هم نه وو | نو په دغه وخت كښې به هر سړې دخپل عمل اندازه

هُنَالِكَ تَبْلُوْا كُلُّ نَفْسٍ مَّآ اَسْلَفَتْ

په دغه وخت كښې به | [جاج واخلی] مزه اوڅكی | هر انسان | دهغه څه | چې مخكښې ئې كړی وی

اولګوی | چې دخان نه مخكښې ئې څه لیږلې وو | او ټول به خپل حقیقی مولی ته واپس كړې شی |

وَرُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا

اوواپس به كړې شی | الله ته | مالك ددوئ | حق ته | اوورك به شی | ددوئ نه | هغه | چې وو دوئ

كوم معبودان چې ئې دخان نه جوړ كړی وو | هغه ټول به ترې ورك شی

يَفْتَرُوْنَ ﴿٣٠﴾ قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ

چې دخانه به ئې جوړول | اووایه | څوك | رزق دركوی تاسو له | داسمان نه | اودزمكې نه

ورته اووایه چې څوك تاسو ته د پورته او د زمكې نه روزی دركوی

Scanned with Ca

أَمَّنْ يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَمَنْ يُخْرِجُ الْحَيَّ

يا څوك دي هغه | چې اختيار لري | د طاقت داوريدو | او د طاقت دليدو | او څوك دي | چې را او باسي ژوندي

يا څوك دي چې ستاسو دغوږونو او د سترګو مالک دي | او څوك دي چې د مړی نه ژوندي راوباسي

مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَنْ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ

دمړي نه | او را او باسي | مړی | د ژوندی نه | او څوك دي هغه | چې انتظام کوی | د هر کار

او د ژوندي نه مړي راوباسي | او څوك دي چې د هر کار انتظام کوی | نو دوی [ به جواب کښې ]

فَسَيَقُولُونَ اللَّهُ ۚ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٣١﴾ فَذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمُ

نو ضرور به وائي دوی | چې الله | نو او وايه اے نبی | آيا نو نه پريږئ تاسو | نو دغه | الله | رب ستاسو دي

او وائی | چې [ د اهر څه ] الله ﷻ کوی | او ورته او وايه چې بيا ولې د شرک نه ځان نه ساتئ | نو هم دغه ستاسو

الْحَقُّ ۖ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ ۖ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ﴿٣٢﴾

حقيقي | نو څه دي | وروستو دحق نه | مګر ګمراهي ده | نو کوم طرفته | ګرځولې کيږئ تاسو |

حقيقي پروردګار دي | نو د حق نه پس نور څه پاتې شو | بغير د ګمراهئ نه | آخر دا تاسو په کوم اړخ روان يئ

## آسان ترجمه قرآن

او الله خلقو لره د سلامتيا کور ته رابلي او چا ته چه وغواړي نو نيغې لارې ته ئې رسوي کومو خلقو چه بهتر کارونه کړي دي بهترين حالت هغوئ دپاره دي ،او ددې نه زيات نور هم ! او د دوی مخونو ته به نه توروالې ورسي او نه ذلت ، دوی د جنت والا دی، دې کښې به دوی هميشه وی، پاتې شو هغه خلق چه هغوی ګناهونه کړی دی ،نو (دهغوی) د ګناه بدله به د هغې په شان بده وي او په دوی به ذلت خوروې او د الله (د عذاب) نه به دوی لره څوك هيڅ کونکې نه وي، دوی به داسې وي ګويا چه د دوی په مخونو باندې د تورې شپې ټوټې لګيدلې دي او دوی دوزخ والا دي او دې کښې به دوی هميشه وي. او (ياده کړه) هغه ورځ چه کله مونږ دوی ټول جمع کړو، بيا چه کومو خلقو شرك کړي وو هغوی ته به ووايو چه :"ليږ او دريږئ تاسو هم او هغه څوك هم چه تاسو دالله سره شريك کړي وو! بيا ددوی په مينځ کښې (د عابد او دمعبود) چه کومه رشته وه هغه به مونږ ختمه کړو . او د دوی هغه شريکان به وائي چه: تاسو خو څمونږ عبادت نه وو کړي څمونږ او ستاسو مينځ کښې الله دګواهئ دپاره کافی دې (چه) مونږ ستاسو د عبادت نه ناخبره وو. بيا هريو کس چه تيره زمانه کښې څه کړي وي په دې موقع به ورته پته ولګي او ټول به خپل خالق حقيقي طرف ته واپس شي او کوم دروغ چه دوی جوړ کړي وو هغه به د دوی نه ورك شي.(اې پيغمبره !) دې مشرکانو ته) ووايه چه څوك دې چه تاسو ته د آسمان او زمکې نه رزق درکوي ؟ يا څوك دې چه د کتلو او د آوريدلو د طاقت مالك دې ؟او څوك دې چه ژوندې د مړي نه او مړې د ژوندې نه راوباسي؟ او څوك دې چه د هر يو کار انتظام کوي؟نودا خلق به وائي چه: الله ! نوته ووايه چه : بيا هم تاسو د الله نه نه ويريږئ؟ بيا خو اې خلقو! هغه الله دې چه ستاسو ريښتينې مالك دې بيا دحق واضح کيدو نه وروستو د ګمراهئ نه سوا نور څه پاتې شو؟ددې باوجود تاسو چا کوم طرف ته ألټه روان کړی يئ؟

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاللهُ يَدْعُوٓا إِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ۖ وَيَهْدِي مَن يَشَآءُ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوالله کوردبقاته تاسوبلی اوچالره چه غواړی په نیغه لاردتلوتوفیق ورلره ورکوی[چه په دی سره دآخرت کورطرف ته رسیدل کیدې شي وراندی دجزااوسزابیان دی چه ].

﴿ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ ﴾ کوموخلکونیکی کړیده [یعنی ایمان نی راوړی دی ]ددوي لپاره ښه والی [یعنی جنت ]دی او په دی باندی زیاتی [دالله دیدار ]هم.

﴿ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ وَلَا ذِلَّةٌ ۚ أُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ ﴾ اوددوی په مخونو به نه خړوالی [دغم]خورشی اونه ذلت داخلك په جنت کی اوسیدونکی دي دوي به په هغی کي همیشه اوسی.

﴿ وَالَّذِينَ كَسَبُوا السَّيِّـَٔاتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ بِمِثْلِهَا ۙ وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۖ مَّا لَهُم مِّنَ اللهِ مِنْ عَاصِمٍ ﴾ اوکوموخلکوچه بدکاروکړو[یعنی کفر اوشرك نی وکړو]دوی ته به دبدئ سزاددی برابرمیلاوشي [دبدئ نه به زیاته نه وی]اوپه دوی به ذلت خورشی دوی لره به دالله [دعذاب]نه هیڅوك بچ نه کړي شي.

﴿ كَأَنَّمَآ أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ مُظْلِمًا ۚ أُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ ﴾ [ددوی د مخونو خړوالی به په داسی حالت کښی وی چه ] گویاددوی په مخونوباندی دتوري شپی ټکړی خوری کړی شوی دی داخلك په دوزخ کښی اوسیدونکی دي همیشه به پکښي اوسیږی.

﴿ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا مَكَانَكُمْ أَنتُمْ وَشُرَكَآؤُكُمْ ۚ ﴾ اوهغه ورځ هم دذکرقابله ده په کومه چه مونږدوی ټولو [خلکو]لره به په میدان دقیامت کي جمع کړوبیا[بدي ټولوکی ]مشرکا نوته وواېو چه تاسواوستاسو [تجویز کړی‌شوی ]شریکان[کوم چه تاسو دالله سره په عبادت کی شریك مقررول ]پخپل خای ودریږئ [چه تاسوته ستاسودعقیدي حقیقت درمعلوم کړې شي ].

﴿ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ ۖ وَقَالَ شُرَكَآؤُهُم مَّا كُنتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ ﴾ بیابه مونږ ددوی [عابدینو او معبودانو] په منځ کښی اختلاف واچوو اوددوی هغه شریکان به [دوی ته ]ووائی چه تاسوزمونږ عبادت ندی کړی [ځکه چه په عبادت دمعبودراضی کول مقصوددوي ].

﴿ فَكَفٰى بِاللهِ شَهِيدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغٰفِلِينَ ﴾ پس زمونږاو ستاسوپه منځ کي الله کافی گواه دی چه مونږ ستاسودعبادت نه هیڅ خبرنه وو[اوراضی کیدل خولاپریدئ البته دشیطانانو خودنه وه اوهغه راضي ووپس پدی اعتبارسره تاسودهغوعبادت کولو].

﴿ هُنَالِكَ تَبْلُوا كُلُّ نَفْسٍ مَّآ أَسْلَفَتْ ۚ وَرُدُّوٓا إِلَى اللهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ۖ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴾ په دي مقام به هرسړی په خپل عمل پوهه شی [چه آیاواقعاداعمل نفع مند وواوکه نه ووچنانچه دي مشرکانو ته به هم داحقیقت ښکاره شی چه دکوموعبادت چه مونږ دشفاعت په امید کولوهغوی زمونږ خلاف شهادت ورکړودنفعی به څه امید وکړې ی شی ]اوداخلك به دالله [ج] [عذاب]طرف ته کوم چه ددوی حقیقي مالك دی واپس کړې ی شي اوجوړ کړي شوي معبودان به تری غائب [اوورك ]شي [هیڅوك به نی پکاررانشی ].

﴿ قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ أَمَّن يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصٰرَ وَمَن يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَن يُدَبِّرُ الْأَمْرَ ۚ فَسَيَقُولُونَ اللهُ ۚ ﴾ ته [دي مشرکانوته ]ووایه چه [وښائی] هغه څوك دی کوم چه تاسوته دآسمان اوځمکی نه رزق درکوي [یعنی دآسمان نه باران ورروي اودځمکي نه فصلونه پیداکوي چه په دي سره ستاسورزق تیاریږی ]یا[داوښائی ]چه هغه څوك دی کوم چه

[ستاسو] په غوږونو او سترګو کامل اختیار لري [ چه پیدا هم هغه کړه حفاظت ئې هم هغه کوي او که وغواړي نو بیکاره کولی ئې هم شي ] او هغه څوك دی کوم چه ساه دار [شی ] له بې ساه [شي] نه را وباسي او بې ساه [شی] او ساه دار [شی] نه را ووباسي [لکه نطفه او هګی چه د ساه دار شي نه راوځي او د ساه شي تري پیدا کیږي ] او څوك دی کوم چه د ټولو کارونو تدبیر کوي [ددوی نه تپوس وکړئ] نو خامخا به دوی په [جواب کی] داووائي [چه ددي ټولو کارونو کوونکی] الله [دی]. ﴿فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ﴾ نو دوی ته ووایه چه بیا [دشرك نه] پرهیزولي نه کوئ.

﴿فَذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ ۖ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ ۖ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ﴾ پس [دچا چه داصفتونه ذکرشو] دادی الله کوم چه ستاسو حقیقي رب دی [او بیا هر کله چه حق ثابت شو] بیا دحق نه پس نور څه پاتي شو بغیر دګمراهئ نه [یعنی دحق نه خلاف کار ګمراهي ده او دتوحید حقوالی ثابت شو پس یقینا چه شرك ګمراهي ده ] بیا [حق پریږدئ] کوم خوا [باطل طرف ته ] واپس ګرځئ.

## معارف او مسائل

په تیر شوی آیت کښې د دنیوی ژوند او د دې د ناپائیدارې مثال د هغې فصل سره ورکړې شوې دې چه د اسماني اوبو په خړوبیدو سره ښیرازه شي او هر قسم ګلونه او میوې پرې اولګی، د فصل خاوندان پرې خوشحاله شي چه اوس به په دې سره زمونږ ټول ضرورتونه پوره کیږي، مګر د دوی د نافرمانیانو په وجه د شپې یا د ورځې زمونږ د عذاب څه پیښه پرې راغله چه داسې صفا ئې کړل لکه چه دغلته د دې نه وړاندې هیڅ نه وو، دا خو د دنیا د ژوند حال شو وړیسې د دې په مقابله کښې د دار آخرت حال بیان کړې شوې دې فرمائی؛

﴿وَاللَّهُ يَدْعُو إِلَىٰ دَارِ السَّلَامِ﴾ [یعنی الله تعالی انسان لره دارالسلام ته رابلي] داسې کور ته ئې رابلی چه سراسر سلامتی ده په کښې هیڅ تکلیف، غم او خفګان نشته، نه په کښې د بیمارۍ خطره شته، د فنا کیدو یا د حالت د بدلیدو فکر په کښې نشته.

دارالسلام نه مراد جنت دې، دې ته دارالسلام په دې وجه هم وائی چه په کښې به هر جنتي ته سلامتي، امن او ارام حاصل وی. دویم دا چه بعضې روایتونو کښې دی چه جنت ته دارالسلام څکه ونیلې شی چه په دې کښې اوسیدونکوته به د الله تعالی او د فرشتو د اړخه سلام وررسی بلکه د سلام لفظ به د جنتیانو اصطلاح وی چه خپل خواهشات به هم په دې لفظ سره ښکاره کوی او فرشتې به د هغې تعمیل کوی څنګه چه د دې نه په ړومبو آیتونو کښې تیر شوې دی.

حضرت یحیی بن معاذ رحمه الله د دې آیت په تفسیر کښې عوامو ته د نصیحت په ډول فرمائیلي دی چه؛ اې آدم ذاته، تاسو الله تعالی دارالسلام ته اوبللې، اې د آدم څویه ته به د دې د پاره کله قدم اوچتوې؟ ښه پوهه شه که د دې بلنې قبلولو په غرض دې که د دنیا نه د دې د پاره کوشش شروع کړو نو هغه به کامیاب شی او ته به دارالسلام ته اورسې، که دنیا کښې دې عمر تباه کړو او قبر ته په رسیدو دې ورلـه د قدم پورته کولو اراده اوکړه نو لار به درته څکه بنده وی چه هغه دارالعمل نه دې.

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائي چه دارالسلام د جنت د اووه نومونو نه یو نوم دې. [تفسیر قرطبی] ([1])

---

[1]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۸، ص ۳۲۹

دې نه معلومه شوه چه په دنيا كښې د يو كور نوم دارالسلام ايښودل مناسب نه دی ځكه چه جنت يا فردوس نوم ايښودل هم درست نه دی.

وريسې فرمائی ﴿وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ [يعنى الله تعالى چه چا لره او غواړی نو سمې لارې ته ئې ور رسوی] مطلب دا شو چه دارالسلام ته د الله تعالى بلنه وركول ټولو انسانانو د پاره عام دی او هم د دې معنى په اعتبار سره ټولو ته هدايت هم عام دې ليكن د هدايت خاص قسم خاص خاص خلقو ته داسې نصيب كيږی چه نيغې لارې ته بوتللې شی او په هغې باندې د تلو توفيق وركړې شی.

په تيرو شوو دوو آيتونو كښې د دنيا او آخرت مقابله او د دنيا او آخرت د خلقو حالات بيان شوې دی، وريسې په څلورو آيتونو كښې د دواړه قسمه خلقو د جزا او سزا بيان دې، ړومبی د جنتيانو بيان داسې اوشو چه كومو خلقو [د ټولو نه لويه] نيكی ايمان اختيار كړه او بيا په نيک عمل باندې ټينګ پاتې شو هغوی ته به د هغوی د عمل ښكلې او غوره بدله وركولې شی او وريسې به نوره زياتی بدله هم وركولې شی.

چنانچه د دې آيت تفسير پخپله رسول الله ﷺ داسې بيان كړې دی چه دلته د [ښې بدلې] نه مراد جنت دې او د [زياتی] نه مراد د الله تعالى ديدار كول دی چه جنتيانو ته به حاصليږی [تفسير قرطبی د حضرت انس رضی الله عنه په روايت] (۱)

د جنت دومره حقيقت نه خو هر مسلمان خبر دې چه د هغې راحتونه او نعمتونه په دې دنيا كښې خو د هيچا په تصور كښې هم نه شی راتلې ليكن د هغې نه هم پورته زياتی نعمت به د الله تعالى ديدار وی.

په صحيح مسلم كښې د حضرت صهيب رضی الله عنه په روايت راغلې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل؛ چه كله جنتيان جنت ته داخل شی نو الله تعالى به ورته خطاب اوفرمائی چه آيا تاسو ته د څه بل څيز بل شی] ضرورت شته؟ راته اووائې چه پوره ئې كړم ــــ جنتيان به وائی چه زمونږ مخونه دې روښانه كړل، جنت ته دې راوستو، جهنم نه دې خلاص كړو دې نه زيات به نور څه غواړو؟ دغه وخت به د منځ نه پرده لرې كړې شی او ټول جنتيان به د الله تعالى ديدار اوكړی، (۲) معلومه به شی چه د ټولو نه ډير زيات لوئې نعمت هم دا وو چه زمونږ هغه ورته خيال شوې نه وو، او رب العلمين راته بې د غوښتونه په خپل فضل و كرم سره دا نعمت راوبخښلو لكه مولانا رومی رحمه الله فرمائی؛

ما نبوديم و تقاضه ما نبود　　　لطف تو ناگفتهٔ ما می شنود

[زمونږ غوښتنه خو ځكه نه وه چه مونږه نه وو؛ ستا مهربانې زمونږه ناوئيلې غوښتنه اوريدله].

او بيا ئې د جنتيانو دا حال بيان كړو چه د هغوی په مخونو باندې به څه خړ والې يا د تكليف او غم هيڅ اثر نه وی او نه به پرې د ذليلوالی څه اثر وی كوم چه په دنيا كښې هر انسان ته كله نا كله راپيښيږی او په آخرت كښې به جهنميانو ته راپيښ وی.

بل اړخ ته ئې د جهنميانو حال داسې بيان كړو چه كومو خلقو خراب عملونه اوكړل هغوی ته به

(۱) تفسير القرطبی تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۳۳۰، وصحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب اثبات رؤية المؤمنين فی الآخرة لــــ الخ: ج ۱، ص ۱۰۰

(۲) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب اثبات رؤية المؤمنين فی الآخرة لــــ الخ: ج ۱، ص ۱۰۰

Scanned with Ca

د بدې بدله د بدې په برابر ملاويږي، چه هغې نه به زياته نه وي، د هغوی په مخونو به ذليلوالې راخور وي، د الله تعالی د عذاب نه خلاصوونکې به ئې هيڅوک نه وي، د هغوی د مخونو د توروالی به دا حال وي چه ګويا کښې د تورې شپې قط په قط توتو کښې رانغښتې شوې دی.
وروسته په دوو آيتونو کښې هغه خبرې اترې بيان شوې دی چه د جهنميانو او د دوی د ګمراه کوونکو بتانو يا شيطانانو تر منځه به په محشر کښې وي. چنانچه الله تعالی فرمائي: په دغه ورځ به مونږه ټول راجمع کړو، بيا به مشرکانو ته اووايو چه تاسو او ستاسو تجويز کړې خدايان دې په خپل خپل ځاې اودريږي چه درته د خپلې عقيدې حقيقت معلوم شی، بيا به د دوی او د دوی د معبودانو تر منځه هغه ديووالی تار يعنی مزې اوشلولې شی چه په دنيا کښې د دوی تر منځه موندې شو، نتيجه به ئې داوی چه د دوی بتان به پخپله اووائي چه زمونږ عبادت خو تاسو نه کولو، خداې به ګواه جوړ کړی او وائي به چه مونږ خو د سره نه څه پوهه لرله او نه مو څه حرکت کولې شو او نه مونږ داسې عقل شعور لرلو چه په دغه مسئلو به پوهيدلو.
په شپږم آيت کښې د جنتيانو او دوزخيانو شريک حال داسې بيان کړې شوې دې چه په محشر کښې به هر څوک د خپلو کړو عملو جاج واخلی چه آيا د دوی دا عمل سود من وو او که زيان من؟ او ټول به خپل حق معبود ته وراورسولې شی، او هغه ټولې اسرې به ئې ختمې شی کومې به چه انسانانو په دنيا کښې لټولې، او مشرکانو نه به هغه ټول باطل معبودان او بتان غائب شی چه په دنيا کښې به ئې خپل امداديان او سفارشيان ګڼړل.
په اووم او اتم آيت کښې قرآن کريم د حکمت او تربيت په انداز کښې د مشرکانو د سترګو غړولو د پاره يو څو سوالونه قائم کړې دی، چنانچه رسول الله ﷺ ته الله تعالی فرمائي چه دې خلقو ته اووائې چه د اسمانونو او زمکې نه تاسو ته څوک روزی درکوی؟ د غوږونو او سترګو مالک څوک دې؟ چه اوريدل او ليدل پرې هله کيدې شی چه هغه اوغواړی او چه وې غواړی نو بيکاره ئې کړی، او څوک دې چه د مړ څيز نه ژوندې پيدا کوی؟ لکه د خاورې نه زرغنه اونه، يا نطفې نه انسان او څناور يا د اګې نه مارغه او د ژوندی نه مړې پيدا کوی؟ لکه د انسان اوڅناور نه بې روحه نطفه، او څوک دې چه د ټولو کائناتو د کارونو تدبير کوی؟
بيا فرمائي چه کله تاسو ﷺ دغې خلقو نه سوال اوکړې نو ټول به هم دا وائي چه د دې څيزونو پيدا کوونکې يواځې يو الله تعالی دې، نو ورته اووائې چه تاسو بيا ولې د الله تعالی نه نه يريږئ؟ کله چه د دې ټولو څيزونو پيدا کوونکې، د دې ټولو باقی لرونکې او د دې ټولو نه د کار اخستو انتظام کوونکې يواځې الله تعالی دې نو بيا د عبادت او فرمانبردارې حقدار د هغه نه سوا بل څوک ولې جوړوئ؟
په آخر د آيت کښې فرمائي ﴿فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ ۚ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ اِلَّا الضَّلٰلُ﴾ يعنی دا هم هغه ذات دې چه د کمال صفتونه ئې اوس اوس بيان شوې دی، بيا حق نه پس ګمراهې نه سوا نور څه دی؟! يعنی کله چه د الله تعالی معبود کيدل برحق ثابت شو نو بيا د دې حق په پريښودلو سره بل چاته مخه کول څومره نامعقوله خبره ده؟.
د دې آيت د مسئلو او فائدو نه دا خبره د ياد لرلو ده چه د دې آيت ﴿فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ اِلَّا الضَّلٰلُ﴾ نه دا ثابتيږي چه د حق او ضلال تر منځه بله هيڅ واسطه [منځوميانه] حالت نشته. مطلب دا شو چه حق نه وي نو ضرور به ګمراهې وي او داسې هم نه شی کيدې چه يو کار دې نه حق وي او نه

باطل، او داسې هم نه شي کیدې چه دوه متضاد څیزونه دې حق وي، چنانچه په ټولو اصولو د عقائدو کښې دا قاعده د جمهورو په نزد منلې شوې ده. البته په جزئي مسئلو او د فقهې په جزئیاتو کښې د علماؤ اختلاف شته دې، د بعضو حضراتو په نزد په اجتهادي مسائلو کښې به دواړو جانبو ته حق وئیلې شي او جمهور په دې اتفاق لري چه په اجتهادي مسئلو کښې مخالف جانب ته ضلال او ګمراهي نه شي وئیلې کیدې.

| |
|---|
| كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ فَسَقُوْٓا اَنَّهُمْ |
| دارنګې حقه ثابته شوه \| خبره \| درب ستا \| په هغه کسانو باندې \| چې نافرماني ئې کړې ده \| چې بیشکه هغوی |
| هم دغه ستاسو د پروردګار خبره \| د ټولو فاسقانو په حق کښې پوره شوې ده \| چې دوی به ایمان نه |
| لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّبْدَؤُا |
| ایمان نه راوړي هیڅکله \| اووایه \| آیا شته \| د شریکانو ستاسو نه \| هغه څوک \| چې په اول خل |
| راوړي \| ورته اووایه چې ستاسو په [جوړو کړو] شریکانو کښې څوک هم داسې شته \| چې په ړومبی |
| الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ۗ قُلِ اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ |
| پیدا کول هم کوي (۱) \| بیا \| دوباره هم پیدا کوي هغه \| ورته اووایه \| چې الله \| په اول خل پیدا کول هم کوي \| بیا |
| خل [یو څیز] پیدا کړي \| او بیا ئې سر دوباره ژوندې کړي \| ورته اووایه چې الله ﷻ په اول خل پیدا کوي |
| يُعِيْدُهٗ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ۝ قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ |
| دوباره هم پیدا کوي هغه \| نو کوم طرفته \| اړول شوي یئ تاسو \| اووایه \| آیا شته \| د شریکانو ستاسو نه |
| او دوباره هم \| دا تاسو کوم طرفته اړولی روان یئ \| ورته اووایه چې آیا ستاسو په [جوړو کړو] |
| مَّنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ ۗ قُلِ اللّٰهُ يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ۗ |
| هغه څوک \| چې ښودنه کوي \| طرف د حق ته \| ورته اووایه \| چې الله \| ښودنه کوي \| د پاره د حق |
| شریکانو کښې څوک هم شته \| چې د حق په لار خلق روان کړي (۲) \| ورته اووایه چې هم الله ﷻ د حق |

[1] **خالق او مالک دَ الله تعالی ذات دې**:- مشرکانو دَ الله تعالی سره غیرالله یو ځائې کړو او دَ بتانو عبادتونه ئې شروع کړل دَ هغوی دَ دې دعوې ابطال کولې شي. فرمائي اې نبي ﷺ! دوی ته اووایه چه ستاسو په مقررشوو خدایانو کښې څوک شته چا چه دا آسمانونه او زمکې پیدا کړې وي. او چې په دې کښې کوم مخلوقات دي هغوی ته ئې وجود ورکړې وي. یا ئې دَ آسمان ستورې د ځپل ځایٔ څخه اخوا کړې وي یا هغه بدل کړې یا هغه فنا کړي او دَ نوې سره بل مخلوق پیدا کړي. اووایه چې دا خو هم دَ الله تعالی کارونه دي نو بیا تاسو دا نیغه لاره ولې پریږدئې او دَ باطل طرف ته ټکرې خورئې.

[2] آیا څوک شته چه دَ حق طرف ته لارخودنه اوکړې شي داسې لار خودنه خو صرف الله تعالی کولې شي. په دې خبره تاسو پخپله پوهیږئې چه ستاسو شریکان یوکس هم په صحیح لار نه شي راوستلې. هم الله تعالی داسې حیران اوګمراه ته هدایت کولې شي اودَ ګمراهئې نه دَ هدایت طرف ته دَ انسانانو زړونه راګرځولې شي. که یو بنده دَ حق طرف ته راګرځونکي اتباع اوکړي ...

بقیه په راروانه صفحه

اَفَمَنْ يَّهْدِیْٓ اِلَی الْحَقِّ اَحَقُّ اَنْ يُّتَّبَعَ اَمَّنْ

آیانو هغه څوك | چي ښودنه كوي | طرف دحق ته | زیات مستحق دی | چي پیروي ئې اوكړې شي | یا هغه څوك

سمه لار ښائي | څوك چي حقه لار ښائي هغه زیات حقدار دي | چي دهغه پیروي اوشي | که نه هغه څوك

لَّا يَهِدِّیْٓ اِلَّآ اَنْ يُّهْدٰى ۚ فَمَا لَكُمْ ۗ كَيْفَ

چي پخپله هم لار موندلې نشي | مگر | چي ورته لار اوښودلې شي | نو څه شوي دی | تاسو لره | داڅنگه

چي پخپله هم لار نه مومي | ترڅو چي ورته اونه خودلې شي | نودا په تاسو څه شوي دی | څنګه (اړولې)

تَحْكُمُوْنَ ۞ وَمَا يَتَّبِعُ اَكْثَرُهُمْ اِلَّا ظَنًّا ۭ اِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ

فیصلې کوئ تاسو | اونه کوي پیروي | اکثر خلق ددوئ | مگر | دګمان | بیشکه | ګمان | نه پوره کوي ضرورت

فیصلې کوئی | او په دوئ کښې زیات خلق خو خپلو ګمانونو پسې روان دی | او بیشکه ګمان دحق

مِنَ الْحَقِّ شَيْـــًٔا ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ۞

دحق نه | هیڅ قدرله | بیشکه الله | ښه پوهه دي | په هغه څه | چي دوئ ئې کوي |

په مقابله کښې هیڅ فائده نه ورکوي | الله ﷻ ددوئ د کارونونه خبردي |

**آسان ترجمه قرآن**

دغه شان چه کوم خلق نافرمانه دي د هغوی په باره کښې دا خبره رښتینې شوه چه دوی به ایمان نه راوړي ته ووایه چه: کوم خلق چه تاسو د الله سره شریکان کړیدي آیا په دوی کښې داسې څوك شته چه هغوی مخلوق په اول ځل پیدا کړي بیا (د دوی د مرګ نه وروستو) دوی لره دوباره پیدا کړي؟ ته ووایه چه: الله دې چه مخلوق په اول ځل پیدا کوي، بیا د دوی (مرګ نه وروستو) دوباره به ئې پیدا کړي. بیا تاسو کوم طرف ته الټه واړولې شوئ؟ ته ووایه چه: څوك چه تاسو د الله سره شریکوئ نو دوی کښې څوك داسې شته چه تاسو ته د حق لار وښائي؟ نو ته ووایه چه الله دحق لار ښائي. اوس ووایئ چه څوك د حق لار ښائي هغه ددې خبرې زیات حقدار دي چه د هغه تابعداري ووشي، یا هغه (زیات حقدار دي) چه هغه ته هغه پورې صحیح لارنه وې معلومه ترڅوچه ورته ښودلې شوې نه وي؟ تاسوپه څه شوی دی؟

…بقیه دتیرمخ]… اودَ عقل نه کارواخلی نودا معلومه شوه چه دَ هیڅ هم هدایت نه شی کولې بلکه دَ خپل ړوندتوب په وجه دَ دې خبرې محتاج دې چه هم دَ ده لاس څوك اونیسی او روان ئې کړی. حضرت ابراهیم ؑ فرمائیلي وو چه اې بابا! ته د ړوند کوڼ معبود عبادت ولې کوې چه ستا دَ هیڅ کار نه دې. او خپل قوم ته ئې هم فرمائیلی وو چه تاسوخلق هم د خپل لاس جوړ شووخیزونوعبادت پخپله کوئ. سره دَ دې چه تاسو او ستاسو معبودان ټول هم الله تعالی پیداکړی دی. ستاسو رائې خومره غلطه ده. ستاسو عقلونه چرته تلې دی. تاسو الله تعالی اود هغه مخلوق څنګه یو شان برابر برابر کړل. دا هم منئی او هغه هم منئی. اوبیا دَ الله تعالی نه اخوا شریکانوته تیښتیږئی. دَ خاص رب جلیل عبادت ولې نه کوئې چه دهغه عبادت اوکړئی اودګمراهونه بهر راوځئی. اودعاګانې خاص دَ الله تعالی نه ولې نه غواړئی. داخلق یو دلیل په کار کښې نه راولی بلکه دَ دې بت پرستئی بنیاد ئې دَ یو یقین په ځائې په ګمان او وهم باندې راوچت کړې دې خود دې نه به هیڅ هم حاصل نشی. الله تعالی دَهغوی په هر کارباندې ښه خبردار دې. داد دې کافرانود پاره تهدید اوسخت وعید دې څکه چه الله تعالی خبرور کوی چه ډیر زر به دوی ته د دې خپل کم عقلتوب سزا ملاؤ شی.

Scanned with Ca

تاسو څنګه فیصله کوئ؟ او (حقیقت دادې) چه دي (مشرکانو نه) ډیر داسې دي چه دوی بل څه نه صرف وهمي اندازو پسې روان دي. او دا یقیني خبره ده چه د حق په مقابله کښې وهمي اندازه څه فائده نه ورکوي یقین وکړه چه څه دا خلق کوي الله تعالی ته د هغې پوره پوره علم دي.

## خلاصه تفسير

**حل لغت:** لایهدي دالفظ اصل کښي لایهتدي وه داعلال نه روستو لایهدي تري جوړ شو د لایهتدي معنی معلومه ده یعني هغه سړی چه هدایت نه مومی [مخکي تسلی ده نبی [ﷺ] ته چه ددي خلکو په باطل پرستي به غمژن کیدونو ورته ارشاددی چه څنګه داخلك ایمان نه راوړی] ﴿كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ فَسَقُوا أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ دغه شان ستادرب دا [ازلی ] خبره چه دوی ایمان نه راوړي دتولوسر کشانو په حق کښي ثابته شویده [پس ته ولی غمژن ئې او].

﴿قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَائِكُمْ مَنْ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ۚ قُلِ اللّٰهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ﴾ [ته [دوی ته] داسی [هم] ووایه چه آیاتاسو په دي [تجویز کړو] شریکانو کښی [په عام طور که ذوی العقول وي لکه شیطانان یاغیرذوی العقول وي لکه بتان ] څوك داسی شته چه په اول وار هم [مخلوق لره] پیداکړي بیا [په قیامت کی] ئی دوباره هم پیداکړي [یعنی که دغه خلك په دی وجه چه په دی کښی ددوی دبتانوسپکاوئ ده په جواب کښی څه نه وائی نو] ته ووایه چه الله په اول وار هم پیدا کوی اوپه دویم ځل به هم پیداکړي [یعنی ددی تحقیق نه پس هم] بیاتاسوکوم خواته [دحق نه ] واپس کیږئ.

﴿قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَائِكُمْ مَنْ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ ۚ قُلِ اللّٰهُ يَهْدِي لِلْحَقِّ ۗ﴾ [او] ته [دوی ته داسی هم] ووایه آیاتاسو په [تجویزشووذوی العقولو] شریکانو کښی لکه [شیطانان ] څوك داسې شته چه د حق کاردلاری خودنه کوی ؟ ته ووایه چه خاص الله دحق کارلار [هم] ښائی [چنانچه ده عقل ورکړو انبیاء کرام ﷺ راولیږل په خلاف دشیطانانو چه اول خودوی په دي کارونو قادرنه دي او فقط تعلیم چه قدرت ئې دوی ته ورکړشوی دی هغه دوی په غولولواو ګمراه کولوکي صرف کوي]

﴿أَفَمَنْ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ أَحَقُّ أَنْ يُتَّبَعَ أَمَّنْ لَا يَهِدِّي إِلَّا أَنْ يُهْدَىٰ ۖ فَمَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ﴾ نو بیا [دوی ته ووایه چه بیاخووائی چه] آیاکوم سړی چه حقه لاره ښائی هغه زیات دتابعدارئ حقداره دي یاهغه سړی چه بغیرد خودنی نه ورته لارنه معلومیږی [اوددی نه سوا بیا په دغه خودنه باندی هم نه ځئ په هغی لکه شیطانان بیاچه کله دوی دتابعدارئ لائق ندي نوبیاکله دعبادت لائق کیدی شی ] نو [ای مشرکانو] په تاسو څه وشوداتاسو څه جوړوئ [چه دتوحید په ځای شرك اختیاروئ ].

﴿وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلَّا ظَنًّا ۚ إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ۚ إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ﴾ او [تماشه خودا ده چه داخلك په خپل شرك څه دلیل هم نلري بلکه] اکثرددوی صرف په بی بنیاده خیالاتو روان دي [او] یقینا بې اصله خیالات په حق کار [ثابتولو] کښی یوه ذره فائده هم نکوي [خیر] دوی چه دا څه کوي الله پري خبردی [په وخت به سزاورکړی].

| مِنَ الْحَقِّ | شَيْئًا | إِنَّ اللّٰهَ | عَلِيمٌ | بِمَا | يَفْعَلُونَ ۝ | وَمَا كَانَ | هٰذَا الْقُرْآنُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دحق نه | هیڅ قدرله | بیشکه الله | ښه پوهه دی | په هغه څه | چې دوئ ئې کوي | او نه دي | دا قران |
| په مقابله کښي هیڅ فائده نه ورکوی [ الله ﷻ ددوئ د کارونونه خبردي [ اودا قران څه داسې کتاب نه دي | | | | | | | |

Scanned with Ca

اَنۡ يُّفۡتَرٰى مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ وَلٰكِنۡ تَصۡدِيۡقَ الَّذِىۡ بَيۡنَ يَدَيۡهِ

چي جوړکړي شي اغیر د الله نه | لیکن | تصدیق کونکي دي | دهغه څه | چي مخکښي ددۀ نه راغلي وو

چي دالله ﷻ نه سوا بل څوک دي په دروغه جوړ کړی | بلکه د پخوانو کتابونو تصدیق کوی

وَتَفۡصِيۡلَ الۡكِتٰبِ لَا رَيۡبَ فِيۡهِ مِنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ

اوتفصیل دي دکتاب | نشته هیڅ شك | په دي کښي | چي دي دطرفه | دپرودګار | دکائناتونه

او د کتاب تفصیل بنائی | په دي کښي هیڅ شک شبه نشته | د ټول مخلوق د پروردګار دطرفنه راغلي

اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰٮهُ ؕ قُلۡ فَاۡتُوۡا بِسُوۡرَةٍ مِّثۡلِهٖ

ایا وائی داخلق | چي دخان ني جوړکړي دي داقرآن | ورته اووایه | نوراوړئ ایو سورت | پشان ددې

دي ادوئ وائی چي دا [کتاب] ده په دروغه جوړکړي دي | ورته اووایه چي ښه ده نوددې پشان یو سورت[۱]

وَادۡعُوۡا مَنِ اسۡتَطَعۡتُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ۝ بَلۡ

اوزاغواړئ | هغه څوك | چي طاقت کیږی ستاسو | غیرد الله نه | که چری یئ تاسو | صادقان | بلکه

تاسوهم [جوړ کړئ] او دالله ﷻ نه سوا هرڅوک چي [مددله] راغوښتې شئ هغه راوبلئ | که تاسو رښتونی یئ

كَذَّبُوۡا بِمَا لَمۡ يُحِيۡطُوۡا بِعِلۡمِهٖ وَلَمَّا يَاۡتِهِمۡ

دروغ اوګڼړو دوئ | هغه څیز | چي چاپیره نه شو دوئ | په علم دهغي باند | اولا نۀ دي راغلي دوئ ته

نه بلکه دوئ هغه څیز [هیڅ بې هیڅه] دروغ اوګڼړه | چي دوئ دهغه په علم باندي پوهه نه ده راوستي | او ددي

تَاۡوِيۡلُهٗ ؕ كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ فَانۡظُرۡ

---

[۱] کفارو ته دقرآن پاك چیلنج : یعني که ماجوړکړي راوړي وی نو تاسو هم خماپشان بشریئ ټول یو ځائي شئ او یو سورت ددې پشان جوړکړنی . ټول مخلوق ته دعوت ورکړئ ټول جنات او انسانان جمع کړنی. دټول جهان فصیح او بلیغ لوست لیك والا او بغیرلیك لوست والا یوځائي شئ او داسې ورو کې شان سورة دقرآن پاك په سورتونو کښې جوړکړنی نو زه به هم اومنم چه قرآن پاك هم دیوبشر کلام دې . چه ددې مثل نورخلق راوړي شي . خوداناممکن دی چه ترابده پورې مخلوق داسې اوکړې شي . قرآن پاك هغه کتاب دې چه په دې کښې تهذیب ، اخلاق ،تمدن ، معاشرت ، حکومت ، سیاست ، او معرفت، روحانیت ، دنفس پاکی ، دزړونو تنویر، غرض دا چه وصول الی الله اوتنظیم اودمخلوق فائدې اوهغه ټول قوانین اوطریقې موجود دی، چه ددې نه ټول علوم ددنیاپوره کیږی اوچه ددې ترتیب اوتدوین دیوامی قوم یو امې کس نه هم ددې امیدنشی کیدلې . بیاددې ټولوعلمونواوهدایتونو پوره کولو سره ددې کتاب ښکلې فصاحت اوبلاغت ، جامع اوموثراوښکلې طرز بیان ، موج روانی ، آسان اوعام فهم ، شائسته زیب کلام او ددې لذت اوخوند اوشهنشاهانه شان ټول هغه خیزونه دی چه دې په لوئې زور وشور اواوچت والی سره ټول جهان ته دمقابلې کولو چیلنج ورکړې دی . چه په کوم وخت کښې دقرآن پاك جمال دغیبو پرده اوچته کړه اودحضرت آدم ؑ اولاد نې ددی نه خبرکړو، نوددې هم دادعوه ده چه زه دالله تعالی کلام یم اوچه څنګه دالله تعالی دزمکې پشان اودالله تعالی دآسمان پشان ،پیداکولونه دنیا عاجزه ده . همداشان دقرآن پاك پشان قرآن جوړولو نه هم دنیا عاجزه ده . اود قرآن پاك ختمولو دپاره به خلق کوششونه کوی ، خوناکامه کیږی به اوخپل مدد دپاره ددنیالویولویو طاقتونو ته دعوت ورکوی . اوټول مصیبتونه لوخړي به ددوی دپاره ممکن وی ، خوقرآن پاك پشان یو سورت به دوی نشی راوړی.(قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُوْنَ بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا ۝) (بنی اسرائیل ع ۱۰)

Scanned with Ca

| |
|---|
| حقیقت دهغې \| همدا رنګې \| دروغ ګنړلی وو \| هغه کسانو \| چې مخکښې ددوئ نه وو \| نو اوګوره |
| انجام ورته لا ښکاره شوي نه دي \|دغه شان پخوانو خلقو هم [ دالله ﷻ کتابونه] دروغ ګنړلي وو \| نو |
| كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ ۝ وَمِنْهُمْ مَّنْ يُّؤْمِنُ |
| څرنګې وو \| انجام \| دظالمانو \| اوځينې ددوئ نه \| هغه څوک دی \| چې ایمان به راوړي |
| اوګوره چې د ظالمانو انجام څومره خراب شو \|او څوک په کښې داسې دی \|چې په دې کتاب به ایمان |
| بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهٖ ۚ وَرَبُّكَ اَعْلَمُ |
| په دې باند \| اوځینې ددوئ نه \| هغه څوک دی \| چې ایمان به رانوړي \| په دې باند \| اورب ستا \| ښه پيژني |
| راوړي \|او څوک داسې دی چې ایمان به پرې نه راوړي \|او ستا پروردګار فسادیان خلق ډیر ښه پیژني |
| بِالْمُفْسِدِيْنَ ۝ |
| فساد کونکی \| |

## آسان ترجمه قرآن

او دا قرآن داسې نه دی چه دا چا دځان نه جوړ کړې وي الله نه وي نازل کړې، بلکه دا (وحي) دهغه خبرو تصدیق کوي کومې چه دې نه مخکښې راغلي دي، او الله چه کومې خبرې (لوح محفوظ کښې) لیکلي دي دهغې تفصیل بیانوي دې کښې لږ هم د شک ګنجایش نشته. دا دهغه ذات د طرف نه دی چه د ټولو جهانونو تربیت کوي بیا هم دا خلق وائي چه: پیغمبر دا دخپل طرفه جوړ کړې دې؟ته ووایه چه: بیا تاسو هم ددې پشان یو سورت (جوړ کړئ) او راوړئ او(دې کار کښې مدد دپاره) دالله نه سوا چه چا لره رابلی نو راوبلئ ، که تاسو رښتینې یئ. خبره اصل کښې دا ده چه د کوم څیز احاطه دوی دخپل علم سره نه شي کولې نو هغې ته دوی دروغ وائي ، او ترا وسه لا ددې انجام هم د دوي مخې ته نه دې راغلې دغه شان چه کوم خلق دوی نه مخکښې وو هغوی هم (خپل پیغمبران) دروغژن کړي وو. بیا وګورئ چه دهغه ظالمانو انجام څنګه شو؟ په دوی کښې څه خلق داسې دي چه دې قرآن باندې به ایمان راوړي او څه داسې دي چه دې باندې به ایمان نه راوړي او ستا سو پروردګار فساد خورونکو لره ښه پيژني.

## خلاصه تفسير

﴿ وَمَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اَنْ يُّفْتَرٰى مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ ﴾ او دا قرآن دخان نه جوړشوی ندی چه دغیرالله نه صادرشوی وي بلکه دا خو دهغو کتابونو تصدیق کوونکی دی کوم چه دده نه وړاندی [نازل] شوي دي اود [الله] دضروري حکمونو تفصیل بیانوونکی دی [او]په دې کښې څه خبره دشك [اوشبهې] نشته[ اودغه]درب العلمین دطرفه [نازل شوي ]دی.

﴿ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۭ قُلْ فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّثْلِهٖ وَادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ ﴾ آیا [سره ددی چه دخان نه جوړشوي ندی ]داخلك داسی وائی چه [نعوذبالله] تادا دخان نه جوړکړیدی ته [دوی ته]ووایه چه[ ښه ده] نوبیا تاسوهم عرب ئی اوداعلی درجې فصیحان اوبلیغان هم ئی ددی په مثل یوسورت [جوړکړئ] راوړئ او[بواخې نه]کوم کوم غیرالله لره چه راغوښتلی شئ هغی هم [دمدد دپاره]را وبلئ که تاسو رشتونی ئی [یعنی چه نعوذبالله ماجوړ کړیدی نو تاسوهم

جوړ کړئ مګر مشکله خو دا ده چه په دا قسم دلیلونو سره فائده خو هغه چا ته رسیږي کوم چه پوهیدل غواړي پس دوی خو چرته پوهیدل ندي غوښتلي].
﴿بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظَّالِمِينَ﴾ بلکه داسی شی ئی دروغجن کړود کوم [چه صحیح او غلط والی] ددوی دعلم په احاطه کی رانغی [او پری ئی دخان پوهو لو اراده ونکړه نو داسی خلکو نه دپوهه کیدو څه امید کیدې ی شی] او [ددوی ددی بی فکرئ اوبی پرواهئ وجه داده چه] لا ترا وسه دوی ته ددی [قرآن دروغژن کولو] آخری نتیجه نده میلاو شوې [یعنی عذاب ندی راغلی ورنه تو له نشه به ئی الوتی وه او ستر ګی به ئی غړیدلی وی او حق باطل به ورته ښکاره شوی وو لیکن بیا هم آخر دغه نتیجه مخی ته راتلونکی ده اګر چه دغه وخت به ایمان نفع نه ورکوی چنانچه] کوم [کافران] خلك ددوی نه وړاندی تیر شویدی دغه شان [لکه چه بی تحقیقه دوی دروغژن کول کوی] هغوی هم [حق لره] دروغژن کړی وو پس وګورئ چه ددغه ظالمانو انجام څنګه [ناکاره] شو [دغه شان به ددوی هم شی]. ﴿وَمِنْهُم مَّن يُؤْمِنُ بِهِ وَمِنْهُم مَّن لَّا يُؤْمِنُ بِهِ ۚ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِينَ﴾ او [مونږ چه ددوی کوم بد انجام ښایو پس ددی نه تول مراد ندی ځکه چه] په دوی کی بعضی داسی دی کوم چه پدی [قرآن] باندی به ایمان راوړی او بعضی داسی دی چه پدی به ایمان رانه وړی او ستا رب [دی] فساد کوونکو لره ښه پیژنی [ایمان نه راوړونکو ته به په مقرره وخت کی سزا ورکړي].

## معارف او مسائل

﴿وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ﴾ دلته د تاویل نه مراد نتیجه او انجام دې، مطلب دا چه دې خلقو د خپلې بې پروائې او بې فکرې په وجه په قرآن کریم کښې غور او نه کړو او د دې د دروغژن بللو خراب انجام ئې او نه پیژندلو، ځکه د دې په دروغژن بللو کښې په مخه لګیا دی خو د مرګ نه پس به تول حقیقت ښکاره شی. او د خپلو کړو خراب انجام به ئې د غاړې هار شی.

| |
|---|
| وَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل لِّي عَمَلِي وَلَكُمْ |
| او که دروغ او ګنړی دوئ تا \| نو او وایه \| زما دپاره \| عمل زما دی \| او ستاسو دپاره |
| او که دوئ [اوس هم] تا دروغژن ګنړی [نو ورته او وایه چې ماله خما عمل بس دې [او ستاسو دپاره ستاسو |
| عَمَلُكُمْ ۖ أَنتُم بَرِيئُونَ مِمَّا أَعْمَلُ وَأَنَا بَرِيءٌ مِّمَّا |
| عمل ستاسو دې \| تاسو \| ذمه وار نه یئ \| دهغه عمل \| چې زه ئې کوم \| او زه \| ذمه وار نه یم \| دهغه عمل |
| عملونه بس دی \| تاسو خما دعمل ذمه وارئې نه بری یئ [او زه ستاسو دعملونو د ذمه وارئې نه بری یم [او خوک |
| تَعْمَلُونَ ۝ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ |
| چې تاسو ئې کوئ \| او ځینې ددوئ نه \| هغه خلق دی \| چې غوږ ږدی \| تا ته \| ایا نو ته به اخبره واوروې |
| په کښې داسې دی [چې تا ته غوږ نیسی [ایا ته به کڼو خلقو ته خبره واوروليشې [اګر که هغوئ |
| الصُّمَّ وَلَوْ كَانُوا لَا يَعْقِلُونَ ۝ وَمِنْهُم مَّن يَنظُرُ إِلَيْكَ ۚ |
| کڼو ته \| اګر که وی هغوئ \| چې په هیڅ نه پوهیږی \| او ځینی ددوئ نه \| هغه خلق دی \| چې ګوری \| تا ته |
| دعقل نه کار نه اخلی \| او څوک په کښې داسې دی چې تا ته ګوری \| |

Scanned with Ca

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَفَاَنْتَ | تَهْدِی الْعُمْیَ | وَلَوْ كَانُوْا | لَا یُبْصِرُوْنَ۝ | اِنَّ اللّٰهَ | لَا یَظْلِمُ | |
| آیا نو ته به لار اوښائې | رندوته | اگر که وی هغوی | چی هیڅ نه وینی | بیشکه الله | نه کوی ظلم | |
| نو آیا ته رندو ته لار خودلې شې؟ اگر که هغوی نه وینی؟ بیشکه الله ﷻ په خلقو باندې معمولی ظلم هم نه کوی | | | | | | |
| النَّاسَ | شَیْـًٔا | وَّلٰكِنَّ | النَّاسَ | اَنْفُسَهُمْ | یَظْلِمُوْنَ۝ | |
| په خلقو باندې | هیڅ قدرله | ولیکن | خلق | په خانونو خپلو باند | ظلم کوی | |
| خودا خلق پخپله په خپلو خانونو ظلم کوی۔ | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره !) که دوی تا لره دروغژنوي نو (دوی ته) ووایه چه: ځما عمل ما دپاره دې او ستاسو عمل تاسو دپاره دې، څه چه څه کوم د هغې ذمه داري په تاسو نشته او تاسو چه څه کوئ د هغې ذمه داري په ما نشته. په دوي کښې څه داسې هم دي چه ځمونږ خبرو لره (ظاهر کښې) غوږ ایږدي (مګر زړه کښې د حق طلب نه لري دې وجې نه دوی حقیقت کښې کاڼره دي) نو آیا ته ګنړو ته آوروې خواه که هغوئ نه پوهیږی؟ او په دوی کښې څه داسې هم دي چه ستا طرف ته ګوري (مګر زړه کښې د انصاف نه کیدو د وجې نه دوی د ړاندو پشان دي) نو آیا ته ړندو ته لار ښائې خواه که هغوئ څه نه وینې ؟ حقیقت دا دې چه الله تعالی په انسانانو باندې ذره هم ظلم نه کوي لیکن انسانان دي چه په خپلو ځانونو خپله ظلم کوي.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ لِّیْ عَمَلِیْ وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ ۚ اَنْتُمْ بَرِیْٓـُٔوْنَ مِمَّآ اَعْمَلُ وَاَنَا بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ۝ ﴾ او که چیری [ ددی دلیلونونه پس هم ] تالره دروغژن کوی نو [ بس اخری خبره ] دا ووایه چه [ ښه صاحبه ] ځما عمل به ماته ملاویږي او تاسو ته به ستاسو د عمل سزا ملاویږی تاسو ځما دعمل جواب ورکوونکی نه نی او زه ستاسو دعمل جواب ورکوونکی نه یم [ په کومه طریقه چه غواړئ او سئ تاسو ته به معلومه شی ].

﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ یَّسْتَمِعُوْنَ اِلَیْكَ ؕ اَفَاَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ وَلَوْ كَانُوْا لَا یَعْقِلُوْنَ۝ ﴾ او [ ته ددوی نه دایمان امید مکوه خکه چه ] په دوی کی [ اګرچه ] بعضی داسی [ هم ] دي کوم چه [ په ظاهره نی ] ستا طرف ته غوږونه ایخودي وی ناست وی [ لیکن په زړه کی ئی اراده دایمان او حق طلبولو نشته پس په دی اعتبار سره ددوی اوریدل اونه اوریدل برابر دی پس ددوی حالت دکونړو په شان شو نو ] بیا آیا ته کنړو ته اوروِلی شی [ او ددوی نه دمنلو انتظار کولی ] شی اګر چه دوی پوهه هم نه وی [ البته که پوهه ئی وی نو سره د کوڼوالی ئی هم څه کار کیدې ی شی ].

﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ یَّنْظُرُ اِلَیْكَ ؕ اَفَاَنْتَ تَهْدِی الْعُمْیَ وَلَوْ كَانُوْا لَا یُبْصِرُوْنَ۝ ﴾ او [ دغه شان ] په دوی کی بعضی داسی دی چه [ په ظاهره ] تالره [ سره د معجزوالی او کمالونو ] وینی [ لیکن د حق دطلب نه کولو په وجه ددوی حالت د ړندو په شان دی نو ] بیا آیا ته ړندوته لار ښودل غواړی اګرچه ددوی لیدل دي [ البته که لیدل یعنی بصیرت ئی وی نو په ړوندوالی کښی به ئی هم څه کار شوی وو اوچه ددوی عقلونه داسی تباه شوی دی نو ].

﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَظْلِمُ النَّاسَ شَیْـًٔا وَّلٰكِنَّ النَّاسَ اَنْفُسَهُمْ یَظْلِمُوْنَ۝ ﴾ دا یقینی خبره ده چه الله تعالی په

خلکو ظلم نه کوی [چه دوی ته د هدایت قابلیت ورنکړی او بیائی مواخذه کوی ] لیکن پخپله خپل خانونه تباه کوی [چه ورکړی شوی قابلیت ضائع کوی او کار تری نه اخلی.

| |
|---|
| وَيَوْمَ |
| او په کومه ورځ |
| او هغه او په کومه ورځ [چې الله ﷻ به نې را جمع کړی |
| يَحْشُرُهُمْ كَأَنْ لَّمْ يَلْبَثُوٓا اِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ |
| چې راجمع کړی الله دوی لره \| لکه چې \| وخت تیر نه کړو دوی (۱) \| مګر \| یو ساعت \| د ورځ نه \| |
| [تو د دنیا ژوند به ورته دومره لږ ښکاری] لکه چې دوی په دنیا کښې هیله یو ګړئی پاتې شوی وو |
| يَتَعَارَفُوْنَ بَيْنَهُمْ ۗ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ |
| چې پیژنی به یو بل \| په خپل منځ کښی \| یقینا په نقصان کښی پاتې شو \| هغه کسان |
| په خپل مینځ کښې به یو بل پیژنی \| هغه کسانو غټ تاوان او کړو [چې د الله ﷻ ملاقات ئې دروغ او ګڼړلو هغوی |
| كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ۝ وَاِمَّا نُرِيَنَّكَ |
| چې دروغ ئې اوګڼړو \| ملاقات د الله \| او نه وو هغوی \| نیغه لار موندونکی \| او که \| او ښایو مونږ تاته |
| هسې هم د لارې خلق نه وو \| او که مونږ تاته د هغه عذاب څه قدرې او ښایو \| چې د کومې هغوی سره |
| بَعْضَ الَّذِيْ نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ |
| بعضې انجام \| هغه \| چې مونږ دوی سره وعده کړې ده \| یا وفات کړو مونږ تا \| نو خاص مونږ ته \| دی راتلل د دوی |
| وعده کوو (۲) \| یا مونږ تا لره د هغې نه رومبې وفات کړو \| د دوی به [په هر حال] کښې مونږ ته واپس کیږی |

۱) د دنیاوی ژوند حقیقت :- یعنی د محشر هیبتناک حوادث کتلو سره د تول عمر عیش او آرام دومره لږ ښکاره شي لکه چه په دنیا کښې یو ساعت نه زیات نه وو ایسار شوی . او افسوس به کوی چه تول عمر مو څنګه فضول او بیکاره تیر کړو . لکه څنګه چه سړی یو ساعت دوه په ګپ شپ کښې تیروی . د هغه خائې خراب تکلیفونو کتلو سره به خیال کوی چه ګنی په دنیا کښې مو هډو څه وخت تیر نه کړو چه دا وخت راباندې راغلو . یو ساعت دوه مو تیر کړی نه وو چه دا وخت راغلو . کاش چه د هغه خائې قیام څه لږ ډیروې . نو دا ورځ به موزر نه کتله بعضې مفسرینو وئیلی دی چه برزخ کښې به دا ایساریدو وخت یو ساعت ګڼړلې شی . والله اعلم .

۲) حضرت محمد ﷺ سره دشوو وعدو پوره کول :- یعنی الله تعالی چې د حضرت نبی کریم ﷺ سره کفارو ته د عذاب ورکولو او د اسلام د غلبې چه کومې وعدې کړې دی چه په دې کښې څه وعدې تر څه حده پورې پوره شوې د دوی ﷺ په موجودګۍ کښې لکه څنګه چه په بدر وغیره کښې او خودلې شول . یا نبی کریم ﷺ وفات شو . د دې وجې د حضرت نبی کریم ﷺ په مخکښې د دې بعضو ظهور اونشو . بهر صورت دا یقینی دی چه هغه تولې به پوره شی . که د څه مصلحت په وجه په دنیا کښې کفاروته سزا ورنکړې شی نو په آخرت کښې به ورکړی شی مونږ نه به چرته بچ شی؟ تول به مونږ طرف ته واپس شی او د دوی تولو اعمال زمونږ په مخکښې دی . حضرت شاه صاحب ... بقیه په راروانه صفحه

بقیه په راروانه صفحه

ثُمَّ اللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى مَا يَفْعَلُوْنَ ۝ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلٌ ۚ فَاِذَا

بیا الله| گواه دي | په هغه څه باند| چي دوئ ئې کوی | اودپاره دهر امت| یو رسول دی( ۱ ) | نو کله چي

او الله ﷻ ددوئ په کارونو ښه پوهیږي | .........او هر امت ته یو استاذي راغلي دي | نو هر کله

جَآءَ رَسُوْلُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَهُمْ

راشی| رسول دهغوئ| نوفیصله به کیږی | په منځ دهغوئ کښی | پوره په انصاف سره | اوپه هغوئ باندې

چې استاذې ورته راشی | نو د دوئ ترمینځ به په انصاف فیصله اوکړې شی|او لږ زیاتې به پرې هم نه کیږی

لَا يُظْلَمُوْنَ ۝ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝

به هیڅ ظلم نه کیږی | اووائی دوئ| چی کله به وی | دا وعده | که یئ تاسو | صادقان |

او دوئ وائی چې دا [عذاب] وعده بهٔ آخر کله پوره کیږی ( ۲ ) |که تاسو رښتونی یئ |

...بقیه دتیرمخ]... لیکی چه د اسلام غلبه څه د حضرت نبی کریم ﷺ په زمانه کښې اوشوه اوباقی د وفات نه پس د خلفاء راشدینو په زمانه کښې . یعنی "نتوفینك" کښې دې طرف ته اشاره اوشوه .

۱) **هر امت ته رسول لیږلې شوې دې**:- مخکښې ددې امت اوددې د رسول ذکر وو. اوس دعاموقومونو او امتونو ذکرفرمائی چه هرې فرقې اوهرقوم ته دالله تعالی دطرف نه احکام رسوونکی لیږلی شوی وو هغوی ته رسول وائی چه د الله تعالی حجت تمام شی او داتمام حجت نه مخکښې چاته عذاب نشی ورکولې خلق عمل دمخکښې نه کوی . خودنیاکښې دوی ته سزا درسول درسیدو نه او اتمام نه پس ورکولې شی.الله تعالی دا ظلم نه کوی چه دڅه خبرداری نه مخکښې اوالزام ثابتیدونه مخکښې مجرمانوته سزا ورکړی.په قیامت کښې به هم باقاعده پیشی ؤی.فردجرم به ثابتولې شی اوگواه به پیش کیږی.هرقوم سره به دهغوی پیغمبرموجودوی.ددوی بیانات وغیره نه پس به ډیرانصاف سره فیصله کولې شی. (وَاَشْرَقَتِ الْاَرْضُ بِنُوْرِ رَبِّهَا وَوُضِعَ الْكِتٰبُ وَجِايْٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝)(الزمرع ۷)

۲) **دَ قیامت عذاب دَ الله تعالی په قبضه قدرت کښې دې**:- الله تعالی فرمائی چه دا مشرکان په عذاب کښې تندی کوی اودَ عذابَ دَوخت راتلونه وراندې عذاب غواړی. په دې کښیې دَ دوی هیڅ ښیگړه نشته. کافرانِ خو تندی کوی او مؤمنان دَ دې نه ویریږی او یقین ساتی چه عذاب به خامخا راځی سره دَ دې که د دې مقررِ شوې وخت معلوم نه وی. دَ دې دَ پاره الله تعالی خپل نبی ﷺ ته جواب ښائی چه اووایه ورته چه زه د خپلِ خان دَ پاره نه دَنقصان مالك یم اونه دَ فائدې مالك یم، زه صرف دومره وایم چه څومره ماته خودلې شوی وی اوکه چرتِه زه څه حاصلول غواړم نِو په هغې باندې پخپله قادر نه یم ترڅوچه الله تعالی ما خبرنکړی. زه خودَ هغه بنده اوستاسو دپاره دَ هغه قاصد یم. ماتاسوته خبر درکړو چه قیامت به خامخا راځی خودَ هغه وخت ماته نه دې خودلې شوې. دَ هریوقوم دَ پاره یوه مقرره موده وی اوچه کله هغه موده ختمه شی نو په هغې کښې به نه دَ یوساعت وراندیوالې وی او نه روستوالې. لکه چه فرمائی ﴿ وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا ﴾ کله چه دَ چا وخت راشی نو یوه ذره په هغې کښې روستوالې نه شی کولې. په کافرانوباندې به دَ الله تعالی عذاب ناگهانه راشی. که په شپه اوورځ کښې یووخت هم راشی نواوښائې څه به کوئ؟ په دې وجه تندی (تلوار) ولې کوئې؟ چه کله راشی نو هغه وخت به ایمان راوړنې؟ هغه به کله دَ ایمان راوړو وخت پاتې شی. هغه وخت به وئیلې شی چه راخلئی دَ کوم عذاب توندی (تلوار) چه مو کوله. هغوی به وائی یاالله مونږ اولیدلو ...بقیه په راروانه صفحه

قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِىْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ

ورته اووايه | چي زه اختيار نه لرم | د پاره د خان خپل | د ضرر | او د نفعي | مگر کيږي | هغه څه | چي او غواړي الله

ورته اووايه | زه خو د خپل خان د گټي او د تاوان هم هيڅ اختيار نه لرم | مگر څه چي الله ﷻ غواړي | هر يو امت

لِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ؕ اِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً

د پاره د هر امت | يوه نيته ده | کله چي | راشي | نيته د هغوئ | نو نه به روستو کيږي | يو ساعت

د پاره يوه نيته مقرر ده | هر کله چي د هغوئ وخت پوره شي | نو بيا نه يو گړئ روستو پاتي کيدي شي

وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُهٗ بَيَاتًا

او نه به مخکښي کيږي | او وايه دوئ ته | آيا وينئ تاسو | که چري راشي تاسو ته | عذاب د هغه | د شپې

او نه مخکښي تللې شي | ورته اووايه چي دا خو اووائي که د الله ﷻ عذاب دربانديي د شپې

اَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُوْنَ ۝

يا د ورځي | نو آخر دا کوم داسي څيز دي | چي تلوار کوي | د پاره د هغي | مجرمان خلق

يا د ورځي ناگهانه راشي | نو په هغي کښي داسي کوم څيز دي چي د مجرمانو ورته تلوسه ده

اَثُمَّ اِذَا مَا وَقَعَ اٰمَنْتُمْ بِهٖ ؕ آٰلْئٰنَ

آيا بيا په هغه وخت کښي | کله چي | واقع شي | نو ايمان به راوړئ تاسو | په هغي | آيا اوس

آيا چي عذاب راشي نو هله به تاسو ايمان راوړئ | [داولي] اوس [ترينه خان بچ کوئ] | حال دا

وَقَدْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ۝ ثُمَّ قِيْلَ لِلَّذِيْنَ

حال دا چي وئ تاسو | چي په راتللو د دي سره | تاسو تلوار جوړه کړي وه | بيا به | او وئيلي شي | هغه کسانو ته

چي تاسو خو به د دي [عذاب] په حقله تلوار جوړ کړي وه | بيا به ظالمانو ته او وئيلي شي | چي د تل

ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ ۚ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا

چي ظلم ئي کړي وي | او څکئ | عذاب د هميشوالي | آيا بله څه بدله به درکړي کيږي تاسو له | مگر

عمر عذاب خوند او څکئ | تاسو ته به د خپل عمل نه سوا نوره څه بدله درکيديشي | او دوئ ستاسو نه

بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ۝ وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ اَحَقٌّ هُوَ ؕ

بدله د هغه عمل | چي وئ تاسو | چي گټلو به تاسو | او تپوس کوي دوئ ستا نه | چي آيا حق دی | هغه

تپوس کوي | چي آيا دا عذب [په رښتيانه] برحق دي | ورته اووايه چي آؤ | پخپل رب مي دي

...بقيه د تير مخ] ..او مونږ واوريدلو. عذاب سره په مخامخ کيدلو به وائي چه اوس مونږ يو الله تعالی منواؤ نورو ټولو معبودانو نه اعراض کوو. خو د هغه وخت ايمان هيڅ ايمان نه دي. د الله تعالی عادت خو په بند پکانو کښي داسي راروان وی. دې ظالمانو ته به وئيلی شي چه اوس د هميشه عذاب اوڅکئ. دغه شان به هغوی بنه رټلي کيږي او د کوم عذاب نه چه هغوی انکار کولو هم په هغه عذاب کښي به په ديکو ديکو ورټونبلي (د ننه کولې) شي. تاسو به ورته جادو وئيلو نو دا اوس جادو دي، نه بلکه تاسو پخپله رانده ئي. اوس که صبر کوئي او که نه کوئي د خپل بد عمل بدله به خامخا مومئی.

Scanned with Ca

قُلْ إِي وَرَبِّيٓ إِنَّهُۥ لَحَقٌّ ۖ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ۝

ورته اووايه | هو | اوپه رب م دقسم وى | چي بيشكه دا | بلكل حق دى | اونه يئ تاسو | عاجزه كونكى

قسم وى | چي دا بالكل حق دي | او تاسو [ الله ﷻ ] د هغې د راوستو نه عاجزه كولې نشئ

وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِي الْأَرْضِ

اوكه چرى شي | دپاره دهر نفس | چي ظلم ئې كړې وى | هغه ټول دولت | چي په زمكه كښې دي

اوكه [ دقيامت په ورځ ] يو ظالم سره د ټولې دنيا ټول مال موجود شي | نو هم به ئې دخان

لَافْتَدَتْ بِهِۦ ۗ وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا

خامخا به په فديه كښې وركړي | دغه مال لره | اوپټه به كړي | پښيمانتيا | هر كله چي | اووينې دوئ

په فديه كښې وركړي | او [ اول اول ] عذاب اووينې نو پټ په زړه كښې به پښيمانه شي

الْعَذَابَ ۖ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ ۚ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝

عذاب | اوفيصله به اوكړي شي | په منځ ددوئ كښې | په انصاف سره | اوپه دوئ به | هيڅ ظلم نه كيږي

اودهغوئ ترمينځه به په انصاف فيصله اوكړې شي | اوهيڅ زياتي به پرې نه شي كولې

أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۗ أَلَآ

واورئ | بيشكه | الله لره دى | هغه څه | چي په اسمانونو كښې دي | اوپه زمكه كښې دي | ياد لرئ

ياد لرئ چي هر څه چي په اسمانونو او په زمكه كښې دي | هغه ټول دالله ﷻ دي | ياد ساتئ چي دالله ﷻ

إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝ هُوَ يُحْيِۦ وَيُمِيتُ

چي وعده دالله | حقه ده | وليكن | زيات ددوئ | نه پوهيږي | هغه ژوندى كول كوى | اومره كول كوى

وعده رښتونې ده | خو زيات خلق نه پوهيږي | هم هغه ژوندى كول كوى | او هم هغه مړه كول كوى

وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ۝

اوخالص هغه ته | به واپس بوتللي كيږئ تاسو |

هم هغه ته به تاسو ټول واپس كيږئ |

## آسان ترجمه قرآن

اوپه كومه ورځ چه دوى لره الله (په ميدان د محشر كښې) جمع كړي نو دوى ته به داسې معلومه شي چه گويا چه دوى (دنيا يا قبر كښې) د ورځې د يو ساعت نه زيات نه وو سيدلي (دې وجې نه) دوى به يو بل خپل منځ كښې پيژني حقيقت دا دي چه هغه خلقو ډېر د تاوان سودا كړي ده چه هغوى دالله سره (په آخرت كښې) ملاويدو لره دروغژن كړى دى. او كوم چه سمې لارې ته رانغلل او (اې پيغمبره !) د كومو خبرو چه موني دې (كافرانو ته) دهمكي وركړې ده، خواه كه موني ددې نه څه خبره تا ته (ستا په ژوند كښې) اوښايو يا دې نه مخكښې ستا روح واخلو. نو آخر دوى به موني ته واپس كيږي بيا (داخو ظاهره ده چه) دوى څه كوي الله هغه ښه پوره ويني (نو دوى ته به سزا وركوي) او هر يو امت دپاره يو رسول ليږلې شوي دي بيا چه كله د دوى رسول راشي نو د دوى فيصله په انصاف سره كولې شي ، او په

دوی ظلم نه شي کولی او دا (کافر) خلق (دي مسلمانانو سره د ټوکو کولو دپاره) وائي چه: که تاسو رښتینې یئ نو (دالله د عذاب دا وعده) به کله پوره کیږی؟ (اې پیغمبره ! دوی ته) ووایه چه: څه خو خپل ځان ته هم د فائدې رسولو اختیار نه لرم، او نه دنقصان رسولو ، مګر څومره چه دالله خوښه شي. د هر یو امت یو وخت مقرر دې. نو چه کله هغه وخت راشي نو د هغې نه یو ساعت نه دوی مخکښې کیدې شي او نه وروستو کیدې شي. دوي ته ووایه چه: ما ته ووایئ چه که دالله عذاب تاسو ته د شپې په وخت کښې یا د ورځې راشي نو هغه وخت کوم داسې د (د شوق قابل) څیز دې چه د هغې د زر راتللو دا مجرمان خلق مطالبه کوي؟ آیا هغه وخت چه عذاب راشي نو هغه وخت به تاسو هغې لره منئ؟ (هغه وخت خو به تاسو ته ووئیلې شي چه) اوس منئ؟ حال دا چه تاسو دې نه انکار کړې وو او دا به مو زر غوښتلو ! بیا به ظالمانو ته ووئیلې شي چه: اوس د همیشه عذاب مزه وڅکئ تاسو ته د بل څه نه صرف د هغه (بدئ) بدله درکولې شي کومه به چه تاسو کوله. او دا خلق ستا نه تپوس کوي چه آیا دا (د آخرت عذاب) رښتیا دې؟ ته ووایه چه: څما دې په خپل پروردګار قسم وي چه دا بالکل رښتیا دې او تاسو (الله لره) نه شئ عاجزه کولې. او کوم کس چه ظلم کړې وي که هغه شخه د ټولې دنیا دولت هم وي نو هغه به د ځان خلاصولو دپاره د هغې پیش کشې کوي او کله چه عذاب پخپلو سترګو بائدې ووینی نو دوی به د خپلې پښیمانئیا پټولو کوشش کوي او د دوی فیصله به په انصاف سره کیږی او په دوی به ظلم نه کیږی ○ یاد وساته چه آسمان او زمکه کښې چه څه دي صرف دالله دي. یاد او ساتئ چه دالله وعده رښتیني ده ، لیکن اکثر خلق نه پوهیږي هغه ژوندي کول او مړه کول کوي ، او هغه ته به ټول واپس کولې شئ.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَنْ لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ ﴾ اودوی ته هغه ورځ رایادکړه په کومه کښې چه الله تعالی دوی لره په داسې شان راجمع کړی چه [دوی به داګڼی چه ]ګویا دوی [په دنیایابرزخ کښی ]دټولې ورځې یوه ګنټه نیمه به پاتې شوی وی [ځکه دغه ورځ به اوږده هم وی اوسخته به هم وی په دی وجه به ددنیا اوبرزخ تکلیف بیخی هیرکړی داسی به ګڼی چه دغه زمانه بیخی زرتیره شوه اوپه خپل منځ کښی به یوبل پیژنی [هم لیکن دیوبل مدد به نشی کولې په دی به ئې غم اوصدمه نوره هم زیاته شی ځکه چه دآشناخلکونه دنفع امیدوی]

﴿ قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ○ ﴾ واقعی [دغه وخت] په تاوان کی پریوتل هغه خلك کوموچه دالله خواته تلل دروغژن کړل اودوی [په دنیاکی هم ]هدایت موندونکی نه وو [پدی وجه نن په خساره کی پریوتل .

﴿ وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ اللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ○ ﴾ پس ددوی د عذاب اصلی وخت خوداورځ ده دوی ته ئې وریادکړه ]او[په دنیاکی په دوی باندی عذاب واقع کیدل یانه واقع کیدل ددی په نسبت داخبره ده چه ]دکوم [عذاب ]ددوی سره وعده کولې شی ددې نه څه لګ شان [عذاب]که مونږ تاته وښایو[یعنی ستاپه ژوند کښې پدوی ددی نزول وشی ]یا[ددی دنازلیدونه مخکی ] مونږ تالره وفات کړو[بیاخوا که وروستونازل شی یانشی ] پس [ددواړواحتمال شته یوطرف ضروری ندی لیکن په هرحال اوپه هراحتمال باندی ] زمونږ طرف ته خوددوی راتلل خامخادی [بیابه تولوته معلومه شی چی الله تعالی ددوی په تولو

کارونو باندې خبردې سزا به پرې ورکړې غرض په دنیاکې سزاوې اوکه نه وي مگر په اصل موقع به خامخاوي [او [دا سزا کومه چه دوی ته تجويزشوې ده نودحاجت پوره کيدو اوعذرلرې کيدونه پس شوي ده.

﴿ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولٌ ۖ فَإِذَا جَاءَ رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝﴾ اوددوی څه تخصیص نشته بلکه همیشه څمونږه داعادت دی چه کومو امتونولره مونږ مکلف جوړ کړیدی په دوی کښې] دهر یوامت لپاره یوحکم رسوونکی[شوی ]دی پس کله چه ددوی دغه رسول[دوی ته ] راشي [اواحکام ورته ورسوي ددي نه پس]ددوی فیصلي په انصاف سره کولې ی شي [هغه فیصله داده چه نه منونکی به همیشه عذاب کی مبتلاکولې ی شي]اوپه دوی[یوذره ]ظلم نشی کولې [څکه چه دحجت تمامیدونه پس سزاورکول دا انصاف نه خلاف نده ].

﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ۝﴾ اوداخلك [دعذاب وعدی اوری په قصد ددروغژن کولو داسي]وائي چه [اې نبي اوائ مسلمانانو ]داوعده [دعذاب]به کله [واقع]کیږي که تاسو رشتوني ئي [انوولي ئي نه واقع کوی].

﴿ قُل لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِي ضَرًّا وَلَا نَفْعًا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ ۗ﴾ ته [دتولودطرف نه جواب ورکړه ]اوفرمائی چه زه[بخپله ]دخپل نفس لپاره هم دڅه نفع [حاصلولو]اودڅه ضرر [دفع کولو ] اختیارهم نه لرم مگرځومره [اختیار]چه الله ته منظوروي [دومره اختیار راته البته حاصل دی پس هرکله چه خاص دخپل نفع اونقصان مالك نه یم نودنوروډنفعي اونقصان به څنګه مالك شم پس عذاب واقع کول څمابه اختیار کښي نده اوداچه کله به واقع کیږي.

﴿ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ۚ إِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ۝﴾ نوخبره داده چه]دهر یوامت د[عذاب ]لپاره دالله په نزد ]یومقرروخت دی [خواه په دنیاکی یاپه آخرت کی پس[هرکله چه ددوی هغه مقرروخت راشي [نودهغه وخت ]به یوساعت نه وروسته کیدې شي اونه به وراندی کیدې شي [بلکه فوراً عذاب واقع کیږي دغه شان ستاسو دعذاب هم وخت مقرر دی پدغی وخت به واقع شي اودوی چه کوم فرمایش کوی چه څه کیدل وی نوزردی وشي لکه چه په آیات [مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ] کي او[رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا] کي ددوی‌پدې جلدبازئ ذکردی نو].

﴿ قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُهُ بَيَاتًا أَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُونَ ۝﴾ ته[ددی متعلق دوی ته ] وفرمائي چه داخووښائي چه په عذاب کی کوم شي داسې دی چه مجرمان خلك ئې زرغواړي [یعنی عذاب خوسخت اودپناه غوښتوشي دی نه چه دزرغوښتواوچونکه داجلدبازی دوی څکه کوی چه دروغ ئي گڼي پدی وجه فرمائي چه ]﴿ أَثُمَّ إِذَا مَا وَقَعَ آمَنتُم بِهِ ۚ آلْآنَ وَقَدْ كُنتُم بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ ۝﴾ آیا [اوس خونې دروغژن کوئ کوم چه دتصدیق اونفع وخت دی]بیاچه کله دغه[اصلي عذاب چه وعده ئې شوې ده ] راشي[دغه وخت ]دوی به ئي تصدیق وکړي [کوم وخت چه تصدیق بیا نفع نه ورکوي اودغه وخت به ورته وویلي شي چه هاں اوس ئې منې: حال دادی چه[اول خو] تاسو [په قصد ددروغژن کولو سره ]ددی زرغوښتنه کوله.

﴿ ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ۝﴾ بیابه ظالمانو [یعنی مشرکانو]ته وویلي شي چه دهمیشه عذاب وڅکئ تاسوته ستاسودعمل بدله ملاوده.

﴿ وَيَسْتَنبِئُونَكَ أَحَقٌّ هُوَ ۖ قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ ۖ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ۝﴾ اوددی [دډیر تعجب اوانکارنه ]ستانه تپوس کوی چه آیاعذاب واقعي شي دی ته وفرمایه چه هو قسم دی زما په رب چه دغه

واقعي شي دي اوتاسو په هيڅ شان سره خداى لره نشي عاجزه كولې [چه هغه عذاب دركوي اوتاسي ترې بچ شئ].

﴿وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِي الْأَرْضِ لَافْتَدَتْ بِهِ ۗ وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ﴾ او [دا عذاب به داسي سخت وى چه] كه دهرېو مشرك سړي سره دومره [مال] وى چه ټوله ځمكه ترې ډكه شي بياهغه دخان دبچ كولو پاره وركول وغواړي [اګرچه نه به خزانه وى اونه به اخيستې شي ليكن سختي به دومره وى كه مال ئې وى نو په ټول مال وركولوباندې به راضي شي] اوكله چه عذاب وويني نو [دزياتي رسوائي دويرې نه] خپيماني لره به پټه [په زړه كښې] اكوئ [يعنى د خپيمانى ظاهرى قولي اوفعلي نښې به نه ښكاره كوي چه ليدونكى ورپورې زيات ونه خاندې ليكن په آخره كې به ترې داضبط اوبرداشت هم ونه شي].

﴿وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ﴾ اوددوى فيصله به په انصاف سره وشي اوپه دوى به [ذره] ظلم ونشي.

﴿أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ أَلَا إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ يادساتئ چه څومره څيزونه په آسمانونوكې اوپه زمكه كښې دي ټول داالله تعالى ملكيت دى [چه څنګه غواړي هغسې تصرف پكښې كوي اوپه ديكښې دامجرمان هم داخل دي ددوى فيصله به هم په ذكر شوي طريقه وشي]. يادساتئ چه داالله تعالى وعده رشتوني ده [پس قيامت به خامخا راشي ]ليكن ډيرخلك يقين نه كوي.

﴿هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ هغه روح وركوي اوهغه روح اخلي [پس دوباره پيداكول هغه ته څه مشكل دى] اوتاسو ټول به دهغه مخې ته راوستلى شئ [اوحساب اوكتاب اوبيابه په دې باندې ثواب اوعذاب وى].

## معارف او مسائل

﴿يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ﴾ يعنى كله چه په قيامت كښې به دوباره مرى ژوندى كړې شي نو داسې به يو بل پيژني لكه ډيره موده چه نه وى تيره شوې.

امام بغوى رحمه الله د دې په تفسير كښې ليكلي دي چه دا پيژندل به په اول كښې وى بيا چه كله د قيامت هيبتناک واقعات مخې ته راشي نو دغه پيژند ګلنه به ختمه شي، په بعضې روايتونو كښې راځي چه پيژند ګلنه به بيا هم وى مګر د زيات هيبت د كبله به خبرې نه شي كولې [مظهرى] (١)

﴿أَلْآنَ إِذَا مَا وَقَعَ آمَنْتُمْ بِهِ ۚ آلْآنَ﴾ [يعنى تاسو به ايمان هله راوړې چه عذاب درباندې د مرګ نه وراندې يا د مرګ په وخت راشي؟ حالانكه دغه وخت به ستاسو د ايمان په جواب كښې ونيلې شي [آلن ابنه؛ اوس ايمان راوړې چه وخت درباندې تير شو؟ څنګه چه د غرقيدو په وخت فرعون اووئيل ﴿آمَنْتُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ﴾ خو په جواب كښې ورته ﴿آلْآنَ﴾ اووئيلې شو، او ايمان راوړل ئې قبول نه كړې شو ولې چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دي چه الله تعالى د بنده توبه په مخه قبلوى تر څو چه د مرګ آخرى سلګې پرې نه وى راغلې، (٢) يعنى د سا د وتو د وخت

---

(١) تفسير البغوى تحت هذه الآية: ج ٢، ص ٣٥ والتفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٣١

(٢) جامع الترمذى، أبواب الدعوات، باب فى فضل التوبة والاستغفار: ج ٢، ص ١٩٣

ایمان او توبه د الله تعالی په نزد معتبره نه ده. دغه شان په دنیا کښې تر هغه وخته پورې توبه قبلیدې شی چه عذاب لا په سر نه وی راغلې، چه عذاب ئې په سر راشی بیا توبه نه قبلیږی. په آخر د سورت کښې د حضرت یونس ﷺ د قوم د توبې د قبلیدو مطلب دا دې چه هغوی د لرې نه د عذاب په لیدو سره توبه اوښکلې وه او ډیره زاری او عاجزی ئې هغه وخت ښکاره کړې وه چه عذاب ئې په سر نه وو راغلې او د هغې نه وړاندې ئې رښتونې توبه اوښکلې وه، ځکه ترې عذاب واپس اوګرځولې شو.

يَاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ

| اے خلقو | په تحقیق سره راغلې دې تاسو ته | نصیحت

| ائې خلقو تاسو ته دخپل پروردګار د طرفنه نصیحت راغلې دې

مِّنْ رَّبِّكُمْ وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُوْرِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ

دطرفه درب ستاسونه | اوشفاء ده | دپاره دهغه | چې په سینو کښې دی | اولاربښودونکې دې | اورحمت دې

او د زړونو دمرضونو علاج دې | او چې څوک ئې اومنی دهغوئ دپاره هدایت او رحمت دې

لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۝ قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ

دپاره دمومنانو | ورته اووایه | چې په فضل دالله سره | اوپه رحمت دهغه سره | نو هم په دې باندې |

اووایه چې دالله ﷻ په فضل اودهغه په رحمت سره هم دغه خلقو ته خوشحالی پکار ده | دغه

فَلْيَفْرَحُوْا ۭ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ۝

پکار دی چې خوشحاله شی دوئ | دا | بهتر دې | دهغه ټولو څیزونو نه | چې دوئ ئې جمع کوی |

[فضل او رحمت] بهتر دې | د هغې [مالونو] نه چې دوئ ئې راجمع کوی | ورته اووایه چې

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ

اووایه | آیا وینئ تاسو | هغه څه | چې نازل کړې دې الله | ستاسو دپاره | د رزق نه | نو جوړ کړل تاسو

دا اووائې چې الله ﷻ تاسو ته کوم رزق رالیږلې وو | نو تاسو [د هغې نه] په هغې کښې څه

مِّنْهُ حَرَامًا وَّحَلٰلًا ۭ قُلْ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَى اللّٰهِ

دهغې نه | څه حرام | او څه حلال | ورته اووایه | آیا الله | اجازت درکړې دې | تاسو ته | یا په الله باندې

حرام او څه حلال کړل | ددوئ نه تپوس اوکړه آیا الله ﷻ تاسو ته ددې اجازت درکړې دې | که نه تاسو

تَفْتَرُوْنَ ۝ وَمَا ظَنُّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

دروغ تړئ تاسو | او څه دې | ګمان | دهغه کسانو | چې تړی هغوئ | په الله باندې | دروغ |

د [خان نه] په الله ﷻ باندې دروغ وائې | آیا د قیامت د ورځې په باره کښې دهغې خلقو څه

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ

په ورځ دقیامت | بیشکه | الله | خامخا خاوند دفضل دې | په خلقو باندې | ولیکن | زیات ددوئ

ګمان دې، | څوک چې په الله ﷻ باندې دروغ تړی | بیشکه الله ﷻ په خلقو ډیر مهربان دې | خو زیات

Scanned with Ca

لَا يَشْكُرُوْنَ۞ وَمَا تَكُوْنُ فِيْ شَاْنٍ وَّمَا تَتْلُوْا مِنْهُ مِنْ قُرْاٰنٍ وَّلَا

نه اوباسی شکر | اونه نې ته | په هیڅ حال کښې | اونه لولي ته | دده نه | دقرآن نه | اونه

خلق ناشکره دی [او اې پیغمبره] ته په هر حال کښې چې نې [او په دغې [حال] کښې هم چې قرآن پاک

تَعْمَلُوْنَ مِنْ عَمَلٍ اِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُوْدًا اِذْ تُفِيْضُوْنَ

کوئ تاسو اے خلقو | یو عمل | مگر [یو مونږه] په تاسو باند [نظر لرونکی] کله چې [مصروف اوسئ تاسو

لولی [او اې خلقو تاسو هم چې څه کار کوئی [نو په هر حال کښې مونږ تاسو وینو گورو] څه وخت چې تاسو

فِيْهِ ؕ وَمَا يَعْزُبُ عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ

په هغې کښې | اونه پټیږی | درب ستانه | په مقدار | دیوې ذرې | په زمکه کښې | اونه په آسمان کښې

په هغه کار کښې اخته یئ [او ستا دپروردگار نه لږ څیز هم پټ نشی پاتې کیدې انه په زمکه کښې اونه په آسمان

وَلَآ اَصْغَرَ مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْبَرَ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ۞

اونه وړوکي | دهغې نه | اونه لوئ | مگر | په کتاب | واضحه کښې

کښې [او نه دهغې نه وړوکي اونه لوئي | مگردا ټول په پوره واضحه کتاب [لوح محفوظ] کښې لیک دی

## آسان ترجمه قرآن

اې خلقو ! تاسو ته یو داسې څیز راغلې دې چه ستاسو د پروردګار د طرف نه یو نصیحت دې ، او دزړه د مرضونو شفا دې ، او د ایمان خاوندانو دپاره هدایت او رحمت دې (اې پیغمبره !) ته ووایه چه: دا ټول د الله په فضل او رحمت سره شوی دی، دې وجې نه په دې باندې دوی لره خوشحالیدل پکار دي دا دهغه ټول دولت نه بهتر دي کوم چه دوی جمع کوي. ته ووایه چه: ووایئ الله چه تاسو ته کوم رزق نازل کړې وو نو تاسو دخپل طرف نه دې نه څه حلال وګرځول او څه مو حرام! دوی نه تپوس وکړه چه: آیا الله تاسو ته ددې اجازت درکړې وو یا تاسو په الله باندې دروغو بهتان تړئ ؟"○او څوک چه په الله باندې بهتان تړي د قیامت د ورځې په باره کښې د هغوی څه ګمان دې ؟ دې کښې څه شک نشته چه الله تعالی انسانانو سره د فضل معامله کونکې دې ، لیکن دوی کښې اکثر خلق شکر نه وباسی. او (اې پیغمبره !) چه کوم حالت کښې هم ته ئې، او دقرآن کومه حصه هم تلاوت کوې، او (اې خلقو) څه کار هم چه تاسو کوئ، نو څه وخت چه هغې کښې مشغولیږئ، نو مونږ تاسو ته ګورو. او ستا د رب نه ذره شې هم نه دې پټ . نه په زمکه کښې او نه آسمان کښې . نه ددې نه وړوکې او نه ددې نه غټ . مګر هغه یو واضح کتاب کښې دې.

### خلاصه تفسیر :

﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُوْرِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ۞﴾ اې خلکو تاسو ته د الله د طرف نه یو داسی شې راغلی کوم چه [دبدو کارونونه دمنع کولو لپاره] نصیحت دی او [چه په پدی عمل وکړی دبدو کارونونه منع شئ نو] په زړونو کی چه کوم [دبدو کارونونه] مرض دی دهغی لپاره شفاء ده او [دنیکو کارونو کولو لپاره] لارخودونکی دی او که عمل پری وشی نیك کارونه اختیار کړې ی شی نو] رحمت [او ذریعه دثواب] دی] او دا ټول برکتونه] دایمان دارو لپاره [ځکه چه عمل هغوی کوی پس دقرآن دا برکتونه واوروه].

Scanned with Ca

﴿ قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوْا ۭ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ۝﴾ ته دوی ته] ووایه چه [هر کله قرآن داسی شی دی نو ]خلکو لره دالله په دی انعام اورحمت باندی خوشحاله کیدل پکاردی [اودی لره لوی نعمت گنڑل پکار دی ]هغه ددی [دنیا ]نه په ډیرودرجوغوره دی کوم چه دوی جمع کوی خکه چه ددنیا نفع لره اوفانی ده اودقرآن نفع ډیره اوباقی ده ].

﴿ قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ مِّنْهُ حَرَامًا وَّحَلٰلًا ۭ قُلْ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَى اللّٰهِ تَفْتَرُوْنَ ۝﴾ ته [دوی ته]ووایه داخووبنائی چه الله تعالی ستاسو [دنفع لپاره ]چه کوم رزق رالیږلی وو بیا تاسو [دخپل خان نه]ددی څه حصه حرامه اوڅه حلاله مقرر کړه [حال دادی چه ددی دحراموالی څه دلیل نشته نو]ته [ددوی نه تپوس وکړه چه آیاتاسوته خدای حکم کړی دی یا [محض ]په الله [دخپل طرف نه] دروغ جوړوئ.

﴿ وَمَا ظَنُّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ ۝ۧ﴾ اوکوم خلك چه په الله دروغ جوړوی ددوی دقیامت په نسبت څه گمان دی [کوم چه بالکل نه ویریږی آیادوی گنی چه قیامت به نه راخي اوکه راشی خونړنه به تپوس نه کیږی] واقعی په خلکوباندی دالله لوی فضل دی [چه في الحال سزانه ورکوی بلکه دتوبی لپاره ئی مهلت ورکړیدی ] لیکن اکثر خلك بي قدره دي [ورنه توبه به ئي کوله ].

﴿ وَمَا تَكُوْنُ فِيْ شَاْنٍ وَّمَا تَتْلُوْا مِنْهُ مِنْ قُرْاٰنٍ وَّلَا تَعْمَلُوْنَ مِنْ عَمَلٍ اِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُوْدًا اِذْ تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ۭ﴾ اوته [خوا ]په هرحال کی چه ئی او[منجمله ددی ټولوحالاتونه]که ته چیری قرآن لوللی او [دغسی نورخلك هم څومره چه دي ]تاسو چه کوم کار هم کوئ مونږ دټولونه خبریوکله چه تاسوددی کار کول شروع کوئ.

﴿ وَمَا يَعْزُبُ عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاۗءِ وَلَآ اَصْغَرَ مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْبَرَ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝﴾ اوستا درب [دعلم]نه هیڅ شی دذری برابر هم غائب نه دی نه په ځمکه نه په آسمان کښی [بلکه ټول دهغه په علم کی حاضردي]اونه څه شی ددي[ذکرشوی مقدار]نه وړوکی اونه څه شی [ددی نه ]لوی مگر داټول یعنی په وجه داحاطی دعلم دالهی په ښکاره کتاب [لوح محفوظ ] کی [لیك] دی.

## معارف او مسائل

په تیرو شوو آیتونو کښې د کفارو او مشرکانو بدحالی او په آخرت کښې په دوی باندې د قسما قسم عذابونو بیان وو.
اوس د دې آیتونو نه په ړومبو دوو آیتونو کښې دوی ته د دغې بدحالې اوگمراهی نه د وتلو طریقه او د آخرت د عذاب نه خلاصیدو ذریعه ښودلې شوې ده چه دا د الله تعالی کتاب قرآن کریم او د هغه رسول محمد ﷺ دې چنانچه د انسان او انسانیت د پاره دا دواړه داسې لوئې نعمتونه دی چه د اسمان او زمکې د ټولو نعمتونو نه اعلی او زیات غوره دی. د قرآن او سنت د احکامو تابعداری کول د انسان نه په صحیح معنو کښې انسان جوړوی، هر کله چه انسان کامل شی نو ټول جهان سمدم شی بلکه دا دنیا ټوله جنت جوړه شی.
په ړومبی آیت کښې د قرآن کریم څلور خصوصیتونه بیان شوې دی؛
① ﴿مَّوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ ﴿مَّوْعِظَةٌ﴾ او [وعظ] په اصل کښې د داسې خیزونو بیانول دی چه د هغې په اوریدو سره د انسان زړه نرمیږی او الله تعالی ته سر ټیټې کیږی، د دنیا غفلت او بې پروائی ئې

Scanned with Ca

ختمه شي او د آخرت فکر ئې مخې ته راشي، قرآن کريم د اول نه تر آخره پورې د [موعظه حسنه] ډير بليغ، تبليغ کونکې دې، په دې کښې هر ځاې د وعدې سره د وعيد، ثواب سره د عذاب، په دنيا او آخرت کښې خلاصې او کاميابې سره د ناکامې او ګمراهې وغيره داسې شريک بيان راغلې دې چه د هغې په اوريدو سره کاڼړې هم اوبه او موم کيږي، دې نه علاوه د قرآن کريم معجزانه بيان داسې دې چه د زړونو په حالاتو بدلولو کښې بې مثاله دې.

﴿مَوْعِظَةٌ﴾ سره د ﴿مِّن رَّبِّكُمْ﴾ قيد د قرآنى وعظ شان نور هم څکه لوړ کړو چه دا وعظ د خپل ځان په شان د چا عاجز انسان د اړخه نه دې، د چا په لاس کښې چه د بل سود، زيان [فائده او نقصان] ثواب يا عذاب هيڅ نشته بلکه د رب کريم د اړخه دې د چا په قول کښې چه د غلطې امکان نشته، او د چا په وعد او وعيد کښې چه د څه عاجزې، کمزورې يا د عذر هيڅ خطره نشته.

۲ د قرآن کريم دويم صفت ﴿وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ﴾ ئې ارشاد اوفرمائيلو، د شفاء معنى بيمارى او رنځ لرې کيدل دى او صدور د صدر جمع ده معنى ئې سينه ده او مراد ترې قلب زړه دې.

معنى ئې دا ده چه قرآن کريم د زړونو د رنځونو کامياب علاج او د صحت او شفاء اکسيره [مجربه] نسخه ده، حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائيلې دى چه د قرآن کريم د دې صفت نه معلومه شوه چه دا خاص د زړونو د رنځورتيا د پاره شفاء ده، د بدنى رنځونو علاج نه دې [روح المعانى] (۱) خو نور حضرات رحمهم الله فرمائى چه په حقيقت کښې قرآن کريم د هر رنځ شفاء ده که هغه د زړه وى او که د روح وى يا که د جسم او بدن رنځ وى خو د روحانى رنځونو تباهې د انسان د پاره د بدنى رنځونو د نقصان نه زياته سخته ده، او د دې علاج کول هم د هر چا په وس کښې نه وى، څکه دلته يواځې د قلبى او روحانى رنځونو بيان شوې دې خو دې نه دا نه لازميږى چه دا بدنى رنځونو د پاره شفاء نه ده.

د حديث د روايتونو او د امت د علماؤ بې شميره تجربې په دې ګواه دى چه څنګه قرآن کريم د زړونو د رنځونو د پاره اکسير اعظم دې دغه شان د بدنى رنځونو د پاره هم ډير غوره علاج دې.

د حضرت ابى سعيد خدرى رضى الله عنه د روايت مطابق د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې يو سړې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه زما په سينه کښې تکليف دې، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چه قرآن کريم لوله ولې چه الله تعالى فرمائى ﴿وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ﴾ [يعنې قرآن کريم د هغه ټولو رنځونو شفاء ده چه په سينو کښې وى [روح المعانى د ابن مردويه نه] (۲)

دغه شان د حضرت واثله ابن اسقع رضى الله عنه د روايت مطابق يو سړې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او وې وئيل چه حلق [مرۍ] کښې مې تکليف دې، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چه قرآن کريم اولوله (۳)

چنانچه د امت عالمانو څه د روايتونو او اشارو نه او څه د خپلو تجربو نه د قرآنى آيتونو خصوصيتونه او فائدې په مستقلو کتابونو کښې راجمع کړې دى، د امام غزالى رحمه الله خواص قرآنى نومې کتاب په دې باره کښې ډير زيات مشهور دې چه حکيم الامت حضرت مولانا

(۱) روح المعانى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۳۹

(۲) روح المعانى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۳۹

(۳) شعب الإيمان للبيهقى رقم الحديث: ۲۲۷۵

تهانوي رحمه الله د اعمال قرآني په نوم د دې خلاصه شائع کړې ده، مشاهدې او تجربې خو دومره ګنړې دی چه انکار ترې نه شی کیدې چه د قرآن کریم مختلف آیتونه د مختلفو بدني رنځونو د پاره هم کلي شفاء ثابت شوې دی، البته دا خبره ضرور شته چه د قرآن کریم د نازلیدو اصلي مقصد د زړه او روح رنځونه لرې کول دی او د دې په ضمن کښې د بدني رنځونو د پاره هم ډیر غوره علاج دې. دې نه د هغې خلقو بې وقوفي او کوږ تګ هم معلوم شو چه قرآن کریم لره یواځې د بدني رنځونو د علاج یا دنیوي حاجتونو د پاره لولي او لولوي، د روحاني مرضونو اصلاح ته هم خیال نه کوي او د قرآن کریم په هدایتونو باندې عمل کولو ته هم مخه نه کوي، د داسې خلقو په باره کښې علامه اقبال رحمه الله فرمائیلې دی؛

ترا حاصل زیٰس آش جزین نیست که از هم خواندنش آسان بمیری

[یعنی تا خو د قرآن کریم د سورت یس نه صرف دومره فائده بیا مونده چه د دې په لوستلو سره دې مرګ آسان شي] لیکن د دې سورت په معنو، حقیقتونو او علمونو کښې که غور او کړې شی نو دې نه زیاتې فائدې او برکتونه ترې هم حاصلیدې شي.

بعضې اهل تحقیقو مفسرینو رحمهم الله فرمائیلې دی چه د قرآن کریم د ړومبي صفت ﴿مَّوْعِظَةٌ﴾ تعلق د انسان ظاهري عملونو سره دې کومو ته چه شریعت وئیلې شی، قرآن کریم د دې عملونو د اصلاح ډیره غوره ذریعه ده او د ﴿وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ﴾ تعلق د انسان باطني عملونو سره دې چه طریقت او تصوف نومیږي.

③ او ④ په دې آیت کښې د قرآن کریم دریم [﴿وَهُدًى﴾ او څلورم صفت [﴿وَّرَحْمَةٌ﴾ بیان کړې شوې دې، د ﴿وَهُدًى﴾ معنی هدایت او لار ښودنه ده، چنانچه قرآن کریم انسان ته د حق او یقین بلنه ورکوي او انسان ته ښائي چه د ټول جهان په اطرافو او پخپله د دوی په ځانونو کښې چه کومې لوئې نخښې ایښې شوې دی په هغې کښې غور، فکر کوي، د پاره د دې چه د دې ټولو څیزونو خالق او مالک او پیژني.

په دویم آیت کښې فرمائي: ﴿قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوْا ۭ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ﴾

[یعنی خلقو له ښکار دی چه یواځې د الله تعالی فضل او رحمت د اصلي خوشحالۍ څیز او ګنړي او یواځې په دې څیز خوشحاله شي د دنیا د څو ورځو مال، متاع، راحت او عزت په حقیقت کښې د خوشحالیدو څیز نه دې، ولې چه اوله خبره خو دا ده چه دا که هر څومره زیات هم چا ته حاصل وي بیا هم نیمګړې وي، بله دا چه هر وخت د دې د لرې کیدو خطره وي خکه په آخر د آیت کښې فرمائي ﴿هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ﴾ [یعنی د الله تعالی فضل او رحمت، دې ټول مال، دولت، عزت او سلطنت نه زیات غوره دې چه انسان ئې د خپل ټول ژوند پنګه ګنړي او جمع کوي ئې.

په دې آیت کښې دوه څیزونه د آرام او راحت سامان ګرځولې شوې دې، یو فضل او بل رحمت دې دواړو نه مراد دلته څه څیز دې؟ په دې باره کښې د حضرت انس رضي الله عنه په روایت د رسول الله صلی الله علیه وسلم یو فرمان منقول دې هغه فرمان مطابق د الله تعالی د فضل نه مراد قرآن کریم دې او د رحمت نه مراد دا دې چه تاسو ته ئې د قرآن کریم د لوستلو او په دې باندې د عمل کولو توفیق درا وبخښلو [روح المعاني دابن مردویه نه] (۱)

(۱) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ۲۲۳ و روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۰

همدا مضمون د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه او ابی سعید خدری رضي الله عنه نه هم منقول دي[1] او ډیرو مفسرینو حضراتو فرمائیلي دی چه د فضل نه مراد قرآن کریم او د رحمت نه مراد اسلام دي خو مطلب ئی هم هغه راوخی کوم چه د وړاندینی حدیث نه معلوم شو چه د رحمت نه مراد دا دي چه الله تعالی مونږ ته قرآن کریم اوښودلو او په دې باندې د عمل کولو توفیق ئې راکړو ځکه چه اسلام د دې حقیقت يو عنوان دی.

او د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه په روايت[2] کښې راغلي دی چه د فضل نه مراد قرآن کريم او د رحمت نه مراد رسول الله ﷺ دي ځکه چه قرآن کریم فرمائی ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَٰلَمِينَ﴾[3] خو د دې تفسير هم د وړاندینی تفسیر نه بدل ځکه نه دې چه په قرآن کريم يا اسلام باندې عمل کول د رسول الله ﷺ د تابعدارۍ کولو مختلف عنوانونه دی.

په دې آيت کښې د مشهور قراءت مطابق ﴿فَلْيَفْرَحُوا۟﴾ د غائب په صيغې سره راوړې شو حالانکه د دې اصل مخاطبين د دغه وخت موجود او حاضر خلق وو، پکار دا وو چه د مخاطب په صيغې سره راوړلې شوې وې ځنگه چه په بعضې قراتونو کښې راغلي هم دی خو د مشهور قرات په جوړ د غائب په صيغې راوړلو کښې حکمت دا دې چه رسول الله ﷺ يا د اسلام عام رحمت صرف د دغه وخت موجود او حاضرو خلقو د پاره مخصوص نه وو بلکه تر قيامته پورې پيدا کيدونکو نسلونو لره هم شامل دي[روح المعانی][4].

**فائده:** دلته دا خبره د غور کولو جوگه ده چه د يو بل آيت د ظاهری الفاظو نه معلوميږی چه په دې دنيا کښې د خوشحالۍ کولو هيڅ مقام نشته، لکه فرمائی ﴿لَا تَفْرَحْ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْفَرِحِينَ﴾ [يعنی د خوشحالۍ په وجه مه مستيږه ځکه چه الله تعالی داسې خوشحاليدونکی نه خوښوی].

او په دې آيت کښې د امر په صيغې سره د خوشحاليدو حکم ورکړې شوې دي. د دې جواب دا دې چه د دنيا په ساز و سامان باندې خوشحاليدل منع کړې شوې دی او د الله تعالی په فضل او رحمت سره د خوشحاليدو حکم ورکړې شوې دې، بل فرق ئې دا دې چه مطلق خوشحاليدل نه دی منع کړې شوې بلکه هغه خوشحاليدل منع کړې شوې دی چه د خوشحالۍ نه مست شی، او اجازت د مطلق خوشحالۍ دي.

په دريم آيت کښې هغه خلقو ته خبردارې ورکړې شوې دې چه د حلال او حرام په معامله کښې خپلې ذاتی رائې له دخل ورکوی او د قرآن او سنت دليل پيش کولو نه بغير په خپله خوښه څه څيز حراموی او څه څيز حلال بولی، په دې باندې د قيامت سخت وعيد بيان کړې شوې دې، دی نه معلومه شوه چه د څه څيز حراميدل يا حلاليدل په انسانی رائې باندې تکيا نه لری بلکه دا خالص د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ حق دې، د دوی د حکمونو نه بغير څه څيز ته حلال يا حرام وئيل جائز نه دی.

په څلورم آيت کښې دا بيان شوې دی چه د الله تعالی علم په هر څه باندې محيط دې او بې مثاله وسيع دې، او په دې سره ئې رسول الله ﷺ مخاطب کړې دې چه تاسو ﷺ څه کار کوې او

1) تفسير البغوی تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۸
2) روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۲۱
3) ترجمه: او مونږ ته څه يلی خبرے دپاره نه يی راليږلے مگر د دنيا خلقو باندے د مهربانۍ دپاره.
4) تفسير روح المعانی: ج ۸، ص ۲۱

په کوم کار کښې چه همیشه ئې، یا قرآن کریم لولې د دې تولو هیڅ برخه مونږ نه پټه نه ده دغه شان تول انسانان چه څه عملونه کوی هغه زمونږ د نظر په وړاندې دی او اسمانونو او زمکه کښې هیڅ یو ذره هم زمونږ نه پټه نه ده بلکه هر څیز په ﴿كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ﴾ یعنی لوح محفوظ کښې لیکلې شوې دی.
په ظاهره دلته د الله تعالی د علم فراخی او هر څیز لره محیط کیدلو بیانولو دا حکمت دې چه په دې سره رسول الله ﷺ ته داسې تسلی ورکول دی چه اګر که ستاسو مخالفین او دشمنان زیات دی خو تاسو د الله تعالی په حفاظت کښې یې دوی درته هیڅ زیان نه شی رسولې.

| |
|---|
| أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ اللّٰهِ |
| واورئ \| بیشکه \| دوستان دالله چې دی |
| |
| لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| نه به وی یره \| په هغوئ باند \| اونه به هغوئ \| غمجن کیږی \| هغه دوستان \| چی ایمان ئې راوړو |
| واورئې چې دالله ﷻ په دوستاسو به نه ویره وی \| اونه به غمژن شی \| داهغه کسان دی چې ایمان ئې |
| وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ۝ لَهُمُ الْبُشْرٰى فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ |
| اووؤ هغوئ \| چی خان ئې ساتو \| هغوئ لره دې \| زیرې \| په ژوند ددنیا کښی \| اوپه آخرت کښی |
| راوړو \| او پرهیزګاری ئې اختیار کړه \| دوئ دپاره هر طرف ته زیرې دې \| په دنیا کښې او په آخرت کښې |
| لَا تَبْدِيْلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝ |
| نشته هیڅ بدلون \| خبرو دالله لره \| دا زیرې \| هم داکامیابی ده \| لویه \| |
| هم دالله ﷻ خبرې نه بدلیږی \| هم دغه لویه کامیابی ده \| |

## آسان ترجمه قرآن

یاد وساتئ چه کوم دالله دوستان دي، نه به په هغوی څه ویره وي او نه به هغوی غمژن شي دا هغه خلق دی چه دوی ایمان راوړي دي، او تقوئ ئې اختیار کړې ده. دوي لره زیرې دي، په دنیا کښې هم او آخرت کښې هم دالله په خبرو کښې څه بدلون نه شي کیدې، هم دا لویه کامیابي ده.

## خلاصه تفسیر

﴿أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝﴾ دا خود علم الهی بیان وو مخکښې د مخلصین او مطعین د حفاظت بیان دې. یاد ساتئ دالله تعالی په دوستانو نه څه اندیښنه [ناکه واقعه پریوتونکی] ده اونه به دوی [دڅه مطلب په فوت کیدوباندی] غمژن کیږی [یعنی الله تعالی دوی لره دویریدونکو اوغمناکو حادثونه ساتی او].
﴿الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ۝﴾ دغه [دالله دوستان] هغه دی کوم چه ایمان راوړی او [دګناهونونه] پرهیزکوی [یعنی په ایمان او تقوی سره دالله تعالی نزدیکت نصیبیږی.

Scanned with Ca

﴿لَهُمُ الْبُشْرٰى فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ لَا تَبْدِيْلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ﴾ او دويری اوغم نه ددوی دمحفوظ کيدووجه داده چه] ددوی دپاره ددنيا په ژوند کښی اوپه آخرت کی هم [دالله تعالی دطرف نه دويری اوغم نه دبچ کيدو] خوشخبری ده [او] دالله په خبروکښی [وعده کښی] څه فرق نشی راتلی [پس هرکله چه په زيری کښی ددوی سره وعده وشوه اووعده هميشه صحيح وی پدی وجه ديری اوغم نيشتوالی صحيح اولازم دی] دا [زيری چه کوم ذکرشو] الويه کاميابی ده.

## معارف او مسائل

په دې آيتونو کښې د اولياءالله د خصوصي فضيلتونو، د هغوی پيژند ګلنه کول او بيا په دنيا او آخرت کښې هغوی د پاره د زيری بيان دې لکه فرمائی؛ د الله تعالی دوستانو ته به د يو نا خوښه څيز د راپيښيدو خطره نه وی او نه به ئې د يو مقصد د فوت کيدو غم وی او د الله تعالی دوستان هغه دی چه ايمان ئې راوړو او چا چه تقوی او پرهيزګاری اختيار کړه، دوی د پاره دنيا کښې هم زيرې دې او په آخرت کښې هم۔

دلته په څو خبرو باندې ژور نظر اچول دی،

①دا چه د الله تعالی په دوستانو باندې د يرې او د غم د نيشوالی څه معنی ده؟

②دا چه د الله تعالی دوستان به څنګه پيژندې شی د دوی نخښې نښانې څه دی؟

③دا چه په دنيا او آخرت کښې د دوی د زيری نه څه مطلب دې؟

د الله تعالی په دوستانو باندې د غم د نيشوالی مطلب دا هم کيدې شی چه په آخرت کښې د حساب کتاب نه پس کله چه دوی ته جنت ورکړې شی نو تل د پاره به د يرې او غمونو نه خلاص شی، د څه تکليف او پريشانې خطره به ئې نه وی او د څه خوښ څيز د لاس نه د وتو غم به ورسره نه وی، بلکه د جنت نعمتونه به هميشه او نه لرې کيدونکی وی، د دې معنی په لحاظ خو د آيت په مضمون باندې هيڅ اشکال نه راځی خو دا سوال ضرور راپورته کيږی چه په دې کښې د اولياءالله څه خصوصيت پاتې نه شو بلکه تمام اهل جنت چه د جهنم نه ورته نجات ملاو شو هغوی به په دې حال کښې وی يعنی د دې يو جواب دادې چه څومره خلق هم په آخرت کښې جنت ته اورسيدل هغه ټول به اولياءالله بللی شی، اګرکه په دنيا کښې د هغوی عملونه هر څومره مختلف وو مګر جنت ته د داخليدو نه پس به هغه ټول د اولياءالله په فهرست کښې شمارلې کيږی.

مګر ډيرو مفسرينو فرمائيلې دی چه په اولياءالله باندې د غم او د يرې نه راتلل په دنيا او آخرت دواړو کښې عام دی، دا د اولياءالله خصوصيت دې چه په دنيا کښې به هم په دوی غم او يره نه وی، او په آخرت کښې په دوی د غم او يرې نه راتلل ټولو ته معلومه ده، او په دې کښې ټول اهل جنت داخل دی۔

مګر په دې باندې حالاتو او واقعاتو په اعتبار سره دا اشکال کيدې شی چې په دنيا کښې دا خبره د مشاهدې نه خلاف نه ده ځکه اولياءالله خولا څه کوې چه پيغمبران ﷺ هم د دنيوی يرې او غم نه ځکه خلاص نه دی چه الله تعالی پخپله فرمائی؛ ﴿اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا﴾ [يعنی الله تعالی نه په پوره ډول هم علماء يريږی] او بل ځای کښې د اولياءالله حال داسې بيانوی ﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ۚ اِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَاْمُوْنٍ﴾ [يعنی دا خلق هميشه د عذاب نه يريږی ولې چه د دوی د رب عذاب داسې څيز نه دې چه څوک ترې بې فکره کيدې شی۔

او واقعات هم دغسې دي لکه د شمائل ترمذی په يو حديث کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ به په اکثرو حالاتو کښې فکرمن او غمژن ښکاريدو ،او رسول الله ﷺ پخپله فرمائيلې دی چه زه تاسو ټولو نه زيات د الله تعالى نه ويريږم۔
په صحابه کرامو ﷺ کښې د ټولو نه افضل حضرت صديق اوفاروق ﷺ او د ټولو صحابهٔ کرامو ﷺ، تابعينو ﷺ او اولياءالله ﷺ د ژاړې،ژړا او د آخرت د يرې واقعات بې شميره دی،
چنانچه علامه محمود آلوسی ﷺ په روح المعانی کښې فرمائيلې دی چه اولياءالله سره په دنيا کښې د يرې او غم نيشوالې دا مطلب لرې چه دوی سره د اهل دنيا په شان د نيوی څيزونو يره او غم نه وی چه مثلاً د دنيا په يو څيز ،دنيوی آرام او عزت،دنيوی مال،دولت په کموالې يا په نه موندو باندې دومره زيات خفگان نه کوی چه د هغې د غمه مری او د هغې نه د خان ساتلو په تدبيرونو کښې شپه ورځ په خان يوه کړی،د اولياءالله مقام د دې ټولو نه ډير اوچت او لوړ وی،[۱]د دوی په نظر کښې د دنيا فانی عزت،دولت،راحت او آرام هيڅ څيز نه دې چه د هغې تر لاسه کولو پسې سرگردانه وی او نه دغه دنيوی تکليفونو او غم خفگان پسې څه مخ اوړی چه د هغې په شا تمبولو پسې پريشانه او بې آرامه وی،بلکه د دوې دا حال وی؛

نه شادی داد سامانےنه غم آورد نقصانے به پيش همت ما هر چه آمد بود مهمانے

[نه راله خوشحالې څه بار کړی اوښان راوستل او نه راته غم څه زيان راکړو زموږ د مراني مخې ته هر يو څيز لکه ميلمه دی]۔
د الله تعالى د لويې،يرې او ترهې په دوی داسې غلبه کړې وی چه د هغې په مقابله کښې د دنيا سود ،زيان،آرام او تکليف د ماشی د وزر ارزښ هم نه لری لکه چه څنو وئيلې دی؛

یہ تنگ عاشقی ہے سود و حاصل دیکھنے والے [یہاں] گمراہ کہلاتے [ہیں] منزل دیکھنے والے

[په عاشقۍ کښې سود او زيان ته کتونکی عاشقی شرموی ؛ په دې لار کښې هغه عاشقان گمراه بللې شی څوک چه منزل ته سترگې نيسی]۔
دويمه خبره د اولياءالله د پيژندگلنې او د هغوی د نخښو نښانو په باره کښې ده،اولياء د ولی جمع ده په عربی کښې ولی د نزدې معنی هم ورکوی او د دوست او محبت کوونکی په معنی هم راځی،د الله تعالى د نزديکت او دمينې يو عامه درجه خو داسې ده چه د دې نه د دنيا څوک انسان او حيوان بلکه هيڅ څيز مستثنی نه دې،که دا نزديکت نه وی نو په ټوله دنيا کښې هيڅ يو څيز وجود ته نه شی راتلې،د تمام عالم د وجود اصلې علت هم دغه خاص تړون دې کوم چه ورته د الله تعالى نه حاصل دې اگرچه د دې تړون په حقيقت څوک پوهه نه شو او نه پوهيدې شی،مگر د يو بې کيفه تړون کيدل يقينی دی،خو په لفظ د[اولياءالله]سره د وليتوب دغه درجه مراد نه ده بلکه د وليتوب،مينې او نزديکت يوه بله درجه هم شته چه د الله تعالى خاص بندگانو سره خاص ده،دې ته د مينې نزديکت وئيلې شی،چا ته چه دا خاص نزديکت حاصل وی هغوی ته اولياءالله وئيلې شی،لکه په يو حديث قدسی کښې راغلې دی چه الله تعالى فرمائی؛
زما بنده د نفلی عبادتونو په ذريعه زما نزديکت په مخه حاصلوی تر دې چه زه هم ورسره مينه کول شروع کړم او کله چه زه ورسره مينه کوم نو زه ئې غوږونه جوړ شم،د هغه اوريدل لکه زما

---

[۱] روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج۸، ص۱۱

اوريدل وى،هم زه ئې سترګې جوړ شم د هغه ليدل ګويا كښې زما ليدل وى،هم زه ئې لاسونه، پښې جوړ شم،د هغه څه كول داسې شى لكه زما كول چه وى،(۱)مطلب دا چه د هغه هيڅ حركت او سكون زما د رضا نه خلاف نه وى۔

د دې خاص وليتوب بې شميره او بې حده درجې دى،د دې د ټولو نه اعلى درجه د انبياؤ ؑ په برخه ده،ځكه چه هر يو نبى لازما ولى الله وى او بيا په ټولو پيغمبرانو ؑ كښې لوړ مقام د سيد الانبياء ﷺ دې او د دې وليتوب ادنى درجه هغه ده چه صوفيائې كرامو په اصطلاح كښې د فنا درجه ورته وئيلې شى،د هغې حاصل دادې چه د انسان زړه د الله تعالى په ياد كښې داسې غرق وى چه په دنيا كښې د هيڅ مينه په ده نه شى غالبيدې،چا سره د هغه مينه كول د الله تعالى د رضا د پاره وى،چا نه ئې كركه د الله تعالى د رضا د پاره وى،د هغه په مينه او بغض كښې،د هغه په محبت او عداوت كښې د هغه د خپل ذات هيڅ برخه نه وى،د هغه لازمى نتيجه دا وى چه د هغه ظاهر باطن د الله تعالى په رضا لټولو كښې مشغوله اوسى او هغه د هر داسې څيز نه پرهيز كوى چه د الله تعالى په نزد ناخوښه وى،د دې حالت نخښنه دا ده چه زيات وخت د الله تعالى په ذكر كښې تيروى او هميشه د پاره فرمانبردار وى،دا دوه صفتونه چه په چا كښې وى هغه ته اولياء الله وئيلې شى،كه څوك په دې كښې د يو صفت نه هم خالى وى هغه به په دې ډله كښې شامل نه وى،د دې دواړه صفتونو په موجودګې كښې د اعلى او ادنى درجو څه حد نشته او هم د دې درجو په لحاظ سره د اولياء الله درجو كښې كمې او زياتې كيدې شى۔

د ابى هريرة ؓ په روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړې شو چه په دې آيت كښې د اولياء الله نه څوک خلق مراد دى؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه خلق تري مراد دى چه په خپل مينځ كښې خالص د الله تعالى د پاره مينه كوى،هيڅ دنيوى غرض ئې په كښې نه وى۔[مظهرى د ابن مردويه نه](۲)

دلته يو سوال بل پيدا كيږى چه د ولايت[وليتوب]دا درجه په څه طريقه حاصليدې شى؟

حضرت قاضى ثناء الله پانى پتى ؒ په تفسير مظهرى كښې فرمائيلې دى چه د امت غرو ته دا درجه د رسول الله ﷺ د صحبت[ناستې پاستې]د فيض نه حاصليږى،چنانچه الله تعالى سره د رسول الله ﷺ د تعلق رنګ د امت اوليائې كرامو ته د خپلې خپلې حوصلې او خوارې محنت په مناسب وركولې شى،هر كله چه صحابهٔ كرامو ؓ ته د رسول الله ﷺ د صحبت فيض بې واسطې حاصل وو نو ځكه د هغوى درجه د ولايت د ټول امت د اولياؤ او قطبانو ؒ نه زياته پورته وه،وروستو راتلونكى اوليائې كرامو ته هم دغه فيض په يو واسطه يا په ګڼو واسطو سره حاصليږى،په دې بنا د واسطو په لحاظ د دوى په درجو كښې هم فرق راځى،يعنى د كمو واسطو خاوند به د زياتو واسطو د خاوند نه لوړه مرتبه لرى،خو واسطه يا واسطې به په دې كښې هغه څوک حسابولې شى چه د رسول الله ﷺ په رنګ كښې رنګ وى،د رسول الله ﷺ د سنتو تابعدار وى،پوره فرمانبردار او د الله تعالى زيات ذكر كونكې وى،مطلب دا چه ولايت حاصليدل په درې څيزونو سره كيدې شى،يو دا چه چا ولى الله سره زيات صحبت او ناسته پاسته لرى،دويم دا چه د هغه اولياء الله تابعدارى اوكړې شى،دريم دا چه د الله تعالى ذكر

(۱) صحيح البخارى، كتاب الرقاق، باب التواضع: ج ۲، ص ۹۶۳

(۲) التفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۳۶

زیات کولې شي، خو شرط دا دې چه ذکر په مسنون طریقې سره وي، وجه دا ده چه په زیات ذکر کولو سره د زړه آئینه صفا او روښانه شي چه د ولایت د نور عکس ځان ته راښکلې شي، لکه په حدیث شریف کښې راغلې دي چه د هر یو څیز د صفا کولو او صیقل کولو خپله خپله طریقه وي، د زړه د صیقل کولو طریقه د الله تعالی ذکر کول دي، دې لره بیهقي رحمه الله په روایت د ابن عمر ؓ نقل کړې دې [مظهري] (۱).

د حضرت عبدالله بن مسعود ؓ په روایت یو سړي د رسول الله ﷺ نه سوال او کړو چه د داسې کس په باره کښې تاسو څه فرمائې چه یو بزرګ سره مینه محبت لري لیکن په عمل کولو کښې د هغه درجې ته نه شي رسیدې؟ رسول الله ﷺ او فرمائیل: المرء مع من احب (۲) [یعنی هر څوک به هغه چا سره وي چه ورسره محبت کوي] دې نه معلومه شوه چه اولیاء الله سره محبت او ناسته پاسته لرل د ولایت حاصلولو ذریعه ده.

بیهقي په شعب الایمان کښې د حضرت رزین ؓ په روایت نقل کړې دي چه رسول الله ﷺ حضرت رزین ؓ ته او فرمائیل چه زه درته د دین داسې اصول اوښایم چه ته ورسره د دنیا او آخرت فلاح او کامیابي حاصلولې شې. هغه دا دي چه د اهل ذکر صاحبانو مجلس او محبت لازما اختیار کړه په تنهائۍ کښې د الله تعالی په ذکر باندې زیات وخت خپله ژبه ښوروه، چا سره چه محبت کوې الله تعالی د پاره ئې کوه او چا نه چه نفرت کوې د الله تعالی د پاره ئې کوه [مظهري] (۳).

خو دا ناسته پاسته کول هغه چا سره فائده ورکوي چه پخپله ولي الله او د سنتو تابع وي، څوک چه د رسول الله ﷺ د سنتو تابع نه وي هغه پخپله ولي الله نه شي کیدې نو د ده په ذریعه به بل چا ته ولایت څه حاصل شي؟ اګرچه د هغه نه په زیات شمیر کښې کشف او کرامات صادریږي، مطلب دا چه دغه بیان کړې صفتونه په چا کښې وي او هیڅ کشف او کرامت ترې ښکاره نه شي هم هغه د الله تعالی ولي دې [مظهري].

د حدیث قدسي په حواله په تفسیر مظهري کښې د اولیاء الله پیژندګلنه او نخښه دا نقل کړې شوې ده چه الله تعالی فرمائي: زما په بندګانو کښې زما اولیاء هغه څوک دي چه زما یاد سره هغوی رایاد یږي او د هغوی په یاد سره زه رایادیږم.

په ابن ماجه کښې د حضرت اسماء بنت یزید ؓ په روایت کښې رسول الله ﷺ فرمائیلې دي: الذین اذا رءوا ذکر الله (۴) [اولیاء الله هغه دي چه د هغوی په لید و سره الله تعالی رایادیږي].

خلاصه ئې دا شوه چه اولیاء الله په دې پیژندې شي چه هغوی سره په ناستې پاستې کولو سره بنده ته د الله تعالی د ذکر توفیق نصیب کیږي او دنیوي فکرونه ئې کمیږي.

په تفسیر مظهري کښې فرمائیلې دي چه د عوامو غلطي او غولیدل دا دي چه اولیاء الله صرف هغه چا ته وائي چه کشف او کرامتونه ترې صادریږي یا د غیبو خبرې ورته معلومې وي په زرګونو داسې اولیاء الله شته دې چه داسې هیڅ څیز ترې ثابت نه دې، بل خوا ډیر خلق

---

(۱) التفسیر المظهري تحت هٰذه الآیة: ج۵، ص۳۹، ۴۰
(۲) صحیح البخاري، کتاب الادب، باب علامة حب الله عزوجل: ج۲، ص۹۱۱
(۳) شعب الإیمان للبیهقي رقم الحدیث: ۸۸۳۴
(۴) سنن ابن ماجة، أبواب الزهد، باب من لا یوبه له: ج۲، ص۳۰۳، وکنز العمال رقم الحدیث: ۱۷۸۳

داسې شته چه کشف، کرامتونه او د غیبو خبرې ترې نه منقول دی خو د هغوی ایمان هم درست نه وی.[1]

په آخر د آیت کښې فرمائی؛ اولیاؤ د پاره په دنیا او آخرت دواړو کښې به زیرې وی. د آخرت زیرې دا دې چه د روح په قبض کولو سره هر کله چه د ده روح الله تعالی ته اوړلې شی نو دغه وخت به ورته د جنت زیرې ورکولې شی، بیا به د قیامت په ورځ د قبر نه د پاسیدو په وخت ورته د جنت زیرې ورکولې شی، لکه طبرانی کښې د حضرت ابن عمر ﷺ په روایت د رسول الله ﷺ دا فرمان نقل شوې دې چه د [لااله الاالله] خاوندانو ته به نه د مرګ کیدو په وخت نه په قبر کښې څه وحشت وی او نه د قبر نه د راپورته کیدو په وخت کښې څه یره وی، ګویا کښې زما سترګې د دوی د دغه وخت حال وینی کله به چه دوی د قبرونو نه د راپورته کیدو په وخت کښې خان نه خاورې څنډی او دا به وائی ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ [الله تعالی لره شکر دې چه زمونږ غم ئې لرې کړو] ـ[2] او د دنیا د زیری مطلب د رسول الله ﷺ د فرمان مطابق دا دې چه پخپله به دوی ریښتینی خوبونه وینی یا به نور خلق د دوی په باره کښې وینی کومو کښې چه دوی د پاره به زیرې او ښه خبره وی [رواه البخاری عن ابی هریرة ﷺ] ([3])

د دنیا بل زیرې دوی د پاره دا دې چه عام مسلمانان به ورسره بې غرضه مینه محبت کوی او ښه به ئې ګنړی، چنانچه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی؛ تلك عاجل بشری المؤمن [یعنی عام مسلمانان چه د دوی تعریف کوی او ښه ئې ګنړی نو دا د مومن د پاره نقد زیرې دې [مسلم، بغوی] ـ[4]

| |
|---|
| لَا تَبْدِیْلَ　لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ؕ　ذٰلِكَ　هُوَ الْفَوْزُ　الْعَظِیْمُ ؕ　وَلَا یَحْزُنْكَ |
| نشته هیڅ بدلون \| خبرو　دالله　لره \|دا زیرې\| هم داکامیابی ده \| لویه \| اونه دې کړی غمجن تالره |
| هم دالله ﷻ خبرې نه بدلیږی \|هم دغه لویه کامیابی ده \|او ائې پیغمبره ددوئ [کافرو] خبرې دې تا نه غمژن کوی |
| قَوْلُهُمْ　اِنَّ الْعِزَّةَ　لِلّٰهِ　جَمِیْعًا ؕ　هُوَ السَّمِیْعُ　الْعَلِیْمُ ؕ　اَلَآ |
| خبرې ددوئ \| بیشکه چې عزت \| الله لره دې \| ټول \| هغه اوریدونکې \| پوهه دې \| خبر دار شئ |
| ............ \| بیشکه غلبه ټوله الله ﷻ دپاره ده \| .......هغه هرڅه اوری ډیره ښه پوهه دې\| واورئ |
| اِنَّ لِلّٰهِ　مَنْ　فِی السَّمٰوٰتِ　وَمَنْ　فِی الْاَرْضِ ؕ |
| بیشکه الله لره دی \| هغه څوك \| چې په آسمانونو کښې دی \| اوهغه څوك \| چې په زمکه کښې دی |
| چې دا ټول هرڅه دالله ﷻ دی \| چې په آسمانونو کښې او په زمکه کښې دی \|او کوم |
| وَمَا یَتَّبِعُ　الَّذِیْنَ　یَدْعُوْنَ　مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ　شُرَكَآءَ ؕ　اِنْ یَّتَّبِعُوْنَ |
| اونه کوی پیروی \|هغه کسان \| چې رابلی یې دوی \| بې د　الله نه \| شریکان \| نه کوی پیروی هغوئ |
| خلق چې دالله ﷻ نه سوا نورو [دخان نه جوړ کړو] شریکانو ته آواز کوی \| [خبر یې چې] هغوئ په څه پسې |

[1] ) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۴۱
[2] ) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ۳۶۰
[3] ) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۱ و صحیح البخاری، کتاب التعبیر، باب المبشرات: ج ۲، ص ۱۰۳۵ بالاختصار۔
[4] ) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۱، و صحیح مسلم، کتاب البر والصلة الخ، باب اذا اثنی علی الصالح الخ: ج ۲، ص ۳۳۲

Scanned with Ca

| |
|---|
| إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٦٦﴾ |
| مگر دگمان \| اونه دي هغوئ \| مګر \| قیاسونه چلوي \| |
| روان دی \| هغوئ صرف په ګمان پسې روان دی \| او تش اټکلونه چلوي \| |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره !) دا خلق چه کومې خبرې جوړوي هغه دې تا لره غمژن نه کړي. یقین وکړه چه قدرت ټول دالله دې. اوهغه د هرې خبرې آوریدونکې دې او په هر څه پوهیږي. یاد وساته چه زمکه او آسمان کښې چه څومره ژوندي سر دی، هغه ټول دالله په اختیار کښې دي او څوك چه دالله نه سوا نور څوك رابلي ،نو هغوی دالله (دحقیقي) برخه دارو تابعداري نه کوي . هغوی د بل څه نه صرف د ګمان تابعداري کوي، اودهغوی کار دې نه علاوه بل څه نشته چه اټکل وائي.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ إِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ۚ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾ تالره دی ددوی خبری په غم کښی وانه اچوی[یعنی ددوی په کفریاتوباندی مه غمژن کیږه څکه چه دمذکوره علم اوحفاظت نه علاوه ]ټوله غلبه [اوقدرت هم]الله لره [ثابت ]دی [هغه به دوعدی مطابق ستاحفاظت کوی ]هغه [ددوی خبری ]اوری [اوددوی حالت ]پیژني [هغه به ستا بدله ددوی نه پخپله واخلی ].

﴿ أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ ۗ وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ شُرَكَاءَ ﴾ یادساتئ چه څومره په آسمانونوکښی دی اوڅومره چه په ځمکه کښی دی [یعنی فرشتی اوپیریان اوبنی آدم] دا ټول دالله [مملوك]دی [ددی حفاظت یابدله اخیستل هیڅوك نشی منع کولې پس په هره وجه سره تسلی ساتل پکاردی ]او[که دچاځه شك وی چه شریکان به مزاحمت وکړې شی نوحقیقت ئې واوره چه]څوك چه دالله په ځای دنوروشریکانوعبادت کوی [خدای خبر]دڅه شی تابعداری کوی.

﴿ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴾ [یعنی ددوی ددی عقیدی څه دلیل دی حقیقت خو دادی چه هیڅ دلیل نشته ]محض دبی سندوخیالاتوتابعداری کوی اومحض خیالی خبری کوی [پس واقعاً په دوی کښی دالوهیت صفات په مثل دعلم اوقدرت وغیره نشته پس پدوی کښی دمزاحمت کولو داحتمال کله ګنجائش شته .

| |
|---|
| هُوَ الَّذِي جَعَلَ |
| هغه \| هغه ذات دی \| چې جوړه ئې کړه \| |
| الله ﷻ هغه ذات دی چې \| |
| لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ |
| ستاسو دپاره \| شپه \| دپاره ددې چې تاسو آرام حاصل کړئ \| په هغې کښې \| اوورځ روښانه \| |
| ستاسو دپاره ئې شپه[1] جوړه کړې ده \| چې آرام په کښې اوکړئ \| اوورځ ئې روښانه جوړه کړې ده \| چې په کښې لیدل |

[1] په شپه او ورځ کښې دالله تعالی ښئ :- شپه او ورځ اوتیرو او رڼا لره پیدا کولو والا صرف هغه الله تعالی دې . هم ددې نه دخیراو شر او دتولو متقابلو څیزونو پیدا کولوباندې پوهه شي په دې کښې د مجوسو د شرك رد اوشو. او دې طرف ته هم یو وړه اشاره اوشوه چه څنګه دشپې دتیارې نه پس الله تعالی روښانه ورځ ... [بقیه په راروانه صفحه

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ۝ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ

بیشکه | په دې کښې | نښې دی | دپاره دهغو خلقو | چې اورې | اووئیل کافرانو | نیولې دې | الله

کولې شئ | بیشکه دې کښې د [پیغمبر دخبرو] آوریدونکو دپاره دلیلونه موجود دی | خینې خلق وائی

وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ الْغَنِيُّ ؕ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا

خوئې | پاکی ده هغه لره | هغه بې نیازه دې | هغه لره دی | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی | اوهغه

چې الله ﷻ ځان له خوئې نیولې دې (۱) | الله ﷻ پاک دې | هغه غنی دې | هر څه چې په آسمانونو کښې دی

فِي الْاَرْضِ ؕ اِنْ عِنْدَكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ بِهٰذَا ؕ اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى

چې په زمکه کښې دی | نشته ستاسو سره | څه دلیل | په دې خبره | آیا وایئ تاسو | په

اوپه زمکه کښې دی | ټول دهغه ملکیت دی | تاسو سره [دشرک] په دې خبره هیڅ دلیل نشته دې

اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ قُلْ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ

الله باند | هغه خبری | چې نه لرئ تاسو علم دهغې | ورته اووایه | بیشکه هغه کسان | چې ترې هغوئ

آیا تاسو په الله ﷻ پورې داسې خبرې تړئی | چې پخپله ترې نه هم خبرنه یئ | اووایه چې څوک په الله ﷻ

عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ ۝ مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ اِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ

په الله باند | دروغ | نشی موندې خلاصې | نفع اغستل دی | په دنیا کښې (۲) | بیا | مونږ ته | واپس راتلل دی د هغوئ

دروغ تړی | هغوئ خلاصیدې نشی | په دنیا کښې لږ شان مزې دې اوکړی | بیا ئې مونږ ته واپسی ده

...بقیه دتیرمخ].. راولی او د ورځې په رڼا کښې هغه څیزونه په نظرراځي چه دشپې په تیارې کښې په نظرنه راتلل.همداشان دمشرکانو د اوهامو اود ګمانونو پرده شلولودپاره هغه ذات قرآن پاك دنمرپشان روښانه کړو . چه داخلقوته دالله تعالی لار خودلو والا دې .

(۱) د عیسایانو د شرک رد:- په دې کښې دعیسایانود شرك رد دې.چه هغوی حضرت عیسی ﷺ ته دالله تعالی خوئې ونیلو د پوهې خبره دا ده که هغوی واقعي مسیح د الله تعالی (معاذالله) صلبی خوئې ګنړلو نو ددې نه زیاته ګستاخی به څه وی دالله تعالی ذات دبچواو دښځې نه پاك دې . که ددې بچی نه مراد متبنی وی نو بیاددې ضرورت الله تعالی ته څنګه پیښ شو چه یو مخلوق خپل متبنی جوړکړی آیا هغه ذات ته د اولاد د نه کیدو افسوس او دخوئې غم وو . یا ورته دا فکر وو چه دهغه نه پس به دده دمال او دولت او دده د نوم روښانه کولو واله به څوك وی . یادا چه په بوډا والی کښې به دده مددګار جوړشی . العیاذباالله هغه ذات دټولو نه بې نیاز دې . اوټول هروخت دهغه محتاج دی نو هغه ته د خوئې یا نسبی یا متبنی څه ضرورت کیدې شي ټول څیزونه دهغه مخلوق دی . بیادمالك اومملوك او دخالق او مخلوق په مینځ کښې دنسبی رشتو څه ګنجائش دې. دا ډیره سخته خبره ده چه دالله تعالی په باره کښې صرف دجهالت په وجه داسې دروغ اوبې سنده خبرې اوکړې شی .

(۲) یعنی په الله تعالی باندې دروغ پورې کولووالا که په دنیا کښې هرڅومره طاقتور وی اوپه خپل سامان باندې غرورکوی خودوی ته حقیقی کامیابی او نیکی کله نصیب کیدیشی لږې ورځې به ددنیا مزې اوچتې کړی. او آخریه ددوی معامله دالله تعالی په مخکښې وی . چه په هغه ځائې کښې به دخپلو جرمونو سزا ضرور اوڅکی .

Scanned with Ca

| ثُمَّ | نُذِيقُهُمُ | الْعَذَابَ | الشَّدِيدَ | بِمَا | كَانُوا | يَكْفُرُونَ ﴿۷۰﴾ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| بیا به | مونږ مزه اوڅکوو هغوئ ته | دعذاب | سخت | په سبب دهغې | چی وو هغوئ | چی کفر به ئې کولو |

نومونږ به ورته دسخت عذاب مزه اوښایو | ځکه چې دوئ به کفر کولو |

## آسان ترجمه قرآن

الله هغه ذات دې چه هغه تاسو دپاره شپه پیدا کړې ده دې دپاره چه تاسو دې کښې آرام حاصل کړئ. او ورځ ئې دې دپاره پیدا کړې ده چه تاسو ته د کتلو صلاحیت ورکړي - دې کښې یقیناً د هغه خلقو دپاره نښې دي چه هغوی غور سره آوري (څه) خلقو ووئیل چه الله اولاد نیولې دې. پاك دې د هغه ذات! هغه د هر یو څیز نه بې حاجته دې آسمانونو او زمکه کښې چه څه دي، د هغه دي. تاسو څخه ددې خبرې هیڅ دلیل هم نشته. آیا تاسو په الله بانډې هغه څه وایئ چه د هغې تاسو ته څه علم هم نشته؟ ته ووایه چه: څوك په الله بانډې د دروغو بهتان جوړوي، هغوی به کامیاب نه شي (دوي دپاره په دنیا کښې) بس لږه غونډې مزه ده. بیا د دوی مونږ ته راتلل دي، بیا دوی چه د کفر کومه رویه اختیار کړې وه د هغې په بدله کښې به مونږ دوی ته د سخت عذاب مزه وڅکوو.

## خلاصه تفسیر

﴿ هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴾ دغه [الله ]داسی دی کوم چه ستاسولپاره شپه جوړه کړه چه تاسوپکښې آرام وکړئ اوورځ ئې هم دغسې جوړه کړه چه[په وجه دروښانه کیدو] دلیدلو کتلوذریعه ده پدی [جوړولو] کښې دلیلونه [دتوحید] دی دهغوی خلکولپاره کوم چه [په تدبرسره دی مضامینولره ]اوری [مشرکان په دی دلیلونو کښې غورنکوی اودشرك خبری کوی چنانچه ].

﴿ قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۗ سُبْحَانَهُ ۖ هُوَ الْغَنِيُّ ۖ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ ﴾ دوی وائی [نعوذبالله ]الله تعالی اولاد لری پاك دی الله [څومره سخته خبره ئی وکړه ] هغه خودهیچامحتاج ندی [اوټول دده محتاج دی ] اودهغه ملکیت دی څه چه په آسمانونوکی دی اوڅه چه په ځمکه کی دی[پس ټول مملوك شو اوهغه مالك شونوثابته شوه چه په کمالاتوکی څوك دهغه شریك اوهمجنس نشته پس که اولادته دالله همجنس وویلای شی نوداخوباطل دی اوکه غیر همجنس ورته وویلای شی نوناجنسه اولادعیب دی اوالله تعالی دعیبونونه پاك دی لکه چه په [سُبْحَانَهُ] کی دی طرف ته اشاره هم ده پس داولاد ورلره کیدل مطلق باطل شومونږچه داولاددنیشتوالی دعوه کړی وه نوپه دی مونږدلیل قائم کړی دی اوس پاتی شوه ستاسودعوه پس].

﴿ إِنْ عِنْدَكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ بِهَٰذَا ۚ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ستاسوسره [بغیردعبث دعوی نه ]په دی [دعوه ] څه دلیل [هم]نشته [نو]آیاپه الله داسی خبره تړئ کوم چه تاسو[په څه دلیل سره ]علم نه لرئ ته [ددوی ددروغژن ثا بتولونه پس ددی درو غودسزااورولولپاره].

﴿قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴾ووایه چه کوم خلك په الله دروغ جوړوی [لکه مشرکان ]دغه کله به هم کامیاب نه شی [اوکه دچاشك وی چه مونږ خو داخلك په دنیاکی ښه

کامیاب اوپه راحت کی مومو ،نوجواب دادی چه].

﴿ مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ اِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ نُذِيْقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيْدَ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ﴾ داپه دنیا کی [څو ورځی] لګ شان خوشحالی ده [کومه چه ډیرزر ختمیږی ]بیا [چه مره شی ]زمونږ طرف ته ددوی راتلل دی بیا [په آخرت کی ]به مونږ دوی لره ددوی دکفرپه بدله کښی [مزه د]سختی سزا وڅکو.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاتْلُ | عَلَيْهِمْ | نَبَاَ | نُوْحٍ | اِذْ | قَالَ | لِقَوْمِهٖ | يٰقَوْمِ | اِنْ |
| اواولوله | په هغوئ باند | قيصه | دنوح(۱) | كله چي | اوونيل هغه | قوم خپل ته | اے زما قومه | كه چري |
| او دوی ته د [حضرت] نوح ﷺ قصه واوروه \| چې هغه خپل قوم ته اوونیل \| اې خما قومه که په | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَانَ | كَبُرَ | عَلَيْكُمْ | مَّقَامِيْ | وَتَذْكِيْرِيْ | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | فَعَلَى اللّٰهِ |
| وى | گران | په تاسو باندې | اوسيدل زما | اونصيحت دركول زما | په آيتونو دالله سره | نوپه الله باندې |
| تاسو کښې زما اوسیدل او د الله په آیاتونو سره تاسو ته نصیحت کول په تاسو بنه نه لګی انو خما په الله | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَوَكَّلْتُ | فَاَجْمِعُوْٓا | اَمْرَكُمْ | وَشُرَكَآءَكُمْ | ثُمَّ | لَا يَكُنْ | اَمْرُكُمْ | عَلَيْكُمْ |
| بروسه كري ده ما | نو راجمع كرئ | كار خپل | اوشريكان خپل (۲) | بيا | دنه وى | كارستاسو | په تاسوباندې |
| توکل دې \| نوتاسو خپله فیصله اوکړئ او خپل شریکان راجمع کړئ \| بیا په خپله فیصله غور او فکر | | | | | | | |

(۱) **حضرت نوح ﷺ دواقعې څخه عبرت** : یعنی مکې والو دحضرت نوح ﷺ اودهغه دقوم حال واوریدو. چه دوی ته معلوم شی چه مکذبین او مفترینوته حقیقی کامیابی نه حاصلیږی ددوی منډې ترړی او چمك دمك صرف څوورځې دې . چه آخر ددې انجام به ابدی بد وی مکې والو ته پکار دی چه دنوح ﷺ د قصې په آوریدو عبرت حاصل کړی . که دوی دحضرت نبی کریم ﷺ دتکذیب او ددښمنۍ او دخپل شرکیاتو نه منع نه شو نو ددوی انجام به هم هغه شان وی چه څنګه دحضرت نوح ﷺ دقوم شوې وو. ددې واقعې په بیانولو کښې حضرت نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکول دی چه تاسوددې خلقود دښمنۍ او شرارت باندې غمژن کیږئ مه . هرنبی ته داقسمه حالات راپیښ شوی دی او په آخر کښې هم حق غالب شوې دې او دالله تعالی دښمنان تباه او برباد شوی دی . عام آوریدونکې ته ددې تفصیلی واقعې نه داسبق ملاویږی چه حضرت نبی کریم ﷺ دامی کیدونه باوجود اونه ئې دچاشاګردی کړې ده اوبیاهم دمخکښې قومونوحالات داسې صحیح بیانوی چه په ظاهرکښې دتعلیم نه بغیردا وئیل ممکن نه دی . خو ضرور به منلې شی چه ددوی معلم څوك انسان نه دې ، بلکه دټولو انسانانو پیداکولو والا دې.دا خو ددوی ﷺ دربنتونی کیدو یو دلیل دې .

(۲) **حضرت نوح ﷺ پیغمبرانه یقین** : یعنی ماته ستاسودخوشحالۍ اوخفګان یا دموافقت اومخالفت هیڅ پرواه نشته دې . دټولو پیغمبرانو پشان خمابهروسه صرف په یوالله تعالی باندې ده . که تاسو خماپه نصیحت باندې بداوګنړئ خو څه د خپل فرض نه نشم محرومه کیدې . تاسوکه بداوګنړئ اوماسره دښمنی اوکړئ اوماته نقصان اورسوئ خوداڅیزخما په ارادوکښې هیڅ اثر اندازکیږی نه . څه چه ستاسوپه زړه کښې دی بیشکه هغه اوکړئ یا خماخلاف مشوره اوکړئ اوڅه پخه خبره جوړه کړئ خپل ملګری تردې چه خپل فرضی معبودان هم راجمع کړئ او په یوغیرمشکوك اوغیرمشتبه رائې باندې قائم شئ . بیاپه متفقه طاقت سره دا جاری کړئ ، اوماته دیومنټ مهلت هم مه راکوئ بیااوګورئ پیغمبرانه استقامت اوتوکل چه ددنیاطاقتونواو تدبیرونو لره څنګه ذره ذره کوی .

Scanned with Ca

غُمَّةً ثُمَّ اقْضُوْٓا اِلَيَّ وَلَا تُنْظِرُوْنِ۝ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ

پټ | بیا | فیصله اوکړئ | زما خلاف | اومهلت مهٔ راکوئ ماته | نو که چرې | مخ واړوئ تاسو |
اوکړئ | چې څهٔ په کښې درنه پټ پاتې نشی | بیا ماسره خپله خوښه اوکړئ | او هیڅ مهلت مه راکوئ

فَمَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ ؕ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۙ وَاُمِرْتُ

نونهٔ دې غوښتلې ما ستاسو نه | څه اجر | نهٔ دې اجر زما | مګر | په الله باند | اوحکم شوې دې ماته
اوکه تاسو هم دغسې مخ اوګرځولو | نو | ځما مو څه تاوان اوکړو | زهٔ خو ستاسو نه ددې څه بدله

اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ۝ فَكَذَّبُوْهُ فَنَجَّيْنٰهُ وَمَنْ

چې شم زهٔ | د مسلمانانو نه | نو دروغ اوګڼړو هغوئ هغه لره | نو بچ کړو مونږه هغه | اوهغه څوک
نه غواړم | ځما بدله خو په الله ﷻ باندې ده | ........اوماته دا حکم دې | چې په فرمان بردارو کښې

مَّعَهٗ فِي الْفُلْكِ وَجَعَلْنٰهُمْ خَلٰٓئِفَ وَاَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ

چې دهغه سره وو | په کشتئ کښې | اوجوړ کړل مونږه هغوئ | خلیفګان | اوډوب کړل مونږه | هغه کسان
دې شامل یم | خو | بیا هم | هغوئ نوح ﷺ دروغژن اوګڼړلو | نو مونږ هغه او دهغه ملګرو ته په بیړئ کښې نجات ورکړو

كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ۝

چې دروغ ئې ګڼړلې وو | آیتونه زمونږه | نو اوګوره | څرنګ | وو | انجام | دیرولې شوو خلقو |
او هم هغوئ مو [ په زمکه] آباد کړل | او هغه ټول خلق مو ډوب کړل | چې زمونږ آیتونه ئې دروغ ګڼړلی وو

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره !) دوی ته د نوح علیه السلام واقعه ولوله چه کله هغه قوم ته وئیلي وو چه : اې ځما قومه اکه ستاسو مینځ کښې ځما اوسیدل او دالله د آیتونو په ذریعه تاسو لره خبرول دا په تاسو ګران لګي نو ما خو په الله ځان سپارلې دې. نو تاسو خپل شریکان خپل ځان سره ملاؤ کړئ بیا (ځما خلاف) ښه تدبیرونه پاخه کړئ. بیا چه تاسو کوم تدبیر وکړئ هغه دې ستاسو زړونو کښې د څه ساږونې باعث جوړ نه شي بلکه چه ځما خلاف تاسو کومه فیصله کړې وې هغه (دزړه د خلاصه) وکړئ. او ماته ذره مهلت هم مه راکوئ. بیا هم که تاسو مخ واړولو نو ما تاسو نه په دې (تبلیغ) څه مزدوري نه ده غوښتلې ځما د اجر بل چا نه الله دمه اخستې ده . او ماته دا حکم شوې دې چه څه د تابعدارو نه هم بیا وشوه داسې چه دې خلقو نوح علیه السلام لره دروغژن کړو. اونتیجه دا شوه چه مونږ نوح او هغه کسان چه ده سره وو هغه بچ کړل او ددې کافرانو په ځاې مو زمکه کښې پاتې کړل. او کوم خلقو چه ځمونږ نښو لره دروغژنې کړې وې هغوی لره مو (طوفان کښې) غرق کړل اوس وګوره چه کوم خلق خبردار کړې شوی وو دهغوی انجام څه شو؟

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ نُوْحٍ ۘ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ مَّقَامِيْ وَتَذْكِيْرِيْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَعَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ فَاَجْمِعُوْٓا اَمْرَكُمْ وَشُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ اَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً ﴾ اوته دوی ته د نوح [علیه السلام] قصه واوروه [کومه چه هغه

وخت واقع شوی وه ]کله چه دوی [علیه السلام ]خپل قوم ته وفرمائل چه ای خما قومه که په تاسو کښی خما اوسیدل [په حالت دوعظ کښی پاتی کیدل ]اودخدای دحکمونو نصیحت کول گران [اوناخوښه ] معلومیږی نو[پریږدئ څه نی هیڅ پروانکوم ځکه چه ]زما په خدای بروسه ده پس تاسو[ماته دضرر رسولو متعلق ]خپل تدبیرونه [کوم چه کولی شئ ]سره دخپلو شریکانو [یعنی بتانو ]سخت وکړئ یعنی تاسو اوستاسو معبودان ټول یوځای شئ ماته په ضرر رسولو کښی زړه یخ کړئ ]بیا ستاسو دغه تدبیر ستاسو دخفگان [اوزړه تنگئ]باعث نه دی جوړیدل پکار [یعنی اکثر په پټ تدبیر سره طبیعت تنگیږی ».

﴿ ثُمَّ اقْضُوْٓا اِلَیَّ وَلَا تُنْظِرُوْنِ ۝﴾ پس دپټ تدبیر ضرورت نشته څه چه تدبیر کوئ ښه ښکاره ئی وکړئ مه خما لحاظ کوئ اومه خما دتلواو وتلو ویره کوئ ځکه چه ددومره خلکو نه دیوتن وتل هم ډیره گرانه بیا دپټوالی څه ضرورت دی ]بیا خما سره [چه څه کوئ]وکړئ اوماته [لږ]مهلت هم مه راکوئ مطلب دادی چه څه ستاسو ددی خبرونه ویریږم اونه دتبلیغ نه منع کیدې ی شم ».

﴿ فَاِنْ تَوَلَّیْتُمْ فَمَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ ؕ اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلَی اللّٰهِ ۙ وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ۝﴾ تر دی ځا ی پوری خوئی خپل نه ویریدل وفرمائل اوس مخکی دطمع نه کولو متعلق فرما ئی یعنی ]بیا هم که تاسو مخ اړوئ نو[پدی پوه شی چه]ماخو تاسو نه [پدی تبلیغ باندی ]څه بدله خونده غوښتی، [اوزه ځکه نه غواړم چه ]خما بدله خو صرف [دمهربانی اودوعدی په بنا]دالله تعالی په ذمه ده [غرض داچه تاسو نه ویریږم نه خواهش لرم ]او[هر کله چه ] ماته حکم کړی شوی دی چه زه په فرمان بردارانو کښی پاتی شم[ځکه په تبلیغ کښی په حکم باندی چلیږم که تاسو ئی نه منئ نوماته ئی څه تاوان دی]نو[سره ددی بلیغ نصیحت نه هم].

﴿ فَكَذَّبُوْهُ فَنَجَّیْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ فِی الْفُلْكِ وَجَعَلْنٰهُمْ خَلٰٓئِفَ وَاَغْرَقْنَا الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا ۚ فَانْظُرْ كَیْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِیْنَ ۝﴾ دغی خلکو دوی لره دروغژن بللو[پدی سره پری دطوفان عذاب راغلواو]مونږه [په خمکه باندی]اوپاتی نورخلك]چاچه زمونږ آیاتونه دروغ بلل هغوی مو[په دغه طوفان کښی] غرق کړلونو کتل پکاردی چه څنگه [خراب]انجام شودهغو خلکو چه[دالله تعالی دعذاب نه] ویرولي شوی وو[یعنی بي خبره هلاك نه کړې ی شو ،اول مو ورته وویل]پوه موکړل ،چه ونی نه منلو سزائی ولیدله.

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ رُسُلًا اِلٰی قَوْمِهِمْ فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَیِّنٰتِ

بیا اولیږل مونږه | روستو دهغه نه | نوررسولان | خپلو خپلو قومونو ته | نوراغلل هغوئ ته | دواضحه نښو سره

نو لږ اوگوره چی دهغې ډیرولو شوو انکاریانو انجام څه شو | بیا مو دهغه نه پس نور پیغمبران خپلو خپلو

فَمَا كَانُوْا لِیُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ ؕ

نونه وو هغوئ | چی ایمان ئې راوړې وې | په هغې څیز | چی دروغ ئې گڼرلي وو | هغه | دمخکښی نه

قومونو ته اولیږل انو هغوئ ورته ښکاره دلیلونه پیش کړل | خو هغوی په هغې څیز ایمان راونړلود کوم نه یې

Scanned with Ca

كَذٰلِكَ نَطۡبَعُ عَلٰى قُلُوۡبِ الۡمُعۡتَدِيۡنَ۝

هم دارنګې | مونږ مهروهو | په زړونوباند | دحدنه داوړیدونکوخلقو |

چې وړاندې انکار کړې ووا مونږ دغسې دسرکشو په زړونو باندې مهر لګوو

## آسان ترجمه قرآن

دې نه وروستو مونږ مختلف پيغمبران خپلو خپلو قومونو ته ليږلي وو ، هغوی ورته صفا صفا دلائيل راوړي وو . ليکن هغې خلقو چه کومه خبره په اول ځل دروغژن کړې وه هغه ئې و نه منله. او کوم خلق چه دَحد نه ووځي د هغوی په زړونو مونږ دغه شان مهر لګوو .

## خلاصه تفسير

﴿ ثُمَّ بَعَثۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهٖ رُسُلًا اِلٰى قَوۡمِهِمۡ فَجَآءُوۡهُمۡ بِالۡبَيِّنٰتِ فَمَا كَانُوۡا لِيُؤۡمِنُوۡا بِمَا كَذَّبُوۡا بِهٖ مِنۡ قَبۡلُ ؕ كَذٰلِكَ نَطۡبَعُ عَلٰى قُلُوۡبِ الۡمُعۡتَدِيۡنَ۝﴾ بيانوح [عليه السلام] نه پس مونږه نوررسولې ن ددوی قومونوته وليږل نوهغوی دوی ته سره دمعجزو راغلل [مکر] بيا [هم ددوی دضداونارامئ داحال ووچه] څه څيزته دوی په اوله [پيره] کښې [يوځل ] دروغ وويل داسې ونه شوچه بيائی منلې وی [اوڅنګه چه داخلك په زړونوباندې سخت وو] دغه شان مونږ دکافرانوپه زړونوباندې بندونه لګوو.

ثُمَّ بَعَثۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهِمۡ

| بيا | اوليږل مونږه | وروستو دهغوی نه

| بيا مو ددغې

مُّوۡسٰى وَهٰرُوۡنَ اِلٰى فِرۡعَوۡنَ وَمَلَا۟ئِهٖ بِاٰيٰتِنَا فَاسۡتَكۡبَرُوۡا

موسی | اوهارون | فرعون ته | اوسردارانو دهغه ته | دنښو خپلو سره | نوتکبر اوکړو هغوئ

[پيغمبرانو] نه پس حضرت موسی عليه السلام اوحضرت هارون عليه السلام دواړه فرعون اودهغه درباريانو ته په خپلو

وَكَانُوۡا قَوۡمًا مُّجۡرِمِيۡنَ۝ فَلَمَّا جَآءَهُمُ الۡحَقُّ مِنۡ عِنۡدِنَا قَالُوۡۤا

اوروو هغوئ | قوم | مجرمان | نوهرکله چې | راغې هغوئ ته | حق | دطرفه زمونږنه | نواووئيل هغوئ

نښو سره اوليږل [خو هغوئ لوئی اوکړه] [اودغه خلق [زاړه] مجرمان وو] [کله چې ورته زمونږ د طرفه حق

اِنَّ هٰذَا لَسِحۡرٌ مُّبِيۡنٌ۝ قَالَ مُوۡسٰۤى اَتَقُوۡلُوۡنَ لِلۡحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمۡ ؕ

بيشکه دا جادودې | ښکاره | اووئيل موسی | آياوايئ تاسو | حق ته | هرکله | چې راغې تاسوته

ورغلو [نو هغوئ اووئيل چې دا خو ښکاره جادو دې [حضرت موسی عليه السلام اووئيل چې تاسو دهغې حق

اَسِحۡرٌ هٰذَا ؕ وَلَا يُفۡلِحُ السّٰحِرُوۡنَ۝ قَالُوۡۤا اَجِئۡتَنَا

آيا جادو دې دا | اونه مومی بري | جادوګران | اووئيل هغوئ | آيا راغلې ئې ته مونږ ته

تعليم په باره کښې چې تاسو ته راغلې دې داخبره کوئی | چې دا [ په رښتيا] جادو دې [اوجادوګر

Scanned with Ca

لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا
دپاره ددې چې واړوې مونږه | دهغه طريقې نه | چې موندلې دی مونږه | په هغې باندې | پلاران زمونږه
خو هيڅکله نه کاميابيږی | هغوئ جواب ورکړو | آيا ته مونږ ته ددې دپاره راغلی یئ | چې مونږ

وَتَكُونَ لَكُمَا الْكِبْرِيَاءُ فِي الْأَرْضِ ۖ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِينَ ﴿٧٨﴾
اوچې شی | ستاسو دواړو دپاره | لوئي | په زمکه کښې | اونه يو مونږه | تاسو دواړو لره | منونکی دخبرو
هغې لارې نه بل طرفته واړوې چې پلار نیکه مو پرې روان موندلی وو | او چې دملک مشری ستاسو د

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ائْتُونِي بِكُلِّ سَاحِرٍ عَلِيمٍ ﴿٧٩﴾ فَلَمَّا جَاءَ السَّحَرَةُ
او اووئيل | فرعون | چې راولئ تاسو ماته | هر جادوگر | ماهر | نو هرکله چې | راغلل | جادوگران
دواړو شی | او مونږ خو تاسو دواړه هیچرې نه منو | او فرعون [خپلو سرو ته] اووئيل چې ماله ټول ماهر

قَالَ لَهُمْ مُوسَىٰ أَلْقُوا مَا أَنْتُمْ مُلْقُونَ ﴿٨٠﴾ فَلَمَّا
اووئيل | هغوئ ته | موسی | چې اوغورزوئ | هغه | چې تاسو ئې | غورزونکی | نو هرکله چې
جادوگر راولئ | کله چې جادوگر راغلل | نو حضرت موسی ورته اووئيل | چې پش کول غواړئ هغه

أَلْقَوْا قَالَ مُوسَىٰ مَا جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ ۖ
اوغورزوو هغوئ خپل جادو | نو اووئيل | موسی | هغه څيز | چې راوړې دی تاسو | هغه | جادو دی
راميدان ته کړئ | هرکله چې هغوئ پرې [رسئ] اوغورزول | ......نو حضرت موسی ؑ

إِنَّ اللَّهَ سَيُبْطِلُهُ ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِينَ ﴿٨١﴾
بیشکه الله چې دی | زر به باطل کړی هغه | بیشکه الله | نه سموی | کار | دفساد کونکو
اووئيل | چې دا خو جادو دی | چې تاسو راوړئ دی | [خما تعليم جادو نه دی] دا به الله ﷻ

وَيُحِقُّ اللَّهُ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ ﴿٨٢﴾
اوحق ثابتوی | الله | حق لره | په فرمانونو خپلو سره | اگر که نه خوښوی ئې | مجرمان
اوس باطل کړی | بیشکه الله ﷻ دفساد يانو کار له سمون نه ورکوی | او الله ﷻ دخپلې وعدې مطابق حق

## آسان ترجمه قرآن

بیا دې نه وروستو مونږ موسیٰ او هارون علیهما السلام فرعون او د هغه سردارانو ته د خپلو نښو سره ولیږل نو هغوی د تکبر معامله وکړه او هغوی مجرمان وو. نو چه کله هغوی ته حق زمونږ د طرف نه د حق پیغام راغلو نو هغوی ووئیل چه ضرور دا ښکاره جادو دې. موسیٰ علیه السلام ووئیل چه آیا تاسو د حق په باره کښې داسې خبره کوئ حال دا چه دا تاسو ته راغلې دې؟ آیا دا جادو دې؟ حال دا چه جادوګر نه کامیابیږی. هغوی ووئیل چه آیا ته مونږ ته دې وجې نه راغلې ئې چه په کومه طریقه مونږ خپل پلار نیکه موندلي دي، هغې نه مونږ واړوې، او زمکه کښې ستاسو د دواړو مشری قائمه شی؟ مونږ ستاسو د دواړو خبره نه منو. او فرعون (خپلو نوکرانو ته) ووئیل چه ټول ماهرین جادوګران دی، هغوی ټول ماته راولئ نو چه کله جادوګر راغلل نو موسیٰ هغوی ته ووئیل چه: وغورزوئ هغه چه تاسو غورزونکی یئ

Scanned with Ca

بیا چه کله هغوی (خپلې رسۍ او همساګانې) وغورځولې (او هغې نه ماران جوړ شو او داسې ښکاریدل چه ګرځي) نو موسیٰ ووئیل چه: څه تاسو راوړلي دي دا جادو دې. الله به دا ختموي الله د فسادیانو کار نه جوړوي. اوالله رښتیاؤ لره په خپل حکم سره رښتیا ښکاره کوي، خواه که مجرمان هر څومره بد ګنړي.

## خلاصه تفسیر

﴿ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِم مُّوسَىٰ وَهَٰرُونَ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِيْهِۦ بِـَٔايَٰتِنَا فَٱسْتَكْبَرُوا۟ وَكَانُوا۟ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴾ بیا ددی [بیان شوو]پیغمبرانو نه پس مونږه موسی اوهارون[علیهما السلام]فرعون اودهغه سردارانو ته خپلو معجزو [عصا اوید بیضا]ورکولوسره ولیږل نوهغوی [دعوی کولوسره سمدستی ددی درشتیا ګڼلونه]تکبروکړو[اودحق دلتولولپاره غورهم ونکړو]اودغه خلك دجرمونو[کولو]عادت وو[خکه نې تابعداری ونکړه].

﴿ فَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ مِنْ عِندِنَا قَالُوٓا۟ إِنَّ هَٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ بیا کله چه [پس ددعوی نه]هغوی ته خمونږ دخوانه[دموسی[علیه السلام]په پیغمبریٔ باندی صحیح دلیل ورورسیده [معجزه] نو هغوی وویل چه یقینا دابنکاره جادودی،.

﴿ قَالَ مُوسَىٰٓ أَتَقُولُونَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمْ ۖ أَسِحْرٌ هَٰذَا وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّٰحِرُونَ ﴾ موسی[علیه السلام] اوفرمائل آیاتاسوددی صحیح دلیل په باره کنبی کله چه هغه تاسوته راورسیدوداسی خبری کوی [چه داجادودی] آیا ،داجادودی،حالاتکه جادوګرکله چه دپیغمبری دعوه وکړی نودمعجزی په بنکاره کولوکنبی ]نشی کامیابیدی[اوخه کامیاب شوم چه اول می دعوه وکړه بیامی معجزی بنکاره کړی].

﴿ قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَا وَتَكُونَ لَكُمَا ٱلْكِبْرِيَآءُ فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِينَ ﴾ دغی خلکو [ددی تقریرهیڅ جواب ورنه کړې ی شوهمدغسی دجهالت په طریقه نې]وویل ایا ، تاسو مونږته خکه راغلی نې چه هغی طریقی نه مو واړویٔ چه مونږه پری بزرګان لیدلی دی او[دی دپاره راغلی نې چه]تاسودواړوته په دنیا کنبی ریاست [اوسرداری ]میلاوشی او[تاسوبنه پوه شئ چه]مونږبه تاسودواړه هیڅیری ونه منو.

﴿ وَقَالَ فِرْعَوْنُ ٱئْتُونِى بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٍ ﴾ اوفرعون[خپلوسردارانوته وویل چه ماته ټول ماهرجادوګران [چه خمونږپه حکومت کنبی دی ]حاضرکړی[چنانچه راجمع کړې ی شو].

﴿ فَلَمَّا جَآءَ ٱلسَّحَرَةُ قَالَ لَهُم مُّوسَىٰٓ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ ﴾ نوکله چه هغوی راغلل [او موسی علیه السلام سره نی مقابله وشوه نو]موسی[علیه السلام] هغوی ته وفرمائل چه وغورخویٔ څه چه تاسولره [په میدان کنبی ]غورخول دی.

﴿ فَلَمَّآ أَلْقَوْا۟ قَالَ مُوسَىٰ مَا جِئْتُم بِهِ ٱلسِّحْرُ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ سَيُبْطِلُهُۥٓ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾ نوکله چه هغوی [دجادوخپل سامان]وغورخول نو موسی[علیه السلام]اوفرمائیل چه کوم تاسو [جوړ کړی] راوړی دی جادو دادې [یعنی هغه جادونه دی کوم ته چه فرعونیان جادو وائی]یقینی خبره دا ده چه الله تعالی دغه[جادو]ګډوډ کول غواړی [خکه چه] الله تعالی دداسی فسادیانو کارجوړیدوته نه پرېږدی [چه دمعجزی مقابله کوی].

﴿ وَيُحِقُّ ٱللَّهُ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ الله تعالی[څنګه چه دباطل دخاوندانو باطل لره د حقو معجزوپه مقابله کنبی باطلوی دغه شان]صحیح دلیل [یعنی معجزی ]دخپلو وعدوپه جوړ [چه

د پیغمبرانو ﷺ دپیغمبرئ ثابتولولپاره دی] ،ثابتوی اګرچه مجرمان اوکافران ئې بد ګڼي.

فَمَآ اٰمَنَ لِمُوْسٰٓى اِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ

نو ایمان رانوړو | په موسی باندې | مګر | اولاد | دقوم دهغه نه | سره ډيرې | دفرعون نه

غالب کوی | اګر که د مجرمانو ناخوښه وی | نو د حضرت موسی ﷺ خبرې(۱) نور چا اونه منلې

وَمَلَا۟ئِهِمْ اَنْ يَّفْتِنَهُمْ ؕ وَاِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ

اودسردارانو دهغوئ نه | چې په عذاب کښې به مبتلاکړی هغوئ لره(۲) | اوبیشکه | فرعون | خامخا دغلبې خاوندوړ

خوصرف دهغه د خپل قوم بعضې کشرانو اومنلې | سره دفرعون اودهغه قوم دسردارانو دویرې چې په مصیبت کښې

فِي الْاَرْضِ ۚ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الْمُسْرِفِيْنَ ۝ وَقَالَ مُوْسٰى يٰقَوْمِ

په زمکه کښې | اوبیشکه هغه | خامخا دحدنه داوړیدونکو نه وو | اواووئیل موسی | اے قومه زما

ئې اخته کړی | اوبیشکه فرعون په ملک کښې د ډیر زورخاوند وو | اوهغه به ډیر زیاتې کولو | او

اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّسْلِمِيْنَ ۝

که یئ تاسو | چې ایمان موراوړې وی | په الله باندې | نو په هغه باندې | بروسه کوئ(۳) | که یئ تاسو | حکم منونکی

موسی ﷺ اووئیل چې ائې خما قومه | که تاسو په [ربښتیا په ] الله ﷻ تعالی ایمان راوړې وی | نو په هغه

---

(۱) په حضرت موسی ﷺ باندې ایمان راوړونکی: "بنی اسرائیل" دفرعون دلاسه سخت په عذاب او تکلیف کښې وو اومخکښو پیشن ګویانو په انتظارکښې وو چه دفرعون دظلمونو باب به کله بندیږی اوددہ د حکومت تخته به کله الټه کیږی. اسرائیلی پیغمبربه مبعوث شی حضرت موسی ﷺ په دې شان سره تشریف راوړو چه دکوم دوی په انتظار کښې وو . ددوې دوجې ټولو بنی اسرائیلود حضرت موسی ﷺ بعثت یو لوې نعمت ګڼړلو . هغوی په زړه کښې حضرت موسی ﷺ ربښتونې ګڼړلو او ددوی به ئې عزت کولو خو اکثرخلق دفرعون او دفرعونیانونه ویریدل . ددې وجې په شروع کښې شرعی طور ایمان رانوړو او ددې وخت په انتظار کښې وو چه کله به دحق غلبه اوشی اومسلمانان به غالب شی دبنی اسرائیلوخوانانوهمت اوکړواو ددوی باجود د فرعونیانو نه دویردلوپه ځائې ئې دخپل اسلام اظهارپه ښکاره اوکړو. چه څود شمیر قبطیان هم مسلمانان شو چه دا دفرعون دقوم نه وو . آخرکښې چه کله دحضرت موسی ﷺ داثراوحق غلبه اوشوه نو بیاټول بنی اسرائیل مسلمانان شو چه د دوی تعداد شپږلاکهه وو په دې ځائې کښې دابتداء قصه بیان شوې ده .

(۲) د ملاء څخه مراد:- ددوی سرداران نه مراد یاخودفرعون عُمال اوحکام دی اویادبنی اسرائیلو هغه سرداران دی چه دڅه ویرې او طمعې په وجه ئې خپل قوم دفرعون دمخالفت نه ویرولو. او دزور ورکولو مطلب دادې چه کله فرعون دایمان راوړونکو خبر واوری نو دوی ته به سخته سزا ورکړی. اوممکن وو چه په دې سره څوکمزوری مسلمانانو ته زور ورکړی .

(۳) د فرعون څخه مه ویریږئ:- یعنی دویریدو څه ضرورت نشته دې دیوفرمانبرداره مسلمان کار دخپل مالك په طاقت باندې یقین کول دی چه دده به دالله تعالی په لامحدوده طاقت باندې یقین وی . او یقینی طوربه په هره معامله کښې په الله تعالی باندې یقین کوی او ددې اعتماداظهارهله کیدې شی چه بنده کله دالله تعالی په حواله وی اودهغه په حکم روان وی اوپه ټولوهلوځلو کښې دده نظرصرف په الله تعالی باندې وی

Scanned with Ca

فَقَالُوْا عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ

نو اوونیل هغوی | په الله باندې | بروسه اوکړه مونږه (¹) | اے ربه زمونږه | مه جوړوه مونږه | فتنه | دپاره دقوم

باندې بهروسه هم اوساتئ | که تاسو فرمانبردار یئ انو هغوی جواب ورکړو چې زمونږ په الله ❀

الظّٰلِمِيْنَ ۙ وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝

ظالمانو | او خلاصې راکړه مونږ له | په رحمت خپل سره | دقوم کافرنه

توکل دي ، | اې زمونږ ربه ته مونږ د ظالمانو دپاره فتنه مه گرزوئی | په خپل رحمت مو دکافرانو نه خلاص کړې

## آسان ترجمه قرآن

بیا وشوه دا چه په موسیٰ باندې نور څا نه لیکن خپله دهغه د قوم څو ځوانانو د فرعون او دخپلو سردارانو نه په ویره ویره ایمان راوړو چه چرته فرعون دوی ته تکلیف وو نه رسوي او یقیناً فرعون په زمکه کښې ډیر زورآور وو ، او هغه د هغه خلقو نه وو چه په څه حد باندې ولاړ نه وي. او موسیٰ ووئیل چه: اې ځما قومه اکه تاسو واقعي په الله باندې ایمان راوړې وي نو بیا په هغه باندې اعتماد وکړئ. که تاسو تابعدار یئ. په دې باندې هغوی ووئیل چه مونږ په الله باندې اعتماد کړې دې اې ځمونږ پروردګاره! مونږ ددې ظالمانو په لاس امتحان کښې مه اچوه. او خپل رحمت سره مونږ ته دکافر قوم نه خلاصې راکړه.

### خلاصه تفسیر

﴿ فَمَآ اٰمَنَ لِمُوْسٰىٓ اِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهِمْ اَنْ يَّفْتِنَهُمْ ۭ ﴾ پس [هرکله چه دهمسا معجزه ظاهره شوه نو] موسی [علیه السلام] باندې [ابتداء کښې] دده دقوم نه صرف لږقدری خلکو ایمان راوړوهغه هم دفرعون نه اودخپلوحاکمانونه په ویره ویره چه چیرته[په ښکاره کیدو]دوی ته تکلیف [ ونه ] رسوی اوپه واقع کښې[ددوی ویره بې ځایه نه وه ځکه چه].

﴿ وَاِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِي الْاَرْضِ ۚ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الْمُسْرِفِيْنَ ۝ ﴾فرعون په دې ملك کښې زور او [حکومت] لرلواواخبره هم وه چه دی دحد [انصاف]نه بهروتلو[ظلم ئی کولو، بیاچه کوم بیا چه کوم حکومت ظالم هم وی دهغه نه خوخامخاویره کیږی].

﴿ وَقَالَ مُوْسٰى يٰقَوْمِ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّسْلِمِيْنَ ۝ ﴾او موسی [علیه السلام]چه هرکله ددوی ویره ولیده نودوی ته ئی]وفرمائل چه ای ځماقومه که تاسو[په رشتیاسره]په الله ایمان لری نو [اسوچ فکرمکوئ بلکه ]په هغه توکل کوئ که چیری تاسو[دهغه اطاعت کوونکی ئی.

﴿ فَقَالُوْا عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝ ﴾دوی [په جواب کښې]ووېل چه مونږ په الله توکل کړیدی[اوبیا ددی نه پس ئی دالله نه سوال وکړوچه]ای خمونږه پروردگاره مونږ د ظالمانو

---

(¹) د بنی اسرائیلو اقرار:- دحضرت موسی علیه السلام په نصیحت باندې هغوی داخلاص اظهاراوکړو چه بیشکه زمونږ یقین صرف په الله تعالی باندې دې . هم دهغه ذات نه دعا غواړو چه مونږ دې ددې ظالمانو دظلم لاندې نه راولی لکه څنګه چه دوی په خپل طاقت سره ظلم کښې اخته دی . اومونږ دوی ته هیڅ نشو وئیلې په داسې صورت کښې خمونږ دین ته هم خطره ده او دې ظالمانو یانورو خلقوته به د خبرو کولو موقع په لاس ورشي که مونږ په حق نه وې نو تاسو باندې به داسې ولې غالب راتلو. اوتاسویه دومره لاندې ولې وې . داخیال به ګمراهان نور هم ګمراه کړی . ګویاچه پوحیثیت سره به خمونږ وجود ددوی دپاره فتنه جوړه شي .

Scanned with Ca

خلکو دظلم نه وساتی.

﴿وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ﴾ او مونږ دخپل رحمت په صدقه کښې ددې کافرانو نه خلاص کړې.

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰى وَاَخِيْهِ اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ

اووحی اوکړه مونږ | موسی ته | اوورورد هغه ته | چې جوړ کړئ دواړه | دپاره دقوم خپل | په مصر کښې

او مونږ حضرت موسی ﷺ او د هغه رور ته وحی اوکړه چې تاسو د خپل قوم دپاره

بُيُوْتًا وَّاجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ قِبْلَةً وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝

کوروننه | اوجوړ کړئ | دخپلو کورونو نه | قبله | اوقائم کړئ مونځ | اوزیرې ورکړه | مومنانو له

په مصر کښې کوروننه جوړ کړئ او خپل کورونه د مانځه ځایونه جوړ کړئی او د مانځه پابندی ساتئ

وَقَالَ مُوْسٰى رَبَّنَآ اِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِيْنَةً

اواووئیل موسی | اے ربه زمونږه | بیشکه تا | ورکړې دي | فرعون ته | اوسردارانو دهغه ته | ښائست

او ته مومنانو ته زیرې ورکړه | او حضرت موسی ﷺ اووئیل ائې زمونږ پروردگاره | تا فرعون ته

وَّاَمْوَالًا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ رَبَّنَا لِيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِكَ ۚ

اومالونه | په ژوند ددنیا کښې | اے ربه زمونږه | دپاره ددې چې بې لارې کړی خلق | دلارې ستا نه

اودهغه سردارانو ته په دې دنیاوی ژوند کښې ډیر دښائست سامان او ډیر مالونه ورکړی دی | انتیجه ئې دا چه

رَبَّنَا اطْمِسْ عَلٰٓى اَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْا

اے ربه زمونږه | هلاک کړه | مالونه ددوئ | اومهراولګوه | په زړونو ددوئ باند | چې ایمان رانوړی دوئ

ائې ربه هغوئ ستا دلارې نه خلق ګمراه کوی | ائې ربه ددوئ مالونه ختم کړې | او زړونه ئې دومره سخت کړه

حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ۝ قَالَ قَدْ اُجِيْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا

ترهغې پورې | چې اووینی دوئ | عذاب | دردناک | اووئیل الله | چې قبوله کړې شوه | دعاستاسو دواړو

چې هیچرې ایمان رانه وړی | تردې چې دردناک عذاب اووینی | الله ﷻ ورته اووئیل چې ستاسو دواړو دعا قبوله

فَاسْتَقِيْمَا وَلَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِيْلَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

نو مضبوط شئ دواړه | او هرګز پیروی مه کوئ تاسو | دلارې دهغه کسانو | چې علم نه لری

شوه انو پخپله لار قائم اوسیږئی | او دهغه چا په لارمه ځئ | چې نه پوهیږی

وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُوْدُهٗ

او پورې ایستل مونږه | بنی | اسرائیل | دسمندرنه | نوروان شو په هغوئ پسې | فرعون | اولښکردهغه

او مونږ بنی اسرائیل دسمندر نه پورې ویستل انو فرعون اودهغه لښکرې ورپسې دظلم اوزیاتئ په

بَغْيًا وَّعَدْوًا ۗ حَتّٰٓى اِذَآ اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ ۙ قَالَ

په غرض دزیاتی | اوبه غرض دظلم | تردې پورې | کله چې | راګیرکړو هغه لره | دوب والی | نو وې وئیل

غرض روان شول | تردې چې هغه په دوبیدو شو | نو وې وئیل چې خه ایمان راوړم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰمَنْتُ | اَنَّهٗ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | الَّذِیْٓ | اٰمَنَتْ |
| چې ایمان راوړو ما | چې بیشکه | نشته لائق دعبادت | مګر | هم هغه دي | چې ایمان راوړي دي |

چې بل الله نشته مګر هغه دي | چې بنی اسرائیلو پرې ایمان راوړي دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِهٖ | بَنُوْٓا اِسْرَآءِیْلَ | وَاَنَا | مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ۝ | آٰلْـٰٔنَ | وَقَدْ عَصَیْتَ |
| په هغه باندې | بني اسرائیلو | او زه هم | په منونکو کښې یم | آیا اوس | او نافرماني کوله تا |

او په مسلمانانو کښې شاملیږم | [جواب ورکړې شو] آیا اوس ایمان راوړې او ددې نه مخکښې

| | | |
|---|---|---|
| قَبْلُ | وَكُنْتَ | مِنَ الْمُفْسِدِیْنَ۝ |
| مخکښې ددې نه | او وې ته | دفسادکونکو نه |

خو به تا سرکشي کوله | او په فسادیانو کښې شامل وې |

## آسان ترجمه قرآن

اومونږ موسٰی او د هغه ورور ته وحی اولیږله چه: "تاسو دواړه خپل قوم لره د مصر په کورونو کښې وسوئ. او خپل کورونه د مانځه ځایونه جوړ کړئ او (دغه شان) مونځ ادا کوئ. او ایمان راوړونکو ته زیری ورکړئ. او موسیٰ ووئیل چه: اې ځمونږ پروردګاره! تا فرعون ته او د هغه سردارانو ته د دنیا په ژوند کښې ډیر ښایست او مال او دولت ورکړې دې اې ځما پروردګاره ددې نتیجه دا راوځي چه دوی خلق ستا د لارې نه بندوي. اې ځمونږ پروردګاره! د دوی مال او دولت ختم کړه او د دوی زړونه دومره سخت کړه چه دوی تر هغه وخته پورې ایمان رانه وړي چه تر څو دوی په سترګو باندې دردناک عذاب نه وي لیدلې الله ووئیل چه ستاسو دعاء قبوله شوې ده—اوس دواړه ګلکه شئ. او هغه خلقو پسې بالکل مه ځئ چه د حقیقت نه خبر نه دي او مونږ بنی اسرائیل په دریاب باندې پورې ویستل. نو فرعون او د هغه لښکر د ظلم او زیاتۍ په نیت سره دوی پسې شو تر دې چه د ډوبیدو انجام د دوی په سر راغلو نو وئې ووئیل: "چه ما ومنله چه په کوم خدائې باندې بنی اسرائیلو ایمان راوړې دې، دهغه نه سوا بل معبود نشته. اوځه هم په تابعدارو کښې شامل یم (جواب ورکړې شو چه) اوس ایمان راوړئ؟ حال دا چه دې نه مخکښې تا نافرمانۍ کړې وه او فساد دې کولو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاَوْحَیْنَآ اِلٰی مُوْسٰی وَاَخِیْهِ اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُیُوْتًا وَّاجْعَلُوْا بُیُوْتَكُمْ قِبْلَةً وَّاَقِیْمُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِیْنَ۝﴾ او مونږ د دی دعا د قبلیدو سامان وکړو چه] موسی [علیه السلام] او دده وروړ هارون [علیه السلام] ته مونږ وحی ولیږله چه تاسو دواړه دخپلو دی خلقو لپاره [په زړه طریقه] په مصر کښې کورونه برقراره وساتئ [یعني دوی دی دویری نه کورونه نه پریږدی مونږ ددوی حفاظت کوونکی یو] [او د مانځه په وختونو کښې] تاسو ټول پخپلو دغو کورونو کښې د مانځه ځای مقرر کړئ [یعنی دویری له وجې جماتونو ته حاضری معاف ده] او [دا ضروری ده چه] د مانځه پابندی کوئ [چه د مانځه په برکت سره الله تعالی زر تر زره ددی مصیبت نه نجات درکړی] او ای موسی [علیه السلام] ته مسلمانانو ته خوشخبری ورکړه [چه اوس به زر دا مصیبت ختم شی].

﴿وَقَالَ مُوْسٰی رَبَّنَآ اِنَّكَ اٰتَیْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِیْنَةً وَّاَمْوَالًا فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ۙ رَبَّنَا لِیُضِلُّوْا عَنْ سَبِیْلِكَ﴾ او موسی [علیه السلام] په دعا کښی عرض وکړو چه ای زمونږ ربه [مونږ ته دا خبره معلومه شویده چه] تا

فرعون ته اودده سردارانوته دښائست سامان اوقسم قسم مال ددنیاپه ژوند کښې ای زمونږه ربه پدې وجه ورکړې یدې چه دوی ستادلارې نه [خلکولره] گمراه کړي.

﴿رَبَّنَا اطْمِسْ عَلٰٓى اَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ﴾ [پس هر کله چه هدایت ددوی په تقدیر کښې نشته اوکوم حکمت چه ووهغه حاصل شونواوس ولې ددوی نفسونه اومالونه باقي پاتې کړې ی شي پس] ای زمونږه ربه ددوی مالونه نیست نابود کړه او [ددوی دهلاکت سامان وکړې داسې چه] ددوی زړونه [ زیات] سخت کړې [چه پدې سره دهلاکت مستحق شي] پس چه دوی ایمان رانه وړې [بلکه ورځ په ورځ ئې کفر سوا کیږي ]تردې چه [د] ددردناك عذاب [ مستحق شي هغه ]ووینې [نودغه وخت ایمان نفع نه ورکوي موسی [علیه السلام] ] دادعاکوله اوهارون [علیه السلام] په آمین ویلو [درمنثور].([1])

﴿قَالَ قَدْ اُجِيْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا فَاسْتَقِيْمَا وَلَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِيْلَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ الله تعالی وفرمائل چه ستاسو دواړو دعا قبوله شوه [ خکه چه آمین ویل هم په دعاکښې شریکیدل دي یعنې اوس مونږ ددوی مالونه اونفسونه هلاکوو] پس تاسو [ پخپل منصبي کار یعنې تبلیغ باندې] ثابت قدم اوسئ [اګرکه هدایت ددوی په تقدیر کښې نه وي مګر تبلیغ کښې ستاسوفائده خوشته ] اودهغه خلکو په لاره مه ځئ کوموته چه [زمونږ دوعدې درشتونې کیدویاپدې چه صبر کښې حکمت دي یا د تبلیغ ضروري کیدو] علم نشته [یعني زمونږه وعده رشتوني وګنئ اوکه ددوی په هلاکت کښې لږوخت تیرشي نوپه دي کښې حکمت وګنئ او پخپل منصبي کار یعنې تبلیغ لګیااوسئ]

﴿وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُوْدُهٗ بَغْيًا وَّعَدْوًا﴾ او [کله چه مونږ دفرعون هلاکول وغوښتو نو موسی [علیه السلام] ته موحکم وکړوچه بني اسرائل دمصرنه وباسه نوده تهول دخان سره روان کړل او په لاره کښې دریابې شورراغئ اود موسی [علیه السلام] په دعاسره پکښې لاره وشوه او] مونږ بني اسرائیلولره د [دې] ادریاب نه پورې ویستل بیاپدوی پسې ورروستو وروستوفرعون سره دخپل لښکرنه دظلم اوزیاتئ په اراده سره [په دریاب کښې ]روان شو [چه ددریاب نه پورې وخي اوددوی سره مقابله وکړي لیکن دوی ددریاب نه پورې نه شو].

﴿حَتّٰٓى اِذَآ اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ قَالَ اٰمَنْتُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِيْٓ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْٓا اِسْرَآءِيْلَ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ تردې چه هر کله په ډوبیدوشو [اودعذاب ملائك ئې په نظرراغلل] نو [بدحواسه شو] اوونې ویل چه زه ایمان راوړم چه بغیردهغه [ ذات] نه په چاچه بني اسرائیلوایمان راوړې دی، بل هیڅوك معبود نشته اوزه په مسلمانانوکښې شاملیږم [نوماته ددې غرقیدواوداَخرت دعذاب نه خلاصئ راکړې شي] د فرشتې په ذریعه] جواب ورکړې شوې چې اوس ایمان راوړې؟ [حال دا چې د آخرت لیدل شروع شوي دي. ﴿ آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ﴾ او [داخرت دلیدونه اول خودې سرکښي کوله اوپه فسادکوونکوکښې داخل وې اوس نجات غواړې؟

**معارف او مسائل**

په دې آیتونو کښې د حضرت موسی علیه السلام او د حضرت هارون علیه السلام ،د بني اسرائیلو او فرعونیانو بعضې حالات او هغې سره ترلې احکام بیان شوې دي، په رومبي آیت کښې د یوې خاصې واقعې په باره کښې حکم داسې راغلې دې چه بني اسرائیل د حضرت موسی علیه السلام په دین باندې

---

[1]) الدر المنثور تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۳۳

Scanned with Ca

روان وو، دوی به د خپل عام عادت په جوړ مونځونه یواځې په خپلو عبادت خانو [صومعو] کښې ادا کول، او د پخوانو امتونو د پاره حکم هم دغه وو چه د هغوی مونځونه به په خپلو کورونو کښې نه شو ادا کیدې، دا خصوصی اسانی امت محمدیه ﷺ ته ورکړې شوه چه هر ځاې مونځ ادا کولې شی، چنانچه د صحیح مسلم په یو حدیث کښې رسول الله ﷺ د خپلو شپږو خصوصیتونو نه یو خصوصیت دا هم بیان کړې دې چه زما د پاره ټوله زمکه جومات جوړه کړې شوه، یعنی هر چرته د دې امت مونځ کیدې شی، (۱) دا بله خبره ده چه فرض مونځونه په جوماتونو کښې په جمع سره سنت مؤکده اوګرځولې شو او د نفلی مونځونو په کورونو کښې ادا کول غوره دی، د رسول الله ﷺ عمل هم په دې وو چه په جومات کښې به ئې صرف فرض مونځ په جمع سره ادا کولو، سنت او نفل مونځ به ئې کور کښې ادا کولو. بنی اسرائیل د خپل مذهب په جوړ د دې پابند وو چه مونځ به صرف په خپلو عبادت خانو کښې ادا کوی، فرعون به یو خوا دوی ته قسم قسم نقصانونه ورکول او قسما قسم ظلمونه به ئې پرې کول بل خوا ئې د دوی ټولې عبادت خانې ځکه ورانې ویجاړې او لوټې لوټې کړې چه دوی د خپل مذهب په جوړ مونځ ادا نه کړې شی، په دې سره الله تعالی د بنی اسرائیلو دواړو پیغمبرانو حضرت موسی علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام ته هغه حکم ورکړو کوم چه په دې آیت کښې په دې شان بیان شوې دې چه بنی اسرائیلو د پاره دې په مصر کښې نوی کورونه جوړ کړې شی چه مخه ئې قبلې ته دې د پاره وی چه هغوی هم په خپلو کورونو کښې مخ په قبله مونځونه ادا کولې شی.

دې نه معلومه شوه چه پخوانو امتونو ته دا حکم وو چه مونځونه دې صرف په عبادت خانو کښې ادا کوی، په عارضی طور خاص د دې عذر په وجه که بنی اسرائیلو ته په خپلو کورونو کښې د مونځ کولو اجازت ورکړې شو بیا هم د دغې خاص کورونو نه سوا په بل ځاې کښې د مونځ کولو اجازت ورته نه وو، په عامو کورونو کښې به ئې هم مونځونه نه شو کولې د کومو مخونه به چه قبلې ته نه وو، دا د دې امت خصوصیت دې چه په هر کور، هر مقام، هر ښار او ځنګل، صحرا او بیابان کښې د مونځ کولو آسانی ورکړې شوې ده [روح] (۲)

دلته کومه قبله مراد ده چه ورته د مخ کولو حکم شوې دې؟ حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه دې نه کعبه مراد ده ځکه چه هم دا د حضرت موسی علیه السلام او د هغه د ملګرو قبله وه [قرطبی و روح] (۳) بلکه د ټولو پخوانو پیغمبرانو علیهم السلام قبله هم په اصل کښې کعبه وه.

او په کوم حدیث شریف کښې چه د یهودو په مونځ کښې صخرهٔ بیت المقدس ته د مخ کولو بیان راغلې دې نو دا د هغې زمانې خبره کیدې شی چه حضرت موسی علیه السلام مصر پریښودو او بیت المقدس اړخ ته روان شو، خو د مصر د استوګنې په زمانه کښې موسی علیه السلام کعبې [بیت الله] ته مخ کول [په مانځه کښې] ابې سمونه نهٔ شی کیدې (۴)

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب المساجد ... الخ: ج۱، ص۱۹۹
(۲) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج۸، ص۹۳
(۳) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج۸، ص۳۷۱، وروح المعانی تحت هذه الآیة: ج۸، ص۹۳
(۴) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج۸، ص۹۳

Scanned with Ca

دې ايت نه دا هم ثابته شوه چه مونځ کښې قبلې ته د مخ کولو شرط د ټولو پيغمبرانو ﷺ په زمانه کښې وو، ځکه چه د معتبرو روايتونو له مخه طهارت او ستر د عورت هم د ټولو پيغمبرانو ﷺ د مونځ د پاره شرط کيدل ثابت دي.

مخ په قبله د کورونو د جوړولو نه مقصد هم دا وو چه هم په کورونو کښې دې مونځونه ادا کولې شي ځکه چه وروستو په ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ سره د حکم په ورکولو دا هدايت ورکړې شو که فرعونيان مو په خپلو مخصوص عبادتګاهونو کښې مونځونو ادا کولو ته نه پريږدي نو مونځ مه پريږدي بلکه په خپلو کورونو کښې ئې ادا کوې.

په آخر د آيت کښې حضرت موسى ﷺ ته په خطاب کولو سره حکم ورکړې شو چه مومنانو ته د دوى د مقصود پوره کيدو او په دشمنانو باندې د غالب کيدو زيرې واوروه او دا هم چه په آخرت کښې به ئې جنت نصيب کيږي [روح] [۱].

د آيت په اول سر کښې حضرت موسى ﷺ او هارون ﷺ ته د تثنيې په صيغې سره خطاب ځکه اوکړې شو چه مخ په قبله د مکانونو جوړولو هدايت کول او په دې کښې د مونځ کولو اجازت ورکول هم د دوى ﷺ کار وو، وروستو د جمعې په صيغې سره ئې په کښې ټول بنى اسرائيل شامل کړل او د مونځ حکم ئې ورکړو ځکه چه په دې حکم کښې پيغمبر او امت ټول داخل دي، په آخر کښې د زيرى ورکولو حکم خاص موسى ﷺ ته ځکه ورکړې شو چه په اصل کښې د شريعت خاوند پيغمبر هم موسى ﷺ وو، د جنت زيرې ورکول هم د دوى حق وو.

په دويم آيت کښې د فرعونيانو د اصلاح نه په نااميده کيدو سره د حضرت موسى ﷺ د ښيرو کولو بيان دې چه په شروع کښې هغوى ﷺ د الله تعالى په دربار کښې دا عرض کړې دې چه تا، فرعون ته د دنيا د ښائست سازوسامان او ډير مال دولت ورکړې دې، د مصر نه د حبشې تر ملک پورې دې د سرو زرو د چاندې، د زبرجدو، زمردو، او ياقوتو وغيره [جواهراتو] کانونه ورکړې دى [قرطبى] [۲]. د دغې خيزونو په اثر سره خلقو لره ستاسو د لارې نه ګمراه کوى، ولې چه عام خلق د دوى سازوسامان، عيش وعشرت، آرام او مزو چرچو ته چه ګورى نو شک ئې راځى چه که دوى ګمراهان وى نو د الله تعالى په دې نعمتونو به ولې برپوره وو؟ ولې چه عام خلق خو هم دغه ظاهرى نعمتونو ته ګورى او په دې حقيقت نه پوهيږى چه بغير د نيک عمل نه دغسې دنيوى وده د دې دليل نه شى جوړيدې چه د نعمتونو دغه خاوندان په حقه دى.

حضرت موسى ﷺ کله چه د فرعونيانو د اصلاح او سميدو نه نا اميده شو او د دوى د لوټې مالدارې او دنيادارې په وجه ئې د نورو خلقو د ګمراه کيدو خطره محسوسه کړه نو ښيرې ئې اوکړې چه ﴿رَبَّنَا اطْمِسْ عَلَىٰٓ أَمْوَالِهِمْ﴾ [اې زمونږ پروردګاره د دوى د مالونو شکلونه بدل کړې چه وران او بيکاره شى].

د حضرت قتاده ﷺ د بيان مطابق د دې ښيرو نتيجه دا راوته چه د فرعونيانو ټول زر، جواهر، ټول نغديت او ټول د فصل پيداوار د کانړو په شکل کښې بدل شو، چنانچه د حضرت عمر بن

---

[۱] روح المعانى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۳
[۲] تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۳۷۳

عبدالعزیز په زمانه کښې د دغې زمانې څه څیزونه [بادام او اګې وغیره] په یو بوجګې کښې بیا موندې شوې وو چه د کانړو په شکل شوې وو.[1] دغه شان د تفسیر امامانو فرمائیلې دی چه الله تعالی د دوی ټول میوې، ترکاریانې او غلې د کانړو په شکل کښې بدلې کړې وې،
دا د الله تعالی د هغه نهه معجزاتو نه یوه معجزه وه کومې چه په دې شان بیان شوې دی: ﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ﴾ حضرت موسی ﷺ بله ښیره داسې کړې وه [﴿وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ﴾] یعنی اې پروردګاره د دوی زړونه داسې سخت کړې چه دا د ایمان او څه ښیګړې جوګه [قابل] پاتې نه شی او د عذاب الیم د راتلو نه وړاندې ایمان راونه ړې شی].
په ښکاره خو داسې ښیرې کول د پیغمبر د شان سره جوړښت نه لری ولې چه د پیغمبر شان دا دې چه خلقو ته د ایمان او نیک عمل بلنه ورکړی او د دې انتظام اوکړی، خو دلته د حضرت موسی ﷺ ټولې خوارې هر کله چه په دوی هیڅ اثر او نه کړونو موسی ﷺ ترې نا امیده شو او دا ئې اوغوښتل چه د دوی د ناکړدو سزا په خپلو سترګو اووینی، د دې یو صورت دا هم کیدې شی چه د عذاب د نخښه نښانو په لیدلو سره دوی د ایمان اقرار اوکړی او د عذاب راتلل پرې ایسار کړې شی، د دې وجهې نه د کفر نه بغض او نفرت د دې ښیرو سبب اوګرزیدو، لکه چه فرعون د غرقیدو په وخت کښې د ایمان اقرار کوو نو جبریل امین ﷺ د هغه خله بنده کړه چه هسې نه د الله تعالی رحمت ورته متوجه شی او دې د عذاب نه بچ شی.
د دې ښیرو بل مطلب دا هم کیدې شی چه دا په حقیقت کښې ښیرې نه وی بلکه دا ښکاره کول وی چه الله تعالی د دوی زړونه داسې سخت کړې دی چه ایمان او اصلاح نه قبلوی، د دې بل مثال داسې دې چه هر کله د قرآن کریم د ښکاره فیصلې مطابق شیطان لره الله تعالی ملعون ګرځولې دې، بیا په ده باندې لعنت وئیل ښیره نه شوه بلکه د دغې خداوندی فیصلې ښکاره کول شو.
په دریم آیت کښې د حضرت موسی ﷺ د دعا قبلیدل بیان شوې دی، خو په دې کښې ورسره حضرت هارون ﷺ خکه شریک کړې شو [او داسې اوفرمائیلې شو ﴿قَدْ اُجِيْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا﴾ [ستاسو د دواړو دعا قبوله شوه] چه اصل دعا د حضرت موسی ﷺ وه او حضرت هارون ﷺ پرې آمین وئیلې وو، دې نه دا هم معلومه شوه چه د چا په دعا باندې آمین وئیل په دغې دعا کښې ورسره شریکیدل دی، د دعا مسنونه طریقه هر کله چه په قرآن کریم کښې په مزه او په رو آواز سره ښودلې شوې ده نو په رو آواز سره د دې وئیل غوره معلومیږی.
په دې آیت کښې د دعا د قبلیدو خبر دې دواړو پیغمبرانو ته ورکړې شو خو څه قدرې ازمینښت په کښې د دوی دا شان هم وو چه د امام بغوی په قول د دې دعا [ښیرو] د قبلید و اثر څلوېښت کاله پس ښکاره شو[2] خکه ورته داسې اوفرمائیلې شو [﴿فَاسْتَقِيْمَا وَلَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِيْلَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾] یعنی په خپل منصبی کار کښې په مخه لګیا اوسې، د دعا د قبلیدو په اثر کښې په ډیل راتلو سره د جاهلانو پشان تادی مه کوئ]

[1]) التفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ٨، ص ٣٧٣، والتفسير البغوي تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٣٧
[2]) التفسير البغوي تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٣٨

Scanned with Ca

په څلورم آیت کښې د حضرت موسیٰ ﷺ د مشهورې معجزې [د دریاب نه ئې د پورې وتو] او د فرعون د غرقیدو او د واقعې بیانولو نه پس فرمائي ﴿حَتّٰىٓ اِذَآ اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ ۙ قَالَ اٰمَنْتُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِيْٓ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْٓا اِسْرَاۗءِيْلَ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ [یعنی کله چه فرعون په غرقیدو شو نو وئیل ئې چه ایمان راوړم په دې خبره چه په کوم خداې باندې بني اسرائیلو ایمان راوړې دې د هغه نه سوا بل هیڅوک معبود نشته او زه د فرمانبردارو نه یم].

په پنځم آیت کښې الله تعالی د دې جواب داسې ورکړې دې ﴿آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ﴾ [یعنی ښه، ته اوس مسلمانیږې هر کله چه د ایمان او اسلام وخت تیر شو؟].

دې نه ثابته شوه چه خالص د سا ختو په وخت کښې د شریعت له مخه د ایمان راوړل معتبر نه دي، د دې زیات وضاحت د هغې حدیث نه کیږي چه په کوم کښې رسول الله ﷺ داسې فرمائي؛ الله تعالی تر هغې وخته پورې دبنده توبه قبلوي ترڅو چه د مرګ آخري سلګې نه وي راغلې [ترمذی] (۱)

دې نه هغه وخت مراد دې چه د سا وتو په وخت کښې فرښتې مخې ته راشي دغه وخت نه د دار العمل [دنیا] ژوند ختم شي، د آخرت حکمونه شروع شي ځکه د دغې وخت هیڅ یو عمل د قبلیدو قابل نه دې، که هغه ایمان وي او که کفر، خاص په دغه وخت کښې به ایمان راوړونکې به مومن نه شي ګڼړلې او نه به ئې د مسلمانانو په شان کفن دفن کولې شي، څنګه چه د فرعون د دغې واقعې نه ثابته ده چه په اجماع د امت سره د هغه مرګ په کفر باندې منلې شوې دې، او په ګڼړو ځایونو کښې قرآن کریم هم دغسې په ښکاره فرمائیلې دي، بیا هم که چا د هغه ایمان ته معتبر وئیلې دې نو د هغې تاویل به کول شي یا به ورته غلط وئیلې شي [روح] (۲).

هم دا شان خداې دې نه کړي که د سا وتو په وخت کښې د چا د خلې نه د کفر کلمه راوځي نو هغه ته به کافر نه شي وئیلې، د مسلمانانو په شان به پرې د جنازې مونځ کولې شي، د ده د کفر د کلمې تاویل به کولې شي، څنګه چه د بعضې اولیاءالله د حالاتو نه د دې تائید کیږي، چه د هغه د خلې نه د کفر کلمې په راختو خلقو کافر ګڼړلو او ډیر پریشانه شو خو کله چه دغه اولیاء الله په خود کښې راغې او د دې خبرې مطلب ئې بیان کړو نو د تولو تسلی اوشوه او پوهه شو چه هغه خالصه د ایمان کلمه وه.

خلاصه دا شوه چه د سا ختو په وخت د دغه کس څه نوې عمل د شریعت له مخه معتبر نه دې، هم هغه عمل به ئې معتبر وي کوم ئې چه په ژوند کښې کولو، ځکه په کښې ډیر احتیاط کول ضروري دي ولې چه د دې په صحیح اندازې کولو کښې غلطی کیدې شي چه آیا دا خالص د سا ختو وخت وو او که د دې نه وړاندې وو؟

| | | |
|---|---|---|
| فَالْيَوْمَ | نُنَجِّيْكَ | بِبَدَنِكَ |
| نو نن ورځ | بچ کوو مونږ تا | له ستا بدن |
| ...... نو ښه ده نن مونږ | ستا ظاهري بدن | |

(۱) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب في فضل التوبة الخ: ج ۲، ص ۱۹۳
(۲) روح المعاني تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۱۱۳

لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ اٰيَةً ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا

دپاره ددې چې شې ته | دپاره دهغه چا | چې روستو ستانه دی | یوه نښه دعبرت | او بیشکه | چې ډیر

ته نجات ورکوو | ددې دپاره چې د روستو راتلونکو خلقو دپاره یوه نښه شې | او ډیر خلق زمونږ

مِّنَ النَّاسِ عَنْ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُوْنَ ۹۲ وَلَقَدْ بَوَّاْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

د خلقو نه | دنښو زمونږ نه | خامخا بې پروا دی | او بیشکه خاني ورکړو مونږ | بني اسرائیلو ته

د | داسي | نښونه غافل دی | او مونږ بنی اسرائیلو لره ډیره ښه تیکانړه ورکړې وه |

مُبَوَّاَ صِدْقٍ وَّرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۚ فَمَا اخْتَلَفُوْا حَتّٰى

خاني دصدق | او ورکړلي مونږ هغوئ له | ښه وسائل دژوند | نو اختلاف اونه کړو هغوئ | ترهغې پورې

او پاکیزه خوراکونه مو ورکړی وو | نو هغوئ اختلاف نه وو کړې | تردې چې [دحق] علم ورته راغلو

جَآءَهُمُ الْعِلْمُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

چې راغې هغوئ ته | علم | بیشکه | رب ستا | به فیصله اوکړی | په منځ دهغوئ کښې | په ورځ دقیامت

..................... | بیشکه ستا پروردګار د قیامت په ورځ د دوی په هغه

فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۹۳ فَاِنْ كُنْتَ فِيْ شَكٍّ

په هغه څیز کښې | چې وو هغوئ | په هغې کښې | چې اختلاف به ئې کولو | نو که ئې ته | په شك کښې

خبرو کښې فیصله اوکړی | په کومو کښې چې به دوی اختلاف کولو | نو که ستا دهغې حکمونو په حق

مِّمَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ فَسْئَلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ

دهغه هدایت په حقله | چې نازل کړې دې مونږه | تاته | نو تپوس اوکړو دهغه کسانونه | چې لولی هغوئ

کښې څه شک وی | چې مونږ درکړې دی | نو دهغه چا نه تپوس اوکړه | چې ستا نه مخکینی کتابونه ئې

الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَقَدْ جَآءَكَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ

کتاب | مخکښې ستانه | بیشکه | راغلې دې تاته | حق | دطرفه درب ستانه | نومه کیږه ته

لوستل | بیشکه تاته دخپل پروردګار دطرفه حق راغلې دې | نو هرګز په شکمنو خلقو کښې مه شاملیږه.

مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ۹۴ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

دشك کونکو نه | او مه کیږه ته | دهغه خلقو نه | چې دروغ ئې ګنړلې دی | آیتونه دالله |

او په هغه خلقو کښې هم مه ورګډیږه | چې دالله ﷻ نښې دروغ ګنړی | ...

فَتَكُوْنَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۹۵ اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ

نو شې به ته | دنقصان موندونکوئه | بیشکه هغه کسان | چې ثابته شوی ده | په هغوئ بلډ | وینا

کښی تاوانی بۀ شې | ............ بیشکه چې په چا باندې ستا د پروردګار فیصله ثابته شوې ده

رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۹۶ وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا

درب ستا | نۀ راوړی هغوئ ایمان | اګرکه راشی هغوئ ته | هره نښه | تردې پورې | چې اووینی هغوئ

هغوئ ایمان نه راوړی | ............ اګر که هر قسم نښې ورته راشی | ترڅو چې

Scanned with Ca

اَلْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ۝ فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ اٰمَنَتْ فَنَفَعَهَآ

عذاب | دردناك | نو ولې نه وه | يو كلې والا چې ايمان ئې راوړې وې | پس نفع رسولې وې هغه كلي والو ته

دردناک عذاب اونه وينی | نو داسې مثال [نشته] چې يو كلى د عذاب ليدو نه پس ايمان راوړې وى

اِيْمَانُهَآ اِلَّا قَوْمَ يُوْنُسَ ۚ لَمَّآ اٰمَنُوْا كَشَفْنَا عَنْهُمْ

ايمان دهغې | ماسوا | دقوم ديونس نه | كله چې | ايمان راوړو هغوئ | نولرې كړو مونږ | دهغوئ نه

اوخپل ايمان ورته نفع وركړې وى ابغير د حضرت يونس عليه السلام دقوم نه هركله چې هغوئ ايمان راوړو

عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ ۝

عذاب | دشرمندګۍ | په ژوند ددنيا كښى | اودفائدې اغستلو موقع وركړه مونږ هغوئ له | ديو وخت پورې

نومونږ ترې نه شرمونكى عذاب په دې دنيا كښې لرې كړو | اوتر څه وخته مو آرام وركړو

## آسان ترجمه قرآن

نو اوس به (صرف) ستا بدن بچ كوو چه ته وروستو خلقو دپاره عبرت جوړ شې (ځكه) چه ډير خلق زمونږ نښو نه غافله دي. او مونږ بني اسرائيلو ته داسې ځاي وركړو چه صحيح معنو كښې د اوسيدو لايق وو، او دوی ته مو ډير پاكو څيزونو نه رزق وركړو. بيا هغوى (ددين حق په باره كښې) تر هغه وخته پورې اختلاف ونكړو تر څو چه دوی ته علم نه وو راغلې. يقين وكړه چه كوم خبرو كښې چه دوی اختلاف كړې وو، دهغې فيصله به ستا پروردګار د قيامت په ورځ كوی بيا (اې پيغمبره !) كه چرې (فرض محال) تا ته په دې كلام كښې لږ غوندې شك هم وې كوم چه مونږ په تا نازل كړې دې نو دهغه خلقو نه تپوس وكړه چه كوم ستا نه مخكښې (آسماني) كتاب لولي. يقين وكړه چه تا ته ستا د پروردګار د طرف نه حق راغلې دې، نو ته چرې هم د شك كونكو نه مه كيږه او دهغه خلقو نه چرې هم مه كيږه چه هغوی دالله آيتونه دروغژن كړی دی، ګنې ته به هغه خلقو كښې شامل شې چه هغوی تاوانيان دي. بې شك د كومو خلقو په باره كښې چه ستا د رب خبره فيصله شوې ده، هغوی ايمان نه راوړي، خواه كه دوی ته هر قسم معجزې راشي تر دې چه دوی دردناك عذاب وويني. ولې نه وو داسې يو كلې چه هغه وخت ئې ايمان راوړې وې كوم وخت چه ايمان راوړلو فائده وركولې شوه؟ خو صرف د يونس د قوم خلق داسې وو، چه كله هغوی ايمان راوړو، نو مونږ دنيا كښې د رسوائي عذاب د هغوی نه لرې كړو، او يو وخت پورې مو ورته د ژوند فائده وركړه.

### خلاصه تفسير

﴿ فَالْيَوْمَ نُنَجِّيْكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُوْنَ لِمَنْ خَلْفَكَ اٰيَةً ۭ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ عَنْ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُوْنَ ۝ ﴾ پس [ په خاى دمطلوبه نجات ]نن به مونږستالاش لره[ داوبو په ته كښې دپاتې كيدو نه]نجات وركړوچه ته دهغوى لپاره دعبرت سبب شې كوم چه ستانه وروسته موجوددى [چه ستابدحالى اوتباهى وينى اودحكمونودمخالفت څخه ځان وساتى اوحقيقت دادى چه[ بياهم] ډيرخلك زمونږ [دداسى داسى ]عبرتونونه غافله دى[ اوداحكامو دمخالفت نه نه ويريږى].

﴿ وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ وَّرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۚ فَمَا اخْتَلَفُوْا حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ ۭ ﴾ اومونږه [ دفرعون دغرقيدونه پس] بني اسرايل لره ډيرښه ځاى داوسيدو ورکړو [چه دغه وخت خو د مصر مالکان شو اوددوى اولنى نسل لره موږه بيت المقدس اود شام دملك په عمالقه وو باندى فتح ورکړه] اومونږ دوى لره پاك څيزونه دخوراك لپاره ورکړل [په مصرکښى هم باغونه اوچينى وى، اودشام باره کښى: بٰرَكْنَا فِيْهَا : راغلى دى]پس[ پکارده چه څمونږ دحکمونوپه منلوکښى زيات سرګرم شوى وى ليکن دوى برعکس په دين کښى اختلاف شروع کړو اوغضب دا چه] دوى دجهل له وجى اختلاف ونه کړوتردى چه دوى ته[ داحکامو]علم ورسيدو[اوبيائى اختلاف وکړو،.

﴿ اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۝ ﴾ مخکى په دى اختلاف باندى دسزاويره ده چه]يقينى خبره ده چه ستارب ددوى[اختلاف کوونکو]په منځ کښى دقيامت په ورځ پدى کارونو کښى [عملى]فيصله وکړى په کوموکښى چه دوى اختلاف کولو، بيا [ددين محمدى ﷺ دحقيقت ثابتولولپاره مونږ يوه داسى کافى طريقه ښايو چه دغيرصاحب وحى لپاره به بيخى کافى نه وى هغه داسى ده چه ته صاحب وحى ئى مګرکه تاته هم که ددى خطاب په طور د يوى قضيۍ شرطيۍ سره وشى نوممکنه ده داسى چه].

﴿ فَاِنْ كُنْتَ فِيْ شَكٍّ مِّمَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ فَسْــَٔـلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَقَدْ جَآءَكَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ۝ ﴾ که چيرى [بالفرض]ستاپه دى کتاب کښى څه شك [اوشبه]وى کوم چه مونږ تاته ليږلى دى نو[ددى شك لرى کولويوه اسانه طريقه داهم ده چه]ته دهغه خلکونه تپوس وکړه چه ستا نه دمخکى کتابونولوستونکى [مرادتورات اوانجيل دى هغوى به دپيشينګويوپه طورباندى په لوستلو سره ددى قرآن تصديق وکړى]بيشکه تاته ستادرب دطرف نه رښتونى کتاب راغلى دى ته هيڅکله په شك کوونکوکښى مه کيږه.

﴿ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَتَكُوْنَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝ ﴾ اونه [دشك کونونکونه زيات ]په هغه خلکوکښى کيږه کوموچه دالله تعالى اياتونه دروغژن کړه هسى نه چه ته[نعوذبالله]تباه نه شى.

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ ﴾ بيشکه دکوموخلکوپه باره کښى چه ستارب[دا ازلى] خبره [چه دوى به ايمان رانه وړى ]. ثابته شوى ده دوى به [چرته ] رانه وړى

﴿ وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ۝ ﴾ اګرکه دوى ته ټول دليلونه [دثبوت دحق ورسى ترڅوپورى چه دردناکه عذاب ونه وينى [مګرددغه وخت ايمان نفع نه ورکوى].

﴿ فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ اٰمَنَتْ فَنَفَعَهَآ اِيْمَانُهَآ اِلَّا قَوْمَ يُوْنُسَ ۭ لَمَّآ اٰمَنُوْا كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ ۝ ﴾ چنانچه[ په کومو کلو چه عذاب راغلى دى په دوى کښى]يوکلى ايمان رانه وړو چه ايمان راوړل ورته نفعمند شو[ځکه چه ددوى دايمان سره مشيت متعلق شوى نه وومګرديونس ﷺ]قوم[چه ددوى دايمان سره مشيت متعلق شوى وو پدى وجه چه دوى دوعده شوى عذاب اولنى نښى وليدلى ايمان ئى راوړو او]کله چه دوى ايمان راوړونومونږ درسوائى دعذاب نه ددنياپه ژوند کښى دوى خلاص کړل اودوى لره موديوخاص وخت [يعنى دمرګ تروخته ]پورى [په خيرخوبۍ سره ]عيش ورکړوپس دنوروکلوايمان نه راوړلاوديونس ﷺ دقوم ايمان راوړل دواړه په مشيت سره وشو.

Scanned with

## معارف او مسائل

په رومبی آیت کښې فرعون ته داسې خطاب دې چه د غرقیدو نه پس به دې مونږ بدن د اوبو نه بهر کړو چه د راتلونکو خلقو د پاره د الله تعالی د قدرت نخښه او عبرت جوړ شي.
دا واقعه داسې وه چه حضرت موسی علیه السلام د دریاب د پورې وتو نه پس بنی اسرائیلو ته د فرعون د هلاکیدو خبر ورکړو نو هغوی په دې وجه په دې باندې اعتبار او نه کړو چه د فرعون نه ډیر په یره کښې وو، الله تعالی د فرعون مړ جسد د دریابی چپې په ذریعه د سیند غاړې ته څکه راګذار کړو چه د موسی علیه السلام رښتینولی اوشی او نورو خلقو ته عبرت حاصل شی، بیا معلومه نه ده چه د ده د لاش څه اوشو؟ کوم ځاې کښې چه د فرعون بدن موندې شوې وو هغه ځاې تر اوسه پورې د جبل فرعون په نوم سره مشهور دې.
څه زمانه وړاندې اخبارونو کښې دا خبرونه چاپ شوې وو چه د فرعون بدن صحیح سالم اوموندې شو او عامو خلقو په خپلو سترګو اولیدلو او تر ننه پورې د قاهرې په عجائب ګهر کښې پروت دې، خو دا یقینی څکه نه دی چه فرعون یو کس ته نه شو وئیلې بلکه دغه زمانه کښې د مصر هر بادشاه ته به فرعون وئیلې شو اوس دا معلومه نه ده چه دا د موسی علیه السلام د وخت فرعون دې او که د بل وخت فرعون دې، دا هم څه عجیبه خبره نه ده چه د موسی علیه السلام د وخت فرعون وی او الله تعالی د سخا کیدو او د روستیدو نه ساتلې وی څنګه ئې چه د راتلونکو نسلونو د عبرت د پاره د دریاب نه بهر د چپو په ذریعه راغورځولې وو.
په آخر د آیت کښې فرمائی، ډیر خلق زمونږ د آیتونو او نښانو نه بې پروا دی په دې کښې غور فکر نه کوی او عبرت نه حاصلوی، ورنه د جهان په ذره ذره کښې داسې نخښې موجود دی چه د هغې په لیدو سره الله تعالی او د هغه کامله پیژند ګلنه کیدې شی.
په دویم آیت کښې د فرعون د ناکاره انجام په مقابله کښې د هغې قوم مستقبل ښودلې شوې دې چه فرعون سپک کړې او ذلیل کړې وو، فرمائی؛ مونږه بنی اسرائیلو ته ښه ځاې د اوسیدو د پاره ورکړو چه د مصر ټول ملک په ګټو ورغلو، د اردن او فلسطین پاکه زمکه هم دوی ته په ګټو ورغله کومه چه الله تعالی د خپل خلیل حضرت ابراهیم علیه السلام او د هغوی اولاد د پاره میراث ګرځولې وو، ښه ټیکاڼې ته ئې په قرآن کریم کښې ﴿مُبَوَّاَصِدْقٍ﴾ وئیلې شوې دی، دلته د ﴿صِدْقٍ﴾ معنی صالح [جوګه] او مناسب ده، مطلب دا دې چه مونږ ورته داسې ټکانه ورکړه چه دوی د پاره په هر اعتبار سره جوګه او مناسبه وه، بیا فرمائی چه، مونږ ورته د حلالو او پاکو څیزونو نه روزی ورکړه چه د دنیا ټول خوندونه او راحتونه مو ورکړل.
په آخر د آیت کښې بیا د دوی د کړو تلو او وران کارې بیان دې چه په دې هم ډیرو خلقو د اقتدار موندونه پس د الله تعالی د نعمتونو قدر او نه کړو او د هغه د فرمانبردارې نه واوړیدل په تورات کښې کومې نخښې د رسول الله ﷺ به چه دغې خلقو لوستلې د هغې تقاضا دا وه چه د رسول الله ﷺ د تشریف راوړو نه پس د ټولو نه وړاندې هم دغې خلقو ایمان راوړې وو، خو عجیبه اتفاق داسې اوشو چه د رسول الله ﷺ د تشریف راوړلو نه مخکښې خو دې ټولو خلقو په نبی آخر الزمان ﷺ باندې عقیده لرله، خلقو ته به ئې د هم ښودل چه د رسول الله ﷺ د تشریف راوړلو وخت نژدې دې، د دوی نخښې به ئې خلقو ته ښودلې او هم د دوی ﷺ په وسیلې سره به ئې د خپلو ځانونو د پاره دعاګانې غوښتلې، خو هر کله چه نبی آخر الزمان سره د ټولو شهادتونو

او د تورات د ښودلو نخښنو سره تشریف راوړلو نو دې خلقو خپل منځ کښې اختلاف کول شروع کړل څه چه خلقو ایمان راوړو او نورو خلقو ترې انکار اوکړو، په دې آیت کښې د رسول الله ﷺ تشریف راوړل په لفظ د ﴿جَآءَهُمُ الْعِلْمُ﴾ سره ښودلې شوې دې، دلته د علم معنی یقین هم کیدې شی، په دې صورت کښې به د ټولې جملې معنی دا شی چه هر کله لیدلو کتلو سره د یقین اسباب جمع شو نو دې خلقو اختلاف کول شروع کړل.

او بعضې مفسرینو فرمائیلې دی چه دلته ﴿الْعِلْمُ﴾ په معنی د معلوم سره دې، مطلب به ئې دا وی چه کله هغه هستی مخې ته راغله چه د تورات د پیشنګویانو په ذریعه د ړومبې نه معلومه وه نو بیا ئې په اختلاف کولو ګوتې پورې کړې.

په آخر د آیت کښې فرمائی: الله تعالی به د قیامت په ورځ د دوی د اختلاف کولو فیصله اوکړی، د حق او باطل په منځ کښې به جدائی اوشی، اهل حق به جنت ته او اهل باطل به دوزخ ته اولیږلې شی.

په دریم آیت کښې په ښکاره خطاب رسول الله ﷺ ته دې خو دا هم ښکاره خبره ده چه په وحی کښې د رسول الله ﷺ د شک کولو هډو احتمال نشته، په دې وجه د دې خطاب په ذریعه امت ته اوړول مقصود دی، پخپله د رسول الله ﷺ ذات ترې مراد نه دې او دا هم کیدې شی چه دا خطاب عام انسان ته وی او مطلب ئې دا وی چه اې انسانه؛ که د الله تعالی په هغې وحی کښې ستا څه شک وی چه د محمد ﷺ په واسطه تا ته رالیږلې شوې ده نو ته هغې خلقو ته معلومه کړه چه ړومبی نه د الله تعالی کتاب تورات او انجیل لولی، هغوی به ئې درته اوښائی، چه پخوانو ټولو پیغمبرانو ﷺ او د هغوی ﷺ کتابونو د محمد ﷺ زیرې په مخه ورکړې دې او په هغې سره به ستاسو وسوسې لرې شی.

په تفسیر مظهری کښې راغلې دی چه چا ته په دین کښې څه شک راشی نو د دې آیت نه معلومیږی چه هغه دې خامخا د حقانی علماؤ نه تپوس اوکړی او خپلې شبهې دې ختمې کړی هم داسې دې د دې پالنه نه کوی.(۱)

په څلورم، پنځم او شپږم آیت کښې د دې مضمون تائید، تاکید او غفلت کوونکو ته خبردارې ورکول دی.

په اووم آیت کښې د بې پروائې عادت منکرانو ته په دې خبردارې ورکړې شوې دې چه د ژوند فرصت لره غنیمت اوګڼې د انکار او سرکشې نه اوس هم منع شې ورنه یو وخت داسې راتلونکې دې چه په هغې کښې به مو توبه نه قبلیږی، ایمان راوړل به مو نه قبلیږی چه هغه د مرګ یعنی د ساه د وتو وخت دې چه د آخرت عذاب مخې ته راشی، په دې باره کښې د حضرت یونس ﷺ او دهغوی د قوم یوه واقعه بیان شوې ده چه په کښې لوئې عبرتونه او نصیحتونه دی.

په دې آیت کښې فرمائی چه داسې ولې نه کیږی چه منکرو قومونو په داسې وخت کښې ایمان راوړې وې په کوم وخت کښې ئې چه ورته نفع ورکړې وی، یعنی د مرګ د وخت، یا د عذاب د واقع کیدود وخت، یا د هغه وخت نه پس چه عذاب کښې اخته شی یا د قیامت د قائمیدو وخت کله چه د توبې دروازه بنده شی او د چا توبه او ایمان به نه قبلیږی، د دې نه وړاندې وړاندې د

---

(۱) التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۴۳

Scanned with Ca

خپلې سرکشۍ نه اوړيدلي وي او ايمان ئې راوړې وي، سوا د حضرت يونس عليه السلام د قوم نه چه هغوی د داسې وخت د راتلو نه وړاندې سمدستی توبه کړه او ايمان ئې راوړو کله ئې چه د الله تعالی دعذاب د راتلو نخښې اوليدلې نو مونږه په دغې وجه رسواکونکې عذاب ترې بيرته کړو.
د دې تفسير حاصل دا دې چه د دنيا عذاب چه مخې ته راشې بيا هم د توبې دروازه نه بندېږی ترڅو چه بيخی په سر نه وی راغلې، البته د آخرت عذاب چه مخې ته راشی نو بيا هم توبه نه شی قبليدې، د آخرت عذاب يا خو به د قيامت په ورځ وی يا به د دنيا کښې د سا وتو په وخت وی، د سا وتل په خپل مرګ وی او که د دنيوی عذاب په راتلو سره وی لکه چه فرعون سره اوشو.
په دې بنا د يونس عليه السلام د قوم توبه قبليدل د عامې خدائی ضابطې نه څکه خلاف نه دی چه يو خو دغه عذاب ئې په سر نه وو راغلې او بله دا چه دا د سا وتو وخت هم نه وو په خلاف د فرعون او دنورو خلقو چه هغوی په عذاب کښې د مبتلا کيدو نه پس د ځنکدن په وخت کښې توبه اويسته او ايمان ئې قبول کړو د دې وجهې نه د هغوی دا ايمان معتبر نه شو او توبه ئې قبوله نه شوه.
د يونس عليه السلام د واقعې يو مثال په قرآن مجيد کښې موجود دې چه د بنی اسرائيلو هغه واقعه ده چه په هغې کښې د طور غر د هغوی د سرونو د پاسه زوړند کړې شو او د هغې په ذريعه اويرولې شو او د توبې کولو حکم ورته ورکړې شو هغوی توبه اويسته نو هغه توبه قبوله کړې شوه چه ذکر ئې په سورت بقره کښې داسې راغلې دې ﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ﴾ [مونږه ستاسو [بنی اسرائيلو] په سرونو باندې کوه طور زوړند او لړلو او حکم مو درکړو چه زمونږ درکړی حکمونه په مضبوطې سره اونيسې [عمل پرې اوکړې].
مطلب دا چه په بنی اسرائيلو باندې هم عذاب رانښکته شوې نه وو او د يونس عليه السلام په قوم هم عذاب په سر نه وو راغلې هر کله چه هغوی په زارې، منت او اخلاص سره توبه کړه څکه قبوله کړې شوه [تفصيل ئې راروان دې] په دې بنا دا توبه قبليدل د بيان شوې ضابطې خلاف نه دی [قرطبی] (۱)
دلته زمونږ دزمانې بعضې مفسرينو نه يوه سخته غلطی داسې شوې ده چه د حضرت يونس عليه السلام په باره کښې ئې فرمائيلې دی چه د هغوی نه د پيغمبرۍ په فريضې ادا کولو کښې کوتاهی شوې وه چه د هغې په وجه د قوم نه ئې عذاب واپس کړې شو او يونس عليه السلام ته هم زورنه ورکړې شوه څنګه چه سورت انبياء او سورت صٰفّٰت کښې ئې بيان راغلې دې، د تفسير الفاظ ئې دادی:
[د قرآن کريم د اشارو او د يونس عليه السلام د صحيفې په تفصيلاتو باندې د غور کولو نه دومره صفا معلوميږی چه د حضرت يونس عليه السلام نه د پيغمبرۍ په فريضې ادا کولو کښې څه کوتاهی شوې وه او غالبا يونس عليه السلام د بې صبرۍ له کبله د وخت نه وړاندې خپله تيکانه پريښې وه، په دې بنا د عذاب په نخښو نښانو ليدلو سره هر کله چه آشوريانو توبه او استغفار اوکړو نو الله تعالی هغوی معاف کړل، په قرآن کريم کښې د خدائی دستور د بيان شوو اصولو او کلياتو نه يوه مستقله دفعه دا هم ده چه الله تعالی په هيڅ يو قوم باندې تر هغې عذاب نه راولی ترڅو چه پرې خپل حجت پوره نه کړی، نو کله چه نبی د پيغمبرۍ په ادا کولو کښې کوتاهی اوکړه او د

---

(۱) تفسير القرطبی تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۳۸۴، ۳۸۵

الله تعالی د مقرر کړی وخت نه وړاندې ئې پخپله خپل ځای پرېښودو نو د الله تعالی انصاف دغې قوم ته عذاب ورکول مناسب او نه ګڼل] تفهیم القرآن، مولانا مودودی؛ صفحه ۳۱۲ جلد ۲] (۱)
دلته د کتلو اوله خبره داده چه د پیغمبرانو ﷺ د ګناه نه د پاک پاتې کیدو عقیده منلې شوې ده او په دې باندې د امت اجماع ده، د دې په تفصیلاتو کښې څه جزوی اختلافونه شته چه آیا دا عصمت [د ګناه نه پاک پاتې کیدل] د هر قسم [وړو، لویو] ګناهونو نه دې او که صرف د کبیره [لویو] ګناهونو نه دې، بل اختلاف دا دې چه آیا دا عصمت د پیغمبرې د زمانې نه وړاندې ته هم شاملیږی او که نه؟ خو په دې خبره کښې د هیڅ یوې فرقې د هیڅ یو کس نه خلاف کول ثابت نه دی چه ټول د ځیلمې پیغمبران ﷺ د پیغمبرې د فرض په ادا کولو کښې چرې هم کوتاهی نه شی کولې، ولې چه د پیغمبرې په منصب کښې د کوتاهې کولو نه زیاته بلکه لویه ګناه نه شی کیدې، ځکه پیغمبر خو لا څه کوې چه یو عام شریف انسان هم نه شی کولې، که د دې قسم د کوتاهې کولو نه هم پیغمبر معصوم او نه منلې شی بیا د نورو ګناهونو نه ئې د معصوم منلو هیڅ فائده نشته.
د قرآن او سنت د منلو شوو اصولو او اجماعی عقیدې [عصمت انبیاء] په خلاف په قرآن او سنت کښې هم چرته څه خبره ښکاره شوې وې نو ضروری وه چه د دغه منلو شوو اصولو د مخې د هغې په تفسیر او معنی کښې داسې څه توجیه کړې شوې وې چه د قرآن او حدیث دغه یقینی ثابت شوو اصولو سره څه ټکر او بې سمون نه وې پاتې شوې.
خو دلته عجیبه خبره دا ده چه مصنف موصوف کومه خبره د قرآنی اشارو او د یونس ﷺ د صحیفې په حواله پیش کړې ده که هغه د حضرت یونس ﷺ په صحیفه کښې وی نو وی دی په اسلام کښې هغې لره اعتبار نشته خو په داسې شان قرآنی اشاره خو یو هم نشته، بلکه یو څو مقدمې ئې پیوند کړې دی او دا نتیجه ترې په زبردستې راوښکلې شوې ده، اول خو دا فرض کړې شو چه د حضرت یونس ﷺ د قوم نه عذاب ایساریدل د خدائی دستور مطابق نه وو، حالانکه دا خبره پخپله د دې آیت د سیاق او سباق نه هم بیخی خلاف ده، دا شان د تفسیر په امامانو کښې چه کوم اهل تحقیق دی د هغوی د تصریحاتو نه هم خلاف ده، دې سره سره دا فرض کړې شو چه په دې موقع باندې خدائی قانون ځکه مات کړې شو چه پخپله د پیغمبر نه هم د پیغمبرې په فریضې ادا کولو کښې کوتاهې شوې وه، دې سره ئې دا هم فرض کړل چه د پیغمبر د وتو د پاره الله تعالی یو خاص وخت مقرر کړې وو او یونس ﷺ د دعوت فریضه پریښوده او د دغې وخت نه مخکښې اووتلو، که د غور او انصاف نه لږ هم کار واخستې شی نو ثابت به شی چه دې فرضی مقدماتو ته د قرآن او حدیث هیڅ اشاره نه شی موندلې،

(۱) د تفهیم القرآن نه پس په نورو ایډیشنونو کښې ددې عبارت نه دڅه رجوع د اعلان نه بغیر دلته په عبارت کښې معمولی تبدیلی کړې شوې ده یعنی د رسالت د فرائضو په ادائیګۍ کښې کوتاهی،، الفاظ په نوی عبارت کښې موجود نه دی لیکن داخبره اوس هم په عبارت کښې باقی ده چه: کله نبی ددې قوم د مهلت آخری لمحې پورې د نصیحت سلسله جاری اونه ساتله اود الله تعالی د مقرر وخت نه وړاندې ئې دخپله ځانه هجرت اوکړو نو د الله تعالی انصاف ددوی (ﷺ) قوم له عذاب ورکول اونه غوښتل ځکه چه په دې باندې د اتمام حجت قانونی شرطونه وو پوره شوی،، په دې وجه د تفهیم القرآن په عبارت کښې د بدلون باوجود د معارف القرآن تبصره په خپل حال برقراره ده. (ناشر اکتوبر ۱۹۹۱ء) ۱۲

پخپله د قرآن د آیتونو په سباق باندې که غور اوکړې د آیت الفاظ څه داسې دی ﴿ فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ آمَنَتْ فَنَفَعَهَا إِيمَانُهَا إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ ﴾ د دې مطلب صفا دا راوځي چه د دنیا عامو آبادیانو ته د افسوس ښکاره کولو په ډول دا ارشاد دې چه: دوی داسې ولې نه کیږی چه په داسې وخت کښې ایمان راوړی چه کله چه ایمان راوړل قبلیدونکي او سودمن وی، یعنې په عذاب کښې د مبتلا کیدو یا د سا د ختو نه وړاندې ئې ایمان راوړې وې نو ایمان به ئې قبول شوې وو، خو د یونس ﷺ قوم د دې نه مستثنی څکه دې چه په عذاب کښې د مبتلا کیدو نه وړاندې صرف د عذاب د نښانو په لیدلو ئې ایمان راوړو نو توبه او ایمان ئې قبول شو.

دا آیت دا ښکاره مطلب پخپله ښائی چه دلته هیڅ خدائی قانون مات نه شو بلکه خالص د خدائی قانون په جوړ د هغوی ایمان او توبه قبوله کړې شوې وه.

اکثرو مفسرینو، بحر محیط، قرطبی، زمخشری، مظهری، روح المعانی وغیره د آیت مفهوم هم دغه لیکلې دې چه په کښې د یونس ﷺ د قوم توبه قبلیدل د الله تعالی د عام قانون لاندې شوې دی چنانچه د قرطبی الفاظ دا دې:

وقال ابن جبير غشيهم العذاب كما يغشى القبر فلما صحت توبتهم رفع الله عنهم العذاب وقال الطبري خص قوم يونس من بين سائر الامم بأن تيب عليهم بعد معاينة العذاب وذكر ذالك عن جماعة من المفسرين وقال الزجاج انهم لم يقع بهم العذاب وانما راو العلامة التي تدل على العذاب ولو راوعين العذاب لم نفعهم ايمانهم، قلت قول الزجاج حسن فأن المعاينة التي لا تنفع التوبة معها هي التلبس بالعذاب كقصة فرعون ولهذا جاء بقصة قوم يونس على اثر قصة فرعون ويعضد هذا قوله ﷺ ان الله يقبل توبة العبد مالم يغرغر والغرغرة الحشرجة وذالك هو حال التلبس بالموت وقد روي معنى ما قلناه عن ابن مسعود رضي الله عنه [الى] وهذا يدل على ان توبتهم قبل رؤية العذاب [الى] وعلى هذا فلا اشكال ولا تعارض ولا خصوص.

ترجمه: ابن جبیر فرمائیلې دی چه دوی لره عذاب داسې پټ کړې وو څنګه چه کپړه قبر لره پټوی بیا هر کله چه د دوی توبه صحیح شوه [چه د عذاب د واقعې کیدو نه وړاندې وو] نو الله تعالی ترې عذاب پورته کړو، طبری رحمه الله فرمائیلې دی چه د یونس ﷺ قوم ته په نورو تولو قومونو کښې دا خصوصیت ورکړې شوې دې چه د عذاب معائنه کولو نه پس ئې توبه قبوله کړې شوه، زجاج رحمه الله فرمائیلې دی چه په دغې خلقو باندې لا عذاب نه وو راغلې بلکه د عذاب نخښې ئې لیدلې وې، که عذاب ئې په سر راغلې وې نو توبه به ئې نه وه قبوله شوې، قرطبی رحمه الله فرمائی چه د زجاج رحمه الله قول ښه غوره دې ولې چه د کوم عذاب د لیدو نه پس توبه نه قبلیږی دا هغه عذاب وی چه په کښې مبتلا شی څنګه چه د فرعون په واقعه کښې اوشو او هم دغه وجه ده چه په دې سورت کښې د یونس ﷺ د قوم واقعه د فرعون د واقعې نه پس سمدستې راوړې شوه ولې چه د فرعون ایمان راوړل هله وو چه عذاب ئې په سر راغلې وو او د یونس ﷺ قوم هله ایمان راوړو چه عذاب ئې په سر نه وو راغلې، د دې خبرې تائید د رسول الله ﷺ د دې ارشاد نه هم کیږی چه الله تعالی د یو بنده توبه تر هغې قبلوی چه د غرغرې حالت ته لا نه وی رسیدلې او غرغره د مرګ آخری سلګو ته وئیلې شی او هم دا خبره د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د روایت نه معلومیږی چه په کښې ښودلې شوې دی چه د یونس ﷺ قوم هغه وخت توبه کړې وه چه عذاب ئې په سر نه وو راغلې، قرطبی رحمه الله فرمائی چه په دې تقریر او تفسیر باندې نه خو څه اشکال شته، نه څه تعارض شته او نه د یونس ﷺ د قوم څه تخصیص شته.(۱)

---

۱) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۳۸۴، ۳۸۵

Scanned with Ca

او طبري رحمه الله وغیره کومو مفسرینو چه دي ته د یونس ؑ د قوم خصوصیت ښودلې دې، په هغوی کښې هیڅ هم داسې نه دي وئیلي چه د دې خصوصیت وجه د حضرت یونس ؑ کوتاهي وه، بلکه وئیلي ئې دي چه د دې وجه د دغې قوم په رښتوني توبه کول وو چه د الله تعالی په علم کښې مخلصان وو او دا قسم نور وجوهات ئې لیکلي دي.

او کله چه دا معلوم شو چه د یونس ؑ د قوم نه د عذاب په شا کیدل د قدرت د عام قانون نه بیخي خلاف نه وو، بلکه هم د هغې مطابق وو نو د دې کلام بنیاد بالکل ختم شو.

دغه شان د قرآن کریم هیڅ اشارې نه دا نه ثابتیږي چه د عذاب د وعید اورولو نه پس یونس ؑ بغیر د الله تعالی د اذن نه د خپل قوم نه بیل شوې وو، بلکه د آیتونو د روانې او تفسیري روایتونو نه هم دا معلومیږي چه څنګه د نورو تولو امتونو سره به معامله کیدل چې په هغوی باندې به د عذاب راتلو فیصله اوشوه نو الله تعالی به خپل رسول او د هغه ملګرو ته د دغه ځای نه د وتلو حکم ورکولو لکه څنګه چه د لوط ؑ په واقعه کښې قرآن کریم په ښکاره بیان کړې دی، دغه شان دلته هم هر کله چه الله تعالی د یونس ؑ په ذریعه خپل قوم ته دا حکم وراورسولو چه درې ورځې پس به پرې عذاب راځي نو ښکاره خبره ده چه یونس ؑ به دغه ځای نه د الله تعالی په حکم وتې وي.

البته یونس ؑ نه یو لغزش اوشو چه پیغمبرانه شان سره ئې سمون نه خوړو او په هغې باندې په سورت انبیاء او سورت صفت کښې د ملامتیا الفاظ راغلي دي او په نتیجه کښې د کب خیټې ته ورو ستې شو، دا د پیغمبرې په فریضه کښې کوتاهي کول نه وو بلکه واقعه دا وه چه پورته د مستندو تفسیرونو په حواله سره داسې لیکلي شوې ده چه هر کله یونس ؑ خپل قوم ته د الله تعالی د حکم مطابق درې ورځې پس د عذاب راتلو خبر واورولو او بیا د الله تعالی په حکم ئې خپل ځای پریښودو او بهر لاړو، بیا چه د عذاب نه راتلل ثابت شو نو یونس ؑ سره فکر شو چه که خپل قوم ته لاړ شم نو دروغژن به راته وائي او د دغې قوم د دستور مطابق دروغژن بنده به وژلې شو، د دې یرې واپس خپل قوم ته د تلو په ځای ئې وطن نه د هجرت کولو قصد ئې اوکړو، دا هغه لغزش وو چه د هجرت قصد ئې د الله تعالی د اجازت نه بغیر اوکړو، ولې چه د پیغمبرانو عليهم السلام طریقه دا وه چه د الله تعالی په اجازت به ئې هجرت کولو، د هجرت په غرض په کشتۍ کښې سور شو، دا اګر چه بذات خود څه ګناه نه وه، مګر د پیغمبرانو عليهم السلام د سنت نه خلاف وه، که د قرآن کریم په الفاظو کښې ژور نظر اوکړې شي نو د یونس ؑ لغزش د پیغمبرې په فریضه کښې کوتاهي کول نه وو، بلکه د قوم د زور او ظلم نه د ځان ساتلو په غرض د الله تعالی د اجازت نه بغیر هجرت کول وو، دې نه علاوه بل هیڅ لغزش نه شي ثابتیدې، چنانچه د سورت صفت آیت دا مضمون تقریباً ښکاره کړې دې فرمائي ﴿إِذْ أَبَقَ إِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ﴾([1]) دلته [ابق] دې، مطلب ښکاره کولو د پاره زورنې د پاره راوړلې شو چه بې اجازته د هجرت کولو په غرض کشتۍ کښې سور شو، ولې چه [ابق لفظ د مالک د اجازت نه بغیر د یو غلام د تښتیدو د پاره استعمالیږي، د سورت انبیاء په آیت کښې راغلې دي ﴿وَذَا النُّونِ إِذْ ذَهَبَ

[1]) ترجمه: کله چه اوتښتیدو او ډکې کشتۍ ته اورسیدو.

Scanned with Ca

﴿مُغَاضِبًا فَظَنَّ اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَيْهِ﴾ (۱) په دې کښې د زورنې په ډول د طبعی يرې له کبله د خپل ځان ساتلو په غرض هجرت کول ئې په داسې سخت عنوان سره بيان کړې دی خو دا ټول هر څه د هغې نه پس دی چه يونس ﷺ د خپلې پيغمبرۍ فريضې ښه په پوره شان ادا کړې دی، د خپل ځان د خطرې له کبله خپل قوم ته واپس ورنغلو، چنانچه تفسير روح المعانی دې مضمون لره په خپلو الفاظو کښې داسې بيان کړې دې؛ ای غضبان علی قومه لشدة شکيمتهم و تمادی اصرارهم مع طول دعوته اياهم وکان ذهابه هذا هجرة عنهم لکنه لم يؤمر به. (۲)

ترجمه؛ يعنی يونس ﷺ خپل قوم نه ناراضه شو او ځکه لاړو چه د قوم د سخت مخالفت او په کفر باندې د اصرار کولو باوجود ډيرې زمانې پورې د رسالت د دعوت د رسولو مشاهده ئې کړې وه، او د دوی ﷺ دا سفر د هجرت په ډول وو خو تر دغې وخته پورې ورته د هجرت اجازت نه وو ورکړې شوې.

دلته ښکاره دا اوڅيلې شو چه په بلنه او پيغمبرۍ کښې څه کوتاهی ترې کيدل د زورنې ورکولو سبب نه وو بلکه د زورنې سبب د اجازت نه بغير هجرت کول وو چه خپل په ذات کښې څه گناه نه وه خو د سنت د انبياؤ نه خلاف وو ځکه پرې زورنه ورکړې شوه، کله چه زمونږ د زمانې دغه مفسر موصوف بعضې علماؤ په دې غلطۍ باندې خبر کړو نو د سورت صٰفٰت په تفسير کښې هغه د خپل موقف په مرسته او تائيد کښې د ډيرو نورو مفسرينو قولونه هم نقل کړې دی، چه د اسرائيلی روايتونو نه بغير په بل هيڅ روايت سره د ده موقف صحيح نه شی ثابتيدې لکه وهب بن منبه وغيره چه نقل کړې دې، چه معاذالله د حضرت يونس ﷺ نه د پيغمبرۍ په فريضو ادا کولو کښې کوتاهې شوې وې.

دا خبره د اهل علم نه پټه نه ده چه په عام ډول مفسرين حضرات په خپلو تفسيرونو کښې اسرائيلی روايتونه هم نقل کوی چه د دې رواياتو په باره کښې د ټولو په دې اتفاق دې چه دا روايتونه مستند او معتبر نه دی او د يو شرعی حکم دار و مدار په دې نه شی کولې، اسرائيلی روايتونه که د اسلامی مفسرينو په کتابونو کښې دی او که د يونس ﷺ په صحيفه کښې دی صرف د هغې په بنا په حضرت يونس ﷺ باندې دا لوئې بهتان [تور] پورې کولې شی چه دوی نه د پيغمبرۍ په ادا کولو کښې کوتاهې شوې دی او هيڅ يو اسلامی مفسر دا نه قبلوی.

والله سبحانه وتعالی اعلم وبه استغيث ان يعصمنا من الخطايا والزلات،

**د حضرت يونس ﷺ تفصيلی واقعه:** د حضرت يونس ﷺ واقعه په دې شان بيانوو چه څه برخه ئې په قرآن کښې بيان شوې ده او څه د حديث او تاريخ د روايتونو نه ثابته ده، واقعه داسې ده چه د حضرت يونس ﷺ قوم د عراق د يو مشهور مقام موصل په نينوا آبادې کښې اوسيدو، قرآن کريم د دوی شمير د يو لاک نه زيات ښودلې دې، د دوی هدايت د پاره الله تعالی يونس ﷺ اوليږلو، قوم ئې د ايمان راوړلو نه انکار اوکړو، الله تعالی يونس ﷺ ته حکم اوکړو چه قوم دې په دې خبر کړې شی چه په درې ورځو کښې دننه په دوی باندې عذاب راتلونکې دې، حضرت

---

(۱) ترجمه: او د مچھلی والا تذکره اوکړی کله چه هغه خفا شوه او لاړو، نو هغه دا سوچ اوکړو چه زمونږ به په ده باندے هيڅ گرفت نه کوو.

(۲) روح المعانی تحت سورة الانبياء آية ۸۷، ج ۱۲، ص ۲۵۱

يونس ﷺ د دې اعلان اوکړو، د دوی ﷺ قوم په خپل منځ کښې صلاح مشوره اوکړه نو د ټولو په دې باندې اتفاق راغې چه دوی کله هم دروغ نه دی وئيلې، ځکه ئې خبره غورخول پکار نه دی، مشوره ئې داسې اوکړه چه که يونس ﷺ په دغه شپه هم دلته پاتې شو نو پوهه شې چه هيڅ عذاب راتلونکې نه دې او که دې ځاې نه اووتلو نو پوهه شې چه صبا له به په مونږه عذاب راځى، يونس ﷺ په دغه شپه د الله تعالى په حکم د دغه آبادۍ نه اووتل، چه صبا شو نو الله تعالى عذاب د يو تور لوګى او وريځ په شکل کښې د دوی د سرونو د پاسه راښکاره شو او رو رو به ورته رانزدې کيدو، د دوی يقين اوشو چه مونږه ټول هلاکيدونکى يو، دغه وخت ئې حضرت يونس ﷺ په دې غرض اولټولو چه د هغوی په لاس توبه اوباسى او ايمان راوړى چه او ئې نه موندو نو پخپله په توبه او استغفار کولو کښې لګيا شو، د آبادۍ نه يو ميدان ته راووتل، ښځې، ماشومان او څاروى ټول ئې ميدان کښې راجمع کړل، د ټاټ جامې ئې واغوستې، په زارۍ او عاجزۍ سره په دغې ميدان کښې په توبې اوښکلو او عذاب نه په پناه غوښتلو کښې داسې مشغوله شو چه ټول ميدان د ژړا فرياد نه په کړنګار شو، الله تعالى د هغوی توبه قبوله کړه او عذاب ئې ترې واپس کړو ځنګه چه په دې آيت کښې راغلې دی، په روايتونو کښې راغلې دی چه دا د عاشورې يعنى د محرم د مياشتې لسمه ورځ وه.[۱]

بل خوا حضرت يونس ﷺ د دغه کلی نه بهر په دې انتظار کښې وو چه اوس به په دغې قوم باندې عذاب نازليږى، د هغوی د توبې او استغفار کولو حال ورته معلوم نه وو چه عذاب ترې واپس شو نو يونس ﷺ فکر مند شو چه ما به دروغژن ځکه بلى چه ورته مې وئيلې وو چه درې ورځو کښې به درباندې عذاب راځى، د دغې قوم قانون دا وو چه څوک به دروغژن ثابت شو او په خپل کلام به ئې څه ګواهى پيش نه کړه نو هغه به وژلې شو په دې بنا يونس ﷺ هم ويريدو چه خپل قوم به مې او وژنى.

پيغمبران ﷺ د هرې ګناه نه پاک وى خو فطرت او طبيعت ئې انسانى وى په دې بنا هغه په دې خفه کيدو چه د خداې په حکم مې په درې ورځو کښې د عذاب راتلو اعلان اوکړو چه هغسې او نه شو نو خلق به راته دروغژن وائى، هغوی سره به مخ ځنګه لګوم؟ زياتى لا دا چه د قوم په قانون کښې د وژلو جوګه شم، د دغې غم او خفګان په حالت کښې د دغې ښار نه د بهر وتو په اراده روان شو چه د بحر روم غاړې ته اورسيدو هلته په کشتۍ کښې خلق سوريدل دغې خلقو يونس ﷺ اوپيژندلو او بې کرائې ئې په کشتۍ کښې سور کړو، کشتۍ چه منځ درياب ته اورسيده نو ناڅاپه په ټپه اودريده، نه وړاندې تله او نه روستو، کشتۍ والو اعلان اوکړو چه د الله تعالى د جانب نه د دې کشتۍ شان دا دی چه کله په دې کښې څوک ظالم ګناهګار يا راتښتيدلې غلام سور شى نو دا کشتۍ پخپله ايساره شى اوس دې داسې بنده پخپله خپل ځان اوښائى چه د يو د وجهې نه په ټولو څه مصيبت را نه شى.

حضرت يونس ﷺ اووئيل چه داسې راتښتيدلې ګناهګار غلام څه يم ځکه چه د خپل ښار نه د طبعى يرې له کبله راوتې يم په کشتۍ کښې سور شوې يم چه د الله تعالى حکم راته نه دې

[۱] المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ۸۵۷۵

شوي، داسې كار كول ئې د پيغمبرۍ د شان سره مناسب او نه گڼړلو او دې ته ئې گناه اووئيله خكه ئې اوفرمائيل چه هم ما په درياب كښې واچوئ نو تاسو ټول به د عذاب نه خلاص شئ، كشتي والا دې ته تيار نه شو بلكه هغوى په خسړۍ اچولو باندې د دې فيصله كول اوغوښتل، بيا بيا ئې خسړۍ اچولو خو هر ځل د الله تعالى په حكم هم د حضرت يونس ﷺ په نوم به خسړۍ راوتو، په قرآن كريم كښې د دې خسړۍ اچولو او په دې كښې د حضرت يونس ﷺ د نوم راختو بيان داسې راغلې دې ﴿فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِينَ ﴾(١)

حضرت يونس ﷺ سره داسې معامله كيدل د مخصوص پيغمبرانه شان مطابق وو، يونس ﷺ پيغمبر وو، د گناه او نافرمانۍ كولو نه پاک وو هيڅ گناه او نافرمانى ترې نه وه شوې، ولې چه هر پيغمبر د گناه او نافرمانۍ نه پاک وى، داسې معامله ورسره كول او زورنه ورته وركول په دې وجه وو چه خالص د طبعي يرې له كبله د خپل ښار نه بل خوا هجرت كول ئې د الله تعالى په اجازت سره نه وو او هم په دې وجه ورته زورنه وركړې شوه.

يو خوا خسړۍ اچولې شو او بل خوا الله تعالى يو غټ كب د كشتۍ په خوا كښې وازه خله په دې انتظار كښې تيار اودرولې وو چه يونس ﷺ درياب ته په راغورځيدو سره خپله خيټه كښې واخله، يونس ﷺ به ستا خوراک نه وى بلكه ستا خيټه به د هغه د پاره يو ټيكانه وى هم دغه شان اوشو، درياب ته په غورځولو سره يونس ﷺ له سمدستى په خله كښې واغستو او تير ئې كړو.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائيلې دى چه حضرت يونس ﷺ د دغه كب په خيټه كښې څلويښت ورځې پاتې شوې وو، د درياب تل ته به ئې په خپله خيټه كښې ځان سره گرځولو او تر لرې لرې پورې به ئې دغه شان خپله خيټه كښې گرځولو. بعضې حضراتو اووه ورځې او بعضې حضراتو پنځه ورځې او بعضې حضراتو د يوې ورځې يو څو گينټې د كب په خيټه كښې د پاتې كيدو موده ئې ښودلې ده[مظهرى] (٢)

حقيقت د حال يواځې الله تعالى ته معلوم دې، په هر حال حضرت يونس ﷺ د كب په خيټه كښې داسې دعا اوكړه: ﴿لَا إِلَهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾(٣) الله تعالى ئې دا دعا قبوله كړه او هغه كب حضرت يونس ﷺ له صحيح، سالم د درياب په غاړه اوغورځولو.

د كب د خيټې د گرمۍ له كبله د حضرت يونس ﷺ په بدن باندې ويښته نه وو پاتې شوې، الله تعالى د هغوى خوا كښې د كدو يو بوټې راوتو كولو، د هغې د پاڼو سورى سره به يونس ﷺ ته آرام وو، يو ځنگلى چيلۍ ته الله تعالى په زړه كښې واچولو چه صبا، بيگاه به د هغوى خوا ته راتله او هغوى به ئې پئې څكل. په دې شان حضرت يونس ﷺ ته په خپل لغزش باندې خبردارې هم وركړې شو او بيا ئې قوم ته هم پوره حال معلوم شو.

---

١) ترجمه: نو يونس هم په قرعه كے ځان شامل كړو او هغه ملزم ثابت شو.
٢) التفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٥٨
٣) ترجمه: ستاسو نه سوا هيڅ څوک هم معبود نشته. تاسو پاک يئ او بے شک ځه قصور نه وک يم.

Scanned with CamScanner

د دې قیصې څومره برخې چه د قرآن کریم او د حدیث شریف د مستند و روایتونو نه ثابت دي هغه خو یقیني دي، پاتې نورې برخې چه تاریخي روایتونو کښې بیان شوې دي په هغې باندې شرعي مسئلې نه شي ادانړه کولی۔

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَوْشَآءَ | رَبُّكَ | لَاٰمَنَ | مَنْ | فِي الْاَرْضِ | كُلُّهُمْ |
| اوکه چرې غوښتلي | رب ستا | نوخامخابه ایمان راوړې ووځ | هغه چا | چې په زمکه کښې دي | ټولو |
| اوکه ستا د پروردګار مرضی وې \| نو دزمکې په مخ ټولو خلقو به ایمان راوړئی وې \| | | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَمِيْعًا | اَفَاَنْتَ | تُكْرِهُ | النَّاسَ | حَتّٰى | يَكُوْنُوْا | مُؤْمِنِيْنَ۝ | وَمَا كَانَ | لِنَفْسٍ |
| په جمع | آیانوته به | مجبوره کړې | خلق | تردې چې | شي ټول خلق | مومنان | اونشته هیڅ اختیار | یونفس لره |
| آیا ته په خلقو زور کوې اچې هغوئ دې خواه مخواه ایمان راوړي \|او هیڅوک دانشي کولی چې ......... | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ تُؤْمِنَ | اِلَّا | بِاِذْنِ اللّٰهِ | وَيَجْعَلُ | الرِّجْسَ | عَلَى الَّذِيْنَ | لَا يَعْقِلُوْنَ۝ |
| چې ایمان راوړي | مګر | په اجازت دالله سره | اواچوي | پلیتي | په هغه کسانو | چې دعقل نه کارنه اخلي |
| ایمان راوړي \|مګر دالله ﷻ په اذن سره \|او الله پلیتي په هغه چا ورغورځوي اچې دعقل نه کار نه اخلي | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوکه الله غوښتي نو په مخ د زمکه چه څومره خلق دي هغوی ټولو به ایمان راوړې وو آیا ته په خلقو باندې زور کوې دې دپاره چه دوی ټول ایمان راوړي؟ او هیڅ یو کس دپاره دا ممکنه نه ده چه هغه د الله د اجازت نه بغیر مؤمن جوړ شي او کوم خلق چه د عقل نه کار نه اخلي الله تعالی په هغوی ګندګي مسلط کوي.

## خلاصه تفسیر:

﴿ وَلَوْشَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ مَنْ فِي الْاَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا ۭ اَفَاَنْتَ تُكْرِهُ النَّاسَ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ۝ ﴾ او [ددی قومونو او کلو دخلکو څه تخصیص دی ] که ستارب غوښتلی نو دټولی دنیا خلکو به جمع ایمان راوړی وو [مګر دبعضی حکمتونو به وجه سره دانه غواړی پدی وجه ټول ایمان نه راوړی.

﴿ وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تُؤْمِنَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ۝ ﴾ پس [هر کله چه خبره داسی ده نو ایا ته په خلکو زور کولی ی شی چه ټول ایمان راوړی حال دا دی چه دچا ایمان راوړل بغیر دخدای دحکم [مشیت] نه ممکن نده او الله تعالی په بی عقله خلکو د کفر ګندګی واقع کوی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلِ | انْظُرُوْا | مَاذَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَمَا تُغْنِي | الْاٰيٰتُ |
| ورته اووایه | چې اوګورئ | هغه څه ته | چې په آسمانونوکښې دي | اوپه زمکه کښې دي | اونه ورکوي فائده | نښې |
| دوئ ته اووایه چې لږ اوګورئی په اسمانونو اوپه زمکه کښې څه څه څیزونه [1] موجود دي \|او\| ددنیا\| ټولي | | | | | | |

[1] **د آسمان په ننداره کښې د قدرت نښې**:- الله تعالی د خپلو بندګانو رهنمائی فرمائی چه ټول کائناتو کښې زمونږ کومې نښې دي لکه آسمان، ستوري، سیارې، نمرسپوږمۍ، شپه ورځ خواره شوی دي. په دې باندې د بصیرت نظر اچولو سره چه شپه په ورځ کښې اوورځ په شپه کښې څنګه داخلیږي. کله ورځ لویه او کله شپه لویه. دآسمان اوچتوالي او خوروالي، په ستورو ... [بقیه په راروانه صفحه

وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠١﴾ فَهَلْ يَنتَظِرُونَ إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ

او یرول | هغه قوم له | چی نه راوړی ایمان | نو انتظار نه کوی دوی | مګر | دمثال دبدو ورخو

نښې هغې خلقو ته هیڅ فائده نه ورکوی | څوک چې ایمان راوړل نه غواړی | آیا اوس دوی دهغه شان

الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِهِمْ ۚ قُلْ فَانتَظِرُوا إِنِّي

هغو | چې تیرې شوی دی | مخکښې ددوی نه | ورته اووایه | نو انتظار کوئ تاسو | بیشکه زه هم

ورخو انتظار کوی | چې په پخوانو خلقو باندې راغلې وې | ورته اووایه چې ښه ده تاسو انتظار کونئ

مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِينَ ﴿١٠٢﴾ ثُمَّ نُنَجِّي رُسُلَنَا وَالَّذِينَ

ستاسو سره | دانتظار کونکونه یم | بیا | بچ کوو مونږ | رسولان خپل | او هغه کسان |

اوزه هم تاسو سره انتظار کوم | نو بیا به [ دعذاب په وخت کښې ] مونږ خپل پیغمبران او

آمَنُوا ۚ كَذَٰلِكَ حَقًّا عَلَيْنَا نُنجِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٣﴾

چې ایمان ئې راوړې وی | زمونږ دا طریقه ده | حق دی | په مونږ باند | چې بچ کوو مونږ | مومنان

[نور] مومنان بچ کړو | هم دا زمونږ ذمه واری ده | چې مومنان بچ کوؤ

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) دوی ته ووایه چه لږ وګورئ چه په آسمانونو او زمکو کښې څه څه څیزونه دي؟ لیکن کوم خلق چه ایمان نه راوړي، هغوی دپاره (زمکه او آسمانونو کښې خوري) نښې او خبرونکي (پیغمبران) څه فائده نه ورکوي. ووایه چه دا خلق (د ایمان راوړو دپاره) دي نه سوا د کومې خبرې انتظار کوي چه هغه شان ورځې دوی هم وګوري لکه چه دوی نه مخکښې خلقو لیدلې وې؟ ته ووایه چه: تاسو انتظار کوئ څه

---

...بقیه دتیرمخ]... سره دَ هغې ښائست اودَ آسمان نه اوبه راورول، دَ زمکې دَ اوچیدو نه پس بیا ژوندی کیدل او آبادیدل، په ونو (درختو) کښې ګلونه او میوې او غوټئی پیدا کیدل، مختلف بوټی راتوکیدل، دَ مختلف قسمونوځناور، دَ هغوی جدا جدا شکلونه اودَ هغې بیل بیل افادیتونه، غرونه کولاؤ میدانونه،ځنګل، باغ، آبادئی، بیابانونه، دَ سمندر دَ بیخ عجائبات، موجونه، اودَدې ښکته کیدل او اوچتیدل، سره دَ دې دَ سفرکونکودپاره دَ سمندرمسخر کیدل، دَ جهازونو چلیدل، دا ټول دَقادرمطلق نښې دی. دَ کوم نه علاوه چه بل الله هډو شته نه. خو افسوس چه دا ټولې نښې دَ کافرانو دَ غور او فکر هیڅ سبب هم نه جوړیږی. دَ الله تعالی دلیل ثابت شوې دې.که ایمان نه راوړی نونه دې راوړی اودا خلق خو هم دغه دَ عذاب دَ ورځو انتظار کوی کوموسره چه وړاندینی قومونه مخ شوې وو. اې نبی ﷺ! اووایه چه دَ وخت انتظار کونې اوزه هم تاسو سره انتظارکوم. اوچه کله دَ انتظار په ختمیدوباندې عذاب راشی نو بیا به مونږ خپل رسولان اودَ هغوی امتونه بچ کړو اودَ پیغمبرانو تکذیب کونکی به هلاك کړو. الله تعالی په خپله ذمه واخسته چه مؤمنین به بچ کړو لکه څنګه چه ئې رحمت په نیکوکارانوباندې په خپله ذمه اخستې دې. په بخاری او مسلم شریف کښې دی چه حضور ﷺ فرمائیلی دی دَ الله تعالی کتاب کوم چه په لوح محفوظ چه په عرش باندې دې په هغې کښې لیکلې دې چه زما رحمت زما په غضب باندې غالب دې.(صحیح بخاری:۷٤٠٤،صحیح مسلم:۲۷۵۱)

هم تاسو سره انتظار کونکي يم بیا (چه کله عذاب راشي نو) مونږ خپلو پیغمبرانو لره او هغه کسانو لره چه ایمان راوړي ، هغوی ته خلاصون ورکوو دغه شان مونږ دا خبره په خپله ذمه لازمي ده چه مونږ ټولو (نورو) مؤمنانو ته هم خلاصون ورکړو.

## خلاصه تفسیر

﴿ قُلِ انْظُرُوْا مَاذَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَمَا تُغْنِي الْاٰيٰتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ۝ ﴾ ته ووایه چه تاسوغوروکړئ [وګورئ] چه څه څیزونه دی په اسمانونوکښی اوپه ځمکه کښی [په اسمانونو کښی ستوری وغیره اوپه ځمکه کښی بی انتها مخلوق په نظرراځی یعنی په دی کښی غور کولو سره دتوحیدعقلی دلیل حاصلیږی‌دابیان شوددوی دمکلف کیدو]اوکوم خلك چه [عناد نه] ایمان نه راوړی دوی ته دلیلونه اوویرول هیڅ فائده نه رسوی [داددوی دعنادبیان وشو].

﴿ فَهَلْ يَنْتَظِرُوْنَ اِلَّا مِثْلَ اَيَّامِ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ قُلْ فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّىْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ۝ ﴾ پس [ددی بیان نه داسی معلومیږی چه]دغه خلك [ددوی دحال دلالت دادی چه ]صرف دهغه خلکو د واقعاتو په شان انتظارکوی چه مخکی تری تیرشوی دی [یعنی سره ددلیلونواوعذاب نه ویرولو کوم چه ایمان نه راوړی نوددوی حالت دهغه سړی په شان دی کوم چه دداسی عذاب منتظر وی چه په وړاندی قومونوراغلی ؤ پس[نه وفرمایه چه ښه ده نوتاسو[ددی ]په انتظارکښی اوسئ زه هم ستاسوسره [ددی ]په انتظارکوونکوکښی یم.

﴿ ثُمَّ نُنَجِّيْ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كَذٰلِكَ ۚ حَقًّا عَلَيْنَا نُنْجِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ ﴾ [ دکومو مخکی قومونوچه ذکر ئی وشومونږخوپه دوی عذاب واقع کولو]بیامونږ[ددی عذاب نه ]خپلوپیغمبرانواو ایماندارولره بچ کول [دادوعدی مطابق ]زمونږذمه ده[نودغسی که پدی کفاروځه افت پریوځی نومسلمانان به تری محفوظ وی خواه په دنیاکښی وی اوکه په اخرت کښی وی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | يٰٓاَيُّهَا | النَّاسُ | اِنْ كُنْتُمْ | فِيْ شَكٍّ | مِّنْ دِيْنِيْ | فَلَآ اَعْبُدُ |
| اووایه اے نبی | اے خلقو | | که یئ تاسو | په شك کښی | په باره ددین زماکښی | نونه کوم زه بندګی |

ائي پیغمبره اووایه چي ائي خلقو که ستاسو [ اوس هم] څما ددین باره کښي څه شک کښي يي انو زه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | تَعْبُدُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ | اَعْبُدُ اللّٰهَ | الَّذِيْ | يَتَوَفّٰىكُمْ ښ |
| دهغو | اچی تاسوئی بندګی کوئ | ماسوادالله نه ا بلکه | زه بندګی کوم دالله | هغه | اچی وفات کوی تاسو |

دهغي معبودانو عبادت نه کوم اچي تاسو ئي دالله ❀ نه بغير عبادت کوئی ابلکه زه خو دهغي الله ❀

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاُمِرْتُ | اَنْ اَكُوْنَ | مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ | وَاَنْ | اَقِمْ | وَجْهَكَ | لِلدِّيْنِ |
| اوحکم شوي دي ماته | اچی شم زه | دمومنانونه | او چی | اودروه | امخ خپل | دپاره ددین |

عبادت کوم اچي ستاسو ژوند اومرګ دهغه په قبضه کښي دي ااوماته حکم دي چي په مومنانو کښي دي شامل

Scanned with Ca

حَنِيفًا ۚ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ۝ وَلَا تَدْعُ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا

يو مخيزي | اوهرگز مه کيږه ته | دمشرکانو نه | او مه رابله | ماسوا دالله نه | هغه

يم | او ماته داحکم دی چی خپل خان دين طرفته يو مخيز کړم اوپه مشرکانو کښې نه ورګډيږم | او دالله

لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ۚ فَإِنْ فَعَلْتَ فَإِنَّكَ

چی نه شی دررسولي فائده تاته | اونه ضرر تاته | نو که چرې | اوکړو تا داکار | نو بیشکه ته به ئې

نه بغير د چا نه دعا مه غواړه | چې نفع نشی ورکولي | او نه ضرر ورکولي شی | که داسې دې اوکړل

إِذًا مِنَ الظَّالِمِينَ ۝ وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ

په هغه وخت کښې | دظالمانو نه | اوکه اورسوی تاته | الله | يوضرر | نونشته لرې کونکې

نو په ظالمانو کښې به شمير شې | اوکه الله درته تکليف اورسوی | نو دهغه نه بغيربل څوک ئې نشی لرې کولې

لَهُ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِنْ يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ ۚ

هغه لره | مګر | هم هغه | اوکه اراده اوکړه تاته | دخير | نو نشته څوک واپس کونکې | فضل دهغه لره

اوکه هغه درته خير رسول اوغواړی | نو دهغه فضل هيڅوک رد کولي نشی | د هغه چې په کومو

يُصِيبُ بِهِ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ الْغَفُورُ

رسوی هغه | داخير | هغه چاته چې خوښه ئې شی | دبندګانو خپلو نه | اوهغه | ښښونکې دې

باندې مرضی اوشی | نو فضل پرې کوی | اوهغه بخښونکې رحم کوونکې دې

الرَّحِيمُ ۝

رحم کونکې دې |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره !) دوی ته ووایه چه: اې خلقو! که تاسو ځما د دین په باره کښې څه شک کښې مبتلا یئ نو (واورئ) چه تاسو دالله نه سوا دچا عبادت کوئ زه د هغوی عبادت نه کوم بلکه زه د هغه الله عبادت کوم چه ستاسو روح اخلي، او ماته حکم شوې دې چه زه د مؤمنانو نه شم. او (ماته) دا (وئیلې شوی دی) چه: خپل مخ په یکسوئۍ سره هغه دین طرف ته اودروه، او چرې هم دهغه خلقو نه مه کیږه چه د الله سره شریک منی. او دالله نه سوا داسې (د دروغو معبودان) مه رابله چه نه تا ته څه فائده رسولې شي او نه څه نقصان او که تا (فرض محال) داسې وکړل نو ته به د ظالمانو نه شې. او که تا ته الله څه تکلیف ورسوې نو دهغه نه سوا داسې څوک نشته چه هغه لرې کړي. او که هغه تا ته څه فائده رسول وغواړي نو داسې څوک نشته چه هغه واپس کړي هغه خپل فضل خپلو بندګانو کښې چه چا ته وغواړي نو رسوي او هغه بخونکې، ډیر مهربان دې.

**خلاصه تفسیر:**

﴿ قُلْ يَأَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي شَكٍّ مِّن دِينِي فَلَآ أَعْبُدُ الَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ وَلَٰكِنْ أَعْبُدُ اللَّهَ الَّذِي يَتَوَفَّىٰكُمْ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ ته [دوی ته ]ووایه چه ای خلکوکه تاسوزمااددین دطرفه په شك [اوتردد]کښی ئی نو[زه تا سوته ددی حقیقت ښائم هغه داچه]زه دهغومعبودانوعبادت نه کوم دکوموچه تاسو دالله نه سواعبادت کوئ لیکن هو دهغه معبود عبادت کوم چه ستاسوروح قبضوی اوماته[دالله دجانب نه ]داحکم شوی دی چه زه[ په داسی معبودباندی ]د ایمان راوړونکونه یم.

﴿وَأَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ او[ماته ]دا[حکم شوی دی ]چه خپل خان ددی دین [خالص توحیدچه ذکرشو]طرف ته داسی متوجه کړه چه دنوروتولوطریقونه یوطرف ته شی اوچه چرته دمشرکانونه نه شی.

﴿وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ۖ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ الظَّالِمِينَ﴾ او[داحکم راته شویدی چه] دالله تعالی [دتوحید]نه سواددداسی شی عبادت مکوه چه تاته نه [په حالت دعبادت کولوکښی ]څه نفع رسولی شی اونه [دعبادت دنه کولوپه حالت کښی ]څه ضرر رسولې شی بیا که چیری [بالفرض ]داسی دی وکړو[یعنی دغیرالله عبادت دی وکړو]نوپدی حالت کښی به دالله دحق دضائع کونکونه شی.

﴿وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ﴾ او[ماته داسی ویلی شوی دی چه]که چیری تاته الله څه تکلیف رسوی نوبغیردالله نه بل څوك دهغی لری کوونکی نشته اوکه هغه څه راحت رسول وغواړی نودهغه دفضل څوك لری کوونکی نیشته.

﴿ يُصِيبُ بِهِ مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ﴾[بلکه]دی خپل فضل دخپلوبندگانونه چه په چاوغواړی کوی اوهغه لوی مغفرت لوی رحمت والادی [اودفضل تول افرادپه مغفرت اورحمت کښی داخل دی اوهغه په لوی مغفرت اورحمت سره موصوف دی پس خامخادفضل خاوندهم دی].

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلْ | يَأَيُّهَا النَّاسُ | قَدْ جَاءَكُمُ | الْحَقُّ | مِن رَّبِّكُمْ |
| ورته اووایه | ای خلقو | په تحقیق سره راغلي دي تاسوته | حق | دطرفه درب ستاسونه |
| اووایه \| انې خلقو تاسوته د خپل پروردگار نه حق رارسیدلي دي | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَمَنِ | اهْتَدَىٰ | فَإِنَّمَا | يَهْتَدِي | لِنَفْسِهِ | وَمَن |
| نوهغه څوك | چي نیغه لاره ئې اونیوه | نوبیشکه | هغه نیغه لاره نیسی | دپاره دخان خپل | اوهغه څوك |
| نو څوك چي په سمه لار روان شو \| نو هغه دخپلې فائدې دپاره روان شو \| او څوك چي | | | | | |

| |
|---|
| ضَلَّ　فَإِنَّمَا　يَضِلُّ　عَلَيْهَا ۚ　وَمَآ أَنَا　عَلَيْكُم |
| چې گمراهه پاتې شو \| نو بیشکه \| هغه گمراهه کیږي \| په خان خپل \| اونۀ یم زۀ \| په تاسو باندې \| |
| گمراه شو \| نو وبال ئې په خپل ځان شو \| اوزه ستاسو څه ذمه وار نه یم \| او په هغې وحی |
| بِوَكِيلٍ ۞　وَاتَّبِعْ　مَا　يُوحَىٰ　إِلَيْكَ　وَاصْبِرْ　حَتَّىٰ |
| ساتونکې \| اوپیروی کوه ته \| دهغې هدایت \| چې درلیږلې کیږي \| تاته \| اوصبر کوه \| ترهغې پورې |
| عمل کوه \| کومه چې تاته راځي \| او صبر کوه \| تر دې چې الله ﷻ فیصله اوکړي \| اوهغه ډیر ښه |
| يَحْكُمَ　اللَّهُ ۚ　وَهُوَ　خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ۞ |
| چې فیصله اوکړي \| الله \| اوهغه \| بهتره فیصله کونکې دې \| |
| فیصله کوونکۍ دې |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) ته ووایه چه: خلقوا ستاسو د پروردګار د طرف نه تاسو ته حق راغلې دې، اوس چه څوک د هدایت لار اختیاروي نو د خپل ځان د فائدې دپاره به ئې اختیاروي، او څوک چه د ګمراهۍ لار اختیاروي، نو د هغه د ګمراهۍ نقصان به هغه ته وي، او زه ستاسو د کارونو ذمه دار نه یم او کومه وحې چه تا ته راځي د هغې تابعداري وکړه، او د صبر نه کار اخله تر دې چه الله څه فیصله وکړي او هغه بهترینه فیصله کونکې دې.

## خلاصه تفسیر:

﴿ قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمُ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَمَنِ اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۖ وَمَا أَنَا عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ۞﴾ ته داهم ووایه چه ای خلکوتاسوته حق [دین]ستاسودرب دطرف نه [په لیدوسره]رارسیدلی دی پس[ددی حق دین درسیدونه پس]چه کوم سړی په سمه لاره راشی پس هغه به دخپل خان[دنفع]لپاره په نیغه لاره راشی اوکوم سړی چه[ اوس هم ]بې لاری پاتی شی نودده بې لاری کیدل [یعنی ددی وبال به هم ]په ده پریوځی اوزه په تاسو[څه دذمه واری په طور ]مسلط شوی نه یم [چه ګوندی ستاسی دبې لاری کیدوتپوس به ځمانه کیږی نوځماڅه نقصان دی].

﴿ وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ وَاصْبِرْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ۞﴾ اوته دهغی تابعداری کوه کوم چه تاته دوحی په ذریعه رالیږلی شی [په دی کښی تبلیغ هم راغئ ]او[ددوی په کفر اوازار رسولو] صبر کوه تردی چه الله ددوی فیصله وکړی [خوادنیاکښی په هلاکت سره وی یاآخرت کښی په عذاب سره مطلب دا چه ته خپل منصبی کارکښی لګیااوسه ددوی فکرمکوه ]اوهغه دټولو فیصله کونکونه ښه فیصله کوونکی دی.

.....

Scanned with Ca

# سورة هود

| آياتونه | سورة هود مكية وهي مائة وثلاث وعشرون اية وعشر ركوعا | ركوع‌ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۱۲۳ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۱۰ |

الٓرٰ كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ

ا ل ر | دا کتاب دې | چې محکم کړې شوې دی | آياتونه ددې | بيا | په تفصيل سره بيان شوې دی

الف لام را | دا يو [داسې] کتاب دې | چې آيتونه ئې مضبوط دی | او بله دا چې وضاحت سره بيان شوې دی

مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ ۝١ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللهَ ۭ اِنَّنِيْ لَكُمْ

د طرفه | د يو حکيم | خبردارنه | چې تاسو بندګي مۀ کوئ | مګر د الله | بيشکه زۀ | د پاره ستاسو

د يو حکيم خبردار د طرفه | چې بغير د الله ﷻ نه د بل هيچا عبادت مه کوئی | زه دهغه

مِّنْهُ نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ ۝٢ وَّاَنِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا

د طرفه دهغه نه | يرونکې | او زيرې ورکونکې يم | او دا چې معافي او غواړئ | د رب خپل نه | بيا | توبه اوباسئ

د طرفنه ستاسو ويرونکې او تاسو ته زيرې درکوونکې يم | او [ په دې مضمون ] چې د خپل رب نه بخښنه

اِلَيْهِ يُمَتِّعْكُمْ مَّتَاعًا حَسَنًا اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّيُؤْتِ كُلَّ

هغه ته | دربه کړي تاسو ته | سامان دژوند | ښه | دنيتې مقررې پورې | او وربه کړي | هر

غواړئ | بيا هغه ته رجوع اوساتئ | هغه به درته د ژوند سازوسان تر يو مقرر وخت پورې درکوی

ذِيْ فَضْلٍ فَضْلَهٗ ۭ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ

خاوند دفضل ته | فضل دهغه | او که مخ واړوئ تاسو | نو بيشکه زۀ | يريږم | په تاسو باندې | دعذابه

او هر زيات کارکوونکې ته به دهغه زيات اجر ورکوی | او که مخونه مو واړول | نو زه په تاسو باندې

يَوْمٍ كَبِيْرٍ ۝٣ اِلَى اللهِ مَرْجِعُكُمْ ۚ وَهُوَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝٤

دورځې | الوئې نه | خاص الله ته ده | واپسی ستاسو | او هغه | په هر څيز باند | قادر دې

ديوې لوئې [هولناکې] ورځې د عذاب نه ويريږم | د ټولو واپسی الله ته ده | او هغه په هر څۀ پوره پوره

اَلَآ اِنَّهُمْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ لِيَسْتَخْفُوْا مِنْهُ ۭ اَلَا حِيْنَ

واورئ | بيشکه دا خلق | تاووی | سينې خپلې | د پاره ددې چې پټ شی | دهغه نه | خبردار | څه وخت

قدرت لری | واوره دوئ خپلې سينې تاوهی چې د الله ﷻ نه پټ شی | او اوره چې دوئ څۀ وخت په خان جامې

يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ ۙ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۚ

چې دوئ پټيږی | په کپړو خپلو | پيژنی الله | هغه | چې پټوی ئې دوئ | او هغه | چې ښکاره کوی ئې دوئ

راواچوی | نو الله ﷻ ته هغه هر څه معلوم دی | کوم چې دوئ پټوی | او کوم چې ښکاره کوی | هغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّهٗ | عَلِيْمٌۢ | بِذَاتِ | الصُّدُوْرِ۞ |

بیشکه هغه | ښه خبر دي | په پټو رازونو | دسینو باندي |

دزړونو د رازونو نه هم ښه خبر دي

## آسان ترجمه قرآن

دا هغه کتاب دي چه ددې آیتونه (په دلائیلو سره) مضبوط کړې شوی دی بیا د یو داسې ذات د طرف نه ددې تفصیل بیان کړې شوي دي چه دحکمت مالك دې او دهرې خبرې نه خبر دې. (دا کتاب پیغمبر ته حکم ورکوي چه خلقو ته دي ووائی) چه: دالله نه سوا د بل چا عبادت مه کوئ څه تاسو ته د هغه د طرف نه خبرونکې یم او زیرې درکونکې یم. او دا (هدایت ورکول) چه: دخپل پروردګار نه د ګناهونو معافي وغواړئ، بیا هغه طرف ته رجوع وکړئ هغه به تاسو ته یو مقرر وخت پورې (د ژوند نه) د مزی اخستو مهلت درکړي، او بیا چه چا زیات عمل کړې وي هغه ته به ډیر اجر ورکړی. او که تاسو مخ واړولو نوځه په تاسو د یوې لوئ ورځې د عذاب نه ویریږم. الله ته ستاسو واپس کیدل دي او هغه په هر یو څیز قدرت والادې. وګوره، دا (کافران) خلق خپلې سینې دهغه نه پټیدلو دپاره راخبرګوی. یاد وساتئ چه کله دوی جامې اچوي نو الله د دوی هغه خبرو باندې پوهیږی چه کومې دوی پټوي، او کومې چه دوی ښکاره کوی یقیناً الله ښه پوهیږی په هغه خبرو چه کومې په سینو کښې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿ كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ۞ ﴾دا [قرآن] یو داسی کتاب دی چه ایاتونه ئی په دلیلونوسره محکم کړی شوی دی بیا [دی سره] صاف صاف هم بیان شویدی [اودا کتاب داسی دی چه ]دیوبې خبره حکیم [الله تعالی]له خوا [راغلی دی ، چه لوی مقصدئی ]دا [دی] چه دالله تعالی نه سوادبل چا عبادت مکوئ زه تاسوته دالله لخوا [په ایمان نه راوړلو دعذاب نه] ویروونکی او [په ایمان راوړودثواب] خوشخبری درکوونکی یم.

﴿ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ۭ اِنَّنِيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ۞ وَّاَنِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ يُمَتِّعْكُمْ مَّتَاعًا حَسَنًا اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾او [ددی کتاب دمقصدونونه] دا [هم ده] چه تاسو دخپل ګناه [ شرك او کفروغیره ]دخپل رب نه معافی وغواړئ [یعنی ایمان راوړئ او] بیا [ پس دایمان نه] الله ته[ په عبادت سره] متوجه شئ [یعنی نیك عمل وکړئ پس دایمان اونیك عمل په برکت سره] هغه به تاسوته دمقرره وخت یعنی[ ترمرګه] پورې[ په دنیا کښې] ښه عیش درکړی.

﴿ وَّيُؤْتِ كُلَّ ذِيْ فَضْلٍ فَضْلَهٗ ۭ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيْرٍ۞ ﴾ او [په آخرت کښی به] هر زیات عمل کوونکی ته زیات ثواب ورکړی [ داویل هم په شان دزیری ورکوونکی دی] او که چیری تاسوخلك [دایمان راوړلونه] اعراض کوئ نوماته [ پدی صورت کښی] ستاسولپاره دیوی لوئی ورخی دعذاب ویره ده او [داویل په مثل دویروونکی دی].

﴿ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ ۚ وَهُوَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ۞ ﴾ اوعذاب لری مه ګڼری خکه چه] تاسو[تولو]لره الله طرف ته ورتلل دی اوهغه په هرشی باندی پوره قدرت لری.[ بیادعذاب دلری ګڼرلو وجه نشته البته که هلته ستاسو حاضریدل نه وی [یانعوذبالله] دهغه قدرت نه وی نوعذاب به نه واقع کیدونو په داسی حالت کښی دتوحیداوایمان نه اعراض کول ندي پکار ،وړاندی دالله دعلم ثابتول دي او

داسي علم اوقدرت دواره دليلونه دتوحيد دي] ﴿ اَلَآ اِنَّهُمۡ يَثۡنُوۡنَ صُدُوۡرَهُمۡ لِيَسۡتَخۡفُوۡا مِنۡهُ ﴾ يادساتئ دغه خلك غبرګوي سينى خپلى[ اودپاسه پري کپړی اچوی] چه خپلى خبرى دالله نه پټى کړی [يعنی داسلام اومسلمانانوخلاف چه دوی کومی خبری کوی نوداسي ئی کوی چه څوك تری خبر نشي اودچاچه عقيده وی چه الله خامخا خبريږی اوستاصاحب وحي کيدل په دليلونوثابت دي پس] هغوی به دپټوالی داسی تدبيرونه دکوم ځای نه کوی ځکه چه داسی تدبير کول ګويا په دلالت حال سره دپټيدوکوشش کول دي.

﴿ اَلَا حِيۡنَ يَسۡتَغۡشُوۡنَ ثِيَابَهُمۡ ۙ يَعۡلَمُ مَا يُسِرُّوۡنَ وَمَا يُعۡلِنُوۡنَ ۚ اِنَّهٗ عَلِيۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ ﴾ نويادساتئ چه دغه خلك کوم وخت چه[ سره دسينوغبرګولو]په خان کپړی [دپاسه ]را اچوی هغه ته دغه وخت هم تول هرڅه معلوم وی کوم چه پټي پټي خبری کوي اوکومی چه دوی ښکاره خبری کوی[ ځکه چه] په يقين سره هغه [خو]دزړونودننه خبری پيژنی [نوپه ژبه ويلی شوی څنګه نه پيژني].

**معارف او مسائل**

سورت هود د هغې سورتونو نه يو سورت دې چه په کښې د هغې قهر الهى او د مختلفو عذابونو بيان په خاص انداز کښې راغلې دې کوم چه په پخوانو نافرمانه قومونو باندې په دنيا کښې راغلې وو،او بيا د قيامت هيبتناك واقعات او جزا،سزا په خاص انداز کښې بيان کړې شوې دې.

چنانچه کله چه د رسول اللهﷺ په ږيره مبارکه کښې سپين ويښته اولګيدل نو حضرت ابوبکر ؓ پرې خپل خفګان داسې ښکاره کړو چه يا رسول اللهﷺ تاسو خو بوډاګان شوې،رسول اللهﷺ ورته اوفرمائيل چه،او،سورۂ هود زه بوډا کړم.په بعضې روايتونو کښې سورت هود سره د سورت واقعه،مرسلات،عم يتساءلون او سورت تکوير بيان هم راغلې دې [حاکم، ترمذي] (۱) د دې مطلب دا وو چه د دې واقعاتو د يرې او دهشت په وجه زه بوډا شوم.

د دې سورت په اول سر کښې[الر]راورلې شوې دی،د ټولو داسې حرفونو په مطلب باندې سوا د الله تعالى او د رسول اللهﷺ نه بل څوك ځکه نه دی خبر کړې شوې چه دا يو اخې د دوی[دواړو]تر منځه راز دې،بلکه دې نه هم نور خلق منع کړې شوې دی چه د دې راز معلومولو په تکل کښې شی.

وروسې د قرآن کريم په باره کښې فرمائی چه،دا يو داسې کتاب دې چه آيتونه ئې محکم کړې شوې دی؛[محکم]د احکام نه جوړ دې،معنی ئې داده چه يو کلام په دې شان درست کړې شی چه يو لفظ او معنی کښې ئې د څه غلطې يا فساد احتمال پاتې نه شی،په دې بنا به د قرآن کريم د آيتونو د محکم والی مطلب دا وی چه الله تعالى ورته داسې شان ورکړې دې چه په الفاظو کښې ئې غلطې يا په معنی کښې ئې څه ويجاړې او زيان يا د باطلو څه امکان او احتمال نشته[قرطبی] (۲)

حضرت عبدالله بن عباس ؓ فرمائيلې دی چه دلته د محکم آيتونو نه مراد هغه دی چه منسوخ نه وی،په دې بنا به ئې مطلب دا وی چه الله تعالى د دې کتاب[قرآن مجيد]آيتونو له دا شان ورکړې دې چه ټول د ځيلمې به هغسې نه منسوخ کيږی ځکه چه د قرآن کريم په نازليدو سره

(۱) المستدرك للحاكم رقم الحديث: ۳۳۱۴، وجامع الترمذي، أبواب التفسير، باب ومن سورة الواقعة: ج ۲، ص ۱۶۵
(۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۲

Scanned with Ca

پخوانی کتابونه تورات او انجیل منسوخ شو، ولې چه د دې نه پس د وحی او پیغمبرۍ سلسله ختمه شوه، ځکه به دا کتاب [قرآن] تر قیامته نه منسوخ کیږي [قرطبی] [1] البته هم د قرآن کریم په ذریعه د بعضې قرآنی آیتونو منسوخ کیدل څه بدیت او بې سمونې نه لري ځکه چه ځنې آیتونه په دې شان منسوخ شوي دی.

په دې آیت کښې د قرآن کریم بل شان داسې بیان شوې دې ﴿ثُمَّ فُصِّلَتْ﴾ یعنی بیا د دې آیتونو تفصیل او کړې شو اصلی معنی د تفصیل دا ده چه د دوو څیزونو تر منځه جدائی او بیلتون راوستې شی، ځکه چه په عامو کتابونو کښې مختلف مضمونونه د فصل په عنوان سره بیانولې شی.

د آیتونو تر منځه د تفصیل یو مطلب دا دې چه د عقیدو، عبادتونو، معاملاتو، معاشرت، اخلاقو وغیره د مضمونونو د آیتونه بیل بیل او واضح بیان کړې شوې دی، او بله معنی ئې دا هم کیدې شی چه د الله تعالی اړخه ټول قرآن مجید په یو ځل لوح محفوظ کښې لیکلې شوې وو، بیا د مختلفو قومونو او ملکونو د ضرورتونو او حالاتو په جوړ، په لږه لږه نازل کړې شو، ځکه چه یادول ئې هم آسان وی او پوره په پوره په دې باندې عمل کول هم آسان شی.

وریسې فرمائی: ﴿مِن لَّدُنْ حَكِيمٍ خَبِيرٍ﴾ یعنی دا ټول آیتونه هم د یو ذات له اړخه راغلې دی چه د حکمت خاوند او خبرداره هم دې مطلب دا چه د الله تعالی په هر کار کښې دومره حکمتونه دی چه انسان ئې ټول د خپلې په خپل علم کښې نه شی راوستې او هغه د ټول جهان د ذرې ذرې نه پوره خبردار دې کوم چه اوس شته دې یا په آئنده کښې به وی، یعنی د هر یو څیز د موجوده او آئنده حالاتو نه خبرداره دې، په دې ټولو باندې نظر کولو سره حکمونه ئې نازلوی، د انسانانو په شان نه دې چه سره د ډیرې عقلمندۍ هوښیارتیا او تجربه کارۍ نه ئې عقل او پوهه تر یو خاص حد او اندازې پورې کار کولې شی او د دوی تجربه صرف د خواو شا په څیزونو پورې محدوده وی او ډیر کرته په راتلونکې زمانه او راتلونکو حالاتو کښې ناکامه او غلطه ثابتیږی.

په دویم آیت کښې د بیان شوو آیتونو بیان د هغه څیز [د الله تعالی د توحید] نه شروع کیږی چه د ټولو څیزونونه زیات ضروری او وړاندې دې، فرمائی ﴿أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ﴾ یعنی په دې آیتونو کښې چه کوم مضمونونه بیان کړې شوې دی په هغې کښې د ټولو نه زیات ضروری او وړاندې څیز دا دې چه د الله تعالی نه سوا د بل چا عبادت او نه کړې شی.

وریسې فرمائی ﴿إِنَّنِي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ﴾ یعنی رسول الله ﷺ ته الله تعالی دا حکم ورکړې دې چه هغوی ﷺ دې د ټول جهان خلقو ته دا اووائی چه: زه د الله تعالی د اړخه ستاسو یرونکې او درته زیرې ورکونکې یم.

مراد دا دې چه هغې خلقو لره د الله تعالی د عذاب نه یرونکې یم چه نافرمانی کوی او خپل ناروا خواهشاتو پسې روان وی، او هغې خلقو ته د دواړو جهانو د راحتونو او نعمتونو زیرې ورکونکې یم کوم چه فرمانبردار او نیک وی ﴿نَذِيرٌ﴾ معنی هغه مشفق او مهربانه بنده دې چه خپل عزیزان داسې څیزونو نه یرول او ساتل غواړی چه ورله په دنیا، آخرت یا دواړو کښې زیان رسونکې وی، د الفظ یرونکی دشمن، درنده یا څه بل زیان رسوونکی د پاره نه شی استعمالولې.

[1] تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۹، ص ۲

په دریم آیت کښې د قرآنی هدایتونو نه دویم هدایت دا بیان شوې دې؛ ﴿اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ﴾ ایعنی په دې محکم آیتونو کښې الله تعالی خپلو بندګانو ته دا هدایت هم کړې دې چه دوی دې د خپل رب نه بخښنه او معافی غواړی او توبه دې کوی، د بخښنې غوښتلو [مغفرت] ترون کړو ګناهونو سره دې او د توبې ترون آئنده سره دې چه په راتلونکو وختونو کښې د دې خوا ته د نه تللو لوظ او قول اوکړی، چنانچه حقیقی توبه دا ده چه په کړو ګناهونو باندې پښیمانه شی او الله تعالی نه ئې معافی اوغواړی او په آئنده کښې د دې د نه کولو پوخ قصد اوکړی، ځکه خو بعضې بزرګانو فرمائیلې دی چه آئنده کښې د ګناه نه د ځان ساتلو پوخ قصد او انتظام کولو نه بغیر یواځې په ژبان سره بخښنه غوښتل د کذابینو [دروغژنو خلقو] توبه ده [قرطبی] [1] لکه د داسې بخښنې غوښتلو په باره کښې بعضی حضراتو فرمائیلې دی،

معصیت را خنده می آید زاستغفار ما

[زمونږ په بخښنې غوښتلو باندې زمونږ ګناه له خندا ورځی]

یا ځنګه چه بعضې نورو حضراتو فرمائیلې دی؛ د داسې توبې کولو نه مې توبه ده؛ وریسې فرمائی ﴿يُمَتِّعْكُم مَّتَاعًا حَسَنًا إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ ایعنی چا چه د خپلو کړو ګناهونو بخښنه اوغوښتنه او په آینده کښې دې نه د ځان ساتلو پوخ قصد او انتظام اوکړو، نو یواځې دا نه چه ګناهونه به ئې اوبخښلې شی بلکه هغوی ته به ښکلې ژوند هم ورکړې شی، ژوند نه مراد عام ژوند دې خوا هغه د دنیا ژوند وی یا د آخرت همیشه ژوندون وی، ځنګه چه په بل آیت کښې هم د داسې خلقو باره کښې ارشاد شوې دې ﴿فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً﴾ ایعنی مونږ به ورته خامخا پاکیزه ژوند ورکړو اد دې آیت په باره کښې د جمهورو مفسرینو ﷺ تحقیق هم دا دې چه دلته د ژوند نه مراد د دنیا او آخرت دواړه ژوندونه دی، په سورت نوح کښې د بخښنې د غوښتونکو په باره کښې په ښکاره داسې فرمائیلې شوې دی ﴿يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ۝ وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا﴾ [که تاسو په صحیح طریقه د الله تعالی نه بخښنه او غوښتنه نو الله تعالی به دربانډې د رحمت باران نازل کړی او د مال او اولاد نه به مو مراد ترسره کړی باغونه او نهرونه به درکړی] ښکاره خبره ده چه د رحمت د باران او د مال، اولاد تعلق د دنیا دې ژوند سره دې، هم دغه وجه ده چه په دې بیان شوې آیت کښې هم اکثرو مفسرینو ﷺ د [متاع حسن] تفسیر داسې کړې دې چه د استغفار او توبې په نتیجه کښې به الله تعالی تاسو ته فراخه روزی او مزې چرچې کول دراوبخښی، افتونو او عذابونو نه به مو ساتی او هر کله چه د دنیا د ژوند ختمیدل خامخا شته دې، په دې بنا د دنیا مزې او عیش چرچې کول او آرام سره وخت تیرول د قدرت د قانون له مخې دائمې نه شی کیدې، ځکه ئې اوفرمائیل ﴿إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ په دې سره ئې هدایت اوکړو چه په دنیا کښې د پاکیزه ژوند او مزو چرچو کولو اسانې به یو خاص نیټې [مرګه] پورې وی، بیا به مرګ دا تول هر څه قیصه ختمه کړی، د مرګ نه سمدستی پس د بل جهان ژوند شروع کیږی او په دې کښې هم د توبې او استغفار کوونکو د پاره به همیشه راحتونه نصیب کیږی.

او حضرت سهل بن عبدالله ﷺ فرمائیلې دی چه د [متاع حسن] نه مراد دا دې چه د انسان مخه د مخلوق نه واوړی او په خالق پورې مضبوط ترون اولری، بعضې بزرګانو د [متاع حسن] دا

---

[1] ) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۹، ص۲

مطلب ښودلې دي چه انسان په شته څيزونو باندې قانع[صابر]شي او نيشت څيزونو پسې لاسونه خپې نه وهی، يعني په شته څيزونو تسلی اولری او نيشت پسې سر نه ماتوی.

توبې او استغفار کوونکو ته بل زيرې داسې ورکړې شو (وَيُؤْتِ كُلَّ ذِي فَضْلٍ فَضْلَهُ ۚ) دلته د رومبی [ذکرشوی]فضل نه مراد د انسان نيک عمل دې او د بل فضل نه مراد د الله تعالى فضل يعني جنت دې، مطلب دادې چه هرنيک عمل کوونکی ته به الله تعالى خپل فضل، يعني جنت ورکوی.

په رومبې جمله کښې د دنيا او آخرت دواړو د [متاع حسن]د ښه ژوند وعده فرمائيلې شوې ده او په دويمه جمله کښې د جنت د هغه نعمتونو بيان شوې دې چه ختميدونکی به نه وی، په آخر د آيت کښې فرمائی ﴿وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيرٍ ۝﴾ [يعني که د دې نصيحت او خير خواهې نه تاسو مخ واړولو، د کړې ګناهونو نه د بخښنې غوښتو او په آئنده کښې مو دې نه د خان ساتلو انتظام او نه کړو نو قوی انديښنه ده چه تاسو د يوې لوئې ورځې په عذاب کښې ګرفتار شې]د لوئې ورځې نه مراد د قيامت ورځ ځکه ده چه دا به زر کاله وی، او دې کښې تول راپيښيدونکی حالات او واقعات به هم ډير لوئې وی.

په پنځم آيت کښې دا مضمون نور هم په دې شان مضبوط کړې شوې دې چه په دنيا کښې که تاسو هر څه اوکړې او که په هر شان د دنيا ژوند تير کړې خو په انجام کښې د مړ کيدو نه پس به الله تعالى ته ورګرځيدل وی او هغه په هر څيز باندې قادر دې، هغه ته داسې کول څه ګران نه دی چه د مړ کيدو او خاورې کيدو نه پس ستاسو ټولې ذرې راجمع کړی او تاسو نه دوباره انسانان جوړ کړی او راولاړ مو کړی.

په شپږم آيت کښې د منافقانو د يو بد ګمان او ناکاره خيال داسې رد کول دی چه دا خلق د رسول الله ﷺ سره د خپلې دشمنې او د هغوی خلاف کول ښه په کوشش سره پټوی د دوی په سينو کښې د حسد او بغض کوم اور چه بليږی په هغوی باندې په هر شان پردې اچوی او دا خيال کوی چه په دې شان سره به زمونږ اصل حال چا ته معلوم نه شی خو حقيقت دا دې چه د جامو دننه د پردو د وروستو چه څه کوی الله تعالى ته دا ټول هر څه په ډاګه ځکه دی چه: انه عليم بذات الصدور [هغه د زړونو پټ رازونه هم ښه پيژنی]

[الحمد لله پاره نمبر ۱۱ ختمه شوه]

وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ

اونشته | هيڅ يو ساه لرونکې | په زمکه کښې | مګر | په الله باندې دې | رزق د هغې | او پيژني الله

اود زمکې په مخ چه هر ژوندې دې نو خواه مخواه دهغه روزي د الله ﷻ په ذمه ده | اوهغه ته دهر يو

مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا كُلٌّ فِي كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝۶ وَهُوَ

ځائې د اوسيدو د هغې | او ځائې دسپارنې دهغې | هرڅه | په کتاب | روښانه کښې موجود دی | اوهغه

کس د زياتې او د لږې استوګنې ځائې معلوم دې | دا هر څه په ښکاره کتاب کښې ليک دی

الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِيْ سِتَّةِ أَيَّامٍ وَّكَانَ عَرْشُهُ

هغه ذات دې | چې پيدا ئې کړل | آسمانونه | او زمکه | په شپږو ورځو کښې | او وؤ | عرش د هغه

او الله ﷻ هغه ذات دې چې آسمانونه او زمکه ئې په شپږو ورځو کښې پيدا کړل | او د هغه عرش

عَلَى الْمَآءِ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا

په اوبو باندې | دپاره ددې چې امتحان اوکړی ستاسو | چې کوم يو په تاسو کښې | ډير ښهٔ دې | په اعتبار د عمل سره

په اوبو ولاړ وو | چې ستاسو آزمېښت اوکړی چې څوک در کښې د عمل په لحاظ سره ډير ښهٔ دې

وَلَئِنْ قُلْتَ إِنَّكُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ مِنْۢ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُوْلَنَّ

اوکه چرته | او وائې ته | چې بيشکه تاسو به | دوباره راپاسولې شئ | روستو د مرګ نه | نو خامخا وائی به

او [ اې پيغمبره ﷺ ] که ته ورته او وائې چې تاسو به د مرګ نه پس بيا راژوندی کيږئ | نو کافر به ضرور

الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا إِنْ هٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۷ وَلَئِنْ أَخَّرْنَا

هغه کسان | چې کافران دی | چې نهٔ دې دا | مګر | جادو | ښکاره دې | او که چرې | روستو کړو مونږه

او وائې چې دا خو ښکاره جادو دې | او که مونږ د دوئ نه تر يو نيټې پورې عذاب روستو کړو

عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِلٰٓى أُمَّةٍ مَّعْدُوْدَةٍ لَّيَقُوْلُنَّ مَا يَحْبِسُهُ

دهغوئ نه | عذاب | ديوې مودې | شمارلې شوې پورې | نو خامخا وائی به | چې څه څيز | بندوی هغه عذاب

نو دوئ وائی چې آخر څه څيز دا [ عذاب ] منع کړو..........

أَلَا يَوْمَ يَأْتِيْهِمْ لَيْسَ مَصْرُوْفًا عَنْهُمْ

خبردار | په کومه ورځ | چې راشی هغه دوئ ته | نو نهٔ به شی لرې کولې هغه | د دوئ نه

واوره..........چې په کومه ورځ [عذاب] راشی..........نو بيا به ترې نه اړولې نشی

وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝۸

او چاپيره به شی | د دوئ نه | هغه څيز | چې وؤ دوئ | په هغې پورې | چې توقې به ئې کولې

او دوی به په هغه عذاب کښې راګير شی په کوم پورې چې به دوئ توقې کولې

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

او په ځمکه باندې تلونکې یو ژوندی سر داسې نشته چه د هغه رزق الله په خپله ذمه نه وي اخستې. او هغه ته د دهٔ مستقل د استوګنې ځائې هم معلوم دې او عارضي د استوګنې ځائې هم. هر یو خبره دالله څخه په یو واضح کتاب کښې موجود دهٔ او هم هغه ذات دې چه هغه ځمکه او آسمانونه په شپږو ورځو کښې پیدا کړل. او د هغه عرش په اوبو باندې وو دې دپاره چه په تاسو امتحان وکړي چه د عمل په اعتبار سره په تاسو کښې څوك ښه دې او که ته (خلقو ته) دا ووائې چه تاسو به د مرګ نه وروستو ژوندي کولې شئ نو کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې هغوی به دا وائي چه دا د ښکاره جادو نه سوا نور څه نه دي او که مونږ څه وخت دپاره دې خلقو نه عذاب لرې کړو نو دوی به دا وائي چه: "آخر کوم څیز (عذاب)لره بند کړې دی ؟په کومه ورځ چه دا عذاب راشي نو هغه به دوی نه نهٔ واپس کیږی ، او د کوم څیز سره چه دوی ټوکې کولې هغه به دوی لره د څلورو واړو طرفونو نه راګیر کړی.

## خلاصه تفسیر :

﴿ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا ۚ كُلٌّ فِي كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝ ﴾ اوڅوك [رزق خورونکی] جاندار په مخ دځمکی داسی نشته چه دده رزق دالله په ذمه نه وی[ اودرزق رسولولپاره دعلم ضرورت وی پس] هغه دهریوددایمي اوسیدوځای اودخوورخوداوسیدوځای پیژنی[ اوهریو هلته رسوی اوسره ددی چه ټول څیزونه په علم الهی کښی دي ....مګرددی سره] ټول څیزونه ښکاره کتاب[ لوح محفوظ ]کښی [هم درج شوی] دي[ مطلب داچه هرقسمه واقعات محفوظ دی.

﴿ وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِيْ سِتَّةِ أَيَّامٍ وَّكَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ۗ ﴾ وړاندی دپیدایش سره دبعضوحکمتونوبیان دی چه پدې سره په قیامت کښی دبیاژوندی کیدوهم تائیدکیږی څکه چه ابتدائی پیدائش دلیل دی پدې چه دوٸ به دوباره هم پیداکولی شی] اودغه[ الله ]داسی دی چه ټول آسمانونه اوځمکه ئی په شپږ ورځی[مقدار]کښی پیداکړه دغه وخت دده عرش په اوبوباندی وو[ چه دادواړه څیزونه دمځکی نه پیداشوی وو اوداپیداکول څکه دی] چه ستاسو امتحان وکړی چه[ وګوری] په تاسوکښی ښه عمل کوونکی څوك دی[ مطلب داچه آسمانونه اوځمکه ئی پیداکړه ستاسو حاجتونه اونفعی ئی ئږدی کښی پیداکړی چه تاسودا ووینئ اوپه توحید ترینه دلیل ونیسئ اوددی نه نفع واخلئ دمنعم شکر اوخدمت چه عبارت دې دنیك عمل نه په ځای راوړئ پس بعضوداسی وکړل بعضو ونکړل].

﴿ وَلَئِنْ قُلْتَ إِنَّكُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا إِنْ هٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ ﴾ اوکه ته[ خلقوته] وائی چه یقینا تاسو خلق به دمرګ نه پس [دقیامت په ورځ دوباره] ژوندي کړې شئ نو[ یدوی کښی] کافران[ دقرآن په نسبت] وائی چه داخوخالص صفاجادودی[ جاده ورته څکه وائی چه هغه خوباطل وي مګر اثرکوي، دغه شان قرآن به ئی نعوذ بالله باطل ګڼلو مګرددی د مضامینو اثرکول ئی هم لیدل، په دي مجموعه باندی ئی داحکم وکړونعوذبالله منه ، مقصد ددی نه د آخرت انکاروو.

﴿وَلَئِنْ أَخَّرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِلَىٰ أُمَّةٍ مَّعْدُودَةٍ لَّيَقُولُنَّ مَا يَحْبِسُهُ﴾ وراندي ددوی دمنشاءدانکارجواب ارشادفرمائی] اوکه دلږو ورخوپوري[ مرادترینه ددنیاژونددي] مونږددوی نه عذاب یعنی[ وعده شوی] ملتوی ساتو چه پدي کښې حکمتونه دي نو[په طورد انکار اومسخرو] وائی چه[ هرکله مونږستاپه نزد دعذاپ مستحق یونو]څه شی ئې منع کوی [یعنی که عذاب څه شي وي نوتر اوسه به شوی ووهرکله چه ونۀ شو نومعلومه شوه چه هیڅ هم نشته. ﴿أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ﴾ الله تعالی جواب ورکوی چه] یادساتئ: په کومه ورځ چه [په مقرره وخت] دغه[ عذاب] پدوی راپریوځی نودچاپه واپس کولوبه بیا واپس نشی اودوی چه په کوم [عذاب ]مسخری کوی هغه عذاب به دوی راګیروي[ مطلب داچه سره ددي چه دوی ئې مستحق دي خوداتاخیردبعضی حکمتونوپه وجه دې چه دهغه وخت مقرردی بیابه پدغه ورځ ټول کسر اوقصور وویستلای شی ].

**معارف او مسائل**

په تیر شوی آیت کښې د الله تعالی د محیط علم بیان وو چه د کائناتو هیڅ یوه ذره او زړونو رازونه هم ترې پټ نه دی، اوس د دې آیتونو نه په رومبی آیت کښې د دې په مناسبت سره په انسان باندې د یو عظیم الشان احسان بیان شوې دې، هغه دا دې چه الله تعالی د ده د روزۍ ذمه داری پخپله اخستې ده، یواځې د انسان نه بلکه په زمکه باندې د هر ګرځیدونکی سا لرونکی د روزۍ ذمه داری ئې اخستې ده، هغه چه چرته اوسیږی یا چرته چه ځی د هغه روزی هغه ته ور رسی، نو د کفارو دا اراده لرل چه هغوی څه کار د الله تعالی نه پټوی د ناپوهۍ او بې وقوفۍ نه سوا بل هیڅ نه دی، ددې په عموم کښې سالرونکی ځیزونه د ځنګل ځریدونکی ځناور، مارغان او په زمکه کښې دننه اوسیدونکی، د اوچې او دریاب ټول ځناور په کښې داخل دی، چنانچه د دې عموم د تاکید د پاره لفظ د[من]زیات راوړې شو او داسې اوفرمائیلې شو؛

﴿وَمَا مِن دَابَّةٍ﴾ دابة هر هغه سالرونکی ته وئیلې شی چه په زمکه باندې ګرځی، په دې کښې مارغان هم ځکه داخل دی چه جاله [ځاله] او د خوراک څکاک ټول انتظام ئې په زمکه دې، دریابی مخلوق هم زمکې سره په ښکاره تړون لری، د دې ټولو ځیزونو د روزۍ ذمه داری الله تعالی په خپله ذمه داسې اخستې ده لکه چه د چا فریضه، دیوټی او وظیفه وی فرمائی:

﴿عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا﴾ [یعنی د الله تعالی په ذمه دي د هغې رزق]دا ښکاره خبره ده چه په الله تعالی باندې د ذمه دارۍ پیټې ایښونکې څوک بل طاقت نشته، سوا د دې نه چه هغه په خپل فضل سره پخپله د دې وعده کړې ده، هر کله چه وعده د داسې کریم ذات ده چه په کښې د خلاف ورزۍ کولو هیڅ امکان نشته، نو ځکه د دې یقین ښکاره کولو د پاره لفظ د[علی]راوړلې شو، چه د فرائضو بیانولو د پاره استعمالولې شی، حالانکه نه خو الله تعالی د څه حکم پابند دې او نه د هغه په ذمه څه ځیز فرض یا واجب دې.

رزق؛ په لغت کښې هغه ځیز ته وئیلې شی چه سالرونکې ترې خپله خوراکه حاصلوی او د هغې په ذریعه روح په بدن کښې ایسار پاتې کیدې شی او په بدن کښې ورسره ترقی او څوربوالې [چاغوالی] راځی.

رزق د پاره دا ضروري نه ده چه د دې استعمالونکې دې د دې مالک هم وي لکه ټول څناور، څاروي او مارغان وغیره واخلې چه دې ټولو ته کوم رزق ورکولې کیږي هغوي د دې مالکان نه وي په هغوي کښې د سره د ملکیت صلاحیت نه وي، هم دا شان واړه ماشومان د خپل رزق مالکان نه وي خو هغوي ته رزق ملاویږي.

د رزق د دې عامې معنې په اعتبار سره علماؤ رحمهم الله فرمائیلي دي چه رزق حلال هم کیدې شي او حرام هم کیدې شي، نو په ناجائزه د چا مال خوړنکې خو اګر چه دغه مال ځان د پاره خوراکه جوړه کړې خو حرام ئې اوکړلو که دې ناروا طریقه ئې په ړندو سترګو دغه مال نه وې خوړلې نو دې د پاره تاکلې شوې روزي به ورته په روا طریقه ملاؤ شوې وه.

**د روزۍ په خدائې ذمه دارۍ باندې یو سوال او د هغې جواب:** سوال دا راپیدا کیږي چه هر کله د هر سالرونکي د روزۍ ذمه داري الله تعالی اخستې ده نو بیا ډیر سالرونکي څیزونه او انسانان د روزۍ د نیشتوالي د کبله د لوږې نه ولې مري؟

علماؤ رحمهم الله د دې ګڼړ جوابونه لیکلي دي، یو جواب ئې دا هم کیدې شي چه د رزق ورکولو ذمه داري الله تعالی تر هغې اخستې ده چه نیته د مرګ ئې نه وي پوره شوې، مطلب دا دې چه کله یو سالرونکې څیز د څه مرض نه مړ شي، کله د سوخیدو په وجه مړ شي، کله په اوبو کښې ډوب شي، کله زخمي شي یا د ګذار نه مړ شي، دا شان د ده د نیتې پوره کیدو په وجه ئې روزي بنده کړې شي.

خلاصه دا شوه چه کله د دغه مړکیدونکي تاکلې روزي ختمه شي څکه د هغې د نیشتوالي په وجه مړ شي، دا مطلب ئې نه شو چه الله تعالی د روزۍ ورکولو خپله ذمه واري پوره نه کړه.

امام قرطبي رحمه الله د دې آیت د لاندې د اشعریینو د قبیلې د خلقو [ابي موسی رضي الله عنه او ابي مالک رضي الله عنه وغیره] یوه واقعه داسې بیان کړې ده چه هر کله دا خلق د هجرت په ډول مدینې منورې ته راورسیدل نو ځان سره راخستې خرڅ خوراک ورسره ختم شو، دوي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یو کس د خرڅ خوراک د پاره وراولیږلو کله چه دغه کس رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ور اورسیدلو نو دننه نه ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا تلاوت کول واوریدل؛ ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا﴾ د دې په اوریدو د دغه کس خیال راغلو چه هر کله ټولو سالرونکو ته الله تعالی د روزۍ ورکولو ذمه داري اخستې ده نو مونږ ته خو به خامخا روزي راکوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د خپل حال بیانولو نه بغیر واپس خپلو ملګرو اشعریینو ته راغلو او ورته ئې اووئیل چه خوشحاله شې تاسو ته د الله تعالی امداد راروان دې، د ده ملګرو اشعریینو دا خیال راغلو چه ګنې ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خپل حال بیان کړې دې، اوس به دا انتظام رسول الله صلی الله علیه وسلم کوي، په دې دوران کښې دغلته دوه کسان راغلل چه د پخې غوښې ډکه لویه کاسه او روټې ئې ځان سره راخستې وې او د دوي مخې ته ئې کیښودې، د هغې نه ئې ښه په مړه کیده اوخوړل نو پاتې شوې خوراکه ئې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوړل څکه مناسب اوګڼړل چه هغوي صلی الله علیه وسلم به ئې په مناسب ضرورت کښې پکار راولي، په دې غرض دوو کسانو اشعریینو دغه خوراکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وراورسوله، ورپسې دغه ټول اشعریین هم ورغلل، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ئې عرض اوکړو چه یارسول الله صلی الله علیه وسلم ستاسو رالیږلې خوراکه ډیره زیاته او خوندناکه وه، رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل چه ما خو څه خوراکه نه ده درلیږلې، بیا ورته هغوي پوره واقعه عرض کړه چه مونږه ستاسو په خدمت کښې اول فلانې سړې رالیږلې وو،

خکه مو دغه خوراکه ستاسو د اړخه راالیږلي اوګنړله، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ما نه وه درلیږلي بلکه هغه ذات اقدس درلیږلې وه چه ټولو سالرونکو ته ئې د رزق ورکولو ذمه داري اخستې ده.(۱)

په بعضې روایتونو کښې راغلي دي چه کله موسی ﷺ د اور په لټون کښې کوه طور ته ورغلو نو هلته ئې د اور په ځاې د الله تعالی تجلیات اولیدل هلته په ورتلو ورته پیغمبري ورکړې شوه او دا حکم ورته ورکړې شو چه د فرعون او فرعونیانو د هدایت د پاره دې مصر ته لاړ شي، په دغه موقع ورسره د خپلې بی بی فکر شو چه په دې خوشې ځنګل کښې په یواځې پاتې کیدو سره به د هغې څه حال وي؟ دغه وخت حضرت موسی ﷺ ته حکم او شو چه مخامخ پروت کاڼي له په یو لرګی ګذار ورکړه چه ګذار ئې ورکړو نو اوچودو او بل کاڼې تر راووتو، په هغې باندې هم د ګذار کولو حکم ورته اوشو، بیا ترې دریم کاڼې راووتو په هغې ورته د ګذار کولو حکم اوشو چه هغه اوچودو نو هغې نه یو سالرونکې څیز راووتو چه خله کښې ئې شنه پاڼړه نیولې وه.(۲)

هسې خو د حضرت موسی ﷺ د الله تعالی په کامل قدرت باندې پوره یقین وو چه دا ئې اولیدل نو یقین ئې نور هم مضبوط شو او بی بی ته د حال وئیلو نه بغیر نیغ [سیدها] مصر ته روان شو.

**ټول مخلوق ته د رزق رسولو د قدرت عجیب او غریب انتظام:** په دې آیت کښې الله تعالی یواځې دا اونه فرمائیل چه هر سالرونکي ته روزي رسان زه یم بلکه د انسان د زیاتې تسلې د پاره ئې اوفرمائیل ﴿وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا﴾ په دې آیت کښې د مستقر او مستودع مختلف تفسیرونه منقول دي خو د لغت په لحاظ سره هغه زیات نزدې دي کوم چه کشاف داسې اختیار کړې دې، لیکې چه [مستقر هغه ځاې ته وئیلې شي چرته چه څوک په مستقل ډول استوګنه کوي او خپل وطن ئې جوړ کړي، او مستودع هغه ځاې ته وائي چه چرته چه څوک د ضرورت په خاطر په عارضي ډول پاتې شي.

د دې مطلب دا شو چه د الله تعالی ذمه داري د دنیا د خلقو او حکومتونو په شان مه ګنړې چه د چا د خوراکې ذمه داري ئې اخستې وي نو د هغه ذمه داري دا لګولې شي چه چرته څې نو د هغې اطلاع به متعلقه ادارې یا کس ته ورکوي چه هلته د هغه د خوراکې انتظام اوکړې شي، خو د الله تعالی دا ذمه داري اخستل په دې شان نه ده چه د دغې اطلاع ورکولو پابندي دې په متعلقه بنده اولګولې شي بلکه همدغه ذات پخپله په دې خبر دې چه فلانی وخت کښې به دې چرته وي؟ او بغیر اطلاع ورکولو به ورته همدغلته د هغه روزي وررسوي څکه د هر بنده او سالرونکي څیز د نقل و حرکت نه باخبره دې او د هر سالرونکي څیز د استوګنې مستقل او عارضي ځاې پیژني.

هر کله چه د الله تعالی علم د هر څه نه راچاپیره دې او د قدرت مطلقه خاوند دې نو صرف د هغه ارادې کولو سره ټول کارونه سر ته رسیدې شو، په څه کتاب یا رجسټر وغیره کښې د هغې د لیکلو ضرورت نه وو مګر عاجزه انسان چه د کوم نظام عادت وي نو په هغې باندې قیاس کولو

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۷
(۲) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۱۵۲

Scanned with CamScanner

سره ئې اندیښنې پیدا کیدې شی څکه د ده د پوره تسلې د پاره الله تعالی فرمائی: ﴿كُلٌّ فِي كِتَٰبٍ مُّبِينٍ﴾ [دا ټول هر څه په واضح کتاب کښې لیکلې شوې دی]او واضح کتاب نه مراد لوح محفوظ دې چه په کښې د ټول مخلوق روزی، عمر، عمل په پوره تفصیل سره لیکلې شوې دې بیا د موقعې او ضرورت مطابق متعلقه فرشتو ته سپارلې شی.

د صحیح مسلم په حواله د حضرت عبدالله بن عمر ﷠ په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه الله تعالی د ټولو مخلوقاتو تقدیرونه د آسمانونو او زمکې د پیدا کیدو نه پنځوس زره کاله وړاندې لیکلې دی.[1]

د بخاری او مسلم په حواله د حضرت عبدالله بن عباس ﷠ په روایت په اوږد حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلې دی خلاصه ئې دا ده چه د پیدا کیدو نه وړمبې په انسان باندې مختلف دورونه راځی، کله چه د ده اندمونه پوره جوړ شی نو الله تعالی یو فرښتې ته د ده په باره کښې د څلورو څیزونو د لیکلو حکم اوکړی، د ده عمل چه څه به کوی؟ د ده عمر چه څومره کلونه، میاشتې، ورځې، منټونه بلکه تر ساګانو پورې لیکلې شی، دې به چرته مری او چرته به ښخیږی؟ د ده روزی به څومره وی او په څه څه طریقې به ورته رسی؟[2] د آسمان او زمکې د پیدا کیدو نه پنځوس زره کاله وړمبې د دې څیزونو لیکل دې حدیث سره بې سمونه نۀ دی.

په دویم آیت کښې د الله تعالی د محیط علم او د غالب قدرت یوه بله ننداره داسې بیان کړې شوې ده چه هغه ټول اسمانونه او زمکه په شپږو ورځو کښې پیدا کړل او د دې د پیدا کیدو نه وړاندې د رحمن عرش په اوبو باندې وو.

دې نه معلومه شوه چه د زمکې او اسمانونو د پیدا کیدو نه وړاندې اوبه پیدا کړې شوې دی، د سورت حم السجده په آیت ۱۰، ۱۱ کښې په شپږو ورځو کښې د اسمانونو او زمکې د پیدا کیدو تفصیل داسې راغلې دی، چه په دوو ورځو کښې زمکه جوړه کړې شوه، په دوو ورځو کښې د دې غرونه، دریابونه، اونې د سالرونکی څیزونو خوراکه او د ژوندې پاتې کیدو سامانونه جوړ کړې شو، په دوو ورځو کښې اووه اسمانونه جوړ کړې شو.

تفسیر مظهری کښې لیکی چه د اسمان نه مراد ټول هغه څیزونه دی کوم چه پورته دی، او د زمکې نه مراد ټول لاندینی څیزونه دی[3] کوم چه لاندې دی، د ورځې نه مراد د وخت هغه اندازه ده چه د اسمانونو او د زمکې د پیدا کیدو نه پس د نمر د راختو نه د نمر تر ډوبیدو پورې وی ولې چه د اسمانونو او زمکې د پیدا کیدو نه وړمبې نمر نه وو، نو راختل او ډوبیدل خو به ئې خود نه وو. الله تعالی د دې ټولو څیزونو د سترګو په رپ کښې د پیدا کولو کامل قدرت لری خو د انسان د مزاج مطابق ئې د دې جهان انتظام درجه په درجه او پورې په پورې اوکړو.

په آخر د آیت کښې د اسمانونو او زمکې د پیدا کولو مقصد داسې ښائی ﴿لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ [چه ستاسو ازمیښت کول دی چه څوک به ښه عمل کوی؟]

---

[1] ) صحیح مسلم، کتاب القدر، باب حجاج آدم وموسیٰ علیهما السلام: ج ۲، ص ۳۳۵

[2] ) صحیح البخاری، کتاب الانبیاء، باب خلق آدم صلوات الله علیه وذریته: ج ۱، ص ۳۶۸، وصحیح مسلم، کتاب القدر، باب کیفیة خلق الادمی فی بطن امه الخ: ج ۲، ص ۳۳۲

[3] ) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۶۹

دې نه معلومه شوه چه اسمانونه او زمکې پيدا کول پخپله څه مقصدي څيز نه دي بلکه د دې پيدا کول د عمل کونکو انسانانو د پاره دي، چه دوئ د دې څيزونو نه د ژوند تيرولو فائده هم حاصله کړي او په دې کښې غور کولو سره خپل مالک او رب اوپيژني.

خلاصه ئې دا ده چه د دې څيزونو د پيدا کولو اصلي مقصد انسان دې بلکه اهل ايمان انسانان دي او دوی کښې هم بيا د ټولو نه زيات ښه عمل کونکي دي، په دې بنا په ټولو انسانانو کښې ښه عمل کونکي زمونږ رسول الله ﷺ دي څکه به دا غلط نه وی چه د ټولو کائناتو د پيدا کولو اصلي مقصد رسول الله ﷺ دي [تفسير مظهری] (۱).

دلته په دې باندې هم ژور نظر اچول ضروری دی چه د زيات عمل کولو په ځای ئې: ﴿اَحۡسَنُ عَمَلًا﴾ [ښه عمل کول] اوفرمائيل، دې نه معلومه شوه چه د نيکو عملونو د مقدار او عملی ډير والی په ځای د الله تعالی نظر په حسن عمل [ښه عمل] باندې دې، چه په يو حديث شريف کښې ورته احسان هم وئيلې شوې دی، (۲) مطلب دا چه په نيک عمل کولو کښې دې د الله تعالی رضا حاصلول وی، څه دنيوی غرض دې په کښې نه وی، د نيک عمل صورت هم هغه اختيارول پکاردی کوم چه الله تعالی ته خوښ وی، يعنی په داسې شان وی چه د رسول الله ﷺ د عمل مطابق وی ولې چه امت د پاره د سنتو تابعداری لازمه ګرځولې شوې ده.

خلاصه دا شوه چه يو لږ عمل په اخلاص سره وی او د سنتو مطابق وی هغه د هغه زيات عمل نه غوره دې چه دا څيزونه په کښې د سره نه وی يا په کښې څه کم وی.

په اووم آيت کښې د قيامت او د منکرانو حال داسې بيان شوې دی چه کله د دوی په پوهه کښې څه خبره را نه شی نو هغه ته جادو وئيلو سره مخه ورپسې نه ووری.

په اتم آيت کښې د هغې خلقو د شبهې جواب دې چه د پيغمبرانو ﷺ د اړخه د عذاب په وعيدونو به ئې اعتبار نه کولو او وئيل به ئې که تاسو رښتينی ئې نو هغه عذاب راباندې ولې رانغې د کوم وعيد چه راکړې شوې دې؟

| |
|---|
| وَلَئِنۡ اَذَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ مِنَّا رَحۡمَةً ثُمَّ نَزَعۡنٰهَا مِنۡهُ ۚ |
| اوکه چرې \| اوڅکوؤ مونږ \| انسان ته \| د طرفه زمونږ نه \| رحمت \| او بيا \| واخلو مونږ هغه \| د هغه نه |
| اوکه مونږ يو انسان ته ديو نعمت خوند ورکړو ............ او بيا ئې ترې نه واپس واخلو |
| اِنَّهٗ لَيَـُٔوۡسٌ كَفُوۡرٌ ۝ وَلَئِنۡ اَذَقۡنٰهُ نَعۡمَآءَ بَعۡدَ |
| بيشکه هغه شی \| خامخا نااميده \| ناشکره \| اوکه چرې \| اوڅکوؤ مونږ په هغه \| نعمت \| روستو |
| نو [په هغه وخت کښې] هغه نااميده شی اوناشکره شی \| اوکه نعمتونه ورته د تکليف نه پس ورکړو [نو |
| ضَرَّآءَ مَسَّتۡهُ لَيَقُوۡلَنَّ ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ عَنِّيۡ ؕ اِنَّهٗ |
| د مصيبت نه \| چې رسيدلې وی هغه ته \| نو خامخا وائی به \| چې لاړې \| سختيانې \| زما نه \| بيشکه هغه |
| [په داسې حال کښې] ډير ............ وائی چې بس زما غمونه او دردونه لاړل |

(۱) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۶۹، ۷۰

(۲) صحيح البخاری، کتاب الإيمان، باب سوال جبرائيل الخ: ج ۱، ص ۱۲

Scanned with Ca

لَفَرِحٌ فَخُورٌ ﴿۱۰﴾ إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ط

ډير خوشحاله | فخر کونکي وي | مگر | هغه کسان | چي صبر ئې اوکړو | اوعمل ئې اوکړو | نيک

غرور او فخر کونکي وي |........مگر هغه کسان چي صبر کوي |............ اونيک کارونه کوي

أُولٰئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿۱۱﴾ فَلَعَلَّكَ تَارِكٌ

دا کسان چي دي | ددوئ دپاره | ښښنه | او بدله | لويه ده | نوشايد چي ته | پريښودونکي شي

دهغوئ دپاره ښښنه هم ده | او لوئي اجر هم دي | ...........................کيدي شي چي ته

بَعْضَ مَا يُوحٰى إِلَيْكَ وَضَائِقٌ بِهٖ صَدْرُكَ أَنْ يَّقُولُوا

خيني هغه څه | چي وحى ئې کولي شى | تاته | اوتنگيدونکى شى | په دي خبري سره | سينه ستا | چي وائى به دوئ

د [ الله ﷻ د ] وحى نه څه حصه [ د دوئ د وجي ] پريږدي | او ستا زړه د دوى د دي وينا په وجه تنگيگي

لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ أَوْجَاءَ مَعَهٗ مَلَكٌ ط إِنَّمَا أَنْتَ

ولي نازله نه شوه | په ده باندي | خزانه | يا ولي رانغله | ده سره | فرشته | بيشکه خبره داده | چي ته

چي په ده باندي خزانه ولي راکوزه نشوه | يا داچي فرشته ورسره ولي رانغله | ته خوبس.........

نَذِيرٌ ط وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيلٌ ﴿۱۲﴾ أَمْ يَقُولُونَ افْتَرٰىهُ ط

ويرونکي يي | او الله | په هر څيز | نگهبان دي | يا وائى دوئ | چي دا د خانه جوړکړي دي داقرآن

ويرونکي يي | او [مخکښي] الله دهرڅه کار سازدي | آيا دوئ دا وائي چي دا [ کتاب ] ګنى ده د خانه جوړ کړي دي

قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهٖ مُفْتَرَيٰتٍ وَّادْعُوا

ورته اووايه | نو راوړئ تاسو | لس سورتونه | په شان ددي | دخانه جوړکړي شوى | اورااوغواړئ

ورته اووايه چي ښه ده نو ددي پشان يو لس سورتونه تاسو هم په دروغه جوړ کړئ | او د الله تعالى نه

مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُونِ اللّٰهِ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِينَ ﴿۱۳﴾ فَإِنْ

هغه څوك | چي رابللي شئ تاسو | ماسوا دالله نه | که چري يئ تاسو | رښتينى | نو که چري

.... ......سوا چي په چامو وس رسى هغه راوبلئ اکه تاسو رښتونى يئ [چه دا کتاب ما جوړ کړي دي]

لَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا أُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَأَنْ

جواب ئې درنه کړو | تاسوته | نوپوهه شئ | چي بيشکه | دا نازل شوي دي | په علم دالله سره | او دا چي

نوکه دوئ داکار اونکړي شى | نو يقين اوکړئ چي دا [کتاب] دالله ﷻ په علم [او په قدرت] راغلي دي

لَّا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَهَلْ أَنْتُمْ مُّسْلِمُونَ ﴿۱۴﴾

نشته | لائق دعبادت | مگر | [هم] هغه دي | نوآيا | يئ تاسو | تابعدارى کونکي |

اودا چي دالله ﷻ نه سوا بل معبود نشته | نو آيا تاسو [اوس هم] نه مسلمانيږئ |

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

او كله چه مونږ انسان ته د رحمت مزه وڅكوو . او بيا ترې هغه واپس واخلو نو دې نا اميده (او) ناشكره شي او كه ده ته د تكليف رسيدو نه وروستو مونږه ده ته د نعمتونو مزه وڅكوو . نو دې وائي چه ټول تكليفونه څما نه لرې شول (دغه وخت) دې خوشحاله وي او لوئې كوي. خو كوم خلق چه د صبر نه كار اخلي او نيك عمل كوي . هغوی داسې نه دي هغوی ته به مغفرت او لوئې اجر ملاويږي. بيا (اې پيغمبره !) په تا چه كومه وحی نازليږي آيا دا ممكنه ده چه ته د هغې څه حصه پريږدې؟ او دې سره ستا سينه تنګه شي؟ څكه چه دا خلق وائي چه دی (محمد صلی الله عليه وسلم) ته څه خزانه ولې رانغله يا څوك فرښته ولې ده ته رانغله ؟ "ته خو يو خبرونكې ئې، او الله په هر يو څيز مكمل اختيار لری آيا دا خلق دا وائي چه دا وحي دې (پيغمبر) د ځان نه جوړه كړې ده ؟ (اې پيغمبره ! ته دوی ته) ووايه چه : تاسو ددې په شان لس سورتونه د ځان نه جوړ كړې شوې راوړئ او (دې كار كښې د مدد دپاره) چه د الله نه سوا څوك رابللې شئ نو راوبلئ . كه تاسو رښتينی يئ كه دې نه وروستو دوی ستاسو خبره قبوله نه كړې نو (اې خلقو !) تاسو يقين وكړئ چه دا وحی صرف د الله په علم باندې راغلې ده او دا چه د الله نه سوا بل هيڅوك د عبادت لايق نشته. آيا تاسو تابعدار جوړيږئ؟

### خلاصه تفسير :

﴿ وَلَئِنْ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنٰهَا مِنْهُ ۚ اِنَّهٗ لَيَئُوْسٌ كَفُوْرٌ ۝ ﴾ او كه مونږ انسان ته دخپلی مهربانی مزه اوڅكو او بيا ئې تر واخلو واخلونودی نااميده اوناشكره شی.

﴿ وَلَئِنْ اَذَقْنٰهُ نَعْمَآءَ بَعْدَ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُوْلَنَّ ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ عَنِّيْ ۭ اِنَّهٗ لَفَرِحٌ فَخُوْرٌ ۝ ﴾ او كه ده ته دځه تكليف نه پس كوم چه پده واقع شوی وي دڅه نعمت مزه وڅكو نوداسی خوشحاليږی چه وائی چه څماټول درد اوتكليف رخصت شواواوس به بيخي رانشی پس دی خوشحالی كوی فخر كوي.

﴿ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ۝ ﴾ مګر كوم خلق چه مستقل مزاج دي اونيك كارونه كوي مراد تری مومنان دي چه په دوی كښی لږاوډير داخوبونه وي پس دوی داسی نه وی بلكه دنعمت دلری كيدوپه وخت كښی صبر كوي اودنعمت په وخت كښی شكر اوحكم په ځای راوړي پس دداسی خلقولپاره لوی مغفرت اولوی اجردی خلاصه داچه سوادمومنانونه اكثرخلق داسی دي چه په لږشان وخت كښی زږورکيږي اوپه لږشان وخت كښی نااميده كيږی پدي وجه دغه خلق دعذاب دوروسته كيدوله وجی بی وېری اومنكرشو ،داخلق كوم چه انكاراومسخري كوی.

﴿ فَلَعَلَّكَ تَارِكٌۢ بَعْضَ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ وَضَاۗىِٕقٌۢ بِهٖ صَدْرُكَ اَنْ يَّقُوْلُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ اَوْ جَاۗءَ مَعَهٗ مَلَكٌ ۭ ﴾ پس شايد چه ته تنګ شي ددی احكامونه كوم چه تاته دوحی په ذريعه ليږلی شی بعضولره يعنی تبليغ لره پريخودل غواړی يعنی آياداسی ممكنه ده چه ته تبليغ پريږدي پس ښكاره خبره ده چه ته داسی اراده كله هم نكوي بيادتنګيدونه څه فائده ده اوستازړه پدی خبره تنګيږی چه دوی وائی چه كه چيری دانبی دې نوپه ده څه خزانه ولی نازله نه شوه يادده سره كوم فرښته چه خمونږسره ئی هم خبري كولی ولی رانغله يعنی داسی معجزی ولی ورته ورنه كړې شوي.

﴿ اِنَّمَآ اَنْتَ نَذِيْرٌ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ۝ ﴾ په داسی خبروته مه خفه كيږه څكه چه ته خوپه اعتبار د كفارو صرف ويروونكی ئی يعنی پيغمبر ئي په كوم كښی چه په اصل كښی دهيڅ معجزي

ضرورت نشته اوکامل اختیارلرونکی صرف الله دی ته نه ئی هر کله چه خبره داسی ده نوددی معجزوظاهرول ستاپه اختیارکښی ندی بیاددی فکر کول اوپه دی فکرسره تنګیدل ولی دی ،اوچونکه دپیغمبردپاره دمطلق معجزې ضرورت دی اوستالویه معجزه قرآن ده نوددي دنه منلو څه وجه ده.

﴿ اَمْ یَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهٖ مُفْتَرَیٰتٍ وَّادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ۝ ﴾ آیا[دده په نسبت] داسی وائی چه[ نعوذبالله] تاده لره[ دخپل خان نه] جوړ کړیدی ته په جواب کښی ووایه چه [که چیرې داخماجوړ کړې شوی وی] نو[تبه ده] تاسوهم ددی په شان لس سورتونه [کوم چه ستاسو] جوړشوی [ وی] راوړئ او[دخپل مددلپاره] کوم کوم غیرالله لره چه رابللی شی راوبلئ که تاسورشتوني یئ .

﴿ فَاِلَّمْ یَسْتَجِیْبُوْا لَكُمْ فَاعْلَمُوْۤا اَنَّمَاۤ اُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَاَنْ لَّاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ۝ ﴾ بیاداکفارکه ستاسوخلقو[یعنی پیغمبر ﷺ اومومنانودا]خبره[ چه ددی مثل جوړکړي راوړئ] ونه کړې شی نوتاسو[دوی ته ووائی چه اوس خو]یقین وکړئ چه داقرآن دالله په علم اوقدرت سره نازل شوی دی [یدي کښی دبل چادعلم اوقدرت] دخل نشته اودا[هم یقین وکړئ] چه دالله نه غیربل معبودنشته[ ځکه چه معبود دخدائی توب په صفتونوکښی کامل وي بیاکه بل څوك هم وئ دهغه قدرت به هم کامل وو اوبدغه قدرت سره به هغه ستاسومددکولوچه تاسوبه دده مثل راوړی وؤ ځکه چه ددین دتحقیق موقع ددی مقتضی وه پس ددی دمثل دجوړولونه ددوی په عاجزه کیدوسره رسالت اوتوحیددواړه ثابت شو ،]نواوس هم اسلام راوړئ[ اوکه نه ] .

## معارف او مسائل

په دې بیان شوې آیتونو کښې د رسول الله ﷺ د پیغمبرۍ ربښتینوالی او په دې باندې د شبهو کوونکو جواب بیان شوې دی او د دې په شروع یعنی په ړومبو درې آیتونو کښې د انسان د یو خراب عادت بیان او مسلمانانو ته د دې نه د ځان ساتلو هدایت کړې شوې دې، په ړومبو دوو آیتونو کښې دا بیان راغلې دې چه انسان په فطری دول باندې غیر مستقل مزاج، تادی پسند او په موجوده(حال)حالت کښې داسې لګیا کیدل چه ماضی او مستقبل هیر کړی، بیان کړې شوې دی، ارشاد دې چه که مونږ انسان ته څه نعمت اوڅکوو او بیا ئې ترې واپس واخلو نو هغه همت باتیلونکې، ناامیده او ناشکره جوړ شی او که ده ته د راپیښیدونکی تکلیف نه پس د څه نعمت مزه اوڅکوو نو وائی چه زما ټول غم درد ختم شو نو هغه لوټی کوی او لافې وهی.

مطلب دا دې چه د انسان په فطرت کښې جلدی پرته ده، وړاندې روستو هیڅ ته نه ګوری او اوسنې حالت هر څه ګڼړی، انسان وړاندې روستو حالاتو ته نه ګوری، وړاندې روستو واقعاتو باندې غور نه کوی، او د دې د یادولو عادت نه لری، په دې وجه د نعمت نه پس چه ورته څه تکلیف راپیښ شی نو د رحمت نه ناامیده شی او ناشکری کول شروع کړی، دا خیال نه کوی چه کوم ذات راته ړومبې نعمت راکړې وو هغه بیا راکولې شی، دا شان که تکلیف او مصیبت نه پس ورته څه آرام او نعمت ملاو شی نو په ړومبی حالت باندې د ژور نظر اچولو په وجه الله تعالی ته د رجوع کولو او د هغه د شکر ادا کولو په ځاې نوره زیاته لوټی او فخر کول شروع کړی، ړومبې حالت هیر کړی او دا ګڼړل شروع کړی چه دا نعمت خو هم زما حق دې، ما ته د دې ملاویدل پکار وو او زه به هم دا شان همیشه د پاره پاتې کیږم، غافل دومره خیال نه کوی چه

ځنګه رومبې حالت باقي پاتې نه شو دغه شان دا موجوده حالت هم په ځاې نه شي پاتې کيدې او دا نعمت او راحت رانه رخصتيدې شي؛

چنان نماند و چنين نيز هم نخواهد ماند [چه هغسې حالت په ځاې پاتې نه شو نو داسې حالت هم په ځاې نه شي پاتې کيدې]

د انسان موجود پرستي او ماضي مستقبل هيرول دې حالت ته رسيدلې دى، چه د رومبي اقتدار کونکو په خاورو او وينو د پاسه بل کس د خپل اقتدار بنياد ازدى، او چرې لاندې نه ګوري چه زما نه رومبې اقتدار کوونکې به هم دغسې اوسيدو او په مخه د خپل اقتدار په نشه کښې د انجام نه بې خبره مزې اخلي.

د دې موجود پرستې او مستې د اصلاح د پاره د الله تعالى کتابونه او پيغمبران راغلي دي چه انسان ته ئې د ماضي عبرتناکې واقعې رايادې کړې او د مستقبل فکر ئې ورته راوړاندې کړې دې او دا سبق ئې ورته ښودلې دې چه بد ليدونکو حالاتو باندې ژور نظر واچوې او اوګورې چه کوم يو طاقت د دې په پرده کښې کار کوى لکه شيخ الهند رحمه الله فرمائيلې دى؛

انقلابات جہاں واعظ رب ہیں دیکھو ہر تغیر سے صدا آتی ہے فافہم فافہم (۱)

[په دنيا کښې تبديلي راتلل د الله تعالى د اړخه نصيحت کونکى دى، د هر بدلون نه دا آواز راځي چه پوهه شه، پوهه شه]

کامل مومن بلکه کامل انسان هم هغه دې چه د هر بدلون او انقلاب هر غم او راحت کښې د قدرت د پټ لاس ننداره اوکړى، موجوده راحت اوغم او صرف د دې په اسبابو پورې دې زړه نه تړى، د عقلمند کار دا دې چه د اسبابو نه زيات مسبب الاسباب ته اوګورى او هم هغه سره خپله رشته مضبوطه کړى.

په دريم آيت کښې کامل انسانان د عام انساني فطرت نه مستثني او بيل ښودلې شوې دى چنانچه فرمائي؛ ﴿إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ [يعنى د دې دوو صفتونو خاوندان دوى نه بيل دى چا کښې چه صبر او عمل صالح بيا پيدا شي.

لفظ د صبر په عربې ژبه کښې د نورو ژبو په نسبت په عامه معنى کښې استعماليږي، د صبر اصلي معنى تړل او ايسارول دى، د قرآن او سنت په اصطلاح کښې صبر دې ته وئيلې شي چه نفس لره د دې د ناجائز خواهشاتو نه ايسار لرى، په دې بنا دصبر مفهوم دا شو چه ګناهونو او خلاف شرع کارونو نه پرهيز کول، او په عمل صالح کښې ټول فرض، واجبات، سنت او مستحبات راغلل، معنى ئې دا شوه چه د عام انساني کمزورئ نه داسې خلق محفوظ شو چه په الله تعالى باندې ايمان لرى د قيامت د حساب کتاب د يرې په وجه هر داسې څيز نه ځان ساتي چه الله تعالى او رسول الله ﷺ ئې نه خوښوى، هر داسې عمل ته ورمنده کوى چه الله تعالى او رسول الله ﷺ پرې خوشحاليږى.

د دې آيت په آخر کښې د داسې کاملو انسانانو جزا او بدله دا ښودلې شوې ده؛ ﴿أُولَٰئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ﴾ [الله تعالى وعده کوى چه د داسې خلقو ګناهونه به بخښلې شي او د دوى د نيک عمل بدله به ورته ډيره لويه ملاويږى]

---

(۱) ترجمه: فافهم، فافهم مطلب دا دے چه پوهه شه، پوهه شه

دلته په دې خبره باندې هم ژور نظر کول پکار دي چه د دنيوي نعمت او تکليف د پاره د ﴿أَذَقْنَهُ﴾ لفظ قرآن کريم استعمال کړو، دې سره اشاره دې ته او شوه چه دلته د نعمت او تکليف صرف څکل دي، اصلي نعمت او تکليف د آخرت دې، د دنيا راحت او نعمت مکمل نه دې او نه ئې غم او تکليف مکمل دې بلکه د څکلو او نمونې په درجه کښې دي، د پاره د دې چه انسان ته د آخرت د نعمتونو او تکليفونو څه اندازه اوشي، په دې وجه د دنيا راحت او آرام څه د زيات خوشحاليدو څيز نه دې او نه د دې ځاې غم او مصيبت باندې ډير زيات غمژن کيدل پکار دي، که ژور نظر اوکړې شي نو د نن صبا په اصطلاح کښې دا ټوله دنيا د آخرت شو روم دې چه په کښې د راحت او تکليف صرف نمونې ايښودې شوې دي.

څلورم آيت د يوې خاص واقعې په باره کښې نازل شوې دې واقعه داسې وه چه د مکې مکرمې مشرکانو د رسول الله ﷺ په وړاندې يو څو مطالبې پيش کړې، يوه مطالبه ئې دا وه چه هر کله په قرآن کريم کښې زمونږه بتانو ته خراب وئيلې شوې دی څکه مونږ په دې قرآن ايمان نه شو راوړې، د دې بندوبست دې داسې اوکړې شي چه يا خو بل قرآن راوړئ يا په دې کښې څه بدلون يا ترميم اوکړئ لکه قرآن کريم په بل يو ځاې کښې فرمائي، ائت بقرآن غير هذا او بدله [بغوي او مظهري] (۱) بله مطالبه ئې دا وه چه مونږه به دې هله رسول منو چه يا خو د دنيا د بادشاهانو په شان درباندې څه خزانه نازله شي چه مونږه ټولو ته په کښې برخه راکړې شي، دريم دا چه يا دې يو فرشته د اسمان نه راکوځه [راکښته] شوې تاسو سره دې د پاره گرځي چه ستاسو د پيغمبرئ رښتينولي ښکاره کوي.

رسول الله ﷺ د دې بيهوده فرمائشونو نه زړه تنگې شو، ولې چه رحمة للعالمين ﷺ دوی لره د دوی په حال [کفر او شرک] باندې پرېښودل هم نه شو کولې، د دوی د ايمان راوړلو فکر ئې زړه نه نه شو اوښکلې، او دا هم نه شو کيدې چه د دوی بې سره او بيهوده فرمائشونه دې پوره کړي، څکه چه اول خو دا خالص په بې عقلې باندې ولاړ فرمائشونه وو، يعنی که بتانو او بت پرستې او نورو ناکاره څيزونو ته ناکاره او نه وئيلې شي نو هدايت به څه وی او پيغمبرئ سره د خزانې څه تړون کيدې شي؟ دغې خلقو پيغمبرې په بادشاهئ باندې قياس کړه خو د الله تعالی دا دستور نه دې چه د خلقو د ايمان راوړلو د پاره مادي اسباب برابر کړي او په دې شان ايمان راوړلو ته مجبوره کړې شي ورنه هسې خو ټول جهان د الله تعالی په قبضه قدرت کښې دې، د چا به څه مجال وو چه د الله تعالی د مرضې خلاف ئې څه عقيده اختيار کړې وې يا څه عمل ئې کړې وې، خو هغه په خپل حکمت بالغه سره دا دنيا د امتحان ځاې جوړ کړې دې، دلته د نيکئ په عمل کولو باندې يا بدې نه ځان ساتلو باندې د مادی اسبابو په ذريعه څوک نه شی مجبورولې، البته د اسمانی کتابونو او رسولانو په ذريعه د نيک او بد ښه او خراب بيلتون او د هغې د نتيجې په ښودلو سره نيکې کولو او بدو نه ځان ساتلو د پاره خلق تيارولې شی، که د معجزې په ډول د رسول الله ﷺ سره څوک فرشته د رسول الله ﷺ د تصديق د پاره مقرر وې او بيا هم چا نه منلې نو سمدستی به پرې عذاب راتلو، دا به هم په ايمان باندې د مجبوره کولو يو صورت وو او ايمان بالغيب به په کښې نه وو کوم چه د ايمان اصلي روح دې، بلکه د انسان اختيار به په کښې نه وو کوم چه د عمل اصلي روح دې.

(۱) تفسير البغوی تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۳۲۵، والتفسير المظهري: ج ۵، ص ۵۱

یو اړخ ته د دوی فرمائشونه لغو او بیهوده وو او بل اړخ ته رسول الله ﷺ ته داسې فرمائشونه کول د دې خبرې دلیل وو چه دا خلق د رسول الله ﷺ او نبی په حقیقت نه پوهیږی د رسول ﷺ او خدائ تر منځه فرق نه شی کولې، رسول لره د الله تعالی په شان قادر مطلق ګڼړی ځکه رسول الله ﷺ ته د داسې خبرو فرمائشونه کوی کوم چه د الله تعالی نه سوا بل هیڅوک نه شی کولې.

غرض دا چه رسول الله ﷺ د دوی د داسې فرمائشونو نه سخت دلګیر او خفه شو نو د رسول الله ﷺ د تسلئ او د دوی د خیالاتو د اصلاح کولو او سمون راوستو د پاره دا آیت نازل شو، په دې کښې اول رسول الله ﷺ ته په خطاب کولو سره اوفرمائیلې. شو چه آیا تاسو به د دوی په ویناسره د قرآن کریم د څه برخې په پریښودو باندې مجبوره شې کومه برخه ئې چه د دوی خوښه نه ده، مثلاً د بتانو بې وسی او مجبوری بیانول به پریږدئ او دا وئیل به نه غواړئ چه دا بتان په هیڅ څیز نه شی قادریدلې؟ او الله تعالی دا هم اوفرمائیل چه آیا تاسو د دوی په فرمائشونو کولو سره زړه تنګی کیږئ؟

په ﴿فَلَعَلَّكَ﴾ لفظ سره د دې مضمون د تعبیر کولو مطلب دا نه دې چه په حقیقت کښې په رسول الله ﷺ باندې دا ګمان کیدې شو بلکه دې نه مقصود، د دغې څیزونو نه د رسول الله ﷺ ویزاری بیانول دی، مطلب ئې دا راوځی چه د دوی په خاطر رسول الله ﷺ خو نه د قرآن کریم څه برخه پریښودې شی او نه د دوی په فرمائشونو سره تنګیدل پکار دی، د نذیر [یرونکی] تخصیص د مخاطب د خصوصیت په وجه ورکړې شو ولې چه کافران هم د یرولو حقدار دی، ورنه څنګه چه رسول الله ﷺ نذیر دې هغسې بشیر [زیرې ورکونکې] هم دې چه نیکانو خلقو ته زیرې ورکوی، دې نه علاوه نذیر په حقیقت کښې هغه یرونکی ته وئیلې شی چه د شفقت او محبت په بنا، د خرابو او ضرری څیزونو نه یرول کوی ځکه د نذیر په مفهوم کښې د بشیر مفهوم هم شامل دې.

تر دې پورې آیتونو کښې د مشرکانو د طرف نه د خاص قسم معجزو مطالبه وه وروسته آیتونو کښې دوی په دې خبره باندې خبردار کړې شوې دی چه د رسول الله ﷺ د قرآن کریم معجزه داسې یو معجزه ده چه ستاسو مخې ته راغلې ده، چه د هغې د معجزه کیدو نه تاسو هم انکار نه شې کولې اوس که د معجزو دا مطالبه په نیک نیتئ سره دې غرض د پاره وی چه د رسول الله ﷺ رښتینې حقانیت معلوم کړې شی نو دا خو پوره شوې ده او که خالص د ضد د وجهې نه وی نو که ستاسو دغه غوښتلې معجزې هم اوښولې شی بیا به هم دا ضدیان اسلام نه قبلوی، په هر حال قرآن کریم داسې یو ښکاره معجزه ده چه انکارترې نه شی کیدې، په دې بنا د کافرانو او مشرکانو کوم غلط شبهات چه اوکړې شو هغه په وروسته دوو آیتونو کښې داسې رد کړی شو چه دا خلق وائی چه رسول الله ﷺ پخپله د خپله ځانه قرآن کریم جوړ کړې دې د الله تعالی کلام نه دې.

د دې په جواب کښې الله تعالی فرمائی چه ستاسو په خیال که دا قرآن کریم رسول الله ﷺ پخپله د ځانه جوړولې شی نو تاسو هم د دې په شان صرف لس سورتونه د ځانه جوړ کړې او اوښائې او دا هم ضروری نه دی چه دا لس سورتونه دې یو کس جوړ کړی بلکه د ټول جهان خلق دې په جمع دا جوړ کړی، که داسې او نه کړې شی نو تاسو ﷺ اوفرمائې چه اوس خو حقیقت واضح شو، ولې چه که دا قرآن د چا انسان کلام وې نو نورو خلقو به هم داسې کلام جوړولې

شو ، چه ټول هم د دې نه پاتې راغلل نودا د دې خبرې قوي دليل دې چه دا قرآن يواځې د الله تعالى په علم سره نازل شوې دې چه په کښې د لږ کمي زياتي ګنجائش هم نشته او د انساني طاقت نه په ډير زيات پورته حد کښې دې.

دلته قرآن کريم د لس سورتونو جوړولو ارشاد کړې دې او بل ځاې کښې ئې د يو سورت جوړولو او په مقابله کښې ئې د پيش کولو ارشاد کړې دې،د دې وجه دا ده چه اول کښې لس سورتونو جوړولو چيلنج ورکړې شوې وو چه د دې نه عاجزه شو نو د دوی د زياتې عاجزۍ ښکاره کولو د پاره ئې ورته د يو سورت جوړولو چيلنج ورکړو لکه سورت بقره کښې فرمائي [که تاسو دا قرآن د يو انسان کلام بولې نو ښه ده،داسې يو سورت خو تاسو هم جوړ کړئ]

سره د دې هغوی په مقابله کښې هيڅ پيش نه کړې شو په دې لحاظ سره هم ثابت شو چه قرآن کريم خالص د الله تعالى کلام دې او معجزه ده ځکه په آخر کښې فرمائي ﴿فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ [ايا تاسو به اوس هم مسلمانان او فرمانبردار بندګان جوړيږې يا د غفلت په خوب کښې به اوده پاتې کيږې؟

| |
|---|
| مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ |
| هغه څوک چې غواړي \| ژوند د دنيا \| او ښائست دهغې \| انو پوره ورکوو مونږ \| هغوی ته \| جزا دعملونو دهغوی |
| څوک چې ددې دنيا ژوندون اود دې رونق غواړي انو مونږ به ورته د هغوی عملونه هم په دې دنيا کښې ورپوره کړو |
| فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ۝ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ |
| په دې کښې \| او هغوی ته به \| په دې دنيا کښې \| کم نۀ شي ورکولې \| دا ډله \| هغه خلق دي |
| او د هغوی سره به په دې دنيا کښې لږ شان کمي هم نۀ کيږي \| دا هغه خلق دی چې په |
| لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا |
| چې نشته \| دوی دپاره \| په آخرت کښې \| مګر \| اور \| او برباد شو \| هغه څه \| چې جوړ کړي وو دوی |
| آخرت کښې د دوی دپاره د اور نه سوا بل هيڅ نشته \| او هر څه چې ئې په دنيا کښې کړي دي هغه |
| فِيهَا وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝ أَفَمَن كَانَ |
| په دې دنيا کښې \| او باطل دی \| هغه ټول \| چې وو دوی \| چې کول به ئې \| آيا نو هغه څوک \| چې وی |
| به دوی دپاره په آخرت کښې بې کاره او بې قيمته ثابتيږي \| ........ نو آيا کوم کس چې |
| عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِ وَيَتْلُوهُ شَاهِدٌ |
| په واضح دليل باندې \| د طرفه درب خپل نه \| او روستو روستو راځي په دغه دليل پسې \| يو ګواه |
| دخپل پروردګار په ښکاره دليل قائم وی \| او د هغه سره يو آسماني ګواه هم د هغه د طرفه وی |
| مِّنْهُ وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً ۚ أُولَٰئِكَ |
| د طرفه دالله نه \| او مخکښې ددې نه وی \| کتاب دموسی \| په طور د پيشوا \| او د رحمت \| داکسان چې دی. |
| او دۀ نه وړاندې دحضرت موسی ﷺ کتاب وی \| چې پيشوا او رحمت دې \| نو آيا دوی به په قرآن ايمان نۀ راوړي؟ \| هم دا خلق |

Scanned with Ca

| |
|---|
| يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ مِنَ الْاَحْزَابِ فَالنَّارُ |
| ايمان راوړی \| په دې باندې \| او هغه څوك چې انكار ئې اوكړو \| د دې نه \| د [نورو] ډلو نه \| نو اور |
| خو په قران پاک ايمان راوړی \| او د نورو فرقو نه چې څوک د دې نه منكر وی \| نو د هغه د پاره |
| مَّوْعِدُهٗ ۚ فَلَا تَكُ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۚ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ |
| ځائې دوعدې د هغه دې \| نو مه كيږه ته \| په شك كښې \| د دې نه \| بيشكه دا \| حق دې \| د طرفه د رب ستا نه |
| مقررشوې ځائې اور دې \| نو ته په دې باره كښې په شک شبهه كښې مه پريوزه \| بيشكه دا كلام |
| وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ |
| وليكن \| زيات د خلقو نه \| ايمان نه راوړی \| |
| ستا د رب د طرفه حق دې \| خو زيات خلق پرې ايمان نهٔ راوړی \| |

## آسان ترجمه قرآن

او څوك چه (صرف) د دنيا ژوند او د دې ښائست غواړی نو مونږ به د دوی د اعمالو پوره بدله دوی ته دنيا كښې وركړو، او دلته به د دوی په حق كښې څه كمې ونكړې شي دا هغه خلق دې چه دوی د پاره په آخرت كښې د دوزخ نه سوا نور هيڅ هم نشته، او څه چه دوی كړی دی هغه به آخرت كښې بيكاره شي، او دوی چه كوم عمل كوي (د آخرت په لحاظ سره) ليشت دې) ووايه چه هغه كس (د دوی برابر څنګه كيدې شی) چه د خپل رب د طرف نه راغلی شوی په ښكاره هدايت (يعنی قرآن) باندې وي، او دې نه وروستو د دې د حقانيت يو ثبوت خو خپله همدې كښې راغلې دې او دې نه مخكښې د موسیٰ عليه السلام كتاب هم (د دې د حقانيت ثبوت دې) چه د خلقو د پاره قابل د اتباع او سبب د رحمت دې. دا سې خلق په دې (قرآن) ايمان لري. او دې ډلو كښې چه څوك انكار كوي، نو د هغه ځائې دوزخ دې نو د دې (قرآن) په باره كښې څه شك كښې مه پريوځه. يقين وكړه چه دا ستا د پروردګار د طرف نه راغلې دې، ليكن اكثر خلق ايمان نه راوړی.

## خلاصه تفسير:

﴿ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا نُوَفِّ اِلَيْهِمْ اَعْمَالَهُمْ فِيْهَا وَهُمْ فِيْهَا لَا يُبْخَسُوْنَ ۝ ﴾ څوك چه د خپلو [نيكو اعمالونه] محض د دنيا د ژوند [نفع] او د دې ښائست غواړي [ لكه شهرت نيك نامی جاه او جلال او د آخرت ثواب حاصلول د ده نيت نه وي] نو مونږ به دې خلقو ته د دوی عملونه [يعنی جزائی] دوی ته په دنيا كښې په پوره طور وركوو او د دې لپاره به دنيا كښې هيڅ كمۍ نه وي [يعنی په دنيا كښې دوی ته د دوی د عملونو بدله نيك نامی صحت فراغت خوشحالي او ډير مال او اولاد وركولې شي هر كله چه د دوی د عمل اثر په بی عملۍ باندې غالب وي او كه بی عملی غالبه وی نو بيا دا اثر نه مرتب كيږي دا خو د دنيا بدله ده او د آخرت نو بس].

﴿ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا النَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوْا فِيْهَا وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ ﴾ دا دا سې خلق دي چه د دوی لپاره په آخرت كښې غير د دوزخ نه نور څه [ ثواب وغيره] نشته او چه څه ئې كړي وو [تول ]په آخرت كښې ناكاره [ثابت] شو [او په واقع كښې خو] چه څه كوي هغه [ اوس هم ] بې

اثره دی [په وجه دفساددنیت مگر دظاهری صورت په اعتبارسره ثابت گڼلی شی په آخرت کښی
به داثبوت هم زائله شی].
﴿ اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ وَيَتْلُوْهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ ﴾ آیادقرآن نه منکرداسی سړي په شان کیدې شی
څوك چه په قرآن قائم وي کوم چه دده درب دطرف نه راغلی دی اوددی [قرآن] سره یوگواه
خوږدي کښی موجود دی[ یعنی ددي معجزوالی کوم چه عقلی دلیل دی].
﴿ وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰۤى اِمَامًا وَّرَحْمَةً ؕ اُولٰٓئِكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ مِنَ الْاَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهٗ ۚ فَلَا تَكُ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۗ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴾ اوددی نه مخکی[ یعني] دموسی [علیه السلام]
کتاب [یعنی تورات ددی سره دشهادت دپاره موجود] دی کوم چه داحکاموخودلوپه اعتبار
سره امام دی او[په احکاموچه کومه ثمره اوثواب میلاویږي ددی په اعتبارسره دغه کتاب سبب
د]رحمت دی [اوداد لیل نقلي دی غرض دقرآن دصدق اوصحت لپاره عقلی اونقلی دواړه دلائل
موجود دي نوددی دلیلونوپه سبب سره] داسی خلق چه[ ذکرئی وشوچه دغه صاحب بینه دی]
په دی قرآن ایمان لری [اودکفاروداحال دی چه] کوم سړی دنوروفریقونه ددی قرآن نه انکار
وکړي نودوزخ دده دوعدی ځای دی نومنکر[ دقرآن دقرآن دتصدیق کوونکی سره کله برابریدی
شی] نو[ای مخاطبه] ته دقرآن نه په شك کښی مه پریوځه بیشکه اوبی شبهې دارشتونی کتاب
دی ستاسودرب دطرف نه[ راغلی دی] لیکن سره ددومره دلیلونونه غضب دادی چه ډیرخلق
ایمان نه راوړي ـ

## معارف او مسائل

د اسلام مخالفینو ته به چه کله د عذاب وعیدونه اورولې شو نو هغوی به خپل خیر،خیرات،د
مخلوق خدمت او د عامو خلقو د فائدې خپل کارونه پیش کول چه هر کله مونږه داسې ښه
کارونه کوو نو عذاب به راباندې ولې راځی؟څنګه چه اوسنی ناخبره مسلمانان هم په دې شبه
کښې گرفتار ښکاری او داسې کوی چه د کوم کافر ظاهری عملونه او خوبیونه ورته ښه
ښکاری،دغه کافر د خلقو خدمت کوی،خیر خیرات ورکوی،سړکونه،پلونه هسپتالونه د اوبو
سبیلونه جوړوی او چلوی ئې هغه لره د مسلمانانو نه ښه بولی نو د دې جواب د اوسنی آیتونو
نه په رومبی آیت کښې ورکړې شوې دې.
د جواب خلاصه دا ده چه هر هغه نیک عمل به قبلیږی او د آخرت د خلاصی ذریعه به جوړیږی
چه خالص الله تعالی د پاره کړې شوې وی،د الله تعالی د پاره کول به هغه معتبر دی چه د رسول
الله ﷺ په ښودلې طریقه کړې شوې وی،نو څوک چه په الله تعالی او د هغه په رسول ﷺ باندې
ایمان نه لری د هغه عملونه او اخلاق یو بې روحه لاش دې چه د ورایه یو روغ جوړ او ښکلې
ښکاری خو هر کله چه بې روحه دې نو په آخرت کښې به هیڅ وزن او شان نه لری،البته په دنیا
کښې چونکه د دې نه خلقو ته فائده رسی،او د ظاهری شکل په لحاظ سره دا نیک عمل
دې،دې وجهې نه الله تعالی په خپل کمال عدل او انصاف سره دا هم بالکل ضائع نه کړو بلکه د
دې د کونکی هغه مقصد به تر سره کړی کوم چه هغه خپلې مخې ته لرلې وو،مثلا مقصد ئې دا
وو چه په دنیا کښې دې خلق زما عزت اوکړی،خلق دې راته سخی او ښه خوان اووائی،لوئې
سړې مې اوګڼړی د دنیا دولت،روغتیا او آرام مې نصیب شی،څکه ورته الله تعالی هم په دنیا
کښې دا ټول هر څه ورکوی،د آخرت خیال فکر او غرض ئې په دې کښې نه وو او دغه بې روحه

Scanned with CamScanner

عمل د آخرت د نعمتونو قیمت نه شو جوړیدې ځکه به ورته د آخرت هیڅ بدله د دې نه شي ورکولې، د کفر او نافرمانۍ په وجه به جهنم کښې پاتې کیږي، دا د ړومبي آیت د مضمون خلاصه ده، اوس ئې الفاظو ته اوګورئ فرمائي؛ څوک چه په مخه د دنیا د ژوند او د دې د رونق اراده لري نو مونږه ورته د دغې عملونو بدله هم په دنیا کښې سر په سر ورکوو، هغوی د پاره به په دنیا کښې هیڅ کمې نه وي، دا داسې خلق دي چه په آخرت کښې به ورله سوا د دوزخ نه بل هیڅ نه وي.

دلته د ﴿مَنْ كَانَ اَرَادَ﴾ په ځاې د ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ﴾ لفظ راوړې شو چه په جاري والي باندې دلالت کوي، دې نه معلومه شوه چه دا حال یواځې د هغه خلقو دې چه په خپلو عملونو او ښو کارونو باندې صرف د دنیا د فائدو طلبګار او خواهشمند وي او آخرت ته ئې د سره فکر نه ځي، البته څوک چه د آخرت فکر لري د هغه ځاې د خلاصی د پاره عمل کوي خو ورسره د دنیا څه اراده هم اوکړي نو هغه په دې کښې داخل نه دې.

د تفسیر امامان ﷭ په دې کښې اختلاف لري چه دا آیت د کفارو په باره کښې دې که د مسلمانانو په باره کښې، یا د کافرانو او مسلمانانو دواړو په باره کښې دې؟ په دې بنا د آیت آخرې جملې ته چه اوګورو لکه فرمائي[په آخرت کښې به دوی د پاره سوا د دوزخ نه بل څه نه وي] دا نه دا خبره څرګندیږي چه دا خالص د کفارو په باره کښې ځکه دې چه مسلمانان که څومره هم ګناهګار وي د ګناهونو د سزا تیرولو نه پس به خامخا جنت ته ځي، دا قول د ضحاک وغیره دې.

بعضې حضراتو ترې هغه مسلمانان مراد اخستي دي چه په خپلو نیکو عملونو سره صرف د دنیا ښیګړې، آرام، عزت او دولت طلبګار وي، نیک عمل هم په دې نیت سره کوي چه په دنیا کښې ورته عزت او آرام ملاو شي، په دې بنا به د دغې جملې مطلب دا وي چه د خپلو خرابو عملونو د سزا تیرولو پورې به سوا د دوزخ نه ورته بل هیڅ نه ملاویږي.

خو زیاته غوره او ښکاره خبره دا ده چه دا آیت د هغې خلقو په باره کښې دې چه د نیکو عملونو کولو نه غرض ئې صرف د دنیا فائدې، دولت، عزت او صحت وغیره وي، خوا داسې خلق کافران وي چه د سره آخرت نه مني یا مسلمانان وي چه په خله خو آخرت مني مګر په عمل کښې د دې فکر نه لري، بلکه ټوله مخه ئې د دنیا فائدو حاصلولو ته وي، دا قول د مجاهد، میمون بن مهران او معاویه ﷢ [مفسرینو] دې.

چنانچه د رسول الله ﷺ د مشهور حدیث[انما الاعمال بالنيات](۱) نه هم د دې تائید کیږي، د حدیث معنی دا ده چه[هر چا ته به په خپل عمل باندې هم هغه څیز ملاویږي چه په دې سره ئې د څه نیت کړې وي] یعنی د دنیا نیت چه څوک اوکړي دنیا به ورته ملاویږي او د آخرت نیت چه څوک اوکړي آخرت به ورته ملاویږي او څوک چه د دواړو نیت اوکړي دواړه به ورته ملاویږي، په نیت باندې د عملونو انحصار کیدل یو داسې اصول دي چه په هر ملت او هر مذهب کښې منلې شوې دي[قرطبي](۲)

---

(۱) صحيح البخاري، باب بدء الوحي: ج ۱، ص ۱

(۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۳۰۳

په یو حدیث شریف کښې راغلي دي چه د قیامت په ورځ به داسې خلق راوستې شي چه په دنیا کښې ئې عبادت په دې غرض کولو چه د خلقو په نظر کښې ئې عزت وی، هغوی ته به اوونیلې شي چه تاسو مونځ کولو، خیر خیرات مو ورکولو، جهاد مو کولو، د قرآن کریم تلاوت مو کولو خو دا ټول مو په دې نیت کړې وو چه تاسو ته مونځ گزار، سخی، غازی، او قاری اوونیلې شي نو څه مو چه غوښتل هغه درته ملاو شو، دنیا کښې درته همدغسې اوونیلې شو اوس مو دلته د دې عملونو هیڅ بدلې نشته او د ټولو نه رومبې به جهنم ته هم دوی ورواچولې شي حضرت ابوهریره ﷺ چه دا حدیث شریف نقل کړو نو په ژړا شو او اوئې فرمائیل چه د قرآن کریم د آیت ﴿مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا﴾ تصدیق په دې حدیث سره کیږی.([1])

د صحیح مسلم په حواله د حضرت انس ﷺ په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلې دي چه الله تعالی په چا باندې ظلم نه کوی، مؤمن چه څه نیک کار کوی هغه ته په دنیا کښې هم څه بدله ورکولې شي او په آخرت کښې به هم ورته ثواب ورکولې شي، خو کافر ته به صرف په دنیا کښې څکه د دې بدله ورکولې شي چه هغه سره د آخرت فکر بیخی نه وی څکه ورته په دنیا کښې دولت، عزت، صحت او راحت ورکولې شي تر دې پورې چه کله هغه آخرت ته اورسی نو ورسره به هیڅ نه وی چه څه بدله به پرې هلته بیا مومی.([2])

په تفسیر مظهری کښې راغلي دي چه اگر که مؤمن په دنیا کښې هم د کامیابۍ خواهشمند وی خو د آخرت اراده پرې غالبه وی څکه ورته په دنیا کښې د ضرورت په اندازه ورکولې شي او لویه بدله به ورته په آخرت کښې ورکولې شي.([3])

حضرت فاروق اعظم ﷺ یو ځل د رسول الله ﷺ مکان ته ورغلو نو هلته ئې د شمیر یو څو څیزونه اولیدل رسول الله ﷺ ته ئې عرض اوکړو چه د خپل امت د پاره هم د دې سوال اوکړې چه د دنیا فراخی پرې راولی څکه چه مونږ وینو چه د فارس او روم خلق په دنیا کښې ډیر په فراخه ژوند تیروی سره د دې چه هغوی د الله تعالی عبادت نه کوی، رسول الله ﷺ په بالښت باندې ملا لگولې ده شوې وو، نیغ [سیدها] کښیناستو او اوئې فرمائیل اې عمره؛ تر اوسه پورې په دې خیال کښې ډوب ئې؟ دا خو هغه خلق دي چه د نیکو بدله ورته په دنیا کښې ورکړې شوې ده [مظهری] ([4])

د جامع ترمذی او مسند احمد په حواله سره د حضرت انس په روایت منقول دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل؛ په خپلو عملونو کښې د چا نیت چه آخرت طلب کول وی نو الله تعالی په دنیا کښې د هغه زړه غنی کړی او د هغه ضروریات پوره کوی دنیا ورته ذلیله راځی او د چا نیت چه دنیا لټول وی نو الله تعالی ئې محتاجی مخې ته کړی چه هیڅ یو حاجت ئې کله هم نه پوره کیږی څکه چه د دنیا هوس هغه لره په آرام سره کښیناستو ته نه پریږدی د یو حاجت د پوره کیدونه وړاندې ئې بل حاجت مخې ته راځی او بې شمیره فکرونه ورسره مل شی حالانکه

---

[1]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآية: ج ۹، ص ۱۳، وجامع الترمذی، أبواب الزهد، باب ما جاء في الرياء والسمعة: ج ۲، ص ۳
[2]) صحیح مسلم، کتاب صفات المنافقین وأحکامهم، باب جزاء المؤمن بحسناته الخ: ج ۲، ص ۳۷۳
[3]) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۷۳
[4]) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۷۳، وصحیح البخاری، کتاب المظالم والقصاص، باب الغرفة والعلية المشرفة الخ: ج ۱، ص ۳۳۳

Scanned with Ca

هغه به ورته ملاویږي کوم چه الله تعالی ورله لیکلي وي.[1]

په دې آیت کښې دا فرمائیلې شوې دي چه خالص دنیوی غرض د پاره نیک عمل کوونکو ته به هم په دنیا کښې پوره پوره بدله ملاویږي په دې باندې دا شبه کیدې شي چه داسې ډیر خلق هم شته چه یو نیک کار به ئې په دنیوی غرض کړې وي او هغوی ته به پوره بدله په دنیا کښې نه وي ملاو شوې یا به ورته بیخي نه وي ملاو شوې.

جواب ئې دا دې چه دلته اجمال دې او پوره تفصیل ئې په سورت اسراء کښې داسې بیان شوې دې ﴿مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاءُ لِمَنْ نُرِيدُ﴾ یعنی څوک چه هم د دنیا اراده کوي مونږ ورته هم په دنیا کښې د هغې نقده بدله ورکوو څومره چه اوغواړو او چا ته چه اوغواړو یعنی په دنیا کښې ورله ورکول هم په دې مشروط دي چه څومره مونږ اوغواړو هومره ورکوو د هغه ټوله غوښتنه پوره کول ضروري نه دي، بلکه دا چه هغه چا ته ئې ورکوو چا ته چه زمونږ د حکمت مطابق ورکول مناسب وي هر یو غوښتونکي ته ورکول ضروري نه دي.

په دویم آیت کښې د رسول الله ﷺ او د مومنانو مخلصانو حال د هغې خلقو په مقابله کښې پیش کړې شوې دې د چا د پوهې رسائي او د مقصود انتها چه صرف دنیا وي، د پاره د دې چه دنیا اوګوري چه دا دواړه نه شي برابریدلې. دې نه پس د دې خبرو بیان دې چه د رسول الله ﷺ پیغمبري ټولو انسانانو د پاره تر قیامته پورې عامه ده او څوک چه پرې ایمان نه راوړي د هغه عملونه که هر څنګه وي نو هغه ګمراه او جهنمي دې.

په رومبي جمله کښې دا بیان دې چه د قرآن منکر د هغه چا په شان کیدې شي چه په قرآن باندې ټینګ وي چه د هغه د رب د اړخه راغلې دې او دې سره یو ګواه خو په دې کښې موجود دې او دې نه وړاندې د حضرت موسی ﷺ کتاب ګواه دې چه د اقتداء جوګه او خلقو د پاره د رحمت په توګه لیږلې شوې وو.

په دې آیت کښې د ﴿بَيِّنَةٍ﴾ نه مراد قرآن کریم دې او د ﴿شَاهِدٌ﴾ په معنی کښې د تفسیر د امامانو مختلف قولونه دي، په بیان القرآن کښې حضرت مولانا تهانوی رحمه الله دا معنی غوره کړې ده چه د ﴿شَاهِدٌ﴾ نه مراد هغه قرآني اعجاز دې کوم چه په قرآن کریم کښې پخپله موجود دې[2] نو معنی ئې دا شوه چه کوم خلق په قرآن باندې ټینګ دي او هغوی سره د قرآن د حقانیت یو ګواه خو پخپله په قرآن کریم کښې موجود دې چه هغه د قرآن اعجاز دې او بل ګواه ئې د دې نه وړاندې د تورات په صورت کښې راغلې دې کوم چه حضرت موسی ﷺ خلقو د پاره په دې شان راوړې وو چه دغه تورات د اقتداء جوګه او د الله تعالی رحمت وو، ځکه چه په تورات کښې د قرآن کریم حق کیدل ښه په ډاګه بیان کړې شوې دي.

په دویمه جمله کښې دا بیان راغلې دې چه په رسول الله ﷺ تر قیامته پورې ایمان راوړل د خلاصي او کامیابي موجب ځکه دې چه د دنیا په ټولو مذهبونو او ملتونو کښې چه څوک هم د رسول الله ﷺ د پیغمبري نه انکار کوي د هغه ټیکانه جهنم ده.

د صحیح مسلم په حواله د حضرت ابی هریرة رضي الله عنه د روایت مطابق رسول الله ﷺ فرمائیلي دي؛ په هغه ذات مې دې قسم وی د چا په قبضه کښې چه زما سا ده چه کوم یهودي یا نصراني

---

[1] ) جامع الترمذی، أبواب الزهد، باب منه، ج ۲، ص ۶۳، ومسند أحمد رقم الحديث: ۲۰۶۰۸

[2] ) بیان القرآن تحت هٰذه الآية (في ضمن الترجمة) ج ۲، ص ۲۰۸

زما دعوت اوري او سره د دې زما په راوړلی تعليماتو باندې ايمان راونه ړي نو هغه به د جهنميانو نه وي.(١)

دې سره د هغې خلقو غلط فهمی لرې کيدل پکار دی چه ډيرو يهوديانو، عيسايانو يا د بل يو مذهب خلق صرف د ظاهری عملونو په بنا باندې په حقه بولی يا داسې ګنړی چه په رسول الله ﷺ او په قرآن کريم باندې د ايمان راوړلو نه بغير صرف د هغوي ظاهری عملونه د خلاصی د پاره کافی ګنړی، ليکن داسې کول د قرآن کريم دې بيان شوی آيت او د حديث دې صحيح روايت سره ډغره وهل دی، والعياذ بالله.

| |
|---|
| وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى |
| اوڅوك دي \| لوئي ظالم \| دهغه چانه \| چي دخانه جوړوي |
| اودهغه چا نه لوئ ظالم څوك کيديشی(٢) |
| عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا أُولٰٓئِكَ يُعْرَضُوْنَ عَلٰى رَبِّهِمْ وَيَقُوْلُ الْأَشْهَادُ |
| په الله باندې \| دورغ \| داکسان چي دی \| وړاندې کړې کيږي به دوئ \| رب خپل ته \| اووائی به \| ګواهان |
| چي په الله ﷻ باندې دروغ اوتړي \| داسې خلق به خپل رب ته پيش کولې شي \| او ګواهان به |
| هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ ۚ أَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ |
| چي هم دوئ دی \| هغه کسان \| چي دروغ ئې تړلی وو \| په رب خپل باندې \| خبردار \| لعنت دالله دې |
| پرې ګواهی ورکوی \| چې دا هغه خلق دی چې پخپل رب ئې دروغ تړلی وو \| واورئ چې په ظالمانو |

١) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب وجوب الإيمان برسالة نبينا محمد صلى الله عليه وسلم: ج١، ص٨٦

٢) په الله تعالی باندې دَ بهتان تړونکو انجام رسوائی ده:- کوم خلق چه په الله تعالی باندې بهتان تړی دَ هغوی انجام به دَ قيامت په ورځ دَ ټول مخلوق په وړاندې د هغوی دَ رسوائې بيان کولې شی. مسند کښې دی چه صفوان بن محرز وائی چه ما دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما لاس نيولې وو چه يو سړې هغوی له راغلو او تپوس ئې اوکړو چه تادَ رسول الله ﷺ نه دَ قيامت باره کښې څه اوريدلی دی؟ هغوی اوفرمائيل چه ما دحضور ﷺ نه اوريدلی دی چه الله تعالی به مؤمن خپل ځان ته نيزدې کړی تردې چه خپل لاس به په هغه باندې کيږدی او هغه به دَ خلقو دَ نظرونونه پټ کړی اوبه هغه باندې به دَ خپلو ګناهونو اقرار اوکړی چه تاته فلانکې ګناه ياده ده؟ او فلانکې هم؟ دې به اقرار کوی او تردې چه اوبه ګنړی چه بس اوس هلاك شوم. هغه وخت به أرحم الرحمين فرمائی زما بنده ما په تا باندې په دنياکښې پرده اچوله واوره نن هم زه تا بخښم بيا به هغه ته دَ هغه دَ نيکو عمل نامه ورکولې شی او په کافرانو او منافقانو باندې به ګواه پيش کولې شی چه وائي به چه هم دغه دی چه په الله تعالی باندې به ئی دروغ ونيلې. ياد ساتئی چه په دې ظالمانوباندې دَ الله تعالی لعنت دې. دا حديث په بخاری او مسلم کښې هم دې. (صحيح بخاری:٢٤٤١، صحيح مسلم:٢٨٦٨) دې خلقو به دَ حق د تابعدارئی، دَ هدايت دَ لارې نه اودَ جنت دَ لارې نه خلق منع کول او خپله لاربه ئی کګه وګه لټوله او دې سره دَقيامت دَ ورځې او آخرت دَ ورځې منکر هم وو اودا به ئی هډو منل نه. يادساتئی چه دوی دَالله تعالی ماتحت دی او هغه دَ دوی نه هروخت انتقام اخستلو باندې قادردی. که غواړی نودَ آخرت نه اول به ئی په دنيا کښې راګير کړی خودَ هغه دَ طرف نه لړشان مهلت هغه ته ملاؤشوی دی.

Scanned with Ca

عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۸﴾ الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا

په ظالمانو باندې| کوم چې | منع کوی[خلق ] | د لارې د الله نه | اولټوی په دې لارې کښې

باندې دالله ﷻ لعنت وريږی | دا هغه کسان دی چې دالله ﷻ دلارې نه نور خلق منع کوی| او په هغې

عِوَجًا ۚ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۱۹﴾ اُولٰٓئِكَ لَمْ يَكُوْنُوْا مُعْجِزِيْنَ

کوږوالی| او دوی| د آخرت نه | هم دوی | منکران دی| دا کسان | نه وو دی |عاجزه کونکی[الله لره]

کښې کوږوالي لټوی | او د آخرت نه هم منکر دی |...........دوی [ الله ﷻ] په زمکه عاجزه کولې نشی

فِي الْاَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ اَوْلِيَآءَ ۘ يُضٰعَفُ لَهُمُ

په زمکه کښې | او نه به وی | دوی د پاره | ما سوا د الله نه | څوك دوست | دوچند به ورکړې شي| دوی ته

.........او دالله ﷻ په مقابله کښې ئې بل څوک مددګار هم نشته [ائې پيغمبره ﷺ] دوی ته به دوچنده

الْعَذَابُ ۭ مَا كَانُوْا يَسْتَطِيْعُوْنَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوْا يُبْصِرُوْنَ ﴿۲۰﴾

عذاب | نه وو دوی | چې طاقت ئې لرلې شو | داوريدو | اونه وو دوی | چې ليدلې ئې وی[حق]

عذاب ورکولې شی|ځکه چې دوی[په کفر کښې د شدت د وجې نه]استا خبرې نه اورېدې شوې او نه ئې درته کتلې شو

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا

داکسان|هغه خلق دی| چې تاوانيان ئې کړل|ځانونه خپل|او ورك شو|د هغوی نه|هغه څه| چې وو هغوی

د اهغه کسان دی چې خپل ځان ئې تاوانی کړې دی| او نن ترينه ټول جوړ کړی معبودان ورک شو.......

يَفْتَرُوْنَ ﴿۲۱﴾ لَا جَرَمَ اَنَّهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ

چې جوړ کړی ئې وو د ځانه | هيڅ شک نشته | چې بيشکه هغوی | په آخرت کښې به | هم هغوی

..............لازمی خبره ده چې دوی به په اخرت کښې د ټولو نه زيات زيانکاران وی

الْاَخْسَرُوْنَ ﴿۲۲﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

دټولو نه زيات تاوانيان وی | بيشکه | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | اووې کړل عملونه نيک

..........بيشکه چاچې ايمان راوړو |او نيک کارونه ئې اوکړل (۱)| او د خپل پروردګار

---

۱) دَ ايماندارو بدله جنت دی:- دَ خرابو دَ ذکر نه پس اوس دَ ښو خلقو بيان کولې شی. دَ چا زړونه چه دَ ايمان والادَ چا اندامونه چه دَ حکم منونکو وو، په قول اوفعل سره دَ الله تعالی حکم په ځائې راوړونکی اودَ رب دَ نافرمانئی نه بچ کيدونکی وو. داخلق به دَ جنت وارثان وی. اوچتې بالاخانې، خواره او ښائسته کړې شوی تختونه راټيټې شوې غونچې اودَ ميوو ونې پرسيدلې فرشونه يعنی قالينونه، ښائسته بيبيانې قسم قسم خوند ناکې ميوې د خوښې خوراکونه مزيدارې اوبه اودَ ټولونه لوئ دَ الله تعالی ديدار دا نعمتونه به وی چه د هغوی دَ پاره به هميشه وی. نه به هغوی له مرګ راځی نه بوډاوالې، نه بيماری نه غفلت، نه دکې متيازې نه تښې متيازې نه لارې او نه پوزه (ګرنګ)، دَ مشکو دَ بوئی غوندې خوله راتلل او خوراك هضميدل. اول بيان کړې شوی بدبختان کافران خلق او دا مؤمنان پرهيزګاران خلق بالکل هم هغه نسبت لری کوم چه په کونړ، روند بينا...[بقيه په راروانه صفحه...

وَاَخْبَتُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ ۙ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٣﴾

اوعاجزي ئې اوکړه | ارب خپل ته | داکسان | صاحبان دجنت دی | هغوئ به | په هغې کښې | همیشه وی

تابعدار شول | .......... هم دغه خلق جنتیان دی | دوی به په هغې کښې همیشه وی

مَثَلُ الْفَرِيْقَيْنِ كَالْاَعْمٰى وَالْاَصَمِّ وَالْبَصِيْرِ وَالسَّمِيْعِ ۭ

مثال | ددې دواړو ډلو | پشان د ړوند | او کونړ سړی دې | او | بل | دليدونکی | او اوريدونکی سړی دې

مثال دواړو ډلو داسې دې چه | يو کس خو | ړوند کونړ وی | او بل کس ليدونکې او آوريدونکې وی

هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ۭ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٤﴾

آيا دا دواړه برابر دی | په لحاظ دمثال سره | آيا تاسو نصيحت نهٔ قبلوئ |

دا دواړه ګنی يو برابر کيديشی | نو آيا تاسو | په داسې مثال هم اغور نهٔ کوئ؟ |

## آسان ترجمه قرآن

او د هغه کس نه به لوئ ظالم څوك وي چه په الله دروغ جوړوي ؟ د داسې خلقو به خپل رب ته پيشي کيږي او ګواهي ورکونکي به اووائي چه: داهغه خلق دي چه دوی په الله باندې دروغ وتړلي وو تول واورئ چه دالله لعنت دې په دې ظالمانو باندې۔ چه دالله دلارې نه به ئې خلق بندول او دې کښې به ئې کوږوالې لټولو اود آخرت نه بالکل منکرو و. داسې خلق به زمکه باندې د الله نه چرې هم نه شی بچ کيدې اود الله نه سوا به دوی ته هيڅوك مددګار ملاؤ نه شي ، او دوی ته به دوچند عذاب ورکولې شي دوی (حق خبرې لره د نفرت د وجې نه) نه شو آوريدلې، اونه دوی (حق لره) ليدلو. داهغه خلق دي چه دوی خپلو ځانونو دپاره د تاوان سَودا کړې ده، او کوم معبودان چه دوی جوړ کړي وو، هغه به دوی نه ورك شی. يقيناً دا هغه خلق دي چه دوی به آخرت کښې د ټولو نه زيات تاوانيان وي.(بل طرف ته چه کومو خلقو ايمان راوړې دې، اوهغوی نيك عمل کړې دې او هغوی خپل پروردګار ته سر ټيټ کړې دې او

...بقيه د تيرمخ]... او اوريدونکی کښې وی. کافران په دنياکښې دَ حق کتلونه رانده وو اودَ آخرت په ورځ هم به دَ خير طرف ته لار نه بيامومی اونه به ئی وينی. هغوی دَ حقانيت دَ دليلونو اوريدونه کاڼړه وو او نفع ورکونکې خبره ئی دَ سره اوريده نه. که په هغوی کښې څه ښيګړه وه نو الله تعالی به هغوی ته خامخا اورول. (۸/الانفال:۲۳) په خلاف دَ مؤمن پوهه،پاك، عاقل عالم کتونکې پوهيدونکې سوچ کونکې، په حق او باطل کښې فرق کونکې،نيکی اخستل او بدی پريخودل، په دليل او شبه کښې فرق کونکې اودَ باطل نه بچ کيدل او حق منل. اوښائې دا دواړه څنګه برابريدلې شی؟ حيرانتياده چه بيا هم په داسې دوو کسانوکښې فرق نه پيژني. ارشاد دې ﴿لَا يَسْتَوِيْٓ اَصْحٰبُ النَّارِ وَاَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۭ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَاۗىِٕزُوْنَ﴾، دوزخی اوجنتی برابر نه دی او جنتی خو بالکل کامياب دې. او په آيت کښې دی چه ړوند اوکتونکې برابرنه دی. تيارې او رڼراګانې برابر نه دی. سورې او نمر برابر نه دې. ژوندی او مړه برابر نه دی.الله تعالی خو چه چاته غواړی اورولې شی او تاسو خو مړوته هم نه شې اورولې او ته خو صرف خبرورکونکې ئې. مونږ ته په حقه سره زيرې ورکونکې او ويرونکې جوړکړې ليکلې ئې.او په هر يو امت کښې ويرونکې پيدا شوې دې. (۳۵/فاطر:۱۹، ۲۴)

Scanned with Ca

مطمئن دي، نو دوی جنت کښې اوسیدونکي دي، دې کښې به دوی همیشه وی د ددې دواړو ډلو مثال داسې دی لکه چه یو ړوند وي او یو کوڼړ وي، او بل کتل هم کولې شي او آوریدل هم کولې شي آیا دا خلق په حالاتو کښې برابر کیدې شي؟ بیا هم تاسو عبرت نه حاصلوئ؟

## خلاصه تفسير :

﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ۚ أُولَٰئِكَ يُعْرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمْ ﴾ دداسې سړی نه به زیات ظالم څوك وي کوم چه په الله دروغ تړي [چه دهغه دتوحید دهغه درسول درسالت اودهغه دکلام والی نه انکارکوي] داسې خلق به [دقیامت په ورځ] خپل رب ته مخامخ [ددروغژن په حیثیت سره] پیش کولې شی ﴿وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ﴾ [اودعملونو] گواه فرشتې به [ علی الاعلان] داسې وائی چه داخلق دي چه په خپل رب ئې دروغ خبرې تړلې وی.

﴿أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾ تول واورئ په داسې ظالمانو دخدای تعالی [زیات] لعنت دی ﴿ الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ﴾ کوموچه به [ دخپل کفراوظلم سره] ئې نورولره هم دالله دلاري [ یعنی دین] نه منع کول اوپه دغه [ ددین په لاره] کښې به ئې کوږوالی [ اوشبهات ]راویستلوتلاش [ اوفکر] کولو [ چه نورخلق گمراه کړي] اودآخرت نه هم منکروو [دادفرشتوداعلان مضمون وومخکې دالله تعالی ارشاد دی ].

﴿أُولَٰئِكَ لَمْ يَكُونُوا مُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ۘ يُضَاعَفُ لَهُمُ الْعَذَابُ ۚ مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ﴾ چه دي خلقوپه [ تولِه]خمکه کښې هم خدای لره نشوعاجزه کولې [چه چرته پټ شوی وی اوالله ته په لاس نه وای ورغلی]اونه دالله نه سوادوی څوك مددگارشو [چه پس دگرفتارئ نه ئې خلاص کړي وی داسې خلقوته به [ دنورونه ]دوچنده سزا وي [ یوه پخپله دکافرکیدواویل نورولره دکافرکولو دکوشش کولودی او دې خلقو دالهی احکامونه د نفرت کولوپه وجه] نه ئې اوریدل اونه ئې [دعنادله وجې حقی لارې ته ]کتل.

﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ﴾ داهغه خلق دي چه خپل ځانونه ئې بربادکړل اوکوم معبودان چه دوی جوړکړي وو [نن ] تول تری غائب شول [هیڅ ئې پکاررانغلل].

﴿ لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ﴾ پس لازمی خبره ده چه په آخرت کښې به دتولونه زیات تاواني وي داخلق [ داخوپه انجام وي دکافرانو وراندې دمسلمانانودانجام ذکر دی چه].

﴿ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَخْبَتُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ بیشکه کوم خلق چه ایمان راوړي اونیك کارونه کوي او [اوپه زړه سره] خپل رب طرف ته عاجزی کوی [ یعني په زړه کښې انقیاداوخشوع پیداکړي] داسې خلق جنتیان دي [او] دوی به پدې کښې همیشه اوسي دا [ددواړودانجام فرق بیان شو مخکې ئې دحال دفرق مثال دی چه پرې دانجام فرق مرتب کیږي پس ارشاددی چه ].

﴿ مَثَلُ الْفَرِيقَيْنِ كَالْأَعْمَىٰ وَالْأَصَمِّ وَالْبَصِيرِ وَالسَّمِيعِ ۚ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ﴾ ددواړو فریقو [چه ذکرئې وشویعني مومنان اوکافر]حالت داسې دی لکه یوسړی چه ړوندهم وي اوکوڼ هم وي [چه نه عبارت اوري اونه اشاره ویني نوعادتا دده دپوهولوهیڅ صورت نشته] اویوسړی وي چه ویني هم اواوري هم [دده پوهول ډیرآسانه وي] آیاددې دواړوسړوحال برابروي [ هرگزنه داحالت دمسلمان اوکافردی چه هغه دهدایت نه ډیرلرې دی اودی په هدایت سره موصوف دی]آیا تاسو

[په دې فرق ]نه پوهیږئ ؟[یعني دواړو کښې دافرق بدیهي دی دشبهې ګنجائش پکښې نشته]

وَلَقَدْ
اوبیشکه |
او [هم دغه شان حالت وو |

أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ إِنِّي لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٢٥﴾
لیږلي ووموږ| نوح ﷺ | قوم دهغه ته| چې بیشکه زه| ستاسو دپاره| ویرونکي یم | ښکاره
چې موږ حضرت نوح ﷺ خپل قوم ته اولیږلو [هغه اووئیل چې] زه تاسو لره [د الله د نافرمانۍ نه] ښکاره ویرونکي یم

أَن لَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴿٢٦﴾
چې مه کوئ عبادت | مګر | د الله | بیشکه زه | ویریږم | په تاسو باندې | د عذابه | دورځې | دردناکې نه
[او دا ئې وئیل]تاسو دالله نه سوا دبل چا عبادت مه کوئ[ماسره ویره ده چې تاسو باندې به یو ورځ

فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ مَا نَرَاكَ إِلَّا
نو اووئیل| هغه سردارانو |چې کافران وو | دقوم دهغه نه |نه وینو موږ تالره| مګر
دردناک عذاب راشي|نو دهغه دقوم سردارانو جواب ورکړو| چې موږ ته خو ته د ځان په شان یو

بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ
یو انسان| پشان زموږ|اونه وینو موږ تالره| چې تابعداري کړې ده ستا| مګر |هغه کسانو| چې هغوئ
انسان ښکارې او موږ خو بس دا ګورو چې ستاسو په تعلیم هغه څوک عمل کوي |چې په موږ کښې

أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ وَمَا نَرَىٰ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ بَلْ
رذیلان زموږ دي|په ظاهري رائې سره | او نه وینو موږ| تاسو لره| په موږ باندې| څه بهتري | بلکه
غورزیدلي خلق دي| چې دسر سرې عقل خاوندان دي| او موږ په تاسو کښې هیڅ خبره هم[دځان نه]زیاتې نه وینو

نَظُنُّكُمْ كَاذِبِينَ ﴿٢٧﴾ قَالَ يَا قَوْمِ أَرَأَيْتُمْ إِن كُنتُ
ګمان کوو موږ په تاسو[د دروغژنو| اووئیل نوح | اې قومه زما | تاسو خو اوګورئ | که یم زه
بلکه ګمان کوو چې تاسو دروغژن یئ |هغه ورته اووئیل چې اې زما قومه دا خو اوښائې چې

عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّي وَآتَانِي رَحْمَةً مِّنْ عِندِهِ فَعُمِّيَتْ
په ښکاره دلیل باندې|دطرفه درب خپل نه|او راکړې وي هغه ماته| رحمت| دطرفه خپل نه |بیا [دهغې حقیقت]پټ کړې شو
زه دخپل پروردګار د طرفنه په یو ښکاره دلیل ولاړ یم| او هغه په ما باندې خپل رحمت کړې وي

عَلَيْكُمْ أَنُلْزِمُكُمُوهَا وَأَنتُمْ لَهَا كَارِهُونَ ﴿٢٨﴾
په تاسو باندې| آیا موږ تاسو پورې پیوسته کړو هغه رحمت| حال دا چې تاسو | هغه | نه خوښونکې یئ
خو هغه [رحمت] تاسو ته نه ښکارې انو ګنې موږ ئې په زور درپورې انخلوؤ| حال دا چې تاسو ترې

وَيَا قَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ
اې زما قومه|نه غواړم زه ستاسو نه|په دې دعوت باندې| څه مال |نه دي اجر زما | مګر |په الله باندې
نفرت کوئ| او اې زما قومه زه په دې [تبلیغ باندې] ستاسو نه هیڅ مال نه غواړم| زما بدله خو الله

Scanned with Ca

وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْاؕ اِنَّهُمْ مُّلٰقُوْا

اونه یم زه | شړونکې | د هغه کسانو | چې ایمان ئې راوړي دي | بیشکه هغوئ | ملاقات کونکي دي

سره ده | او زه [ ستاسو د وجې ] مسلمانان شړلي نشم | هغوئ به پخپله خپل پروردګار سره ملاقات کوي

رَبِّهِمْ وَلٰكِنِّيْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ﴿۲۹﴾ وَيٰقَوْمِ مَنْ يَّنْصُرُنِيْ

درب خپل سره | لیکن زه | وینم تاسو | داسې قوم | چې جهالت کوئ | او ائې زما قومه | څوک به مدد اوکړي زما

بلکه زه خو داګورم چې تاسو په جهالت کښې پراته یئ | ائې زما قومه څوک به د الله په مقابله کښې

مِنَ اللّٰهِ اِنْ طَرَدْتُّهُمْؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ

په مقابله دالله کښې | که اوشړم زه هغوئ | آیا نو تاسو نصیحت نه قبلوئ | اونه وایم زه | تاسو ته

زما مدد اوکړي | که زه دوئ اوشړم نو ګنې تاسو په دومره قدرې خبره هم نه پوهیږئ | او زه تاسو ته

عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ اِنِّيْ

چې زما سره | خزانې د الله دي | اونه وایم دا | چې زه پوهیږم | په غیبو باندې | اونه وایم زه | چې بیشکه زه

دانه وایم چې ما سره دالله ﷻ خزانې دي | او نه [ دا وایم چې ] دغیبو علم لرم | او نه دا دعوی لرم

مَلَكٌ وَّلَآ اَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ تَزْدَرِيْٓ اَعْيُنُكُمْ

فرشته یم | اونه دا وایم زه | په باره دهغه کسانو کښې | چې سپک ګوري ورته | سترګې ستاسو

چې زه فرښته یم | اونه د هغې کسانو باره کښې چې ستاسو په نظر کښې حقیر رازی دا وایم

لَنْ يُّؤْتِيَهُمُ اللّٰهُ خَيْرًاؕ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

چې هرګز به ورنکړي هغوئ ته | الله | څه خیر | الله ښه پوهیږي | په هغه حال | چې په نفسونو دهغوئ کښې دي

چې الله ﷻ به ورله هیڅ خیر نه ورکوي | الله ﷻ دهغوئ د زړونو په حال ښه خبر دي | که زه داسې

اِنِّيْٓ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ قَالُوْا يٰنُوْحُ

بیشکه زه | په دغه وخت کښې به شم | د ظالمانو نه | اوونیل هغوئ | ائې نوح

اووایم نو په ظالمانو کښې به شمیر شم | آخر کښې ] هغوئ ورته اووئیل چې ائې نوح ﷺ

قَدْ جٰدَلْتَنَا فَاَكْثَرْتَ جِدَالَنَا فَاْتِنَا بِمَا

بیشکه جګړه اوکړه تا زمونږ سره | نو ډیره دې کړه | جګړه مونږ سره | نو راوړه مونږ ته | هغه عذاب

تا مونږ سره بحث اوکړو | او ډیر زیات بحث دې اوکړو | او س بس هغه څیز راوله دکوم نه چې مونږ

تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۳۲﴾ قَالَ اِنَّمَا

چې وعده ئې کوې ته زمونږ سره | که ئې ته | د رښتونو نه | اوونیل نوح | بیشکه

ویروې | ............ که ته ریښتونې یئ | [ حضرت نوح ﷺ ورته ] اووئیل بیشکه

يَاْتِيْكُمْ بِهِ اللّٰهُ اِنْ شَآءَ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۳۳﴾ وَلَا يَنْفَعُكُمْ

رابه ولي تاسو ته | هغه | الله | که اوغواړي | اونه یئ تاسو | عاجزه کونکي الله لره | اونه درکوي فائده تاسو ته

چې هغه خو به الله ﷻ پخپله راولي که هغه اوغواړي | او تاسو هغه عاجزه کولې نشئ | او زما خیر خواهي

Scanned with Ca

نُصۡحِيۡۤ　اِنۡ اَرَدۡتُّ　اَنۡ اَنۡصَحَ　لَكُمۡ　اِنۡ كَانَ اللّٰهُ يُرِيۡدُ

نصیحت ز ما | که اراده اوکړم زهٔ | چې نصیحت اوکړم زهٔ | تاسوته | که چرې اوغواړی الله

به تاسو ته هیڅ فائده درنکړي | اگر که زهٔ ستاسو ډیر خیر اوغواړم | هرکله چې الله ﷻ ته

اَنۡ يُّغۡوِيَكُمۡ ؕ　هُوَ　رَبُّكُمۡ　وَاِلَيۡهِ　تُرۡجَعُوۡنَ ؕ

چې بې لارې کړی تاسو | هغه | رب ستاسو دې | اوخاص هغه ته | به واپس کولې شئ

ستاسو گمراهی منظوره وی | هغه ستاسو پروردگار دې | او هم هغه ته به تاسو ټول واپس کیږئ

اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ　افۡتَرٰٮهُ ؕ　قُلۡ　اِنِ افۡتَرَيۡتُهٗ

آیا وائی دوئ | چې دخان نه ني جوړ کړې دې دا قرآن | ورته اووایه | که دخانه جوړ کړې وی مادا قرآن

آیا دوئ وائی چې دهٔ دا [قران پاک] په دروغه جوړ کړې دې | ورته اووایه که ما دخانه جوړ کړې وی

فَعَلَىَّ　اِجۡرَامِىۡ　وَاَنَا　بَرِىۡٓءٌ　مِّمَّا　تُجۡرِمُوۡنَ

نوپه ما دې | جرم زما | او زهٔ | خلاص یم | دهغې نه | چې کوم جرمونه تاسو کوئ

نو ددې گناه په ما دهٔ | ..................او کوم گناهونه چې تاسو کوئ انو زه دهغې نه بیزاره یم

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ نوح علیه السلام خپل قوم ته دې پیغام سره لیږلې وو چه: زهٔ تاسو لره صفا صفا خبرونکې پیغمبر یم. چه دالله نه سوا د بل چا عبادت مه کوئ یقین وکړئ چه زهٔ په تاسو د یو دردناک عذاب نه ویریږم. په دې بانديې هغه خلقو چه هغوی کفر اختیار کړې وو ووئیل چه: مونږ ته خو ددې نه زیات (په تا کښې) څه خبره نه ښکارې چه ته ځمونږ غوندې یو انسان ئې، او مونږ دا هم وینو چه ستا تابعدار هغه خلق دې چه دهغوی هیڅ حیثیت نشته، اوهغه هم د سر سری رائې والا او مونږ ته په تا کښې داسې څه خبره نه ښکارې چه دهغې په وجه تاته په مونږ څه فضیلت حاصل وي، بلکه ځمونږ خیال خو دا دې چه تاسو ټول دروغژن یئ. نوح علیه السلام ووئیل چه: اې ځما قومه! لږ ماته دا ووایئ که څه د خپل پروردگار د طرفنه په یو ښکاره هدایت باندې یم، او هغه ماته یو خاص رحمت (یعنی نبوت) را کړې وي بیا هم تاسو په هغې ځان نه پوهه کوئ. نو آیا دا مونږ په تاسو په زور مسلط کړو حال دا چه تاسو دې لره بد گنړئ؟ او اې ځما قومه څه په دې (تبلیغ) باندې تاسو نه څه مال نه غواړم. ځما اجر د الله نه علاوه بل چا په ذمه نه دې اخستې، او کومو کسانو چه ایمان راوړې دې څه هغوی لره شړونکې نه یم. دوی ټول د خپل رب سره ملاویدونکې دي او څه خو وینم چه تاسو د جهالت خبرې کوئ او اې ځما قومه ! که څه دې خلقو لره وشړم نو څوك به مالره دالله (د نیولو نه) بچ کړي ؟ آیا تاسو بیا هم توجه نه کوئ؟ او څه تاسو ته دا نه وایم چه ما څخه دالله خزانې دي . نه څه د غیبو په ټولو خبرو باندې پوهیږم . او نه څه تاسو ته دا وایم چه څه فرښته یم او کوم خلق چه ستاسو په سترګو کښې سپك دي د هغوی په باره کښې څه دا نه شم وئیلې چه دوی ته به الله څه خیر ورنکړي. ددې خلقو په زړونو کښې چه څه دي هغې باندې الله د ټولو نه ښه پوهیږي. که د هغوی په باره کښې څه داسې خبرې وکړم نو څه به دظالمانو

Scanned with Ca

نه شم. هغوی ووئیل چه: اې نوحه! تاموږسره بحث وکړو او ډیر بحث دې وکړو که ته رښتینې یې نو راوړه هغه (عذاب) چه دهغې نه ته موږه ویروې، نوح ووئیل چه: دا به الله راولي که د هغه خوښه شي، او تاسو هغه لره نه شئ عاجزه کولې. نه څه ستاسو خیرخواهي کول غواړم نو ځما خیرخواهي به هغه صورت کښې تاسو ته فائده نه شي درکولې چه الله (ستاسو د ضد دوجې نه) ستاسود ګمراه کولو اراده کړې وی. هغه ستاسو پروردګار دې، او هغه ته به تاسو ټول واپس کولې شئ آیا (د عربو کافران) دا وائی چه محمد (صلی الله علیه وسلم) دا قرآن دخپل ځان نه جوړ کړې دې؟ (اې پیغمبره!) ته ووایه چه: که ما دا دځان نه جوړ کړې وی نو ځما د جرم وبال به په ما باندې وي، او کوم جرم چه تاسو کوئ د هغې څه ذمه دار نه یم.

**خلاصه تفسیر:**

﴿ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖۤ ۟ اِنِّیْ لَكُمْ نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ ۟ۙ ﴾ اوموږه نوح [علیه السلام] الره دده قوم ته رسول جوړ کړو [داپیغام موورکړو] ولیږلو.

﴿اَنْ لَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّا اللّٰهَ ؕ اِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَیْكُمْ عَذَابَ یَوْمٍ اَلِیْمٍ ۟﴾چه تاسود الله تعالی نه سوا دبل چا عبادت مکوئ [اوکوم بتان چه تاسومقررکړیدي ود، اوسواع، اویغوث. اویعوق، اونسر لره پریږدئ ځرنګه چه نوح [علیه السلام] الړواودوی ته ئی وفرمائل چه]زه تاسولره [دغیرالله دعبادت په صورت کښی ]صفاصفا ویروم [اوددی ویرولوتفصیل دادی چه ]زه ستاسو په باره کښی دیوی تکلیف ورکوونکی ورځ دعذاب نه یره کوم.

﴿ فَقَالَ الْمَلَاُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ مَا نَرٰىكَ اِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ اِلَّا الَّذِیْنَ هُمْ اَرَاذِلُنَا بَادِیَ الرَّاْیِ ۚ ﴾ پس دده په قوم کښی چه کوم کافران سرداران وو هغو [په جواب کښی] وویل چه ته چه کومه دعوه دنبوت کوې لکه دنذیر مبین نه چه معلومیږي نوزموږ په زړه خبره نه لګي ځکه چه موږ خوتادخپل ځان په شان بني آدم وینو[اودبني آدم نبي کیدل ډیره لرې خبره ده] اوکه [ته پدې باندي دلیل نیسی چه بعضو خلقوستاتابعداري کړیده نوداخبره ددلیل لپاره قابله نده ځکه چه ] موږه وینوچه ستاتابعداري هغوخلقوکړیده کوم چه په موږ کښی بالکل رذیلان دي [دکوموعقل چه اکثربیکاره وي بیا]دغه [تابعداري ]هم محض په سرسري رائی سره [شویده یعنی اول خوددوی عقل برابرندی دفکرنه پس هم غلطی کوي ،دویم بیاغورئی هم ونکړو،پدی وجه دداسی خلقوتالره نبي ګڼل داځه دلیل ندی.

﴿ وَمَا نَرٰى لَكُمْ عَلَیْنَا مِنْ فَضْلٍۭ بَلْ نَظُنُّكُمْ كٰذِبِیْنَ ۟﴾ بلکه ددی په عکس سره دا کار خو زموږ د تابعدارئ کولونه منع کوونکی دی ځکه چه شریفان درزیلانوپه ملګرتیاباندی شرمیږي، دا رنګ اکثرداسی بي حوصلی خلقوغرضونه هم مال حاصلول یا اوچتیدل وي پس داخلق هم په زړه سره ایمان نه راوړي]او[که چیري دا اوونیلې شی چه سره درزیل والی نه ددی خلقو دځه خاص خبری په اعتبارسره په موږباندی فضیلت دی چه پدي وجه سره ددوی رایه پدی باره کښی برابرده پس ]موږ په تاسوخلقوکښی [یعنی په تا اوپه مسلمانانوکښی] څه خبره دخپل ځان نه بهترنه مومو[نوځکه ستاسو د مسلمانانو رائی لره صحیح نه ګڼو] بلکه موږخوتاسولره [بالکل ]دروغژن ګڼو. ﴿ قَالَ یٰقَوْمِ اَرَءَیْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَیِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّیْ وَاٰتٰىنِیْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِهٖ فَعُمِّیَتْ عَلَیْكُمْ ؕ ﴾ نوح [علیه السلام]اوفرمائل چه ای ځماقومه [تاسوچه کومه خبره کوئ چه ستا نبوت زموږ په زړه نه لګي

نو] ښه ده وښائی که زه دخپل رب لخواپه دلیل[ قائم] یم [چه پدي سره ځمانبوت ثابتیږي]
اوهغه ماته دخپل طرف رحمت [یعنی نبوت] راکړی وي بیا په دغه [نبوت یاحجت] تاسونه
پوهیږئ نو[څه څه وکړم مجبوریم].
﴿أَنُلْزِمُكُمُوهَا وَأَنتُمْ لَهَا كَارِهُونَ﴾ ایامونږ دی[ دعوی یادلیل] لره ستاسوپه سردرتپلئ شواوچه
تاسوتري نفرت کوئ[ مطلب داچه ستاسوداخبره چه ځمونږپه زړه نه لګي دافقط پدی وجه ده
چه تاسوداسی ګڼئ چه بشر رسول کیدي نشی چه پدي خبره تاسوسره هیڅ دلیل نشته
،اوځماسره ددی دواقع کیدو او صحیح کیدودلیل موجود دی یعنی معجزه وغیره نه چه
دچاتابعداري پدی سره ددی جواب هم وشو چه ددوی تابعداری حجت ندی ،لیکن دیودلیل
فائده موقوفه ده په غوراوفکرکولواوهغه تاسونکوئ او ځمادوس نه بهرده].
﴿وَيَا قَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ﴾ او[دومره خبره ئی نوره زیاته وفرمائله چه] ای
ځماقومه [دافکرخووکړئ که څه دنبوت غلطه دعوه کوم نوآخرپدی کښی خوپه ځما څه مطلب
وي مثلا داسي چه زه ددی په ذریعه ښه ډیر مال وګټم نوداخودرته معلومه ده چه] څه تاسونه
د[تبلیغ] په عوض مال نه غواړم ځمامعاوضه خوصرف په الله ده[دهغه نه ئی په آخرت کښی
غواړم دغه شان که په نورو غرضونو کښی ئی فکر وکړئ نوبیابه نه مومئ بیاچه هرکله کوم
غرض نشته نوددروغوویلونه ځما څه فائده ده لنډه داچه ددعوي ددروغژن کولولپاره مقتضی
نشته اوددعوي په رشتینوالی باندی دلیل قائم دی بیا په نبوت کښی څه شك شبه کیدي شی]
﴿وَمَا أَنَا بِطَارِدِ الَّذِينَ آمَنُوا ۚ إِنَّهُم مُّلَاقُو رَبِّهِمْ وَلَٰكِنِّي أَرَاكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ﴾او[تاسوچه درزیلانوتابعداری
دخپلی تابعداریٔ لپاره منع کوونکی وائی اوپه ښکاره یاپه اشاروسره وائی چه زه دوی دخپلی
خواڅخه لری کړم پس] زه خومومنانولره لری کوونکی نه یم [ځکه چه] داخلق خپل رب ته [په
عزت اومقبولیت سره] تلونکی دي[ نوځوك دشاهی دربارمقربا نو لره ویستلای شی اودی سره
ددی خبری جواب هم وشوچه داخلق دزړه نه ایمان نه راوړي]لیکن په واقع کښی زه تاسولره
وینم چه [خامخا]جهالت کوئ[ اوغلطی خبری کوئ].
﴿وَيَا قَوْمِ مَن يَنصُرُنِي مِنَ اللَّهِ إِن طَرَدتُّهُمْ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ﴾ اوکه [فرضا اوتقدیرا] زه دوی لره وباسم نو
[داخووائی چه ]ما به دالله دګرفت نه څوك خلاص کړي [آیاپه تاسوکښی دومره همت شته چه
داسی غلطی مشوری راکوئ] آیا تاسوپه دومره خبره هم نه پوهیږئ [نوپدي تقریر سره ددی
تولو شبهو جواب وشو لیکن مخکی بیاددی تولوجوابونوتتمه ده یعنی هرکله چه ځمانبوت په
دلیل سره ثابت دی‌نواول خوددلیل په وړاندی لري والی څه شی ندی بیا داچه دغه لری خبره هم
نده البته که دیوعجیبه اوناآشنا کار دعوه می کولي نوانکار اولری والی به دومره بد اولری نه
وو اګرکه ددلیل نه پس داهم داوریدوندی ،البته که دلیل هم دلري والی وي نوبیاواجب دی،
لیکن څه خودڅه داسی عجیبه کاردعوه نکوم چنانچه].
﴿وَلَا أَقُولُ لَكُمْ عِندِي خَزَائِنُ اللَّهِ وَلَا أَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَا أَقُولُ إِنِّي مَلَكٌ وَلَا أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزْدَرِي أَعْيُنُكُمْ لَن يُؤْتِيَهُمُ
اللَّهُ خَيْرًا﴾ زه تاسوته داسی نه وایم چه ځماسره دالله خزانی دي اونه زه داوایم چه څه تولی دغیب
خبري پیژنم اونه [داوایم چه څه] فرشته یم او[داخوئی دخپل نبوت متعلق ارشاد وفرمائل
وړاندی دخپلومتبعینوپه باره کښی ارشادفرمائی یعنی ]کوم خلق چه ستاسوپه نظرونوکښی
سپك دي څه ددوی په نسبت[ ستاسوپه شان] دانشم وئیلي چه[ دوی دزړه نه ایمان ندی راوړی

پدی وجه به] الله تعالی به هرگزدوی ته ثواب ورنکړي.

﴿ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا فِیْۤ اَنْفُسِهِمْ ۚۖ اِنِّیْۤ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِیْنَ ۝﴾ ددوی په زړه کښې چه څه وي الله تعالی هغی لره ښه پیژنی[نوممکنه ده چه ددوی په زړونوکښې اخلاص وي نوبیا خه داسې خبره څنګه وکړم] زه خو[که داسې خبره وکړم نو]پدی صورت کښې به ظلم وکړم [خکه چه بې دلیله دعوه ګناه ده هرکله چه نوح [علیه السلام] دټولوخبروپوره پوره جواب ورکړو،چه جواب نی بیاددوی نه جوړنه شو نو عاجزه شو].

﴿قَالُوْا یٰنُوْحُ قَدْ جٰدَلْتَنَا فَاَكْثَرْتَ جِدَالَنَا فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ ۝﴾ دغوخلقووویل چه ای نوح [علیه السلام]تاخمونږسره بحث وکړوبیا دي دابحث اوږد هم کړوپس[ اوس بحث پریده او] دکوم شی نه چه ته مونږویروی[ چه عذاب به راشی] هغه په مونږراوله.

﴿ قَالَ اِنَّمَا یَاْتِیْكُمْ بِهِ اللّٰهُ اِنْ شَآءَ وَمَاۤ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِیْنَ ۝﴾دوی وفرمائل چه[ ددي راوستونکی خه کله یم ماته خودرسولواوارولوحکم وه پس ماهغه په خای کړو]دغه خویه الله پدی شرط چه هغه ته منظوروي راولي ستاسو مخی ته او[دغه وخت به بیا]تاسوهغه لره عاجزه نه کړي شي:[چه هغه عذاب واقع کول وغواړي اوتاسوئی واقع کولوته پري نږدئ].

﴿وَلَا یَنْفَعُكُمْ نُصْحِیْۤ اِنْ اَرَدْتُّ اَنْ اَنْصَحَ لَكُمْ اِنْ كَانَ اللّٰهُ یُرِیْدُ اَنْ یُّغْوِیَكُمْ ؕ﴾ او[کوم چه خماکارووورول او رسول پدي کښې ماستاسوپوره پوره خیرخواهي وکړه لیکن] خماخیرخواهي تاسوته پکارنشي راتلي اګرکه خه هرڅومره ستاسوخیرخواهي وکړم هرکله چه الله تعالی ته ستاسوګمراه کول منظوروي[چه دهغی وجه ستاسوعناداوتکبردی،مطلب دادی چه هرکله ستاسودخپلی بدقسمتئ نه خان ته نفع حاصلول اونقصان لری کول نه غواړئ نوخماپه غوښتلوسره څه کیدې شي].

﴿ هُوَ رَبُّكُمْ ۫ وَاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ؕ﴾ هغه ستاسومالك دی[ اوتاسودهغه مملوك ئی نوپه تاسودهغه تول حقونه واجب دي اوتاسوئی دعنادپه وجه ضائع کولو سره مجرمان جوړیږئ] اوهغه ته ستاسو ورتلل دي [ هغه به ستاسو دټول عناداوکفرکسر وباسي].

﴿ اَمْ یَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ اِنِ افْتَرَیْتُهٗ فَعَلَیَّ اِجْرَامِیْ وَاَنَا بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُجْرِمُوْنَ ۝ؒ﴾ آیاداخلق وائی چه محمد [صلی الله علیه وسلم] دا قرآن دخان نه جوړکړی دوی ته[ په جواب کښې] ووایه که[ بالفرض] ماجوړکړی وي نوخما دا جرم به په ما[واقع ]وي[اوتاسوخمادجرم نه بري الذمه ئی] او[که تاسودادعوه جوړه کړی وي یعنی په ما بهتان لګولی وي نوستاسودجرم به په تاسو وي او]زه ستاسوددي جرم نه بري الذمه یم.

## معارف او مسائل

کله چه حضرت نوح علیه السلام خپل قوم ته د ایمان بلنه ورکړه نو قوم د هغه په نبوت او پیغمبرئ باندې څو شبهې او اعتراضات وړاندې کړل،حضرت نوح علیه السلام د الله تعالی په اجازت د دې جوابونه ورکړل چه د هغې په ضمن کښې د دیانت او معاشرت ډیرې اصولی او فروعی مسئلې راغلې دی،په دې آیتونو کښې دغه خبرې اترې بیان کړې شوې دی.

په دویم آیت کښې د مشرکانو یو څو شبهې او اعتراضونه بیان کړې شوې دی،په دې آیت کښې د څو ګرانو ټکو تشریح داسې ده،﴿مَلَاُ﴾لفظ عموما ډلې د پاره استعمالیږی،د لغت بعضې اماماو وئیلي دی چه دا لفظ د قوم د سردارانو او ذمه دارانو د ډلې د پاره استعمالیږی، د ﴿بَشَرًا﴾ ترجمه انسان ده﴿اَرَاذِلُ﴾د ارذل جمع ده سپک او ذلیل ته وئیلې شی،چه په قوم کښې د

څه شان او عزت خاوند نه وی ﴿بَادِيَ الرَّأْيِ ۚ﴾ ابتدائی او سرسری رائې ته وئیلې شی.
د حضرت نوح ﷺ په پیغمبرئ باندې د دغې خلقو ړومبې اعتراض دا وو ﴿مَا نَرٰىكَ اِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا﴾ یعنی تاسو خو زمونږ په شان انسان او بنیادم ئې زمونږ په شان خوراک څښاک کرخیدل راکرخیدل، او اوده کیدل ویښیدل کوې، بیا د عادت نه خلاف مونږه دا خبره څنګه اومنو چه تاسو د الله تعالی پیغمبر ئې؟
د دغې خلقو په خیال کښې دا وو چه د الله تعالی د اړخه رالیږلې رسول او پیغمبر دې بنیادم نه وی بلکه یو فرشته دې وی چه د هغه خصوصیت او اختیاری شان خامخا اومنلې شی.
د دې جواب په څلورم آیت کښې دا ورکړې شو ﴿يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَاٰتٰىنِيْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِهٖ فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ ۭ اَنُلْزِمُكُمُوْهَا وَاَنْتُمْ لَهَا كٰرِهُوْنَ ۝﴾
په دې کښې دا اوښودلې شو چه د انسان پیغمبر کیدل څه بې سمونه خبره نه ده بلکه ضروری خبره څکه ده چه بنیادم ترې په اسانه دین زده کړې شی، ولې چه د انسان او فرشتو په مزاج کښې د اسمان او زمکې هومره فرق دې، که فرشته د رسول په حیثیت رالیږلې شوې وې نو بنیادمو به ترې په مشکله سره دین زده کولې شو ولې چه فرشته خو نه اوږې کیږی، تنده ئې نه وی، او ستومانه کیږی نه، دې ته انسانی ضرورتونه او حاجتونه نۀ راپیښیږی، نو د انسانانو دا کمزورې به څنګه محسوسولې شی، او په دې کښې انسانان د فرشتو په پل باندې څنګه تلې شو؟ دا مضمون د قرآن په نورو آیتونو کښې په ښکاره یا په اشاره سره څو ځایه راغلې دې، دلته د هغې د رایادولو په ځاې صرف دومره اوفرمائیلې شو چه که د عقل نه کار واخستې شی نو رسول او پیغمبر کیدو د پاره دا ضروری نه دی چه هغه دې بنیادم نه وی البته دا ضروری دی چه د الله تعالی د اړخه په دې باندې ورسره څه ګواهان او حجت وی چه د هغې په لیدو سره خلق په آسانه پوهیدې شی چه دا د الله تعالی له اړخه رالیږلې شوې پیغمبر دې عامو خلقو د پاره دا بینه او حجت د پیغمبرانو ﷺ معجزې دی، څکه نوح ﷺ اوفرمائیل چه ما خپل خان سره د الله تعالی د اړخه، بینه، حجت او رحمت راوړې دې، که تاسو دې ته کتلې، غور مو پرې کولې نو انکار به مو نه وو کړې، مګر ستاسو انکار او عناد تاسو ړانده کړی ئې څکه مو انکار اوکړو او په خپل ضد باندې ټینګ پاتې شوې.
مګر د پیغمبر په ذریعه د خداې راغلې رحمت په زور په چا ورتپلې نه شی تر څو چه انسان پخپله د دې شوق نه لری، چنانچه د حضرت نوح ﷺ د دې فرمائیلو [چه د ایمان هغه دولت چه ما راوړلې دې که څما وس وې نو ستاسو د انکار او ضد باوجود به مې تاسو ته درکړې وو، خو دا د قدرت د قانون نه خلاف دی چه دا نعمت خامخا په چا وراوتپلې شی] دې نه دا هم ثابته شوه چه په زور سره چا لره مومن یا مسلمان جوړول په هیڅ دور د نبوت کښې جائز نه دی لرلې شوې، چنانچه هغه خلق هم پخپله دې حقیقت نه بې خبره نه دی کوم چه د سوچه دروغو په زور دا ثابتول غواړی چه اسلام د تورې په زور خور شوې دې، خو په دې سره یو دا مطلب تر سره کیدې شی چه د ناخبره خلقو په زړونو کښې پرې شکونه او شبهې راپیدا کولې شی.
د دې په ضمن کښې دا وجه هم په پوهه کښې راغله چه فرشتې څکه پیغمبرانې جوړې نه کړې شوې چه دوی بې دریغه قوت او طاقت لری او د خپل وجود په هر شان کښې د انسان نه ښکاره بیلتون لری، د هغې په لیدو سره ایمان راوړل به یو جبری عمل وو، هیڅا به دا نه شو کولې چه د

Scanned with Ca

فرښتې په وړاندې دې ئې اخوا دیخوا کړې وې، څنګه چه د انسانانو پیغمبرانو علیهم السلام په وړاندې په کولې شوه چنانچه د شریعت له مخې هغه ایمان منظور نه دې چه د یو مضبوط قوت په زور پرې څوک مجبوره کړې شي، بلکه مطلوب ایمان دا دې چه د الله تعالی د غالب قوت د مشاهدې کونو نه بغیر راوړې شي کوم ته چه ایمان بالغیب وائي.

د دغې خلقو دویم اعتراض دا وو ﴿مَا نَرٰىكَ اِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ اِلَّا الَّذِيْنَ هُمْ اَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّاْيِ﴾ یعنې مونږه ګورو چه په تاسو علیه السلام باندې ایمان راوړونکي ټول په سرسري نظر کښې سپک، ذلیل او کمینه خلق دي، څوک شریف لوئې بنده په کښې نشته؛ د دې اعتراض دوه اړخونه دي یو اړخ ئې دا دې چه که ستاسو علیه السلام خبره حقه او صحیح وې نو د قوم غټو خلقو به قبوله کړې وې، دې ورکوټو او رذیلو چه قبوله کړه نو دا نخښه د دې ده چه ستاسو بلنه د سره د قبلولو جوګه نه ده.

دویم اړخ دا دې چه مونږه لره ستاسو د ایمان راوړلو بلنه قبلول ځکه یو خنډ دې چه بیا به هم دغه سپکو ټټو خلقو سره یو ځای کښینو پاسو چه دا زمونږ د لوئې شان سره نه ښائي، لکه د مونځ په صفونو کښې به ورسره یو شان اودریږو نو داسې مونږ نه شو کولې.

کومو غریبانانو، فقیرانو سره چه مال ډیر نه وو او دنیوی مرتبه او مال ئې نه لرلو نو د حقیقت نه لرې دغه بې خبره خلقو به هغوی اراذل بلل، حالانکه دا پخپله یو جاهلانه خیال دې، عزت، ذلت، عقل او پوهه د مال دولت تابع نه دی بلکه تجربې نه ثابته ده چه مرتبه او مال یو قسم نشه وي چه انسان لره د ډیرو معقولو او صحیح خبرو باندې د پوهیدو او قبلولو نه ایساروي، د کمزورو او غریبانانو خلقو په نظر کښې دا بندیزونه نه جوړیږي، دوی د حق او صحیح خبرو په قبلولو کښې یو بل نه وړاندې کیږي هم دغه وجه ده چه پخوا زماني راسې د الله تعالی دا عادت جاری دې چه په پیغمبرانو علیهم السلام باندې به اول ایمان راوړونکي غریبانان او فقیران وو چه په پخوانو اسماني کتابونو کښې دا خبره ښه په ښکاره کړې شوې ده، هم دغه وجه ده چه د روم بادشاه هرقل ته د رسول الله ﷺ هغه خط مبارک ورا ورسیدو چه د ایمان بلنه ئې په کښې ورکړې وه نو هغه د تحقیق په غرض د شام ملک ته راغلي قافله دې د پاره راوبلله چه د رسول الله ﷺ په باره کښې د هغه نخښو نښانو تپوس ترې اوکړي چه په تورات او انجیل کښې ئې د پیغمبرانو علیهم السلام په باره کښې لوستلي وې.

په دغه تپوسونو کښې ئې ترې یو تپوس دا هم اوکړو چه د رسول الله ﷺ تابعداران کوم قسم خلق دي، غریبانان خلق ئې تابعداری کوي او که مالداره خلق ئې تابعدار دي؟ د قافلې خلقو ورته اووئیل چه غریبانان خلق ئې تابعدار دي، هرقل اقراري شو چه دا په رښتیا د پیغمبرئ نښانی ده، چنانچه په شروع کښې غریبانان خلق د پیغمبرانو تابعدار جوړیږي. [1]

خلاصه دا شوه چه غریبانان او فقیران خلق رذیل ګڼړل د دوی جهالت وو، ولې چه په حقیقت کښې رذیل هغه وي چه خپل پیدا کونکي او پالونکي مالک نه پیژني د هغه د حکمونو نه مخ اړوي، په دې بنا سفیان ثوري رحمه الله د داسې تپوس په جواب کښې رذیل او کمینه بنده داسې کس ته اووئیل چه د بادشاهانو او امیرانو خوشامدې کوي، او ابن اعرابی رحمه الله کمینه هغه چا ته وائي چه په خپل دین خرڅولو سره دنیا ګټي چنانچه د یو تپوس په جواب کښې دوی

[1] صحیح البخاری، باب بدء الوحی: ج ۱، ص ۴،۵

Scanned with Ca

اوفرمائيل چه د ټولو نه زيات کمينه هغه څوک دي چه خپل دين برباد کړي او د بل چا دنيا جوړوي، امام مالک رحمه الله اوفرمائيل چه هغه څوک کمينه دي چه د صحابهٔ کرام رضي الله عنهم بد بيانوي،(۱) ولې چه صحابهٔ کرام ټول امت سره احسان کوونکي داسې دي چه هم د دوی په برکت د ايمان او شريعت دولت دوی ته رسيدلې دي.

بهر حال د دوی دا جاهلانه خيال په دريم آيت کښې داسې رد کړې شوې دې چه د پيغمبر نظر د چا مال ته نه وی، هغوی د خپل خدمت او همدردې عوض نه اخلی، د هغه عوض يواځې د الله تعالی په ذمه وی خکه ئې په نظر کښې امير او غريب برابر وی، تاسو په دې مه پرېږې چه ستاسو په مسلمانيدو سره به هغوی تاسو نه مال غواړی.

بله خبره ئې خپل قوم ته دا اوفرمائيله چه ما سره د ايمان قبلولو دا شرط اږدې چه غريبانان دې د خپلې دلې نه اوباسی نو دا کار څکه نه شم کولې چه د الله تعالی په دربار کښې دا رسيدلی او عزتمن خلق دی، داسې خلق د خپلې دلې نه اوبشکل څه د عقل کار نه دې.

د ﴿مُّلَٰقُوا۟ رَبِّهِمْ﴾ بله معنی دا هم کيدې شی چه که څه دا غريبانان خلق بالفرض د خپل ځان سره نه پرېږدم نو د قيامت په ورځ د الله تعالی په دربار کښې د دوی د دغه شکايت به څه جواب ورکړې شم؟ په څلورم آيت کښې دا مفهوم دې چه که زه دوی د خپل مجلس نه اوباسم نو د الله تعالی د عذاب نه به مې څوک خلاص کړی؟ په آخر کښې فرمائی چه دا ستاسو جهالت دې چه انسان پيغمبر نه منې او زما مجلس نه د غريبانانو خلقو د اوبشکلو فرمائش کوې.

په پنځم آيت کښې د حضرت نوح عليه السلام هغه تقرير بيان شوې دې چه د خپل قوم د ټولو اعتراضونو اوريدو نه پس ئې ورته په کښې څه اصولی هدايات داسې ورکړی وو چه د پيغمبرئ د پاره هغه څيزونه ضروری نه دی کوم چه تاسو ئې ضروری ګرځوئ.

مثلاً رومبې ئې داسې اوفرمائيل ﴿وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ عِندِى خَزَآئِنُ ٱللَّهِ﴾ زه درته دا نه وايم چه د الله تعالی خزانې ما سره دی، دا جواب وو د دوی د هغه خبرې چه پيغمبر سره خزانې په کار دی چه خلقو ته ترې ورکړه کوی، ولې چه د پيغمبر کار دا نه وی چه خلق د دنيا په ساز و سامان کښې اوئخلوی. دې سره د بعضې خلقو د دې خيال رد هم کيدې شی چه ګنی پيغمبران عليهم السلام څه چه اولياء رحمهم الله ته هم الله تعالی دا مکمل اختيارات ورکړی دی چه د الله تعالی د قدرت خزانې د دوی په لاس کښې وی، په خپله خوښه ئې چا ته ورکوی او چا ته ئې نه ورکوی، په دې شان د نوح عليه السلام د ارشاد نه دا واضحه شوه چه الله تعالی د خپلو خزانو مکمل اختيار هيڅ يو نبی ته نه دې سپارلې اولياء رحمهم الله ته به ئې څنګه سپارلې وی، البته الله تعالی د دوی دعاګانې او خواهشونه په خپل قدرت سره پوره کوی.

بل ئې داسې اوفرمائيل ﴿وَلَآ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ﴾ د دغې جاهلانو دا خيال هم وو چه پيغمبر دې عالم الغيب هم وی، نو دې جملې دا واضحه کړه چه علم غيب د رسول او پيغمبر صفت څکه نه شی کيدې چه دا د الله تعالی يو خاص صفت دې البته الله تعالی چه کوم پيغمبر ته اوغواړی نو د غيبو په رازونو ئې خبرداره کوی، خو په دغه وجه ورته عالم الغيب نه شی وئيلې څکه چه دوی هر يو د غيب راز په خپله خوښه نه شی معلومولې.

---

(۱) تفسير القرطبی تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۲۳

دریمه خبره ئې دا اوفرمائیله ﴿وَلَآ اَقُوْلُ اِنِّیْ مَلَكٌ﴾ زه درته دا نه وایم چه زه فرشته یم| په دې کښې د دوی د دې خیال رد اوشو چه رسول دې فرشته وی.

څلورمه خبره ئې دا اوفرمائیله چه ستاسو په نظر کښې کوم غریبانان چه سپک او ذلیله راځی نو ستاسو په شان خو زه نه شم وئیلې چه الله تعالی به دوی ته څه خیر نښیگره ورنه کړی ځکه چه خبردار شې چه د خیر نښیگرې تعلق د مال او دولت سره نه دې بلکه د انسان زړه سره دا تعلق لری او د زړونو په حال الله تعالی خبر دې چه د چا زړه د خیر او د اصلاح قابل دې او د چا زړه د دې قابل نه دې. بیا ئې اوفرمائیل چه ستاسو په شان که دوی ته زه هم سپک اوذلیل وایم نو په ظالمانو کښې به شمار شم.

وَاُوْحِیَ اِلٰی نُوْحٍ اَنَّهٗ لَنْ یُّؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ

او وحی اوکړې شوه | نوح ته | چې بیشکه | هرگز به ایمان رانوړی نور څوک | د قوم ستا نه

او حضرت نوح ﷺ ته وحی کړې شوې وه | چې ستا په قوم کښې چې چا ایمان راوړې دې

اِلَّا مَنْ قَدْ اٰمَنَ فَلَا تَبْتَىٕسْ بِمَا كَانُوْا یَفْعَلُوْنَ ۳۶

مگر| هغه څوک| چې ایمان ئې راوړې دې| نو ته مهٔ غمژن کیږه| په وجه د هغه کارونو چې دوی ئې کوی

هغه راوړو | اوس په کښې بل هیڅوک ایمان نهٔ راوړی | نو تهٔ ددوئ په کارونو هیڅ غم مهٔ کوه

وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْیُنِنَا وَوَحْیِنَا وَلَا تُخَاطِبْنِیْ

اوجوړه کړه | بیړئ | په نگرانئ زمونږ کښې | اومطابق دوحی زمونږ | اومهٔ کوه خبرې زما سره

اوزمونږ په نگرانئ کښې کشتئ جوړه کړه| اوزمونږ په حکم ئې جوړه کړه |اوماسره د ظالمانو په

فِی الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ ۳۷ وَیَصْنَعُ

په حق دهغه کسانو کښې | چې ظلم ئې کړې دې | بیشکه دوئ | دوبیدونکی دی | او جوړوله هغه

باره کښې خبره مهٔ کوه |.........دوئ به خواه مخواه دوبیږی |اوهغه به بیړئ جوړوله |اوهرکله چې دقوم

الْفُلْكَ ۙ وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَیْهِ مَلَاٌ مِّنْ قَوْمِهٖ سَخِرُوْا

بیړئ | او هر کله چې به | تیریدل | په هغه باندې| سرداران| دقوم دهغه نه | نو توقې به ئې کولې

سرداران به ئې په خوا کښې تیریدل| نو توقې به ئې درپورې کولې | هغه به ورته اووئیل

مِنْهُ ۭ قَالَ اِنْ تَسْخَرُوْا مِنَّا فَاِنَّا نَسْخَرُ مِنْكُمْ

په هغه پورې|اووئیل نوح|که تاسو توقې کوئ |په مونږپورې|نو مونږه به |توقې اوکړو|په تاسو پورې

که تاسو مونږ پورې توقې کوئ| نو مونږ به تاسو پورې توقې اوکړو| لکه چې تاسو

كَمَا تَسْخَرُوْنَ ۳۸ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ یَّاْتِیْهِ عَذَابٌ

لکه څنګه چې | تاسوتوقې کوئ| نو زر به معلوم شی تاسوته | هغه څوک| چې رابشی هغه ته| عذاب

په مونږ پورې توقې کوئ | ډیر زر به درته معلومه شی چې په چا باندې شرمونکې عذاب رازی

Scanned with Ca

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يُّخْزِيْهِ | وَيَحِلُّ | عَلَيْهِ | عَذَابٌ | مُّقِيْمٌ ۝ | حَتّٰٓى | اِذَا جَآءَ |
| چې رسوا به کړي هغه | او نازليږي | په هغه باندې | عذاب | هميشه | تردې پورې | کله چې راغې |
| او په چاباندې دهميش عذاب نازليږي |.................. [داخبرې کيدې] تر دې چې زمونږ حکم | | | | | |
| اَمْرُنَا | وَفَارَ | التَّنُّوْرُ | قُلْنَا | احْمِلْ | فِيْهَا | مِنْ كُلٍّ |
| حکم زمونږ | او راوخوټکيدو | تنور | نو اووئيل مونږه | سوارۀ کړه | په دې کښتې | دهر قسم ځناور نه |
| راغلو | او د زمکې نه اوبه راووتلې | نومونږ ورته اووئيل چې په دې کښتې دهر قسم ځناورو نه | | | | |
| زَوْجَيْنِ | اثْنَيْنِ | وَاَهْلَكَ | اِلَّا | مَنْ | سَبَقَ | |
| جوړې[نر او ماده] | دوه | او دکور خلق خپل | مګر[مهٔ سوروه] | هغه څوك | چې وړاندې تيره شوې ده | |
| يو يو جوړه يعنې دوه دوه اوخيژوه | اودخپل کور خلق هم مګر [هغه نه ] دچا په حقله چې فيصله شوې | | | | | |
| عَلَيْهِ | الْقَوْلُ | وَمَنْ | اٰمَنَ ؕ | وَمَآ اٰمَنَ | مَعَهٗٓ | |
| په هغه باندې | خبره | اوسواره کړه هغه څوك | چې ايمان ئې راوړې دې | اونۀ وو راوړې ايمان | دهغه سره | |
| ده | اونور مسلمانان[هم په کښتې کښينوه] | اوهغه سره ډيرو لږو کسانو ايمان راوړې وو......... | | | | |
| اِلَّا | قَلِيْلٌ ۝ | | | | | |
| مګر | لږو خلقو | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او نوح ته وحی وکړې شوه چه ستا د قوم نه چه اوسه پورې چا ایمان راوړې دې، دهغې نه سوا نور څوك به ایمان نه راوړي نو کوم حرکتونه چه دا خلق کوي په هغې مه خفه کیږه. او ځمونږ په نګرانئ کښې او ځمونږ د وحي په مدد سره کشتئ جوړه کړه او څوك چه ظالمان دي د هغوی په باره کښې ماسره څه خبره مه کوه، اوس دوی غرقیدونکي دي. نو هغه کشتئ جوړوله او کله چه به هم د هغه د قوم سرداران په هغه باندې تیریدل نو د هغه سره به ئې ټوقې کولې نوح علیه السلام ووئیل چه: که تاسو مونږ پورې خاندئ نو مونږ به هم داسې وخاندو تاسو پورې لکه چه تاسو خاندئ او ډیر زر به تاسو ته پته ولګي چه په چا به داسې عذاب راځي چه هغه لره به رسوا کړي، او په چا داسې قهر نازلیدونکي دې چه هغه به چرې هم لرې نه شي. تر دې چه ځمونږ حکم راغې او تنور جوش ووهلو نو مونږ (نوح علیه السلام ته) ووئیل چه: دې کشتئ کښې د هر قسم ځناورو نه دوه دوه جوړې سورې کړه او ستاد کور والو نه چه د چا په باره کښې دمخکښې نه وئیلې شوی دی (چه د کفر د وجې نه به دوی غرقیږي) د هغوی نه علاوه باقي کور والا هم او ځومره کسانو چه ایمان راوړې دې هغوی لره هم (ځهل ځان سره واخله) او ډیر لږ کسان وو چه هغوی ایمان دده سره راوړې وو.

## خلاصه تفسیر:

﴿وَاُوْحِيَ اِلٰى نُوْحٍ اَنَّهٗ لَنْ يُّؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ اِلَّا مَنْ قَدْ اٰمَنَ فَلَا تَبْتَىِٕسْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ۝﴾ او [کله چه به نصیحت کولو کښې ډیره زمانه تیره شوه او هیڅ اثر پرې ونشو نو] نوح [علیه السلام] ته وحی ولیږلی شوه

Scanned with CamScanner

چه غیر دهغونه چه [تراوسه] ایمان ئې راوړی دی بل یو [نوی] کس به ستاسو د قوم نه ایمان نه راوړي نوځه چه داخلق [کفر، زیان رسول او خنداګانې درپورې] کوي په دې هیڅ غم مکوئ [ځکه چه خفګان خو خلق په هغه ښکاره کوي چه د توقع خلاف څه راپیښ شي هرکله چه ددوی نه دبل څه طمع غیر ددی نه نشوه کیدې نو بیا غم ولې وشي ؟] [او هرکله چه زمونږ اراده اوس ددوی دغرقولو ده او دی لپاره طوفان راروان دی، پس].

﴿وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا ۚ إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ﴾ تاسو [دی طوفان نه دبچ کیدو لپاره] زمونږ په نګرانۍ کښې او زمونږ په حکم سره کشتۍ تیاره کړئ [چه دهغې په زریعه به تاسو او مومنان دطوفان نه محفوظ پاتې شئ] او [داواورئ چه] ماسره د کافرانو [دخلاصۍ] په باره کښې هیڅ خبره مکوئ [ځکه چه] دوی به ټول غرقولی شي دوی لپاره په یقیني ډول داتاکلی شوی دی نو دوی لپاره سفارش کول به بیکاره وي.

﴿وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ مِّن قَوْمِهِ سَخِرُوا مِنْهُ ۚ قَالَ إِن تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ﴾

غرض داچه نوح [علیه السلام] دکشتۍ جوړولو سامان راجمع کړو او کشتۍ تیارول ئې شروع کړل [بخپله یا په نورو ترکاڼانو] او [پدغې دوران کښې] کله به چه ددوی دقوم ځنې څوک سرداړتولی په دوی تیریدونو [چه په کشتۍ جوړولو به ئې ولیدو او داخبره ئې تری واوریده چه طوفان راتلونکی دی] او ریوری به ئې خنداکوله [چه ګورئ د ابوخوچرته نوم نشان نشته هسې خان په عذابوي] ده وویل چه که تاسو مونږ پورې خنداکوئ نو مونږ به په تاسو پورې خاندو ځکه چه تاسو په مونږ پورې خاندئ [چه عذاب داسی نژدی راغلی دی او تاسو خنداګانی کوئ، مونږ پدی پورې خاندو.

﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ﴾ پس اوس به تاسو ته معلومه شي چه هغه څوک سړی دی چه په هغه [په دنیا کښې] داسی عذاب راځی کوم چه ده لره رسواکوي او [دمرګ نه پس] په ده دائمي عذاب نازلیږي [غرض داسی خبری او معاملې کیدی].

﴿حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ تردې چه کله خمونږ حکم [دعذاب نژدی] راورسید او دځمکې نه اوبه خوټکیدل شروع شوا و دانښه وه دطوفان دشروع کیدو او دپاس نه اوبه وریدل شروع شوی.

﴿قُلْنَا احْمِلْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ وَمَنْ آمَنَ ۚ وَمَا آمَنَ مَعَهُ إِلَّا قَلِيلٌ﴾ دغه وخت] مونږ [نوح علیه السلام ته] وفرمائل چه دهرقسم [ځناورو] نه [کوم چه دانسان لپاره پکارراځي او په اوبو کښې ژوندي نشي پاتي کیدې شي] یو یونر او یو یو ماده یعنی دوه دوه پدې [کشتۍ] کښې سواره کړه او خپل کورو الاهم [سواره کړه] غیر دهغونه په کوموچه [دغرقیدو] حکم نافذ شوېدی [یعنی پدوی کښې چه کوم کافران وي دکوموپه باره کښې چه ﴿إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ﴾ ویلی شوی دی دوی مه سوروه او دکوروالونه علاوه] نورو ایماندارولره هم [سواره کړه] او بغیر دلږو خلقونه دده سره نور هیچا ایمان نه وو راوړی [پس هم ددغو دسورولو حکم وشو].

## معارف او مسائل

حضرت نوح علیه السلام ته الله تعالی زر کاله اوږد عمر ورکړو، دې سره سره ورته الله تعالی د بلنې ورکولو د قوم د اصلاح کولو او د پیغمبرۍ کوشش کولو دا درجه ورکړه چه د عمر په دې اوږده موده کښې به ئې همیشه د پاره خپل قوم ته د دین او د توحید د کلمې بلنه ورکوله، قوم نه ورته سخت زیانونه راپیښ شو، قوم به په کاڼو ویشتو سره بې هوشه کړو چه په خود به شو

نو دا دعا به ئې کوله چه یاالله؛ زما قوم معاف کړې دوی بېوقوفان دی، جاهلان دی، نه پوهیږي، د قوم ړومبي نسل پسې دویم او دویم پسې دریم نسل ته ئې په مخه په دې امید بلنه ورکوله چه شاید حق قبول کړي، چه په دې حالت په سوونو کالونه تیر شو نو هغسې شکایت ئې اوکړو کوم چه په سورت نوح کښې داسې راغلې دې؛

﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوْتُ قَوْمِي لَيْلًا وَنَهَارًا ۝ فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَائِي إِلَّا فِرَارًا ۝﴾ اود دومره اوږدو مصیبتونو نه پس هم د دې خدائي بنده په خله باندې دا دعا راغله؛ ﴿رَبِّ انصُرْنِي بِمَا كَذَّبُونِ ۝﴾ [اې زما پروردګاره د دوی د دروغژن بللو په مقابله کښې زما امداد اوکړې]

د حضرت نوح علیه السلام د قوم ظلم چه د حد نه تیر شو نو الله تعالی نوح علیه السلام په هغې آیتونو سره مخاطب کړو چه کوم پورته ذکر شوي دی [بغوی، مظهری] [1]

په دې کښې اول حضرت نوح علیه السلام ته اوښولې شو چه د چا ایمان راوړل وو هغوی ایمان راوړو اوس به بل څوک ایمان قبول نه کړي، د هغوی په زړونو باندې د نارامۍ او د سرکشۍ په وجه مهرلګېدلې دې، څکه تاسو اوس غم مه کوئ او ددوی په ایمان نه قبلولو باندې مه پریشانه کیږئ.

دویمه خبره ورته دا اوښوډلې شوه چه اوس مونږه په دې قوم باندې د اوبو د طوفان عذاب راوستونکي یو څکه تاسو یوه کشتئ تیاره کړئ چه په کښې ستاسو د کور ټول خلق او ټول مسلمانان سره د خپلو ضروریاتو نه ځای شي، د پاره د دې چه د طوفان په وخت په دې کښې سوریدو سره خلاص شي، حضرت نوح علیه السلام د حکم مطابق کشتي جوړه کړه، بیا کله چه د طوفان ابتدائي نخښې ښکارې مخې ته راغلې، یعنی زمکې نه اوبه راخوټکېدل شروع شوې نوح علیه السلام ته حکم ورکړې شو چه پخپله سره د خپل بال بچ او د هغې خلقو نه چه په تاسو ئې ایمان راوړې دې په دې کشتئ کښې سواره شئ او کومو ځاروو ته چه د انسان ضرورت پیښیږي د هغې یوه یوه جوړه هم ځان سره کشتي کښې سواره کړئ لکه غوا، چیلي، اس، خروغیره د دې هم یوه یوه جوړه په کشتئ کښې سواره کړې، حضرت نوح علیه السلام هم هغسې اوکړل څنګه چه ورته حکم شوې وو.

په آخر کښې فرمائی چه په نوح علیه السلام باندې ایمان راوړونکي او مسلمانان په شمیر کښې ډیر کم وو چه ورسره په کشتي کښې سواره شوې وو.

دا خلاصه د هغې مضمون شوه کوم چه په دې آیتونو کښې بیان شوې دې، اوس د هر آیت د مفهوم تشریح او هغې سره تړلي مضمونونه او مسئلې اوګورې.

په ړومبي آیت کښې فرمائی چه د چا ایمان راوړل وو هغوی ایمان راوړو دې نه پس به نور څوک ایمان نه راوړي څکه تاسو د دوی په نامناسبه رویه باندې غم مه کوئ ولې چه غم خو په هغه څه کولې شي چه د سمیدو او کامیابۍ امید ئې کولې شي او بیا دغسې او نه شي، لهذا تاسو د دوی نه ناامیده شئ ولې چه ناامیدی هم یو قسم آرام وی، د دوی د زیاتونو نه چه کوم حضرت نوح علیه السلام ته اورسیدو د هغې انتظام ته په دویم آیت کښې داسې اشاره اوکړې شوه چه دوی به د اوبو په طوفان کښې غرق کړې شي په داسې حالاتو کښې د حضرت نوح علیه السلام په خله یو ښیره راغلله چه په سورت نوح کښې داسې راغلې ده؛

﴿وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ۝ إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ۝﴾

---

[1]) تفسیر البغوی تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۱۸۳، والتفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۸۳

Scanned with Ca

[یعنی اې زما پروردګاره اوس د دې کافرانو نه څوک هم په زمکه باندې آباد پرې نه ږدې ځکه که پرې ئې ږدې نو د دوی آئنده نسل به هم دغسې سرکشان او فاجران کافران وي]اد دې ښېرې په قبلیدو سره د نوح ﷺ ټول قوم په طوفان کښې غرق شو.

**حضرت نوح ﷺ ته د کشتۍ جوړولو تعلیم:** کله چه حضرت نوح ﷺ ته د کشتۍ جوړولو حکم ورکړې شو نو هغوی دغه وخت نه کشتې پیژندله او نه ئې په جوړولو پوهیدلو ځکه په دویم آیت کښې ئې د نوح ﷺ د کشتې جوړولو حقیقت داسې بیان کړو ﴿وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا﴾ [یعنی تاسو زمونږ په نګرانۍ او زمونږ د وحی مطابق کشتې جوړه کړې]

په حدیث شریف کښې راغلې دی چه جبرائیل ﷺ حضرت نوح ﷺ ته د وحی په ذریعه د کشتۍ جوړولو ټول ضروریات او طریقه اوښودله، نوح ﷺ د سال[ساج] الرګی نه دغه کشتۍ تیاره کړه، په بعضې تاریخی روایتونو کښې د دې پیمائش داسې ښودلې شوې دې، اوږد والې ئې درې سوه ګزه وو، پنځوس ګزه پلن والې، دیرش ګزه لوړ والې او درې چتی جهاز وو، د رواج مطابق په کښې ښې او ګس ارخ (۱) ته روشن دانونه خلاصیدل د جهاز جوړولو دا کاریګری د خدائی وحی په ذریعه د ټولو نه ړومبې د حضرت نوح ﷺ په لاس شروع شوه چه وخت په کښې ترقی جاری ده.

**د ټولو ضروری کاریګریانو شروع د وحی په ذریعه شوې ده:** د حافظ شمس الدین ذهبی رحمه الله په [الطب النبوی] کښې د بعضې پخوانو بزرګانو نه نقل شوې دی چه انسان د پاره د څومره کاریګریانو چه ضرورت دې د هغې ټولو شروع د وحی په ذریعه د یو پیغمبر ﷺ په واسطه سره په عمل کښې راغلې ده، بیا د ضرورت مطابق په کښې اضافې او اسانې په مختلفو زمانو کښې هم داسې کیدې، د ټولو نه ړومبې پیغمبر آدم ﷺ ته چې کومه وحی راغلی وه هغې زیاته حصه د کروندې په باره کښې وه، او مختلفو کاریګریانو سره تړون لری، د ښیتی پورته کولو د پاره د پایو په ذریعه د چلیدونکی ګاډی ایجاد هم د دې سلسلې یوه کړې ده.

د علی ګړه بانی سرسید صاحب څه ښه وئیلې دی چه زمانې قسماقسم ګاډی ایجاد کړل خو د هر قسم ګاډی مدار هم په دروُ او پایو باندې دې، که هغه د غوایانو ګاډی دی، که خرګاډی دی، د اور ګاډی دی او که اعلی قسم موټر ګاډی دی، په دې بنیاد د ټولو نه اول او ایجاد کونکې د ګاډو هغه څوک دې چا چه پایه ایجاد کړه ولې چه د ټولې دنیا د مشینرۍ روح هم پایه ده، معلومه شوه چه دا ایجاد د ټولو نه اول حضرت آدم ﷺ د وحی په ذریعه کړې دې.

دې نه معلومه شوه چه د ضروری څیزونو کاریګری دومره ضروری ده چه د وحی په ذریعه پیغمبرانو ﷺ ته ښودلې شوې ده.

حضرت نوح ﷺ ته چه د کشتۍ جوړولو هدایت ورکړې شو نو ورته ئې دا هم اوفرمائیل چه ستاسو قوم کله چه په طوفان غرقیږی نو زړه ورباندې مه سیزې او سفارش ئې مه کوې.

په دریم آیت کښې دا بیان راغلې دې چه د کشتۍ جوړولو په زمانه کښې د حضرت نوح ﷺ قوم بیا هم غافله وو او د خپل خراب انجام هیڅ فکر ئې نه لرلو، چنانچه نوح ﷺ کله چه په کشتۍ جوړولو کښې مصروف وو نو د قوم سرداران به چه ورغلل ورته به ئې وئیل چه څه کوې؟

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۳۲۸

نوح ﷺ به ورته فرمائيل چه طوفان راروان دي څکه کشتي جوړوم، په دې آوريدو به هغوی ورپوري خندا کاني او توقي شروع کړې ونيل به ئې چه دلته خو د څکلو د اوبو قاطي ده، د کشتي چلولو به څه صورت کيدې شي؟ حضرت نوح ﷺ به ورته اوفرمائيل چه [که نن راپوري تاسوتوقي کوې نوياد لرې چه يوورځ داسې هم را روانه ده چه مونږ به درپوري توقي کوو، مراد دادې چه داسې حالات به پيداشي چې بيا به تاسو لائق د استهزاء شي، ولې چه په حقيقت کښې چا پوري خندا کول او توقي کول د پيغمبرانو ﷺ شان سره نه ښائي، هيچا لره دا نه روا کيږي بلکه حرام دی، لکه قرآن کريم کښې الله تعالى فرمائي ﴿لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّن قَوْمٍ عَسَىٰ أَن يَكُونُوا خَيْرًا مِّنْهُمْ﴾
[يعنی هيڅوک دې بل چا پوري توقي نه کوی کيدې شی چه هغه د دغې توقي کوونکی نه غوره وی]په دې وجه دلته د توقو کولو نه مراد د هغوی د توقو کولو عملی جواب داسې دې چه کله تاسو په عذاب کښې راګير شې نو مونږ به درته اوښايو چه دا دې ستاسو د توقو انجام لکه چه وريسې په څلورم آيت کښې فرمائي[زر به تاسو ته معلومه شی چه په چا باندې داسې عذاب راتلونکې دې چه هغه رسوا کوی او په چا به دائمی عذاب وی؟] رومبی عذاب نه مراد د دنيا عذاب دې او د عذاب مقيم نه مراد د آخرت دائمی عذاب دې.
پنځم آيت کښې د طوفان شروع کيدل بيان شوی دی، او په دې باره کښې د هداياتو او واقعاتو سلسله شروع شوې ده لکه فرمائی ﴿حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ [يعنی کله چه زمونږ حکم راورسيدو او تنور نه اوبه راختکيدل شروع شو].
د تنور لفظ د ګڼرو معنو د پاره استعماليږی، د زمکې مخ ته هم تنور وئيلې شی، د روټې پخولو تنور ته هم تنور وئيلې شی، د زمکې لوړې برخې ته هم تنور وئيلې شی، په دې وجه د تفسير بعضې امامانو فرمائيلې دی چه دلته د تنور نه مراد مخ د زمکې دې چه اوبه ترې راوختکيدې، بعضو ترې د حضرت آدم ﷺ تنور مراد اخستې دې چه د شام ملک کښې په [عين ورده] مقام کښې وو، چه په هغې کښې اوبه راختکيدل شروع شو، بعضو ترې د حضرت نوح ﷺ خپل تنور مراد اخستې دې چه په کوفه کښې وو، چنانچه اکثرو مفسرينو ﷺ، حضرت حسن، مجاهد، شعبی ﷺ او حضرت عبدالله بن عباس ﷺ هم دا غوره کړې ده.
حضرت شعبی ﷺ خو به په قسم سره ونيل چه دا تنور د کوفې ښار په يو ګټ کښې وو او دا چه حضرت نوح ﷺ خپله کشتي د کوفې په جومات کښې دننه جوړه کړې وه او تنور د دغې جومات په دروازه کښې وو.
حضرت ابن عباس ﷺ فرمائيلې دی چه الله تعالى حضرت نوح ﷺ ته فرمائيلې وو چه کله ستاسو د کور د تنور نه اوبه راختکيدل شروع شی نو پوهه شه چه طوفان راغلو [قرطبی و مظهری] (۱)
مفسر قرطبی ﷺ فرمائيلې دی چه اګر که د تنور په معنی کښې د مفسرينو ﷺ اقوال مختلف دی مګر په حقيقت کښې هيڅ اختلاف نشته، مطلب دا چه د طوفان اوبه د روټې پخولو د تنور نه هم راختکيدل شروع شو، د مخ د زمکې نه هم راختکيدل شروع شو، د شام ملک د عين

(۱) تفسير القرطبی تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۳۳، ۳۴، والتفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۸۶، وتفسير البغوی تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۱۸۶

الوردة د تنور نه هم اوبه راختېکېدل شروع شو لکه چه قرآن کریم هم فرمائی ﴿فَفَتَحْنَآ اَبْوَابَ السَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنْهَمِرٍ ۝ وَّفَجَّرْنَا الْاَرْضَ عُيُوْنًا﴾ [یعنی مونږ د آسمان دروازې د شیبو د باران د پاره پرانیستې شوې او د زمکې د هر ځاې نه چینې راختېکېدل شروع شو.

امام شعبی رحمه الله په خپل بیان کښې فرمائیلې دی چه د مسجد حرام، مسجد نبوی او مسجد اقصی نه پس د کوفې هغه ځلورم جومات دې چه امتیازی [خصوصی] شان لری.

وړپسې فرمائی؛ ﴿قُلْنَا احْمِلْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ﴾ [چه کله طوفان شروع شو نو حضرت نوح علیه السلام ته حکم اوکړې شو چه په دغې کشتۍ کښې هر قسم ځناور جوړه جوړه سواره کړه].

دې نه معلومه شوه چه په کشتۍ کښې د ټولې دنیا ځناور نه وو سواره کړې شوې بلکه یواځې هغه خاروی په کښې سواره کړې شوې وو چه د نر ښځې د جوړه کیدو نه پیدا کیږی، او په اوبو کښې ژوندې نه شی پاتې کیدې په دې بنا دریابی ځناور دې نه اووتل او د اوچې هغه ځناور ترې هم اووتل چه بې د نر او ښځې د جوړه کیدو نه پیدا کیږی لکه د زمکې چینجی وغیره شو، په دې کښې صرف هغه ځناور ورداخل شو چه خلق ئې پالی لکه غوا، میښه، چیلې ګډه وغیره شو.

دې سره هغه شبه لرې شوه چه په سرسری نظر سره داسې پیدا کیدې شوه چه په کشتۍ کښې د ټولې دنیا ځناور څنګه راجمع کیدې شو؟ دومره زیات ځاې په کښې چرته وو؟

بیا حضرت نوح علیه السلام ته فرمائی؛ [چه تاسو د خپل کور خلق سوا د هغو نه په کشتۍ کښې سواره کړئ چه په کفر باندې دی، او ټول هغه خلق هم سواره کړئ چه په تاسو ئې ایمان راوړې دې، خو د ایمان راوړونکو شمیر ډیر کم دې.

د کشتۍ والو صحیح شمیر په قرآن او حدیث کښې نه دې ټاکلې شوې حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه منقول دی چه دغه ټول اتیا کسان وو، په دې کښې د حضرت نوح علیه السلام درې ځامن سام، حام، یافث، او د هغوی درې بیبیانې وې، ځلورم خوې ئې د کافرانو سره پاتې شو او طوفان کښې غرق شو.(۱)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ | ارْكَبُوْا | فِيْهَا | بِسْمِ اللهِ | مَجْرٖهَا | | |
| او اووئیل نوح | سواره شئ | په دې کښې | په نوم دالله دی | روانیدل ددې | | |
| اوهغه اووئیل په دې کښې سواره شئ | دالله ﷻ په نوم ددې روانیدل او | | | | | |
| وَمُرْسٰهَا | اِنَّ | رَبِّيْ | لَغَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ | وَهِيَ | تَجْرِيْ |
| اوودریدل ددې | ابیشکه | رب زما | خامخا بښونکې دی | رحم کونکې دی | او هغه | روانه وه اوړل یې هغو لره |
| اودریدل دی ابیشکه زما پروردګار بښونکې مهربان دی | اوبیړۍ هغوئ دغرونو په شان دنګو چپو | | | | | |
| بِهِمْ | فِيْ مَوْجٍ | كَالْجِبَالِ | وَنَادٰى | نُوْحُ | اِبْنَهٗ | وَكَانَ |
| چې هغوی په کښې وو | په داسې چپو کښې | چې وې پشان دغرونو | او آواز اوکړو | نوح | اخوی خپل ته | او وو هغه |
| کښې روان کړل | او حضرت نوح علیه السلام خپل خوئ ته آواز اوکړو | او هغه یو طرفته ولاړ وو | چې | | | |

(۱) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۷۷

فِيْ مَعْزِلٍ يّٰبُنَيَّ ارْكَبْ مَّعَنَا وَلَا تَكُنْ مَّعَ الْكٰفِرِيْنَ ۝
په غاړه | اې زما خویه | سور شه | زمونږ سره | اومه کیږه ته | دکافرانو سره
اې زما [خوږه] بچیه مونږ سره راسور شه ............ | اوکافرو سره مه پاتې کیږه

قَالَ سَاٰوِيْٓ اِلٰى جَبَلٍ يَّعْصِمُنِيْ مِنَ الْمَآءِ ۭ قَالَ
اووئیل هغه | زه به پناه اونیسم | یو غرته | چې بچ به کړی ما | د اوبو نه | اووئیل نوح
هغه[په جواب کښې]اووئیل چې زه به اوس یو غرته اوخیژم[چې د سیلاب د اوبو نه به مې بچ کړی]هغه[نوح ﷺ]

لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ ۚ وَحَالَ
نشته بچ کیدونکې | نن ورځ | دحکم دالله نه | مګر په چا چې | رحم اوکړی هغه | او حائله شوه
ورته اووئیل | چې نن هیڅوک دالله ﷻ د حکم [عذاب] نه بچ کیدونکې نشته | مګر الله چې پخپله په

بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِيْنَ ۝ وَقِيْلَ يٰٓاَرْضُ
په منځ د دواړو کښې | چپه | نو شو هغه | د ډوبیدونکو څخه | او اووئیلې شو | اې زمکې
چا رحم اوکړی | په دې کښې د دواړو ترمینځه یوه چپه راوچته شوه | نو هغه ډوبیدنکو کښې شامل شو

ابْلَعِيْ مَآءَكِ وَيٰسَمَآءُ اَقْلِعِيْ وَغِيْضَ الْمَآءُ وَقُضِيَ
راکاږه | اوبه خپلې | او اې آسمانه | بندشه | او کمې شوې | اوبه | او اوشوه
اوحکم اوشو چې اې زمکې خپلې اوبه راکاږه | او اې اسمانه بس شه | نو اوبه کمې شوې | او کار پوره

الْاَمْرُ وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُوْدِيِّ وَقِيْلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝
فیصله | او ودریده بیړئ | په جودی باندې | او اووئیلې شو | الرې والې دې وی | دپاره دقوم | ظالم
شو | او بیړئ په جودی [نومې غر] باندې اودریده | او اووئیلې شو چې ظالمان خلق [درحمت نه] لرې

## آسان ترجمه قرآن

او نوح (دې ټولو ته) ووئیل چه: دې کشتۍ کښې سواره شئ. ددې روانیدل هم دالله د نوم په امداد سره دي او ودریدل هم. یقین وکړئ چه زما پروردګار ډیر بخښونکې، ډیر مهربان دی. او هغه کشتۍ د غرونو په شان د چپو په مینځ کښې روانه وه او نوح خپل ځوئ ته چه د ټولو نه جدا وو، آواز ورکړو چه: اې ځویه! مونږ سره سور شه او د کافرانو نه مه کیږه هغه ووئیل چه زه به اوس په یو غر کښې پناه واخلم چه ما به د اوبو نه بچ کړي. نوح (علیه السلام) ووئیل چه نن ورځې دالله د عذاب نه څوک بچ کونکې نشته، سوا د هغه چا نه چه هغه باندې الله رحم وکړي. دې نه وروستو د هغوی په مینځ کښې چپه راغله او هغه هم ډوبیدونکو کښې شامل شو. او حکم وشو چه اې زمکې! خپلې اوبه اوچې کړه او اې آسمانه! اودریږه! او اوبه کوزې شوې. او ټول کار پوره شو او کشتۍ په جودی غر باندې اودریده او ووئیلې شو چه تباهي ده هغه قوم له چه هغه ظالم وي!

Scanned with Ca

**خلاصه تفسير:**

﴿ وَقَالَ ارْكَبُوا فِيهَا بِسْمِ اللَّهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا ۚ إِنَّ رَبِّي لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ او [نوح ﷺ تولو خناورولره سواره کړه خپلوتابعدارانوته ئې] وفرمائل چه [راشئ] پدې کشتئ کښې سواره شئ [ اودغرقيدونه مه ويريږئ ځکه چه] ددې تلل اوودريدل [ ټول] دالله په نوم سره دي [اوهغه ددې حفاظت کوونکې دې نوبيا ويره ولې وکړې شي اواګرچه دبندګانوګناهونه تقاضې دغرقيدوکوي مګر]په يقين سره خمارب غفوردې رحيم دې [هغه پخپل رحمت سره ګناه بخښې اوحفاظت هم کوي ].

﴿ وَهِيَ تَجْرِي بِهِمْ فِي مَوْجٍ كَالْجِبَالِ وَنَادَىٰ نُوحٌ ابْنَهُ وَكَانَ فِي مَعْزِلٍ يَا بُنَيَّ ارْكَب مَّعَنَا وَلَا تَكُن مَّعَ الْكَافِرِينَ ﴾ غرض داچه ټول په کشتئ کښې سواره شو. دې مينځ کښې اوبه زياتي شوې] اودغې کشتئ دوی واخيستل دغره پشان چپوکښې روانه شوه او[نوح ﷺ]خپل [يوسکه ياميرنې] زوی ته [چه کنعان نوميده اوباوجود د پوهولو ئې ايمان نه وو راوړی اوپه ده دايمان نه راوړوپه وجه په کشتئ کښې نه ووس ورکړې شوی دغه وخت کشتئ غاړې ته نژدې وه اودی دغلته موجود وو په طوردآخري دعوت ئې ورته آوازوکړو]اوهغه[ دکشتئ نه] په جدامقام ووچه ای خماخوږه خويه[ په کشتئ کښې دسوريدوشرط چه ايمان دی زرېوره کړه] زمونږسره سورشه او[په عقيده کښې] دکافرانوسره مه کيږه[ يعنی کفرپريږده چه دغرقيدونه بچ شې].

﴿ قَالَ سَآوِي إِلَىٰ جَبَلٍ يَعْصِمُنِي مِنَ الْمَاءِ ۚ قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ إِلَّا مَن رَّحِمَ ﴾ هغه وويل چه زه به اوس غرته وخيژم چه مابه [دغرقيدو]نه بچ کړي [ځکه چه دغه وخت د طوفان ابتداء او شروع وه دغرنوسرونوته اوبه نه وې رسيدلې ]نوح[ﷺ]وفرمائل چه نن دالله دقهرنه څوك بچ کونکې نشته [نه غراونه بل څه] ليکن په چاچه هغه رحم وکړي [نوهغه به پخپله بچ کړي ، خو کنعان داوخت هم ايمان رانه وړ واواوبه په شورزورسره دې طرف ته زياتې شوې] .

﴿ وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِينَ ﴾ اوددواړو [پلارخوی] ترمنځ چپه حائله شوه نوهغه [هم دنوروکافرانوپه مثل] غرق شو.

﴿ وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي وَغِيضَ الْمَاءُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُودِيِّ ﴾او[هركله چه کافران ټول غرق شول نو]حکم وشوچه ای ځمکې خپلې اوبه[کومې چه ستاپه سطح موجودې دي] تيرې کړه اوای آسمانه[ دوريدونه] بندشه [ځنو دواړه کارونه وشو] اواوبه ختمې شوې او قصه ختمه شوه کشتئ په جودی [غره] باندې راغله ودريده.

﴿ وَقِيلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴾ او ووئيلې شوچه کافران خلق درحمت نه لرې دي.

**معارف او مسائل**

**په کشتئ کښې او په نورو سورلو باندې د سوريدو طريقه:** د دې آيتونو نه په رومبی آيت کښې د کشتئ يا په نورو سورلو باندې د سوريدو طريقې په دې شان ښودلې شوې دی چه ﴿بِسْمِ اللَّهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا﴾ اوئيلو سره د سوريږی د[مجری]معنی جاری کيدل او روانيدل دی او د[مرسی]معنی ايساريدل دی،د دې ټولې جملې معنی دا شوه چه د دې کشتئ او د سورلو تلل هم د الله تعالی په قدرت او د هغه په نوم سره دی او اودريدل او ايساريدل ئې هم د هغه د قدرت تابع دی.

**د هرې سورلۍ روانيدل او اودريدل صرف د الله تعالی په قدرت سره دی:** که انسان د معمولی غور او فکر نه کار واخلی نو ورته به معلومه شی چه د کشتئ يا د وچې د نورو سورلو پيدا کول او جوړول

د ده په قدرت کښې نشته او نه ئې د دې روانول او اودرول د ده په لاس کښې دی، انسان په سرسری نظر سره دا گنړی چه د دې جوړول او ورانول زما په لاس کښې دی؛ خو په حقیقت کښې انسان نه خو اوسپنه، لرگې، پیتل او المونیم پیدا کړې دی کومو نه چه دغه سورلۍ جوړیږی، او نه ئې د دې وس رسیږی چه یوه توله اوسپنه یا یو فټ لرگې پیدا کړې شی، بلکه خبره دا ده چه د دې څیزونو جوړولو د پاره عقل هم الله تعالی ورکړې دې انسان پخپله نه دې پیدا کړې، ولې چه د انسان که دا وس رسیدې نو په دنیا کښې به هیڅوک هم بې عقله او بې وقوفه نه وې پاتې شوې، هرڅوک په ارسطو او افلاطون جوړیدو، د کوم ځاې لرگې، د کوم ځاې اوسپنه او د کوم ځاې سامان او اوزار استعمالولو سره د شورلۍ ډهانچه هم جوړه شوه، اوس د دې د جوړیدو نه پس سره د دومره منونو او ټنونو بوج اوړلو او په زمکه د چلیدلو د پاره یا په هوا کښې د الوتلو د پاره چه د کوم طاقت ضرورت دې که هغه د پټرولو نه حاصلیږی او که د هوا او د اوبو په خپلو کښې د جنگیدو نه په برقی صورت کښې حاصل کړې شی، بهر حال د سوچ او فکر خبره دا ده چه په دې کښې کوم څیز انسان پیدا کړې دې؟ پټرول ئې پیدا کړې دې، هوا ئې پیدا کړې ده او که اوبه ئې پیدا کړې دی؟ او که په دې څیزونو کښې د آکسیجن یا د هائیډروجن طاقتونه ئې پیدا کړې دی ؟

په دې بنا که انسان یو پوټې قدرې هم د عقل نه کار واخلی نو د سائنسی ترقې په دې زمانه کښې به هم ورته خپله بې وسی او عاجزی په ډاگه مخې ته راشی او دې اقرار کولو ته به مجبوره شی چه د هرې سورلۍ روانیدل او اودریدل خالص د الله تعالی په قبضه کښې دی.

غافله انسان هر کله چه د الله تعالی دا پیدا کړی څیزونه یو تر بله یو ځاې کړی په هغې کښې خپل تصرفات په کښې اوچلوی او هغه عقل په کښې استعمال کړی چه الله تعالی پیدا کړې دې، بیا هم دغه خپله سائنسی کارنامه گنړی او اصلی حقیقت ئې د مخې نه په ځنگ شی، خو الله تعالی د خپلو پیغمبرانو په ذریعه د غفلت دغه پرده داسې څیرې کوی؛ ﴿بِسْمِ اللَّهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا﴾ او اصلی حقیقت ئې مخې ته کوی، په لیدلو کښې خو دا یو دوه لفظی فقره او جمله ده خو چه غور اوکړې شی نو دا په حقیقت کښې د هغې دروازې یوه کنجی ده چرته چه انسان په دې مادی دنیا کښې سره د اوسیدو نه د روحانی جهان استوګن شی او د کائناتو په ذره ذره کښې الله تعالی د جمال ننداره کوی، چنانچه هم په دې سره د مومن او د کافر د دنیا فرق ښه په ډاگه شی په سورلۍ خو دواړه سوریږی لیکن مومن په دې سره یواځې د دنیا مزل نه غوځوی بلکه عالم بالا ته هم آشنا کیږی.

په دویم او دریم آیت کښې دا ښودلې شوې دی چه هر کله د حضرت نوح عليه السلام ټول اهل وعیال په کشتئ کښې سواره شو نو په هغوی کښې کنعان نومې یو هلک د سوریدو نه ځکه پاتې شو چه پخپله هم کافر وو او کافرانو سره ئې تعلق هم وو، حضرت نوح عليه السلام ورته اواز اوکړو چه زمونږ کشتۍ ته راځه کافرانو سره مه کیږه ځکه چه غرق به شی، دا د پلار شفقت او زړه سواندی وه چه ورته ئې بلنه ورکړه او نصیحت ئې ورته اوکړو، وجه ئې دا وه چه حضرت نوح عليه السلام ته د ده د کافر کیدو یقینی علم نه وو، یا علم ورته وو خو هغه دا غوښتل چه توبه دې اوکړی او ایمان دې راوړی، کافرانو سره دې ملګرتیا پریږدی چه مونږ سره په کشتۍ کښې د سوریدو جوګه شی خو دغه وخت هم دغه بدبخت طوفان لره سرسری اوکتلو او اونې وئیل چه غم مه کوه په غر به

اوخيژم او طوفان نه به خلاص شم، حضرت نوح ﷺ ئې بيا هم مخه دې ته راوګرځوله چه نن هيڅ يو څيز چا کافر لره د الله تعالى د عذاب (طوفان) نه نه شي خلاصولې، يواځې دا کيدې شي چه الله تعالى چا لره پخپله خلاص کړي، د دې دواړو (پلار، ځوی) تر منځه دا خبره کيدله چه يو چپه د طوفان د دوی تر منځه شوه او ځوې ئې غرق کړو، د تاريخ په روايتونو کښې راغلې دی چه د دغې طوفان اوبه د غرونو د څوکو نه پنځلس يا څلويښتو ګزو پورې ختلې وې.
په څلورم آيت کښې د طوفان د ختميدو او د حالاتو د سميدو بيان داسې شوې دې: ﴿وَقِيلَ يَٰٓأَرۡضُ ٱبۡلَعِي مَآءَكِ﴾ (الله تعالى اوفرمائيل: اې زمکې ته خپلې اوبه تيرې کړه) مراد دا دې چه څومره اوبه په زمکې نه بهر راوتلې وې هغه دې بيا خپل ځان کښې جذب کړي او د آسمان نه د نورو اوبو راوريدل بند شو، آسمان نه راوريدلې اوبه الله تعالى د درياب‌ونو، نهرونو، او ولو په شکل يوخوا بل خوا او بهيولې چه انسان ترې فائده واخلي. (تفسير قرطبي، مظهري) [1]
په دې آيت کښې الله تعالى زمکې او اسمان ته حکم ورکړې دې حالانکه په ښکاره نظر کښې په دې څيزونو کښې څه شعور نشته، په دې بنا بعضې علماؤ ﷺ دې ته مجاز او استعاره وئيلې ده، خو حقيقت دا دې چه مونږ ته د دنيا څومره څيزونه بې شعوره ښکاري هغه د روح او شعور خاوندان دی، البته د هغوی شعور او پوهه د هغې درجې نه ده څنګه چه د انسان ده. هم دغه وجه ده چه دا د شعور خاوندان نه دی ګڼرلې شوې او په احکامو شرعيئو سره نه دی مکلف کړې شوې، په دې باندې د قرآن کريم ډير آيتونه ګواه دی لکه يو ځاې کښې فرمائي: ﴿وَإِن مِّن شَيۡءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمۡدِهِۦ وَلَٰكِن لَّا تَفۡقَهُونَ تَسۡبِيحَهُمۡ﴾ (داسې هيڅ يو څيز نشته دې چه د الله تعالى تسبيح نه وائي خو تاسو پرې نه پوهيږې) ښکاره خبره ده چه د الله تعالى ثنا، صفت کول د هغه په معرفت باندې موقوف دی او معرفت دا موقوف دې په عقل او شعور باندې، د دې نه معلومه شوه چه په هر څيز کښې د خپل خپل شان مناسب عقل او شعور شته دې په کوم سره چه هغه خپل خالق لره پيژني، او خالق چه په کوم کار لګولې دې هر يو څيز هغه خپل کار پيژني چه په خپل شان سره هغه ادا کوی، چنانچه د قرآني آيت: ﴿أَعۡطَىٰ كُلَّ شَيۡءٍ خَلۡقَهُۥ ثُمَّ هَدَىٰ﴾ هم دغه مطلب دې په دې وجه که زمکې او اسمان ته د الله تعالى حکم ورکول په حقيقت باندې بنا کړې شي نو دې کښې څه بديت او خند نشته لکه مولانا رومي فرمائيلې دی:

خاک و باد و آب وآتش زنده اند      بامن و تو مرده باحق زنده اند

(خاورې، هوا، اوبه او اور ژوندی دی؛ ما او تا ته خو مړی ښکاري خو د الله تعالى په نزد ژوندی دی)
د څلورم آيت په آخر کښې فرمائي چه زمکې او اسمان حکم اومنلو نو د طوفان قيصه ختمه شوه اود نوح ﷺ کشتئ په جودي غر باندې اودريده او د ظالمانو په باره کښې اووئيلې شو چه (ادوی د رحمت نه لرې دی).
جودي غر نن هم په دغه نوم سره قائم او موجود دې، دا د حضرت نوح ﷺ د اصلي وطن عراق د موصل ښار په شمال کښې جزيره ابن عمر سره نزدې د آرمينيا په سرحد باندې واقع دې، دا يوه غريزه سلسله ده چه د يوې برخې نوم ئې جودي دې، هم د دې بوې برخې ته ارارط وئيلې شی چه موجوده تورات کښې د کشتئ د ايساريدو مقام په کوه ارارط باندې بللې شوې دې، په دې

[1] تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۹، ص ۴۱، والتفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۸۹

Scanned with Ca

دوارو روايتونو كښې څه داسې تضاد نشته، مګر په مشهورو زړو تاريخونو كښې هم داسې راغلي دي چه كشتۍ د نوح ﷺ په جودي غر باندې ايساره شوې وه.
په زړو تاريخونو كښې دا هم راغلي دي چه د عراق په ډيرو ځايونو كښې د دغې كشتۍ ټكړې اوس هم موجودې دي كومې چه د تبرك په ډول اېښولې او استعمالولې شي.
په تفسير طبري او بغوي كښې راغلي دي چه حضرت نوح ﷺ د رجب د مياشتې په لسمه نيټه په كشتۍ كښې سور شوې وو، شپږو مياشتو پورې دغې كشتۍ د طوفاني اوبو د پاسه چكرې لګولې كله چه د بيت الله شريف مقام ته اورسيده نو اووه ځله طواف ئې اوكړو، الله تعالى خپل بيت پورته كړې او د غرقيدو نه بچ كړې وو، بيا د محرم د مياشتې په لسمه نيټه د عاشورې په ورځ دغه طوفان په قلاره شو او كشتۍ د جودي په غر باندې اودريده، حضرت نوح ﷺ په دغه ورځ د شكرانې روژه اونيوله او ټولو سورو بنيادمو ته ئې هم د روژې نيولو حكم وركړو، په بعضو روايتونو كښې راغلي دي چه دغه ورځ د كشتۍ ټولو ځناورو هم روژه اونيوله [مظهري او قرطبي][1]
په خوا راسې د محرم د مياشتې لسمه نيټه د ټولو پيغمبرانو ﷺ په شريعتونو كښې ډيره بركتي ورځ حساب شوې ده، د اسلام په اوله زمانه كښې د رمضان شريف د روژو فرض كيدو نه رومبې د عاشورې د ورځې روژه فرض وه، د رمضان شريف د روژو په فرض كيدو سره دا فرض پاتې نه شوه مګر سنت او لوئې ثواب هميشه د پاره دي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَنَادٰى | نُوْحٌ رَّبَّهٗ | فَقَالَ | رَبِّ | اِنَّ ابْنِيْ | مِنْ اَهْلِيْ |
| او آواز اوكړو | نوح رب خپل ته | نووې ونيل | اې ربه زما | بيشكه خوې زما | زما د كور د خلقونه دې |

پاتې شول | او حضرت نوح ﷺ خپل پروردګار ته آواز اوكړو | چې اې زما پروردګاره زما دا ځوئې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِنَّ | وَعْدَكَ الْحَقُّ | وَاَنْتَ | اَحْكَمُ | الْحٰكِمِيْنَ ۞ | قَالَ | يٰنُوْحُ |
| او بيشكه | وعده ستا | حقه ده | او ته | لوئ او بهتره فيصله كونكې يې | د حاكمانو | اووئيل الله | اې نوح |

خو هم زما د كور د خلقوځنې دې | او ستا وعده بيخي رښتوني ده | او ته په ټولو فيصله كونكو كښې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّهٗ | لَيْسَ | مِنْ اَهْلِكَ | اِنَّهٗ | عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ | فَلَا تَسْـَٔلْنِ |
| بيشكه هغه | نه دې | د اهل ستا نه | بيشكه د دۀ | عمل نيك نۀ دې | نو مۀ كوه سوال زما نه |

بهترينه فيصله كونكې يې | الله او فرمائيل چې اې نوح ﷺ دې ستا د كور د خلقونه نۀ دې | نو زما نه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | لَيْسَ | لَكَ | بِهٖ | عِلْمٌ | اِنِّيْٓ | اَعِظُكَ | اَنْ تَكُوْنَ |
| د هغه خبرې | چې نۀ وي | تالره | په هغې باندې | علم | بيشكه زۀ | نصيحت كوم تاته | چې (نۀ) شې ته |

داسې څيز مۀ غواړه | چې ته پرې نۀ پوهيږې | ............ ............ زۀ درته نصيحت كوم چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۞ | قَالَ | رَبِّ | اِنِّيْٓ اَعُوْذُ بِكَ | اَنْ اَسْـَٔلَكَ |
| د جاهلانو نه | اووئيل نوح | اې ربه زما | بيشكه زۀ پناه غواړم ستا | (د دې نه) چې سوال اوكړم ستا نه |

چرته د نادانو نه نۀ شې | حضرت نوح ﷺ اووئيل چې اې زما پروردګاره زۀ په تا سره پناه غواړم د دې

[1] تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۹، ص ۴۱، ۴۲، والتفسير المظهري: ج ۵، ص ۹۰

Scanned with Ca

مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ ۖ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِي

د هغه خيز | چي نشته | ما ته په هغې | علم | او كه اونكړه ببننه تا | ماته | او رحم دې اونه كړو په ما باندې

نه چي ستا نه داسې خيز اوغوارم | چي زما بري پوهه نه وی | او كه تا ماته بښنه اونكړه | او په مادې رحم اونكړو

أَكُنْ مِّنَ الْخَاسِرِينَ ۝ قِيلَ يَا نُوحُ اهْبِطْ بِسَلَامٍ مِّنَّا

نوشم به زه | د تاوان موندونكو نه | اووئيلي شوا | ائي نوح اكوز شه | په سلامتيا سره | د طرفه زمونږ

نو زه به په تاوانيانو كښي شمار شم | اووئيلي شو ورته ائي نوح ﷺ زمونږ د طرفه په سلامتيا او بركتونو

وَبَرَكَاتٍ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ أُمَمٍ مِّمَّن مَّعَكَ ۚ وَأُمَمٌ

او بركتونو سره | په تا باندې | او په ډلو باندې | د هغه چانه | چي ستا سره دی | اوځه نورې ډلې دی

سره كوز شه | دا به په تا او په هغې ډلو باندې وی كوم چي ستا د ملګرو نه تا سره دی | او داسې امتونه

سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ تِلْكَ

چي نفع به وركړو مونږ هغوئ ته | بيا به | اورسي هغوئ ته | د طرفه زمونږ نه | عذاب دردناك | دا قيصي

به هم راځي اچي مونږ به ورله لږې ورځې عيشونه وركړو | بيا به پرې زمونږ د طرفه دردناك عذاب راشي

مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ ۖ مَا كُنتَ تَعْلَمُهَا أَنتَ

د خبرو د غيبو نه دی | چي وحی كوو مونږ د هغې تاته | نه وې ته | چي معلوم وو تاته هغه

دا د غيبو خبرې دی چي مونږ ئې تاته د وحی په ذريعه رالېږو | تاته د دې نه وړاندې د دې څه پته نه وه

وَلَا قَوْمُكَ مِن قَبْلِ هَٰذَا ۖ فَاصْبِرْ ۖ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ۝

اونه قوم ستا ته | مخكښې د دې نه | نو صبر كوه | بيشكه | چي ښه انجام | د پاره د پرهيزګارانو دی

اونه ستا قوم ته | او س د وحې په ذريعه درته معلوم شوا نو صبر كوه [نيك] انجام د پرهيزګارو دی

## آسان ترجمه قرآن

او نوح ووئيل چه: اې ځما پروردګاره! ځما ځوې ځما د كور يو فرد دې او بې شكه ستا وعده رښتينې ده، او ته د ټولو حاكمانو نه لوئ حاكم ئې. الله تعالى وفرمائيل: يقين وكړه چه هغه ستا د كور والو نه نه دې. هغه خو د نااهل عمل والا [پېښه وكې] دې. دې وجې نه ما نه داسې څيز مه غواړه چه د هغې تا ته علم نشته. څه تا ته نصيحت كوم چه ته په ناپوهو كښې شامل نه شې. نوح ووئيل چه: اې ځما پروردګاره! څه په تا سره پناه غواړم د دې نه چه ستا نه داسې څيز وغواړم چه د هغې ما ته علم نه وي او كه تا ما ته بخښنه ونكړه او په ما دې رحم ونكړو، نو څه به هم په هغه خلقو كښې شامل شم چه هغوى تباه شوى دى ووئيلې شو چه اې نوحه! اوس (كشتۍ نه) كوز شه. ځمونږ د طرف نه هغه سلامتيا او بركتونه واخله كوم چه تا د پاره هم دى او ستا سره چه څومره قومونه دې، هغوى د پاره هم! او څه قومونه داسې دې چه هغوى ته به (دنيا كښې) د مزې اخستو موقع وركړو بيا به هغوى ته ځمونږ د طرف نه يو دردناك عذاب ورسى (اې پيغمبره!) دا د غيب څه خبرې دې چه تا ته د وحې په ذريعه كولې شې په دې خبرو دې نه مخكښې نه ته پوهيدې او نه ستا قوم. نو د صبر نه كار اخله. او آخرى انجام به د متقيانو په حق كښې وي.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسير

﴿وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ابْنِي مِنْ أَهْلِي وَإِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ ۝﴾ او [هر كله] چه نوح [علیه السلام] كنعان ته دايمان راوړولپاره وفرمائل اوده ونه منلو دده دغرقيدونه مخكې په دې اميد چه شايد الله تعالى پخپل قدرت سره دده په زړه كښې ايمان واچوى او ايمان راوړي] الله ته ئې عرض وكړو چه اى زماربه زما زوى زما دكوروالاوونه دى اوستا [دا] وعده بالكل رشتياده [چه ستا په كوروالاو كښې كومو ايمان راوړيدى هغه به بچ كړم ] او [اگركه دى فى الحال ايمان والا اومستحق دنجات ندى ليكن ]ته احكم الحاكمين [اولوى قدرت والا]ئې [كه ته وغواړې نودى مومن جوړولى شې چه دى هم ددى حق وعده محل جوړشي دعرض كولونچوړ دعاوودده دمومن كيدولپاره].

﴿قَالَ يَا نُوحُ إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ ۖ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ۖ فَلَا تَسْأَلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ۖ إِنِّي أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ ۝﴾ الله تعالى ارشادفرمائى چه اى نوح داسړى [خماپه علم ازلي كښې] ستا د [دى] كور والاوو كښې ندى [كومو چه ايمان راوړي او نجات به حاصلوي يعني دده په قسمت كښې ايمان نشته بلكه] دى [دخاتمې پورې ]تباه كار [يعنى كافرپاتې كيدونكى دى] نوماته دداسې شى درخواست مكوه دكوم چه تاته خبرنشته [يعنى دداسى احتمالى كاردعامكوه ]زه تاته نصيحت كوم چه ته په ناپوهانو كښې داخل نشې.

﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْأَلَكَ مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ ۖ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِي أَكُن مِّنَ الْخَاسِرِينَ ۝﴾ نوح [علیه السلام] عرض وكړوچه زه ستاپناه غوارم ددى نه چه [اينده]تانه دداسې كاردرخواست وكړم دكوم چه ماته خبرنه وي او[ته ئې راته معاف كړه خكه چه ] كه ته خمامغفرت ونه فرمائى اوپه مارحم ونه فرمائى نوزه خوبه بالكل تباه شم.

﴿قِيلَ يَا نُوحُ اهْبِطْ بِسَلَامٍ مِّنَّا وَبَرَكَاتٍ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ أُمَمٍ مِّمَّن مَّعَكَ ۚ وَأُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝﴾ [هر كله چه په جودى غركشتئ ودريده اوپه خوورخوكښې اوبه بيخي لاندې لاړې دغه وخت نوح علیه السلام ته اوونيلې شو [يعنى الله تعالى پخپله يا دفرشتې په ذريعه سره ارشادوفرمائلو]چه اى نوح [علیه السلام] [اوس دجودى نه خمكې ته ]كوزشئ زمونږله طرفه په سلامونواوبركتونو سره كوم چه په تاسوبه نازل شي او پدغوجماعتونوكوم چه ستاسره دي [خكه چه ده سره ملگري ټول مسلمانان وو،اوددې علت مشتركه په وجه سره ترقيامته په ټولومسلمانانوهم دسلامونو اوبركتونو نازليدل معلوم شو] او[چونكه داكلام په وروستو راتلونكومسلمانانوباندې هم دبركتونوپه نازليدلو دلالت كوي اوپه وروسوكښې به بعضې كافران هم وي پدې وجه ددوى حال هم بيانوي چه ] ديرداسې ټولگى به هم وي چه مونږبه دوى ته [په دنياكښې ]څوورځې عيش وركړو بيابه [په آخرت كښې] پدوى باندې زمونږلخواسخته سزاواقع شي.

﴿تِلْكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ ۖ مَا كُنتَ تَعْلَمُهَا أَنتَ وَلَا قَوْمُكَ مِن قَبْلِ هَٰذَا ۖ فَاصْبِرْ ۖ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ۝﴾ داقصه [ستاپه اعتبارسره] منجمله دغيبودخبرونه ده كوم چه مونږتاته دوحى په ذريعه دررسوودى[ قصى] لره [ددى زمونږدخودلو]نه مخكې نه تاپيژنده اونه ستاقوم [پيژنده پدى اعتبارسره غيب وو، او بغير دوحى نه نورټول اسباب يقينا چه نيشت دى نوثابته شوه چه تاته دوحى په ذريعه معلومه شويده اودانبوت دى ليكن داخلق سره دثبوت دنبوت نه بيا هم ستا مخالفت كوي] پس صبركوه[ لكه چه دي قصه كښې دنوح [علیه السلام] صبرتاته معلوم شوى

Scanned with Ca

دی] يقينا دانجام نيکوالئ خاص دمتقيانولپاره دی[لکه چه د نوح عليه السلام په قصه کښی معلومه شوه چه دکفاروانجام بداودمسلمانانوانجام ښه شو.نودغسی دِدی کفارو يو څو ورځي زورشور دئ په آخره کښی به غلبه دحق وي].

## معارف او مسائل

د سورت هود په دې پنځو آيتونو کښې د نوح عليه السلام د طوفان پاتې قيصه او د دې په باره کښې هدايات بيان شوې دی، د حضرت نوح عليه السلام ځوي کنعان کله چه د خپل والد بزرگوار د نصيحت او بلنې باوجود په کشتې کښې سور نه شو نو د طوفان په چپو کښې د هغه په ليدو سره ئې د پلاروالې شفقت په جوش کښې راغلو او يوه بله لار ئې وِرله اختيار کړه چه د الله تعالى په دربار کښې ئې عرض اوکړو چه اې الله تاسو ما سره وعده کړې ده چه زما د کور خلق به د طوفان نه خلاصوې، او بې شکه ستاسو وعده حقه او صحيح ده خو صورت حال دا دې چه زما ځوې چه زما په کور والو کښې داخل دې هغه غرقيدونکې دې، او تاسو خو احکم الحاکمين ئې، هر يو څيز ستاسو په قدرت کښې دې، اوس ئې هم د طوفان نه محفوظ کولې شې.

په دويم آيت کښې د الله تعالى د طرفه د دې په جواب کښې حضرت نوح عليه السلام ته خبرداري ورکړې شو چه دا هلک ستاسو په بال بچ کښې داخل پاتې نه شو ولې چه د هغه عمل ښه نه دې، بلکه ناکاره کار کوی، ځکه تاسو لره د حال د حقيقت نه په دې شان بې خبره پاتې کيدل نه دی پکار چه هم دا شان سوال رانه اوکړې، مونږه درته نصيحت کوو چه په نادانانو کښې داخل نه شې.

د الله تعالى د دې ارشاد نه دوه خبرې معلومې شوې، اول دا چه حضرت نوح عليه السلام ته د خپل دغه ځوی د کفر حال معلوم نه وو، هغه منافق وو په دې وجه ئې هغه مسلمان گنړلو چه د خپلې کورنې يو فرد ئې اوگرځولو او د طوفان نه د خلاصولو دعا ئې اوغوښتله، که نوح عليه السلام ته د هغه اصلي حال معلوم شوې وې نو داسې دعا به ئې نه کوله، ولې چه نوح عليه السلام ته ښه په ښکاره د ړومبی نه هدايات ورکړې شوې ووچه کله طوفان راشی نوبياپه دې سرکشانو کښې دهيچا سفارش اونه کړې لکه چه په تيروشوؤ آيتونو کښې راغلې دی﴿وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ﴾ د دې صفا او ښکاره حکم نه پس داسې نه شو کيدې چه د الله تعالى پيغمبر د دې د خلاف کار کړې وې سوا د هغې احتمال نه چه د تفسير په خلاصه کښې اخستې شوې دې چه د دغې دعا مطلب دا وو چه دغه هلک مومن شی او د هغې په وجه د عذاب نه خلاص شی داسې نه چه اوس په دې حالت د کفر کښې دې د عذاب نه خلاص شی، ليکن د حضرت نوح عليه السلام د هغه د کفر دغه بې خبری او په دغې بنا باندې ورله د خلاصی دعا کول هم الله تعالى صحيح عذر او نه گرځولو، ځکه ئې خبرداري ورکړو چه په ناخبرې کښې دې داسې دعا اوکړه؟ او هر کله چه دغه لغزش د پيغمبرې شان سره سمون نه خوری ځکه به د قيامت په ورځ حضرت نوح عليه السلام دې لره د عذر صورت کښې وړاندې کړی کله به چه د خداې ټول مخلوق د هغوی نه د شفاعت کولو خواست اوکړی او به فرمائي چه هر کله ما نه داسې لغزش شوې دې نو زه په شفاعت کولو زړه نه شم کولې.

**کافرانو او ظالمانو د پاره دعا کول ناروا دی:** دې نه يوه مسئله دا هم معلومه شوه چه دعا کونکې دې اول په دې خان پوهوی چه دکوم کا دپاره دعا غواړی آيا هغه کار حلال او روا دې او که نه؟ په هغه حالت کښې د چا د پاره دعا کولو نه منع کړې شوې ده چه حالت ئې پوره معلوم نه

وی، چنانچه تفسير روح المعانی کښې د قاضي بيضاوی نه نقل شوې دی چه په دې بنا باندې د نامعلوم حالت خاوند د پاره هر کله چه دعا کول منع شو نو د هغه حالت خاوند د پاره دعا کول په طريقه اولی سره منع کيدل ثابت شو چه د معاملې ناجائز والې او حرام والې ئې معلومه وی[1] د عام رواج په جوړ هر کله چه څوک هم بزرگانو او پيرانو ته راشی نو هغوی ورله خامخا دعا کوی سره د دې چه اکثرو ته دا هم معلومه وی چه کومې مقدمې د پاره هغه د دعا کولو خواست کوی نو په دې کښې هغه په ناحقه يا ظالم وی يا داسې يو مقصد د پاره د دعا خواست کوی چه هغه د پاره حلال نه وی، يعنی يا داسې ملازمت، نوکري او منصب د پاره دعا کوی چه د هغې نه به په حرامو کښې اخته کيږی يا د چا حق تلفی به ترې کيږی نو داسې دعا گانې کول په هغې صورت خو حرام او ناروا دی چه د دعا غوښتونکی حالت ورته معلومه وی او که حالت ئې ورته معلوم نه وی نو د حقيقت او د معاملې د روا والی علم حاصلولو نه بغير دعا کول هم مناسب نه دی.

**د مومن او کافر تر منځه د وروولې تړون نه شی کيدې د وطن يا نسب په بنياد باندې قوميت ولاړول د اسلام د اصولو نه بغاوت کول دی:** بله مسئله ترې دا معلومه شوه چه د مومن او کافر تر منځه اګر چه نسبی نژدې خپلوی موجوده وی خو په دينی او اجتماعی معاملو کښې به د دغې خپلوې هيڅ اثر به نه وی، که هر څوک هر څومره د لوړ او اوچت نسب خاوند وی، د هر څومره بزرگ بنده اولاد وی تر دې پورې چه د سيد الانبياء ﷺ په اولاد او خاندان کښې وی او مومن نه وی نو په دينی معاملو کښې به د دغه لوړ نسب او پيغمبر ﷺ سره د دغه نسبی تړون هيڅ لحاظ نه شی کولې، ولې چه په ټولو دينی معاملاتو کښې د ټولو دينی معاملو مدار خو په ايمان، صلاح او تقوی باندې دی، يعنی نيکوکار او متقی به د مسلمان خپلوان وی چه داسې نه وی او ايمان نه لری نو بيا د مسلمان خپلوان نه شی جوړې دې لکه فرمائی؛

هزار خويش که بيگانه از خدا باشد  فدائے يک تن بيگانه کاشنا باشد

[په زرګونو نسبی خپلوان چه د الله تعالی نه نااشناوی ؛ هغه دې داسې يو نااشنا کس باندې قربان وی چه د الله تعالی دوست وی]

که په دينی معاملو کښې هم د نسبی خپلوې لحاظ وې نو د بدر او احد په ميدانونو کښې به د رور توره په رور او د څوی توره په پلار نه اوچتيده، چنانچه د بدر او احد او احزاب غزاګانې خو هم د نسبی خپلوانو تر منځه شوی وې، په دې بنا ايمانداران خلق د ټولو ايماندارانو رونړه دی اګر چه هغه د هر ملک او وطن استوګن وی، هره ژبه وائی او هر رنګ لری، هم دا مطلب د ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾

او کوم خلق چې ايمان او نيک عمل نه محرومه دی هغه د اسلامی برادرئ افراد نه دی. حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام دا خبره نوره هم واضحه کړې ده لکه قرآن کريم چه نقل کړې دی فرمائی؛

﴿إِنَّا بُرَآءُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ [يعنی مونږه تاسو نه هم ويزاره يو او ستاسو د معبودانو نه هم ويزاره يو] .

---

[1]) روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۵۱

په دې مسئله کښې احقر [مفتي محمد شفيع رحمه الله] د ديني معاملو قيد ځکه لګولې دې چه په دنيوي معاملو کښې هر څه سره ښه سلوک کول که هغه کافر وي او نسبي خپلوان هم نه وي نو دا ډير ښه او د ثواب کار دې، دې ته ښه روزګار، ښه اخلاق، احسان او ښيګړه کول وئيلې شي، پخپله رسول الله ﷺ هم او ټولو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم دغسې کړې دی او د غير مسلمو سره د ښه سلوك بې شميره قصې په دې ګواه دی.

نن صبا چه په وطنيت، ژبه يا رنګ باندې د قوميت بنياد ايښودې شی، لکه عرب بيل قوم ګڼرلې شی، هندی او سندی بيل بيل قومونه ګڼرلې شی نو دا د قرآن او سنت نه خلاف او د رسول الله ﷺ د سياست د اصولو نه بغاوت کول حسابيږي.

په دريم آيت کښې د حضرت نوح عليه السلام د معذرت بيان دې چې خلاصه ئې دا ده چه نوح عليه السلام الله تعالى اړخ ته د رجوع کولو د هغه د پناه اخستلو د غلطو کارونو نه د بچ کيدلو د پاره هم د الله تعالى په پناه کښې د راتلو خواست او دعا ئې کړې ده، بيا د تير شوي لغزش د معافۍ خواست دې او د خداې د رحمت غوښتل دی.

دې نه دا خبره هم معلومه شوه چه د انسان نه چه څه ګناه اوشی نو په آئنده کښې هغې نه د بچ کيدو په خپل قصد او اراده دې تکيه نه کوی بلکه د الله تعالى په پناه کښې د راتلو او د ګناهونو نه د بچ کيدو خواست دې د الله تعالى نه کوی.

په څلورم آيت کښې د طوفان د ختميدو بيان داسې دې چه د طوفان په ختميدو د حضرت نوح عليه السلام کشتې په جودی غر اودريده او د زمکې اوبه زمکې خپل ځان ته راښکلې او آسمانی پاتې اوبه د نهرونو او سيندونو په شکل کښې محفوظ پاتې شوې چه په نتيجه کښې ئې زمکه د انسانی استوګنې جوګه شوه، په دې موقع حضرت نوح عليه السلام ته اووئيلې شو چه اوس د غر نه زمکې ته راکوز شئ او هيڅ فکر او غم ځکه مه کوې چه تاسو سره به زمونږ د اړخه برکتونه او سلامتي وی، يعنی د آفتونو او مصيبتونو نه به سلامت ئې، په مال اولاد کښې به مو فراخی او برکت وی.

د دې ارشاد مطابق د طوفان نه پس ټول انسانان د حضرت نوح عليه السلام اولاد دې لکه بل ځاې کښې چه الله تعالى هم داسې فرمائی ﴿وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبَاقِينَ﴾ په دې بنا باندې د تاريخ خاوندانو حضرت نوح عليه السلام ته آدم ثانی فرمائيلې دی.

د سلامتئ او د برکت دا وعده يواځې حضرت نوح عليه السلام سره نه ده شوې بلکه د دوی ملګرو ډلو سره هم شوې ده کوم چې ورسره په کشتئ کښې سوارهٔ وو لکه قرآن کريم فرمائی: ﴿وَعَلَىٰ أُمَمٍ مِّمَّن مَّعَكَ﴾ کوم خلق په کشتئ کښې چه ورسره سواره وو هغوی ئې د جمع په لفظ ﴿أُمَمٍ﴾ سره ياد کړل حالانکه وړاندې وئيلې شوې دی چه کشتې کښې سواره زيات خلق د حضرت نوح عليه السلام د خاندان خلق وو، يعنی دغه وخت اګر چه دا د يو خاندان او يو امت خلق وو مګر په راتلونکو وختونو کښې هر کله چه د دوې نه ډيرې ډلې او امتونه جوړيدونکې وو ځکه ئې ورله د جمع لفظ امم استعمال کړو، په دې لحاظ سره په: ﴿أُمَمٍ مِّمَّن مَّعَكَ﴾ کښې د دنيا ټول هغه انسانی نسلونه داخل دی چه تر قيامته پورې به پيدا کيږي.

د دې پاره ضروری شوه چه د سلامتې او برکت په مضمون کښې تفصيل اوشی ځکه چه د قيامته پورې راتلونکې نسلونو کښې خو به مومنان هم وی او کافران هم، مومن د پاره خو

سلامتي او بركت د خپل عام مفهوم په اعتبار سره درست دي چه په دنيا كښې به هم ورته سلامتي او بركت نصيب كيږي او په آخرت كښې هم، ليكن هم په دې نسل كښې به كافران هم وي هغوي خو به د جهنم په دائمي عذاب كښې مبتلا وي هغوي ته د سلامتې او بركت محل وئيل څنګه صحيح كيدې شي؟ د دې وجهې نه په آخر د آيت كښې ئې اوفرمائيل: ﴿وَأُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُمْ مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ يعني د دنيا سلامتي او بركت د الله تعالى داسې يو فراخه خوانچه ده چه كافر او مسلمان، نافرمان او فرمانبردار ټول ترې فائده اخلي خو د آخرت كاميابي اوفراخي به يواځې د مومنانو برخه وي، د كافر د نيكو بدله به هم ورته په دنيا كښې وركړې شي خو په آخرت كښې به ئې هميشه عذاب په برخه وي چه د خلاصيدو هيڅ درك به ئې ترې نه لګي.

د طوفان نوح دا تفصيلي خبرونه رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه معلومه شو او خپل قوم ته ئې واورول نو دا واقعه پخپله د دې ګواه شوه چه رسول الله ﷺ په حقه پيغمبر دې او هم په دې غرض په پنځم آيت كښې فرمائي: «دا حضرت نوح ﷺ او د هغوي د طوفان واقعات د غيبو خبرونه دي چه دې نه وړاندې پرې نه تاسو ﷺ خبر وې او نه پرې ستاسو ﷺ قوم عرب خبر وو خو هر كله چه دا هم تاسو ﷺ ورته اوښودل نو معلومه شوه چه د الله تعالى د اړخه درته د وحي په ذريعه ښودلې شوې وو، ولې چه د رسول الله ﷺ قوم هم ليك او لوست نه وو كړې او د دنيا د تاريخ نه هم خبر نه وو نو د هغوي نه د خبريدو سوال ئې څكه نه شو پيدا كيدې، رسول الله ﷺ بهر ملك ته هم چرته نه وو تلې چه هلته ئې د دې معلومات حاصل كړې وې، نو ثابته شوه چه دا ورته يواځې د وحي په ذريعه معلوم شوي دي چه په حقه د پيغمبر كيدو دليل ئې دې.

په آخر د آيت نبي كريم ﷺ ته تسلي وركولو د پاره اوفرمائيلې شو چه ستاسو په پيغمبرئ باندې د نمر نه زيات روښانه دليلونو باوجود كه څوك بدبخته نه مني او تاسو سره جګړه كوي نو تاسو د خپل رومبي پيغمبر نوح ﷺ نمونې ته اوګورئ چه هغوي ﷺ خپل ټول عمر [زر كاله] هم په دغې مصيبتونو او تكليفونو كښې تير كړو، څنګه چه نوح ﷺ صبر اوكړو تاسو ﷺ هم دغسې د صبر نه كار واخلې څكه چه دا خبره تاكلې شوې ده چه د انجام كاميابي او خلاصې به د متقيانو وي.

وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ
او عاد يانو ته | مونږ او ليږلو | رور د هغوي | هود | او وئيل هغه | اې قومه زما | بندګي كوئ | د الله | نشته تاسو د پاره يو معبود
او قوم عاد ته مو د هغوي [قومي] رور هود ﷺ اوليږلو هغه ورته اووئيل اې زما قومه تاسو

غَيْرُهُ ۖ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ ۝ يَٰقَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ
سوا د هغه نه | نه يئ تاسو | مګر | دروغ جوړونكي | اې زما قومه | نه غواړم زه ستاسو نه | په دې كار باندې
د الله ﷻ عبادت كوئ د هغه نه بغير ستاسو بل معبود نشته | تاسو خو بس په الله دروغ تړلي دي | اې زما قومه

أَجْرًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى الَّذِي فَطَرَنِي ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝
څه بدله | نه ده بدله زما | مګر | په هغه الله باندې | چې پيدا كړې ئې يم زه | آيا نو د عقل نه كار نه اخلئ تاسو
زه ستاسو نه په دې [تبليغ] هيڅ بدله نه غواړم | زما بدله خو د هغه په ذمه ده | چې زه ئې پيدا كړې يم | نو تاسو

Scanned with Ca

وَيٰقَوْمِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَآءَ

او اې زما قومه | معافي اوغواړئ | درب خپل نه | بيا | توبه اوباسئ | هغه ته | راوبه ورو ی اسمان[نه]

ولې دعقل نه کار نه اخلئ | او اې زما قومه دخپل پروردګار نه ښښنه اوغواړئ| بياهغه ته توبه اوباسئ

عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا وَّيَزِدْكُمْ قُوَّةً اِلٰى قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا

په تاسو باندې|په شيبوشيبو باران| اوزيات به درکړی تاسو له|طاقت|سره دقوت ستاسو||اومهٔ اړوئ مخ

هغه به درباندې په شيبو شيبو بارانونه اووروی ||اوتاسو ته به ددې طاقت سره نور زيات طاقت درکړی

مُجْرِمِيْنَ۝ قَالُوْا يٰهُوْدُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ

په داسې حال کښې چې مجرمان يئ |هغوئ اووئيل ||اې هود| نه دې راوړې تامونږ ته | دليل ښکاره

اود مجرم په حيثيت[دحق نه ]مخونه مهٔ اړوئ|هغوئ جواب کښې اووئيل چې اې

وَّمَا نَحْنُ بِتَارِكِيْٓ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ۝

اونهٔ يومونږ پرېښودونکی|خدايان خپل| په وينا ستا | اونهٔ يومونږه | په تاباندې | ايمان راوړونکی

هودتاخوځان سره مونږته څه سندنهٔ دې راوړې||اومونږخپل معبودان ستا په وينانشوپرېخودې او په تا ايمان نشو راوړې

اِنْ نَّقُوْلُ اِلَّا اعْتَرٰىكَ بَعْضُ اٰلِهَتِنَا بِسُوْٓءٍ ؕ قَالَ اِنِّيْٓ

نهٔ وايو مونږه| مګردا چې | در رسولې دې تا ته| خينو | خدايانو زمونږه | څه ضرر | اووئيل هود | بېشکه زهٔ

مونږداګنړوچې ګنې زمونږ يومعبود تهٔ په دې مشقت کښې اچولې يې هغه اووئيل چې زه الله ﷻ ګواه کوم

اُشْهِدُ اللّٰهَ وَاشْهَدُوْٓا اَنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ۝ۙ مِنْ دُوْنِهٖ

ګواه کوم | الله | اوګواهان شئ تاسو | چې زهٔ | بېزاره يم | د هغې نه | چې شريکوی يې تاسو | غير د الله نه

اوتاسو هم ګواهان اوسېږئ|چې زهٔ ستاسو دشرک نه ويزار يم دالله ﷻ نه

فَكِيْدُوْنِيْ جَمِيْعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُوْنِ۝ اِنِّيْ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ

نوتدبيرونه اوکړئ زما خلاف| ټول | بيا | مهٔ راکوئ مهلت ماته|بېشکه ما بهروسه کړی ده|په الله باندې

سوا تاسو ټول ماته سازشونه جوړ کړئ||اوبيا ماته لږ هم مهلت مهٔ راکوئ| زما په الله ﷻ بهروسه ده

رَبِّيْ وَرَبِّكُمْ ؕ مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ اٰخِذٌۢ بِنَاصِيَتِهَا ؕ

چې رب زما دې| اورب ستاسودې| نشته هيڅ يو زنده سرې | مګرالله | نيونکې دې| تندې د هغه

چې زما اوستاسو پرودرګار دې| داسې هيڅ يو ساه لرونکې نشته| چې د هغه تندې

اِنَّ رَبِّيْ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ۝ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقَدْ

بېشکه| رب زما | په لاره نيغه دې | نو که چرې |مخ واړوئ تاسو| نو په تحقيق سره

دالله ﷻ په قبضه کښې نهٔ وی| بېشکه زما پروردګار په نيغه لار موندې شی| نو که تاسو

اَبْلَغْتُكُمْ مَّآ اُرْسِلْتُ بِهٖٓ اِلَيْكُمْ ؕ

دراورسوو ما تا سو ته | هغه پيغام | چې رالېږلې شوې ووم زهٔ| په هغې سره | تاسو ته

مخونه واړول نوواړوئ| يقيناً ما درته هغه پيغام دراورسولو |د کوم د پاره چه زهٔ تاسو ته رالېږلې شوې

Scanned with Ca

وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّيْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ۚ وَلَا تَضُرُّوْنَهٗ

اور به ولی ستاسو په خای | رب زما | یو قوم | غیرله تاسو نه || او تاسو به ضرر اونهٔ رسولی شئ هغه ته

یم | او زما پروردگار به ستاسو په خای یو بل قوم آباد کړی | او تاسو هغه ته هیڅ نقصان نشئ رسولی

شَيْـًٔا ۭ اِنَّ رَبِّيْ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ حَفِيْظٌ ۝ وَلَمَّا جَاۗءَ اَمْرُنَا

هیڅ شئ | بیشکه | رب زما | د هر څیز | ساتونکی دی | اوهرکله چې | راغی | حکم زمونږ

........... زما پروردگار د هر څیز نگهبان دی || او څه وخت چې زمونږ حکم راغلو | نو مونږ

نَجَّيْنَا هُوْدًا وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ

نونجات ورکړو مونږه | هود ته | او هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړی وو | د هغه سره | په رحمت سره

حضرت هود ؑ او د هغه ایماندار ملگری پخپل فضل سره بچ کړل | ...........

مِّنَّا ۚ وَنَجَّيْنٰهُمْ مِّنْ عَذَابٍ غَلِيْظٍ ۝ وَتِلْكَ عَادٌ ڐ

د طرفه خپل نه || او نجات ورکړو مونږ هغوئ ته | د عذاب | سخت نه | او دغه | عادیان دی

او مونږ هغوی د ډیر سخت عذاب نه بچ کړل | او دغه عادیان وو | چې

جَحَدُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهٗ وَاتَّبَعُوْٓا

چې انکار اوکړو هغوئ | د آیتونو | د رب خپل نه | او نافرمانی ئې اوکړه | د رسولانو د هغه نه || او تابعداری ئې اوکړه

د خپل پروردگار د نښو نه ئې انکار اوکړو | او د هغه د پیغمبرانو نافرمانی ئې اوکړه | او د هر ظالم

اَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ ۝ وَاُتْبِعُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً

د حکم | د هر سرکشه | جگړه مار || او اولږولی شو پسې هغوئ پسی | په دنیا کښې [هم] | لعنت

او د هر سرکشه د حکم تابعداری ئې اوکړه | آخر دا چې په دې دنیا کښې هم لعنتی شو ...........

وَّيَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اَلَآ اِنَّ عَادًا كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ۭ اَلَا بُعْدًا

او په ورځ د قیامت هم | خبردار | بیشکه عادیانو | کفر اوکړو | د رب خپل | خبردار | لرې والی دی

او د قیامت په ورځ به هم لعنتی وی | واورئ چې قوم عاد د خپل پروردگار نه منکر شو | خبر شئ چې

لِّعَادٍ قَوْمِ هُوْدٍ ۝ وَاِلٰي ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا ۘ قَالَ يٰقَوْمِ

د پاره د عادیانو | چه قوم د هود وو || او ثمودیانو ته | رور د هغوئ | صالح || او وئیل هغه | ائې زما قومه

عادیان چه قوم د هود ؑ وو د رحمت نه الرې پریوتل | او ثمود | نومی قوم | ته مو د هغوئ رور صالح ؑ

اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ۭ هُوَ اَنْشَاَكُمْ

بندگی اوکړئ | د الله | نشته تاسو د پاره | هیڅ یو معبود | بغیر د هغه نه | هغه | پیدا کړی یئ تاسو

اولیږلو | هغه ورته اووئیل چې ائې زما قومه د الله عبادت کوئ | اچې د هغه نه سوا بل څوک د عبادت

مِّنَ الْاَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيْهَا فَاسْتَغْفِرُوْهُ ثُمَّ

د زمکې نه | او هغه اباد کړی یئ تاسو | په هغې کښې | نو تاسو معافی اوغواړئ د هغه نه | بیا

لائق نشته | هم هغه تاسو د زمکې نه پیدا کړی یئ || او په زمکه ئې آباد کړی یئ | نو د هغه نه معافی

تُوبُوٓا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ ۝ قَالُوا۟ يَٰصَٰلِحُ

توبه اوباسئ | هغه ته | بیشکه | رب زما | نزدې دی | قبلونکي د دعا دی | اهغوئ اووئیل | ائي صالحه

اوغوارئ ابیا ورته توبه اوباسئ | بیشکه زما رب اهرچاته | نزدې او دعا قبلونکي دی | هغوئ اووئیل

قَدْ كُنتَ فِينَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هَٰذَآ ۖ أَتَنْهَىٰنَآ

بیشکه وې ته | په مونږ کښې | د طمعې اسرا | مخکښې | د دې نه | آیا ته منع کوې مونږه

چې ائي صالح ﷺ ! د دې نه مخکښې ستا نه زمونږ ډیرې طمعې وې آیا ته مونږ د هغه بتانو د عبادت

أَن نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ ءَابَآؤُنَا وَإِنَّنَا

چې عبادت اوکړو مونږه | دهغې | چې عبادت به ئې کولو | پلارانو زمونږه | او بیشکه مونږه

نه منع کوئ اچې زمونږ پلار نیکه ئې عبادت کولو | او مونږ خو ستا..........

لَفِى شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُونَآ إِلَيْهِ مُرِيبٍ ۝

خامخا په شک کښې یو | د هغې [طریقې] نه | چې ته رابلې مونږه | هغې ته | په عظیم شک کښې

د بلنې په حقله په ډیر شک کښې په غټ تردد کښې پراته یو..........

قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ

اووئیل هغه | ائي قومه زما | آیا ګورئ تاسو | که چرې یم زه | په ښکاره شهادت سره

هغه اووئیل چې ائي زما قومه داخو اووائې اکه زه دخپل پروردګار د طرفنه په یو ښکاره دلیل ولاړ یم

مِّن رَّبِّى وَءَاتَىٰنِى مِنْهُ رَحْمَةً فَمَن يَنصُرُنِى

دطرفه درب خپل نه | او راکړې ئې دې ماته | دطرفه خپل نه | رحمت | نوڅوک به | مدد اوکړی زما

اوهغه په ما خپل رحم هم کړې وی | نو څوک به دالله ﷻ په مقابله کښې زما مدد اوکړی | که زه

مِنَ ٱللَّهِ إِنْ عَصَيْتُهُۥ ۖ فَمَا تَزِيدُونَنِى غَيْرَ تَخْسِيرٍ ۝

په مقابله د الله | که نافرمانی اوکړم زه د هغه | نونه زیاتوئ تاسو ما لره | بې د نقصانه

د هغه نافرمانی اوکړم | نوتاسو ماته د نقصان رارسولو نه سوا بل څه نشئ کولې..........

وَيَٰقَوْمِ هَٰذِهِۦ نَاقَةُ ٱللَّهِ لَكُمْ ءَايَةً ۖ فَذَرُوهَا تَأْكُلْ

او ائي قومه زما | دا اوښه د الله ده | ستاسو د پاره | نښه | نو پرېږدئ هغه | چې خوری

ائي زما قومه دا اوښه د الله ﷻ ده | او ستاسو دپاره نښه ده | نو پرېږدئ چې د الله ﷻ په زمکه کښې

فِىٓ أَرْضِ ٱللَّهِ ۖ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ

په زمکه دالله کښې | او مه رسوئ دې ته | [څه] تکلیف | ګنې نو اوبه نیسی تاسو | عذاب

آزاده خرېږی | او د بدئ لاس ورته مه اوړئ | ګنې یو نزدې عذاب به مو راونیسی

قَرِيبٌ ۝ فَعَقَرُوهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوا۟ فِى دَارِكُمْ ثَلَٰثَةَ

نزدې | نوزخمی ئې کړه هغه | نو اووئیل صالح | نفع واخلئ | په کورونو خپلو کښې | درې

خوهغوئ اوښه زخمی کړه | انو صالح ﷺ ورته اووئیل چې پخپلو کورونو کښې بس درې ورځې

Scanned with Ca

أَيَّامٍ ۖ ذَٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوبٍ ﴿٦٥﴾ فَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا

ورځې | دا وعده ده | چې نه ده دروغ | نو هر کله چې | راغلو | زمونږه حکم | نجات ورکړو مونږ

نورې تيرې کړئ! دا يوه داسې نيته ده چې په دې کښې معمولي دروغ نشته! نو هر کله چې زمونږ حکم

صٰلِحًا وَّالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا

صالح ته | او هغه کسانو ته | چې ايمان ئې راوړې ووٓ | دهغه سره | په رحمت سره | د طرفه خپل نه

راورسيدو انو مونږ صالح ﷺ او د هغه مسلمانان ملګرې پخپل رحمت سره بچ کړل او دهغې ورځې

وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيزُ ﴿٦٦﴾ وَأَخَذَ

او د رسوايئ | د دغې ورځې نه | بيشکه | رب ستا چې دې | هم هغه | قوي دی | غالب دې | او اونيولو

د شرم نه مو [محفوظ کړل] بيشکه ستا پروردګار ډير قوي او غالب دې | باقي پاتې ظالمان شو نو

الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دِيَارِهِمْ جَاثِمِينَ ﴿٦٧﴾

هغه کسانولره | چې ظلم ئې کړې ووٓ | چغې | بيا او ګرزيدل هغوئ | په کورونو خپلو کښې | پرمخې پراته

هغوی باندې يوه ناترسه چغه راغله | نو پخپلو کورونو کښې داسې پرمخې پريوتل

كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۗ أَلَا إِنَّ ثَمُودَ كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ

لکه چې نه ووٓ اوسيدلې | په دغه ځائ کښې | خبردار | بيشکه چې | ثموديانو | انکار او کړو | د رب خپل

لکه چې هډو هلته اوسيدلی نهٔ وو | او اورئ! چې ثموديانو خپل پروردګار نه انکار کړې وو

أَلَا بُعْدًا لِّثَمُودَ ﴿٦٨﴾

خبردار | لرې والی دې | ثموديانو لره |

واورئ چې ثموديان [د رحمت نه] ډير لرې او غورزيدل |

## آسان ترجمه قرآن

او قوم عاد ته مونږ د هغوی ورور هود پيغمبر او ليږلو هغه ووئيل چه : اې ځما قومه ! دالله عبادت وکړئ د هغه نه سوا تاسو دپاره بل معبود نشته. ستاسو حقيقت دې نه سوا بل څه نشته چه تاسو د دروغو خبرې جوړې کړې دی اې ځما قومه ! څه تاسونه په دې (تبليغ) باندې څه اجرت نه غواړم. ځما اجر خو هغه ذات په ذمه اغستې دې چه هغه زهٔ پيدا کړې يم بيا هم تاسو دعقل نه کار نه اخلئ ؟ اې ځما قومه ! دخپل پروردګار نه د ګناهونو معافي وغواړئ. بيا هغه طرف ته رجوع وکړئ هغه به په تاسو باندې شيبه دار باران راوليږی او ستاسو موجوده طاقت کښې به نور زياتوالې وکړي . او مه آوړئ مجرمان. هغوی ووئيل: اې هوده! ته مونږ ته په څه واضح دليل سره نه ئې راغلې او مونږ خپلو خدايانو لره ستا د وينا وجې نه پريښودونکي نه يو . او نه مونږ په تا باندې ايمان راوړونکي يو. مونږ خو دې نه سوا نور څه نه شو وئيلې مګر دا چه ځمونږ د خدايانو نه ځنو تا لره ډير په بدئ اغستې دې هود ووئيل چه څه الله ګواه کوم او تاسو هم ګواه شئ چه څه دالله نه سوا تاسو چالره د هغه په خدائي کښې شريک کوئ . زهٔ د هغې نه بيزاره يم. اوس تاسو ټول په ټوله يوځائې شئ زما په خلاف چالونه اوکړئ. او ماته لږ مهلت هم مه

Scanned with CamScanner

را کوئ ما خو په الله اعتماد کړي دي چه ځما هم پروردګار دې او ستاسو هم - په زمکي ګرځيدونکي يو زنده سر داسي نشته چه د هغې ښتو کي د هغهٔ په قبضه کښ نه وي. يقيناً ځما پروردګار په نيغه لاره دي بيا هم که تاسو مخ اړوئ نو کوم پيغام بانديې چه ځه ليږلي شوي يم هغه ما تاسو ته رسولي دې. او (ستاسو د کفر دوجې نه) ځما پروردګار به بل يو قوم دلته راولي، او تاسو به هغه ته څه نقصان ونه رسوئ -بې شکه ځما پروردګار د هر يو څيز حفاظت کوي او (آخر) چه کله ځمونږ حکم راغې نو په خپل رحمت سره مو هود او کومو خلقو چه دهغه سره ايمان راوړې وو هغوى هم بچ کړل او دوى ته مو د يو سخت عذاب نه خلاصون ورکړو. دا وو عاديان چه دوى د خپل پروردګار د نښو نه انکار کړې وو او دهغه د پيغمبرانو نافرماني ئې کړي وه، او د هر يو داسي کس حکم ئې ومنلو چه هغه سخت ظالم او د حق پوخ دښمن وو او (ددې نتيجه دا شوه) چه دې دنيا کښ هم لعنت په دوى پسې شو او د قيامت په ورځ هم. ياد وساتئ چه قوم عاد دَخپل رب نه انکار کړې وو! ياد وساتئ چه برباد عاديان شو چه د هود قوم وو! او قوم ثمود ته مونږ د هغوى يو وړور صالح پيغمبر وليږلو هغه ووئيل چه اې ځما قومه! دالله عبادت وکړئ. دهغه نه سوا تاسو دپاره څوك معبودنشته هغه تاسو د زمکې نه پيدا کړئ او دې کښ ئې تاسو آباد کړئ. نوهغه نه د خپلو ګناهونو معافي وغواړئ او بيا هغه طرفته رجوع وکړئ يقين وکړئ چه ځما رب (تاسو ته) نزدې هم دې، او ستاسو دعاګانې هم قبلوى. هغوى ووئيل چه اې صالحه: دې نه مخکښ خو ته په مونږ کښ داسې وې چه ستا نه ځمونږ ډير اميدونه وو د کومو (بتانو) عبادت چه به ځمونږ پلار نيکه کولو آيا د هغې د عبادت نه مونږ منع کوې؟ د کومې خبرې دعوت چه ته ورکوې دهغې په باره کښ ځمونږ داسې شك دې چه مونږ ئې حيران [ګډ وډ] کړى يو. صالح (عليه السلام) ووئيل چه: اې ځما قومه! لږ ما ته ووايئ چه که ځه دالله د طرف نه په څه دليل باندې يم. او هغه ما ته يو خاص رحمت (يعنې نبوت) را کړې وي بيا هم که چرې ځه دهغه نافرماني وکړم نو څوك دې چه ما د الله (د نيولو نه) بچ کړي؟ دې وجې نه تاسو (ما لره د فرايضو نه بندولو سره) د برباديئ نه سوا نور څه را کوئ؟ او اې ځما قومه! دا د الله اوښه تاسو دپاره يوه نښه ده. نو دا پريږدئ چه دا دالله په زمکه کښ څرن وکړى. او دې ته په بده اراده مه رسيږئ. هسې نه چه تاسو يو نزدې عذاب راؤنيسى بيا وشوه دا چه: چه هغوى دې لره ووژله. نو صالح ووئيل چه: تاسو خپلو کورونو کښ درې ورځې نور مزې اوکړئ. (دې نه وروستو به عذاب راځى) او دا داسې وعده ده چه دې لره څوك نه شي دروغژن کولې بيا چه کله ځمونږ حکم راغې نو مونږ صالح (عليه السلام) ته او چا چه د هغه سره ايمان راوړې وو خلاصې ورکړو او د هغه ورځې د رسوايئ نه مو بچ کړل- يقيناً ستا پروردګار ډير طاقت والا دې او ډير قدرت والا دې. او کومو کسانو چه د ظلم لار اختيار کړي وه هغوى لره يوې چغې ونيول. د هغې په نتيجه کښ هغوى په خپلو کورونو کښ پرمخ پريوتل لکه چه دوى هغلته اوسيدلي هم نه وو- ياد وساتئ چه ثموديانو دخپل رب سره د کفر معامله کړي وه! ياد کړئ چه تباهي هم د ثمود وشوه.

## خلاصه تفسير

﴿ وَاِلٰى عَادٍ اَخَاهُمْ هُوْدًا ۚ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ۚ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُفْتَرُوْنَ ۝ ﴾ ومونږه [قوم د] عاديانوته ددوى [دبرادرئ ياوطن] وروړ [حضرت] هود [عليه السلام] لره [پيغمبرجوړولو سره] وليږه

Scanned with Ca

دوی[خپل قوم ته] وفرمائل ای خماقومه تاسو[صرف ]دالله تعالى عبادت کوئ دهغه نه غیر څوك ستاسو [د]معبو د [کیدوقابل] نشته تاسو[ ددی بت پرستئ په عقیده کښی]محض دروغ جوړوونکی ئی [ځکه چه ددي باطلوالئ په دلیل سره ثابت دی ].

﴿ يٰقَوْمِ لَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ۗ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى الَّذِيْ فَطَرَنِيْ ۗ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ ﴾ ای خماقومه [خمانبوت چه کوم په دلائلوثابت دی ددي زیات تائید ددی نه هم کیږي چه ]زه ستاسونه [په تبلیغ ]څه معاوضه نه غواړم خما اجر خوصرف دهغه[ الله]په ذمه دی چاچه مالره [دمحض عدم والی نه ]پیداکړوبیا آیا تاسو[پدی ]نه پوهیږئ [چه دلیل دنبوت موجود دی اوددي نه خلاف څه وجه دشبهی نشته بیاپه نبوت کښی دشك څه وجه ده].

﴿ وَيٰقَوْمِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا وَّيَزِدْكُمْ قُوَّةً اِلٰى قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِيْنَ ۝ ﴾اوای خماقومه تاسودخپل ګناه [کفراوشرك]دخپل رب نه معافی غواړئ [یعنی ایمان راوړئ او]بیا [دایمان سره]دهغه طرف ته [په عبادت سره ]متوجه اوسئ [یعنی نیك عمل کوئ پس دایمان اونیك عمل په برکت سره ] هغه به په تاسوښه باران ووروي [په درمنثورکښی دی چه په قوم عاد دريِ کاله پرله پسي قحط پریوتلی ووا وهسي خوهم باران پکاردی]او[دایمان اوعمل په برکت سره ] چه په دې سره به تاسو ته موجوده قوت کښې ترقی درکړی [پس ایمان راوړئ ]اوپه مجرمانو کیدوسره [دایمان نه ډډه مکوئ.

﴿ قَالُوْا يٰهُوْدُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ وَّمَا نَحْنُ بِتَارِكِيْٓ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ ۝ ﴾ دوی جواب ورکړوچه ای هوده تازمونږ په مخ [دالله تعالى دطرف نه دخپل رسول کیدو] څه دلیل خوپیش نکړو [دا خبره ددوی دعنادنه وه]اومونږ ستا [صرف ]په خبرو دخپلومعبودانو[عبادت ]لره پرېښودونکی بیخي نه یواومونږ په هیڅ شان سره په تایقین کوونکی نه یو.

﴿ اِنْ نَّقُوْلُ اِلَّا اعْتَرٰىكَ بَعْضُ اٰلِهَتِنَا بِسُوْٓءٍ ۗ ﴾[او]خمونږ وینا خوداده چه څمونږ په معبودانو کښی چاتالره په څه خرابئ [لکه لیونتوب وغیره ]کښی مبتلا کړیدی [چونکه تاددوی په شان کښی ګستاخی کړیده نودوی لیونی کړي ځکه خوداسی دلیونوخبري کوي چه خدای یودې اوزه نبی یم.

﴿ قَالَ اِنِّيْٓ اُشْهِدُ اللّٰهَ وَاشْهَدُوْٓا اَنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ۝ ﴾هود [عليه السلام] وفرمائل چه [کوم تاسوچه داخبره کوئ چه چابت ته لیونئ کړي ئی نو]څه [ښکاره ]الله تعالى لره ګواه کوم اوتاسوهم [واورئ] ګواه شئ چه زه ددي څیزونونه [بلکل ]بیزاره یم کومولره چه تاسو[په عبادت کښی ].

﴿ مِنْ دُوْنِهٖ فَكِيْدُوْنِيْ جَمِيْعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُوْنِ ۝ ﴾دالله نه سواشریك مقررکوئ پس [خمادشمنی خوداول نه ښکاره ده اواوس پدي اعلان دبیزارئ سره نوره هم مضبوطه شوه نوکه پدی بتانوکښی څه قوت وي نو] تاسو [اودغه]ټول یوځای شی خماسره [دهرقسم ]چه هرڅه تدبیرونه کوئ وکړی [او] بیا ماته یوه ذره مهلت مه راکوئ [اوهیڅ کسر پاتی نکړئ نوبیاهم تاسو خماسره هیڅ نشئ کولې اوهرکله چه تاسواودغه ستاسو معبودان په جمع هم څه نشي کولې نوبوازی به دوی څه خاوري وکړي شی اوخه دا دعوه ځکه په ډاډه زړه کوم چه بتان خومحض عاجزه دي نوځکه تری نه ویریږم پاتي شوی تاسونوتاسوته خوڅه لږطاقت او قدرت حاصل دی خوتاسی نه هم نه ویریږم ځکه چه] .

﴿ اِنِّيْ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ رَبِّيْ وَرَبِّكُمْ ۗ مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ اٰخِذٌۢ بِنَاصِيَتِهَا ۗ ﴾ما په الله باندي توکل کړیدی کوم چه خماهم مالك دی اوستاسوهم مالك دی څومره چه دځمکی په مخ ګرځیدونکي دي دټولوتندي

Scanned with Ca

هغه نيولى دى [يعنى ټول دهغه په اختيار كښى دي بغيردهغه دحكم نه څوك حركت نشى كولي نوځكه زه ستاسونه نه ويريږم] او[ددى تقريرنه يوه لويه معجزه هم ظاهره شوه چه څوك يوازى تن تنها دداسى لويوخلقوسره داسي خلاف خبري وكړي اوهغوى ئى هيڅ ونه كړې شي نودغوچه كوم ويل : مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ :ددي نه هم يوجواب وشو چه كه دتيري معجزي نه قطع نظروشي نودادويمه معجزه ده پس په نبوت باندى دليل قايم شواوپه دي كښى چه كوم منشا دشك وه : اعْتَرَاكَ بَعْضُ آلِهَتِنَا بِسُوءٍ :ددي هم جواب وشوپس نبوت ثابت شواوتري دتوحيد واجبوالى هم ثابت شودكوم طرف ته چه زه دعوى كوم اوستاسووينا : وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِي آلِهَتِنَا :باطله شوه اونيغه لاره داده اويقينا].

﴿إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾خمارب په نيغه لار[چليدوسره ميلاويدونكى] دى[پس تاسوهم دانيغه لاري اختيار كړى چه مقبول اومقرب جوړ شئ].

﴿فَإِن تَوَلَّوْا فَقَدْ أَبْلَغْتُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَيْكُمْ ۚ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا ۚ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ﴾ بياكه [ددى بليغ بيان نه پس هم] تاسو[دحقى لاري نه] اوړئ نوزه خويه [معذوروګڼلى شم ځكه چه] دكوم پيغام وركولوسره راليګلى شوى يم هغه ماتاسوته ورساوه[ليكن ستاسوكمبختي به راشي چه الله تاسولره به هلاك كړي] اوستاسوپه ځاى به الله نورخلق پدى ځمكه آبا دكړي [نوتاسوپدي كفراومخ اړولوكښى خپل نقصان كوئ]اودهغه تاسوهيڅ نقصان نه كوى [اوكه پدي هلاكت كښى تاسوته څه شك وي چه الله ته څه معلوم دى چه څوك څه عمل كوي نوبنه پوهه شئ چه] يقينا خمارب دهرشي ساتنه كوي [هغه دهرڅه نه خبردى ،غرض ددي ټولو حجتونونه پس هم دي خلقوونه منله] .

﴿وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَنَجَّيْنَاهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ﴾ او[سامان دعذاب شروع شو پس] هركله چه خمونږحكم [دعذاب لپاره] راورسيدو[اودهوادطوفان عذاب نازل شو نو] مونږ هود [عليه السلام] ته اوكوم چه دده ملګري ايمانداروودوى لره پخپلى مهربانئ سره [ددي عذاب نه بچ كړل] اودوى مونږديوډيرسخت عذاب نه بچ كړل [وراندى اوس نورو ته دعبرت لپاره فرمائي].

﴿وَتِلْكَ عَادٌ ۖ جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُ وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ﴾ اودا [چه ذكرئى وشو] د عاديانوقوم ووكوموچه دخپل رب دآياتونونه[يعنى دليلونواوحكمونونه]انكار وكړواودهغه درسولا نوخبره ئى ونه منله اوټول دداسي خلقودخبروپسي روان شوكوم چه ظالمان اوضديان وو.

﴿وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُودٍ﴾او[ددى كارونونتيجه داشوه چه] پدى دنياكښى هم لعنت ددوى سره شواودقيامت په ورځ به هم [ددوى سره سره به وى ځرنګه چه په دنياكښي ددى اثردطوفان په عذاب سره هلاكيدل وواوپه آخرت كښى به دائمى عذاب وي] خبرشئ قوم دعاديانودخپل رب سره كفروكړوخبردار[ددي كفرسزاشوه چه] درحمت نه لرى شويه [دواړوجهانوكښى] عاديانولره كوم دهود [عليه السلام] قوم وو.

﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ﴾ اومونږ [قوم د]ثموديانوته ددوى وروررصالح [عليه السلام] لره وركولو سره اوليږلو دوى [خپل قوم ته] وويل اى خماقومه[صرف] دالله عبادت كوئ دهغه سوا څوك ستاسو[د]معبود[كيدوقابل] نشته [دهغه په تاسودانعام دى چه] هغه تاسولره د

خمکي [دمادي نه] پيداکړئ اوتاسوئي په دی [خمکه] کښی اباد کړئ [يعنی د پيداکولو اوباقی پاتی کولودواړه نعمتونه ئی درکړل چه پدی کښی ټول نعمتونه راغلل نوکله چه هغه داسی منعم دی] نوتاسودخپل گناه [کفر اوشرك وغيره] دهغه نه معافی وغواړئ [يعنی ايمان راوړی او]بيا [دايمان نه پس] هغه ته [په عبادت سره] متوجه اوسيږئ [يعنی نيك عمل کوئ] بيشکه خمارب [هغه سړی ته] نژدی دی[ځوك چه هغه طرف ته متوجه وی اودغه سړی عرض] قبلوونکی دی [ځوك چه تري دگناهونومعافی غواړي].

﴿قَالُوْا يٰصٰلِحُ قَدْ كُنْتَ فِيْنَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هٰذَآ اَتَنْهٰىنَآ اَنْ نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا وَاِنَّنَا لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ مُرِيْبٍ﴾ دغوخلقواووئيل ای صالحه ته خوددی نه مخکی په مونږکښی هوښيار [معلوميدي] وی[يعنی خمونږدرنه اميدووچه دخپل لياقت په وجه سره به دقوم فخراوزمونږلپاره سرپرست جوړشي، افسوس داوخت چه ته کومی خبری کوی پدی سره خوزمونږټول اميدونه په خاوروکښی ميلاو شوی په نظرراځی] آياته مونږدهغه شی دعبادت نه منع کوي دکوموعبادت چه زمونږه مشرانو تراوسه پوري کړيدی[يعنی ته ددي نه منع کول مه کوه] اوکوم دين ته چه مونږه رابلي [يعنی توحيدته] واقعي مونږ ددی په باره کښی په ډير[لوی] شك کښی يوچه دی خومونگه په تردد کښی اچولي يو[چه دتوحيدمسئله خوبيخي زمونږ په خيال کښی نه راځی].

﴿قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَاٰتٰىنِيْ مِنْهُ رَحْمَةً فَمَنْ يَّنْصُرُنِيْ مِنَ اللّٰهِ اِنْ عَصَيْتُهٗ فَمَا تَزِيْدُوْنَنِيْ غَيْرَ تَخْسِيْرٍ﴾ دوی ورته [په جواب کښی] وفرمائيل ای خماقومه [تاسوچه وائی چه دتوحيد دعوت او دبت پرستئ نه منع مه] کوه .آياداخو اووائی که زه دخپل رب دطرف نه په دليل [قائم] يم [چه دده نه توحيد ثابت دی] اوهغه ماته دخپل طرف نه رحمت [يعنی نبوت] راکړي وی [په کوم سره چه خه دتوحيدپه دعوت ماموريم] نو[پدي حالت کښی]که خه دالله خبره ونه منم او[دعوت دتوحيدپريدم لکه چه تاسو وائی] نووائی چه بيا به مادالله دعذاب نه څوك بچ کړي تاسو خو[داسي بده مشوره راکولو سره] سراسر خمانقصان کوئ [يعنی که فرض محال قبوله ئی کړم نوبغيردنقصان نه به څه په لاس راشي ،اوچونکه دوی دمعجزی هم درسالت لپاره مطالبه کړی وه پدي وجه دوی وفرمائيل]. ﴿وَيٰقَوْمِ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمْ اٰيَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِيْٓ اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِيْبٌ﴾اوای خماقومه [تاسوچه کومه معجزه غواړئ پس] دااوښه ده دالله تعالي کومه چه تاسولپاره دليل [جوړه شوی اوښکاره شوی] ده [اودي ته پدی وجه ئی ورته دالله تعالی اوښه اووئيلي کيدل چه دا دالله تعالی دليل ده] پس [علاوه ددی نه چه داپه وجه دمعجزه کيدوزما درسالت دليل دی پخپله ددی هم څه حقوق دي منجمله داچه داپريدئ چه] دالله تعالی په خمکه کښی [گیاه] خوري گرځي [دغسي دخپل وارپه ورځ اوبه څکي لکه چه بل آيت کښی راځی] اودی لره بدی [اوتکليف ورکولو]سره لاس مه وروړئ هسی نه چه تاسولره فورا عذاب ونيسي [يعني وخت پکښی ونه لگي].

﴿فَعَقَرُوْهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوْا فِيْ دَارِكُمْ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ ذٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوْبٍ﴾ پس دوی [سره ددي تماميدوحجت نه] دی [اوښی] لره مړه کړه نو صالح [عليه السلام] وفرمائيل [خير] تاسو پخپلو کورونو کښی دري ورځي نوری تيری کړئ [دری ورځی پس عذاب راځی او]داداسی وعده ده چه دي کښی يوذره دروغ نشته [ځکه چه دالله دطرف نه ده].

﴿فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا صٰلِحًا وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيْزُ﴾ نو[دري ورځوتيريدونه پس] هركله چه خمونږ حکم [دعذاب] راغئ نومونږ صالح [عليه السلام] اوکوم

Scanned with Ca

چه دده ملګري مومنان وودوی لره پخپلې مهربانۍ سره [ددې عذاب نه ]بچ کړل اوددې ورځې دلونی رسوائی نه بچ کړل [ځکه چه د الله تعالی په قهرکښی داخته کیدونه به بله کومه لویه رسوائی وي] بیشکه ستارب قوت والاغلبي والادی[ چالره چه غواړي عذاب ورکوي چالره چه غواړي بچ کوي].

﴿وَاَخَذَ الَّذِیْنَ ظَلَمُوا الصَّیْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِیْ دِیَارِهِمْ جٰثِمِیْنَ﴾ اودې ظالمانولره یوي چغی ونیولو [چه دغه دجبرائیل ﷺ چغه وه]چه پدی سره دوی پخپلوکورونو کښی نسکورپراته پاتی شول.

﴿كَاَنْ لَّمْ یَغْنَوْا فِیْهَا ؕ اَلَاۤ اِنَّ ثَمُوْدَاۡ كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ؕ اَلَا بُعْدًا لِّثَمُوْدَ﴾[اوددوی داحالت شو]لکه چه پدی کورونوکښی دوی چیرته اوسیدلي نه ووخبردار[قوم] دثمودیانودخپل رب سره کفر وکړوخبردار [ددوی دکفرسزاداشوه چه] درحمت نه ثمودیان لري شو.

## معارف او مسائل

د سورت هود د دې آیتونو نه په رومبو یوولسو آیتونو کښې د الله تعالی د برګزیده پیغمبر حضرت هود ﷺ بیان دې د چا په نوم چه دا سورت هم دې، په دې سورت کښې د حضرت نوح ﷺ نه واخله تر د حضرت موسی ﷺ پورې د قرآن کریم په خاص انداز کښې د اووه پیغمبرانو ﷺ او د هغوی د امتونو واقعات بیان شوې دی په کوم کښې چه د عبرت او نصیحت داسې تنداري موجود دی چه کوم زړه کښې یو ذره ژوند او شعور هم پاتې وی نو هغه به تري خامخا اثر قبلوی، د عبرت نه علاوه د ایمان او نیک عمل، ډیر اصول او فروع او د انسان د پاره زیات غوره هدایات موجود دی.

په دې سورت کښې خو هسې د اووه پیغمبرانو ﷺ قیصې او واقعات بیان شوې دی مګر د سورت نوم حضرت هود ﷺ ته منسوب شوې دې، دې نه معلومیږی چه په دې کښې د حضرت هود ﷺ قیصه ډیره اهمه ده او لوئې شان لري.

حضرت هود ﷺ الله تعالی عادیانو ته د پیغمبر په حیثیت اولیږلو، دا قوم په جثه، بدنونو کښې ډیر مضبوط او زړه ور وو چه په ټول جهان کښې ئې یو امتیازی او جدا شان لرلو، حضرت هود ﷺ هم د دې قوم فرد وو څنګه چه په ﴿اَخَاهُمْ هُوْدًا﴾ کښې ورته اشاره شوې ده، مګر افسوس دې چه دغې بهادر او مضبوط قوم خپل عقل او فکر روک کړو او د خپله لاسه جوړ کړی بتان ئې خپل خدایان ګرځولی وو چه زیات د کاڼړو نه جوړ وو.

حضرت هود ﷺ چه د دین د بلنې کومې درې اصولی خبرې خپل قوم ته پیش کړې هغه په رومبو آیتونو کښې راغلې دی، اول دا چه د توحید بلنه ئې ورکړه او دا ئې ورته اوفرمائیل چه الله تعالی نه سوا بل چا لره د عبادت جوګه ګنړل، دروغ او د خانه خبرې کول دی، دویمه دا چه ما د توحید کومه بلنه راوړې ده او هغې د پاره مې خپل ټول ژوند وقف کړې دې نو په دې سوچ اوکړې چه دومره خواری او محنت څه د پاره کوم؟ د دې په بدله کښې تاسو نه څه معاوضه نه غوارم؟ او نه ما ته ستاسو د اړخه څه مادی فائده رارسی، که دا مې د الله تعالی فرمان او حق نه ګنړلو نو آخر څه ضرورت وو چه تاسو ته به مې په دې بلنې ورکولو او ستاسو په اصلاح کولو کښې دومره محنت او خواری برداشت کوله؟

**په وعظ،نصیحت او د دین په بلنه باندې اجرت اخستل:** قرآن کریم تقریبا د ټولو پیغمبرانو ﷺ دا خبره نقل کړې ده چه هغوی به فرمائیل؛ چه په خپلې د دین په بلنې او په دې باندې د خوارې کولو

Scanned with Ca

عوض تاسو نه نهٔ غواړم؛ دې نه معلومیږي چه د بلنې او تبلیغ عوض واخستې شي نو د هغې تاثیر نه وي چنانچه تجربې نه ثابته شوې ده چه د کوم وعظ او نصیحت اجرت واخستې شي د هغې اثر په اوریدونکو باندې نه وي.

دریمه خبره ئې دا اوفرمائیله چه د خپل کړي کفر او ګناهونو بخشش د الله تعالی نه اوغواړې او په راتلونکي ژوند کښې د دغې ټولو ګناهونو نه توبه داسې اوکړې چه دهغې خوا ته به هم نه ورځې، که تاسو د توبې کولو او بخښنې غوښتلو عمل اوکړو نو د دې په نتیجه کښې د آخرت همیشه کامیابي خو خامخا مونده شي، په دنیا کښې به ئې هم لوئې فائدې بیا مومې، یو دا چه په توبې کولو او بخښنې غوښتلو سره به ستاسو قحط لرې شي په خپل وخت به درباندې ښه بارانونه اوشي چه د هغې په وجه به مو روزي فراخه شي، دویمه دا چه ستاسو طاقت او قوت به زیات شي.

دلته د طاقت او قوت لفظ عام دې چه بدني طاقت او قوت لره هم شامليږي او د مال او اولاد ډیر والي ترې هم مراد اخستې شي.

دې نه معلومیږي چه د توبې او استغفار یو خصوصیت دا هم دې چه د دنیا په مال، اولاد او رزق او روزې کښې هم فراخي او برکت ورسره راځي.

د حضرت هود ﷺ قوم د هغوی د بلنې جواب په خپلې جاهلانه طریقې دا ورکړو چه تاسو خو راته څه معجزه ښودلې نه ده صرف زباني خبره ده څکه به ستاسو په وینا سره خپل معبودان پرې نه ږدو او په تاسو به ایمان راو نه ړو، بلکه زمونږ خیال خو دا دې چه زمونږ معبودو بتانو ته د بدو وئیلو په وجه ستاسو دماغ خراب شوې دی څکه داسې خبرې کوی.

د دې په جواب کښې حضرت هود ﷺ په پیغمبرې زړه ورتیا سره اوفرمائیل چه که تاسو زما خبره نه منې نو واورې چه زه الله تعالی لره ګواه جوړوم او تاسو هم ګواهان اوسئ چه زه د الله تعالی نه سوا ستاسو ټولو معبودانو نه ویزاریم، او تاسو او ستاسو بتان ټول رایوځاې شې او زما په خلاف که څه کولې شئ او زما کار خرابولې شئ نو تکړه شئ او ما ته لګ مهلت هم مه کړې ده چه زما هم رب او ستاسو هم رب دې، په مخ د زمکې چه څومره ګرځیدونکي دی واګی ئې هغه نیولی دی، د چا څه مجال دې چه د هغه د اجازت او ارادې نه بغیر چا ته لګ زیان هم اورسوی؟ یقینا زما رب په صراط مستقیم دې یعني څوک چه په صراط مستقیم باندې روان وي رب هم هغه ته ملاویږي او د هغه مدد کوي.

د ټول قوم په مقابله کښې داسې لوړه دعوی کول او هغوی ته غیرت ورکول او بیا د دغې پوره بهادر قوم د هود ﷺ په مقابله کښې د حرکت کولو توان نه لرل دا ټول هر څه یوه مستقله معجزه د هود ﷺ وه، په دې سره د دوی د هغې خبرې جواب هم اوشو چه تاسو مونږ ته څه معجزه ښکاره نه کړه او د دې هم جواب اوشو چه زمونږ بتانو تاسو په دماغي خرابئ کښې اخته کړې ئې ولې چه که بتانو څه طاقت لرلې نو دغه وخت به ئې ژوندې نه وو پریښې.

بیا ئې ورته اوفرمائیل چه که هم دغه شان په مخه تاسو د حق نه اوړیدلی اوسیږئ نو پوهه شې چه ما درته هغه پیغام در رسولې دې کوم چه د الله تعالی د ارخه راته راکړې شوې دې، لهذا د دې نتیجه سوا د دې نه بله نه راځیږي چه په تاسو به د الله تعالی قهر او غضب راښکته شي او

ټول به نیست او نابود شئ، او زما رب به ستاسو په ځای بل یو قوم په دې زمکه آباد کړي. او په دې معامله کښې چه تاسو څه کوئ هغه ستاسو خپل نقصان دې، یقینا زما پروردګار د هر څیز ځارنه کوی، هغه ستاسو په هر کار او خیال باندې خبردار دې.

دغې خلقو په دغې خبرو کښې په یوه خبره هم غور او نه کړولو، په خپلې سرکشې باندې ټینګ ولاړ وو، الله تعالى پرې د هوا د طوفان په صورت کښې عذاب نازل کړو په هغې سره ئې مکانونه او اونې د مونډه راوښکلې، انسانان او ځاروی به ئې په هوا کښې الوتل او د هغه ځای نه به پرمخې راګذاریدلې شو، پورته په هوا کښې به د آسمان د طرف نه د دغې خلقو چغې سورې اوریدې شوې تر دې پورې چه د دې بې مثاله قوت او د ډیل ډول خاوندان ټول قوم برباد شو.

الله تعالى د خپلې جارې طریقې مطابق د عذاب راتلو نه رومبې خپل پیغمبر حضرت هود ﷺ او د هغوی ملګری د دغه ځای نه اوویستل یعنې د عذاب راتلو نه رومبې ئې ورته د دغه ځای نه د وتو حکم اوکړو.

دعاد د واقعې او عذاب بیانولو نه پس نورو خلقو ته د عبرت حاصلولو په غرض ئې اوفرمائیل چه دا هغه عاد قوم دې کومو چه د خپل رب نښانې په دروغه اوبللې او د خپلو رسولانو ﷺ نافرمانی ئې اوکړه او د داسې خلقو په وینا باندې ئې عمل کولو چه ظالمان او ضدیان وو.

نتیجه ئې دا شوه چه په دنیا کښې هم ورپورې لعنت [یعنې رحمت نه لرې کیدل] انښتې [منښتې] وو او په قیامت کښې به هم ورپورې انښتې وې.

د دې واقعې نه معلومه شوه چه د عاد قوم باندې د هوا طوفان عذاب راغلې وو او په سورت مؤمنون کښې فرمائی چه د یو سختې چغې عذاب پرې راغلې وو، په دې بنا کیدې شی چه دواړه عذابونه پرې راغلی وی.

د قوم عاد او د هود ﷺ واقعه ختمه شوه.

ورپسې په اتو آیتونو کښې د حضرت صالح ﷺ قیصه بیان شوې ده چه د عاد قوم دویم شاخ ثمود ته د پیغمبرئ په حیثیت لیږلې شوی وو، صالح ﷺ هم خپل قوم ته د ټولو نه اول د توحید بلنه ورکړه، قوم د خپل عادت مطابق هغه دروغژن او بللو او دا ضد ئې او نیولو چه مونږ به دې هله په حقه نبی اومنو چه زمونږ د ټولو په وړاندې د دې غر د یو ګټ نه یوه داسې اوښه راوباسې.

حضرت صالح ﷺ اول اویرول چه که الله تعالى ستاسو غوښتلې معجزه درښکاره کړی او بیا هم تاسو په ایمان راوړو کښې کوتاهی اوکړه نو الله تعالى به د خپل عادت مطابق په تاسو عذاب راولی او ټول به هلاک او برباد شئ، دغه ضدیان د خپل ضد نه واونه ړیدل، الله تعالى د هغوی غوښتلې معجزه په خپل کامل قدرت سره ښکاره کړه د غر ګټ څیرې شو، او هغې اوښه ترې رابرخیره شوه څنګه چه دوی غوښتې وه، الله تعالى حکم اوکړو چه که دې اوښې ته مو څه زیان اورسولو نو عذاب به دربان دې راشی، خو هغوی په دې باندې هم پوره قائم پاتې نه شو او اوښه ئې هلاکه کړه، آخر الله تعالى هغوی راټینګ کړل، حضرت صالح ﷺ او د هغوی مومنان ملګری ئې د عذاب نه خلاص کړل او نور ټول قوم په یو سخت هیبت ناک آواز سره هلاک کړې شو.

په دغه واقعه کښې د حضرت صالح ﷺ قوم دوی ته اوونیل: ﴿قَدْ كُنْتَ فِيْنَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هٰذَآ﴾ [یعنې کله چه تاسو د پیغمبرې دعوې نه وه کړې او د بت پرستې نه مو څوک نه منع کول نو دغه وخت

Scanned with Ca

تاسو نه زمونږه ډير زيات اميدونه وو چه تاسو به زمونږ د قوم د پاره ډير سمون راوستونکي او لار ښودونکي ثابت شي ولې چه الله تعالى د خپلو پيغمبرانو پالنه د وړوکوالی نه په ډير پاکيزه اخلاقو او عادتونو باندې کوی چه د هغې په ليدو ورسره ټول مينه کوی او لويه هستي ئې ګنړي، څنګه چه حضرت خاتم الانبياء ﷺ ته به هم ټولو عربو امين وئيلې کله چه رسول الله ﷺ د پيغمبرئ دعوی نه وه کړې، او په هغوی به د ربنتينې او صالح عقيده لرله، کله ئې چه د پيغمبرئ دعوی اوکړه او د بت پرستې نه ئې خلق منع کول شروع کړل نو ټول ئې مخالف شو.

﴿تَمَتَّعُوْا فِيْ دَارِكُمْ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ﴾ يعنى کله چه دغې خلقو د الله تعالى د حکم خلاف ورزی اوکړه او دغه د معجزې والا اوښه ئې اووژله نو د وړاندينې خبردارې په جوړ پرې عذاب په دې شان راغلو چه اول ورته د درې ورځو مهلت ورکړې شو او ورته اووئيلې شو چه په څلورمه ورځ به ټول هلاک کړې شي.

په تفسير قرطبى کښې راغلې دی چه دغه درې ورځې د زيارت، جمعه او خالی وې او د اتوار په ورځ پرې عذاب راغلو[1] ﴿وَاَخَذَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ﴾ يعنى دغه ظالمان يو سخت آواز رالاندې کړل، دا سخت آواز د حضرت جبرئيل ؑ په دا شان وو چه د ټولې دنيا د بجليانو ګړزار نه زيات سخت او هيبتناک وو چه انسانی زړونو او دماغو نهٔ شو زغملئ څکه د هغوی زړونه اوچودل او ټول په ټوله هلاک شو.

د دې آيت نه معلومه شوه چه د صالح ؑ قوم د سخت آواز په ذريعه هلاک کړې شو ليکن د سورت اعراف د يو آيت نه معلوميږی چه د زلزلې په عذاب هلاک کړې شو لکه فرمائى ﴿فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ﴾ په دې بنا امام قرطبى فرمائى چه په دې کښې څه تضاد نشته دې کيدې شى چه دا دواړه عذابونه پرې په دې شان راغلې وی چه اول پرې زلزله راغلې وی او بيا په سخت آواز سره ټول هلاک کړې شوې وی،[2] والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ | جَآءَتْ | رُسُلُنَآ | | اِبْرٰهِيْمَ |
| او په تحقيق سره | راغلې | فرښتې زمونږه | | ابراهيم ته |
| او زمونږ فرښتې حضرت ابراهيم ؑ ته زيرى ورکولو دپاره | | | | |
| بِالْبُشْرٰى | قَالُوْا | سَلٰمًا | قَالَ | سَلٰمٌ |
| د زيرى سره | اووئيل فرښتو | په تادې سلام وی | اووئيل ابراهيم | په تاسو دې سلام وی |
| ورغلې وې او ورته ئې اووئيل چې سلامت اوسې اهغه اووئيل چې تاسو هم سلامت اوسئ انو ساعت تيرنهٔ | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا لَبِثَ | اَنْ جَآءَ | بِعِجْلٍ | حَنِيْذٍ | فَلَمَّا | | رَآٰ |
| نو څه وخت ئې تير نهٔ کړو | چې راغې | د سخى | وريت کړی سره | نو هر کله چې | | اوليدل ابراهيم |
| وو اچې يو وريت سخې ئې ورته راوړلو.......... | کله چې ئې اوکتل چې د هغوئ لاسونه | | | | | |

[1] ) تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ۹، ص ۶۰

[2] ) تفسير القرطبى، سورة الاعراف: ج ۷، ص ۲۴۲، وتفسير البحر المحيط، سورة الاعراف: ج ۵، ص ۳۸۵

أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ

لاسونه دهغوئ | چې نهٔ رسيږي | دغه خوراك ته | ناآشنائې اوګڼړل هغوئ | او محسوسه ئې کړه | په زړه کښې | د هغوئ نه

ورته نهٔ ورانديږ کيږي | شکمن شو | اود هغوی نه ئې ويره محسوس کړه

خِيفَةً قَالُوا لَا تَخَفْ إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَى قَوْمِ لُوطٍ ۝ وَامْرَأَتُهُ

ويره | اووئيل فرښتو | مهٔ ويريږه | بيشکه مونږ | راليږلې شوي يو | قوم د لوط ته | او ښځه د هغه

هغوئ ورته اووئيل | چې مهٔ ويريږه | مونږ د حضرت لوط په قوم پسې راليږلې شوي يو

قَائِمَةٌ فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحَاقَ وَمِن وَرَاءِ

ولاړه وه | نو اوخندل هغې | نو زيرې ورکړو مونږ هغې ته | په اسحاق سره | او روستو

اود هغه بی بی ولاړه وه | نو وې خندل نومونږ ورته د اسحاق [نومې خوئې] زيرې ورکړو | او په حضرت

إِسْحَاقَ يَعْقُوبَ ۝ قَالَتْ يَا وَيْلَتَىٰ أَأَلِدُ

د اسحاق نه په يعقوب سره | اووئيل هغې | چې هائې زما کم نصيبه | آيا زهٔ به اولاد راوړم

اسحاق ﷺ پسې [دهغه خوئې] يعقوب ﷺ | هغې اووئيل چې هائې زما کم نصيبه | زه به اوس خوئې

وَأَنَا عَجُوزٌ وَهَٰذَا بَعْلِي شَيْخًا إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ

اوحال دا چې زهٔ | يوه بوډئ يم | او دا زما خاوند [هم] | بوډا دې | بيشکه | دا | خامخا يو څيز دې

راوړم | چې بوډئ شوې يم | او دامې خاوند دې بوډا [سپين ږيرې] دې | دا خو ډيره عجيبه خبره

عَجِيبٌ ۝ قَالُوا أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ رَحْمَتُ اللَّهِ

عجيبه | اووئيل فرښتو | آيا تهٔ تعجب کوې | د حکم دالله نه | رحمت د الله دې

ده | هغوئ ورته اووئيل | آيا تهٔ دالله ﷻ په کارونو کښې تعجب کوې | ائې د دې کورخاوندانو

وَبَرَكَاتُهُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ إِنَّهُ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ ۝

اوبرکتونه د هغه دی | په تاسو | ائې خاونداونو د کور | بيشکه هغه | ستائيلې شوې دې | لوئې شان والادې

په تاسو دالله ﷻ رحمت او برکتونه وريږي | بيشکه هغه ستائيلې شوې او د لوئې شان خاوند دې

## آسان ترجمه قرآن

او ځمونږ فرښتې (په انساني شکل کښې) ابراهيم ته (د ځوئ د پيدا کيدو) زيرې سره راغلې هغوی سلام وکړو ابراهيم هم سلام وکړو بيا څه وخت نه وو تير شوې چه هغه (د دوی د ميلمستيا دپاره) يو وريت شوې سخې راوړو خو چه کله هغه وکتل چه د دوی لاس (سخې) طرف ته نه رسي . نو هغه دوی نه په خطره کښې شو . او د هغوی نه ئې زړه کښې ويره محسوس کړه فرښتو ووئيل چه : مه ويريږه مونږ (تاته د ځوئ په زيرې درکولو او) قوم لوط ته ليږلې شوی يو او د ابراهيم عليه السلام بي بي ولاړه وه . هغې وُخاندل نو مونږ هغې ته (دوباره) د اسحاق . او د اسحاق نه وروستو د يعقوب د پيدايش زيرې ورکړو . هغې ووئيل چه : هائې آيا څه به په دې حالت کښې بچې ځيږوم چه څه بوډئ يم او دا خاوند ځما دې چه د بوډاوالې په

Scanned with Ca

حالت کښې دي؟ واقعي دا خو ډېره عجيبه خبره ده! فرښتو ووئيل آيا ته د الله په حکم باندې تعجب کوې؟ ستاسو پښتان پاکي کورنۍ باندې خو دالله رحمتونه او برکتونه دي. بې شکه هغه د هر تعريف مستحق، لوئ شان والا دې.

**خلاصه تفسير:**

﴿ وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى قَالُوْا سَلٰمًا ۖ قَالَ سَلٰمٌ فَمَا لَبِثَ اَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيْذٍ ﴾ او زمونږ لېږلي شوي فرشتې [دبني آدم په شکل] ابراهيم [عليه السلام] ته [دده دبچي] د اسحاق [عليه السلام] خوشخبري راوړلو سره راغلې [اگرکه ددوی دراتلو لوی مقصد په قوم دلوط عليه السلام دعذاب واقع کول وو: لقوله تعالى: فماخطبکم: الخ ] او [دراتلو په وخت کښې] دوی سلام وکړو، ابراهيم [عليه السلام] هم سلام وکړو [او وني نه پيژندلې چه دا فرشتې دي معمولي ميلمانه ئې وګڼل] يو تليدلی [کباب کړی] [څورب [چاغ] ، لقوله تعالى [سمين ] سخی ئې راوړو [او دوی ته ئې وړاندې کېخودو، دا خو فرشتې وې نو خوراك به ئې څنګه کولو].

﴿ فَلَمَّا رَاٰۤ اَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ اِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَاَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيْفَةً ۚ قَالُوْا لَا تَخَفْ اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمِ لُوْطٍ ﴾ پس هر کله چه ابراهيم [عليه السلام] وليدل چه ددوی لاسونه دې خوراك ته نه وړاندې کېدل نو ددوی نه ګبراو شواو په زړه کښې ئې ددوی نه ويره پيداشوه [چه داميلمانه خو نه دي څوك دشمنان نه وي چه په خرابه اراده راغلي وي اوزه په کورکښې يواځې يم نورڅوك خپلوان دوستان نشته تردې چه په بې تکلفۍ سره ئې دوی ته په ژبه هم ظاهره کړه :لقوله تعالى قال انامنکم وجلون: هغه فرښتو ورته اووئيل چې مه ويرېږه [مونږ انسانان نه يو فرښتې يو تالره مونږ زيرى راوړيدی.

چه ستا به يو خوی پيداشي اسحاق اودده نه وروسته به يو بچۍ پيداشي يعقوب اوزيرى ئې ورته خکه وويل چه اول خو اولاد دخوشحالی شی دی بيا ابراهيم [عليه السلام] بوډاشوی ووبي بي ئې هم ډېره بوډۍ وه داولاد اميد ئې نه وو باتی شوی دوی [عليه السلام] په نوردنبوت سره توجه اوکړه اوونې پيژندل چه واقعي فرشتې دي ليکن دنبوت په پوهه سره ورته داهم معلومه شوه چه ددې نه غير دبل لوی کارلپاره راغلی دي پدې وجه ددی دمعلومولولپاره ئې تپوس وکړو :فماخطبکم : يعنی دکوم کارلپاره راغلی ئيې ؟ دغه وخت دوی ووېل چه [مونږ دلوط [عليه السلام] دقوم طرف ته رالېږلی شوي يو [چه دوی دکفرپه سزاکښې هلاك کړوددوی په مېنځ کښې داخبرې کېدې]

﴿ وَامْرَاَتُهٗ قَآئِمَةٌ فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنٰهَا بِاِسْحٰقَ ۙ وَمِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ ﴾ اود ابراهيم [عليه السلام] ابي بي [حضرت ساره چرته] ولاړه وه [اوريدی ئې ] پس [داولادخبرچه ئې واوريده دخوشحالۍ نه ئې ] اوخاندل اوچه هرکله دحضرت هاجرې نه د ابراهيم [عليه السلام] يو خوی حضرت اسماعيل [عليه السلام] پيداشونوددی هم داولادارمان ووپه زوره آوازسره ئې ووېل اودتعجب نه ئې خپل تندی ته ئې په لاس ټپ ورکړو لکه الله تعالى وفرمائل:فصکت وجهها :نومونږ [يعنی څومره فرشتو] هغوی ته دوباره ]زيرى ورکړود [حضرت ] اسحاق [عليه السلام] د [پيداکيدو] اوداسحاق [عليه السلام] نه پس ديعقوب [عليه السلام] [چه د اسحاق [ عليه السلام] زوی به وي دي نه معلومه شوه چه ستا به زوی پيدا کيږی اوترهغې به ژوندۍ وی چه دهغه به هم اولادپيداکيږي.

﴿ قَالَتْ يٰوَيْلَتٰىٓ ءَاَلِدُ وَاَنَا عَجُوْزٌ وَّهٰذَا بَعْلِيْ شَيْخًا ۭ اِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ عَجِيْبٌ ﴾ دغه وخت ] هغې ووېل های خوارو زه به اوس اولادراوړم چه بوډۍ شوم اوزماداخاوند [ناست ]دی بيخي بوډا داهم عجيبه خبره ده.

﴿ قَالُوْٓا اَتَعْجَبِيْنَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ رَحْمَتُ اللّٰهِ وَبَرَكٰتُهٗ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ ۭ اِنَّهٗ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ﴾ فرشتو ووېل چه آيا

Scanned with Ca

[دپيغمبرئ په خاندان كښي پاتي كيږي او هميشه معجزات اوعجيبه عجيبه معاملي ويني بياهم] ته دالله تعالى په كارونوكښي تعجب كوې [اوخصوصا ]ددې خاندان په خلقوباندې خودالله تعالى [خاص]رحمت اودهغه [قسماقسم ]بركتونه په مخه نازل شوي]دي،بيشكه هغه [الله تعالى ]دتعريف لائق [او]دلوى شان خاوند دى [هغه ،لوى نه لوى كارونه كولې شي نودتعجب كولوپه خاى دهغه په تعريف اوشكر كښي مشغول اوسه ] .

**معارف او مسائل**

په دې پنځو آيتونو كښې د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ يو واقعه بيان شوې ده چه الله تعالى يو څو فرښتې هغوى ته د اولاد د زيرى وركولو د پاره ځكه اوليږلې چه د حضرت ساره ﷺ نه د هغوى څه اولاد نه وو او هغې د اولاد آرزو لرله خو دا دواړه بوډاګان وو په ښكاره ئې هيڅ اميد نه وو ،الله تعالى ورته د فرشتو په ذريعه زيرې راوليږلو چه نارينه اولاد به دې كيږى ،د هغوى نوم ئې اسحاق تجويز كړو او دا ئې ورته هم اوښودل چه د هغوى ژوند به دومره وى چه پخپله به هم د اولاد خاوند شى د خوى نوم به ئې يعقوب وى ،دواړه به دالله تعالى پيغمبران وى،هر كله چه دا فرشتې په انسانى شكل كښې راغلې وې ځكه ابراهيم ﷺ دوى لره ميلمانه اوګڼل او د ميلمستيا په خاطر ئې ورته وريته غوښه مخې ته كيښوه،فرشتې خوراک څښاک نه پاكې دى ځكه ئې د هغې د خوراک د پاره لاس ور اوړاندې نه كړو،حضرت ابراهيم ﷺ چه د دوى خوراک نه كول اوليدل نو انديښنه ئې پيداشوه چه دا خو ميلمانه نه معلوميږى،ممكنه ده چه دڅه فساد په نيت راغلې وى،فرشتو چه د هغه انديښنه محسوسه كړه نو خبره ئې ښكاره كړه او ورته ئې اووئيل چه مونږه دالله تعالى فرشتې يوتاسو مه يريږې مونږه تاسو ته د اولاد د زيرى دركولو نه علاوه د يو بل كار د پاره هم راليږلې شوې يوچه د لوط ﷺ په قوم باندې عذاب نازل كړو،د حضرت ابراهيم ﷺ بى بى ساره د پردې د روستو دا خبرې اترې اوريدلې كله چه معلومه شى چې دا انسانان نه دې فرشتې دى نو د پردې ضرورت پاتې نه شو په دې بوډئ والى كښې ئې چه د اولاد زيرې واوريدو نو په خندا شوه او اوئې وئيل چه آيا په دې بوډئ والى كښې به هم زه اولاد راوړم؟او دا زما خاوند هم بوډا دې،فرشتو جواب وركړو چه ايا تاسو د الله تعالى په حكم باندې تعجب كوې،د چا په قدرت كښې چه هر څه شته؟خصوصا د پيغمبرئ په خاندان كښې د اوسيدو په وجه ته دا هر څه هميشه وينې ګورې،چه په دې خاندان باندې د الله تعالى لوئې رحمت او بركت نازليږى چه اكثر د ظاهرى اسبابو نه زيات پورته وى بيا د تعجب څه خبره ده؟دا د دغې واقعې خلاصه وه،وروسته د دې آيتونو پوره تفصيل اوګورې.

په ړومبى آيت كښې ښودلې شوې دى چه فرشتې ابراهيم ﷺ ته د زيرى وركولو د پاره راغلې وې،دغه زيرې په دريم آيت كښې داسې بيانيږى ﴿فَبَشَّرْنٰهَا بِإِسْحٰقَ﴾

حضرت عبد الله بن عباس ﷺ فرمائيلې دى چه دغه درې فرشتې جبرائيل،ميكائيل او اسرافيل ﷺ وې[قرطبى]دوى په انسانى شكل كښې ابراهيم ﷺ ته چه راغلې ورته ئې سلام اوكړو،حضرت ابراهيم ﷺ ورته د سلام جواب وركړو،انسانان ئې اوګڼل ځكه ئې د دوى ميلمستيا كول شروع كړل.[1]

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ٩، ص ٣

حضرت ابراهیم ﷺ هغه رومبی انسان دې چه په دنیا کښې ئې د میلمستیا کولو رسم جاري کړو [قرطبی] [1] د هغوی ﷺ طریقه دا وه چه یواځې به ئې هیڅرې ډوډئ نه خوره بلکه د هر خوراک په وخت به ئې میلمه لټولو چه هغه سره خوراک اوکړي.

قرطبی ﷫ د بعضې اسرائیلي روایاتو نه نقل کړې دی، چه یو ورځ د خوراک په وخت د میلمه لټولو پسې بهر ته لاړو یو نا آشنا سړې ئې راوستو چه په دسترخوان کښیناستلو نو ابراهیم ﷺ اوفرمائیل چه بسم الله اووایه هغه اووئیل چه زه الله نه پیژنم، ابراهیم ﷺ د دسترخوان نه پورته کړو او ډوډئ خوراک ته ئې پرې نښو، چه هغه اووتو نو جبرائیل ﷺ راغلو او اوئې وئیل چه الله تعالی فرمائي چه [ما سره د کفر ورته ټول عمر روزي ورکړه او تاسو ورته په یوې نمړئ ورکولو کښې هم شومتوب اوکړو]

په دې اوریدو وروسته ابراهیم ﷺ په تادئ وراووتو او هغه سړې ئې بیرته را اوبللو، هغه ورته اووئیل چه وجه څه ده چه اول دې بهر ته اوویستلم او بیا مې بوځې؟ ورته ئې دا هم اووئیل چه ترڅو دې راته نه وی وئیلي هیڅرې به درسره لاړ نه شم، حضرت ابراهیم ﷺ ورته واقعه بیان کړه چه د هغه د مسلمانیدو باعث جوړه شوه، هغه اووئیل چه کوم رب دا حکم رالیږلې دې هغه لوئې کریم دې زه پرې ایمان راوړم، بیا حضرت ابراهیم ﷺ سره لاړو او مؤمن شو، بسم الله ئې باقاعده او وئیله او ډوډئ ئې اوخوره، [2] د دې خپل عادت مطابق حضرت ابراهیم ﷺ دغې فرشتو ته هم یو وریت کړئ څخئ د خوراک د پاره وړاندې کړو ځکه چه هغوی د بنیادمو په شکل کښې راغلې وې چه په لیدلو ئې بنیادم میلمانه ګڼړلې وو.

په دویم آیت کښې دا اوښودلې شو چه په انساني شکل کښې راتلونکو فرشتو ته الله تعالی بشري خاصیتونه د خوراک هم ورکولې شو خو په دغه موقع د دوی خوراک نه کولو کښې د الله تعالی حکمت دا وو چه د دوی فرشتې کیدل ښکاره شی، ځکه د دوی د فرشته والي خاصیت ئې باقي اولرلو او د هغې په وجه د خوراک خیز ته ئې لاس ور وړاندې نه کړو.

په بعضې روایتونو کښې راغلې دی چه د فرشتو په لاسونو څه غشي وو د هغې څوکې ئې دغه ورتې کړې غوښې ته وروړلې، د دوی د دغې عمل او خوراک کښې نه کولو نه حضرت ابراهیم ﷺ ته د دغه ځاې د عرف مطابق دا خطره شوه چه هسې نه دا دشمنان وی ځکه د هغوی په عرف کښې د یو میلمه د خوراک نه انکار به هم د داسې شر او فساد علامت وو [قرطبی] [3] خو فرشتو خبره ښکاره کړه چه مونږه فرشتې یو ځکه خوراک نه کوو تاسو څه یره مه کوئ.

**احکام او مسائل:** په دې آیتونو کښې د ژوند تیرولو د پاره ډیر احکام او ډیر ضروري هدایات راغلې دی چه امام قرطبی په خپل تفسیر کښې په تفصیل سره لیکلې دی.

**سلام سنت:** ﴿قَالُوا سَلٰمًا ۖ قَالَ سَلٰمٌ﴾ دې نه معلومه شوه چه مسلمانانو د پاره سنت طریقه دا ده چه خپل منځ کښې د ملاقات کولو په موقعه دې سلام کوي، خو راتلونکي میلمه لره په دې کښې وړاندې والې پکار دې او مقامي خلقو له ئې جواب ورکول پکار دی.

---

[1] تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۹، ص ۳

[2] تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۹، ص ۶۸

[3] تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۹، ص ۶۵

Scanned with Ca

دا رسم په هر قوم او ملت کښې مونديږ شي چه دملاقات په وخت کښې د يو بل د خوشحالولو په غرض څه کلمات وائي، خو اسلامي تعليم په دې باره کښې بې مثله او زيات غوره ځکه دې چه د مسنون سلام لفظ[السلام عليکم]د الله تعالى په نوم باندې مشتمل کيدلو د وجې نه دالله تعالى ذکر دې او مخاطب د پاره د هر قسم سلامتې دعا کول دی او د خپله اړخه ورله د هغه د ځان او مال او د ننګ وناموس د حفاظت ضمانت[يعنى ذمه داري اخستل]دی.

قرآن کريم په دې موقع د فرشتو د اړخه﴿سَلٰمًا﴾او د حضرت ابراهيم ﷺ د اړخه[سلام]ذکر کړې دې،په ظاهره دې ځائې کښې د سلام پوره الفاظ ذکر کولو ضرورت نشته دې. لکه څنګه چې په عرف او محاوره کښې وئيلې کيږي چې فلانی فلاني ته سلام اوکړو. مراد ترې دا وی چې پوره کلمه السلام عليکم ئې اووئيل. ځکه دې ځائې کښې د سلام نه پوره کلمه د سلام مراد ده کومه چې نبي کريم ﷺ دخپل قوم اوفعل او عمل نه خلقو ته خودلې ده. يعنى د اسلام په شروع کښې السلام عليکم او ددې سلام جواب وعليکم السلام ورحمة الله.

**د ميلمستيا او ميلمه پاللو څو اصول:** ﴿فَمَا لَبِثَ أَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيْذٍ﴾يعنى ابراهيم ﷺ په وريت شوى [کباب شوى] څخي [ګيلګی] راوړلو کښې څه ايسار نه شو].

دې نه څو خبرې معلومې شوې د ميلمستيا کولو په آدابو کښې رومبې خبره دا ده چه د ميلمه په راتلو سره چه کوم د خوراک څښاک څيز تيار وی يا زر تياريدې شی نو هغه دې ميلمه ته پيش کولې شی بيا که د وس خاوند وی نو دنورې ميلمستيا انتظام دې پس ته اوکړی[قرطبي] (۱)

دويمه خبره دا ده چه ميلمه د پاره دې په زياتو تکلفاتو کښې نه پريوځی په اسانې سره چه کوم څيز د کور به لاس کښې راتلې شی هغه دې ميلمه ته پيش کوی،ولې چه ابراهيم ﷺ سره به غوئين [دغوايانو] مال وو ځکه ئې يو څخې [ګيلګی] ذبح کړو او وريت [کباب] ئې کړو او د ميلمنو په وړاندې ئې پيش کړو[قرطبي] (۲)

دريم دا چه د راتلونکو ميلمستيا کول د اسلام د آدابو او د ښو اخلاقو نه د ی،د پيغمبرانو ﷺ او د نيکانو خلقو عادت دې.

په دې کښې د علماؤ اختلاف دې چه ميلمستيا کول واجب دی او که نه؟جمهور علماء ﷺ فرمائی چه واجب خو نه دی البته سنت او غوره خبره ده،بعضې علماؤ ﷺ فرمائيلې دی چه د کلی [صحراء] په خلقو ميلمه پالل ځکه واجب دی چه هلته د خوراک څښاک بازاری انتظام نه شی کيدې خو په ښار والو ځکه واجب نه دی چه هلته په بازار کښې دغه انتظام کيدې شی،دا مختلف اقوال امام قرطبي ﷺ په خپل تفسير کښې نقل کړې دی (۳)

﴿فَلَمَّا رَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ﴾ [يعنى کله چه حضرت ابراهيم ﷺ اوليدل چه د خوراک څيز ته ئې لاس نه ورځی نو د هغوی نه اوبو ګنيدو].

دې نه معلومه شوه چه د ميلمه د آدابو نه يو ادب دا هم دې چه ميلمه دې هغه څيز قبول کړی چه ورته وړاندې کړې شوې وی[که د هغې خوړل ئې زړه نه غواړی يا ورته مضر او ضرری ښکاره

(۱) تفسير القرطبي: ج ۹، ص ۳
(۲) تفسير القرطبي: ج ۹، ص ۳
(۳) تفسير القرطبي: ج ۹، ص ۳

Scanned with Ca

شي نو د كوربه د زړه ساتلو په غرض دې څه لږ شان ترې نه اوخوري اوڅښي].
دې جملې نه بله يوه خبره دا معلومه شوه چه كوربه دې په دې باندې نظر ساتي چه ميلمه د هغه پيش كړې څيز خوري او كه نه؟ څنګه چه ابراهيم علیه السلام د فرښتو په نۀ خوراک نظر لرلې وو.
خو د نظر لرلو نه مطلب دا هم نه دې چه د ميلمه هرې نمړې [ګولې] او ګوټ [غرپ] ته دې په زير زير ګوري بلكه په سرسري نظر دې ورته اوګوري، ولې چه ميلمه به په دې سره شرميږي او په داده زړه به خوراک نه شي كولې، څنګه چه هشام بن عبد الملک ته دغسې يو واقعه راپيښه شوې وه چه هر كله د هغه د يو ميلمه په نمړې كښې ويښته ښكاره شو، امير المؤمنين چه ورته هغه په ګته كړو نو دغه ميلمه يو باندې وو سمدستي پورته شو او اوئې وئيل چه مونږ د هغه چا ډوډئ نه خورو چه زمونږ نمړو ته ګوري.[1]
امام طبري رحمه الله دلته نقل كړې دى چه هر كله فرښتو د ډوډئ خوړلو نه انكار اوكړو او اوئې وئيل چه هله به خوراک كوو چه د دې قيمت او بيعه مونږ نه واخستې شي نو ابراهيم علیه السلام ورته اوفرمائيل چه ښه ده نو د دې قيمت دا دې چه په شروع د خوراک كښې د الله تعالى نوم واخلې او په آخر كښې ئې حمد [ثنا صفت] بيان كړې، جبرائيل علیه السلام د دې په اوريدو اووئيل چه هسې خو الله تعالى دوى لره خليل نه دې جوړ كړې، دوى هم د دې مستحق دى.[2]
د دې واقعې نه معلومه شوه چه د ډوډئ په شروع كښې بسم الله او په آخر كښې ئې الحمدلله وئيل سنت دى.

<table>
<tr><td>فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرٰهِيمَ الرَّوْعُ وَجَآءَتْهُ الْبُشْرٰى يُجَادِلُنَا</td></tr>
<tr><td>نوهر كله چې | الرې شوه | د ابراهيم نه | ويره | او راغئ هغه ته | زيرې | نوجګړه ئې كوله زمونږ سره</td></tr>
<tr><td>نوهر كله چې دحضرت ابراهيم علیه السلام نه ويره لاړه او زيرې ئې بيامونده نومونږ سره ئې د لوط علیه السلام د قوم باره</td></tr>
<tr><td>فِي قَوْمِ لُوطٍ ۝ إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّاهٌ مُّنِيبٌ ۝</td></tr>
<tr><td>په باره دلوط دقوم كښې | بيشكه | ابراهيم | خامخا صبرناك وو | په زړه نرم وو | رجوع كونكې وو [الله ته]</td></tr>
<tr><td>كښې بحث شروع كړو بيشكه حضرت ابراهيم علیه السلام دير برداشت كولو والا، دړمن او الله ته رجوع كولو والا وو</td></tr>
<tr><td>يَٰٓإِبْرٰهِيمُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَا ۚ إِنَّهُ قَدْ جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۚ وَإِنَّهُمْ</td></tr>
<tr><td>اې ابراهيم | مخ واړوه | د دې خبرې نه | شان دادې چې | تحقيق راغلې دې | حكم درب ستا | او بيشكه هغوئ چې دى</td></tr>
<tr><td>او د نرم زړه مالک وو | اې ابراهيم علیه السلام داخبره پريږده | ستاد پروردګار اتله فيصله شوې ده | او په</td></tr>
<tr><td>ءَاتِيهِمْ عَذَابٌ غَيْرُ مَرْدُودٍ ۝ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَا</td></tr>
<tr><td>راتلونكې دې هغوئ ته | هغه عذاب | چې نۀ دې واپس كيدونكې | او هر كله چې | راغلې | فرښتې زمونږه</td></tr>
<tr><td>هغوئ به داسې عذاب راځي | چې هغه په هيڅ صورت كښې د واپس كيدو نۀ دې | او هر كله چې زمونږ فرښتې</td></tr>
</table>

[1] ) تفسير القرطبي: ج۹، ص۶۵، ۶۶
[2] ) تفسير الطبري تحت هذه الآية رقم الحديث: ۱۸۳۲

Scanned with Ca

لُوْطًا سِيْٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا

لوط ته | نوغمژن شوهغه | په وجه د هغوئ | او تنګ شو | د دوی د راتللو | په زړه کښې

حضرت لوط ﷺ ته ورغللې | نو دهغوئ په ورتللو خفه شو | او په زړه ئې بارشو | او وې وئيل چې

وَقَالَ هٰذَا يَوْمٌ عَصِيْبٌ۝ وَجَآءَهٗ قَوْمُهٗ يُهْرَعُوْنَ

او وې وئيل | دا | ورځ ده | ډيره سخته | او راغلې هغه ته | قوم د هغه | په منډه منډه

دانن ورځ ډيره سخته ده | او [ د ميلمنو په راتلو سره ] د هغه قوم په منډه راغلو د هغوی طرف ته | او هغوئ به د

اِلَيْهِ ؕ وَمِنْ قَبْلُ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ ؕ قَالَ يٰقَوْمِ

د ده اړخ ته | او د مخکښې نه | وو هغوئ | چې کول به ئې | بدکارونه | او وئيل لوط ﷺ | اې قومه زما

وړاندې نه بدکارئ کولې | هغه [ لوط عليه السلام ] ورته اووئيل | چې اې زما قومه

هٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِيْ هُنَّ اَطْهَرُ لَكُمْ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخْزُوْنِ

دا ښځې لونړه زما دی | دا | ډيرې پاکې دی | ستاسو دپاره | نو او ويرېږئ د الله نه | او مه رسوا کوئ ما

دا زما لونړه [ حاضرې ] دی | هغوئ ستاسو دپاره ډيرې پاکې دی | نو د الله ﷻ نه او وويرېږئ | او ما د خپلو

فِيْ ضَيْفِيْ ؕ اَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَّشِيْدٌ۝ قَالُوْا لَقَدْ عَلِمْتَ

په حق د ميلمنو زما کښې | آيا نشته | په تاسو کښې | يو سړې نيک | او وئيل هغوئ | بيشکه معلومه ده تاته

ميلمنو په حقله مهٔ شرموئ | آيا په تاسو کښې هيڅوک شريف سړې نشته | هغوئ ورته اووئيل چې تهٔ

مَا لَنَا فِيْ بَنٰتِكَ مِنْ حَقٍّ ۚ وَاِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيْدُ۝

چې نشته زمونږ | په لونړو ستا کښې | څه حق | او بيشکه تهٔ | خامخا پوهيږې | په هغې | چې غواړو مونږه

ښهٔ پوهيږې | چې زمونږ ستا لونړو ته هيڅ حاجت نشته | او تاته دا هم ښهٔ معلومه ده | چې مونږ په کوم

قَالَ لَوْ اَنَّ لِيْ بِكُمْ قُوَّةً اَوْ اٰوِيْٓ اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ۝

او وئيل لوط | کاش | چې وې زما دپاره | په تاسو باندې | طاقت | يا پناه اخستې وې ما | يو خيز محکم ته

نيت [ راغلي ] يو | هغه او وئيل هائې افسوس که زما په تاسو [ خپل ] وس رسيدلې ايا مې ديوې مضبوط

قَالُوْا يٰلُوْطُ اِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَنْ يَّصِلُوْٓا

او وئيل هغه فرښتو | اې لوط | بيشکه مونږه | رالېږلې شوې يو | د رب ستا | هرګز نشي رسيدې داخلق

جماعت سره پناه اخستې شوې | نو تاسو به ليدلې وو | هغې [ فرښتو ] او وئيل اې لوط ﷺ مونږ ستا د

اِلَيْكَ فَاَسْرِ بِاَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ

تاته | نو بوځه | بال بچ خپل | په يوه حصه کښې | د شپې نه | او نهٔ دې ګورې واپس | ستاسو نه | هيڅوک

پروردګار فرښتې يو | ادوئ تاته نزدې کيدې هم نشي | نو د شپې شپې د خپل کور خلق اوباسه | او په

اِلَّا امْرَاَتَكَ ؕ اِنَّهٗ مُصِيْبُهَا مَآ اَصَابَهُمْ

مګرمهٔ بوځه | ښځه ستا | بيشکه شان دادې | چې رسيدونکې دې هغې ته | هغه عذاب | چې رسيږی هغوئ ته

تاسو کښې به هيڅوک هم مخ په شا نهٔ ګورې | اخو [ يوازې ] ستا بی بی | هغه به هم په دغې عذاب کښې

إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ﴿٨١﴾ فَلَمَّا جَاءَ

بيشکه | وخت دوعدې دهغوئ | صبا دې | آيا نه دې | صبا | نزدې | نوهرکله چې | راغې

گرفتارېږي | چې د انور | تول | په کښې اخته کيږي | ددوئ دپاره تاکلې وخت سحر دې | آيا صبا نزدې نۀ دې؟

أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا

حکم زمونږه | نو او گرځوو مونږه | پورته طرف دهغه کلي | لاندې طرف دهغه کلي | او اوورول مونږه | په هغه کلي باندې

نوکله چې زمونږ حکم اوشو | نو مونږ زمکه لاندې باندې کړه | او په هغوئ مو پرله پسې

حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ ۙ مَّنضُودٍ ﴿٨٢﴾ مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ ۖ

کانړي | چې جوړ شوی وو د پخې ختې نه | پرله پسې | چې هرکانړي نښه کړې شوې وو | په نيز د رب ستا

د کانړو باران اوکړو | ........ چې ستا د پرودرگار نښې پرې لگيدلې وې

وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ ﴿٨٣﴾

اونۀ دې | دا عذاب | د ظالمانو نه | لرې |

او دغه سزا د ظالمانو نه څه لرې نۀ ده |

## آسان ترجمه قرآن

بيا چه کله د ابراهيم عليه السلام نه ويره لرې شوه، او زيرې ورته ملاؤ شو ، نو هغه څمونږ سره د قوم لوط په باره کښې (د ناز په طور) جهگړه شروع کړه حقيقت دادې چه ابراهيم ډير صبرناک (دالله په ياد کښې) ډير آهونه کونکې ، (او) هر وخت مونږ ته راګرځيدونکي وو (مونږ دوی ته ووئيل) چه ابراهيمه! دا خبره پريږده. يقين وکړه چه ستا د رب حکم راغلې دې، او په دې خلقو باندې په داسې عذاب راځي چه هغې لره څوک واپس کولې نه شي. او کله چه څمونږ فرښتې لوط ته ورسيدې نو هغه د دوی د وجې نه په ويره شو اوزړه ئې پريشانه شو. او هغه ووئيل چه: نن دا ورځ ډيره سخته ده او دهغه د قوم خلق هغه ته په منډه راغلل او دې نه مخکښې دوی بد کارونه کول. لوط ووئيل : اې څما قومه ! دا څما لونړه موجود دې. دا ستاسو دپاره ډيرې پاکې دي دې وجې نه دالله نه وويريږئ او څما د ميلمنو په باره کښې ما مه رسوا کوئ. آيا په تاسو کښې يو هم هوښيار سړې نشته؟ هغوی ووئيل چه: تا ته معلومه ده چه ستا د لونړو سره څمونږ څه مطلب نشته ، او ته ښه پوهيږې چه مونږ څه غواړو ؟ لوط ووئيل: کاش چه ما څخه د دوی د مقابلې څه طاقت وې، يا ما يو مضبوط قوم ته پناه نيولې شوې اوس) فرښتو (لوط ته) ووئيل اې لوطا مونږ ستا د پرودګار ليږلې شوې فرښتې يو. دا (کافر) چرې هم تا ته نه شي رسيدې. نو ته د شپې په څه حصه کښې خپل کور والا واخله او دې کلي نه روان شه ، او ستاسو نه دې وروستو څوک نه ګوري. مګر ستا بي بي (به تا سره نه ځي) په هغې باندې هم هغه مصيبت راتلونکي دې کوم چه په دې قوم را روان دې. يقين وکړه چه په دوی (د عذاب د راتلو) دپاره د سحر وخت مقرر دې آيا صبا بالکل نزدې نه دې راغلې؟ يا چه کله څمونږ حکم راغې نو ددې زمکې بره حصه مو ښکته حصه کښې بدله کړه ، او په دې مو د پخې

Scanned with Ca

خاوري کانړي پرله پسې راوروول چه په هغې باندې ستا د رب د طرف نه لښې لږېدلې وې، او دا کلې (د مکې) ددې ظالمانو نه څه لرې نه دې.

**خلاصه تفسیر:**

﴿ فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرٰهِيمَ الرَّوْعُ وَجَآءَتْهُ الْبُشْرٰى يُجَادِلُنَا فِي قَوْمِ لُوطٍ ﴾ بیاچه هرکله د ابراهیم [علیه السلام] دغه ویره لرې شوه [هرکله چه فرښتو: لَا تَخَفْ: ووېل اوددوی فرښتې کېدل معلوم شو] اوددوی ته دخوشحالئ خبرمیلاو شو [چه اولادبه پیداشی] نو [دېخوانه بې فکره شویل طرف ته متوجه شوچه قوم لوط [علیه السلام] به هلاکیږي، اوخمونږسره ئې [دسفارش په طور دمبالغې اواصرارپه صورت کښې] جګړه دقوم د لوط [علیه السلام] په باره کښې شروع کړه [چه ددې تفصیل په بل آیات کښې دی، چه هلته خو لوط [علیه السلام] هم موجود دی پدې وجه عذاب دې ونه لیږلې شي چه دوی ته به تکلیف ورسیږي، مطلب دا ووچه پدې بهانه سره قوم بچ شي لکه چه د: فی قوم لوط: نه په ظاهره معلومیږي اوشاید دابراهیم [علیه السلام] امید ووچه دوی به ایمان راوړي].

﴿ إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّاهٌ مُّنِيبٌ ﴾ واقعي ابراهیم ډېرنرم طبع رحم کوونکې اورجوع کونکې وو [پدې وجه ئې سفارش کښې مبالغه وکړه].

﴿ يٰٓإِبْرٰهِيمُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَآ ۖ إِنَّهُ قَدْ جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۖ وَإِنَّهُمْ آتِيهِمْ عَذَابٌ غَيْرُ مَرْدُودٍ ﴾ ارشادورته وشوچه] ای ابراهیمه [اګرچه بهانه لوط [علیه السلام] ده مګراصلي مطلب معلوم شوچه دقوم سفارش دې پس] دا خبره پرېده [یعنې دوی ایمان راوړونکې ندي پدې وجه] ستادرب حکم [ددوی باره کښې] راغلی دی او [پدې سبب سره] پدوی خامخا داسې عذاب راتلونکې دی چه په هیڅ شان سره واپس کېدونکې [پدې وجه دې باره کښې څه ویل اواوریدل بیکاره دي، پاتې شوداچه هلته لوط [علیه السلام] دی نوپس هغه لره اوټولوایماندارولره به ددغه ځای نه لرې کړې شي، بیابه عذاب راځي چه دوی ته تکلیف ونه رسي، چنانچه خبره پدې ختمه شوه].

﴿ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَّقَالَ هٰذَا يَوْمٌ عَصِيبٌ ﴾ او [دابراهیم [علیه السلام] نه چه فارغې شوې] دغه خمونږفرښتې چه هرکله د لوط [علیه السلام] طرف ته راغلې نو لوط [علیه السلام] ددوی [دراتلو] په وجه سره خکه غمژن شو [چه دوی دډېروښائسته خوانانوپه شکل کښې راغلې وي او لوط [علیه السلام] دوی بنی آدم وګڼل اودخپل قوم نامعقوله حرکت ئې خیال ته شو] او [پدې وجه سره] ددوی [دراتلو] په وجه ډېرزړه تنګئ شو [اوپدغه وجه ئې] ووېل چه نننئ ورځ ډېره سخته ده [چه دوی داسې ښائسته اودقوم داخراب حرکت اوزه یواځې ګوروچه څه کیږي؟].

﴿ وَجَآءَهُ قَوْمُهُ يُهْرَعُونَ إِلَيْهِ ۖ وَمِنْ قَبْلُ كَانُوا يَعْمَلُونَ السَّيِّاٰتِ ۚ قَالَ يٰقَوْمِ هٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطْهَرُ لَكُمْ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخْزُونِ فِي ضَيْفِي ۖ أَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَّشِيدٌ ﴾ اودده قوم [چه ددې نه خبرشو] ده ته [یعنې لوط [علیه السلام] ته] په منډوراغلل اودوړاندې نه ئې نامعقوله حرکتونه کول [پدغه خیال سره اوس هم راغلل] لوط [علیه السلام] ډېرګبراو شوخوشامنده سره ئې] ووېل ای خماقومه داخما [انګوریانې [مرېندې] لوڼه [ګومې چه ستاسوپه کوروونوکښې دي] موجودې دي دغه ستاسو [دنفس خوشحالولوالپاره [ښې] پوره دي پس [په هلکانودنظرکولوباره کښې] دالله نه وویرېږئ اوما خمادمیلمنوپه باره کښې مه رسواکوئ [یعنې دې میلمنوته څه ویل ماله شرمنده کول دي، اوکه ددوی څه لحاظ نه کوئ چه مسافردي نوخمالحاظ وکړئ چه په تاسوکښې اوسېږم افسوس اوتعجب دی] آیاپه تاسو کښې څوک هم [دعقل خاوندا و] ښه سړی نشته [چه په دې خبروباندې پوه شي اونورهم پوهه کړي].

Scanned with Ca

﴿ قَالُوا لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِي بَنَاتِكَ مِنْ حَقٍّ ۚ وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيدُ ﴾ دوی وویل چه تاته معلومه ده چې ستا لونړو ته مونږ څه ضرورت نشته [ځکه چې زمونږ ښځو طرفته څه رغبت نشته او تاته خو معلومه ده [دلته دراتلونه ]چه خمونږ کوم مطلب دی،
﴿ قَالَ لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً أَوْ آوِي إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ ﴾ لوط [عليه السلام] [ډیرعاجزاو دردمند شو]اووئی فرمائیل چه څه ښه به وه که خماپه تاسوڅه زورچلیدئ[چه پخپله می ستاسوشردفع کولې شوی]یادځه مضبوطی پائی پناه می وای[چه خماڅه خاندان یاقبیله وای‌چه خما امدادئی کولی.
﴿ قَالُوا يَا لُوطُ إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَنْ يَصِلُوا إِلَيْكَ ۖ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ إِلَّا امْرَأَتَكَ ۖ إِنَّهُ مُصِيبُهَا مَا أَصَابَهُمْ ۚ إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ﴾ چه دلوط [عليه السلام] دومره پریشانی نی اولیده نو] فرشتوویل چه ای لوطه [مونږبني آدم نه یوچه ته دومره ویریږی] مونږخوستادرب رالیږلې شوی [فرشتی] یو[نودوی مونږته څه وئیلې شي اوته دځان لپاره هم مه ویریږه ]تاته [هم] هرگز دوی نشی رارسیدی[چه تاته څه تکلیف ورسولې شي ،اومونږ پدوی دعذاب نازلولو لپاره راغلی یو]پس ته دشپې په څه حصه کښی خپل کوروالاروان کړه[ددی ځای نه بهر]ځئ اوپه تاسوکښی دی څوك په شانه گوري [تول زرزر ځئ ]مگرستاښځه [دنه مسلمانیدوپه وجه به لاړه نشي] په دې هم هغه آفت راتلونکی دی کوم چه په نوروخلقوراځی [اومونږدرته دشپی دتلو ځکه وایو]چه ددوی د[عذاب ] دوعدی وخت دسحروخت دی[لوط[عليه السلام] ډیرتنگ شوي وو وئی فرمائیل چې څه کیږی چه اوس دی وشی :لکه په درمنثورکښی دی:فرشتو وویل ]آیا د سحر وخت نژدی ندی [غرض داچه لوط[عليه السلام]دشپی شپی ووتلواولری لاړو او سحر شودعذاب سامان شروع شو].
﴿ فَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِنْ سِجِّيلٍ مَنْضُودٍ ﴾ پس هرکله چه زمونږ حکم [دعذاب لپاره]راورسیدنومونږدغه ځمکه [اولتېه کړه ددی]دپاسه تختته لاندی کړه [اود لاندی تختته دپاسه کړه]اوپدی ځمکه مونږدقرت کانوگټو[یعنی دخاوروپخی شوی دکانوپه شان]
﴿ مُسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ ۖ وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ ﴾ ورول شروع کړل چه پرله پسی راوریدی پدوی باندی ستادرب له طرفه[یعنی په عالم غیب کښی ]خاص نښی هم وي [چه پدی سره دغوگټو د نوروگټونه فرق لرلو]او [دزمکی خلقوته پکاردي چه ددی قصی نه عبرت واخلی ځکه چه ]داکلی[دقوم دلوط]ددی ظالمانونه څه لری نه دی[همیشه شام ته په تلوراتلوکښی ددوی دبربادئ نښی وینی نودوی ته دالله اودهغه درسول مخالفت نه ویره پکارده].

**معارف او مسائل**

په سورت هود کښې اکثر د پخوانو پیغمبرانو او د هغوی د امتونو حالات بیان شوې دی،په دغه قومونو باندې د خپلو پیغمبرانو د مخالفت په وجه مختلف قسم اسمانی عذابونه بیان شوې دی،اوس په دې آیتونو کښې د حضرت لوط[عليه السلام] او د دوی د قوم حالات بیان شوې دی او په دغې قوم باندې د سخت عذاب بیان راغلې دې.
د حضرت لوط[عليه السلام] قوم کافران وو او ورسره په داسې پلیتې بدکارئ او بې حیائې کښې اخته وو چه دې نه وړاندې په دنیا کښې بل هیچا نه وه کړې بلکه ځنگلی ځناور هم ترې ځان ساتی او نر په نر بدکاری کول په دنیا کښې چرې هم نه شی موندې،چنانچه د دې وبال او عذاب د عامې بدکارې نه په څو څو چنده زیات دی،ځکه په دغې قوم باندې داسې سخت عذاب راغلو چه په

Scanned with Ca

عامو بدکارئ او بې حیائي کوونکو باندې چرې هم نه دي راغلي.

واقعه داسې وه چه الله تعالی یو څو فرشتې سره د جبرائیل﵇ نه په دغې قوم باندې د عذاب نازلولو د پاره راولیږلې چه اول په فلسطین کښې د حضرت ابراهیم﵇ خوا ته ورغلې، بیان ئې په تیرو شوو آیتونو کښې راغلې دی، دغه ځای نه لس دولس میله لرې حضرت لوط﵇ ته بیا راغللې، دوی د ښکلو هلکانو په شکل کښې دغلته ځکه ورغلې چه الله تعالی د خپل عادت مطابق د خپل عمل په جوړ په هغوی عذاب مسلط کول غوښتل، هرکله چه هغوی د حضرت لوط﵇ کور ته ورغلل، هغوی چه دوی لره په شکل انسانی کښې اولیدل نو هغوی هم میلمانه اوګڼل، دغه وخت کښې حضرت لوط﵇ سخت پریشانه شو چه که دوی لره میلمانه جوړ نه کړم نو د پیغمبرئ د شان خلاف دی او که میلمانه ئې جوړ کړم نو د خپل قوم خباثت راته معلوم دې، د دې یره ده چه هغوی مې په کور راوخیژی او دې میلمنو ته تکلیف وراورسوی او زه [لوط﵇] په د دوی نه هغوی دفع نه کړې شم، او زړه کښې ئې اووئیل چه نن ډیره سخته د مصیبت ورځ ده.

الله تعالی دا جهان د عبرت د پاره یو عجیبه ځای جوړ کړې دې، په دې کښې د الله تعالی د کامل قدرت او د حکمت بالغه بې شمیره ننداري دی، د آزر بت تراش په کور کښې ئې خپل خلیل ابراهیم﵇ پیدا کړو، د حضرت لوط﵇ غوندې مقبول او برګزیده پیغمبر په کور مبارک کښې ئې د هغه داسې بیبی میشته کړه چه کافرانو سره به ئې راز باز ساتلو او د حضرت لوط﵇ مخالفت به ئې کولو، کله چه دغه فرشتې د ښکلو هلکانو په شکل کښې د حضرت لوط﵇ کور مبارک ته راغلې نو هغې د دغې قوم بدمعاش خلق په دې خبر کړل [مظهری، قرطبی] (۱)

حضرت لوط﵇ ته د خپل قوم په باره کښې د هغوی د خراب او ګنده عادت اندیښنه راولاړه شوه چه بیان ئې په دویم آیت کښې داسې راغلې دی ﴿وَجَآءَهٗ قَوْمُهٗ يُهْرَعُوْنَ اِلَيْهِ﴾ [حضرت لوط﵇ ته ئې قوم په منډه منډه راغلو چه د رومبې نه ئې هم ناکاره حرکتونه کول] په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه د دغې ګنده عمل له کبله هغوی تر دې حده پورې بې حیا شوې وو چه ښه په ډاګه د خپل پیغمبر حضرت لوط﵇ په کور ورا وختل، حضرت لوط﵇ چه د دوی ایسارول د خپل وس نه بهر اولیدل نو د شر دفع کولو په غرض ئې ورته اوفرمائیل چه که زما د میلمنو بې عزتی او سپکاوې نه کوئ نو ستاسو سردارانو ته به خپلې لونړه بیبیانې په نکاح ورکړم، په دغه زمانه کښې مسلمانانې ښځې کافرانو نارینو ته په نکاح ورکول جائز وو، او د رسول الله ﷺ د پیغمبرئ تر ابتدائی دور پورې دا جائز وو چنانچه رسول الله ﷺ خپلې دوه لونړه د عتبه بن ابی لهب او د ابی العاص بن ربیع په نکاح کښې ورکړې وې، دې نه پس بیا د مسلمانانو بیبیانو نکاح د کافرانو نارینو سره حرام اوګرځولې شو [قرطبی] (۲)

بعضې مفسرینو ﵏ فرمائیلې دی چه دلته د لونړو نه مراد د ټول قوم لونړه ځکه دي چه هر پیغمبر خپل امت د پاره د پلار په شان وی او ټول امت د هغه روحانی اولاد وی لکه قرآن کریم چه فرمائی: ﴿اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗۤ اُمَّهٰتُهُمْ﴾ (۳)

---

(۱) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۱۰۳، وتفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۹، ص ۷۵

(۲) تفسیر القرطبی: ج ۹، ص ۷۶

(۳) ترجمه: نبی د خپل نفس هم زیات د مؤمنانو سره تعلق ساتی او د هغه نبی بیبیانې د دوی مؤمنانو میندې دي.

او د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روايت کښې ورپسې دا الفاظ [وهواب لهم] هم راغلي دي، چه د هغې تر مخې رسول الله ﷺ ته د ټول امت پلار ونيلې شوې دی، د دې تفسير مطابق د حضرت لوط عليه السلام د دغې قول مطلب به دا وی چه [تاسو د خپل ناکاره عمل نه منع شئ په شرافت سره د قوم جينکو سره نکاح کوئ او بيبيانې ئې جوړوئ، بيا د الله تعالى نه د يرولو په غرض ورته لوط عليه السلام داسې اوفرمائيل چه ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾

بيا په عاجزۍ سره ورته خواست او کړو چه ﴿وَلَا تُخْزُوْنِ فِيْ ضَيْفِيْ﴾ [ميلمنو ته مې مه شرمنده کوئ] او اوئې فرمائيل ﴿أَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَّشِيْدٌ﴾ [په تاسو کښې داسې ښه او شريف سړې نشته چه زما فرياد واوري] خو هر کله چه په دوی کښې د سړيتوب او شرافت څه بوئی هم نه وو نو ټولو داسې جواب ورکړو ﴿لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِيْ بَنٰتِكَ مِنْ حَقٍّ ۚ وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيْدُ﴾ [تاسو پوهيګې چه ستاسو جينکې زمونږ هيڅ پکار نه دی مونږ چه څه غواړو هغه تاسو ته ښه معلومه ده]

چه په هر شان حضرت لوط عليه السلام بې وسه شو نو دا خبره ئې په ژبه باندې راغله ﴿لَوْ أَنَّ لِيْ بِكُمْ قُوَّةً أَوْ اٰوِيْٓ إِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ﴾ [کاش دومره وس مې وې چه ټول قوم سره مې مقابله کولې شوې يا داسې ټولې او ډله وې چه د دې ظالمانو نه ئې زه خلاص کړې وې].

فرشتو چه د حضرت لوط عليه السلام دا پريشانی اوليدله نو خبره ئې ښکاره کړه او اوئې وئيل چه مه يريږې، ستاسو ډله ډيره مضبوطه ده، مونږ د الله تعالى فرشتې يو د دوی په قابو کښې راتلونکی نه يو، په دوی باندې د عذاب راوستو د پاره راغلي يو.

د صحيح بخاری په يو روايت کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ په دې باره کښې اوفرمائيل چه الله تعالى دې په حضرت لوط عليه السلام باندې رحم اوکړی، هغوی د يوې مضبوطې ډلې په پناه اخستلو باندې مجبوره شو، او ترمذی کښې ورسره دا جمله هم شته دې چه حضرت لوط عليه السلام نه پس الله تعالى هيڅ يو پيغمبر داسې نه دې ليږلې چه د هغه کورنۍ او خاندان ئې مرستيال نه وی [قرطبی] [1] پخپله د رسول الله ﷺ په باره کښې قريشو ډير قسمه چلونه اوکړل ليکن د رسول الله ﷺ ټول خاندان د رسول الله ﷺ مرسته اوکړه، اګر چه ټول د رسول الله ﷺ په مذهب نه وو، چنانچه ټول بنو هاشم په هغه بائيکاټ کښې د رسول الله ﷺ سره ملګری وو د کوم له مخه چه په رسول الله ﷺ باندې د قريشو کفارو د خوراک څښاک ټول څيزونه بند کړې وو.

د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه منقول دی چه په دې واقعه کښې هر کله چه د حضرت لوط عليه السلام په کور مبارک باندې ئې قوم راوختو نو لوط عليه السلام د خپل کور دروازه بنده کړې وه او دغې خبيث قوم سره ئې د پردې نه روستو خبرې اترې کولې او فرشتې هم دغلته ورسره وې، دغې خلقو چه په ديوال د راوريدو او کور ته د راننوتو د پاره د دروازې ماتولو اراده اوکړه نو دغه وخت هم د حضرت لوط عليه السلام په ژبه مبارکه دغه کلمې راغلې، کله چه فرشتو د حضرت لوط عليه السلام دغه پريشانی اوليدله نو حقيقت ئې ورته څرګند کړو او اوئې وئيل چه دروازه پرانيځه [خلاصه کړه] اوس ئې مونږ د عذاب په مزه پوهوو، د دروازې په پرانستو [خلاصولو] حضرت جبرائيل عليه السلام په خپل وزرسره د دغې خلقو سترګو ته اشاره اوکړه چه ټول رانده شو او اوتښتيدل،

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۷۸، وصحيح البخاري، كتاب الانبياء، باب قول الله تعالى لقد كان في يوسف الآية: ج ۱، ص ۴۷۹، وجامع الترمذي، أبواب التفسير، باب ومن سورة يوسف: ج ۲، ص ۱۴۲

دغه وخت د الله تعالى په حکم فرشتو حضرت لوط ﷺ ته او وئيل ﴿فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ﴾ [تاسو د شپې په آخره برخه کښې خپل بال بچ ځان سره کړئ او د دې ځاې نه اوځئ او دا هدايت ورته اوکړئ چه په دوی کښې دې هيڅوک مخ په شا نه ګوري، ستاسو د بيبي نه سوا، ولې چه په هغې به هم هغه عذاب راځي کوم چه په دغې قوم به راځي]د دې دا معنی هم کيدې شي چه بيبی به دې اګر چه په خاندان کښې درسره وی، درسره به بهر ته هم اوځي مګر ستاسو په دې هدايت به عمل نه کوی چه[مخ په شا به نه ګورئ] چنانچه د بعضې روايتونو په جوړ داسې اوشو چه دا هم د حضرت لوط ﷺ په ډله کښې روانه وه چه په قوم باندې د عذاب راتلو ګرز ئې واوريدو نو مخ په شا ئې اوکتل او د قوم په تباه کيدو باندې ئې افسوس اوکړو، دغه وخت د عذاب په يو کاڼړی باندې دا هم اولګيده چه د هغې خاتمه ئې اوکړه [قرطبی، مظهری] [1]

فرشتو دا هم اوښودل چه ﴿إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ﴾ [يعنی په دوی به د صبا په وخت کښې عذاب راځي] حضرت لوط ﷺ اوفرمائيل؛ غواړم چه د دې نه وړاندې عذاب راشي، فرشتو اووئيل ﴿أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ﴾ [يعنی صبا خو څه دومره لرې نه دې].

بيا دا عذاب قرآن کريم داسې بيانوی [کله چه زمونږ عذاب راغلو نو مونږه د دغه آبادو بره برخه لاندې کړه او په هغوی مو داسې کاڼړي راووروں چه پرې د هر يو د نوم نخښه لګيدلې وه.

په روايتونو کښې راغلي دی چه دا څلور لوئې لوئې ښارونه وو، په کومو کښې چه دا خلق ميشته وو، دغه علاقه قرآن کريم په بل ځاې کښې په [مؤتفکات] سره ياده کړې ده، کله چه د الله تعالى حکم راغلو نو جبرائيل ﷺ دغې تولې علاقې لاندې خپل وزر کړو او دغه ټول ئې پرې په دې شان سره پورته کړل چه هر يو څيز په خپل ځاې سمدم پروت وو، د اوبو د ډک لوښی نه اوبه هم توئې نه شوې، د اسمان د اړخه د سپو او څناورو، څاروو او انسانانو آوازونه راتلل، دا شان دغه ټوله علاقه آسمان ته د نيغ پورته کولو نه پس د هغه ځاې نه اړولې راګذار کړې شوه چه د دوی د پليت عمل سره مناسب وو.

د لوطيانو د عذاب بيانولو نه پس د دنيا د موجوده قومونو د خبرداره کولو د پاره الله تعالى فرمائي؛ ﴿وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ﴾ [يعنی د کاڼړو ورولو عذاب نن هم د کافرانو نه څه لرې نه دې]يعنی کوم خلق چه د دغې قوم په شان په ظلم او بې حيائۍ باندې ټينګ وی هغوی دې خپل ځانونه د داسې عذاب نه لرې نه ګڼړی نن هم دغسې عذاب راتلې شي، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زما په امت کښې به څه خلق هغه عمل کوی چه د لوط ﷺ قوم به کولو کله چه داسې کيدل شروع شی نو انتظار کوئ چه په دوی به هغه عذاب راځي چه د لوط ﷺ په قوم راغلي وو.

| | | |
|---|---|---|
| | وَإِلَىٰ مَدْيَنَ | أَخَاهُمْ |
| | [ او مدين ته [مو اوليږلو] ] | رورد هغوئ |
| | ..........اومدين ته مو دهغوئ رور حضرت | |

| شُعَيْبًا | قَالَ | يَٰقَوْمِ | اعْبُدُوا اللَّهَ | مَا لَكُم | مِّنْ إِلَٰهٍ | غَيْرُهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شعيب | اووئيل هغه | اې زما قومه | عبادت کوئ د الله | نشته تاسو د پاره | هيڅ يو معبود | سوا دهغه نه |
| شعيب ﷺ ليږلې وو | هغه ورته اووئيل چې | اې زما قومه | تاسو د الله ﷻ عبادت کوئ | | د هغه نه بغير | |

[1] ) تفسير القرطبی تحت هذه الآية: ج۹، ص ۸۰، والتفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۱۰۵

وَلَا تَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ إِنِّيٓ أَرٰىكُمْ بِخَيْرٍ

اومهٔ کموئ تاسو | په ناپ کښې | او تول کښې | بیشکه زهٔ | وینم تاسو | په ښهٔ حالت کښې

ستاسو بل معبود نشته. |او په پیمانه او تول کښې کمي مهٔ کوئ |زهٔ وینم چې تاسو ښهٔ اسوده حال یئ

وَإِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ۝٨٤

او بیشکه زهٔ | ویرېږم | په تاسو باندې | د عذابه | د ورځې | راګیرونکې نه

او زهٔ ستاسو په حق کښې د راګیرونکې ورځې د عذاب نه ویرېږم

وَيٰقَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ وَلَا تَبْخَسُوا

او ائې قومه زما | پوره ورکوئ | پیمانه | او تله | په انصاف سره | او مهٔ کموئ

او ائې زما قومه پیمانه او تول پوره پوره ورکوئ |او خلقو ته دهغوئ په څیزونو کښې تاوان مهٔ ورکوئ

النَّاسَ أَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ۝٨٥ بَقِيَّتُ

خلقو ته |څیزونه دهغوئ | او مهٔ ګرځئ |په زمکه کښې | فساد کونکی | پاتې بچت شوي

او په زمکه کښې فساد مهٔ کوئ | ...............د الله ﷻ [په درکړې مال کښې]

اللهِ خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِينَ ۚ وَمَآ أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ ۝٨٦

دالله | بهتر دې | ستاسو دپاره | که چرې | یئ تاسو | مومنان | اونهٔ یم زهٔ | په تاسو باندې | نګهبان

بچ شوې ګټه ستاسو دپاره ډېره بهتره ده |که تاسو مومنان یئ |او زهٔ څه ستاسو نګران خونهٔ یم مقرر شوې

قَالُوا يٰشُعَيْبُ أَصَلٰوتُكَ تَأْمُرُكَ أَنْ نَّتْرُكَ مَا

هغوئ اووئیل | ائې شعیب | آیا مونځ ستا | حکم کوی تاته | چې پرېږدو مونږه | هغه معبودان

هغوئ ورته جواب ورکړو |چې ائې شعیب ﷺ آیا ستا مونځونه تاته هیله دا ښائی | چې مونږ دې

يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ أَوْ أَنْ نَّفْعَلَ فِيٓ أَمْوَالِنَا مَا

چې عبادت به ئې کولو |پلارانو زمونږه | یا دا چې |اونهٔ کړو مونږه |په مالونو خپلو کښې | هغه کار

هغه خدایان پرېږدو |چې زمونږ پلرونو دهغوی عبادت کولو |یا څه چې مونږ په خپلو مالونو کښې کول غواړو

نَشٰٓؤُا ۖ إِنَّكَ لَأَنْتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ ۝٨٧ قَالَ يٰقَوْمِ

چې غواړو مونږه | بیشکه ته | بس هم ته | بردبار ئې | ښهٔ سړې ئې | اووئیل شعیب | ائې زما قومه

هغه پرېږدو| واقعی تهٔ خو ډېرهوښیاراو پوخ دیندار یئ | ...........شعیب ﷺ اووئیل چې ائې زما

أَرَءَيْتُمْ إِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ

آیاوینئ تاسو |که یم زهٔ |په ښکاره دلیل باندې |دطرفه درب خپل نه |او راکړې ئې دې ماته |دطرفه خپل نه

قومه دا راته اووائې | که زه د خپل رب د طرفه په ښکاره دلیل قائم یم | او [بیاهم] هغه ما ته د خپل طرفه

رِزْقًا حَسَنًا ۖ وَمَآ أُرِيدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ إِلٰى مَآ أَنْهٰىكُمْ عَنْهُ ۖ

رزق | ښهٔ | اونهٔ لرم زهٔ اراده | چې مخالفت اوکړم ستاسو | هغه کارته | چې زهٔ منع کوم تاسو | د هغې نه

ښهٔ مال روزی کړې وی | او زما دا نیت نهٔ دې | چې هغه کار اوکړم دکوم نه چې تاسو منع کوم

Scanned with Ca

إِنْ أُرِيدُ إِلَّا الْإِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ ۚ وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللَّهِ ۚ

نه لرم زه اراده | مګر | د اصلاح | اترڅو چې طاقت کيږي زما | اونه دي توفيق زما | مګر د الله [په مدد]

زه د خپل طاقت مطابق ستاسو اصلاح کول غواړم | ..... اوزما چې څه توفيق دي هغه د الله د طرفه دي

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ ﴿٨٨﴾ وَيَا قَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ

په هغه باندي | بهروسه کړې ده ما | اوخاص هغه ته | رجوع کوم زه | اوائي زما قومه | باعث دي نه کړي تاسو

په هغه باندي بهروسه کوم | اوپه هر کار کښې هم هغه ته رجوع کوم | اوائي زما قومه !

شِقَاقِي أَنْ يُصِيبَكُمْ مِثْلُ مَا أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ

مخالفت زما | چې اورسيږي تاسوته | په مثال | د هغې | چې رسيدلي وو | قوم دنوح ته | يا قوم دهود ته

اهسې نه چې | زما سره مخالفت تاسو دي حد ته اورسوي | چې کوم عذابونه د نوح ؑ اوهود ؑ اود صالح

أَوْ قَوْمَ صَالِحٍ ۚ وَمَا قَوْمُ لُوطٍ مِنْكُمْ بِبَعِيدٍ ﴿٨٩﴾ وَاسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ

يا قوم دصالح ته | اونه دي | قوم دلوط | ستاسونه | لري | اوبخشش اوغواړئ | د رب خپل نه

قوم ته رسيدلي وو | هغه تاسو ته هم اورسي | اود لوط ؑ قوم تاسو نه څه لري نه دي | دخپل رب نه بخښنه

ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ وَدُودٌ ﴿٩٠﴾ قَالُوا

بيا | توبه اوباسئ | هغه ته | بيشکه | رب زما | رحم کونکي دي | اومينه لرونکي دي | هغوئ اووئيل

اوغواړئ | او بيا هغه ته توبه اوباسئ | زما پروردګار مهربانه او مينه ناک دي | هغوی اووئيل

يَا شُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا مِمَّا تَقُولُ وَإِنَّا لَنَرَاكَ

اې شعيب | نه پوهيږو مونږه | په ډيرو خبرو | د هغو نه | ...چې ته ئي کوې | او بيشکه مونږه | خامخا وينو تا لره

اې شعيب ؑ ستا په زياتو خبرو نه پوهيږو | اومونږ خو تا په خپله ډله کښې ډير کمزوري وينو

فِينَا ضَعِيفًا ۖ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنَاكَ ۖ وَمَا

په مونږ کښې | کمزوري | اوکه چرې نه وې | ډله ستا | نوخامخا به سنګسار کړي وې مونږ ته | او نه ئې

........................ | اوکه ستا د کورنئ خاطر نه وې نو مونږ به ته په کاڼو ويشتي وې | او ته په

أَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ ﴿٩١﴾ قَالَ يَا قَوْمِ أَرَهْطِي أَعَزُّ عَلَيْكُمْ

ته | په مونږ باندي | غالب | اووئيل شعيب | اې قومه زما | آيا ډله زما | زياته عزتمنده ده | په تاسو

مونږ غالب نه يې | هغه [شعيب ؑ] اووئيل اې زما قومه آيا زما خاندان ستاسو په نظر کښې

مِنَ اللَّهِ وَاتَّخَذْتُمُوهُ وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا ۖ إِنَّ رَبِّي بِمَا

دالله نه | او اونيوئ تاسو دغه الله | روستو د شاګانو خپلو نه غورزولي شوې | بيشکه | رب زما | په هغه کارونو

دالله ؑ نه زيات عزتمند دي | حال دا چې تاسو هغه [الله ؑ] شاته پريخودي دي | بيشکه زما پروردګار

تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٩٢﴾ وَيَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي

چې کوئ ئې تاسو | احاطه کونکي دي | او اې قومه زما | عمل کوئ | په خائې خپل | بيشکه زه هم

ستاسو په ټولو کارونو احاطه کړي ده | زما قومه تاسو پخپله طريقه عمل کوئ | اوزه په خپله طريقه عمل

Scanned with Ca

عَامِلٌ ط سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ لا مَنْ يَّأْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ

عمل کونکي يم | زر به معلوم شي تاسوته | هغه څوك | چي راشي هغه ته | عذاب | چي رسوا به کړي هغه

کونکي يم | زر به درته دا معلومه شي | چي رسوا کونکي عذاب به په چا راځي ..........

وَمَنْ هُوَ كَاذِبٌ ط وَارْتَقِبُوْا إِنِّيْ مَعَكُمْ رَقِيْبٌ ۝

او هغه څوك | چي هغه دروغ ويونکي دي | او انتظار کوئ | بيشکه زه | تاسوسره | انتظار کونکي يم

او څوك دروغژن دي | او تاسو انتظار کوئ | .......... زه هم تاسو سره انتظار کونکي يم

وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او هر کله چي | راغئ | حکم زمونږه | بچ کړو مونږه | شعيب | او هغه کسان | چي ايمان ئي راوړي وو

او هر کله چي زمونږ حکم راغلو نو شعيب ﷺ او د هغه مسلمانان ملګري مو په خپل رحمت سره بچ کړل

مَّعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَاَخَذَتِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ

د هغه سره | په خپل رحمت سره | او اونيول | هغه کسان | چي ظلم ئي کړي وو | سختي چغي

او په ظالمانو باندي يوه [ناترسه] چغه راغله | او پخپلو کورونو کښي [داسي] اړولي پريوتل

فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ۝ لا كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ط اَلَا

نو شول هغوئ | په کلو خپلو کښي | پرمخي پراته | لکه چي | نه وو اوسيدلي | په هغي کښي | ...... خبردار

.......... لکه چي هډو په کښي اوسيدلي نه وو | .......... واوره

بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُوْدُ ۝ ع

لري والي دي [د رحمت نه] | د پاره د مدين د خلقو | لکه چي الري شوي وو ثموديان |

چي مدين [هم] [د رحمت نه] [داسي] الري شو لکه ثموديان [چي لري شوي وو] |

## آسان ترجمه قرآن

او مدين طرف ته مونږ د دوی ورور شعيب پيغمبر ليږلي وو هغه وئيلي وو اې زما قومه! دالله عبادت وکړئ د هغه نه سوا تاسو دپاره څوك معبود نشته. او په ناپ او تول کښي کمي مه کوئ. زه وينم چه تاسو خوشحال يئ او ما ته په تاسو باندي د يو داسي ورځي د عذاب ويره ده چه تاسو به د څلورو واړو طرفونو نه ګير کړي. او اې زما قومه! ناپ او تول پوره پوره کوئ. او خلقو ته د هغوی څيزونه مه کموئ او زمکه کښي فساد مه خوروئ او که زما خبره منئ نو (خلقو ته د هغوی حق ورکولو نه وروستو) چه څه دالله ورکړه بچ شي هغه ستاسو په حق کښي بهتره ده. او (که نه منئ نو) زه په تاسو ذمه دار نه يم مقرر شوي هغوی ووئيل چه: اې شعيبه! آيا ستا مونځ تا ته دا حکم کوي چه مونږ هلار نيکه چه د چا عبادت کولو هغه مونږ پريږدو او د خپل مال او دولت په باره کښي چه څه مونږ وغواړو، هغه هم وو نه کړو ؟ واقعي ته ډير عقلمند او ډير نيك سړي ئي شعيب ووئيل: اې زما قومه ماته ووايئ که چيري زه د خپل پروردګار د طرف نه په يو ښکاره دليل باندي يم. او هغه خاص د خپل طرف نه ماته ښه رزق را کړي وي (نو بيا زه ستاسو په غلطه طريقه ولي روان شم) او زما داسي اراده نشته چه کوم کار نه زه منع کوم تاسو نه پټي

Scanned with Ca

ما هغه کار خپله وکړم. زما مقصد د خپل وسه پورې د اصلاح نه سوا نور څه نه دي. او ما ته چه کوم توفیق ملاویږي هغه دالله په مدد سره ملاویږي. هغه باندې ما اعتماد کړې دې، او دهغه طرف ته (هره معامله کښې) رجوع کوم او اې زما قومه! تاسو چه ماسره د ضد کومه معامله کوئ هغه تاسو دې حد ته وو نه رسوي چه په تاسو هم داسې مصیبت نازل شي لکه چه د نوح په قوم باندې یا دصالح په قوم باندې نازل شوې دې اود لوط علیه السلام قوم ستاسو نه څه لرې نه دې تاسو دخپل رب نه معافي وغواړئ. بیا هغه طرف ته رجوع وکړئ. یقین وکړئ چه زما رب ډیر مهربان ، ډیر محبت کونکې دې هغوی ووئیل اې شعیبه! ستا په ډیرو خبرو باندې مونږ نه پوهیږو او مونږ وینو چه ته مونږ کښې یو کمزورې سړې ئې او که ستا خاندان نه وې نو مونږ به ته په کانړو سنګسار کړې وې او په مونږباندې ستا څه زور نه چلیږي. شعیب ووئیل اې زما قومه! آیا تاسو باندې زما د خاندان دباؤ دالله نه زیات دې؟ او تاسو هغه لره وروستو د شاه کانو نه غورزولې دې یقین وکړئ چه تاسو څه کوئ زما پروردګار دهغې ټولو پوره پوره احاطه کړې ده. او اې زما قومه ! تاسو په خپل حال وسئ (چه څه موخوښ وي) عمل کوئ څه هم (دخپلې طریقې مطابق) عمل کوم ډیر زر به تاسو ته پته اولګي چه په چا به هغه عذاب راځي چه هغه لره به رسوا کړي ، او څوك دې دروغژن ؟ او تاسو هم انتظار کوئ . څه هم تاسو سره انتظار کونکې یم او (آخر) چه کله څمونږ حکم راغې نو مونږ شعیب او چا چه ده سره ایمان راوړې وو، دوی مو په خپل رحمت سره خلاص کړل او کومو کسانو چه ظلم کړې وو ، هغوی لره یوې چغې ونیول . او هغوی په خپلو کورونو کښې دغسې پړمخې پاتې شو لکه چه دوی هلته اوسیدلې هم نه وو. یاد وساتئ چه د مدین هم دغسې تباهي وشوه لکه چه د ثمود تباه شوي وو.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ وَلَا تَنقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ ۚ إِنِّي أَرَاكُم بِخَيْرٍ وَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ﴾ او مونږ مدین والاو طرف ته ددوی ورور شعیب [علیه السلام] پیغمبر جوړولو سره اولیږه دوی [مدین والاو ته] وفرمائل چه اې خما قومه تاسو [فقط] دالله تعالی عبادت کوئ دهغه نه غیر ستاسو [د] معبود [جوړیدو بل لائق] نشته [داحکم خوددین او عقیدو موافق ددوی دحال مناسب وو] او [دوهم حکم دمعاملو موافق ئې ددوی مناسب داوفرمائل چه] تاسو په ناپ تول کښې کمې مکوئ [ځکه چه] زه تاسو دفراختیا په حالت کښې وینم [بیا تاسو ته په ناپ تول کښې دکمۍ کولو څه ضرورت دې او په حقیقت کښې خوددې هیڅ ته هم ضرورت نه وي] او [غیر ددې چه په ناپ تول کښې کمې نه کول دالله تعالی دنعمتونو تقاضا ده پخپله ویره هم ددې مقتضي ده ځکه په دې کښې] زما په تاسو ویره ده دداسې ورځې دعذاب نه چه په قسما قسم عذابونو به مشتمله وي.

﴿ وَيَا قَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ ۖ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴾ او [هر څو مره چه دکمۍ نه کولو سره پوره کول لازمي دي مګر د تاکید په طور ددې منع نه بعد ددې خبرې وضاحت ئې په ښکاره ډول اوفرمائیلو] اې خما قومه تاسو ناپ تول پوره پوره کوئ او د خلقو په څیزونو کښې نقصان مه کوئ [لکه چه ستاسو عادت دې]. او [په شرك او دخلقو په حقوقو کښې دکمۍ کولو سره ] په ځمکه کښې فساد کونکي د حد [توحید او عدل نه] مه اوځئ ﴿ بَقِيَّتُ اللَّهِ

خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِينَ ۚ وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ ﴾ [دخلقو دحقونو دادا کولونه پس ]دالله تعالی د طرف نه درکړې شوی چه څه [حلال مال]بچ پاتی شي هغه ستاسولپاره [ددی حرامی ګټی نه]په ډیرودرجوبهتردی[څکه چه په حراموکښې اګرکه ډیروی برکت نه وي اوانجام ئې جهنم دی،اوپه حلالوکښې اګرکه لږوي انجام ئې دحق رضاده] که تاسویقین کوئ [نوومنئ ]او[که یقین نه کوئ نوپوهه شئ ]زه ستاسوپهره دار خونه یم [چه ستاسونه په زوره داعاتونه اوباسم چه څه کوئ هغه به مومئ].

﴿ قَالُوا يٰشُعَيْبُ أَصَلٰوتُكَ تَأْمُرُكَ أَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ أَوْ أَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ أَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ۖ إِنَّكَ لَأَنْتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ ﴾ دغوخلقو[داټول وعظ اونصیحت واوریده]اوویل ای شعیبه آیاستا دا[دبناوټ اوخیالی پاکوالئ تاته[دداسی خبرو]خودنه کوي چه[ته راته وائی چه]مونږ[عبادت د]دی شیانو پریدود کوموچه زمونږه مشرانوکړیدی اوداپریدوچه په خپل مال کښې چه څه غواړو تصرف وکړویقیني ته لوی عقلمندپه دین چلیدونکی ئې [یعنی دکوموخبرونه چه ته مونږه منع کوی هیڅ بدوالی نه لري څکه چه دیوی خبری دلیل خونقلی دي چه زمونږه مشرانوبت پرستي کړیده،اودبلی عقلی دی چه زمونږخپل مال دی د هر قسمه تصرف اختیارپکښې لرونوزمونږه منع کول ندي پکار، حلیم اورشیدئې ورته په مسخره سره وویل لکه چه عادت وي دبی دینومسخره کول په دینداروبوري ددوی دنقلی اوعقلی دلیلونو فساد خو ښکاره دی].

﴿ قَالَ يٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ إِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ۚ وَمَآ أُرِيْدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ إِلٰى مَآ أَنْهٰىكُمْ عَنْهُ ۚ إِنْ أُرِيْدُ إِلَّا الْإِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ ۚ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ إِلَّا بِاللّٰهِ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيْبُ ﴾ شعیب[ﷺ] وفرمائل ای خماقومه [تاسوچه خما نه داغواړئ چه څه دتوحیداوعدل خبري نه کوم نو]ښه ده داووائی که دخپل رب دطرف نه په ښکاره دلیل[قائم]یم [چه توحیداوعدل تري ثابتیږي]اوده ماته دخپل جانب نه یوعمده دولت [نبوت]راکړی وي [چه پدی سره په ماددي احکاموتبلیغ فرض وی، یعنی دتوحیداوعدل حقوالی ثابت اوتبلیغ ئی واجب وي] نوبیاڅنګه تبلیغ نه کوم اوزه[چه لکه څنګه ددی خبرونه تاسوته تعلیم کوم پخپله هم پري عمل کوم ]دانه غواړم چه ستاسوبرخلاف دی کارونه کوم دکومونه چه تاسي منع کوم دبرخلاف نه مراددادی چه تاسوته یوه لاره ښایم اوزه په بله لاره ځم،غرض داچه خمانصیحت فقط دخیرخواهئ اودزړه سواندی نه دی پدی دلیل چه څه تاسوته هغه خبری ښا یم کوم چه دخان لپاره خوښوم نو]څه خواصلاح غواړم څومره چه رانه کیدی شي اوماته چه څه [دعمل داصلاح توفیق کیږي ]صرف دالله په مددسره دی [اورنه څه څه اوڅه خماارادہ ]په هغه خمابهروسه ده اودهغه طرف ته به [په ټولو کارونو کښې] رجوع کوم [النډہ داچه په وجوب دعدل اوتوحیددلیلونه هم قائم دي،اوتبلیغ نی دالله په حکم، او نصیحت کونکی داسی زړه سواندی اومصلح دی،بیاهم نه منئ بلکه برعکس ما منع کوئ د تبلیغ نه،چونکه په دي تبلیغ کښې ئی خان ته دزړه سواندی نسبت وکړواودمصلح نوڅکه ئی اوفرمائل :تردی ځایه خوددوی دوینا جواب وشومخکی ترغیب اوترهیب بیانوي].

﴿وَيٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيْٓ أَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِّثْلُ مَآ أَصَابَ قَوْمَ نُوْحٍ أَوْ قَوْمَ هُوْدٍ أَوْ قَوْمَ صٰلِحٍ ۚ وَمَا قَوْمُ لُوْطٍ مِّنْكُمْ بِبَعِيْدٍ﴾اوای خماقومه خماسره ضد[اودشمنی]دي تاسولپاره ددی باعث نشی چه په تاسوهم داسی مصیبتونه پریوځی لکه چه په قوم دنوح یاقوم دهودیاقوم دصالح [ﷺ]پریوتی ووا و[که چیری ددی قومونوقصه زړه شوی وي څکه تری نه متاثره کیږئ نو]قوم دلوط[ﷺ] خو [اوس]

ستاسونه [ دير] الرى نه دى تيرشوى [زمانه كښى] [ددغوقومونوپه نسبت خوددوى زمانه نژدې ده، داخودترهيب مضمون شومخكى ترغيب دى].

﴿ وَاسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ وَدُودٌ ﴾ اوتاسودخپل رب نه دخپل گناه [شرك اوظلم] معافى غواړئ [ايمان راوړئ ځكه چه په ايمان سره ټول گناهونه معاف كيږي اگرچه حقونه خواداكول وي] بيا [په طاعت اوعبادت سره ] دهغه طرف ته متوجه شئ بيشكه ځمارب ډيرمهربانه محبت كونكى دى [گناه معاف كوى اوتوبه قبلوي].

﴿ قَالُوا يَا شُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا مِّمَّا تَقُولُ وَإِنَّا لَنَرَاكَ فِينَا ضَعِيفًا ۖ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنَاكَ ۖ وَمَا أَنتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ ﴾ دوى [چه دالاجوابه زړه راښكونكى تقريرواوريده اوكوم معقول جواب ئى نه لرلونوپه جهالت سره ئى ] ووېل چه اى شعيبه [عليه السلام] ډيرى خبرى چه ته كوي زمونږپه فكركښى نه راځي [داخبره ئى په نه توجه يادسپكوالى په بناوكړه نعوذبالله چه داهسى بکواس دى دپوهيدوقابلى ندي لكه چه دبى دينونه دغه شان ټولى خبري واقع كيږي] اوموږتاپه خپل [مينځ] كښى كمزورى وينوكه چيرى ستادخاندان [چه زمونږسره په مذهب كښى شريك دي زمونږسره] الحاظ نه وى نوموږبه ته [بخوا] په گټوويشتي وى اوزموږپه نظر كښى ستاهيڅ قدرنشته [ليكن ستادرشته دارو لحاظ ساتلى شي، ]مطلب ئى داووچه تاته ددى مضامينو په اورولوكښى دخان خطره ده ،اول ئى په مسخروسره منع كړى وو: [أَصَلَاتُكَ تَأْمُرُكَ الخ] اوس د وركوي ويروي ئى او منع كوي ئى].

﴿ قَالَ يَا قَوْمِ أَرَهْطِي أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ وَاتَّخَذْتُمُوهُ وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا ۖ إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴾ شعيب [عليه السلام] [په جواب كښى ] ووېل اى ځماقومه [افسوس اوتعجب دى چه ځماكوم نسبت چه دالله تعالى سره دى چه زه دهغه نبى يم نوهغه نسبت ځمادهلاكولونه مانع نشواوكوم نسبت چه ځمادخاندان سره دى چه زه دهغوى رشته داريم هغه ددى نه مانع شو، نومعلومه شوه چه تاسودالله نه هم دخاندان لحاظ زيات كوئ نو] آيازماخاندان تاسوته [نعوذبالله] دالله نه هم زيات معتبردى [چه دخاندان لحاظ خوكوئ] اوهغه [يعنى الله لره] تاسوشاته غورزولى دى [دده لحاظ نه كوي نوسزابه ئى ضرور اوڅكئ ځكه چه ] يقينا ځمارب ستاسوټولوعملونولره [په خپل علم كښى] راگير كړيدى.

﴿ وَيَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَامِلٌ ۖ سَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَمَنْ هُوَ كَاذِبٌ ۖ وَارْتَقِبُوا إِنِّي مَعَكُمْ رَقِيبٌ ﴾ اواى ځماقومه [كه تاسوپه عذاب يقين نكوئ نوآخري خبره داده چه تاسوپوهه شئ غوره ده] تاسوپخپل حالت عملونه كوئ زه هم [پخپل طور] عمل كوم [پس] اوس به زردرته معلوم شى چه هغه څوك دى چه په چاداسى عذاب راتلونكى دى چه رسواكوى به ئى اوهغه څوك دى كوم چه دروغژن وو [تاسومالره دنبوت په دعوه كښى دروغژن اوسپك گڼئ نواوس به معلوم شى چه ددروغومجرم اود ذلت د سزا مستحق څوك ووتاسواوكه څه] تاسوهم انتظاركوئ زه هم درسره انتظاركونكى يم [چه وگوروچه ځما دوينا مطابق عذاب واقع كيږى اوكه ستاسودگمان مطابق نه واقع كيږي].

﴿ وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَأَخَذَتِ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دِيَارِهِمْ جَاثِمِينَ ﴾ غرض يوه زمانه پس دعذاب سامان شروع شواوهركله چه ځمونږحكم [دعذاب لپاره] راغئ [نو] مونږ [ددى عذاب نه ] شعيب [عليه السلام] لره اوكوم چه دده ملگري مومنان وودوى هم پخپله خاصه] مهرباني سره بچ كړه اودغوظالمانولره يوسخت آواز [چه دجبرائيل نعره وه ونيولو

پس دوی پخپلو کورونو کښې دننه نسکورپراته پاتې شو [اومړه شو].

﴿كَأَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۗ أَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ﴾ لکه چه بيخي هم پدې کورونو کښې اوسيدلي نه ووخبرداراواورئ [اوعبرت واخلئ] مدين والا درحمت نه لرې کړی شو لکه چه ثموديان درحمت نه لري کړی شوي وو.

## معارف او مسائل

په دې آيتونو کښې د شعيب عليه السلام او د دوی د قوم قيصه بيان شوې ده، دا قوم کافر هم وو او په ناپ تول کښې به ئې کمې هم کولو، حضرت شعيب عليه السلام ورته د ايمان راوړلو بلنه ورکړه او په ميچ [ناپ] تول کښې د کمی راوستو نه ئې منع کړل او اوئې فرمائيل چه که د دې خلاف مو اوکړل نو د الله تعالى عذاب به درباندې راشي، خو دغه خلق په خپل انکار او سرکشئ باندې ټينګ پاتې شو څکه دا ټول قوم په يو سخت عذاب سره هلاک کړې شو، تفصيل ئې داسې دې؛

﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۚ﴾ [مونږه مدين ته د هغوی ورور شعيب عليه السلام اوليږلو] مدين په اصل کښې د هغه ښار نوم دې چه مدين ابن ابراهيم آباد کړې وو، د دې مقام هغه ښودلې شی چه د شام ملک موجوده مقام [معان] دې. د دې اوسيدونکو ته هم د اهل مدين په ځاې مدين وئيلې شی، شعيب عليه السلام هم د دې قوم جليل القدر پيغمبر وو څکه ورته د [مدين ورور] اوئيلې شو، دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه د دې قوم نه د الله تعالى د نعمت په ډول دوی پيغمبر څکه جوړ کړې شو چه قوم ورسره عادت او اشنا وی او په دې شان د دوی هدايات په اسانئ سره قبول کړې شی فرمائی؛ ﴿قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ وَلَا تَنقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ﴾

په دې کښې حضرت شعيب عليه السلام خپل قوم ته اول د توحيد بلنه ورکړه څکه چه دا خلق مشرکان وو، د اونو عبادت به ئې کولو چه په قرآن کريم کښې ترې په لفظ د [أيكة] سره تعبير کړې شوې دې او د دې په نسبت سره اهل مدين ته د [أصحب الأيكة] لقب هم ورکړې شوی دې، دوی به د کفر او شرک نه علاوه دا ګناه او عيب هم لرلو چه په بيوپار، لين، دين او معامله کښې د ميچ [ناپ] تول په وخت کښې په کمی کولو سره د خلقو حق وهلو چه حضرت شعيب عليه السلام به ترې منع کول.

**فائده:** دلته په خاص ډول دا خبره قابل غور ده چه کفر او شرک د ټولو ګناهونو جرړه ده، کوم قوم چه په دې کښې اخته وی هغه قوم ته اول د ايمان بلنه ورکولې شی دې نه وړاندې بل هيڅ يو عمل يا معاملې ته د هغوی مخه نه شی راګرځولې، په دنيا کښې د دوی د خلاصی او عذاب دار و مدار هم په ايمان او کفر وی، چنانچه د ټولو پيغمبرانو عليهم السلام او د هغوی د قومونو کوم واقعات چه په قرآن کريم کښې راغلې دی هغه ټول د دې ګواه دی، صرف دوه قومونه داسې تير شوې دی چه په هغوی باندې د عذاب نازليدو باعث د هغوی پليت او ناکاره عملونه هم پاتې شوې دی، يو د هغوی نه د لوط عليه السلام قوم دې چه اوس اوس ئې بيان تير شو او بل د شعيب عليه السلام قوم دې چه د دوی د عذاب باعث د شرک او کفر نه علاوه په ميچ تول کښې کمی کول هم ګرځولې شوې دی.

دې نه معلومه شوه چه دغه دواړه کارونه د الله تعالى په نزد د ټولو ګناهونو نه زيات ناخوښه او سخت ناکاره دی، ښکاره وجه ئې يوه دا ده چه په دې دواړو کارونو سره ټول انسانی نسل ته سخت نقصان رسيږی او په ټول جهان کښې د دې نه لوئې فساد خوريږی.

حضرت شعیب ﷺ چه خپل قوم لره په میچ تول کښې د کمې کولو نه منع کول نو د پیغمبرئ په شفقت سره ئې ورته داسې اوفرمائیل ﴿إِنِّي أَرَاكُم بِخَيْرٍ وَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ﴾ [یعنی دا وخت زه تاسو په خوشحالۍ کښې وینم، هیڅ غریبي، لوږه، تنده او د مال کمی دربانديې نشته چه د هغې د کبله تاسو په دې بلا کښې ګرفتار ئې، دې نه علاوه د الله تعالی د شکر تقاضا دا ده چه تاسو د هغه په مخلوق باندې ظلم مه کوئ، او بیا ئې دا هم اوښودل چه که تاسو زما خبره وا نه ریدله او د دې ناکاره عمل نه واو نه ریدې نو یره مې ده چه د الله تعالی عذاب به مو راګیر کړې، دې عذاب نه د دنیا او آخرت دواړه عذابونه مراد کیدې شي، د دنیا عذابونه هم مختلف قسمونه کیدې شي، کم نه کم عذاب دا دې چه دا خوشحالي به مو ختمه شي او تاسو به په قحطي او په ګرانۍ [د څیزونو] کښې اخته شئ، لکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي؛

[کوم قوم چه په میچ تول کښې کمی کول شروع کړي نو الله تعالی ئې په قحطي او د څیزونو د ګرانۍ په عذاب کښې مبتلا کړي] ([1])

په میچ تول کښې کمې نه کول دا مطلب لري چه میچ تول پوره کړي خو بیا هم د زیات تاکید د پاره حضرت شعیب ﷺ اوفرمائیل؛

﴿وَيَا قَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ﴾

[یعنی اې زما قومه، تاسو میچ تول په انصاف سره کوئ او د خلقو څیزونه مه کموئ او په زمکه کښې فساد خورونکي مه ګرځئ].

بیائې په شفقت سره دا شان پوهه کړل ﴿بَقِيَّتُ اللَّهِ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۚ وَمَا أَنَا عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ﴾

[یعنی چه میچ تول پوره ادا کولو نه پس څه پاتې شي هم هغه تاسو لره زیات غوره دي، که زما خبره مني، اوکه مې نه مني نو یادساتئ چه زه ددې خبرې ذمه دارنه یم چه په تاسو څه عذاب راشي]

رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه حضرت شعیب ﷺ خطیب الانبیاء وو، ([2]) هغوی په خپل ښکلي بیان سره خپل قوم پوهه کړو او هدایت ته د دوی د راوستلو پوره کوشش کولو کښې ئې ډیره خواري اوکړه، خو د دې هر څه اوریدو نه پس ورته قوم هم هغسې جواب ورکړو کوم چه جاهل قومونه خپل اصلاح کونکو ته ورکوی، شعیب ﷺ پورې ئې خنداګانې اوکړې، توقې ئې دربورې اوکړې او داسې ئې اووئیل؛

﴿أَصَلَاتُكَ تَأْمُرُكَ أَن نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ آبَاؤُنَا أَوْ أَن نَّفْعَلَ فِي أَمْوَالِنَا مَا نَشَاءُ ۖ إِنَّكَ لَأَنتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ﴾

[آیا ستاسو دا مونځ تاسو ته دا ښائي چه مونږه هغه معبودان پریږدو د چا عبادت چه به زمونږه پلارانو نیکونو کولو او دا چه مونږه په خپلو [مملوکو] مالونو کښې هم اختیارمن پاتې نه شو چه په خپله خوښه ئې استعمالولې شو، بلکه په دې کښې به تاسو نه تپوس کوو چه مونږه له په دې کښې څه حلال او څه حرام دي؟!].

په تول قوم کښې د حضرت شعیب ﷺ ډیر ډیر مونځونه، نفلونه او عبادتونه کول مشهور وو، ځکه ترې هغوی دا توقه جوړه کړه چه آیا ستاسو مونځونه درته [معاذالله] دا غلطې خبرې ښائي؟ د دوی د دې خبرې نه معلومه شوه چه د دې خلقو په خیال کښې هم دیني اوشرعي کارونه یواځې عبادتونه دي، معاملو سره ئې هیڅ تعلق نشته، هر څوک خپل مال په خپله خوښه

---

[1]) سنن ابي داود، أبواب الفتن، باب العقوبات: ج ۲، ص ۲۹۰

[2]) المستدرک للحاکم رقم الحديث: ۴۰۲۲

استعمالولې شي، په دې باندې څه پابندي لګول د دين کار نه دې څنګه چه د اوسني زمانې ناپوهه خلق هم دا خيال لري.
قوم د دغې خالصې همدردۍ، زړه سواندې او نصيحت جواب چه داسې تريخ او سخت ورکړو نو بيا هم حضرت شعيب ﷺ د پيغمبرۍ د شان مطابق د دې هر څه اوريدو نه پس په همدردۍ سره د دوی نور زيات پوهول داسې شروع کړل؛
﴿قَالَ يٰقَوۡمِ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ كُنۡتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنۡ رَّبِّىۡ وَرَزَقَنِىۡ مِنۡهُ رِزۡقًا حَسَنًا﴾
[يعنی ای زما قومه؛ما ته اوښائې که زه د خپل رب د اړخه د خپلې خبرې په حق والی باندې دليل او کافی شهادت لرم او الله راته بهترين رزق هم راکړې وی[چه ظاهری رزق چه ژوند تيرول پرې اړه لری هغه ئې راته هم راکړې دې او باطنی رزق پوهه او عقل او د دې سره ئې راته د وحی او پيغمبرۍ بيش قيمته انعام هم راکړې دې نو بيا آيا ستاسو رائې دا ده چه د دې ټولو څيزونو د شته والی سره زه هم ستاسو په شان ګمراهي او ظلم اختيار کړم او حق خبره درته او نه رسوم، بيا ئې ورپسې اوفرمائيل﴿وَمَآ اُرِيۡدُ اَنۡ اُخَالِفَكُمۡ اِلٰى مَاۤ اَنۡهٰٮكُمۡ عَنۡهُ﴾[يعنی په دې هم خان پوهه کړئ چه زه د کوم څيز نه تاسو منع کوم پخپله خو هم د هغې خوا ته نه څم، که تاسو مې منع کولې او پخپله مې دغه کار کولې نو تاسو د پاره د ويلو ګنجائش وو].
دې نه معلومه شوه چه د بلونکی، واعظ او مبلغ عمل د هغه په وعظ او نصيحت کښې ډير دخل لری، په کوم څيز باندې چه وعظ او نصيحت کونکې په خپله عمل نه کوی د هغه د خبرې په بل چا باندې څه اثر نه وی بيا ئې اوفرمائيل﴿اِنۡ اُرِيۡدُ اِلَّا الۡاِصۡلَاحَ مَا اسۡتَطَعۡتُ﴾[يعنی د دې ټولې خوارۍ او کوشش کولو او ستاسو د بيا بيا پوهولو نه زما مطلب، سوا د دې نه بل هيڅ نه دې چه د خپل وس مطابق د سمون راوستو کوشش اوکړم، او بيا ئې اوفرمائيل چه په حقيقت کښې دا کوشش هم زما په خپل اختيار کښې نه دې بلکه﴿وَمَا تَوۡفِيۡقِىۡۤ اِلَّا بِاللّٰهِ‌ؕ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَاِلَيۡهِ اُنِيۡبُ﴾[يعنی زما دا هر څه کول د الله تعالی په ورکړی توفيق باندې اړه لري ورنه زما هيڅ وس نه وو، هم په هغه مې تکيه ده او هم هغه ته په هر کار کښې زه رجوع کوم.
د دې وعظ او نصيحت نه پس ئې هغوی د الله تعالی د عذاب نه په دې شان سره اويرول؛
﴿وَيٰقَوۡمِ لَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شِقَاقِىۡۤ اَنۡ يُّصِيۡبَكُمۡ مِّثۡلُ مَاۤ اَصَابَ قَوۡمَ نُوۡحٍ اَوۡ قَوۡمَ هُوۡدٍ اَوۡ قَوۡمَ صٰلِحٍ‌ؕ وَمَا قَوۡمُ لُوۡطٍ مِّنۡكُمۡ بِبَعِيۡدٍ﴾
[يعنی تاسو په دې خان پوهه کړئ، داسې دې نه وی چه زما مخالفت او دشمنی په تاسو باندې داسې څه عذاب رانه ولی څنګه چه تاسو نه وړاندې د نوح ﷺ په قوم يا د هود ﷺ په قوم يا د صالح ﷺ په قوم باندې راغلی وو، او د لوط ﷺ د قوم او په هغوی باندې راغلې عبرتناک عذاب خو تاسو نه څه لرې هم نه دې يعنی په مقامی اعتبار سره هم د لوط ﷺ د قوم الوړې شوې آبادې، مدين ته نزدې دی او د زمانې په لحاظ سره هم په دوی باندې اوس اوس لږه زمانه وړاندې عذاب راغلې دې، د هغې نه عبرت حاصل کړئ او د خپل ضد نه واوړئ].
قوم ئې چه دا واوريدل نو نور هم پرې اور بل شو او وئيل ئې چه ستاسو ﷺ د خاندان مرسته که درته حاصله نه وې نو مونږ به سنګسار کړې وې، په دې خبره ورته شعيب ﷺ داسې نصيحت اوکړو[چه تاسو خو زما د خاندان نه يره کوئ ليکن د الله تعالی نه يره نه کوئ د چا په قبضه کښې چه ټول هر څه دی!

کله چه قوم هیڅ خبره نه منله نو په آخر کښې ورته حضرت شعیب علیه السلام اوفرمائیل چه ښه ده اوس تاسو د عذاب انتظار کوئ، بیا دې نه پس حضرت شعیب علیه السلام او د دوی ایمان راوړونکی ملګری الله تعالی د دغې آبادۍ نه د خپل دستور مطابق اوویستل او پاتې ټول خلق ئې د حضرت جبرائیل علیه السلام په یو سخت آواز سره سمدستی هلاک کړل.

## احکام او مسائل

**د میچ تول د کمې مسئله:** په دې آیتونو کښې دا بیان دې چه د حضرت شعیب علیه السلام په قوم باندې څکه عذاب راغلو چه هغوی به په میچ تول کښې کمی کوله چه [تطفیف] ورته وئیلې شی. او قرآن کریم په ﴿وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ﴾ کښې د دې سخت عذاب بیان کړې دې او د امت په اجماع سره داسې کول سخت حرام دی، د حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه د یو ارشاد مطابق حضرت امام مالک رحمه الله په مؤطا کښې فرمائیلې دی چه په میچ تول کښې د کمی نه اصل مراد دا دې چه څوک په خپله ذمه د بل چا حق پوره پوره ادا نه کړی بلکه په هغې کښې کمې راولی، خوا هغه د میچ تول څیز وی یا د بل څه څیز وی، (۱) که یو ملازم د خپل فرض منصبی په ادا کولو کښې کوتاهی کوی، د یو دفتر ملازم یا یو مزدور د کار د پاره په ټاکلی وخت کښې کمې کوی یا په ټاکلی کار کښې کوتاهی کوی نو هغه هم په دې لړ کښې شامل دې، څوک چه د مونځ آداب او سنت پوره په ځاې نه راوړی هغه هم د دې تطفیف مجرم دې [نعوذ بالله منه].

**مسئله:** په تفسیر قرطبی کښې لیکلې دی چه د شعیب علیه السلام د قوم یو عادت دا هم وو چه په ملک کښې د جاری روپې او اشرفۍ نه غاړې پرې کړې خان ته به ئې کړې او نیمګرې درهم او دینار به ئې په پوره قیمت چلولو حضرت شعیب علیه السلام هغوی لره د دې نه منع کړل.

په حدیث شریف کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم د اسلامی حکومت روپئ او اشرفئ وغیره پرې کول او ماتول حرام ګرځولې دی او د آیت [تسعة رهط یفسدون فی الارض ولا یصلحون] په تفسیر کښې د تفسیر امام حضرت زید بن اسلم هم دا فرمائیلې دی چه دې خلقو به درهم او دینار مات کړو او خپله فائده به ئې ترې تر لاسه کوله کوم ته چه قرآن کریم فساد عظیم [لوئې فساد] وئیلې دې.

د حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله د خلافت په زمانه کښې یو کس په دې جرم کښې ګرفتار کړې شو چه هغه درهم پریکولو عمر بن عبد العزیز رحمه الله ورته د درو سزا ورکړه او سر ئې ورله اوخرائیلو او په ښار کښې ئې چکر ورکړو [تفسیر قرطبی] (۲)

| | | |
|---|---|---|
| وَلَقَدْ | أَرْسَلْنَا | |
| او په تحقیق سره | اولیږلو مونږه | |
| او مونږ حضرت موسی علیه السلام په خپلو | | |

| مُوسَىٰ | بِآيَاتِنَا | وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ | إِلَىٰ فِرْعَوْنَ | وَمَلَئِهِ | فَاتَّبَعُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| موسی | په نښو خپلو سره | او دلیل ښکاره سره | فرعون ته | او سردارانو دهغه ته | نو تابعداری اوکړه هغوئ |

ښکاره نښو سره فرعون او د هغه سردارانو ته لیږلې وو، خو هغوئ د فرعون حکم او منلو

(۱) موطا مالک، کتاب وقوت الصلاة رقم الحدیث: ۲۲
(۲) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۹، ص ۸۸

أَمْرَ فِرْعَوْنَ ۚ وَمَآ أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ ۝ يَقْدُمُ قَوْمَهُ

دحکم د فرعون(۱) | اونهٔ وو | حکم د فرعون | په نیغه لار | مخکښې به ځی | د قوم خپل نه

خود فرعون حکم څه ښه نهٔ وو | دقیامت په ورځ به دخپل قوم نه وړاندې روان وی

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَأَوْرَدَهُمُ النَّارَ ۖ وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُودُ ۝

په ورځ دقیامت | نو ور داخل به کړی دوی | اور ته | او ډیر بد ځائي دې | د کوزیدو

نو هغوی به دوزخ ته ورکوز کړې | او هغه د کوزیدو په اعتبار ډیر خراب ځائي دې ..................

وَأُتْبِعُوا فِي هٰذِهِ لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ بِئْسَ الرِّفْدُ

او دوی پسې شوا | په دې دنیا کښې | لعنت | او په ورځ دقیامت [هم] | بد انعام دې هغه

او په دې دنیا کښې هم ورپسې لعنتونه دی | او دقیامت په ورځ به هم وی | دغه بدله [د لعنتونو] ډیره خرابه ده

الْمَرْفُودُ ۝ ذٰلِكَ مِنْ أَنْبَآءِ الْقُرٰى نَقُصُّهُ عَلَيْكَ

چې دوی ته ورکړې شو | دا | یو څوخبرونه دی | دکلو(۲) | چې بیانوو ئې مونږه | تا ته

.........ددغه یو څو کلو خبرونه مونږ تاته بیان کړل |

مِنْهَا قَآئِمٌ وَّحَصِيدٌ ۝ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ

دهغه کلی ځینی | ولاړ دی | او ځینی ریبلی شوی دی | او اونهٔ کړو ظلم مونږه په هغوی باندې | خو لیکن

بعضې کلی لاتر اوسه آباد دی | او بعضې ختم شوی دی | او مونږ په هغوئ زیاتي نهٔ وو کړې | بلکه

---

۱) دَ فرعون اطاعت نه پریخودل:- فرعون دَ قبطی قوم سردار اودَ هغه دَ ولې طرف ته الله تعالی خپل رسول موسی ؑ سره دَ خپلو آیاتونو او دَ ښکاره دلیلونو سره راولیګلو خوهغوی دَ فرعون اطاعت پرینخودو او دَ هغه په ګمراه کونکې طریقه باندې هغه پسې روان وو. لکه څنګه چه هغوی دَ ده حکم منل نه پریخودل او هغه ئې خپل سردار ګڼړلو دغه شان به دَ قیامت په ورځ هم هغه پسې وی او هغه به په خپله مشرئی کښې دوی خپل ځان سره دوزخ ته بوځی او پخپله به دوچنده عذاب برداشت کوی. هم دغه حال دَ خرابو خلقو دَ تابعدارئی کونکو دې هغوی به دا هم وائی چه هم دې خلقو مونږ ګمراه کړې یو ته هغوی له دوچند عذاب ورکړه الخ. مسند کښې دی حضور ﷺ فرمائی چه دَ قیامت په ورځ دَ جاهلیت دَ شاعرانو جنډا به دَ امرؤالقیس په لاس کښې وی او هغه به سره دَ دې دوزخ ته ځی. (احمد:۲/۲۲۸، مسندالبزار:۲۰۹۱) دَ اُور په دې عذاب باندې به دا نور زیاتې وی چه دلته او هلته په دواړو ځایونو کښې به دَ همیشه دَ پاره داخلق لعنتی وی. دَ قیامت دَ ورځې لعنت سره په دوی دوه لعنتونه پریوتل. دوی نورو خلقو ته دَ دوزخ دعوت ورکونکی امامان وو په دې وجه په دوی باندې دوچنده لعنت پریوتلو.

۲) دَ وړاندینوخلکو دَ حالاتو بیان:- دَ انبیاء او دَ هغوی دَ امتونو واقعات بیانولو سره دَ الله تعالی ارشاد دې چه دا دَ هغه کلو واله واقعات دی کوم چه مونږ ستا په وړاندې بیانوو. په دوی کښې دَ څه خلقو کلی خو اوس هم آباد دی او بعضې ختم شوی دی. مونږ هغوی په ظلم سره نه دی هلاک کړی بلکه هغوی پخپله دَ خپل کفر اوتکذیب په وجه په خپلو لاسونو په خپل ځان باندې هلاکت واخستلو اودَ کومو باطلو معبودانو اسرې چه دَ هغوی وې په وخت باندې دَ هغوی هیڅ پکار رانغلې بلکه دَ هغوی عبادت هغوی نور هم غرق کړل اودَ دواړو جهانو وبال په هغوی باندې راپریوتلو.

ظَلَمُوٓا أَنفُسَهُمْ فَمَآ أَغْنَتْ عَنْهُمْ ءَالِهَتُهُمُ
ظلم کړی وو هغوئ | په خانونو خپلو باندي | نو دفع نه کړوا | د هغوئ نه | خدایانو دهغوئ
هغوئ پخپله په خپلوځانونو ظلم کړي وو | نو هغه معبودان ئي هیڅ پکار رانغلل | چي
ٱلَّتِي يَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مِن شَيْءٍ لَّمَّا
هغه خدایان | چي رابلل به هغوئ | ماسوا د الله نه | هیڅ څیز | هرکله چي
دالله ﷻ نه بغیر به ئې رابلل | هر کله چي ستا د پروردګار حکم [عذاب] راغلو.................
جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۖ وَمَا زَادُوهُمْ غَيْرَ تَتْبِيبٍ ﴿١٠١﴾
راغئ حکم | د رب ستا | او زیات نه کړل دي خدایانو هغوئ له | غیر د بربادئ نه |
..............او [بلکه] هغوی ته ئې د هلاکت نه بغیر هیڅ فائده ورنکړه |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ موسیٰ لره په خپلو نښو او په واضح دلیل سره پیغمبر جوړ کړو. فرعون او د هغه سردارانو ته مو ولیږلو نو هغوی د فرعون خبره ومنله، حال دا وو چه د فرعون خبره بالکل صحیح نه وه. هغه به د قیامت په ورځ دخپل قوم نه مخکښي وي، او هغوی به جهنم ته راولي. او هغه بدترین ګودر دي چه هغې ته څوك راشي. او لعنت دي دنیا کښي هم دوی پسي شو، او آخرت کښي هم. دا یو بدترینه بدله ده چه چا ته ورکړي شي. دا ددي کلو څه حالات دي چه مونږ ئې تا ته آورو. په دي کښي څه (کلي) داسي دي چه په خپل ځائ آباد دي او څه دلو شوي فصل (پښان ئې نوم او نشان) شوی دي. او مونږ په دوی باندي څه ظلم نه وو کړي بلکه دوی په خپله په خپلو ځانونو باندي ظلم کړي وو، ددي نتیجه دا شوه چه کله ستا د پروردګار حکم راغي نو کوم معبودان چه دوی دالله په ځائ رابلل، هغوئ د دوی ذره هم پکار نه شو. او هغوی دوی لره د تباهئ نه سوا نور څه ورنکړل.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِـَٔايَـٰتِنَا وَسُلْطَـٰنٍ مُّبِينٍ ﴿٩٦﴾﴾ او مونږ موسی [علیه السلام] لره [هم] خپلې معجزې او روښانه دلیل ورکړه.
﴿ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِۦ فَٱتَّبَعُوٓا۟ أَمْرَ فِرْعَوْنَ ۖ وَمَآ أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ ﴿٩٧﴾﴾ فرعون اودده سردارانوته موولیږه پس [نه فرعون ومنلواونه دده سردارانو ومنلو بلکه فرعون هم پخپل کفریاتی شواو] دغه خلق [هم] دفرعون په رایه روان شواودفرعون رایه صحیح نه وه.
﴿ يَقْدُمُ قَوْمَهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ فَأَوْرَدَهُمُ ٱلنَّارَ ۖ وَبِئْسَ ٱلْوِرْدُ ٱلْمَوْرُودُ ﴿٩٨﴾﴾ دغه [فرعون] به دقیامت په ورځ دخپل قوم نه مخکی وی بیابه دوی [تولو] لره دوزخ ته ورښکته کړی اودغه [دوزخ] ډیربدځای دی دورکوزیدو کوم ته چه به داخلق ورکوز کړی شی.
﴿ وَأُتْبِعُوا۟ فِى هَـٰذِهِۦ لَعْنَةً وَيَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ ۚ بِئْسَ ٱلرِّفْدُ ٱلْمَرْفُودُ ﴿٩٩﴾﴾ اوپدی دنیاکښی هم لعنت دوی سره ملګری شواودقیامت په ورځ به هم [ددوی سره وي چنانچه دلته په قهرسره غرق شواوهلته به ئی دوزخ نصیب شي] بدانعام دی کوم چه دوی ته ورکړی شو.
﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْقُرَىٰ نَقُصُّهُۥ عَلَيْكَ ۖ مِنْهَا قَآئِمٌ وَحَصِيدٌ ﴿١٠٠﴾﴾ دا [څه چه پورته په قصو کښی ذکرشو] دهغوی [تباه شوو] کلو بعضی حالات دی کوم چه مونږ تاته بیانوو [پس] بعضی کلی خوپه دغو کښی

Scanned with

[تراوسه]قائم دي [مثلا مصرچه دفرعونيانودهلاکيدونه پس هم آبادپاتې شواوبعضې بيخي ختم دي.

﴿وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَمَآ اَغْنَتْ عَنْهُمْ اٰلِهَتُهُمُ الَّتِيْ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ لَّمَّا جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ ۭ وَمَا زَادُوْهُمْ غَيْرَ تَتْبِيْبٍ﴾ [مونږ چه دې مذکوره کلووالاوته سزاورکړېس]مونږپه دوی ظلم ندی کړی [چه بې جرمه مووړته سزاورکړه چه صورتاظلم دی]ليکن دوی پخپله پخپلوځانونوظلم وکړو [چه داسې حرکات ئې وکړل چه لائق دسزاشول]نوددوی هغومعبودانوکوم چه دوی دالله نه غير رابللی دوی ته هيڅ فائده ورنکړې شوه هرکله چه ستا درب حکم [دعذاب لپاره]راغی[چه دوی ئې دعذاب نه خلاص کړې وی]او[فائده خولرې]برعکس ئې دوی ته نقصان ورسولو[سبب دنقصان شوچه ددوی دعبادت په وجه ئې سزاوخوړه]

| |
|---|
| وَكَذٰلِكَ اَخْذُ |
| \|اوهمدارنګې\|رانيول دي |
| \|اوستا د پروردګار هم داسې نيول وی |
| رَبِّكَ اِذَآ اَخَذَ الْقُرٰى وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۭ اِنَّ اَخْذَهٗٓ |
| د رب ستا\|کله چې\| اونيسی \| کلی \| حال دا چې وی هغه کلی \| ظالمان \| بيشکه \| نيول دهغه |
| چې کله دکلو خلق راونيسی \| چې هغوئ [د ګناهونو په وجه] ظالمان وی\| دهغه نيول دردناک |
| اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ ۝ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّمَنْ |
| دردناك دی \| سخت دی \| بيشکه \| په دې واقعاتوکښې\| خامخا نښه دعبرت ده(¹) \| دپاره دهغه چا |
| او سخت دی \| ......بيشکه په دې واقعاتوکښې د هغه چا د پاره نښه ده\|چې د آخرت دعذاب نه |
| خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ ۭ ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ ۙ لَّهُ |
| چې ويرېږی\| دعذاب دآخرت نه \| دا [داسې] ورځ ده\| چې راجمع کړې شوې به وی په کښې |
| ويرېږی \| ......هغه به داسې ورځ وی \|چې ټول خلق به ورته راجمع کولې شی |
| النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ۝ وَمَا نُؤَخِّرُهٗٓ |
| خلق \| او هغه به \| داسې ورځ وی\| چې ټول به په کښې حاضرکړې شوې وی\| اونه روستوکوؤ مونږه دغه ورځ |
| اوهغه داسې ورځ ده\|چې به پکښې[د الله په دربار]کښې پيش کولې شی\|اومونږ هغه تر يو مقررې مودې پورې |

[1]) **تقيامت متعلق دَ الله تعالى وعده:-** دَ کافرانو به دې هلاکتونو او مؤمنانو به خلاصې کښې صفا دليل دې زمونږ په دې صداقتونو کوم چه مونږ د قيامت باره کښې کړی دی په کومه ورځ چه به ټول داول اوآخر خلق راجمع کولې شی يو به هم باقی نه پاتې کيږی (۱۸/الکهف:۴۷) هغه ډيره درنه ورځ ده. ټولې فرښتې ټول رسولان او ټول مخلوق به حاضرېږی. حقيقی حاکم به کافی انصاف کوی. دَ قيامت په واقع کيدو کښې د وخت لړيدو وجه دا ده چه رب دا خبره اول مقررکړې ده چه دَ دومره مودې پورې به دنيا په بنی آدمو باندې آباده وی، دومره موده به په خاموشئ تيرېږی بيا به په فلانکی وخت قيامت قائمېږی په کومه ورځ چه قيامت راشی هيڅ څوك به هم نه وی چه د رب دَ اجازت نه بغير شونډې کولاؤ کړې شی مګرچه رحمن چاته اجازت ورکړی او هغه به خبره هم صحيح کوی. (۷۹/النباء:۳۸)

Scanned with Ca

إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ ۝ يَوْمَ يَأْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ

مگر ابوي نيټې | شمارلي شوى پورې | په كومه ورځ | اچې راشي هغه [قيامت] | نه به كوي خبرې (۱) | هيڅ نفس

روستو كړې ده | كله چې هغه ورځ راشي | نو هيڅوك به د الله ﷻ د اجازت نه بغير

إِلَّا بِإِذْنِهِ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَّسَعِيدٌ ۝ فَأَمَّا الَّذِينَ

مگر | په اجازت د هغه سره | نو د هغوئ نه به | څه بدبخته وي | او څه نيك بخته | نو هر چې هغه كسان دي

خبره نشي كولې | نو بعضې به بدنصيبه وي | او بعضې به خوش نصيبه وي | ..................نو څوك چې

شَقُوا فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَّشَهِيقٌ ۝

چې بدبخته شو | نو په اور كښې به وي | اوى به هغوئ دپاره | په هغې اوركښې | چغې په نرى آواز | او چغې په غټ آواز

بدنصيبه وي | هغوئ به په اور كښې پراته وي | په هغې كښې به چغې سورې وهي

خٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ

هميشه به وي | په دې حالت كښې | ترڅو چې ولاړ وي | آسمانونه | او زمكه | مگر | چې اوغواړي

هميشه به په كښې پراتۀ وي | ترڅو چې آسمانونه او زمكه قائم وي (۲) | مگر دا چې ستا پروردگار خوښه شي

---

(۱) **نول آوازونه به دَ الله رحمن ذات په وړاندې ټيټ وي:** دَ بخارى او مسلم په حديث شفاعت كښې دى چه په هغه ورځ به صرف رسول الله ﷺ خبرې كوى او دَ هغه كلام به هم صرف دغه وى ياالله سلامت اوساته (۲۰/طه:۰۸) يا الله سلامتى ورکړه. (صحيح بخارى:۸۰۶ صحيح مسلم:۱۸۲) دَ محشر په مجمع كښې خو به ډير خلق بد وى او ډير به نيك وى. د دې آيت په نازليدو باندې حضرت عمر رضی الله عنه تپوس كوى چه بيا يارسول الله ﷺ! زمونږ اعمال په دې بنا باندې دى د كوم نه چه اول فراغت كړې شوې دې كه يا چرته په نوې بنا باندې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه نه بلكه په هغه حساب باندې كوم چه اول ختم شوې دې چه په كوم قلم چليدلې دې خود هربود پاره به هغه آسان وى دَ كوم دَ پاره چه دَ هغه پيدائش كړې شوې دې. (ترمذى:۳۱۱۱ومسند ابويعلى)

(۲) **يوښكته او دهغې جواب:** د دې آيتونو دوه معنې كيديشى. يو دا چه څومره زمكه آسمان په دنيا كښې باقى دى تر هغه پورې به بدبخته په دوزخ كښې او نيك بدبخته به جنت كښې وى. خو څوك چه نورزيات غواړى نو دا ستارب ته معلوم دى. ځكه چه كله هم مونږ د زياتې نه دزياتې مودې تصور كوو نو دخپل ماحول اعتبار سره زياته موده هم دا اخلو. په دې وجه د ﴿مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ﴾ وغيره الفاظ د عربو په محاوراتوكښې د دوام او اوږدې زمانې دپاره ادا كولې شى. باقى ددوام او ابديت اصلى دليل لكه لامحدوده زمانه ورته وښيل پكار دى . هغه دالله ﷻ غير متناهى علم كښې مختص دى. چه دې ﴿إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ﴾ سره وښيلې شى.

بله معنى دا كيديشى چه لفظ﴿ مادامت السماوات والارض ﴾ كښې ددوام په معنى كښې واخستې شى.يا د زمكې او آسمان نه دې د آخرت زمكه آسمان مراد واخستې شى.لكه ﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ۝﴾ (ابراهيم ع ۷) مطلب داشو چه بدبخته به دوزخ كښې او نيك بخته به جنت كښې تر هغه وخته پورې وى تر كومې پورې چه دآخرت زمكه آسمان باقى وى. يعنى هميشه . خو چا لره ستارب اوغواړى نو دهغه (عذاب ) به ختم كړى او هميشه به ئې پكښې پاتې نكړى. ځكه چه دجنتيانو او دوزخيانو هميشه اوسيدل به هم دكفارو اومشركينو عذاب او دجنت والو ثواب به هم موتوف نه وى. نو وې فرمائيل چه ﴿وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً﴾.....

[بقيه په راروانه صفحه

Scanned with Ca

رَبُّكَ ۗ إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ۝ وَأَمَّا الَّذِينَ

رب ستا | بیشکه | رب ستا | کونکې دی | دهغه کار | چې اوغواړی | او هر چې هغه کسان دی

...... بیشکه ستاپروردګارچې د څه اراده اوکړی | هغه کوی | ............او خوک چه خوش نصیبه

سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ

چې نیک بخته وی | نو هغوئ به په جنت کښې وی | همیشه به اوسی | په هغې کښې | ترڅو چې ولاړ وی

وی | نو په جنت کښې به دننه وی | همیشه به په کښې اوسیږی | ترڅو چې آسمانونه او زمکه

السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ ۗ عَطَاءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ۝

آسمانونه | او زمکه | بغیر دهغې نه | چې اوغواړی | رب ستا | دا ورکړه ده | چې نه به وی ختمیدونکې

قائم وی | مګر که ستا د پروردګار خوښه شی (نو بدلولې شی) | دا داسې ورکړه ده | چې ختمیدونکې نه ده

فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هَٰؤُلَاءِ ۚ

نو ائې تبی مه کیږه ته | په شك کښې | په باره د هغه څه کښې | چې عبادت ئې کوی | دا خلق

نو (زما محبوبه ﷺ) ته دهغې بتانو دعبادت په بطلان کښې هیڅ شک مه کوه | دګومو چې دا خلق عبادت کوی

مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُم مِّن قَبْلُ ۚ وَإِنَّا

نه کوی عبادت دوئ | مګر | لکه چې | عبادت به کولو | پلارانو ددوئ | مخکښې ددوی نه | او بیشکه مونږه

دوئ ددغې معبودانو هغه شان عبادت کوی | لکه څنګه چې به د دوئ پلرونو کولو | ..........او مونږ به

...دتیرمخ بقیه].. كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ ۝ بقره ع ۲۰ ) او ( يُرِيدُونَ أَن يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ۝ مائده ع ۶ ) او ( إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ ۚ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا ۝ (نساء ع/۱۸) ) . هم په دې باندې دټولو مسلمانانو اجماع ده. او زمونږ دزمانې بعضې نام نهاد مفسرینو چه ددې نه خلاف لیکلی دی هغه ضعیف روایات دی. یا اقوال دی. یا بعضې آیتونه اواحادیث دی چه دهغې مطلب غلط ګنړلې شوې دې.که دالله تعالی په فضل سره دمستقل تفسیر نوبت راغلو نو په دیکښې به ښه تفصیل لیکم. داختصار په وجه په دې ځائې کښې دا ګنجائش نشته دې. پاتې شوه دهغه مسلمانانو مسئله چه دګناهونو په وجه به دوزخ کښې اچولې شی (العیاذ بالله) احادیث صحیحه مونږ ددې نه خبر کړې یو. چه دوی به یو ورځ ضرور د دوزخ نه راویستلې شی او جنت ته به داخلولې شی. چه دجنت نه به هیڅ یو جنتی نه ویستلې کیږی. شاید چه په دې لحاظ سره چه دجنتیانو په ذکر کښې "عَطَاءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ۝" او د دوزخیانو په ذکر کښې "إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ۝" ارشاد اوشو. چه معلوم شی چه بعضې بدبخته به د دوزخ نه ویستلې شی. خو سعید به دجنت نه شی ویستلې. په "إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ ۗ" کښې خبرداری اوشو چه دالله تعالی په همیشه پاتې کیدو اود مخلوق په همیشه پاتې کیدو کښې فرق دی. دیو مخلوق همیشه پاتې کیدل صرف دالله ﷻ په حکم باندې دی. کله نې چه هم هغه لونې ذات غواړی نو فنا کولې شی. داشان اوفرمانیلې شو چه جزاء اوسزادهغه په اختیار کښې دی.دآریه اوسماج د عقیدې موافق هغه په دې مجبور نه دی.

لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوصٍ ﴿۱۰۹﴾

پوره پوره ورکونکي يو دوئ لره | حصه د دوئ | چې نۀ به وی کمه کړې شوی ..........

دوئ ته خپله [دعذاب] حصه پوره پوره ورکوو | چې هيڅ کمي به په کښي نۀ وی ..........

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِ ۭ وَلَوْلَا

اوبه تحقيق سره ورکړې وو مونږه | موسی ته کتاب | نو اختلاف اوکړې شو | په هغې کښې | او که چرې نۀ وه

او مونږ حضرت موسی ته کتاب ورکړو | نو په هغې کښې هم اختلاف اوکړې شو | ..........او که

كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۭ

خبره | مخکښې شوې | د طرفه د رب ستانه | نو خامخا به فيصله شوې وه | په منځ د دوئ کښې

يوه خبره ستا د پروردګار د طرفه د وړاندې نه خلاصه شوې نۀ وه | نو د دوی په مينځ کښې به پخوا فيصله شوې وه

وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ﴿۱۱۰﴾ وَاِنَّ

او بيشکه دا خلق | خامخا په شك کښې دی | د دې نه | په ژور شک کښې | او بيشکه

حقيقت دا دې چې دوئ د دې کتاب باره کښې په شک کښی پريشان حاله دی | ..........او بيشکه

كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ اَعْمَالَهُمْ ۭ اِنَّهٗ بِمَا

هر يو ته کله چې وخت راشی | خامخا به پوره بدله ورکړي دوی ته | رب ستا | د عملونو د دوئ | بيشکه هغه | په هغه کارونو

ستا پروردګار به دې ټولو ته د خپلو عملونو بدله پوره پوره ورکوی | ..........بيشکه هغه [الله]

يَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۱۱﴾

چې دوئ نې کوی | خبردار دې

د دوئ په ټولو کارونو ښه خبر دې |

## آسان ترجمه قرآن

او کوم کلي چه ظالمان وي چه کله ستا رب هغه ونيسي نو د هغه نيول هم د غسې وي واقعي د هغه نيول ډير دردناك . ډير سخت دي . په دې ټولو خبرو کښې د هغه چا دپاره لوئ عبرت دې چه د آخرت د عذاب نه ويريږي هغه داسې ورځ ده چه هغې ته به ټول خلق جمع کولې شي . او هغه داسې ورځ ده چه هغې ته به ټول په غوږ نيولو سترګو ګوري او که مونږ دا وروستو کړيږو . نو ديوې شمارلې شوې مودې دپاره مو روستو کړې ده . او چه کله هغه ورځ راشي نو دالله د اجازت نه بغير به څوك خبره نه شي کولې . بيا به دوی کښې څوك بدحاله وي او څوك به ښه حال والا . نو چه کوم بدحاله وي هغوی به دوزخ کښې وي هلته به د دوی د چغو سورو آوازونه راځي . دوی به دې کښې هميشه وي تر څو چه آسمان او زمکه موجود وي البته که ستا رب ته نور څه منظور وي يقيناً ستا رب چه د څه اراده وکړي . نو هغې ډاډي ښه عمل کوی او کوم خلق چه نيك بخته وي هغوی به جنت کښې وي هغې کښې به دوی هميشه هميشه وي . تر څو چه آسمانونه او زمکې وي . مګر دا چه ستا رب ته نور څه منظور وي — دا به داسې ورکړه وي چه چرې به نه

Scanned with Ca

ختميږي. نو (اې پيغمبره !) دا (مشركان) چه د كومو (بتانو) عبادت كوي، د هغوى په باره كښې ذره هم په شك كښې مه كيږه. دوى خو داسې عبادت كوي لكه چه د دوى پلار نيكه د دوى نه مخكښې عبادت كولو. او يقين وكړه چه مونږ به دوى ټولو ته د دوى پوره پوره حصه وركړو. چه هغې كښې به هيڅ كمې نه كيږي اومونږ موسٰى ته كتاب وركړې وو. نوهغې كښې هم اختلاف شوې وو. اوكه ستا د پروردګار دطرف نه دمخكښې نه فيصله نه وه شوې (چه دوى ته به پوره پوره عذاب آخرت كښې ملاويږي) نو د دوى فيصله به (دلته دنيا كښې) شوې وه اودا خلق دې باره كښې (اوسه پورې) سخت شك كښې پراته دي. اوياد وساته چه ددې ټولو خلقو معامله دا ده چه د دوى پروردګار به ددوى د اعمالو بدله پوره پوره وركوي. يقيناً هغه ددې ټولو د اعمالو نه بنه خبردې.

**خلاصه تفسير:**

﴿ وَكَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ اِذَآ اَخَذَ الْقُرٰى وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۗ اِنَّ اَخْذَهٗٓ اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ ۝﴾ اوستادرب نيول داسې [سخت] دي كله چه هغه ديوكلي خلق ونيسي كله چه هغوى ظلم [اوكفر] كوي بيشكه دهغه نيول زيات دردناك [او] سخت دي [چه په دې سره سخت تكليف رسي اوهيڅوك ترې بچ كيدې ى نشي].

﴿ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ ۗ ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ ۙ لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ۝﴾ بيشكه پدې واقعاتوكښې دهغه سړي لپاره لوى عبرت دى چه دآخرت دعذاب نه ويريږى [دعبرت وجه ښكاره ده چه كله ددنيا عذاب دومره سخت دى سره ددې چه دادارالجزاء نه ده نودآخرت چه دارالجزاء ده څومره سخت به وي] هغه [دآخرت ورځ] به داسې ورځ وي چه پدې كښې به ټول خلق جمع كړې شي، اودغه دټولودحاضرئ ورځ ده.

﴿وَمَا نُؤَخِّرُهٗٓ اِلَّا لِاَجَلٍ مَّعْدُوْدٍ ۝﴾ او [دغه ورځ اګركه لاتده راغلى ليكن ددى نه دى څوك ددې په راتلوكښې شك نكوي راځي به خامخا] مونږدوى صرف دلږوخت لپاره [په بنا د بعضو مصلحتونو] ملتوى كړې دى.

﴿يَوْمَ يَاْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَّسَعِيْدٌ ۝﴾ [بيا] كله چه دغه ورځ راشي [دهيبت نه دخلقوداحال وي چه] هيڅوك به دالله داجازت نه سخكى خبره قدرى [هم] نشي كولي [البته كله چه دحساب كتاب لپاره حاضري وي اودعملونوتري جواب وغوښتلاى شي دغه وخت به ئى لازمى دخولى نه خبره اوځي كه دغه خبره مقبوله وي يانه وى نوپدي حالت كښې به ټول اهل موقف شريك وي] بيا [مخكى] به په دوى كښې [دافرق وي چه] ځنې به بدبخت [كافران] وي اوځنې به نيك بخت [مومنان] وي.

﴿ فَاَمَّا الَّذِيْنَ شَقُوْا فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّشَهِيْقٌ ۝﴾ پس كوم چه بدبختان دي دغه به په دوزخ كښې په داسې حال كښې وي چه په دې كښې به ددوى چغې اوكوكاري وي.

﴿خٰلِدِيْنَ فِيْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ۗ اِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ۝﴾ [او] هميشه هميشه به پدې كښې وي ترڅوچه آسمان اوځمكه قائم دي [دامحاوره ده دهميشوالى] اوهيڅ لاربه نى دوتلونه وي البته كه الله ته ئى [وتل] منظوروى هغه جداخبره ده [ځكه چه] ستارب چه څه غواړي هغه په پوره طورسره كولې شي [مګرسره دقدرت نه دايقيني ده چه الله تعالى به داخبره ونه غواړي نوځكه وتل به ئى نصيب نشي].

﴿ وَاَمَّا الَّذِيْنَ سُعِدُوْا فَفِي الْجَنَّةِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ۗ عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوْذٍ ۝﴾

Scanned with Ca

اوپاتې شونيك بختـه خلق نوهغوی به په جنت کښې وي[او]دوی به پدی کښې[دداخليدونه پس] هميشه هميشه اوسي ترڅوچه آسمان اوځمکه قائم دي [اګرکه دتللونه مخکې ئې څه سزا تيره کړي وی]دغه به نه قطع کيدونکې بخشش وی.

﴿ فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هٰٓؤُلَآءِ ۚ مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُم مِّن قَبْلُ ۚ وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنقُوصٍ ﴾ [هرکله چه دکفروبال دبره اياتونو نه معلوم شو]پس[ای مخاطبه]دکوم شي چه دوی عبادت کوی دی باره کښې يوه ذره شبه مکوه[بلکه يقين وساته چه ددوی عمل واجبونکې دسزادی ځکه چه باطل دی پدی دليل چه]داخلق همدغه شان[بی دليله بلکه خلاف ددليل نه دغيرالله] عبادت کوی څنګه چه ددوی نه مخکې ددوی پلارنيکه عبادت کولو[ددليل نه جلاف کارباطل اود سزا موجب دی]اومونږيقينابه [په قيامت کښې]ددوی حصه[دعذاب]دوی ته پوره پوره بې کم وکاست ورکړو،

﴿ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَاخْتُلِفَ فِيهِ ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۚ وَإِنَّهُمْ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴾ اومونږ موسى[عليه السلام] ته کتاب[تورات]ورکړی ووپس پدی کښې[هم دقرآن په مثل]اختلاف وکړی شو [چه چاومنلواوچاونه منلوداستاپاره نوی خبره نده نوته مه غمژن کيږه]او[دامنکران داسی مستحق دعذاب دي چه]که يوه خبره نه وي کومه چه ستادرب لخوااول مقررشوی ده[چه دوی ته به پوره عذاب په آخرت کښې ورکوم]نو[په کوم شي کښې چه دوی اختلاف کوي] دهغی [قطعی] فيصله به[په دنياکښې]شوی وه [يعنی دغه وعده شوی عذاب به واقع شوی وو] او دا خلق [سره دقائميدوددليلونوتراوسه پوری] ددی [فيصلی يعنی وعده شوی عذاب]دطرف نه داسی په شك کښې[پريوتی]دي چه دې شك دوی په تردد کښې اچولی دی[چه بيخي ئې په عذاب يقين نه راخي ،دشك مطلب دادی]او[دچاپه شك يا انکارسره عذاب واپس کيدی نشي بلکه].

﴿ وَإِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَالَهُمْ ۚ إِنَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ يقينی داټول داسی دي چه ستارب به دوی ته ددوی دعملونو[سزا]پوره پوره حصه ورکړي،يقينی هغه ددوی دټولوعملونونه پوره خبرلري [نوکله چه ددوی دعذاب دمعاملی سره ستاڅه کارنشته نوته اومسلمانان په خپل کارکښې لګياشئ:هغه کاردادی چه اوس داراتلونکې آياتونوکښې راځي]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | فَاسْتَقِمْ | | كَمَا | أُمِرْتَ |
| | | نو[ائې نبی]مضبوط اوسه | | لکه څنګه چې | حکم شوی دی تاته |
| | | نو ته په سمه لار قائم اوسه | | لکه څنګه چې درته | |
| وَمَن | تَابَ | مَعَكَ | وَلَا تَطْغَوْا | إِنَّهُ | بِمَا |
| او هغه څوك | چې واپس شوی دی ايمان ته | ستاسره | اومه تيريږئ د حد نه | بيشکه هغه | هغه کارونو لره |
| حکم شوی دی | او هغه خلق دي هم قائم اوسيږی | چې توبه ئې ويستې ده | او تاسره ملګري دی | او سرکشی مه | |
| تَعْمَلُونَ | بَصِيرٌ | وَلَا تَرْكَنُوا | إِلَى الَّذِينَ | ظَلَمُوا | |
| چې تاسو ئې کوئ | ليدونکې دې | اومه مائيله کيږئ | هغه کسانوته | چې ظلم ئې کړې دي | |
| بيشکه هغه ستاسو کارونه وينی ګوری | او ددې ظالمانو طرفته ميلان مه کوئ | ګنې تاسو ته به هم | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَتَمَسَّكُمُ | النَّارُ | وَمَا | لَكُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | مِنْ اَوْلِيَآءَ |
| گننئ نواوبه رسيږی تاسوته | اور | حال دا چې نهٔ به وی | ستاسو دپاره | په مقابله دالله کښې | څوك دوست |
| اد دوزخ | اور | اور سيږی | ...... | او دالله ﷻ نه بغير هيڅوک | ستاسو مددگار نشته دي |
| ثُمَّ | لَا تُنْصَرُوْنَ ۝ | | | | |
| بيا به | اونه کړې شي امدادتاسو سره | | | | |
| بيا به ستاسو هيڅ مدد نشی کولی | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

نو (اې پيغمبره!) لکه څنګه چه تا ته حکم شوې دې د هغې مطابق ته هم په نيغه لاره مضبوط اوسيږه .او هغه خلق هم چه تا سره توبه وباسي او دحد نه مه اوړئ.يقين وکړئ چه کوم عمل هم تاسو کوئ، مونږ هغې لره وينو.او(اې مسلمانانو!) دې ظالمانو طرف ته لږ غوندې هم مه مائله کيږئ ، چرته د دوزخ اور به تاسو هم راونيسي او تاسو ته به د الله نه علاوه بل څوك دوست ملاؤ نه شي. بيا به ستاسو څوك هم امداد ونکړي.

## خلاصه تفسير

[فَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ] تاسو ته چې څنګه حکم شوې دې [چې ددين په لار باندې] مستقيم اوسيږئ[وَمَنْ تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا] او هغه خلق دې هم [مستقيم اوسيږی ] چې د کفر نه ئې توبه کړې او تاسو سره دی او [ددين ] دائره کښې لږ مه اووځئ [اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝] يقينا ستاسو د ټولو عملونه هغه ته ښه معلوم دی [وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا] او [ اې مسلمانانو، ددې] ظالمانو طرفته [يا چې کوم ددوئ مثل وی هغې طرفته د زړهٔ به دوستئ سره يا اعمال واحوال کښې مشارکت او مشابهت سره] مه تيتيږئ ، [فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ اَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ ۝] داسې نه چې تاسو ته د جهنم اور اولګی او [ په هغه وخت ] کښې بهٔ دالله تعالی نه سوا ستاسو څوك رفيق نه وی بيا ستاسو حمايت به هيڅ يو طرفنه نه وی [ځکه چې رفاقت خو حمايت نه آسان دې کله چې رفاقت کولو والا هيڅوك نه وی نو حمايت کولو والا به څوك وی].

## معارف او مسائل

په سورت هود کښې د ټولو پخوانو پيغمبرانو ﷺ او د هغوی د قومونو واقعات د حضرت نوح ﷺ نه تر موسی ﷺ پورې په خاص ترتيب او تفصيل سره بيان شوې دی چه په کښې په سوونو وعظونه،حکمتونه،حکمونه او هدايات دی،د دې واقعاتو په ختميدو سره رسول الله ﷺ ته خطاب ورکولو سره امت محمديه ﷺ ته د دې نه عبرت او نصيحت حاصلولو بلنه ورکړې شوه فرمائی؛ ﴿ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْقُرٰى نَقُصُّهٗ عَلَيْكَ مِنْهَا قَآئِمٌ وَّحَصِيْدٌ ۝﴾ [يعنی دا د پخوانو ښاروں او ودانو واقعات دی چه مونږ درته اورولې دی،په کومو ودانو باندې چه د الله تعالی عذابونه راغلې دی،په هغې کښې د بعضو ودانې او د بعضو کنډرونه موجود دی، او بعضې داسې کړې شوی دی لکه د فصل ريبلو نه پس د زمکې په هوارولو سره چه د رومبنی فصل نښان هم نه پاتې کيږی-

وروسته فرمائي؛ موږ په دوی ظلم او نه کړو بلکه دوی په خپلو ځانونو په خپله ظلم اوکړو چه خپل پیدا کوونکي او پالونکي ئې پریښو او بتان او نور څیزونه ئې خپل خدایان جوړ کړل، انجام ئې دا شو چه کله د الله تعالی عذاب راغلو نو دغې د ځانه جوړ کړې شوي خدایانو د دوی هیڅ امداد او نه کړو، او کله چه الله تعالی څه ودانۍ په عذاب کښې راګیرې کړې نو د هغه راګیرول هم دغسې سخت او دردناک وی۔

وروسته د آخرت په فکر کښې د مشغولولو د پاره دوی ته اوفرمائیل[په دې واقعاتو کښې هغې خلقو د پاره لوئې عبرت او نښانی ده چه د آخرت د عذاب نه یریږی په کومه ورځ چه ټول بنیادم به په یو ځاې کښې جمع او موجود وی، د دغې ورځې شان به دا وی چه هیڅوک به د الله تعالی د اجازت نه بغیر هیڅ قسم ګفت [وئیل] نه شی کولې۔

وروسته رسول الله ﷺ ته په دوباره خطاب کولو سره فرمائی﴿فَاسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ وَمَنْ تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا ۚ إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾[یعنی د دین په لار باندې هغسې نیغ اوسئ څنګه چه حکم درکړې شوی دې اوهغه خلق دې هم نیغ اوسی چه د کفر نه ئې توبه کړې تاسو ﷺ سره شوې دی، او د الله تعالی د مقرر کړې حدونو نه مه اوځئ ولې چه هغه ستاسو ټول عملونه وینی۔

**د استقامت مفهوم او ډیره ضروری فائده::** د استقامت معنی نیغ اودریدل دی چه هیڅ یو اړخ ته هم په کښې څه تیتوالې نه وی، په ظاهره خو دا کار اسان ځکه نه دې چه د اوسپنې یا کاڼړی ستن خو یو ماهر انجنیئر داسې اودرولې شی چه د هر اړخ زاویه ئې ولاړه وی هیڅ اړخ ته لږ څه کوږوالې هم په کښې نه وی، لیکن د یو حرکت کوونکی څیز هر وخت په هر حال کښې دغه شان قائم پاتې کیدل ډیر ګران دی چه د بصیرت د خاوندانو نه پټه خبره نه ده۔

په دې آیت کښې رسول الله ﷺ او ټولو مسلمانانو ته په خپل کار کښې په هر شان د نیغ پاتې کیدو حکم ورکړې شوې دې، دا استقامت خو یو ورکوټې لفظ دې خو معنی او مطلب ئې ډیر زیات فراخه دې، ځکه چه معنی ئې دا ده چه انسان په خپلو عقیدو، عبادتونو، معاملاتو، اخلاقو، معاشرت، روزۍ ګټلو، په مال ګټلو او خرچ کولو، ټول هر څه کښې د الله تعالی مقررکړې حدونو کښې دننه پاتې کیدو سره د هغه په نیغه لار روان وی، په دغې هیڅ یو عمل او هیڅ یو حال کښې یو اړخ ته ښکته پورته کیدلو یا کمی زیاتی راستو سره استقامت باقی نه پاتې کیږی۔

په دنیا کښې ټولې ګمراهۍ او عملی خرابۍ د استقامت نه د ډډه کیدو په نتیجه کښې پیدا کیږی، کله چه په عقیدو کښې استقامت نه وی نو د بدعاتو نه واخله د دې په نتیجه کښې کفر او شرک ته خبره رسی، او د الله تعالی د توحید او د هغه د ذات او صفتونو په باره کښې کوم درمیانه او صحیح اصول چه رسول الله ﷺ بیان کړې دی که په دې کښې کمې او زیاتې او افراط اوتفریط دنیک نیتی نه هم اوکړې شی نودغې ته به ګمراهی وئیلې شی، د پیغمبرانو ﷺ د لوئې او محبت د پاره چه کوم حدونه ټاکلې شوې دی په هغې کښې کمې راوستونکو ته خو ګمراه او ګستاخ وئیلو باندې ټول پوهیږی، خو چه دې کښې څوک زیاتوالې راولی مثلا هغه لره د خدائې صفتونو او خدائی اختیاراتو مالک جوړوی نو دا هم ګمراهې ده، چنانچه یهود او نصاری په دې ګمراهې کښې اخته شو، په عبادتونو او الله تعالی ته د نزدیکت په کارونو کښې چه کومې طریقې قرآن کریم او رسول الله ﷺ ټاکلې دی په هغې کښې معمولی کوتاهی او کمی

Scanned with Ca

کولو سره څنګه چه انسان د استقامت نه په بل مخ اوړي، دغه شان په کښې د خپله خانه زياتي کولو سره هم استقامت برباديږي او انسان په بدعتونو کښې ورسره اخته کيږي، هغه خو په ډيرې نيک نيتې سره دا ګڼړي چه زه الله تعالى راضي کوم، خو هغه بيخي د الله تعالى د ناراضه کولو طريقه ده، هم دغه وجه ده چه رسول الله ﷺ خپل امت لره د بدعتونو او محدثاتو نه په ډير تاکيد سره منع کړي دي او هغې ته ئې سخته ګمراهي وئيلې ده، ځکه د انسان دپاره لازم دى چه يو کار، عبادت د الله تعالى او د هغه د رسول ﷺ د رضا لټولو په غرض کول غواړي نو د هغې د کولو نه وړاندې دې دا تحقيق اوکړي چه دا کار رسول الله ﷺ او صحابهٔ کرامو ﷺ په دې شان او طريقې سره کړې دې او که نه؟ که ثابت نه شي نو د هغې په کولو دې خپل وخت او طاقت نه ضائع کوي.

دغه شان په معاملاتو، اخلاقو او د معاشرت [ژوند تيرولو] په ټولو بابونو کښې د قرآن کريم په ښودلې شوى اصولو باندې رسول الله ﷺ د خپل عملي تعليم په ذريعه يوه درميانه او صحيح لار قائمه کړې ده، چه په کښې دوستې، دشمنې، نرمې، غصې، زغم، شومتوب، سخاوت، روزګار، دنيا پريښنولو ﷺ په الله تعالى باندې توکل، امکاني تدبير، د ضروري اسبابو برابروالې او په مسبب الاسباب باندې د نظر کولو، دې ټولو څيزونو کښې داسې يو منځ و ميانه صراط مستقيم مسلمانانو ته ورکړې ده چه د هغې نظير په دنيا کښې نه شي موندې، هله انسان کامل کيږي چه هم دغه لار اختيار کړي، د استقامت نه په لږ اخوا ديخوا کيدو سره په انساني معاشره کښې خرابيانې پيدا کيږي.

خلاصه دا ده چه استقامت داسې يو جامع [ډيرو معنو لره راجمع کوونکې] لفظ دې چه د دين ټولې برخې، ارکان او په دې باندې صحيح عمل کول د دې تفسير دې.

سفيان بن عبد الله ثقفي رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو، چه ما ته د اسلام په معامله کښې داسې يو جامع خبره اوښائې چه تاسو نه پس راته د بل چا نه د تپوس کولو ضرورت پاتې نه شي، رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل، قل امنت بالله ثم استقم [يعنى په الله تعالى ايمان راوړه او بيا په هغې نيغ اوسه، رواه مسلم [قرطبي] -(۱)

عثمان بن حاضر بن ازدي ﷺ فرمائيلې دى چه زه يو ځل د ترجمان القرآن حضرت عبد الله بن عباس ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او د څه وصيت کولو د پاره مې ورته عرض اوکړو هغوى ﷺ راته اوفرمائيل، عليك بتقوى الله والاستقامة اتبع ولا تبتدع؛ رواه الدارمي [تفسير قرطبي] (۲) [يعنى تقوى په پوره شان اختيار کړه د الله تعالى نه په پوره شان اويريږه او استقامت اختيار کړه د هغې طريقه دا ده چه د دين په معامله کښې د شريعت تابعداري کوه او د خپل اړخ نه څه بدعت مه راپيدا کوه] .

په دې دنيا کښې د ټولو نه زيات سخت کار استقامت دې ځکه خو محققينو صوفيانو فرمائيلې دى چه د استقامت مقام د کرامت نه زيات پورته دې، مطلب ئې دا دې چه څوک د دين په کارونو کښې استقامت اختيار کړي اګر چه په دغه ټول عمر کښې ترې کرامت صادر نه شي بيا هم د لوړې پائې ولي دې.

---

(۱) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب جامع اوصاف الاسلام: ج۱، ص۴۸، وتفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۹، ص۱۰۷
(۲) سنن الدارمي، كتاب المقدمة، باب من هاب الفتيا الخ رقم الحديث: ۱۴۱، وتفسير القرطبي: ج۹، ص۱۰۷

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائيلي دی چه په ټول قرآن کريم کښې په رسول الله ﷺ باندې د دې آيت نه زيات سخت بل هيڅ يو آيت نازل شوې نه دې او اوئې فرمائيل چه کله صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم يو ځل د رسول الله ﷺ په ږيره مبارکه کښې څه سپين ويښته اوليدل نو د ارمان او افسوس په ډول ئې عرض اوکړو چه اوس په تاسو بوډا والې زر زر را روان دې، نو اوئې فرمائيل چه سورت هود زه بوډا کړم، د دې مطلب دا هم کيدې شي چه په پخوانو امتونو باندې د راغلو عذابونو دخفګان له کبله زه بوډا شوم خوابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلي دی چه هم دا آيت ئې سبب دې.

په تفسير قرطبي کښې د ابی علي سري نه نقل کړې شوې دی چه هغوی په خوب کښې رسول الله ﷺ اوليدلو نو عرض ئې اوکړو چه تاسو فرمائيلي دی چه زه سورت هود بوډا کړم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه او، بيا دوی رحمه الله تپوس لوکړو چه په سورت هود کښې د پخوانو پيغمبرانو عليهم السلام بيان شوو واقعاتو او د هغوی د قومونو د عذاب بيان تاسو بوډا کړئ؟ نو اوئې فرمائيل چه نه، بلکه د الله تعالى دې ارشاد: فاستقم کما امرت زه بوډا کړم.[1]

هر کله چه الله تعالى رسول الله ﷺ لره په دنيا کښې د ټولو نه زيات کامل انسان پيدا کړې وو، د هغوی ﷺ په خمير او طبيعت کښې استقامت اغړلې شوې وو، بيا هم د دې حکم زيات پيتې پرې څکه راغلو چه آيت کښې مطلق استقامت نه دې غوښتې شوې بلکه د الله تعالى د حکم مطابق استقامت غوښتې شوې دې په دې بنا هر وخت به رسول الله ﷺ سره فکر وو چه زما استقامت د الله تعالى دغې حکم سره پوره خيژی او که نه؟

بله وجه ئې دا هم کيدې شي چه رسول الله ﷺ سره خپل فکر نه وو څکه چه هغوی ته الحمد لله دا استقامت حاصل وو، خو په دې آيت کښې ټول امت ته دا حکم ورکړې شوې دې نو د امت په استقامت باندې قائم پاتې کيدل ئې چه ګران اوليدل نو غمژن شو.

د استقامت د حکم نه پس فرمائی، ﴿ولا تطغوا﴾ د دې لفظ مصدر طغيان دې، معنی ئې د حد نه بهر ته وتل دی چه د استقامت ضد دې، مطلب دا چه يواځې د استقامت د حکم په مثبت انداز کښې صادرولو باندې ئې اکتفا او نه کړه بلکه د دې د منفي اړخ ممانعت ئې هم په ډاګه بيان کړو چه په عقيدو، عبادتونو، معاملاتو، اخلاقو وغيره کښې د الله تعالى او د هغه د رسول ﷺ د ټاکلې حدونو نه بهر مه اوځئ ولې چه دا د هر فساد او ديني دنيوی خرابئ لار ده.

په دويم آيت کښې انسان لره د خرابئ او بربادئ نه د ساتلو د پاره يو بله اهمه هدايت نامه داسې ورکړې شوې ده ﴿وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ﴾ يعنی ظالمانو ته څه معمولي ميلان هم مه کوئ هسې نه چه [هغوی سره] تاسو ته هم د جهنم اور در اورسي [لاترکنوا د رکون مصدر نه جوړ شوې دې معنی ئې يو اړخ ته معمولي او کمزورې ميلان کول او په هغې باندې تکيه کول او پرې راضي کيدل دی، څکه د آيت مطلب دا شو چه زور ظلم کښې اخته کيدل هر څوک د دين دنيا تباهی ګڼرې خو د ظالمانو اړخ ته معمولي کږيدل، ورته ميلان کول، په هغې راضي کيدل او اعتماد کول هم انسان لره تباهئ او بربادئ ته ور رسوی.

د داسې کوږ والی او ماتې کولو مطلب اغستلو کښې د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله څو اقوال منقول دی چه په کښې هيڅ اختلاف نشته، ټول په خپل خپل ځاې صحيح دی.

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۱۰۷

حضرت قتاده رضی الله عنه فرمائیلي دی د دې مطلب دا دې چه ظالمانو سره دوستی مه کوی، د هغوی خبره مه منئ، ابن جریج رحمه الله فرمائیلي دی چه ظالمانو ته هیڅ قسم میلان مه لرئ، ابو العالیه رحمه الله فرمائیلي دی چه د دوی کارونه او عملونه مه خوښوئ [قرطبی][1] سدی رحمه الله فرمائیلي دی چه د ظالمانو چاپلوسی مه کوئ یعنی د دوی په بدو کارونو باندې خاموشی مه اختیاروئ او په دې باندې رضا مندی مه ښکاره کوئ، عکرمه رضی الله عنه فرمائیلي دی چه د ظالمانو په مجلس کښې مه کښینئ، قاضی بیضاوی رحمه الله فرمائیلي دی چه شکل، صورت، فیشن د استوګنې وغیره په طریقو کښې د دوی تابعداری کول دا ټول په دې ممانعت کښې داخل دی.

قاضی بیضاوی رحمه الله فرمائیلي دی چه د زور ظلم د بندیز او حرامو الی د پاره په دې آیت کښې داسې بې دریغه سختوالي دې کوم چه په تصور کښې زیات نه زیات راتلې شی، ولې چه ظالمانو سره د دوستې او ژور تعلق لرل یو اخې نه بلکه هغوی ته معمولی شان ماتې او کږیدل کول او هغوی سره کښیناستل هم منع کړې شوې دی.[2]

امام اوزاعی رحمه الله فرمائیلي دی چه د الله تعالی بل هیڅ څوک زیات بدی نه شی سوا د هغه عالم نه چه د خپلې دنیوی فائدې په خاطر یو ظالم سره د ملاقات کولو د پاره ځی [مظهری][3]

تفسیر قرطبی کښې راغلي دی چه د دې آیت له مخې د کافرانو، نافرمانو او بدعتیانو د مجلس نه ځان ساتل او پرهیز کول واجب دی، خو هله که څه مجبوری نه وی، ولې چه په حقیقت کې د انسان ښه او خراب جوړیدل اکثر په مجلس او ماحول باندې اړه لری،[4] په دې بنا حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائیلي دی چه الله تعالی پوره دین د دې دوو آیتونو په دوو حرفونو [لا، لا] کښې داسې جمع کړې دې چه د اول آیت ﴿وَلَا تَطْغَوْا﴾ دې او د دویم آیت [لا ترکنوا] دې، په اول لا سره د شرعی حدونو نه د وتلو بندیز ثابتیږی او د دویم لا نه د ناکاره خلقو په مجلس کښې د شاملیدو او هغوی ته د میلان او ماتې کولو بندیز ثابتیږی چه د ټول دین خلاصه ده.

| |
|---|
| وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ |
| او قائم کړه \| مونځ \| په دواړو طرفونو \| دورځې کښې |
| او د ورځې په دواړو طرفونو کښې د مونځ پابندی کوه او د شپې په |
| وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ۚ إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ۚ ذٰلِكَ ذِكْرٰى |
| او په څه وختونو کښې د شپې نه \| بیشکه نیکئ \| لرې کوی \| بدو لره \| دا \| نصیحت دې |
| څه حصه کښې هم بیشکه چې نیکئ بدئ ختموی دا [قرآن] د نصیحت قبلونکو د پاره لوئې نصیحت دې |
| لِلذّٰكِرِيْنَ ۚ وَاصْبِرْ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ۞ |
| د پاره د یادونکو [الله لره] \| او صبر کوه \| بیشکه الله \| نه ضائع کوی \| اجر د نیکانو خلقو |
| ……………… او صبر کوه الله ﷻ هیڅکله د نیکانو اجر نه ضائع کوی |

[1]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۹، ص ۱۰۸
[2]) تفسیر البیضاوی تحت هذه الآیة: ج ۳، ص ۳۴
[3]) التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۳۳
[4]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۹، ص ۱۰۸

Scanned with Ca

فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ قَبْلِكُمْ اُولُوْا بَقِيَّةٍ يَّنْهَوْنَ

نوولې نه وو| دهغه قومونونه | چې مخکښې ستاسونه وو| خاوندان | د عقل | چې منع کولې ئې خلق

نودا ولې داسې اونشوه | چې ستاسو نه په ړومبو امتونو کښې داسې هوښيار خلق موجود وې | چې

عَنِ الْفَسَادِ فِي الْاَرْضِ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّنْ اَنْجَيْنَا مِنْهُمْ ۚ وَاتَّبَعَ

د فساد کولو نه | په زمکه کښې | مگر لږ | کوموته چې انجات ورکړو مونږه | دهغوئ نه | وتابعداری اوکړه

خلق ئې په زمکه کښې دفساد کولو نه منع کولې اخو کم کوز کسان به په کښې وو | کوم چې مونږ

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَآ اُتْرِفُوْا فِيْهِ وَكَانُوْا

هغه کسانو | چې ظلم ئې کړې وو| دهغې څه | چې آسودگي ورکړې شوې وه هغوئ ته | په هغې کښې | اوشو هغوئ

دعذاب نه بچ کړی وو | او کوم خلق چې ظالمان وو هغوی هم په دې خبرو پسې شول په کومو کښې چې

مُجْرِمِيْنَ ۝ وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ

نافرمان | اونه دې | رب ستا | داسې | چې هلاک کړې | کلې | په ظلم سره

عيش او ارام وو او هغوی گناهگار وو| ......... اوستا پروردگار داسې نه دې | چې کلې | برناحقه |

وَّاَهْلُهَا مُصْلِحُوْنَ ۝ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ

اوحال دا چې اوسيدونکي دهغې | اصلاح کونکي وی | اوکه چرې | غوښتلې | رب ستا | نوگرځولې به ئې وې

تباه کړی | په داسې حال کښې چې دهغې خلق د اصلاح کوشش کوی | اوکه ستا د پروردگار خوښه شوې وې

النَّاسَ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ ۝ اِلَّا مَنْ

ټول خلق | جماعت | يو | او هميشه به وی دوئ | اختلاف کونکي | مگر | هغه څوک

نوټول خلق به ئې يو امت کړې وې | نو دوئ به اوس هميشه په اختلاف کښې پراته وی | البته په چا

رَّحِمَ رَبُّكَ ۗ وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ ۗ وَتَمَّتْ

چې رحم اوکړی په هغه | رب ستا | او هم د دې د پاره | الله دوی پيدا کړل | او پوره شوه

چې ستا پروردگار رحم اوکړی | او هم ددې | اختيار او انتخاب | دپاره ئې دوئ پيدا کړی دی

كَلِمَةُ رَبِّكَ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ۝

فيصله | د رب ستا | چې خامخا به ډکوم زه | دوزخ | د پيريانونه | او د انسانانو نه | د ټولو نه

اوستاد پروردگار دا خبره فيصله شوې ده | چې زه به دوزخ د پيريانو اوبنی آدمو ټولو نه ډکوم

وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ

او دا ټول | خبرونه | چې مونږ بيانوو | تاته | دخبرونو د رسولانونه | دا هغه څيز دې | چې مونږه محکم کوو

او دپيغمبرانو په قصو کښې مونږ دا ټولې قصې تاته څکه بيانوو | چې ستا زړه پرې مضبوط کړو

بِهٖ فُؤَادَكَ ۚ وَجَآءَكَ فِيْ هٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَّذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۝

په دې سره | زړه ستا | او راغی تاته | په دې کښې | حق | او نصيحت دې | او بيداري ده | دپاره دمؤمنانو

او په دې قصو کښې تاته حق در اورسيدو ......... او دا د مومنانو د پاره نصيحت او عبرت دې | او څوک

وَقُلْ | لِّلَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | اعْمَلُوْا | عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ؕ | اِنَّا

او اووایه | هغه کسانو ته | چې نه راوړي ایمان | چې عمل کوئ تاسو | په خپل ځائ | بیشکه مونږ [هم]

چې ایمان نه راوړي هغوئ ته او وایه چې تاسو پخپله طریقه عمل کوئ | مونږ به پخپله طریقه

عٰمِلُوْنَ ۙ | وَانْتَظِرُوْا ۚ | اِنَّا | مُنْتَظِرُوْنَ ۝

عمل کونکي یو | او انتظار کوئ تاسو | بیشکه مونږ [هم] | انتظار کونکي یو

عمل کوو | ..................او د انجام انتظار کوئ | مونږ هم انتظار کوو. اود

وَلِلّٰهِ | غَيْبُ | السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ | وَاِلَيْهِ | يُرْجَعُ | الْاَمْرُ

اوخاص الله لره دي | علم دغیبو | دآسمانونو | اودزمکي | اوخاص هغه ته | اوپس کړې کیږي | معاملي

آسمانونو او زمکي ټول پټ څیزونه الله ﷻ ته معلوم دي | اوټولي معاملي به هم هغه ته واپس کیږي | نو

كُلُّهٗ | فَاعْبُدْهُ | وَتَوَكَّلْ | عَلَيْهِ ؕ | وَمَا | رَبُّكَ | بِغَافِلٍ

تولي | پس عبادت کوه د هغه | اوبهروسه کوه | په هغه باندي | اونه دي | رب ستا | ناخبره

ته صرف د هغه عبادت کوه | او هم په هغه باندي بهروسه کوه | اوستا پرورد ګار ستاسو د کارونو

عَمَّا | تَعْمَلُوْنَ ۝

د هغه کارونو نه | چې تاسو ئې کوئ |

نه غافل نه دي

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره!) د ورځې په دواړو طرفونو کښې او د شپې په څه حصه کښې مونځ کوه یقیناً نیکۍ ګناهونو لره ختموي، دا یو نصیحت دی د هغه خلقو دپاره چه نصیحت مني او د صبر نه کار اخله ځکه چه الله د نیکۍ کونکو اجر نه ضایع کوي. تاسو نه چه مخکښې کوم امتونه تېر شوي دي د هغوی نه ولې داسې خلق نه وو چه هغوی لره دومره عقل وې چه هغوی زمکه کښې خلق د فساد کولو نه منع کړي وو؟ خو لږ خلق وو چه هغوی مونږ (د عذاب نه) خلاص کړي وو او کوم خلق چه ظالمان وو هغوی چه کوم عیش وعشرت کښې مبتلا وو هغې پسې شول، او جرمونه ئې کول. او ستا پروردګار داسې نه دې چه په کلو بانډې ظلم وکړي او هغه تباه کړي حال دا دې چه د هغې وسیدونکي په صحیح حالت بانډې چلیږي. او که ستا پروردګار غوښتلے نو ټول انسانان به ئې په یوه طریقه ګرځولې وو (خو چا لره په زور بانډې په دین مجبوره کول دا د حکمت تقاضا نه ده، دې وجې نه خپل اختیار سره د مختلفو طریقو اختیارولو موقع ورکړې شوې ده) او اوس به دوی همیشه په مختلفو لارو بانډې وي. البته چه په چا ستا رب رحم وکړي د هغې خبره جدا ده (چه الله به هغوی په حق بانډې قایم ساتي) او دې (امتحان) دپاره هغه دوی پیدا کړي دي او ستا د رب هغه خبره به پوره کیږي کومه چه هغه کړې وه چه: ځه به جهنم د پیریانو او انسانانو دواړو نه ډک کړم. او (اې پیغمبره!) د تېرشوؤ پیغمبرانو د واقعاتو نه هغه ټول واقعات مونږ تا ته آورؤ چه هغې سره

Scanned with Ca

ستا زړه مضبوط کړو او ددې واقعاتو په ضمن کښ ته چه کومه خبره راغلې ده، هغه حق دي ، هغه د ټولو مؤمنانو دپاره نصیحت او یاددهانې ده اوکوم خلق چه ایمان نه راوړي ، هغوی ته ووایه چه : تاسو په خپل موجوده حالت باندې عمل کوئ مونږ هم (په خپله طریقه)عمل کوو.او تاسو هم(دالله د فیصلې)انتظار کوئ، مونږ هم انتظار کوو په آسمانونو او زمکه کښ چه څومره رازونه پټ دي ، هغه ټول د الله په علم کښ دي . او هغه ته به ټول معاملات واپس کیږي نو (اې پیغمبره!) د هغه عبادت کوه او په هغه باندې اعتماد کوه . او داخلق چه څه کوي، ستا رب د هغې نه ناخبره نه دي.

## خلاصه تفسير

﴿ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ؕ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ؕ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ ۚ﴾ او[اې محمد ﷺ] ته دمانځه پابندي کوه دورځې په دواړو حصوکښې [په اول اواخرکښې] اودشپې په څه حصوکښې بیشکه نیك کار[دعملنامې نه] ورانوی بدکارونه دا خبره [چه نیکوسره ګناه معاف کیږي]یو[جامع] نصیحت دي د نصیحت منونکولپاره[ځکه چه هره نیکی په دې قاعده کلیه کښې داخله ده نودې سره نیکۍ ته رغبت پکارده]

﴿ وَاصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝﴾او[ددې منکرینوله خواچه کومې معاملې مخې ته راځی په هغه]صبرکوه چه الله تعالی دنیکانواجرنه ضائع کوي[صبرهم داعلی درجې نیکی ده ددې به پوره اجرمیلاویږی،.

﴿ فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ قَبْلِكُمْ اُولُوْا بَقِيَّةٍ يَّنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْاَرْضِ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّنْ اَنْجَيْنَا مِنْهُمْ ۚ وَاتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَآ اُتْرِفُوْا فِيْهِ وَكَانُوْا مُجْرِمِيْنَ ۝﴾ اوپورته چه کوم دمخکینی قومونودهلاکت واقعات ذکر شو] نو[ددی وجه داشوه چه]کوم امتونه چه تاسونه مخکې تیرشویدی پدوی کښی داسې پوهه خلق نه ووچه[نورنی ]په ملك کښی دفساد[کفراوشرك ]خوروولونه منع کولی غیردڅوکسانونه کوم چه مونږپه دوی کښی[دعذاب نه]بچ کړی وو[چه دوی ځکه چه پخپله دکفراوشرك نه توبه ګارشوی وونورنی هم منع کولونوددی دوو عملونوپه برکت سره دعذاب نه دوی بچ شوی وو، باقی هغه خلق چه پخپله هم په کفرکښی اخته ووانورنی هم نه منع کول،] اوکوم خلق چه نافرمان وو دوی په کوم نازاونعمت کښی ووېدی پسی وریسی شواودجرمونوعادت شو[چه بیرته تری ونه ګرځیدل خلاصه داچه نافرمانی خوعامه وه په دوی کښی اومنع کونکی پکښی هیڅوك ونشونوځکه ټول په یوشان عذاب کښی ګرفتاره شول،ورنه دکفرعذاب به عام وو اوفسادخاص،اوس دنه منع کولوله وجې غیرمفسدان هم مفسدانوکښی شریك اوګرځیدلې شونوهغه عذاب چه په مجموعه کفراوفسادنازلیده هغه هم عام شو].

﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا مُصْلِحُوْنَ ۝﴾او[ددی نه ثابته شوه چه]ستارب داسی ندی چه کلولره دکفرپه سبب هلاك کړی اوددوی اوسیدونکی[پخپله اودنورو]په اصلاح کښی مشغول وي[بلکه هرکله چه دااصلاح په ځای فسادکوی اوفسادکونکی نه منع کوی دغه وخت دخاص عذاب مستحق شی] .﴿ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ ۚ﴾ اوکه چیری الله ته منظوره وی نوټول خلق به ئې په یوه طریقه جوړکړی وو[ټول به ئې مومنان کړی وو لیکن په بعضی حکمتونوسره داسی منظوره نه شوه نوځکه ددین خلاف په مختلفو طریقوباندی وشو]او[آینده هم]همیشه اختلاف به کوی.

﴿ إِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ ۚ وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ ۗ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ۝ ﴾ مګر په کوموچه ستا د رب رحمت وي [هغوی به ددین خلاف طریقه اختیارنکړی]او[په دی اختلاف غم یاتعجب یا افسوس مکوه ځکه چه]الله تعالی دغه خلق پدی واسطه پیداکړیدي[چه په دوی کښی اختلاف وی] او [داختلاف لپاره دپیداکولووجه داده چه ]ستادرب داخبره پوره شی چه څه به جهنم د پیریانو او انسانانو نه ډك کړم]اوپخپله ددي حکمت دادی چه رحم شوو کښی د رحمت دصفت ظهوروي په غضب شوو کښی دغضب دصفت ظهوروي بیاددی ظهورحکمت یا د حکمت حکمت الله تعالی ته معلوم دی، غرض ددی ظهورپه حکمت سره جهنم ته تلل د بعضو ضرور، او جهنم ته دتلولپاره دکفاروو جو د تکوینا ضروری دی ، او د وجود د کفارو لپاره اختلاف لازم دی، او دا وجه ده دټولودنه مسلمانیدو].

﴿ وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ ۚ وَجَآءَكَ فِي هٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَّذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِينَ ۝ ﴾ او د پیغمبرانودقصونه مونږ داټولی[مذکوره قصی تاته بیانووچه ددی په ذریعه مونږستازړه قوی کوو [دقصو بیانولویوه فائده خوداشوه چه حاصل ئی تاته تسلی درکول دي]اوپدی قصوکښی تاته یوداسی مضمون راغلی دی چه پخپله هم حق [اوقطعی]دی اودمسلمانانولپاره [د بدو کارونو نه دمنع کولولپاره]نصیحت دی.

﴿ وَقُلْ لِّلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ اعْمَلُوا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ۖ إِنَّا عٰمِلُونَ ۝ ﴾ او[کوم خلق چه [ددی قاطعه دلیلونوسره هم ]ایمان نه راوړی دوی ته ووایه چه[زه درسره نخلم نه]تاسوپخپل حالت عمل کوئ مونږ هم[پخپل طورسره]عمل کوو.

﴿ وَانْتَظِرُوا ۚ إِنَّا مُنْتَظِرُونَ ۝ ﴾او[ددی عملونودنتیجی] تاسو[هم]انتظارکوئ مونږهم انتظارکوو[پس دیرزربه باطل ښکاره شی] .

﴿وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَإِلَيْهِ يُرْجَعُ الْأَمْرُ كُلُّهُ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ۝ ﴾ اوپه اسمانونواوځمکه کښی چه څومره دغیبوخبری دي ددی علم الله تعالی ته دی [نو د بندګانو عملونه خو غیب هم ندی‌نوددی علم خوپه درجه اولی سره الله تعالی ته شته ]اوټول کارونه به الله تعالی طرف ته ورګرځي[علم اواختیاردواړه د الله تعالی دي بیاهغه ته څه مشکله ده چه د عملونو سزا او جزا ورکړي، نو کله چه هغه داسی علم اواختیارلري]انو[ای محمد ﷺ]ته دهغه عبادت کوه[په دي کښی تبلیغ هم داخل دی]اوپه هغه اعتمادکوه[که چیري په تبلیغ کښی دڅه تکلیف احتمال وي ،دادوی ته په منځ کښی په طوردجمله معترضی خطاب وشومخکی بیاهغه مضمون دی یعنی]اوستارب ددی خبرونه بی خبره ندی کوم چه تاسوخلق کوئ[کله چه پورته په علم غیب سره دعملونوعلم په درجه اولی ثابت شو].

## معارف او مسائل

**د قرآن کریم په طرز خطاب د رسول الله ﷺ د شان لوئیو والی ته اشاره کول:** په سورت هود کښې د پخوانو پیغمبرانو ﷺ او د هغوی د قومونو عبرتناک حالات او واقعات ذکر کولو نه پس رسول الله ﷺ او امت محمدیه ته څو هدایات ورکړې شوې دی چه لړئ ئې د﴿فَاسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ﴾ نه شروع شوه،د قرآن کریم د دغه هدایاتو بیانولو انداز څومره زړه راخوکونکې او ادب کونکې دې چه په مثبت انداز کښې د حکم ورکولو اصلی مخاطب رسول الله ﷺ کرځولې شوې دې او

امت محمدیه ورسره تبعا شامل کړې شوې دي، لکه فرمائی ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ وَمَنْ تَابَ مَعَكَ﴾ او بیا په دې اوسنی رومبی آیت کښې فرمائی [واقم الصلوۃ] او په دویم آیت کښې فرمائی [واصبر] او د منع کولو او بندولو خطاب نیغ په نیغه امت ته کړې شوې دې لکه په تیر شوو آیتونو کښې فرمائی ﴿وَلَا تَطْغَوْا﴾ او ﴿وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾

په غور کولو سره معلومیږی چه د قرآن کریم عام طرز هم دغسې دې یعنی د امر مخاطب رسول الله ﷺ او د نهی مخاطب امت گرځولې شوې دې چه د رسول الله ﷺ د شان لوړتیا ترې ښکاره شي ولې چه د نه کولو او د پریښودلو څیزونو نه پخپله رسول الله ﷺ ځان ساتی ځکه چه الله تعالی د رسول الله ﷺ فطرت سلیمه او طبیعت داسې جوړ کړې وو چه د بد خواهش راتلو او ناکاره څیز ته د میلان کولو څه گنجائش په کښې نه وو بلکه کوم څیزونه چه اول روا او حلال وو خو د الله تعالی په علم کښې بیا څه وخت حرامیدونکی وو نو د هغې د حلالوالی په زمانه کښې هم رسول الله ﷺ نه وو ورنزدې شوې لکه شراب، سود او جواری [خمار] وغیره شو.

په دې آیت کښې رسول الله ﷺ ته په خطاب کولو سره رسول الله ﷺ او ټول امت ته ئې د مونځ د قائمولو حکم ورکړې شوې دې، د تفسیر عالمان صحابهٔ کرام ﷺ او تابعینو په دې اتفاق کړې دې چه دلته د مونځ نه مراد فرض مونځونه دی [بحر محیط؛ قرطبی] (۱)

اقامت د مونځ نه مطلب د دې پوره پابندی کول دی او همیشه ئې کول دی او بعضې حضراتو فرمائیلې دی چه دې نه مراد ټولو آدابو سره د مونځ ادا کول دی، بعضې حضراتو فرمائیلې دی چه په افضل [دیر غوره] وخت کښې د مونځ ادا کول دی چنانچه هم دا درې قولونه د ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ﴾ په تفسیر کښې منقول دی حقیقت دا دې چه دا څه اختلاف نه دې بلکه دا ټول څیزونه په اقامت صلوۃ [مونځ قائمولو] کښې داخل دی.

د مونځ د قائمولو د حکم نه پس د مونځونود وختونو اجمالی بیان دې، فرمائی چه د ورځې په اول او آخر او د شپې په څه برخه کښې مونځ قائموئ چنانچه ﴿زُلَفًا﴾ د زلفة جمع ده چه معنی ئې یوه برخه او یوه ټوټه ده د ورځې د اول او آخر په مونځ باندې د ټولو اتفاق دې چه د اول سره د ورځې د مونځ نه مراد د صبا [سهار] مونځ او د آخر سره د مونځ نه مراد د بعضې حضراتو په نزد د ماښام مونځ ځکه دې چه د ورځې ختمید وسره بیخی لګیدلې مونځ دې، او بعضې حضراتو د مازیگر مونځ ځکه بللې دې چه واقعی د ورځې په آخر سر کښې دې او په ﴿زُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ﴾ سره مراد د جمهور مفسرینو حسن بصری، مجاهد، محمد بن کعب، قتاده او ضحاک ﷺ وغیرهم په نزد د ماښام او ماسخوتن مونځ دې چه د یو حدیث شریف نه ئې تائید کیږی په دغه حدیث شریف کښې فرمائیلې شوې دی چه د ﴿زُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ﴾ نه مراد ماښام او ماسخوتن دی [تفسیر ابن کثیر] (۲)

په دې شان د [طرفی النهار] نه مراد د صبا او مازیگر مونځ شو او د ﴿زُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ﴾ نه مراد ماښام او ماسخوتن شو نو دا څلور مونځونه ثابت شو د پنځم مونځ د [ماسپخین] په بل آیت ﴿أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ﴾ کښې بیان راغلې دې.

(۱) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۹، ص ۱۰۹، وتفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۶، ص ۲۶۸
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۴۵۳، ۴۵۵

Scanned with Ca

په دې وختونو کښې د مونځونو د قائمولو د حکم نه پس د دې يوه لويه فائده هم ښودلې شوې ده چه ﴿إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ﴾ [نيک کارونه خراب کارونو لره لرې کوي] مفسرينو ﷺ فرمائيلي دي چه د نيک کار نه ټول نيک کارونه مراد دي چه په کښې مونځ، روژه، زکوة، خيرات، نيک خويونه، ښه معامله کول وغيره ټول په کښې داخل دي، خو په دې ټولو کښې اول مونځ دې، دغه شان د ﴿السَّيِّاٰتِ﴾ نه مراد ټول ناکاره کارونه دي چه ګناه کبيره او صغيره [لوئې او واړه ګناهونه] ټول په کښې داخل دي خو د قرآن کريم يو بل آيت او د رسول الله ﷺ ګڼرو ارشاداتو دې لره صغيره [وړو] ګناهونو سره مخصوصه کړې دې، معنی ئې دا شوه چه مونځ د ټولو نه زيات غوره عبادت دې چه واړه ګناهونه رژوي، چنانچه قرآن کريم فرمائي ﴿إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ﴾ [يعنی که تاسو د لويو ګناهونو نه ځان ساتئ نو مونږ به ستاسو واړه ګناهونه پخپله رژوو] ـ

د صحيح مسلم د يو حديث له مخه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه پنځه مونځونه او يو جمعه تر بلې جمعې پورې او رمضان تر بل رمضان پورې د هغې ټولو ګناهونو کفاره کيږي چه د دې تر منځه تير شوې وي خو هله چه دغه کس د لويو ګناهونو نه ځان ساتلې وي، (1) خلاصه د خبرې دا شوه چه لوئې ګناهونه بغير د توبې نه نۀ معاف کيږي مګر واړه ګناهونه نورو نيکو کارونو مونځ، روژې، صدقې وغيره سره پخپله هم معاف کيږي، مګر په تفسير بحر محيط کښې د اصولو د محققينو عالمانو دا قول نقل کړې شوې دې چه واړه ګناهونه هم هله په نيک کار کولو سره معاف کيږي چه د دې کوونکې په هغې باندې پښيمانه هم وي او بيا د نه کولو اراده ئې کړې وي او په هغې ټينګ هم نه وي، (2) په احاديثو کښې د ګناهونو د کفارې جوړيدو ځومره واقعات چه راغلي دي په هغې ټولو کښې دا خبره په ډاګه کړې شوې ده چه کوونکې ئې پښيمانه وي او د بيا کولو نه ئې توبه کړې نو هله په هغې باندې رسول الله ﷺ د ګناه د معاف کيدو زيرې ورکړې دې، والله اعلم ـ

په مشهور او معروف روايتونو د حديث کښې کبيره ګناهونه دې ته وئيلې شي، د الله تعالى په ذات او صفاتو کښې څوک شريک يا برابر ګرځول، په قصد باندې يو فرض مونځ پريښودل، څوک په ناحقه وژل، حرامکاری کول، غلا کول، شراب څښل، د مور پلار نافرمانی کول، په دروغه قسم کول، په دروغه ګواهی کول، جادو کول، سود خوړل، د يتيم مال په ناروا اخستل، د جهاد د ميدان نه تښتيدل، په پاکو زنانو باندې د دروغو تور پورې کول، د چا مال په ناروا باندې لاندې کول، وعده لوظ ماتول، په امانت کښې خيانت کول، چا ته کنځل کول، څوک په ناحقه مجرم ګرځول وغيره. د صغيره او کبيره ګناهونو تفصيل په مستقلو رسالو کښې علماؤ ليکلې دې، زما په رساله [ګناه بې لذت] کښې هم بيان شوې دې، هلته ئې اوګورئ ـ

بهرحال د دغه آيت نه دا خبره ثابته شوه چه په نيک کار کولو سره هم ګناهونه معاف کيږي ځکه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه د يو بدکار کولو نه پس چه نيک کار اوکړې نو دغه ناکاروالې به ختم کړي اووې فرمائيل چه خلقو سره ښه خوئي کوه [ابن کثير په حواله د مسند احمد] (3)

---

(1) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه: ج ۱، ص ۱۲۲
(2) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۶، ص ۲۲۹
(3) مسند أحمد، حديث معاذ بن جبل رضي الله عنه رقم الحديث: ۲۲۳۴۳، وتفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۳۶۰

حضرت ابو ذر غفاری ﷺ اوفرمائیل چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه ما ته څه وصیت اوکړئ نو ،رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که تاسو نه څه گناه اوشي نو د هغې نه پس څه نیک کار خکه کوئ چه هغه ئې ختمه کړي.(۱)

په حقیقت کښې د گناه نه د توبې کولو مسنون او غوره طریقه په احادیثو کښې ښودلې شوې ده، لکه په مسند احمد کښې د صدیق اکبر ﷺ په روایت منقول دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: که یو مسلمان نه څه گناه اوشي نو ورله پکار دي چه اودس اوکړي دوه رکعته نفل مونځ ادا کړي نو گناه به ئې معاف شي[ دا ټول روایتونه د ابن کثیر نه دي](۲)دې مونځ ته د توبې مونځ وئیلې شي.

﴿ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ﴾[دا یو نصیحت دې،نصیحت منونکو د پاره په دې کښې د[ذلك]اشاره قرآن کریم ته هم کیدې شي او د امر او نهی حکمونو ته هم چه بیان ئې د دې نه ړومبې راغلې دې،مراد دا دې چه دا قرآن یا د دې بیان شوی احکام هغې خلقو د پاره هدایت او نصیحت دی چه د نصیحت اوریدو او منلو عادت لري،په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه ضدي بنده چه په څه باندې د سره غور نه کوي هغه د هر هدایت نه نامراده پاتې کیږي.

﴿وَاصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا یُضِیْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِیْنَ﴾[یعنی تاسو ﷺ صبرناک او ټینګ قدمه خکه پاتې کیږئ چه الله تعالی د نیک عمل کوونکو اجر نه بربادوي].

د[صبر]لفظی معنی ترل دی خکه چه ځان باندې قابو موندلو ته هم صبر وئیلې شي،چنانچه د دې په مفهوم کښې دا هم داخل دي چه د نیک کار په کولو باندې ځان په قابو کښې لري او دې ته هم وئیلې شي چه په بدو کارونو کښې د اخته کیدو نه ځان اوساتي،دلته رسول الله ﷺ ته د صبر د حکم ورکولو نه دا هم مراد کیدې شي چه په دغه آیتونو کښې چه څه حکمونه تاسو ته درکړې شوي دي مثلا د استقامت،د مونځ قائمولو وغیره نو په هغې باندې ښه ټینګ اوسه،او دا ترې هم مراد کیدې شي چه د مخالفینو په مخالفت او ژبانونو باندې د صبر ښودنه کول مقصود دي او د هغې نه پس ئې دا اوفرمائیل چه،الله تعالی د﴿الْمُحْسِنِیْنَ﴾[نیکو کارو خلقو]اجر نه ضائع کوي،دلته په ظاهره د محسنین نه مراد هغه خلق دي چه د ذکر شوو آیتونو د حکمونو امر او نهې پابند وي،یعنی په دین کښې د استقامت مقام ورته حاصل وي،د شرعی حدونو پوره لحاظ کوي،ظالمانو سره دوستی او بې ضرورته تعلق نه لري،مونځ سره د آدابو په زیات غوره وخت کښې د ادا کولو پابند وي،د دین په ټول حکمونو باندې ټینګ وي.

خلاصه ددې ټولو هم هغه ده چه د[احسان]په تعریف کښې پخپله رسول الله ﷺ داسې فرمائیلې دي چه د الله تعالی تابعداری او عبادت په داسې شان کوه چه گویا کښې ته الله تعالی لره وینې،یا کم نا کم داسې یقین لره چه الله تعالی تا لره وینی،(۳)کله چه انسان ته د الله تعالی د ذات او صفات او صفتونو په باره کښې د یقین دا درجه حاصله شي نو د هغه ټول اقوال او

---

(۱) مسند أحمد، حديث أبي ذر رضي الله عنه رقم الحديث: ۲۲۱۴۲

(۲) مسند أحمد، مسند أبي بكر الصديق رضي الله عنه رقم الحديث: ۲، وتفسير ابن كثير سورة آل عمران: ۳۵، ج۲، ص۴۲

(۳) صحيح البخاري، كتاب الإيمان، باب سؤال جبريل النبي صلى الله عليه وسلم: ج۱، ص۱۲

Scanned with Ca

کارونه پخپله سمدم شی، د پخوانو علماؤ تر منځه درې خبرې دومره مشهورې وې چه يو تر بله به ئې ليکلې دا د ياد ساتلو جوګه دی،
اوله خبره دا وه چه څوک د آخرت د پاره په کار کښې مشغوله شی الله تعالى د هغه د دنيا ټول کارونه په خپله درست کړی او د هغه ذمه داری په خپله اخلی،
دويمه خبره دا ده چه څوک خپل باطنی حالت داسې درست کړی چه د زړه مخه د ټولو نه واړوی او الله تعالى ته ئې اوګرځوی نو الله تعالى د هغه ظاهری حالت په خپله درست کړی،
دريمه خبره دا ده چه څوک الله تعالى سره خپله معامله صحيح او درسته کړی نو الله تعالى د هغه او د خلقو تر منځه معاملات په خپله درست کړی،
د دې درې خبرو اصلی عبارت داسې دې؛ وكان اهل الخير يكتب بعضهم الى بعض بثلث كلمات من عمل لاخرته كفاه الله امر دنياه، ومن اصلح سريرته اصلح الله علانيته، ومن اصلح فيما بينه وبين الله اصلح الله ما بينه وبين الناس، [تفسير روح البيان جلد ۲ ص ۱۳۱].
په دريم او څلورم آيت کښې په پخوانو قومونو باندې د الله تعالى د عذاب نازليدو په وجه نورو خلقو ته د دې نه د ځان ساتلو داسې هدايت کړې شوې دې؛
[افسوس دې چه په دغه پخوانو قومونو کښې داسې او نه شو چه په دوی کښې څوک پوهه نيک خلق وې چه خپل قوم ئې د فساد کولو نه بندولې، سوا د لږو خلقو نه چه د پيغمبرانو ﷺ تابعداری ئې اوکړه او هم هغوی د عذاب نه خلاص پاتې شو او نور ټول قوم د دنيا په مزو کښې په انښتو سره د جرمونو کسب ګر جوړ شو].
په دې آيت کښې د رائې او د پوهې د خاوندانو نه په لفظ د ﴿أُولُوا بَقِيَّةٍ﴾ سره ئې تعبير اوکړو، ﴿بَقِيَّةٍ﴾ پاتې شيزته وئيلې شی اود انسان عادت دادې چه ډير خوښ او غوره څيز په هر شان ځان دپاره دساتلو پوره کوشش کوی، د ضرورت په وخت نور ټول څيزونه قربانوی خو هغه نه ورکوی په دې بنا عقل او بصيرت ته هم بقية ځکه وئيلې شی چه هغه د ټولو نه زيات زړه پورې وی.
په څلورم آيت کښې فرمائی [ستاسو رب ښارونه او ودانې په ظلم سره نه هلاکوی کله چه د دې استوګن نيکوکار يعنی مسلمان وی، مطلب دا دې چه د الله تعالى خوا ته د زور ظلم هيڅ امکان نشته، څوک چه هلاکولې شی هغه د دې جوګه وی] او بعضې حضراتو فرمائيلې دی چه دلته په آيت کښې د ظلم نه مراد شرک دې او د [مصلحون] نه مراد هغه خلق دی چه کافران او مشرکان وی او سره د دې هم معاملات او اخلاق ښه چلوی چا ته زيان تاوان نه رسوی، دروغ نه وائی، دهوکه نه ورکوی، او د آيت مطلب دا دې چه دنيوی عذاب يواځې د کافر کيدو او مشرک کيدو په وجه په چا نه راځی تر څو چه د دوی د عملونو او خويونو نه په زمکه کښې فساد نه خوريږی، په پخوانو قومونو باندې عذابونه، د هغوی د خاصو خاصو ناکاره عملونو په وجه راغلی وو، د حضرت نوح ﷺ قوم حضرت نوح ﷺ ته قسما قسم زيانونه اورسول،
د حضرت شعيب ﷺ قوم په ميچ تول کښې د کمی کولو په وجه فساد خور کړو، د حضرت لوط ﷺ قوم ډيره زياته ناکاره بدکاری اختيار کړه، د حضرت موسى ﷺ او حضرت عيسى ﷺ

قومونو په خپلو پیغمبرانو باندې ظلمونه او کړل، چنانچه قرآن کریم د دوی دغه ناکاره عملونه په دوی باندې د عذاب راتللو سبب ښودلې دې، خالص د کفر او شرک په وجه په دنیا کښې عذاب نه راځی، د هغې سزا خو د جهنم همیشه اور دې، ځکه بعضو علماؤ ﷭ فرمائیلې دی چه بادشاهی او حکومت خو کفر او شرک سره چلیدې شی، زور ظلم سره نه شی چلیدې.

**ناخوښه او ستائیلې اختلاف:** پنځم آیت کښې اوفرمائیلې شو[که الله تعالی غوښتلې نو ټول انسانان به ئې هم یو امت او ملت جوړ کړې وو، د دې مطلب دا دې چه که الله تعالی غوښتلې نو ټول انسانان به ئې زور، زبردستۍ سره د اسلام په قبلولو مجبوره کړې وو، ټول په ټوله به مسلمانان شوې وو، د دوی تر منځه به هیڅ اختلاف نه وو پاتې شوې، مګر د هغه د حکمت تقاضه دا ده چه په دنیا کښې خوک په څه عمل کولو باندې نه مجبوره کوی، بلکه هغه انسان ته یو قسم اختیار سپارلې دې، هم د هغه لاندې انسان عمل کوی که هغه ښه وی او که بد وی او د انسانانو طبیعتونه مختلف دی، ځکه ئې لارې هم سره بیلې بیلې وی، او عملونه ئې هم بدل بدل وی، په نتیجه کښې ئې بعضې خلق د همشه د پاره د حق دین نه په مخه اختلاف کوی، سوا د هغې خلقو نه چه الله تعالی پرې رحمت کړې وی یعنی د پیغمبرانو ﷺ تابعدار پاتې شوې وی.

دې نه معلومه شوه چه دلته د[اختلاف]نه مراد د حق دین او د پیغمبرانو ﷺ د تعلیم مخالفت دې، کوم اجتهادی اختلاف چه د دین د امامانو او د اسلامی فقهاؤ تر منځه ضروری دې او د صحابهٔ کرامو ﷺ د زمانې راسې را رواه دې هغه په دې اختلاف کښې داخل نه دې، دا د الله تعالی د رحمت نه خلاف نه دې، بلکه د حکمت او رحمت مقتضا دې، کومو خلقو چه د مجتهدینو ﷭ تر منځه اختلافاتو لره د دې آیت له مخه غلط او د رحمت خلاف ګرځولې دی دا په خپله د آیت د سیاق نه هم خلاف دی او د صحابهٔ کرامو ﷺ او د تابعینو ﷭ د عمل درآمد نه هم خلاف دی، والله سبحانه وتعالی اعلم].

| آياتونه | | | | رکوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة يوسف مكية وهى مـائة واحدي عشرة اية واثناعشر ركوعاً | | |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| (۱۱۱) | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | (۱۲) |
| د الله په نوم شروع کوم چه ډير مهربان اوزيات رحم کونکې دې | | | | |

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ (۱) اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ

ا ل ر | دا | آيتونه | د کتاب | روښانه دی | بيشکه مونږه | نازل کړې دي دا

الف لام را | دا د روښانه کتاب آيتونه دی | ............ | ............مونږ دا قرآن

قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ (۲) نَحْنُ نَقُصُّ

قرآن | په عربئ ژبې | د پاره ددې چې تاسو | پوهه شئ | مونږه | بيانوؤ

په عربئ ژبه کښې نازل کړې دي | چې تاسو پرې ښه پوهه شئ | ............مونږ چې

عَلَيْكَ اَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ هٰذَا الْقُرْاٰنَ ۖ وَاِنْ

په تا | ډيره ښه قيصه دقصونه | په وجه د دې | چې وحی وکړه مونږ | ستا طرف ته | ددې قرآن | او اګرچه

دا قرآن تاته د وحی په صورت کښې رالیږلي دې .نوهم ددې په ذريعه درته يوه ښکلې قصه اوروؤ | يقيناً

كُنْتَ مِنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ (۳) اِذْ قَالَ يُوْسُفُ لِاَبِيْهِ يٰٓاَبَتِ

وې ته | وړاندې ددې نه | خامخا د ناخبرو نه | کله چې اوونيل | يوسف | پلار خپل ته | ائې پلاره زما

ددې نه وړاندې ته بيخی ناخبره وې | ............ کله چې حضرت يوسف عليه السلام خپل پلار ته اوونيل

اِنِّيْ رَاَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَاَيْتُهُمْ

بيشکه زه چې يم | اوليدل ما | يوولس | ستوري | او نمر | او سپوږمئ | اوليدل ما هغوئ

ائې زما بابا جانه! ما يوولس ستوري، نمر او سپوږمئ [ په خوب کښې ] اوليدل | ځه ګورم چې دا ټول زما

لِيْ سٰجِدِيْنَ (۴) قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلٰٓى اِخْوَتِكَ

چې ماته | سجده کونکې دی | ده اوونيل | ائې خويه | مه بيانوه | خوب خپل | رونړو خپلوته

په مخکښې تيټ شوی دی | هغه ورته اوونيل چې ائې زما بچيه | دا خوب خپلو رونړو ته مه بيانوه

فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا ۭ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ (۵)

پس تدبيريه جوړ کړی | تا ته | په تدبير جوړولوسره | بيشکه شيطان | دپاره دانسان | دشمن | ښکاره دې

ګنی د ضرر دپاره به درته څه چل جوړ کړی | ځکه چې شيطان د انسان ښکاره دښمن دې

وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ وَيُتِمُّ

او همدارنګې | غوره به کړی تا لره | رب ستا | او او به ښائی تا ته | تعبير بيانول د [ خوب د ] خبرو نه | او پوره به کړی

[ لکه چې دې خوب اوليدو ] هم دغه شان به ستا پروردګار تا غوره کړی | او تا ته به د خوبونو تعبير

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نِعۡمَتَهٗ | عَلَيۡكَ | وَعَلٰۤى اٰلِ يَعۡقُوۡبَ | كَمَاۤ | اَتَمَّهَا |

نعمت خپل | په تا باندې| او په اولاد ديعقوب باندې | لکه څنګه چې | هغه پوره کړې دې دا نعمت

اوښائي |اوخپل انعام به په تا او د يعقوب ﷺ په نور اولاد باندې پوره کړی |لکه چې څنګه ئې ددې نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلٰۤى اَبَوَيۡكَ | مِنۡ قَبۡلُ | اِبۡرٰهِيۡمَ وَاِسۡحٰقَ ؕ | اِنَّ | رَبَّكَ |

په دواړو بزرګانو ستا باندې|مخکښې ددې نه | چې ابراهيم او اسحاق دی| بيشکه | رب ستا

مخکښې ستا په نيکه او په قرنيکه|ورنيکه| حضرت ابراهيم ﷺ او حضرت اسحاق ﷺ باندې پوره کړې

| | |
|---|---|
| عَلِيۡمٌ | حَكِيۡمٌ ۝ |

ښۀ پوهه دې |د حکمت خاوند دې|

دې بيشکه ستا پروردګار په هر څه پوهه دې دحکمت خاوند دې

## آسان ترجمه قرآن

دا دهغه کتاب آيتونه دي چه حق لره واضح کونکې دي.مونږ دې لره داسې قرآن ګرځولې دې چه په عربي ژبه کښې دې دې دپاره چه تاسو پوهه شئ.(اې پيغمبره!) مونږ چه په تا باندې دا قرآن د وحی په ذريعه راليږلې دې ، ددې په ذريعه مونږ تا ته يو بهترينه واقعه اورو حال دا دې چه ته ددې نه مخکښې (دِ واقعې نه) بالکل ناخبره وې.(دا د هغه وخت خبره ده) چه کله يوسف خپل پلار (يعقوب) ته ووئيل چه: داجي اما(خوب کښې) يوولس ستوری او نمر او سپوږمۍ ليدلې دي ما ليدلې دي چه دا ټول ماته سجده کوي هغوی ووئيل چه بچيه ! دا خوب دِ ورورونو ته مه بيانوه هسې نه چه هغوی تا ته څه سازش جوړ کړي ، ځکه چه شيطان د انسان دپاره ښکاره دښمن دې اودغه شان ستا پروردګار به تا لره (نبوت دپاره) منتخب کوي او تا ته به د ټولو خبرو صحيح مطلب راويستل اوښائي (چه هغې کښې د خوبونو د تعبير علم هم داخل دې) او په تا باندې او د يعقوب په اولاد باندې خپل نعمت به داسې پوره کوي لکه چه دې نه مخکښې ستا په نيکونو يعنې ابراهيم او اسحاق باندې ئې پوره کړی وو.يقيناً ستا پروردګار علم والا هم دې او حکمت والا هم.

## خلاصه تفسير

﴿ الٓرٰ ۚ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡمُبِيۡنِ ۝ ﴾. [ددی معنی الله تعالی ته معلومه ده]دا آياتونه دی ديوواضح کتاب [چه الفاظ اومعنی دلالت کونکی ئی ډيری صافی دی].

﴿اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنٰهُ قُرۡءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ ۝﴾ مونږدانازل کړيدی قرآن په عربی ژبه چه تاسو[يدی وجه چه اهل زبان ئی دنوروړنه مخکی]پری پوه شئ [بيا ستاسوپه واسطه پری نورخلق پوه شی ].

﴿نَحۡنُ نَقُصُّ عَلَيۡكَ اَحۡسَنَ الۡقَصَصِ بِمَاۤ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ هٰذَا الۡقُرۡاٰنَ ۖ وَاِنۡ كُنۡتَ مِنۡ قَبۡلِهٖ لَمِنَ الۡغٰفِلِيۡنَ ۝﴾ مونږچه داقرآن تاته راليږلی دی ددی په ذريعه مونږتاته يوه ډيره اوعمده قصه بيانو او ددی نه مخکی ته [ددی قصی نه]بيخی ناخبره وی ځکه چه نه تاکوم کتاب لوستی وونه دی دکوم استاذنه څه زده کړی وواوقصه هم داسی مشهوره نه وه چه عوامو ته معلومه وه دقصی شروع].

Scanned with Ca

﴿إِذْ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ لِي سَاجِدِينَ﴾هغه وخت د يادولو قابل دى هركله چه يوسف[عليه السلام]خپل پلاريعقوب [عليه السلام]ته وويل چه پلاره ما[په خوب كښې] يوولس ستورى اولمراوسپوږمى ليدلى دى دوى مى خپل خان ته سجده كونكي ليدلى دي.
﴿قَالَ يَا بُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُؤْيَاكَ عَلَىٰ إِخْوَتِكَ فَيَكِيدُوا لَكَ كَيْدًا ۖ إِنَّ الشَّيْطَانَ لِلْإِنسَانِ عَدُوٌّ مُّبِينٌ﴾دوى[په جواب كښې ] اوفرمائل چه خويه خپل دغه خوب دخپلووروڼويه مخكښې مه بيانوه[ځکه چه دوى په دى وجه چه دنبوت په خاندان كښې دي ددى خوب په تعبير پوه دي چه يولس ستورى يولس وروڼه اونمر پلار اوسپوږمى مورده اودسجده كولونه مراددى تولوستادحكم لاندى فرمان برداره كيدل دي]نودوى به ستا[دآزاررسولو]لپاره څه خاص تدبيروكړي[يعنى په وروڼو كښې اكثرځکه چه لس وروڼه ئې ميرنى وودوى نه ويره وه فقط يوحقيقى وروړئې بنيامين وو دچا نه چه دڅه خلاف ويره خونه وه مګراحتمال ووچه دخولى نه به ئې خبره ووځى]بيشكه شيطان دبني آدم ښكاره دشمن دى[نوځکه دوروڼويه زړه كښې به ئې وسوسه واچوى].
﴿وَكَذَٰلِكَ يَجْتَبِيكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ آلِ يَعْقُوبَ كَمَا أَتَمَّهَا عَلَىٰ أَبَوَيْكَ مِن قَبْلُ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾او[لكه څنګه چه به الله تعالى تاته داعزت دركړى چه ټول وروڼه به ستا تابعداراوفرمانبرداروي]دغه شان به ستارب تاته [دنورعزت دنبوت لپاره هم]منتخب كړى اوتاته به دخوبونودتعبيرعلم دركړي او[نورنعمتونه به دركړى،هم]په تااوپه اولاددیعقوب به خپل انعام كامل كړى لكه چه ددى نه مخكښې ستاپه نيكه ابراهيم اواسحاق [عليهما السلام]ئې خپل انعام كامل كړى دى يقينى ستارب لوى علم والا او لوئې حكمت والادى.

## معارف او مسائل

سورت يوسف د څلورو آيتونو نه علاوه ټول مكى سورت دې په دې كښې د حضرت يوسف[عليه السلام] قيصه كړئ په كړئ په ترتيب سره بيان شوې ده،دا قيصه يواځې په دې سورت كښې راغلې ده،په ټول قرآن كريم كښې بل چرته د دې بيان نشته،دا خصوصيت يواځې د حضرت يوسف[عليه السلام] د قيصې دې ځکه چه د نورو ټولو پيغمبرانو [عليهم السلام] د قيصو او واقعاتو برخې برخې د يو خاص حكمت لاندې بيا بيا هم راوړې شوې دى.
حقيقت دا دې چه د جهان په تاريخ او د تيرې زمانې په تجربو كښې د انسان د راتلونكى ژوند د پاره،لوئې سبقونه وى،ولې چه د هغې د قدرتى تاثير رنګ د انسان په زړه او دماغو باندې د عامو تعليماتو نه ډير زيات زور او بې مشقته وى،په دې وجه په قرآن كريم كښې كوم چه د ټولې دنيا د قومونو د پاره د آخرى هدايت نامې په حيثيت راليږلې شوې دې،د دنيا د ټولو قومونو د تاريخ هغه منتخب شوې برخه راخستې شوې ده چه د انسان دپاره په موجوده او آئنده وخت كښې د كيميا نسخه ده،مګر قرآن كريم د دنيا د تاريخ دا برخه هم په خپل مخصوص او بې مثاله انداز كښې دا شان راخستې ده چه د دې لوستونكې دا نه شى محسوسولې چه دا ګنى د تاريخ كتاب دې بلكه په هر مقام باندې د كومې قيصې كومه ټوټه چه عبرت او وعظ و نصيحت د پاره ضرورى او ګڼرلې شوه صرف هغومره برخه هلته بيان كړې شوه او بيا چه په بل ځاې كښې د دغې برخې ضرورت اوګڼرلې شو نو هغه دوباره راوړلې شوه،هم دغه وجه ده چه د دې قيصو په بيانولو كښې د واقعاتى ترتيب لحاظ نه دې كړې شوې بلكه بعضې ځاې كښې د قيصې ړومبې برخه روستو او روستنې برخه وړاندې راخستې شوې ده،د قرآن كريم په دې

Scanned with Ca

خاص انداز کښې دا مستقل هدایت دې چه د دنیا د تاریخ او د هغې تیر شوې واقعات لوستل، یاد لرل په خپله څه مقصد نه دې بلکه د هر انسان مقصد دا پکار دې چه د هرې قیصې او خبر نه څه نصیحت او عبرت حاصل کړي.
څکه خو بعضې اهل تحقیقو فرمائیلې دی چه د انسانی کلام چه کوم دوه قسمه مشهور دي یعنی خبر او انشاء، په دې دوارو قسمونو کښې اصلي مقصود هم انشاء ده، خبر د خبر په حیثیت سره مقصود نه وی بلکه د هوښیار انسان مقصد دا پکار دې چه څه خبر او واقعه واوري یا اوګوري نو خپل حال او عمل درست کړي.
د حضرت یوسفؑ قیصه چه په ترتیب سره بیان شوې ده، د دې یو حکمت دا هم کیدې شي چه تاریخ نګاري هم یو مستقل فن دې چه په کښې د دغې فن د خلقو د پاره خاص هدایتونه دي، هغه دا چه په بیان کښې نه خو دومره لنډ والې پکار دې چه خبره باندې انسان پوره پوهه نه شي او نه دومره اوږود والې پکار دې چه د هغې لوستل او یاد لرل ګران شي ځکه چه د دې قیصې د قرآني بیان نه ځرګندیږي.
بله رجه ئې دا هم کیدې شي چه د بعضې روایتونو مطابق یهودو د ازمیښت په ډول رسول اللهﷺ ته وئیلي وو چه که تاسو ﷺ رښتینې پیغمبر ئې نو دا راته اوښائې چه د حضرت یعقوبؑ خاندان د شام ملک نه مصر ته په څه وجه منتقل شوې وو او د یوسفؑ واقعه څه وه؟ د دې په جواب کښې د وحی په ذریعه دا پوره قیصه نازله کړې شوه چه د رسول اللهﷺ یوه معجزه او د هغوی ﷺ د پیغمبرئ لویه ګواهي ده، ولې چه رسول اللهﷺ خالص امي وو او ټول عمر ئې په مکه مکرمه کښې تیر کړې وو، نه ئې د چا نه تعلیم حاصل کړې وو او نه ئې څه کتاب لوستلې وو، بیا هغه ټول واقعات چه په تورات کښې بیان شوې وو هغه ئې صحیح صحیح اوښودل، بلکه بعضې هغه څیزونه ئې هم اوښودل چه بیان ئې په تورات کښې نه وو، او د دې په ضمن کښې ډیر حکمونه او هدایتونه هم دی چه بیان به ئې ګولې شي.
د سورت په اول سر کښې د ﴿الٓرٰ﴾ حروف قرآنی مقطعات نه دی، د دې په باره کښې د جمهورو بزرګانو صحابهٔ کرامو ﷺ او تابعینو ﷺ فیصله دا ده چه دا د متکلم [الله تعالی] او مخاطب [رسول اللهﷺ] تر منځه یو راز دې چه بل هیڅوک پرې نه شي پوهیدې، او نه خو هیچا لره دې تحقیق پسې کیدل پکار نه دی.
﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾ دا د هغې کتاب آیتونه دی چه د حلال، حرام حکمونه او د هر کار حدونه او قیدونه ښائي او انسان ته د ژوند په هر ډګر کښې یو منځ و میانه د ژوند نیغ نظام وربخښي او د نازلیدو دعده ئې په تورات کښې هم موندې شي چه یهود ترې هم خبر دی.
﴿اِنَّاۤ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ﴾ [مونږ دا قرآن په عربی شکل کښې په دې غرض راولیږلو چه تاسو د عقل او فکر نه کار واخلئ].
په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه د حضرت یوسفؑ د قیصې تپوس کوونکی یهود د عربو وو، الله تعالی هم د دوی په ژبه دا قیصه نازله کړه چه دوی په کښې غور اوکړي او د رسول اللهﷺ په رښتینو او حقانیت باندې ایمان راوړي او د دې قیصې حکمونه او هدایتونه خپله ځان د پاره د لارې مشال جوړ کړي.

هم دې د پاره دلته لفظ [لعل] په معنی د شائد [کیدې شی] اراوړلې شو، څکه چه په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه د مخاطبینو شان داسې دې چه که داسې څرګند آیتونه ورته هم مخې ته راشي بیا هم د حق قبلولو امید ترې په شک کښې دې.

﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ هَٰذَا الْقُرْآنَ وَإِن كُنتَ مِن قَبْلِهِ لَمِنَ الْغَافِلِينَ﴾

[مونږه تاسو د پاره ډیره غوره قیصه بیانوو چه دا قرآن مو درته د وحی په ذریعه نازل کړو، بې شکه تاسو د دې نه مخکښې د دې ټولو واقعاتو نه ناخبره وئ].

په دې کښې یهودو ته داسې خبر داري ورکول دی چه تاسو د رسول الله ﷺ ازمیښت کول اوغوښتل په هغې کښې هم د رسول الله ﷺ کمال څکه څرګند شو چه رسول الله ﷺ د وړاندې نه هم خالص امی او د دنیا د تاریخ نه ناخبره وو اوس ئې دا خبریدل سوا د تعلیم الهی او د پیغمبرئ د وحی نه نه شی کیدې.

﴿إِذْ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ لِي سَاجِدِينَ﴾

[یوسف ﷺ خپل والد صاحب ته اووئیل چه بابا جانه! ما په خوب کښې یوولس ستوری او نمر او سپوږمې لیدلې دی، او دا مې لیدلې دی چه هغوی ما ته سجده کوی].

دا د حضرت یوسف ﷺ هغه خوب وو چه د هغې د تعبیر په باره کښې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائیلې دی چه د یوولسو ستورو نه مراد د حضرت یوسف ﷺ یوولس رونړه دی او نمر او سپوږمې نه مراد ئې پلار مور دی.

په قرطبی کښې راغلې دی چه د حضرت یوسف ﷺ مور بیبی دې نه وړاندې وفات شوې وه او ترور بی بی ئې دغه وخت میره مور وه او د یعقوب ﷺ بی بی جوړه شوې وه ترور [خاله] هسې هم د مور په ځاې وی او دا خو ئې د بابا جان په نکاح کښې هم راغلې وه نو د عرف په لحاظ به ورته هم مور وئیلې شی.[1]

﴿قَالَ يَا بُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُؤْيَاكَ عَلَىٰ إِخْوَتِكَ فَيَكِيدُوا لَكَ كَيْدًا ۖ إِنَّ الشَّيْطَانَ لِلْإِنسَانِ عَدُوٌّ مُّبِينٌ﴾

[یعنی اې بچوړیه! خپل دا خوب خپلو رونړو ته مه وایه هسې نه چه ستا د لوئې شان خاوند کیدل ورته معلوم شی او ستا د هلاک کولو څه تدبیر اوکړې ولې چه شیطان د انسان څرګند دشمن دې، هغه د دنیا د مال، دولت، مرتبې او حکومت په خاطر انسان لره په داسې کارونو کښې اخته کوی.

په دې آیتونو کښې څو مسئلې د ذکر کولو قابلې دی:

**د خوب حقیقت او درجه او د دې قسمونه:** ټولو نه اول د خوب حقیقت او د دې نه د معلومیدونکو واقعاتو او خبرونو درجه او مقام دې، په تفسیر مظهری کښې قاضی ثناءالله پانی پتی ﷫ فرمائیلې دی چه د خوب حقیقت دا دې چه هر کله د انسان نفس د خوب یا د بې هوشی له کبله د بدن د ظاهری تدبیر [انتظام] نه فارغ شی، نو د خیالی قوت په ذریعه ورته څه صورتونه او شکلونه ښکاره کیږی، دغه خوب نومیږی، بیا د دې درې قسمونه دی چه په کښې دوه خو بالکل باطل دی، هیڅ حقیقت او اصلیت نه لری او دریم قسم د خپل ذات په لحاظ سره ډیر صحیح او

[1] ) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة ج: ۹ ص: ۱۲۱، ۱۲۲

Scanned with Ca

رښتيني وي خو په دې قسم کښې هم کله څه عوارض شامل شي چه په هغې سره ګډ وډ او بې اعتباره شي.

تفصيل ئې دا دې چه په خوب کښې انسان مختلف صورتونه او واقعاتويني کله خو دا هم هغه صورتونه وي چه په ويښه ئې ويني او کله ئې په ذهن کښې شيطان څه خوشحالوونکې يا څه يرېدونکې واقعات او صورتونه اچوي، دا دواړه قسمه باطل، بې اصله او بې حقيقته دي، د دې څه واقعي تعبير نه شي کيدې، د رومبي قسم نوم حديث النفس دې او د بل قسم نوم تسويل شيطاني دی صحيح او حق خوب دريم قسم دې چه هغه د الله تعالى د اړخه يو قسم الهام دې چه د بنده د خبرداره کولو يا د زيرې ورکولو د پاره ورته کولې شي، الله تعالى د خپلې خزانې د غيبو نه بعضې څيزونه د هغه په زړه او دماغو کښې اچوي.

په يو حديث کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د مؤمن خوب يو قسم کلام کول دی چې په هغې کښې د خپل رب سره د خبرو کولو شرف حاصلوي. [دا حديث طبراني په صحيح سند سره روايت کړې دې [مظهري] .

صوفيائې کرامو ﷺ د دې بيان داسې کړې دې چه په دنيا کښې د ټولو موجودو څيزونو يو خاص شکل په عالم مثال کښې وي، او په دې عالم مثال کښې څنګه چه د جواهرو او د ثابت شوې حقيقتونو صورتونه او شکلونه وي دغه شان په کښې د معانيو او د اعراضو هم خاص شکلونه وي، په خوب کښې چه کله انسان د ظاهري بدن د تدبير نه فارغه شي نو بعضې وخت د هغه تعلق عالم مثال سره قائم شي، هلته چه کوم د کائناتو شکلونه دی هغه ده ته ښکاره شي، بيا دا صورتونه د عالم غيب نه ورته ښودلې شي، بعضې وخت په دې کښې هم څه عوارض داسې پيدا شي چه د اصل حقيقت سره د څه باطل خيالات هم شامل شي، د دې وجهې نه د تعبير خاوندانو ته هم د دې تعبير کول ګران شي، او کله دا د عوارضو نه بالکل پاک او صفا پاتې شي نو دا اصل حقيقت وي، مګر په دې کښې بعضې خوبونه د تعبير محتاجه وي ځکه چه په دې کښې ښکاره حقيقت نه وي، په داسې صورت کښې هم که تعبير غلط اوکړې شي نو واقعه غلطه شي، په دې بنا صرف هغه خوب به په صحيح دول د الله تعالى د جانبه الهام او اصلي حقيقت وي کوم چه د الله تعالى د طرفه وي او په دې کښې څه نور څيزونه شامل شوې نه وي او تعبير ئې هم صحيح او ښکلې شوې وي.

چنانچه د پيغمبرانو ﷺ ټول خوبونه هم دغسې ځکه وي چه هغه وحي وي، د عامو مسلمانانو په خوبونو کښې په هر شان احتمالونه کيدې شي، ځکه چا د پاره حجت او دليل نه شي ګرځيدې د دوی په خوبونو کښې کله د طبعي او نفساني صورتونو ګډون شي او کله پرې د ګناهونو تيرې او خرابې راخوريدو سره بې اعتباره کيږي چه کله خو په صحيح تعبير باندې ئې پوهيدل هم ګران شي.

د خوب د دغې دريو قسمونو تفصيل د رسول الله ﷺ نه داسې منقول دې چه يو قسم خوب شيطاني وي چه شيطان ئې څه صورتونه په ذهن کښې راولي، دويم قسم هغه دې چه انسان ته په کښې هم هغه صورتونه ښکاري کوم چه په ويښه ويني، دريم قسم هغه دی چه صحيح او حق وي چه د نبوت د برخو نه شپږ څلويښتمه [۴۶] برخه ده، يعني دا د الله تعالى د اړخه الهام وي[1].

---

[1]) صحيح مسلم کتاب الرؤيا ج: ۲ ص: ۲۴۱

**خوب د پیغمبرئ برخه څنګه جوړیدی شي:** کوم خوب ته چه د نبوت شپږ څلویښتمه برخه وئیلې شوې ده په دې باره کښې د احادیثو روایتونه مختلف دی بعضو احادیثو کښې ورته څلویښتمه او بعضو کښې ورته شپږ څلویښتمه برخه وئیلې شوې ده په بعضې روایتونو کښې یو کم پنځوس او اویایمه برخه کیدل هم منقول دی دا ټول روایتونه د ابن عبدالبر د تحقیق مطابق قرطبي راجمع کړې دی چه د دې ټولو روایتونو تر منځه څه اختلاف نشته بلکه هر یو روایت په خپل خپل ځای صحیح او درست دې ولې چه د خوب لیدونکو حالات او شانونه مختلف کیدې شی، څوک چه رښتینې مسلمان، امانتدار، دیانتدار او کامل مومن وی د هغه خوب به د پیغمبرئ څلویښتمه برخه وی او کوم چه په دې صفتونو کښې څه کم وی نو د هغې په مناسب درجه په درجه به شپږ څلویښتمه، یو کم پنځوسمه پنځوسمه او اویایمه برخه وی.(۱)

دلته په دې خبره غور کول پکار دی چه رښتینې خوب څنګه د پیغمبرئ برخه کیدې شی؟ په تفسیر مظهری کښې ئې د دې توجیه داسې کړې ده چه په رسول الله ﷺ باندې د نبوت وحی دیرویشت کاله [شپږ څلویښت شپږ میاشتیزې [ششماهی] جاری وه په دې کښې رومبې شپږ میاشتیزه وحی د خوب په صورت کښې جاری وه او نورې پنځه څلویښت شپږ میاشتیزې د جبرائیل امین ﷺ په ذریعه وحی پرې جاری وه، په دې لحاظ رښتینی خوبونه د نبوت د وحی شپږ څلویښتمه برخه شوه، په کومو روایتونو کښې چه کم و زیات شمیر راغلې دې په دې کښې یا خو تقریبی کلام کړې شوې دې یا هغه د سند په اعتبار سره ساقط دی.

امام قرطبی ﷫ فرمائیلې دی چه خوبونه د نبوت څه برخه په دې حیثیت سره هم کیدې شی چه په خوب کښې بعضې وخت انسان داسې څیزونه وینی چه په ویښه ئې طاقت نه بهر وی مثلا په هوا کښې الوځی، یا د غیب داسې څیزونه وینی چه د هغې علم حاصلول ئې په طاقت کښې نه وو نو د دې ذریعه سوا د الهام او د الله تعالی د امداد نه بل څه نۀ شی کیدې چه په اصل کښې خاصه د نبوت ده ځکه دا د نبوت یوه برخه اوګرځولې شوه.

**د قادیانی دجال په باره کښې د یوې مغالطې رد:** دغه خلق په یو عجیبه غلطې کښې پریوتې دی د هغوی خیال دا دې چه هر کله د نبوت یو جز [برخه] په دنیا کښې پاتې ده نو نبوت جاری پاتې کیدل ترې معلومیږی خو دا ځکه غلط دی چه د قرآن کریم د قطعی نصوصو او بې شمیره صحیح احادیثو او د ټول امت د اتفاقی عقیدې د ختم نبوت نه خلاف دی، او دا کنړل هم غلط دی چه د یوڅیز جز موجودیدو سره ګنی مکمل څیز دې موجود شی، مثلا که د یو کس ویښته یا نوک موجود شی نو په دې سره دا څوک نه شی وئیلې چه دغه کس دلته موجود دې، یا د یو مشین دیرې پرزې وی که د دې پرزو نه یو کس سره یوه پرزه موجوده وی او هغه کس اووائی چه ماسره فلانکې مشین موجود دې نو د ټولې دنیا خلق به ده ته یا دروغژن وائی او یا بې وقوف.

خلاصه دا شوه چه رښتونی خوبونه واقعی د نبوت برخه دی خو نبوت ځکه نه دې چه په خاتم الانبیاء ﷺ باندې نبوت ختم دې.

په صحیح بخاری کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: لم یبق من النبوة الا المبشرات [یعنی په آئنده کښې به سوا د مبشراتو نه د نبوت بل څه جز باقی پاتې نه شی] صحابۀ کرامو

---

۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة، ج ۹، ص ۱۲۲، ۱۲۳

Scanned with Ca

ﷺ تپوس اوکړو چه د مبشراتو نه څه مراد دی؟ نو اوئې فرمائیل چه رښتونی خوبونه.(۱) دې نه ثابته شوه چه هیڅ قسم نبوت یا څه صورت ئې باقی نه دې صرف د دې یو ورکوټې شان جز باقی دې چه مبشرات یا رښتینې خوبونه ورته وئیلې شی.

**کله د فاسق کافر خوب هم رښتینې کیدې شي؟:** او دا خبره هم د قرآن او حدیث نه ثابته او تجربو نه معلومه ده چه کله کله د فاسق، فاجر او د کافر خوب هم رښتیا کیدې شی، چنانچه په سورت یوسف کښې د حضرت یوسف ﷺ د بندیخانې د دوو ملګرو خوبونه او د مصر د بادشاه خوب هم رښتیا ختل بیان شوې دی سره د دې چه دغه درې واړه مسلمانان نه و، په حدیث شریف کښې د کسری د خوب لیدلو بیان هم راغلې دې چه د رسول الله ﷺ د پیغمبر کیدو په باره کښې ئې لیدلې وو او هغه صحیح او رښتیا اوختو سره د دې چه کسری مسلمان نه وو، د رسول الله ﷺ ترور بیبی عاتکه ؓ په حالت د کفر کښې د رسول الله ﷺ په باره کښې خوب لیدلې وو، دغه شان د بخت نصر کافر بادشاه خوب هم رښتیا ختلې وو د کوم تعبیر چه حضرت دانیال ﷺ اوښکلې وو.

دې نه معلومه شوه چه د چا په رښتینی خوب لیدلو او د هغې مطابق د تعبیر په ختلو سره څوک صالح او نیک خو لا څه کوې چه د هغه د مسلمانیدو دلیل هم نه شی کیدې، البته دا خبره صحیح ده چه د الله تعالی عام عادت دا دې چه د رښتونو او نیکو خلقو خوبونه عموما رښتیا وی، د فاسقانو فاجرانو خوبونه عموما حدیث النفس یا تسویل شیطانی باطله قسم وی خو کله د دې خلاف هم کیدې شی.

بهر حال رښتینې خوبونه عام امت د پاره د څرګند حدیث شریف مطابق د یو زیری یا خبر دارې نه زیات مقام نه لری، نه خو پخپله د هغه د پاره او نه د بل د پاره په څه معامله کښې حجت جوړیږی، بلکه بعضې ناواقفه خلق خو د داسې خوبونو په لیدو سره په قسما قسم وسوسو کښې اخته شی، څوک ئې د خپل ولې توب نشانی بولی، څوک ئې د شرعی دلیل په توګه استعمالوی، خو دا ټول هیڅ بنیاد نه لری، خصوصا کله چه دا هم معلومه شوې ده چه په رښتینی خوبونو کښې هم ډیر د نفسانی یا شیطانی یا د دواړو قسمونو تصوراتو د ګډون احتمال وی.

**هر چا ته خوب بیانول درست نه دي:**

**مسئله:** ایت ﴿قَالَ یٰبُنَیَّ﴾ له مخه دا معلومه شوه چه خیر خواه، همدرد، یا د تعبیر ماهر نه بغیر د بل چا په مخکښې خوب بیانول پکار نه دی ولې چه حضرت یعقوب ﷺ حضرت یوسف ﷺ لره د خپلو رونړو په وړاندې د خپل خوب بیانولو نه منع کړې وو.

د جامع ترمذی په حواله رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه رښتینې خوب د نبوت د څلویښتو برخو نه یوه برخه ده، او خوب تر هغې وخت پورې زوړند وی تر څو چه چا ته بیان نه کړې شی، خو د بیانولو نه پس چه کله ئې تعبیر اوښکلې شی نو هم د هغې مطابق به کیږی، څکه پکار دی چه خوب چا ته بیان نه کړی سوا د هغه چا نه چه عالم او هوښیار وی یا کم از کم د هغه دوست یا خیر خواه وی.(۲)

---

(۱) صحیح البخاری کتاب التعبیر، باب المبشرات ج:۱ص: ۱۰۳۵
(۲) جامع الترمذی، ابواب الرؤیا باب ماجاء فی تعبیر الرؤیا ج: ۲ص: ۵۳

دا شان د ترمذي او ابن ماجه په حواله رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه خوب په دري قسمه وي، يو د الله تعالى د اړخه زيري وي، دويم نفساني خيالونه، دريم شيطاني تصورات، په دې وجه چه ښه خوب اووينى او هغه ته ښه معلوم شى نو كه اوغواړى خلقو ته دې ئې بيان كړى او كه څه خرابه خبره ورته په كښې ښكاره شوه نو چا ته دې ئې نه وائى بلكه پورته دې شى او مونځ دې اوكړى. (۱)

د صحيح مسلم په حواله يو بل حديث كښې راغلي دي چه كله خراب خوب اووينى نو ګس [چپه] طرف ته دې درې ځله تهو كړى او د هغې د خرابۍ نه دې د الله تعالى پناه اوغواړى، چا ته دې هغه نه بيانوى نو دغه خوب به ورته هيڅ څه زيان نه شى وررسولي (۲) وجه ئې دا ده چه بعضې خوبونه شيطاني تصورات وى هغه به په دې عمل سره دفع شى او كه رښتينې خوب وى نو د دې عمل په ذريعه د هغې د خرابۍ لرې كيدو هم اميد شته.

**مسئله:** د خوب تعبير په خوب باندې د موقوف كيدو مطلب په تفسير مظهرى كښې داسې بيان كړى دى چه يو قسم تقدير مبرم [قطعى] وى او بل معلق وى په دې دويم صورت كښې معامله په ښه او خراب تعبير باندې موقوف وى او هم په دغې بنا د ترمذى په بيان شوى حديث كښې داسې كس ته د خوب بيانولو نه منع راغلې ده چه عقلمند نه وى يا د خوب ليدونكى خير خواه او دوست نه وى، (۳) بله وجه ئې دا هم كيدې شى چه د خوب په خراب تعبير اوريدو سره د انسان په زړه كښې دا خيال كښينى چه اوس په ما باندې مصيبت راتلونكې دې او په حديث شريف كښې راغلي دى چه الله تعالى فرمائى: انا عند ظنى عبدى بى [زه خپل بنده ته د هغه د ګمان مطابق ور رسم] (۴) كله چه هغه په الله تعالى باندې دا يقين اوكړو چه هغه به را باندې مصيبت راولى نو د الله تعالى عادت دا دې چه په هغه باندې مصيبت ضرور راولى.

**مسئله:** كوم خوب چه د مصيبت يا ضرر او زيان چا ته ښكاره شى نو د حديث له مخه چا ته د هغې د نه بيانولو وجه صرف شفقت او همدردى ده، په شريعت كښې ئې بيانول حرام نه دى يعنى چا ته ئې بيانول حرام او د ګناه كار نه دې، چنانچه په صحيح احاديثو كښې راغلي دى چه كله په غزوهٔ احد كښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ما خوب كښې اوليدل چه ذوالفقار توره مې ماته شوې ده او اومې ليدل چه څه غواګانې ذبح كيږى، د دې تعبير د حضرت حمزه رضي الله عنه او د نورو ډيرو مسلمانانو شهادت وو، سره د دې چه دا ډيره لويه راپيښه وه خو بيا هم رسول الله ﷺ صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم ته دغه خوب بيان كړې وو [قرطبى]. (۵)

**مسئله:** د دې آيت نه دا هم معلومه شوه چه د چا د شر نه د ساتلو په غرض د هغه خراب خوئى يا خراب نيت ښكاره كول روا دى، دا په غيبت كښې داخل نه دى، مثلاً څوك خبر شى چه فلانې بنده د بل فلانى په كور د ډاكې غورځولو يا د هغه د وژلو منصوبه جوړوى نو دغه بل فلانى لره

(۱) جامع الترمذى، ابواب الرؤيا باب رؤيا المؤمن الخ، ج: ۲ص: ۵۲، وابن ماجة، ابواب تعبير الرؤيا، باب الرؤيا ثلاث۔ ج: ۲ص: ۲۷۸
(۲) صحيح مسلم كتاب الرؤيا ج: ۲ص: ۲۴۰
(۳) تفسير المظهرى تحت هذه الآية ج: ۵ص: ۱۴۱
(۴) صحيح البخارى كتاب التوحيد، باب قول الله [ويحذركم الله نفسه] ج: ۲ص: ۱۱۰۱
(۵) تفسير القرطبى تحت هذه الآية ج: ۹ص: ۱۲۶

Scanned with Ca

په دې باندې خبرول پكار دي، دا په غيبت[حرام]كښې داخل نه دي ولې چه حضرت يعقوب حضرت يوسف ته دا خبره ښكاره كړې وه چه د رونړو نه ده ته د مرگ خطره وه.

**مسئله:** دې آيت نه دا خبره هم معلومه شوه چه د چا د خير، خوشحالي او په نعمت باندې به څوك حسد كوي او زيان به ورته رسوي نو د هغه په وړاندې د خپل خير، ښيگړې، نعمت، دولت او عزت وغيره يادول دې نه كوي څنگه چه رسول الله ﷺ هم فرمائيلي دي چه؛

[په خپلو مقصدونو كښې د كاميابيدو په غرض هغې لره په راز كښې ساتلو سره مدد حاصلوئ ولې چه په دنيا كښې د هر نعمت خاوند سره حسد كولې شي] (۱)

د دې آيت او وروسته د نورو آيتونو نه ثابته شوه چه د يوسف ﷺ رونړو هغوی لره د وژلو او په كوهي كښې د اچولو مشوره اوكړه او په هغې ئې عمل هم اوكړو نو دې نه معلومه شوه چه دغه رونړه د يوسف پيغمبران څكه نه وو چه دغسې گناهونه او د والد نافرمانى په قصد سره كول پيغمبرانو نه نه شي صادريدې، ولې چه د پيغمبرانو ﷺ د هر قسم گناهونو نه صفا او پاكيزه پاتې كيدل ضروري دي، په كتاب طبري كښې چه هغوی ته پيغمبران وئيلې شوې دي دا صحيح نه دي[قرطبى] (۲)

په شپږم آيت كښې الله تعالى حضرت يوسف سره د څو انعاماتو د وركولو وعده كړې ده اوله دا چه؛

﴿وَكَذَٰلِكَ يَجْتَبِيكَ رَبُّكَ﴾[يعنى الله تعالى به خپلو انعاماتو او احساناتو د پاره تاسو لره منتخب كړي]چه په مصر كښې ورته د حكومت، عزت او دولت په حاصليدو سره ښكاره شوه.

دويمه دا چه﴿وَيُعَلِّمُكَ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ﴾دلته د احاديث نه مراد د خلقو خوبونه دي، د ټولې جملې معنى دا شوه چه؛ الله تعالى به درته د خوبونو د تعبير علم اوښائى، دې نه دا هم معلومه شوه چه د خوبونو تعبير ښودل يو مستقل فن دې چه الله تعالى د دې علم خال خال كسانو ته وركوى هر څوك د دې جوگه نه وى.

**مسئله:** تفسير قرطبى كښې ليكلي دي چه شداد بن الهاد ﷺ فرمائيلي دي چه د يوسف د دې خوب تعبير څلويښت كاله پس څرگند شو، معلومه شوه چه د خوب تعبير سمدستى څرگنديدل ضروري نه دي (۳)

دريمه دا ﴿وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ﴾[يعنى الله تعالى به درباندې خپل نعمت پوره كړي]په دې كښې د پيغمبرئ وركولو ته اشاره څكه ده چه وروسته داسې فرمائى﴿كَمَا أَتَمَّهَا عَلَىٰ أَبَوَيْكَ مِن قَبْلُ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ﴾ [يعنى څنگه چه مونړه خپل نعمت د پيغمبرئ ستاسو په پلار نيكه حضرت ابراهيم او اسحق ستاسو نه وړاندې پوره كړې دې، په دې كښې دې خبرې ته هم اشاره اوشوه چه د خوب د تعبير فن د يوسف په شان حضرت ابراهيم او اسحق ته هم وركړې شوې وو.

(۱) تفسير القرطبى تحت هذه الآية ج۹، ص۱۲۷، ومجمع الزوائد رقم الحديث، ۱۳۷۳۷
(۲) تفسير القرطبى تحت هذه الآية ج۹، ص۱۲۷
(۳) تفسير القرطبى تحت هذه الآية ج۹، ص۱۲۹

Scanned with Ca

په آخر د آیت کښې فرمائی [﴿إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾] یعنی ستاسو پروردگار د لوئې علم خاوند ، دلوئې حکمت خاوند دې،انه خو هغه لره چا ته فن ورایزده کول ګران دی او نه د حکمت له مخې هغه دې فن لره هر چا ته ورازده کوی بلکه د خپل حکمت ما تحت په انتخاب سره دا هنر ور کوی۔

لَقَدْ    كَانَ    فِيْ يُوْسُفَ    وَإِخْوَتِهٖٓ

| بیشکه | دی | په قیصه دیوسف | او رونړو د هغه کښې

|حقیقت دادې چې د حضرت یوسف علیه السلام

اٰيٰتٌ    لِّلسَّآئِلِيْنَ۝    اِذْ    قَالُوْا    لَيُوْسُفُ    وَاَخُوْهُ

نښې| د پاره دتپوس کونکو | کله چې |اووئیل هغوی |چې خامخا یوسف | او رور د هغه

او دهغه د رونړو په قصه کښې تپوس کونکو دپاره [ډیرې] غتې غتې نښې دی | هر کله چې هغوئ

اَحَبُّ    اِلٰٓى اَبِيْنَا    مِنَّا    وَنَحْنُ    عُصْبَةٌ ؕ    اِنَّ

زیات خوښ دی | پلار زمونږ ته | زمونږنه | اوحال دادې چې مونږه | پوره ډله یو | بیشکه

[پخپل مینځ کښې] اووئیل اچې یوسف علیه السلام او دهغه سکه رور زمونږ د پلار زمونږ نه زیات خوښ دی

اَبَانَا    لَفِيْ ضَلٰلٍ    مُّبِيْنِ۝ۚۖ    اقْتُلُوْا    يُوْسُفَ    اَوِ اطْرَحُوْهُ

پلار زمونږه | خامخاپه دهوکه | ښکاره کښې دې | قتل کړئ | یوسف | یا اوغورزوئ هغه

حال دا چې مونږ خوسمه پوره ډله یو| ربنتیا خبره داده چې زمونږ پلار ښکاره خطا شوې دې | [اراشئ] یوسف علیه السلام

اَرْضًا    يَّخْلُ    لَكُمْ    وَجْهُ    اَبِيْكُمْ    وَتَكُوْنُوْا

په یوه بله زمکه کښې | چې خالي شی | تاسو ته | توجه | د پلار ستاسو | او شئ به تاسو

اووژنئ ایا ئې چرته یو بل ملک ته اوغورزوئ| نو د پلار مخه به درته یوازې شی | او دهغې نه پس به

مِنْۢ بَعْدِهٖ    قَوْمًا    صٰلِحِيْنَ۝    قَالَ    قَآئِلٌ    مِّنْهُمْ    لَا تَقْتُلُوْا    يُوْسُفَ

روستو ددې نه | خلق | نیکان | اووئیل | یو ویونکی | دهغوئ نه | مۀ قتلوئ | یوسف

[په توبې ویستلو سره] نیکان شئ | په هغوئ کښې یو کس اووئیل | چې یوسف علیه السلام مۀ وژنئ

وَاَلْقُوْهُ    فِيْ غَيٰبَتِ    الْجُبِّ    يَلْتَقِطْهُ    بَعْضُ السَّيَّارَةِ    اِنْ    كُنْتُمْ

او اوغورزوئ دې | په تیارو کښې | د کوهی | را اوچت به کړی دې | یو لاروې | مسافر | که چرې | یئ تاسو

خو په تیارو د کوهی کښې ئې واچوئ | چې څوک مسافر ئې را اوباسی [او خان سره ئې بوځی] | که تاسو [خواه

فٰعِلِيْنَ۝    قَالُوْا    يٰٓاَبَانَا    مَا لَكَ    لَا تَاْمَنَّا

کونکی | اووئیل هغوئ | ائې پلاره زمونږه | څه باعث دې په تا | چې ته باور نۀ کوې په مونږه

مخواه] څه کول غواړئ | هغوئ [حضرت یعقوب علیه السلام ته] اووئیل چې ائې بابا | دا په تا څه چل دې چې د

Scanned with Ca

عَلٰى يُوسُفَ وَاِنَّا لَهٗ لَنٰصِحُوْنَ اَرْسِلْهُ مَعَنَا
په باره دیوسف کښې | او بیشکه مونږ | د هغه | خامخا خیر خواهان یو | او لیږه دې | زمونږ سره
یوسف ﷺ په حقله ته په مونږ اعتبار نهٔ کوې | سره ددې چې مونږ خو د هغه خیرخواه یو | صبا له ئې مونږ
غَدًا يَّرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ قَالَ
صباله | چې دې وخوري | او اولوبیږي | او بیشکه مونږ | د هغه | خامخا حفاظت کونکي یو | یعقوب اووئیل
سره اولیږه | چې خوراک څښاک اوکړي | اولوبې اوکړي | او مونږ خو هسې هم د هغه محافظ یو | هغه ورته
اِنِّيْ لَيَحْزُنُنِيْٓ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ وَاَخَافُ اَنْ يَّاْكُلَهُ
بیشکه زهٔ چې یم | خامخا غمژنوی ما | چې بوځئ تاسو | هغه | او ویریږم زهٔ | چې اوبه خوري هغه
اووئیل | چې زهٔ خو په دې خفه یم | چې تاسو دې زما نه بوځئ | او ماسره ویره ده | چې شرمخ به ئې د رنه
الذِّئْبُ وَاَنْتُمْ عَنْهُ غٰفِلُوْنَ قَالُوْا لَئِنْ اَكَلَهُ الذِّئْبُ
شرمخ | او تاسو به | دهغه نه | بې فکره یئ | اووئیل هغوئ | که چرې | اوخوړو دې | شرمخ
اوخوري | او تاسو به ترې خپله مشغوله یئ | هغوئ اووئیل چې که دې رانه شرمخ اوخوري | او مونږ
وَنَحْنُ عُصْبَةٌ اِنَّآ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ فَلَمَّا
او حال دا | چې مونږ | یوه ډله یو | بیشکه مونږ به | په دغه وخت کښې | خامخا تاوانیان یو | نو هرکله چې
دومره [د لسو کسانو] لویه ډله موجود یو | نو بیا خو مونږ ډیر غورزیدلي سړي یو | نو هرکله چې ئې
ذَهَبُوْا بِهٖ وَاَجْمَعُوْٓا اَنْ يَّجْعَلُوْهُ فِيْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ وَاَوْحَيْنَآ
بوتلو هغوئ | هغه لره | او اتفاق ئې اوکړو | چې اوغورزوي هغه | په تیاره کوهي کښې | او وحی اوکړه مونږه
هغه بوتلو | او پوخ نیت ئې اوکړو | چې هغه په تیاره کوهي کښې واچوي | او مونږ یوسف ﷺ ته وحی
اِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِاَمْرِهِمْ هٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ
هغه ته | چې خامخا ته به خبر ورکړې دوئ ته | د دوی د دې کار | او دوئ به | نه پوهیږي
اوکړه | چې | یوه ورځ به راشي | چې ته به دوئ ته دا خبره په ګوته کوې | او دوئ به | هغه وخت هم | پرې نهٔ
وَجَآءُوْٓ اَبَاهُمْ عِشَآءً يَّبْكُوْنَ قَالُوْا يٰٓاَبَانَآ اِنَّا
او راغلل هغوئ | پلار خپل ته | ماسخوتن | چې ژړل ئې | اووئیل هغوئ | ائې پلاره زمونږه | بیشکه مونږه
پوهیږي | او هغوئ خپل پلار ته ماسخوتن په ژړا راغلل وې وئیل چې بابا مونږ به خپل مینځ کښې د منډې
ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَاَكَلَهُ
لاړو | چې مقابله کوله مونږه په منډه کښې | او پریښودو مونږ | یوسف | دسامان خپل سره | نو اوخوړو هغه لره
مقابله شروع کړې وه | او یوسف ﷺ مو دخپل سامان سره پریخودې وو | نو شرمخ راغلو | و هغه ئې اوخوړلو
الذِّئْبُ وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ وَجَآءُوْ
شرمخ | او نهٔ ئې ته | باور کونکې | په مونږ | اګر که یو مونږه | ربښتوني | او راوړهٔ هغوئ
اوستا زمونږ په خبره باور نهٔ راځي | اګر که مونږ ربښتوني یو | او دهغه په قمیص باندې ئې د دروغو

عَلٰی قَمِیۡصِهٖ بِدَمٍ کَذِبٍ ؕ قَالَ بَلۡ سَوَّلَتۡ لَکُمۡ اَنۡفُسُکُمۡ اَمۡرًا ؕ

د پاسه قمیص دهغه | وینه | د دروغو | اوې فرمائیل | بلکه | آسان کړې دی | تاسوته | نفسونو ستاسو | یولوئ کار

وینه لګولې راوړه | حضرت یعقوب ؑ ورته اووئیل چې نه بلکه داتاسو له خانه یوه خبره جوړه کړې ده

فَصَبۡرٌ جَمِیۡلٌ ؕ وَاللّٰهُ الۡمُسۡتَعَانُ عَلٰی مَا تَصِفُوۡنَ ﴿۱۸﴾ وَجَآءَتۡ

نوصبر | ډیر ښهٔ دی | او د الله نه | مدد غوښتلې شوې دی | په هغه خبرو باندې | چې تاسوئې بیانوئ | او راغله

نوصبر ډیر ښهٔ دی | او تاسو چې څه وائې نو الله دې په هغې کښې زما مدد اوکړی | او یوه قافله راغله

سَیَّارَۃٌ فَاَرۡسَلُوۡا وَارِدَهُمۡ فَاَدۡلٰی دَلۡوَهٗ ؕ قَالَ یٰبُشۡرٰی

قافله | نو اولیږو هغوئ | اوبه راوړونکې خپل | نو ورزوړنده ئې کړه | بوقه خپله | اووئیل هغه | اُئې زیرې دې

نو هغوئ خپل یو اوبهٔ راوړونکې اوبو پسې اولیږلو | نو هغه خپله بوقه وربنکته کړه | نو نعرې ئې کړې چې اُئې امِلګرو! زیرې

هٰذَا غُلٰمٌ ؕ وَاَسَرُّوۡهُ بِضَاعَةً ؕ وَاللّٰهُ عَلِیۡمٌۢ بِمَا یَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۹﴾

دا | خو | یو هلك دې | او پټ كړو هغوئ دهٔ لره | د تجارت د مال په طور | او الله | خبردار دې | په هغه څه | چې کول هغوئ

مې درباندې | داخو په کښې هلک راووتو | او هغوئ د تجارت په خیال پټ کړو | او الله دهغوئ په ټولو کارونو ښهٔ

وَشَرَوۡهُ بِثَمَنٍۭ بَخۡسٍ دَرَاهِمَ مَعۡدُوۡدَۃٍ ۚ وَکَانُوۡا فِیۡهِ

او خرڅ کړو هغوئ هغه لره | په قیمت | لږ | په دراهمو | شمیرلې شو | او وو هغوئ | په قیمت دهغه کښې

واقف وو | او هغوئ په ډیر لږ قیمت د شمیر په یو څو روپو خرڅ کړو | او هغوئ د دهٔ په حق کښې هسې

مِنَ الزّٰهِدِیۡنَ ﴿۲۰﴾

بې رغبته |

هم بې رغبته وو |

## آسان ترجمه قرآن

حقیقت دا دې چه کوم خلق (تاًنه ددې واقعې) تپوس کوې، دوی دپاره د یوسف او دهغه په ورونړو (په حالاتو کښې) ډیرې لوئ لوئ نښې دی (دا دهغه وخت واقعه ده) چه کله د یوسف (ناځکه) ورونړو (خپلو کښې) وئیلې وو چه: یقینې طور څمونږ د پلار څمونږ مقابله کښې د یوسف او د هغه (حقیقې) ورور (بنیامین) سره ډیره مینه ده. حال دا دې چه مونږ هغوی دپاره یوه مضبوطه ډله یو مونږ ته یقین دې چه څمونږ پلار څه ښکاره خطاګانې کښې مبتلا دې (اوس ددې حل دا دې چه) یوسف ووژنئ. یا یوې بلې زمکې کښې ئې وغورزوئ چه ستاسو دپلار ټوله توجه تاسو ته شي. او دې هر څه کولو نه ورروستو (بیا توبه وباسئ) لیکان شئ دوي نه یو ویونکی ووئیل چه یوسف خو ووژنئ مه. البته که تاسو څه کول غواړئ نو دې یو تیارهٔ کوهی ته وغورزوئ دې دپاره چه دې څوك قافله اوچت کړي. (نو) دهغه ورونړو (خپل پلار ته) ووئیل چه: اې باباجانه! په تا څه هوی دی چه ته د یوسف په معامله کښې په مونږ اطمینان نه کوې؟ حال دا دې چه دې کښې څه شك نه دې ښکار چه مونږ د هغه پاخه خیرخواهان یو صبا ته دې مونږسره (د سیل دپاره) ولیږه، دې دپاره چه څه خوراك څښاك وکړي. او لوبې وکړي او یقین وکړه چه

Scanned with Ca

مونږ به دده پوره حفاظت کوو. یعقوب (علیه السلام) ووئیل چه: تاسو دې بوځئ نو ما سره به (د ده جدائي) غم وی او ما ته دا خطره ده چه څه وخت چه کله تاسو غافله یئ، ذمري به ئې وخوري هغوی ووئیل چه مونږ یو مضبوطه ډله یو، او که بیا هم ده لره شرمخ وخوري نو مونږ به هیڅ د شي نه یُو ا بیا وشوه داسې چه کله هغوی ده لره خپل ځان سره بوتلو، او دوی دا فیصله کړې وه چه ده لره به یو شاړ کوهي کښې غورزوی (او وئې هم غورزولو) نو مونږ یوسف ته وحي وکړه چه (یو وخت به داسې راشي چه) ته به دوی ته دا هر څه وائې کوم چه دوی کړي وو او هغه وخت به دوی ته دا پته هم نه وي (چه ته څوک ئې ؟) او د شپې ټول خپل پلار ته په ژړا راغلل، ووئیل دوی: باباجانه! یقین وکړه مونږ منډه کښې مقابلې ته وتلي وو او مونږ یوسف لره خپل سامان سره پریښودي وو دې کښې یو شرمخ هغه لره وخوړو او ته خمونږ په خبره یقین نه کوي، خواه که مونږ هر څومره رښتونی یو، او د یوسف په قمیص باندې ئې د دروغو وینه هم لګولې وه د دوی پلار ووئیل: (حقیقت دا نه دې) بلکه ستاسو زړونو د خپل طرف نه یوه خبره جوړه کړې ده اوس مالره صبر بهتر دې — او کومې خبرې چه تاسو جوړوئ په هغې باندې دالله د مدد ضرورت دې او (بل طرف ته دوی چه کوم ځائې یوسف په کوهي کښې غورزولې وو، هلته) یو قافله راغله، قافلې والو یو کس د اوبو دپاره اولیږلو او هغهٔ بوقه (کوهي کښې) وغورزوله نو (هغلته یوسف علیه السلام ئې چه ولیدو) چغه ئې کړه: زیرې وا خلئ دا خو هلک دې او د قافلې والو ده لره د سوداګرئ سامان وګڼلو او پټ ئې کړو، او هغوی چه څه کول الله ته د هغې پوره پوره علم وو او (بیا) هغوی یوسف لره ډیر په کم قیمت خرڅ کړو چه د شمیر د یو څو روپو په شکل کښې وي او دوی لره د یوسف سره څه دلچسپي نه وه.

## خلاصه تفسیر

﴿لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ ۞ إِذْ قَالُوا لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰ أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ۞﴾ او دیوسف [عليه السلام] او دده د [میرنو] وروڼو په قصه کښې [دخدای دقدرت اوستا د نبوت] دلیلونه موجود دي دهغوخلقولپاره کوم چې [ستانه ددی قصی] تپوس کوی [څکه چه یوسف [عليه السلام] لره دداسی بی کسی اوبی بسۍ نه سلطنت اوحکومت ته رسول دادخدای کارووچه په دې سره مسلمانانوته عبرت اوقوت حاصلیږي اویهودوته چه دنبی [عليه السلام] نه دازمایش لپاره داقصه پوښتلای وودوی ته په دې قصه کښې دنبوت دلیل میلاویږی] هغه وخت دیادولولائق ده هرکله چه دغو [میرنو] وروڼو [دیوبل سره دمشوری په طور] داخبری وکړی چه [داخه وجه ده چه] یوسف اودده [حقیقی] ورور [بنیامین] خمونږپلارته زیات خواږه دي حال دادی چه [د ورکوتوالی په وجه دده دخدمت قابل هم ندی او] مونږیو مضبوط جماعت یو [چه په دیروالي او قوت خپل دده هرقسم خدمت هم کوو] واقعي خمونږپلارپه ښکاره غلطۍ کښی دی [ددی وجه داسی تدبیر کول پکاردي چه په دې دواړو کښی هم زیاته مینه ئی دیوسف [عليه السلام] سره ده دی په څه حکمت سره دده نه لری کول پکاردي ددی صورت داسی دی چه ].

﴿اقْتُلُوا يُوسُفَ أَوِ اطْرَحُوهُ أَرْضًا يَخْلُ لَكُمْ وَجْهُ أَبِيكُمْ وَتَكُونُوا مِنْ بَعْدِهِ قَوْمًا صَالِحِينَ ۞﴾ یاخو یوسف [عليه السلام] قتل کړئ یائی چرته [لری] ځمکی ته وغورځوئ نو [بیابه] ستاسو دپلارمخ خالص تاسوطرف ته شی اوستاسو ټول کاربه جوړشی].

Scanned with Ca

﴿قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوا يُوسُفَ وَأَلْقُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّيَّارَةِ إِن كُنتُمْ فَاعِلِينَ﴾ په دوی کښې يو ويونکي وويل چه يوسف [عليه السلام] مه قتلوئ [چه دا ډير لوی جرم دی] او دی چرته په يو تياره کوهی کښې وغورځوئ [چه په هغې کښې دومره اوبه نه وي چه ډوبيدو خطره پکښې وي ځکه چه داهم دقتل يوصورت دی البته چه دکلی اولاری نه ډير لری هم نه وي] چه څوك په لاره تلونکی مسافرئی وباسی که تاسو [داکار] کول غواړئ [نو داسی وکړی.

﴿قَالُوا يَا أَبَانَا مَا لَكَ لَا تَأْمَنَّا عَلَىٰ يُوسُفَ وَإِنَّا لَهُ لَنَاصِحُونَ ۞ أَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ په دی دتولو موافقه وشوه او تولو [يوځای پلارته] وويل چه پلاره ددی څه وجه ده چه ديوسف [عليه السلام] په باره کښې ته په مونږ اعتبار نه کوی [چه چرته ئی زمونږ سره نه ليږی] اسره ددی چه مونږ دده [په زړه سره] خير خواه يو [داسی ندی پکار بلکه] ته سبا دی ځمونږ سره [ځنګل ته] وليږه چه لږ خوراك وکړی لوبی وکړی او مونږ به دده پوره حفاظت کوو.

﴿قَالَ إِنِّي لَيَحْزُنُنِي أَن تَذْهَبُوا بِهِ وَأَخَافُ أَن يَأْكُلَهُ الذِّئْبُ وَأَنتُمْ عَنْهُ غَافِلُونَ ۞ قَالُوا لَئِنْ أَكَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّا إِذًا لَّخَاسِرُونَ﴾ يعقوب [عليه السلام] او فرمائل چه [ستاسو سره په ليږلو کښې ماته دوه شيان مانع دي يو غم او بل ويره غم خو دا چه] مالره داخبره په غم کښې اچوي چه دی به تاسو زمانه [ځما دخوانه] بوځئ او [ويره دا چه] ځماسره داخطره ده چه دی به چرته شرمخ وخوري او تاسو به [په خپلو کارونو کښې] دده نه بی خبرئی [ځکه چه په دغی ځنګل کښې شرمخان ډيرو] هغوی وويل که دی شرمخ وخوړو او مونږ يو طاقتور جماعت [موجود] يو نو مونږ به بلکل تاوان کونکي يو.

﴿فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهِ وَأَجْمَعُوا أَن يَجْعَلُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ ۚ وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُم بِأَمْرِهِمْ هَٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ [غرض داخبره وشوه او د يعقوب [عليه السلام] نه ئی دی روان کړو] نو هر کله چه ئی دی [دخان سره ځنګل ته] بوتلو او [دتير قرارداد مطابق ټولو پخه اراده وکړه چه دی په يو تياره کوهی کښی واچوي [بيائی په دی خپلو تجويزونو عمل هم وکړو] او [دغه وخت يوسف [عليه السلام] ته دتسلی لپاره] مونږ ده ته وحئ وليږله چه ته مه خفه کيږه مونږ به تا ته ددی ځای نه خلاصئ درکړولوئی مرتبې ته به دی ورسوو او يو ورځ به داسی راشي چه] ته به دی خلقوته داخبری وريادکړی اودوی به تاپه دی وجه چه په غير متوقع طورسره په شاهانه صورت کښی ووينی] پيژنی هم نه [نو چنانچه واقعه داسي وشوه چه ورونړه ئی مصرته ورسيدل او آخر کار يوسف [عليه السلام] دوی ته وريادکړل :هل علمتم مافعلتم بيوسف (۱) :ديوسف [عليه السلام] قصه خو داسی شوه].

﴿وَجَاءُوا أَبَاهُمْ عِشَاءً يَبْكُونَ ۞ قَالُوا يَا أَبَانَا إِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوسُفَ عِندَ مَتَاعِنَا فَأَكَلَهُ الذِّئْبُ ۖ وَمَا أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صَادِقِينَ﴾ او [اخوا] دغه خلق خپل پلارته دماسخوتن په وخت کښې په ژړا راغلل [او هر کله چه پلارتری دژړاتپوس وکړونو] ونی ويل چه پلاره مونږ ديو بل نه دوړاندی کيدو لپاره منډی وهلی چه څوك به مخکی شی] او يوسف [عليه السلام] مونږ [په داسی ځای کښې چه هلته دشرمخ دراتلو ګمان نه وو] دخپل سامان سره پاتی کړوپس [اتفاقاً] يو شرمخ راغی [او] هغه ئی وخوړو او ته به په مونږ يقين نه کوی اګرکه مونږ هر څومره رشتونی يو او [هر کله چه يعقوب [عليه السلام] اله راتلل نو]

﴿وَجَاءُوا عَلَىٰ قَمِيصِهِ بِدَمٍ كَذِبٍ ۚ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا ۖ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ ۖ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ﴾ ديوسف [عليه السلام] په قميص ئی ددروغووينی پوری کړی راوړو [چه دکوم ځاروی وينه ئی په قميص اچولی وه دخپلی خبری دسند لپاره ئی پيش کړو]. يعقوب [عليه السلام] [چه وليدو نو قميص

(۱) ترجمه: - هغه هم تاسو ته ياد دی څه چه تاسو يوسف عليه السلام او دهغه رونړو سره کړی وو.

بیخي خیرې نه وو، لکه چه طبراني دابن عباس(١) نه روایت کړیدی نو]اووئې فرمائل]یوسف[ ﷺ]لره شرمخ هرګزندې خورلی]بلکه تاسوپخپل زړه کښې یوه خبره جوړه کړیده پس زه به صبرکوم چه دګلې به پکښې بیخي نوم نه وي[دصبرجمیل داتفسیر چه ورسره څه دګلې حرف نه وي طبرې دمرفوع حدیث په حوالې سره بیان کړیدی]( ٢ )اوکومې خبرې چه تاسوئې جوړوئ په دې کښې دې الله تعالی مددوکړی[چه داوخت ماته په دې صبرراشي اوآئنده ستاسودروغ ښکاره شي.

﴿وَجَآءَتۡ سَيَّارَةٞ فَأَرۡسَلُواْ وَارِدَهُمۡ فَأَدۡلَىٰ دَلۡوَهُۥۖ قَالَ يَٰبُشۡرَىٰ هَٰذَا غُلَٰمٞۚ وَأَسَرُّوهُ بِضَٰعَةٗۚ وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِمَا يَعۡمَلُونَ ۝ وَشَرَوۡهُ بِثَمَنِۢ بَخۡسٖ دَرَٰهِمَ مَعۡدُودَةٖ وَكَانُواْ فِيهِ مِنَ ٱلزَّٰهِدِينَ ۝﴾ په هرحال یعقوب [ ﷺ] صبر اوکړو او کیناستو] او [د یوسف [ﷺ]قصه داسې وشوه چه اتفاقاً اخوا]یوه قافله راغله کومه چه مصر ته تلله] اوهغوی خپل کس داوبوراوړولپاره هلته کوهي ته]ولیږلواوهغه خپله بوقه ورواچوله [یوسف[ﷺ]بوقه [سولاغه] ونیوه هرکله چه بوقه بهرشوه اویوسف[ ﷺ]ئې ولیدلو نو خوشحاله شو]اووئې ویل لویه دخوشحالئ خبره ده داخوډیرښکلې هلك راووتلو[قافلې والاچه خبرشونوهغوی هم خوشحاله شول اوده لره ئې مال[دتجارت]وګرځولو[پدې خیال سره]پټ ئې کړو[چه څوك پرې دعوه ونکړي اودې مونږمصرته ورسووهلته ئې په زیات قیمت سره خرڅ کړو]اوالله تعالی ته ددوی ټول کارګزارئ معلومه وه[دیخوابه ورونه ګیرچاپیره ګرځیده اوپه کوهي کښې به ئې دیوسف[ﷺ]تماشه کوله څه خوراك به ئې ورته هم رسولو چه ددوی مقصد دا وو چه هلاك هم نشي اوڅوك راشي کوم بل کلي ته ئې بوځي اویعقوب[ﷺ]پرې خبرنشي په دغه ورځ چه دوی یوسف[ ﷺ]کوهي کښې ونه لیدو خواته ئې قافله ډیره شوې ولیده نوهلته لاړل دیوسف[ ﷺ]پته ئې ولګوله نودقافلې خلقوته ئې وویل چه خمونږغلام دې خمونږنه راتښتیدلی دی اوس ئې مونږدخان سره ساتل نه غواړو]او[داخبره ئې جوړه کړه دې ئې په ډیر کم قیمت[دقافلې والاوپه لاس]خرڅ کړویعنې دشماردڅودرهمویه بدله کښې او[وجه دا وو چه]داخلق خوددې څه قدردان دسره نه وه]چه عمده مال ئې ګڼلی وی په ډیرقیمت ئې خرڅ کړی وی بلکه مقصدخوددوی دده ددې خای نه لرې کول وو].

## معارف او مسائل

د سورت یوسف د تیرو شوو آیتونو نه په رومبی آیت کښې دا خبرداري ورکړې شوې دې چه په دې سورت کښې راتلونکې قیصه د حضرت یوسفﷺ خالص یوه قیصه مه ګڼرې بلکه په دې کښې سوال کوونکو او تحقیق کوونکو د پاره د الله تعالی د کامل قدرت لوئې نښې او هدایتونه دی.

د دې مطلب دا هم کیدې شي چه هغه یهودو د پاره په دې کښې لوئې نښې دی، کومو چه په رسول الله باندې د ازمیښت کولو د پاره دا قیصه تري پوښتلې وه، روایت داسې دې چه کله رسول اللهﷺ په مکه مکرمه کښې وو او خبر ئې مدینې منورې ته اورسیدو نو د دې خای یهودیانو خپل خو سړی په دې خاطر مکې مکرمې ته وراولیږل چه هغوی دې په رسول اللهﷺ ازمیښت اوکړی، خکه ئې دا سوال په مبهم انداز کښې داسې اوکړو چه که تاسو د الله تعالی

١) تفسیر الطبری رقم الحدیث: ١٨٨٥٢
٢) تفسیر الطبری رقم الحدیث: ١٨٨٧٢

ربښتوني پیغمبر ئې نو دا راته اوښائې چه هغه کوم یو پیغمبر وو چه یو ځوئ ئې د شام ملک نه مصر ته بوتلې شو او بابا جان ئې د هغه په غم کښې په ژړا ژړا نابینا شو.
دا واقعه یهودیانو ځکه منتخب کړې وه چه د دې عامه مشهورتیا نه وه په مکه مکرمه کښې د دې نه څوک خبر نه وو او دغه وخت په مکه مکرمه کښې څوک اهل کتاب هم نه وو چه د تورات او انجیل په حواله د دې قیصې نه څه برخه معلومه کړې شوې وې، هر کله چه دوی دا تپوس اوکړو نو په جواب کښې ئې ټول سورت یوسف نازل شو ځه د حضرت یعقوب او حضرت یوسف پوره قیصه په کښې بیان شوې ده، دا قیصه دومره په تفصیل سره نازله شوه چه په تورات او انجیل کښې ئې هم دومره تفصیل نشته ځکه د دې بیانول د رسول الله ﷺ ښکاره معجزه وه.
د دې آیت دا معنی هم کیدې شی چه که د یهودو دغې سوال پسې مخه یو نه ړې شی بیا هم په دې واقعه کښې داسې څیزونه شته دې چه د الله تعالی د کامل قدرت لوئې نخښې او تحقیق کوونکو د پاره حکمونه او مسئلې جوړیدې شی، مثلاً کوم ماشوم چه وروڼړو د هلاکت په کنده [کوهی] کښې ورګذار کړې وو، الله تعالی هغه کومو لوړو درجو ته اورسولو؟ څنګه ئې د هغه حفاظت اوکړو او خپلو خاصو بندګانو ته ئې د خپلو حکمونو د پابندئ څومره ژور رنګ وراوبخښلو؟ هغه داسې چه هر کله په ځوانئ کښې د عیش عشرت ډیره غوره موقعه ملاویږی، مګر هغه[یوسف] د الله تعالی د یرې نه د خپل نفس په خواهشاتو باندې څنګه قابو بیا مومی؟ هغوی ترې صفا او پاکیزه بهرته اوځی، او دا چه څوک نیکی او تقوی اختیار کړی، الله تعالی ورته د خپلو مخالفینو په مقابله کښې څنګه عزت ورکوی او مخالفین د هغه پښو ته څنګه راولی؟ دا ټول عبرتونه نصیحتونه او د الله تعالی د قدرت لوئې نښې دی چه هر تحقیق کوونکی او غور کوونکی ته معلومیدې شی[قرطبی و مظهری] .(۱)
د دې آیت کښې د حضرت یوسف د رونړو بیان داسې دې چه د حضرت یعقوب ټول دولس ځامن وو، په دې کښې هر یو ځوئ ئې د اولاد خاوند وو هر کله چه د یعقوب لقب اسرائیل وو ځکه د دوی د دولسو ځامنو کښې دولس واړه خاندانونه بنی اسرائیل بللې شی.
په دې دولسو ځامنو کښې لس مشران ځامن دحضرت یعقوب د رومبې بیبی حضرت لیا بنت لیان نه وو او هغه چه وفات شوه نو د هغې د خور بیبی راحیل سره ئې نکاح اوکړه، د هغې نه ئې دوه نور ځامن بنیامین او یوسف پیدا شو دا شان د حضرت یوسف ځکه رور یو اخې بنیامین وو او نور مشران لس رونړه ئې پلار ګنی وو، خو هر کله چه بنیامین ځکه رور ئې پیدا کیدو نو مور بیبی راحیل ئې هم وفات شوه دغه وخت حضرت یوسف هم ماشوم وو[قرطبی] (۲)
په دویم آیت کښې د حضرت یوسف قیصه داسې شروع کیږی چه هر کله د حضرت یوسف رونړو د خپل والد صاحب حضرت یعقوب مینه حضرت یوسف سره ډیره

۱) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة ج: ۵ص: ۱۵۳، تفسیر القرطبی سورة یوسف آیت: ۳ ج: ۹ص: ۱۲۰
۲) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة ج: ۹ص: ۱۳۰

زياته اوليدله نو په دې ئې ورسره حسد شروع کړو او دا هم کيدې شي چه د حضرت يوسف عليه السلام د خوب ليدلو نه هم خبر شوې وی او اندازه ئې لګولې وی چه يوسف عليه السلام به د لوئې شان خاوند جوړيږی څکه ئې ورسره حسد کولو ،خپل منځ کښې ئې داسې خبرې کول شروع کړل چه مونږ وينو چه والد صاحب زمونږ نه زياته مينه حضرت يوسف عليه السلام او د هغوی څکه رور بنيامين سره لری، سره د دې چه مونږ لس کسان يو او د هغوی دواړو نه مشران هم يو ،خاندانی ټول کارونه په ښه شان سره تر سره کولې شو دوی واړه دی او دغه کارونه نه شی کولې،په دې بنا د والد صاحب مينه مونږ سره زياته پکار وه،خو بيا هم هغوی عليه السلام ښکاره بې انصافی کوی،څکه يا خو يوسف عليه السلام اووژنې او يا څه لرې علاقې ته ئې اورسوې چه هلته نه بيرته نه شی راتلې او د پلار مخه مونږ ته خالی شی۔

په دې آيت کښې ئې رونړو خپل ځان د پاره﴿عُصْبَةٌ﴾لفظ استعمال کړې دې،دا لفظ په عربې ژبه کښې د پنځو کسانو نه د لسو کسانو پورې،دلې د پاره استعمالولې شی او د خپل والد صاحب په باره کښې دا وئيل چه﴿إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ﴾دې نه مطلب دينی ګمراهی څکه نه ده چه دوی به کافران شوې وو ،ولې چه پيغمبر عليه السلام ګناه نه معصوم او پاک وی،اګر چه د ضلال لغوی معنی ګمراهی کولې شی،دلته به ئې مراد دا شی چه والد صاحب مو د خپلو ځامنو تر منځه برابری نه کوی۔

د حضرت يوسف عليه السلام د رونړو په باره کښې پخپله قرآن کريم فرمائيلې دی چه په آخر کښې هغوی د خپلې ګناه اقرار کړې وو او د والد صاحب نه يې د بخښنې ددعا خواست کړې وو ، والد صاحب دغه خواست منظور کړې وو ، دې نه ښکاره شوه چې ددغې ټولو ګناه معاف شوه، خودا په هغه صورت کښې کيدې شی چې دوئ مسلمانان ثابت شی . ګنی د کافر په حق کښې د بخښنې دعا کول جائز نه دی . پدې وجه د علماء په دې کښې هيڅ اختلاف نشته دې چې هغوئ مسلمانان وو مګر په دې کښې اختلاف ضرور شته دې چې هغوئ پيغمبران هم وو که نه ؟

په دريم آيت مبارك کښې د دوئ ترمينځه د مشورې کولو داسې بيان دې چې څينو په کښې د يوسف عليه السلام دوژلو مشوره ورکړه ، چا په کښې دا مشوره ورکړه چې په يو ژور کوهی کښې يې وراوغورزوئ چې هډو کار يې ختم شی ، او د والدصاحب توله مخه مونږ ته شی او ددې ګناه نه دځان خلاصولو دپاره يې د توبې اوښکلو او نيك کيدلو تجويز وراندې کړو ، لکه قرآن پاك کښې فرمائی چې : [وَتَكُونُوا مِنْ بَعْدِهِ قَوْمًا صَالِحِينَ] ددې بله معنی دا هم کيدې شی چې د يوسف عليه السلام د ژولو نه پس به ستاسو حالات درست شی ، ولې چې د والد صاحب د توجه دا مرکز به ختم شی يا دا چې د وژلو نه پس به والد صاحب ته عذر معذرت اوکړئی او بيا به بالکل صحيح شی .

دا دليل دې د دې خبرې چې د يوسف عليه السلام دا رونړا پيغمبران نه وو څکه چې هغوی په دې واقعه کښې ډير لوئې لوئې ګناهونه اوکړل ، د ګناه نه د پاك بنده دوژلو اراده يې اوکړه ، د باباجی نافرمانی يې اوکره ، زيات خفګان يې وراورسولو ، لوظ يې مات کړو ، اوبيا د دروغو منصوبه وغيره يې جوړې کړې ، د جمهورو علماء کرامو د عقيدې مطابق د پيغمبرانو عليهم السلام څخه د نبوت څخه وراندې هم داسې ګناهونه نشی کيدې .

څلورم آيت مبارك كښې راغلى دى چې هم په دغې رونړو كښې يو كس چې دغه خبرې يې واورېدې نو وې وئيل چې يوسف ﷺ مه وژنئ او كه خامخا ورسره څه كول غواړئ نو دداسې ځائې په يو كوهى كښې ئې اوغورزوئى چرته چې هغه ژوندې پاتې كيدې نشى ، لاروى خلق به يې دغې كوهى څخه راوُباسى ، دغه شان به ستاسو مقصد هم پوره شي او ددوئ ﷺ د بوتلو دپاره به چرې لرې ځائې ته ستاسو تلل هم رانشى ، همدغه په لاره تلونكې قافله به يې چرته لرې ځائې ته بوځي .

دا رائې د ټولو څخه مشر رور يهودا وركړې وه ، په څينې روايتونو كښې راغلى دى چې د ټولو مشر رور يې روبيل وو او دا رائې هم هغه وركړې وه . دا يې هغه رور وو چې كله په مصر كښې بنيامين ايسار كړې شو نو ده وئيلى وو چې خپل باباجى سره مخ نشم لګولې ، زه كنعان ته واپس نه ځم .

په آيت مبارك كښې د [غَيٰبَتِ الْجُبِّ] لفظ راغلې دې . [غَيٰبَة] هر هغه څيز ته وئيلې شي چې په ټولو سره غائب كړيشى، په دې وجه قبر ته هم [غَيٰبَة] وئيلې كيږى، او [الْجُبِّ] داسې كوهى ته وئيلې شي چې غاړې يې جوړې نه وى او سر پوښ نه وى .

[يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّيَّارَةِ]: د التقاط لفظ دلقطه څخه جوړ دې ، معنى داده چې هغه پريوتې يا غورزار شوې څيز چې بغير د لټون څخه چا ته په لاس ورشى. داسې څيز كه سادار نه وى نو لقطه ورته وئيلې شى ، او كه سادار وى نو د فقهاء كرامو په اصطلاح كښې ورته لقيط وئيلې كيږى ، خو انسان ته په هغه صورت كښې لقيط وئيلې شي چې هغه ماشوم وى او عاقل او بالغ نه وى .

قرطبى هم ددې لفظ څخه دليل نيولې دې چې يوسف ﷺ په كوهى كښې د ګذارولو په وخت نابالغه ماشوم وو څنګه چې د يعقوب ﷺ ددې فرمائيلو نه هم دهغوئ ﷺ ماشوم كيدل معلوميږى چې زه ويريږم چې هسې نه شرمخ يې اوخورى ، ولې چې شرمخان اكثر ماشومان خورى(۱) ، دابن حجر ، ابن المنذر او ابن ابى شيبه په روايت كښې راغلى دى چې دغه وخت د يوسف ﷺ عمر اووۀ كاله وو [مظهرى](۲)

امام قرطبى دلته د لقطه لفظونو د شرعى احكامو تفصيل وركړې دې چې دلته يې بيانول نشى كيدې ، البته په دې باره كښې دا اصولى خبره ياده لرل ښكار دى چې په اسلامى نظام كښې د عامو خلقو د ځان اومال د حفاظت د لارو او سړكونو دصفايئ وغيره انتظام كول يواځې د حكومت د محكمو ذمه وارى نه ده بلكه دا ذمه وارى د هر چا ده ، په لارو او سړكونو باندې په اودريدو يا پرې د څه سامان ايښودو په وجه د لارو دپاره تنګى پيدا كولو باندې په حديث پاك كښې سخت وعيد راغلى دې.فرمائى چې څوك د مسلمانانو لار تنګه كړى نودهغه جهاد مقبول نه دې ، دغه شان كه په لاره كښې داسې يو څيز پروت وى چې نورو خلقو ته ترې د تكليف رسيدلو خطره وى لكه ازغې يا ماتې شيشې ، كانړى وغيره شول نود لارې څخه يې د لرې كول يواځې د ميونسپل بورډ ذمه وارى نه ده بلكه هر مسلمان دپاره ددې ذمه دار جوړيدو شوق كول ښكار دى،او داسې خلقو دپاره د لوئې اجر او ثواب وعده كړې شوې ده .

۱) تفسير القرطبى تحت هذه الآية ج ۹،ص ۱۳۴،
۲) تفسير المظهرى تحت هذه الآية ج ۵،ص ۱۴۷،

ددې اصولو په وجه ورك شوې څيز چې څوك بيا مومي نو د موندونكي شرعي ذمه واري يواځې دا نه ده چې غلا كوي به يې نه ، بلكه ذمه واري يې دا هم ده چې دا به تر هغې پورې سنبال ساتي چې دا ګمان كولې شي چې مالك به ئې لټون كوي ، كه چا ورته ددغه څيز نخښې صحيح بيان كړې او ددهٔ تسلي پرې اوشوه او مطمئن شو نو هغه ته دې دغه مال وركړي ، كه سره د اعلان او لټون د مالك معلومات اونشو او دمال د حيثيت مطابق ورته دا اندازه اوشي چې مالك بهٔ يې لټون نه كوي ، نو غريب او مسكين موندونكي دغه څيز پخپله استعمالولې شي. ګني په غريبانانو مسكينانو دې خيرات كړي. په دې دواړو صورتونو كښې به دا د اصل مالك د طرفه صدقه او خيرات ګڼړلې شي. او ثواب به يې هم هغه ته ملاويږي ګويا كه دا په آسماني بيت المال كښې دهغه په نوم جمع كړې شو.

دا د عام خدمت او د يو بل د اصولو څخه هغه اصول دي چې ذمه واري يې د قوم په هر يو كس باندې ايښودې شوې او راوستې شوې ده افسوس چې مسلمان د خپل دين څخه خبر شي او په دې عمل اوكړي نو د دنيا سترګې به اوغړيږي چې ددنيا لوې لوې محكمې د كروړونو روپو په خرچ كولو سره كوم كار سر ته نشي رسولې هغه په آسانه په څه شان سره پوره كولې شي.

په پنځم او شپږم آيت مبارك كښې دا راغلي دي چې دغې رونړو يې خپل باباجي ﷺ ته اووئيل چې تاسو ولې د يوسف ﷺ په باره كښې په مونږ باندې اعتماد نه كوئ ، حالانكه مونږ دهغوئ ﷺ پوره پوره خيرخواهان او ورسره همدردي كوونكي يو. مونږ سره يې سيل او تفريح دپاره اوليږئ چې آزادۍ سره خوراك څكاك او لوبې اوكړې شي او مونږ ټول به يې ډير زيات خيال ساتو.

دهغوئ ددې خواست څخه معلوميږي چې داسې خواست يې باباجي ته اول هم كړې وو چې باباجي يې نه وو منلو ، په دې وجه يې دا ځل زيات زور دې دپاره اولګولو چې د باباجي راباندې اعتماد پيدا شي او مونږ سره يې پريږدي.

په دې آيت مبارك كښې په آزادۍ سره د خوراك څكاك او تفريح كولو اجازت غوښتلې شوې دې چې يوسف ﷺ پرې څه بده نه وه ګڼړلې بلكه د يوسف ﷺ په ليږلو كښې يې زړه وهلو چې بيان يې په راتلونكي آيت كښې راروان دې ، دې څخه معلومه شوه چې تفريح او سيل او لوبې كول په جائزو طريقو او حدودو كښې روا او مباح دي ، په صحيح احاديثو كښې هم د دې جواز معلوميږي خو شرط دادې چې په دې لوبو او سيل كښې دشرعي حدودو خيال اوساتلې شي ، اوڅه ناجائزه كار په كښې اونكړې شي اقرطبي وغيره[1]

ديوسف ﷺ د رونړو ددې خواست په جواب كښې يعقوب ﷺ اوفرمائيل چې زه يې درسره د ليږلو اجازت څكه نشم دركولې چې دا مې د سترګو تور دې ، دوئ ﷺ نه بغير راته آرام نه راځي. بلكه دا چې هسې نه چې ستاسو د بې پرواهۍ په وجه يې شرمخ اوخوري.

د شرمخانو خوړلو خطره يعقوب ﷺ د دؤ وجو څخه بيان اوفرمائيله ، يو ددې وجې چې په كنعان كښې شرمخان ډير وو او بل ددې وجې چې يعقوب ﷺ په خوب كښې دا ليدلي وو چې هغوئ ﷺ د غرهٔ په سر باندې دي او يوسف ﷺ د غرهٔ په لمنه كښې وو چې ناګهانه پرې لسو

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۹ص:۱۳۹

شرمخانو حمله اوکړه ، یو شرمخ ورته رانژدې شو او هغوئ ﷺ یې ترې خلاص کړل ، او بیا یوسف ﷺ په زمکه دننه پټ شو.
ددې تعبیر په آخره کښې دا ښکاره شو چې دا لس شرمخان د هغوئ ﷺ لس رونړه وو ، په خوا کښې خلاصوونکی یې مشر ورور وو چې نوم یې یهودا وو ، او په زمکه کښې پټیدل یې په کوهی کښې ورګذارول وو.
دحضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما څخه په یو روایت کښې منقول دی چې ددې خوب په لیدو سره یعقوب ﷺ دغه رونړه شرمخان بللی اوګڼړلی وو ، خو د حکمت په بنیاد یې پوره خبره نه وه ښکاره کړې [قرطبی].(۱)
یعقوب ﷺ ددې خبرې آوریدو سره د یوسف ﷺ دغه رونړو اووئیل چې ستاسو ﷺ دا ویره او فکر عجیبه څکه دې چې مونږ د لسو کسانو یو مضبوطه ډله ددوئ ﷺ د حفاظت دپاره موجود یو ، بیا که دوئ ﷺ زمونږ څخه شرمخ اوخوړو نو مونږ به ډیر بې کاره یو چې دبل هیڅ کار امید به راڅخه نشی کولې.
یعقوب ﷺ دخپل پیغمبرانه شان په وجه خپلو څامنو ته دا خبره څکه ښکاره نه کړه چې دهغوئ زړه ماتول یې نه غوښتل ، بلکه دا چې دې سره به دهغوئ دښمنی نوره هم زیاته شوې وه ، که دغه وخت یې پریږدی نو بل وخت به یې خامخا په څخه بهانه اووژنی ، څکه یې ورته اجازت ورکړو خو د رونړو څخه یې ښه پوره لوظ ، قول واغستو چې دوئ ﷺ ته به هیڅ تکلیف نه ورکوی او مشر ورور روبیل یا یهودا ته یې په خصوصیت سره داسې اووئیل چې ته به یې لوږې تندې او د نورو ضرورتونو خیال ساتې او زر به یې ماته واپس راولې د. رونړوې یې د یعقوب ﷺ په مخکښې په خپلو اوګو باندې سور کړو او نمبر په نمبر یې پخپلو اوګو اوړلو. څه خایه پورې یعقوب ﷺ دهغوئ د رخصتولو دپاره ورسره لاړل.
قرطبی د تاریخی روایاتو په حواله بیان کړی دی چې کله دا خلق د یعقوب ﷺ دسترګو څخه پناه شول نو هغه رور یوسف ﷺ د اوګو څخه په زمکه راګذار کړو. یوسف ﷺ پیاده رورسره روان شو خو ماشوم وو دهغوئ پښان مزل یې نشو کولې ، د یو رور پناه یې واخسته هغه ورسره هیڅ همدردی اونه کړه ، په نمبر نمبر یې د هر یو رور پناه اخستله خو هیچا ورسره همدردی نه کوله او ورته یې اووئیل چې په خوب کښې دې کوم یوولس ستوری ، سپوږمی او نمر څان ته په سجده کولو لیدلی دی هغوئ ته دې اووایه چې مدد دې اوکړی. قرطبی رحمه الله فرمائی چې رونړو ته یې دخوب حال څه شان سره معلوم شوې وو څکه یې په دوئ ﷺ باندې غصې کولې.(۲)
په آخر کښې یوسف ﷺ یهودا نومې مشر رور ته اووئیل چې ته مشر یې په ماباندې د کمزورۍ ماشومتوب او د باباجی ﷺ په بوډا توب او حال باندې رحم اوکړه ، خپل باباجی سره کړې وعده رایاده کړه ، ولې چې دې هغه وعده دومره زر هیره کړه ؟

۱) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة ج۹،ص۱۴۰
۲) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة ج۹،ص۱۴۱، ۱۴۲

Scanned with Ca

ددې په آوريدو سره پرې د يهودا زړه اوسوزېدو ، ورته ئې اوويل چې تر څور پورې زه ژوندې يم دا رونړه به درته هيڅ تكليف نشي دركولې .

پدې شان هغه خپلو رونړو ته مخ واړوړلو او ورته يې اوويل چې د يو بې ګناه بنده وژل سخت جرم دې ، دالله تعالى څخه ويرېږئ او دا ماشوم خپل باباجى ﷺ ته واپس اورسوى ، البته دوئ ﷺ څخه دا لوظ واخلئ چې باباجى ﷺ ته به ستاسو باره كښې هيڅ نه وائى .

رونړو ورته اوويل چې مونږ ستا په مطلب پوهه يو ، خپل باباجى ﷺ ته خان ښه كول غواړې ، خو واوره كه مونږ سره دې په دې باره كښې كار اولړلو نو ستا هم خير نشته دې . تا به هم قتل كړو ، يهودا په يواځې خان د خپلو نهو رونړو مقابله نشوه كولې ، څكه يې ورته اوويل چې ښه ده دا ماشوم كه هلاكول غواړې نو داسې چل اوكړئ چې دلته يو زوړ او شاړ كوهې دې ، څه ډير وني بوټى په كښې راختلى دى ، ماران ، لړمانان او قسماقسم ضررى څيزونه په كښې شته دې . تاسو دا ماشوم پـه هغـې كوهى كښې اوغورزوئ . دې د مار ، لړم او نورو زهريلا څيزونو په چيچلو به پخپله مړ شى . نو د غمه به خلاص شئ او ستاسو په غاړه به يې خون هم نه وى . كه بيا هم په كوهى كښې ژوندې پاتې شى نو كيدې يوه قافله راشى او دې كوهى ته د اوبو راويستلو دپاره بوقه وربښكته كړى نو دې به په كښې راؤباسى . نو بل ملك ته به يې بوځى . او تاسو به ترې خلاص كړى .

په دې باندې ټول رونړه متفق شو څنګه چې په دريم آيت مبارك كښې داسې فرمائى چې : [فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهِ وَأَجْمَعُوا أَنْ يَجْعَلُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِأَمْرِهِمْ هَٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۝] [كله چې دغې رونړو هغوئ ﷺ لره څنګل ته بوتلو او په دې باندې د ټولو اتفاق راغلو چې هغوئ ﷺ لره په ژور كوهى كښې وراوغورزوى نو الله تعالى يوسف ﷺ لره د وحى په ذريعه خبر وركړو چې داسې يوه ورځ به راشى چې دخپلو رونړو مخه به دې كار ته راګرځوې ، او هغوئ به هيڅ نه پوهيږى ]

دلته لفظ د [وَأَوْحَيْنَا] د [فَلَمَّا ذَهَبُوا] جزاء او جواب دې ، دلتـه واؤ زيات دې .[قرطبى].[1] مطلب دادې چې ټولو رونړو په جمع باندې هغوئ ﷺ لره په كوهى كښې د غورځولو قصد اوكړو نو الله تعالى د يوسف ﷺ د تسلئ دپاره وحى اوليږله چې په راتلونكې زمانه كښې ورته رونړو سره د ملاقات او ددې خبرې زيرې وركړې شو چې دغه وخت به دوئ خپلو رونړو ته محتاج نه وى او په هغوئ به سر بالا وى ، ددې زور زياتئ يادګيرنه به ورته كوى خو هغوئ به ددې ټول هيڅ څخه خبر نه وى .

امام قرطبى رحمه الله فرمائيلى دى چې ددې دوه صورتونه كيدې شى ، يو دا چې په كوهى كښې د غورزولو څخه وروستو ددې زيرى دپاره راليږلې شوى وى چې دې كوهى څخه به تاسو صحيح سلامت خلاصې بيا مومئ . بله دا چې په كوهى كښې د غورزولو څخه مخكښې يوسف ﷺ لره د راتلونكو واقعاتو څخه د وحى په ذريعه خبر كړې شوى وى ، او هغې په بيان كښې ورته دا زيرې وركړې شوې وى چې تاسو به دغلته د هلاكيد و څخه سلامت پاتې كيږئ .

[1] تفسير القرطبى تحت هذه الآية ج:۹ص:۱۴۲

تاسو ﷺ ته به داسې موقع په ګوتو درشي چې رونړو ته به زورنه ورکوئ ، او هغوئ به تاسو لره بالكل نه پيژني چې دا زمونږ رور يوسف ﷺ دې .(۱)

دا د پيغمبرئي وحی نه وه ځکه چې يوسف ﷺ دغه وخت کښې لا ماشوم وو ، ځنګه چې د موسی ﷺ مور بی بی ته شوې وه ، يوسف ﷺ ته د پيغمبرئ وحی راتلل هغه وخت شروع شو چې هغوئ ﷺ مصر ته رسيدلی وو ، او خوان شوی وو لکه قرآن پاك فرمائي چې : [وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا] البته ابن جرير رحمه الله ، ابن ابی حاتم رحمه الله وغيره په استثنائي ډول دې لره د پيغمبرئي وحی ګرځولې او منلې ده . ځنګه چې عيسی ﷺ ته په ماشوموالی کښې پيغمبری ورکړې شوې وه [مظهری](۲)

عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمائيلی دی چې مصر ته په رسيدو سره الله تعالی يوسف ﷺ لره دې څخه منع کړې وو چې د خپل کور خلق د خپلو حالاتو څخه خبر کړی ، [قرطبی]

هم دغه وجه وه چې يوسف ﷺ د جيل څخه د خپلو خلاصدو او د مصر د حکومت ملاويدو څخه وروستو څه داسې صورتونه نه وو اوښکلی چې د خپل بوډا او کمزوری باباجی ﷺ تسلی يې په دې کړې وې چې هغوئ ﷺ صحيح سلامت دی.

د الله تعالی په حکمتونو څوك پوهيدې شی کوم چې په دې خبره کښې پټ وو ، کيدې شی چې په دې کښې يو حکمت دا هم وی چې يعقوب ﷺ لره د غير الله يعنی يوسف ﷺ په زيات محبت کولو سره خبردارې ورکړې شی اودا حکمت يې هم کيدې شی چې د يوسف ﷺ په مخکښې د هغوئ رونړه د محتاجو په صورت کښې پيش کړې شی ، اوداشان هغوئ ته هم يو قسم سزا ورکول مقصود وی.

امام قرطبی رحمه الله وغيره مفسرينو په کوهی کښې د يوسف ﷺ د غورزولو قيصه داسې بيان کړې ده چې کله يې هغوئ ﷺ په کوهی کښې اوغورزول نو دکوهی غاړې ته يې لاس واچولو ، رونړو يې د هغوئ ﷺ قميص اوويستلو په هغې يې ورله لاسونه اوتړل ، دغه وخت بيا يوسف ﷺ خپلو رونړو ته د رحم درخواست اوکړو ، خو هم هغه جواب يې ورکړو چې هغه يوولس ستوری راؤبله کومو چې درته سجده کوله چې هغه دې مدد اوکړی ، بيا يې په يوه بوقه کښې کينولو چې نيمې پورې اورسيده نو رسی يې پريکړه ، الله تعالی د يوسف ﷺ حفاظت اوکړو په کوهی کښې د روغورزيدو په وجه هيڅ زخم پرې رانغلو ، دغه ځای کښې لوی ګټ په راووتو سره ښکاره شو ، په هغې باندې صحيح سلامت کيښناستل ، په څينو روايتونو کښې راغلی دی چې جبرائيل ﷺ ته حکم اوشو چې په دغې ګټ يې کينوه.

يوسف ﷺ درې ورځې په دغې کوهی کښې وو ، يهودا رور به يې ورته د نورو رونړو څخه پټ د خوراك څکاك څيزونه دبوقې په ذريعه ورکول.(۳)

[وَجَآءُوٓ أَبَاهُمْ عِشَآءً يَبْكُونَ] دماسختن په وخت دغه رونړه ژړيدلی خپل باباجی ﷺ ته راغلل ، يعقوب ﷺ د دوئ د ژړا په آواز پسې بهر راووتل وې فرمائيل چې ستاسو د ګډو ، چيلو په رمه څه خيرونکی حمله کړې ده ، او يوسف ﷺ چرته دې ؟ هغوئ اووئيل چې :

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۹ص: ۱۴۳
(۲) تفسير المظهری تحت هذه الآية ج: ۵ص: ۱۴۷
(۳) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۹ص: ۱۴۳

Scanned with CamScanner

[قَالُوۡا يٰۤاَبَانَاۤ اِنَّا ذَهَبۡنَا نَسۡتَبِقُ وَتَرَكۡنَا يُوۡسُفَ عِنۡدَ مَتَاعِنَا فَاَكَلَهُ الذِّئۡبُ‌ ۚ وَمَاۤ اَنۡتَ بِمُؤۡمِنٍ لَّنَا وَلَوۡ كُنَّا صٰدِقِيۡنَ‏] مونږ په خپل مينځ کښې دمنډو مقابله کوله او يوسف علیه السلام مو خپل سامان سره پريښودو ، په دې کښې يوسف علیه السلام له يو شرمخ اوخوړو ، او که مونږ هر څومره رښتونی يو په مونږ به دې يقين اونشي.

ابن عربي رحمه الله په احکام القرآن کښې فرمائيلې دي چې د منډې مقابله کول په شريعت کښې روا او ښه خوئي دې چې په جنګ او جهاد کښې په کار راځي ، نو داسې دمنډو مقابله کول پخپله درسول کريم ﷺ څخه په صحيح احاديثو کښې ثابته ده ، اود اسونو د زغلولو مقابله تري هم ثابته ده ،([1]) دغه شان سلمه بن اکوع رضي الله عنه يو سړی سره د منډې مقابله کړې وه نو سلمه رضي الله عنه غالب شوې وو.([2])

ددې آيت مبارك اود بيان شوؤ روايتونو څخه د اسونو منډه رواکيدل ثابت دي او د اسونو منډه وهلو څخه علاوه پخپله منډه د غشي ويشتو په نخښې وغيره کښې هم خپل مينځ کښې مقابله کول روا دي ، او په دې کښې په غالب راتلو باندې انعام ورکول هم جائز دي خو په ګټلو بائيلو باندې دشرط په ډول څه قسم تړل جواری ده چې قرآن پاك ورته حرم وئيلی دی ، نن صبا د اسونو منډه ټول صورتونه په جوارئي کښې راځي څکه ټول حرام دي.

په تيرؤ شوؤ آيتونو کښې دابيان اوشو چې د يوسف علیه السلام ټول رونړه په دې صلاح شو چې په يو شاړ کوهي کښې ئې وراوغورزوؤ ، په هغې يې عمل اوکړو او کور ته چې راؤرسيدل نو باباجی علیه السلام ته يې اووئيل چې هغوئ علیه السلام له شرمخ خوړلې دې ، اوس په دې آيتونو مبارکو کښې نوره قيصه داسې بيانوی چې:

[وَجَآءُوۡ عَلٰى قَمِيۡصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ‌ ؕ] [اودهغه په قميص باندې ئې د دروغو وينه لګولې راوړه] چې د باباجی علیه السلام يې په دې يقين راشي چې يوسف علیه السلام واقعي شرمخ خوړلې دې ، خو هرکله چې الله تعالى د هغوئ دروغ ښکاره کول غوښتل نو دهغوئ د ذهن څخه يې دا خبره بالکل اوښکله چې په قميص باندې يې د وينو پورې کولو سره ئې هغه څيرې کړې هم وې ، د هغې په ليدو سره يعقوب علیه السلام اوفرمائيل چې اې زما ځامنو ادغه شرمخ څومره اوښيار او عقل مند وو چې يوسف علیه السلام يې اوخوړو او قميص يې لږ هم څيرې نه کړو . دغه وجه وه چې يعقوب علیه السلام ته د هغوئ دروغ ښکاره شو او وې فرمائيل چې:

[قَالَ بَلۡ سَوَّلَتۡ لَـكُمۡ اَنۡفُسُكُمۡ اَمۡرًا‌ ؕ فَصَبۡرٌ جَمِيۡلٌ‌ ؕ وَاللّٰهُ الۡمُسۡتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوۡنَ‏] [حضرت يعقوب علیه السلام ورته اووئيل چې نه بلکه داتاسو د ځانه يوه خبره جوړه کړې ده نوصبر ډير ښهٔ دې [اوتاسو چې څه وائې نو الله دې په هغې کښې زما مدداوکړی ]

**مسئله**: يعقوب علیه السلام چې د يوسف علیه السلام قميص صحيح سالم اوليدو نو دليل يې پرې اونيولو چې دروغ وائی ، دې څخه معلومه شوه چې قاضی اوحاکم دې د فريقينو ددعوې او دليلونو سره په حالاتو او قرينوهم نظرلری [قرطبی]([3])

ماوردی رحمه الله وئيلی دي چې ديوسف علیه السلام قميص هم د زمانې په عجائباتو کښې څکه حسابيږی چې دې سره درې عظيم الشان انعامات تړلې شوی دی.

---

[1]) احکام القرآن للابن العربي سورة يوسف.....الخ ج: ۵ ص: ۲۵
[2]) صحيح مسلم كتاب الجهاد باب غزوة ذی قرد وغيرها ج: ۲ ص: ۱۱۵
[3]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج: ۹ ص: ۱۵۰

اوله واقعه داده چې په وينو رنګ بنګ قميص سره يې خپل باباجي ﷺ دهوکه کړو چې هم دغه د هغوئ د ردوغو کيدو ګواهي ثابته شوه.
بله واقعه داده چې زليخې بی بی سره چې کومه واقعه پيښنه شوې وه هغه کښې هم د يوسف ﷺ قميص په ګواهی کښې پيش کړې شوې دې.
دريمه واقعه د يعقوب ﷺ د بينايئ د واپس راتلو ده چې په هغې کښې هم د يوسف ﷺ قميص سره معجزه ثابته شوه.
**مسئله** :: ځينو علماء کرامو فرمائيلی دی چې :[قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا] ، يعقوب ﷺ دوه ځل خپلو ځامنو ته فرمائيلی دی . يو ځل يې په هغه موقعه چې د يوسف ﷺ قميص يې ورته په وينو رنګ بنګ راوړلو ، او بل ځل په هغه موقعه چې په مصر کښې د يوسف ﷺ خپل ځکه رور بنيامين په غلا دې خبر کړو ، هرکله چې يعقوب ﷺ دواړه ځل دا خبره په خپلې رايې سره کړې وه په رومبی ځل صحيح او په دويم ځل غلطه ثابته شوه ، دې ځخه معلومه شوه چې په ابتداء کښې غلطی د پيغمبر ﷺ ځخه هم کيديشی خود وحی الهی په ذريعه يې دغه غلطی لرې کولې شی.
داشان په قرطبی(¹) کښې راغلی دی چې دې ځخه ثابته شوه چې غلطی ډيرو لويو خلقو ځخه هم کيدې شی ځکه د رائې خاوندانو له پکار دی چې خپله رائې دې آخری نه ګڼړی په هغې کښې دې داسې نه کلکيږی چې د نورو خبرو آوريدو ته نه تياريږی.
[وَجَاءَتْ سَيَّارَةٌ فَأَرْسَلُوا وَارِدَهُمْ فَأَدْلَىٰ دَلْوَهُ] د [سَيَّارَةٌ] معنی قافله ده ، [وَارِدَ] هغه چاته وئيلې شی چې د قافلې ځخه وړاندې منزل مقصود ته ځان رسوی . قافلې دپاره دضروورياتو ، اوبو وغيره انتظام برابر وی، ادلاپه کوهی کښې بوقې ښکته کولوته وئيلې شی.
مطلب دا شو چې ناګهانه يوه قافله دغه زمکې ته راؤرسيده ، تفسير قرطبی ليکلی دی چې دا قافله د شام نه مصر ته روانه وه ، لاره ترې خطا شوې وه ، او غير آباد ځنګل ته اورسيده ، او اوبه راؤرنکی يې دغه کوهی ته اوليږل.(²)
دخلقو په نظر کښې خو دا يوه ناګهانی واقعه ښکاری چې قافلې لار غلطه کړې وه او دغه ځاې ته راؤرسيدل ، او په دغه شاړ کوهی يې ورپيښه اوشوه ، ليکن د کائناتو په راز پوهيدونکی په دې خبره پوهيږی چې دا ټول واقعات د يو ترلی اومضبوط نظام زنځير کړی دی ، د يوسف ﷺ پيدا کيدونکی او حفاظت کونکی دغه قافله د سمې لارې ځخه راواړوله او دهغې خلق يې دغه کوهی ته وراوليږل. هم دا حال د هغه واقعاتو او راپيښنو دې چې عام انسانان يې ناګهانه راپيښنې ګڼړی او فلسفيان ورته بخت او اتفاق وايی ، چې په حقيقت کښې د کائناتو د نظام ځخه د ناواقف کيدو نتيجه وی ګنی د تکوين په سلسله کښې ناڅاپی حالت نشته دې.
د [فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ](³) شان خاوند الله تعالی د پټو حکمتونو لاندې داسې حالات پيدا کوی چې د ظاهری واقعاتو ځخه ددې ترون سره ځوك نه پوهيږی ، ځکه ورته انسان ناګهانی واقعات وائی.

¹) تفسير القرطبی ، ج:۹،ص:۱۵۲
²) تفسير القرطبی ، ج:۹،ص:۱۵۲
³) ترجمه: ستا رب چې څه غواړی نو هغه په پوره طريقې سره کوی.

بهرحال ددغې قافلې یو سړي دغې کوهی ته راغلو چې نوم یې مالك بن دعبر وو ، په هغې کښې یې بوقه ورښکته کړه یوسف ﷺ د قدرت د امداد ننداره اوکړه ددغې بوقې رسئ یې اونیوه او د اوبو په ځایې په بوقه کښې داسې ښکلې څهره ښکاره شوه چې بناتست او ښکلا کښې یې ثانی نه وه ،

که په راروان ژوند کښې چې کومه مرتبه او عظمت هغوی ته ملاویدونکې وو که هغې څخه نظر هم اړولې شوې وو په هغه وخت کښې چې هم د هغوی د حسن او جمال اود معنوی کمالاتو ځلنده نښې د هغوی د عظمت دپاره څه کمې نه وې چې دا ښکلې ماشوم یې اولیدو نو دخوشحالئ څخه یې بې اختیاره چغه کړه: [قَالَ يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ] [نونعرې ئې کړې چې اتې [ملګرو] زیرې مې درباندې [داخو په کښې هلک راووتو] د صحیح مسلم په حواله د معراج په یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې : په معراج کښې مې یوسف ﷺ سره ملاقات اوشو او ما اولیدو چې الله تعالی د ټولې دنیا نیم حسن او نیمه ښکلا یوازې یوسف ﷺ ته ورکړې ده ،([1]) او پاتې نیمه ښکلا یې د ټولې دنیا په خلقو کښې ویشلې ده .

[وَاَسَرُّوْهُ بِضَاعَةً] [اوهغوئ د تجارت په خیال پټ کړو] مطلب دادې چې اول مالك بن دعبر د یوسف ﷺ په لیدلو چغه اووهله ، بیا په معاملې باندې د غور کولو څخه وروستو یې خان سره دا فیصله اوکړه چې ددې خبرې خورول څکه پکار نه دی چې ددوئ ﷺ په خرڅولو به ډیر رقم حاصل شی ، که د قافلې نور خلق راباندې خبر شی نو په هغې کښې به راسره ټول خان شریك حسابوی .

بل مطلب یې دا هم کیدې شی چې د یوسف ﷺ رونړو د واقعې حقیقت پټ کړو او هغوئ ﷺ یې د تجارت مال جوړ کړو لکه چې په څینې روایتونو کښې راغلی دی چې یهودا به هره ورځ یوسف ﷺ ته په کوهی کښې خوراك څکاك ورکولو ، په دریمه ورځ یې چې هغوئ په کوهی کښې بیا او نه لیدل نو رونړو ته راغلل او حال یې ورته بیان کړو ، دا ټول رونړه ټول هلته لاړل ، لټون یې اوکړو ، دقافلې خلقو سره یې اولیدو ، هغوئ ته یې اووئیل چې دا هلك زمونږ غلام دې، مونږ څخه راتښتیدلې دې اودلته یې خان پټ کړې دې ، تاسو چې دې پخپله قبضه کښې اخستې دې نو دا مو ډیر بد کړی دی. مالك بن دعبر او ددوئ ملګری اوویریدل چې مونږ په غلو کښې شمیر نه شو ، څکه یې په بیعه باندې ترې د اخستو خبرې اترې ورسره شروع کړې .

په دې باندې د آیت معنی دا شوه چې یوسف ﷺ رونړو پخپله یوسف ﷺ لره د تجارت مال جوړ کړو او خرڅ یې کړو. [وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ] [او الله دهغوئ په ټولو کارونو ښۀ واقف وو]

مطلب دادې چې الله تعالی ته داټول هر څه معلوم وو چې د یوسف ﷺ رونړه به څه کوی ، په بیعه اخستونکې قافله به څه کوی ، الله تعالی ددې ټولو منصوبو د نه چلیدو انتظام کولې شو خو د تکوینې حکمتونو په بنا یې چلیدو ته پریښودل .

ابن کثیر ﷫ فرمائیلی دی چې په دې جمله کښې رسول کریم ﷺ ته هم دا ښودل دی چې ستاسو ﷺ قوم چې تاسو ﷺ سره څه کوی یا کول یې غواړی هغه ټول زمونږ د علم اوّ قدرت څخه بهر نه دی. که مونږ اوغواړو نو ټول هر څه د سترګو په رپ کښې بدلولې شو . لیکن د

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب الاسراء الخ، ج:۱ص:۹۱

حکمت تقاضا هم داده چې دې خلقو ته دا وخت د خپل طاقت د آزميښت موقعه ورکړې شي ، په آخر کښې به پرې تاسو لره غالب کړو چې په دې سره به حق غالب شي څنګه چې يوسف علیه السلام سره اوکړې شو.(۱)

[وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍۭ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُودَةٍ ۚ] [او هغوئ په ډير لږ قيمت د شمير په يوڅو روپو خرڅ کړو ] دشراء معنی خرڅول او اخستل دواړه کيدې شي ، دلته هم د دواړو معنو احتمال داسې دې چې که ضمير د يوسف علیه السلام رونړو ته اوګرځولې شي نو معنی به ئې خرڅول وی او که د قافلې خلقو ته اوګرځولې شي نو معنی به يې د اخستلو وی. مطلب يې دا شو چې د يوسف علیه السلام رونړو خرڅ کړو يا دقافلې خلقو په ډير لږ قيمت يعنی دشمير په يو څو روپو په بدل کښې واخستو.

امام قرطبی رحمه الله فرمائيلی دی چې د عربو سوداګرانو عادت به دا وو چې د غټو رقمونو معاملې بۀ يې په تول کولې او د وړو رقمونو معاملې به يې په شمير سره کولې ، څکه دراهم سره يې د لفظ معدودة راوړلو سره دې ته اشاره اوکړه چې دغه رقم د څلويښتو درهمو څخه کم وو(۲) ، ابن کثير رحمه الله د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په روايت ليکلی دی چې دا سودا په شلو درهمو شوې وه چې لسو رونړو ته دوه دوه درهمه سرې سر رسيدلې وو ، په څينې روايتونو کښې دوه ويشت او په څينو کښې څليريشت درهمه راغلی دی [ابن کثير رحمه الله](۳)

[وَكَانُوا۟ فِيهِ مِنَ ٱلزَّٰهِدِينَ ۝] [اوهغوئ د دۀ په حق کښې هسې هم بې رغبته وو] زاهدين د زهد جمع ده، چې د زهد څخه مشتق دې ، د زهد معنی بې رغبتی او بې توجهی ده ، په محاوره کښې ددنيا مال او دولت څخه بې رغبتی او اعراض کولو دپاره استعماليږی . د آيت معنی به داشی چې په دې معامله کښې د يوسف علیه السلام رونړه په حقيقت کښې د مال خواهشمند نه وو بلکه ددوئ اصل مقصد خو ديوسف علیه السلام دباباجی علیه السلام څخه جدا کول وو څکه يې په لږو درهمو باندې معامله اوکړه.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقَالَ | ٱلَّذِى | ٱشْتَرَىٰهُ | مِن مِّصْرَ |
| او اووئيل | هغه سړی | چې اخستی ئې وو هغه | د مصر |

[اوچا چې هغه په مصر کښې واخستو انو خپلې ښځې ته ئې اووئيل اچې ددۀ ډير خيال

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِٱمْرَأَتِهِۦٓ | أَكْرِمِى | مَثْوَىٰهُ | عَسَىٰٓ | أَن يَنفَعَنَآ | أَوْ |
| ښځې خپلې ته | عزت کوه | د ميلمستيا د دۀ | کيدې شي | چې فائده اورسوی مونږ ته | يا به |

ساته اکيديشی چې زمونږ دپاره سود مند ثابت شی اياڼې په څوئی توب اونيسو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَتَّخِذَهُۥ | وَلَدًا ۚ | وَكَذَٰلِكَ | مَكَّنَّا | لِيُوسُفَ |
| اونيسو مونږه هغه لره | څوئي | او په دې طريقه | مونږخائي ورکړوا | يوسف ته |

......... [اودغه شان مونږ حضرت يوسف علیه السلام ته په دغې ملک کښې خائې ورکړو........

۱) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية ج: ۴ ص: ۳۷۶
۲) تفسير القرطبی تحت هذه الآية ج: ۹ ص: ۱۵۶
۳) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية ج: ۴ ص: ۳۷۷

Scanned with Ca

فِي الْأَرْضِ ۡ وَلِنُعَلِّمَهٗ مِنْ تَأْوِيْلِ الْأَحَادِيْثِ ؕ وَاللّٰهُ غَالِبٌ

په زمکه کښي | او دپاره ددې چې اوښايو مونږ هغه ته | تعبير بيانول د [خوب] د خبرو | او الله | غالب دي

چې مونږ دهٔ ته د خوب د خبرو تعبير اوښايو | او الله ﷻ په خپل هر کار کښي غالب دي | خو ..........

عَلٰٓى أَمْرِهٖ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ وَلَمَّا بَلَغَ

په کار خپل باندي | ليکن | زيات دخلقو نه | نه پوهيږي | اوهرکله چې | او رسيدو هغه

زيات خلق په دي نهٔ پوهيږي | ..........اوهرکله چې هغه پوخ ځوان شو نو

أَشُدَّهٗٓ اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا ؕ وَكَذٰلِكَ

قوت خپل ته | نوورکړو مونږ هغه ته | دفيصلي کولوطاقت | او علم | او دغه شان

مونږ ور له د فيصلي قوت ورکړو | او [نور] علم مو ورته ورکړو | او مونږ هم دغسي بدلي ورکوو

نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ۝ وَرَاوَدَتْهُ الَّتِيْ

مونږبدله ورکوو | نيکانوخلقوله | او غولول اوغوښتل ده لره | هغي ښځي

نيکانو خلقو ته | ........اودکومې ښځې په کور کښي چې [يوسف] اوسيدلو | هغې دخپل مطلب دپاره

هُوَ فِيْ بَيْتِهَا عَنْ نَّفْسِهٖ وَغَلَّقَتِ الْأَبْوَابَ

چې هغه | په کور دهغي کښي وؤ | د دهٔ د نفس [د حفاظت] نه | او هغې بندي کړي | دروازي

دهغه غولول شروع کړل | ..........او [يو وړخ] وروته ئې پوري کړل

وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ؕ قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ إِنَّهٗ رَبِّيْٓ

اوويې ويل | راځه زر کوه | اوويل هغه | پناه غواړم په الله | بيشکه هغه | رب زما دي

او ورته ئې اوويل چې راځه | هغه ورته اوويل | چې زهٔ په الله ﷻ سره پناه غواړم | هغه زما مربی دي

أَحْسَنَ مَثْوَايَ ؕ إِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ۝

هغه په ښهٔ شان | او ساتلم زهٔ | بيشکه | نه کاميابيږي | ظالمان خلق

هغه زهٔ ځنګه ښهٔ ساتلي يم | [زهٔ به ځنګه داکارکوم؟] او ظالمان به يقينا نهٔ کاميابيږي

## آسان ترجمه قرآن

او د مصر کوم کس چې اخستي وو هغه خپلې بي بي ته ووئيل چې: دهٔ لره په عزت سره ساتهٔ . ما ته داسې ښکاري چې دي به مونږ ته فائده را کړي . يا به دهٔ لره په ځوئي والې ونيسو دغه شان مونږ دهٔ ته په دغه زمکه کښې ځائې ورکړو، دې دپاره چې دهٔ ته د خبرو صحيح مطلب راوپيژنو وښايو او د الله په خپل کار باندې پوره قابو دې . ليکن اکثر خلق نه پوهيږي . او چې کله يوسف ځوانۍ ته ورسيدو مونږ دهٔ ته حکمت او علم ورکړو، او ځکه چې نيک کار کوي مونږ هغوی ته دغه شان بدله ورکوو. او د کومې ښځې په کور کښې چې دې اوسيدو، هغې دهٔ لره ددهوکه کولو کوشش وکړو او ټولې دروازې ئې بندې کړې او وې وئيل: راځه ! يوسف ووئيل : دالله پناه ! هغه خو زما مالک دي، هغه ما لره ښه ځائې را کړې دی رښتيا خبره دا ده چې کوم خلق ظلم کوي هغوی ته کاميابي نه ملاويږي.

Scanned with Ca

**خلاصه تفسير:**

﴿وَقَالَ الَّذِي اشْتَرَاهُ مِن مِّصْرَ لِامْرَأَتِهِ أَكْرِمِي مَثْوَاهُ عَسَىٰ أَن يَنفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا ۚ وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ وَلِنُعَلِّمَهُ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ ۚ وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰ أَمْرِهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ [قافلې والا يوسف [عليه السلام] د ورونونه واخيستواومصرته ئې بوتلواوهلته ئې دعزيزمصرپه لاس خرڅ كړو] اوكوم سړي چه په مصركښې دې اخيستئ وو[عزيز]هغه [دې كورته راوستواوخپلې ښځې ته ئې وسپارلو او]ور ته ئې وويل چه دې په خاطرسره ساته څه عجيبه ده چه [لوی شی] خمونږ پكار راشي يائې په خوى والى سره ونيسو[مشهوره ده چه دائى څكه وويل چه اولادئې نه لرلو] او مونږ [لكه څنګه چه يوسف[عليه السلام]ته پخپل خاص عنايت سره ددې تيارې دكوهى نه نجات وركړو] دغه شان يوسف ته په ځمكه [دمصر]كښې ښه قوت وركړو[مراددې نه حكومت دی] او[نجات وركول په دې غرض سره هم وو]چه مونږده ته دخوبونوتعبيروښايومطلب داوه چه دنجات وركولونه مقصددی په ظاهري اوباطنى نعمتونوباندې مالامال كول وو]اوالله تعالى په خپل [درضاپه ]كارغالب[اوقادر] دی [چه څه غوارې هغه كوي]ليكن اكثرخلق نه پوهيږي[څكه چه يقين اوايمان والاخلق كم دي،دامضمون دقصى په منځ كښې دجمله معترضه په طورڅكه راوړى شوى دى چه د يوسف[عليه السلام]موجوده حالات يعنى غلام پاتې كيدل ښه حالت نه وه مګرالله تعالى فرمائي چه داحالت يوڅوورځې په طوردذريعى دې اصل مقصدده ته اوچت مقام وركول دي اوددې په ذريعه ئې عزيزدمصر اودده په كوركښې پرورش موندل ګرځولى دى،څكه چه دآميرانوپه كوركښې پرورش موندلوسره تجربه اوسليقه زياتيږي ،دسلطنت دكارونوعلم پرې راځي،ددې باقى ورانده دادى چه.

﴿وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾[اوكله چه هغه خپلې ځوانئ[دبلوغ حد]ته ورسيدومونږده ته حكمت اوعلم وركړو[ددې نه مراد علم د نبوت دى،اودكوهى غورځولوپه وخت كښې چه دوی ته دكومې وحى ذكراغلى دی،هغه دنبوت وحى نه بلكه دموسى [عليه السلام] دمور دوحى په شان وحى وه]اومونږنيكانوخلقوته دغه شان بدله وركوو[كومه قصه چه د يوسف[عليه السلام]دتهمت لګولومخكې بيانيږي ددې نه ورانده په دې جملوكښې خودلې شويده چه دغه به سراسرتهمت اودروغ وي ـ څكه چه چاته دالله تعالى دطرف نه علم اوحكمت وركړې شوى وي دهغه نه داسې كاركله هم نشي صادريدی،.

﴿وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَن نَّفْسِهِ وَغَلَّقَتِ الْأَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ۚ قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ ۖ إِنَّهُ رَبِّي أَحْسَنَ مَثْوَايَ ۖ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ﴾ ددغه تهمت دقصې بيان دې چه يوسف[عليه السلام]دعزيزمصرپه كوركښې په آرام اوراحت سره اوسيدو]او[په دې منځ كښې دا امتحان راغى چه]دكومې ښځې په كوركښې چه يوسف [عليه السلام]اوسيدو هغه[په ده عاشقه شوه او]دده نه دخپل مطلب حاصلولوپاره غولونكې شوه او[دكور]ټولې دروازې ئې بندې كړې او[ده ته]ئې وويل راشه تاته وايم يوسف [عليه السلام] وويل [چه اول خوداډيره لويه ګناه ده]دالله نه پناه غواړم [دويم] هغه [ستا خاوند] خما پالونكى [اومحسن] دى چه څه ئې څنګه په ښه شان وساتلم[نوآيازه به دده په ناموس كښې خلل اندازى كوم]داسې احسان فراموش كله هم فلاح نه مومي[بلكه اكثرخوپه دنياكښې ذليل اوپريشانه وي ورنه په آخرت كښې خوئې عذاب يقينى دی]ـ

## معارف او مسائل

تيرو شوؤ آيتونو كښې په يوسف ﷺ باندې هغه تير شوی حالات بيان شويدی چې په اول اول كښې پرې تير شوی وو ، هغه داسې چې كله د قافلې خلقو هغویٰ ﷺ لره د كوهی نه راويستو نو د يوسف ﷺ رونړو هغویٰ لره خپل تښتيدلې غلام اوبللو. په لږو درهمو ئې هغویٰ لره خرڅ كړو ، اوله خبره دا وه چې ورته ددغې بزرگې هستئ قدر معلوم نه وو بله دا چې د دوئ اصل مقصود پيسې گټل نه وو بلكه د باباجی د مخې نه ئې لرې كول غوښتل وو. دوئ سره دا فكر وو چې هسې نه هم دلته ئې څان سره اوساتي او په دې شان د باباجی خواته ور اورسی او زمونږ راز ښكاره كړی څكه تر ډيره حده پورې قافلې سره لاړل او دائې ورته اوئيل چې دلته به يې نه پريږدئی ، مصر ته به ئې څان سره بوځئ ، بله دا چې پټ مخ اوتړلې به بوځئ هسې نه چې تاسو ته هم اوتښتی څنگه چې ئې عادت دې ، دتفسير امام مجاهد ﷺ فرمائيلی دی چې هم په دې شان ئې مصر ته اورسولو [تفسير ابن كثير]. (۱)

اوس دې آيتونو مباركو كښې باقي قيصه بيانيږی. قرآن عظيم الشان ضروری خبرې بيانوی كومې چې پخپله په پوهه كښې راتلې شی د هغې دبيانولو ضرورت اونه گڼلې شو ، لكه په مختلفو ځايونو باندې تيريدلو سره مصر ته رسيدل او هلته د يوسف ﷺ خرڅول نه دی بيان شوی او بيا دې ځائې نه شروع كيږی چې:

[وَقَالَ الَّذِي اشْتَرٰىهُ مِنْ مِّصْرَ لِامْرَاَتِهٖٓ اَكْرِمِيْ مَثْوٰىهُ] [هغه سړی خپلې بی بی ته اووئيل چې چا يوسف ﷺ په مصر كښې اخستې وو چې د يوسف ﷺ په ښه شان خصمانه [پالنه] كوه] مطلب دادې چې كله دغه قافله مصر ته اورسيده او دهغویٰ د خرڅولو اعلان ئې اوكړو ، نو په تفسير قرطبی كښې راغلی دی چې خلقو ئې د يوبل نه زيات قيمت لگول شروع كړل تر دې چې دهغویٰ د بدنې تول برابر سره زر دهغې برابر مشك او د هغویٰ دتول برابر د ريښمو كپړې قيمت اولگولې شو. (۲)

دا دولت الله تعالى د عزيز مصر په قسمت كښې ليكلې وو. هغه دغه ټول څيزونه ادا كړل اودهغې په قيمت ئې واخستو. د قرآنی ارشاد نه رومبې معلوم شوی دی چې دا هسې اتكلی راپيښه نه وه بلكه د الله تعالى د مضبوط انتظام غړی او برخې وی ، د يوسف ﷺ اخستل ئې د ملك د يو لوئې هستئ په قسمت كښې ليكلی وو ، ابن كثير ليكلی دی چې دغه اخستوونكې د مصری حكومت وزير خزانه وو ، نوم ئې قطفير يا اطفير و او په دغه زمانه كښې د مصر بادشاه د عمالقه قوم ريان بن اسيد وو ، په آخر كښې د يوسف ﷺ په لاس مسلمان شو او د يوسف ﷺ په ژوند كښې وفات شو [مظهری]. (۳)

د عزيز مصر د بی بی نوم راعيل يا زليخا وو ، نو عزيز مصر يعنی قطفير د يوسف ﷺ په باره كښې خپلې بی بی ته وئيلی وو چې دوئ ﷺ لره به ډير ښه شان وركوې ، دعامو غلامانو پشان به ئې نه ساتې ، د دوئ د ضرورتونو انتظام به په ډير ښه شان كوې. عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائې چې په دنيا كښې درې كسان د زيات عقل خاوندان او قياضه شناس ثابت شوی

---

۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية ج: ۴ ص: ۳۷۷
۲) تفسير القرطبی تحت هذه الآية ج: ۹ ص: ۱۵۵
۳) تفسير المظهری تحت هذه الآية ج: ۵ ص: ۱۵۰

دی ، يو عزيز مصر دې چې خپلې بی بی ته ئې دغه هدايت ورکړو. بل د شعيب عليه السلام هغه لور بی بی چې خپل باباجی ته ئې د موسی عليه السلام په باره کښې عرض اوکړو [يٰٓاَبَتِ اسْتَاْجِرْهُ اِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَاْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْاَمِيْنُ] [ائې باباجی ! دوئ عليه السلام خان سره نوکر کړئې ځکه چې بهترين نوکر هغه وی چې قوی هم وی او امانتدار هم]. دريم صديق اکبر رضی الله عنه دې چې خان نه پس ئې فاروق اعظم رضی الله عنه د خلافت دپاره منتخب کړې وو [ابن کثير]. (۱)

[وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوْسُفَ فِي الْاَرْضِ] [يعنی داشان مونږ حکومت ورکړو يوسف عليه السلام ته دزمکې] په دې کښې د راتلونکې واقعې زيرې دادې چې يوسف عليه السلام اوس اگر چې د عزيز مصر په کور کښې د غلام په حيثيت سره پاتې کيږی خو زر دې چې په مصر کښې يو لوئې سرې جوړيږی چې حکومت به هم دوئ عليه السلام چلوی.

[وَلِنُعَلِّمَهٗ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ] دلته د شروع دا واؤ که د عطف دپاره اومنلې شی نو ددې معنی يوه جمله بهٔ داسې محذوفه اومنلې شی چې مونږ يوسف عليه السلام ته دزمکې حکومت دې دپاره ورکړو چې هغه په دنيا کښې د عدل او انصاف په ذريعه امن قائم کړی او د ملك د اوسيدونکو د آرام انتظام اوکړی ، او دې دپاره چې مونږ ورته د خبرو پخپل خپل ځائې کول اوښايو. ددې جملې يو عام مفهوم دا هم دې چې په کښې د الله تعالی په وحی باندې پوهيدل او په هغې باندې عمل اوکړی ، دغه شان د ټولو ضروری عملونو حاصليدل او د خوبونو صحيح تعبير بيانول هم په کښې داخل دي.

[وَاللّٰهُ غَالِبٌ عَلٰٓى اَمْرِهٖ] [يعنی الله تعالی پخپل کار باندې داسې غالب او قادر دې چې دهغې په اراده کولو سره ټول ظاهری اسباب هم برابر شی]. ځنګه چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی چې کله الله جل جلاله د څه کار اراده اوکړی نو ددنيا ټول اسباب دده دپاره تيار کړی.

[وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ] [ليکن اکثر خلق په دې حقيقت نه پوهيږی] او هر څه دپاره ظاهری اسباب پکار راوستو پسې لګيدلې وی، مسبب الاسباب او قادر مطلق پسې هډو مخه نه اوړی.

[وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗٓ اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا] [هر کله چې يوسف عليه السلام خپل پوره طاقت او ځوانئ ته اورسيدونو مونږ ورته حکمت او علم ورکړو]. د قوت او ځوانئ په حاصليدو کښې د مفسرينو اختلاف دې، ابن عباس رضی الله عنه ، مجاهد رضی الله عنه ، او قتاده رحمه الله فرمائيلی دی چې د درې ديرشو کالو په عمر کښې ورته حاصل شوې وو. ضحاك رحمه الله فرمائيلی دی چې د شلو کالو په عمر کښې او حسن بصری رحمه الله فرمائی چې د څلويښتو کالو په عمر کښې ورته حاصل شوې وو ، خو په دې باندې د ټولو اتفاق دې چې دلته دحکمت او علم ورکولو نه مطلب پيغمبری ورکول دی ، دې نه دا هم معلومه شوه چې يوسف عليه السلام ته پيغمبری مصر ته د رسيدو نه ډيره زمانه پس ورکړې شوې وه ، کله چې رونړو په کوهی کښې اوغورزولو نو دغه وخت کښې وروکې وو. دغه وخت ورته وحی راتلل داسې وو لکه چې د موسی عليه السلام او عيسی عليه السلام ميندو او بيبيانو ته چې راغلې وه او دغه د پيغمبرئ وحی نه وه.

---

(۱) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية ج: ۴ ص: ۳۷۸

[وَكَذٰلِكَ نَجْزِی الْمُحْسِنِيْنَ ۝] [او مونږ هم دغه شان بدله ورکوو نیکانو ته] مطلب دادې چې یوسف ﷺ لره د هلاکت نه خلاصې ورکول حکومت او عزت ته ئې رسول د هغوئ ﷺ د نیک چلنئ، خداترسئ او دنیکو عملونو نتیجه وه، داهغوئ ﷺ لره مخصوص نه وو، څوك هم چې داسې نیك عمل کوی زمونږ انعامات به پرې کیږی.

[وَرَاوَدَتْهُ الَّتِیْ هُوَ فِیْ بَيْتِهَا عَنْ نَّفْسِهٖ وَغَلَّقَتِ الْاَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ؕ] [د کومې بی بی کور کښې چې هغوئ ﷺ اوسیدل هغه پرې عاشقه شوه، او د خپل مطلب حاصلولو په غرض ئې دهغوئ ﷺ غولول شروع کړل اود کور تولې دروازې ئې بندې کړې اوورته او وئیل چې زرشه، هم تاته وایم] د رومبی آیت مبارك نه معلومه شوه چې دا د عزیز مصری بی بی وه خو دلته د هغې په ځائې داسې اوفرمائیلې شو چې [الَّتِیْ هُوَ فِیْ بَيْتِهَا] په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې د ګناه نه د ځان ساتلو په لار کښې یوسف ﷺ ته یو غټ مشکل راپیښ شو چې هغې بی بی ترې ددې غوښتنه کړې وه د کومې په کور کښې چې هم د هغې په پناه کښې اوسیدو او دهغې د خبرې نه مخ اړول څه آسانه خبره نه وه.

**پناه نه د بچ کیدو ذریعه داده چې پخپله د الله نه پناه اوغوښتلې شي**: او ددې ظاهری سبب دا شو چې هر کله یوسف ﷺ خپل ځان لره د هر طرف ګیر اولیدو نو د پیغمبرئ په انداز کښې ئې دټولو نه اول د الله تعالی پناه اوغوښتله لکه قرآن عظیم الشان فرمائی چې [قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ] یعنی خالص پخپل قصد او اراده ئې تکیه او نه کړه او دا ښکاره خبره ده چې څوك دالله تعالی په پناه کښې راشی هغه لره هیڅوك د صحیح لارې نه نشی اړولې، وریسې ئې د پیغمبرئ په انداز کښې حکمت او نصیحت داسې کول شروع کړل چې پخپله زلیخه بی بی ته ئې اوفرمائیل چې ته هم د الله تعالی نه اوویریږه او خپلې ارادې نه واوړه.

[اِنَّهٗ رَبِّیْٓ اَحْسَنَ مَثْوَایَ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ۝] [هغه زما پالونکې دې، هغه راته د آرام ځائې راکړو، بېشکه ظلم کوونکی خلاصې نه بیا مومی]

په ظاهره ددې مراد زلیخې بی بی ته سبق ورکول دی، چې هر کله زه ستا د خاوند ددې څو ورځو د ښیګړې پوره خیال ساتم نو ته خو ئې خیال ساته چې ستا د خاوند د ژوند ملګرې ددې او د مود راسې ئې درباندې ډیر احسانات دی او د هغه حق، مانه زیات اوپیژنه

دلته یوسف ﷺ عزیز مصر ته خپل رب خکه اوفرمائیلو چې په مخکښې شریعتونو کښې ددې اجازت داسې وو چې شرك کول او د شرك عقیده لړل بالکل حرام وو مګر داسې قسمه الفاظو استعمالولو او د شرك په ذریعو باندې پابندی نه وه لکه تصویرونو باندې چې په پخوانو شریعتونو کښې پابندی نه وه[۱]، زمونږ شریعت محمدی ﷺ هر کله چې آخری شریعت او د تولې دنیا دپاره تر قیامته پورې دې خکه په کښې داسې الفاظ هم حرام اوګرځولې شو چې د شرك شبه او ذریعه ئې جوړیدل په کښې وی دغه تصویرونه جوړول هم منع کړې شو لکه د صحیح مسلم په حواله چې رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی، څوك غلام دې خپل مالك ته رب او څوك مالك دې خپل غلام ته بنده نه وائی.

[۱] صحیح مسلم ۲، ص: ۲۳۸، کتاب الالفاظ من الادب وغیرها باب حکم اطلاق لفظة العبد والامة والمولی والسید.

په هر حال یوسف ﷺ لره دا فرمائیل چې [اِنَّهٗ رَبِّیٓ] صحیح وو. ددې بل مطلب دا هم کیدې شي چې د [اِنَّهٗ] ضمیر الله تعالی ته راجع وی او هغه ته ئې خپل رب فرمائیلې وی چې په حقیقت کښې ښه مقام ورته هم الله تعالی ورکړې وه او دهغه نافرمانی کول هم د ټولو نه لوئې ظلم دې او ظلم کوونکو لره خلاصې نشته.

ځینې مفسرینو سدي ﷫، او ابن اسحاق ﷫ وغیره نقل کړی دی چې په دغې تنهایئ کښې زلیخه بی بی یوسف ﷺ لره ځان ته د مخې راړولو سره دهغوئ د ښکلا او ښائست تعریف شروع کړو، لکه وې وئیل چې ستاسو ویښته څومره ښکلی دی. یوسف ﷺ اووئیل چې دا ویښته به دمرګ نه پس د ټولو نه رومبې زما دبدن نه جدا شي.

بیا هغې اووئیل چې سترګې دې څومره ښکلې دی؟ یوسف ﷺ اوفرمائیل چې د مرګ نه پس به دا اوبه شي او زما په مخ بهٔ راؤبهیږی.

بیا هغې اووئیل چې مخ دې څومره ښائسته دې؟ یوسف ﷺ اوفرمائیل دا ټول د خاؤرو خوراك دې. الله تعالی د آخرت فکر په هغوئ ﷺ باندې داسې غالب کړو چې د نوجوانئ په عمر کښې ددنیا ټول خوندونه ورته خاؤرې ایرې ښکاره شو. صحیح خبره ده چې د آخرت فکر هم هغه څیز دې چې انسان لره په هر ځائې کښې د هر شر نه محفوظ ساتلې شي. الله ارزقنا ایاه ائې الله تعالی! دا حالت زمونږ نصیب کړې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ هَمَّتْ | | | | | | | |
| او په تحقیق هغې اراده اوکړه | | | | | | | |
| او ظالمان به یقینا نهٔ کامیابیږی | | | | | | | |
| بِهٖ ۚ | وَهَمَّ | بِهَا | لَوْلَآ | اَنْ رَّاٰ | بُرْهَانَ | رَبِّهٖ ؕ | كَذٰلِكَ |
| په هغه باندې | او اراده به کړې وه دهٔ | په هغې باندې | که نه وې | لیدلې هغهٔ | دلیل | د رب خپل | هم دغه شان |
| او هغه (ښځه) ده ته وراوراندې شوه | او یوسف به هم وراوراندې شوې وو | که د خپل رب دلیل ئې لیدلې نهٔ وې | | | | | |
| لِنَصْرِفَ | عَنْهُ | السُّوْٓءَ | وَالْفَحْشَآءَ ؕ | اِنَّهٗ | مِنْ عِبَادِنَا | | |
| چې لرې اوساتو مونږه | دهغه نه | بدی | او بې حیائی | بیشکه هغه | د بندګانو زمونږ نهٔ وو | | |
| دغه شان مو خکه اوکړل | چې هرقسم بدئ او بې حیائی ترې لرې اوساتو | یقینا دې زمونږ د | | | | | |
| الْمُخْلَصِیْنَ ۞ | | | | | | | |
| چې خالص کړې شوی دی | | | | | | | |
| مخلصانو بندګانو نه دې | | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هغه ښځې په رښتیا دیوسف سره (د بې حیائۍ) اراده کړې وه. او دیوسف په زړه کښې هم دهغه ښځې خیال په راغلې وو که هغه د رب دلیل نه وو لیدلې مونږ دا ځکه وکړل دې دپاره چې هغه نه د بدې او بې حیائۍ واړوو. بې شکه هغه ځمونږ د منتخب شوو بندګانو نه وو.

**خلاصه تفسير**

﴿وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهٖ ۚ وَهَمَّ بِهَا لَوْلَآ اَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ ؕ كَذٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوْٓءَ وَالْفَحْشَآءَ ؕ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِيْنَ ﴾

او ددې ښځې په زړه کښې دده خيال [دعزم په درجه کښې] مضبوط شوی وواودده هم ددې ښځې څه څه خيال [دامر طبعي په درجه کښې] راغلی وو [کوم چه داختيارنه بهردی، لکه دګرمۍ په روژه کښې چه داوبوطرف ته طبعي ميلان وي اګرچه دروژې ماتولووسوسه قدري هم نه وي البته] که دخپل رب دليل لره [يعنې ددې کاردګناه والی دليل کوم چه شرعي حکم دی] ده نه وای ليدلی [يعنې ده ته دشريعت علم سره دعملي قوت نه حاصل نه وی] نوزيات خيال کيدل ئې عجيبه نه وه [ځکه چه ددې بلونکی اواسباب ټول قوی جمع وه مګر] مونږه دغه شان ده ته علم ورکړوددې لپاره چه مونږدده نه صغيره اوکبيره ګناهونه لرې کړو [يعنې دارادې نه موهم بچ کړواودفعل نه هم ځکه چه] دی خمونږ دغوره بندګانونه وۀ.

**معارف او مسائل**

تير شوی آيت کښې د يوسف ﷺ د لوئې امتحان او آزميښت داسې بيان وو چې د عزيز مصر بی بی د کور دروازې بندې کړې او د ګناه بلنه ئې ورکړه ، دې دپاره ئې ټول انتظام برابر کړو خو الله ﷻ په داسې سخت امتحان کښې هم هغوئ لره ثابت قدمه اولرلو. اوس ئې نور تفصيل په دې آيت مبارك کښې داسې دې چې زليخا بی بی خو د ګناه په خيال کښې اخته وه . د يوسف ﷺ په زړه کښې هم د انساني فطرت په جوړ څه داسې غير اختياري ميلان پيدا شو خو الله ﷻ خالص هم په دغه وخت خپل حجت او برهان يوسف ﷺ ته را اوړاندې کړو چې ورسره دغه غير اختياري ميلان بالکل ختم شو او د ځان خلاصولو دپاره په منډه شو.

په آيت مبارك کښې د [هَمَّ] لفظ دواړو يعنې يوسف ﷺ او زليخې بی بی ته منسوب دې . ددې دوه معنې دی يوه معنی ئې د ګناه خيال او اراده کول دی او بله معنی ئې غير اختياري ميلان دې چې وسوسه ورته هم وئيلې شی ، په دې بنا زليخې بی بی ته په اول حيثيت ددې نسبت شوې دې او يوسف ﷺ ته ئې په دويم حيثيت ځکه نسبت شوې دې چې د امت جمهورو علماء کرام ﷫ په دې متفق دی چې پيغمبران ﷺ د هر قسم ورې او لوئې ګناه نه پاك وی ، لويه ګناه خو ترې نه په قصد او ارادې سره کيدې شی او نه په هيرې او خطا سره ترې کيدې شی ، البته وړه ګناه ترې په هيره او غلطۍ سره کيدېشی . خو الله ﷻ ئې په هغې کلك نه پريږدی بلکه خبرداري ورکړې شی او هغوئ ترې واړولې شی [مسامره]

د پيغمبرانو ﷺ د عصمت دا مسئله يوازې د قرآن عظيم الشان او سنت نه نه د ه بلکه د عقل د مخې هم ځکه ضروری ده چې که پيغمبرانو ﷺ نه د ګناه صادريدو امکان اومنلې شی نو دهغوئ په راوړلې دين اووحی بۀ هيڅ اعتبار نه شی کولې او نه به ئې د پيغمبرئ څه فائده وی او نه به ترې د کتاب د نازليدو څه فائده ښکاريږی.

په دې بنا په اجمالي شان سره خودا اوتاکلې شو چې د يوسف ﷺ خيال راتلل او دګناه درجې ته نه وو رسيدلې په کوم باندې چې ګرفت کولې شی يعنې دا خيال ئې د عزم په حيثيت نه وو بلکه د وسوسې په حيثيت غير اختياري وو چې ګرفت پرې نشی کولې ، دلته يوه خبره د هم شته چې هر کله څوك د الله ﷻ د ويرې نه د ګناه دغه اراده پخپل اختيار پريږدی نو د حديث پاك په مطابق الله ﷻ د هغه ګناه په ځائې په عمل نامه کښې ئې يوه نيکی درج کوی او بل قسم

غیراختیاري خیال رانلل نه خو دانسان په اختیار کښې وي چې کنې په هغې به ئې گرفت اوکړې شي بلکه دا داسې یو قسم وسوسه او غیر اختیاري څیز دې لکه د گرمئ په روژه کښې چې د انسان طبعي میلان اوبو ته کیږي ، حالانکه د روژې په وجه ئې د اوبو څکلو قصد او اراده بالکل نه وي ، نو د قرآن عظیم الشان اوسنت تر مخه نه خو دا څه گناه ده او نه پرې څه گرفت او مواخذه شته دي ، د صحیح بخاري په حواله رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله تعالی زما امت د پاره د گناه وسوسې او خیال لره معاف کړې دي تر څو چې پرې عزم او نه کړي [قرطبي] (۱)

صحیحینو کښې د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دي چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ فرښتو ته فرمائي چې زما بنده کله چې د څه نیکئ اراده اوکړي نو صرف د دغې ارادې کولو په وجه ئې په عمل نامه کښې یوه نیکي اولیکئ او کله چې دغه نیك عمل ترسره کړي نو لس نیکئ د دهٔ د پاره اولیکئ او که یو بنده د گناه اراده اوکړي او د الله ﷻ د ویرې نه ئې پریږدي نو د دغې گناه په ځائې په عمل نامه کښې یوه نیکي اولیکئ او که هغه گناه تر سره کړي نو صرف یوه گناه وریسې اولیکئ [ابن کثیر] (۲)

تفسیر قرطبي کښې د عربو د محاورو او شعرونو نه دا ثابت کړې شوي دي چې د [هَمَّ] لفظ د دغې دواړو معنو د پاره استعمالولې شي (۳) معلومه شوه چې لفظ د [هَمَّ] اگر چې زلیخې بي بي او یوسف علیه السلام دواړو ته منسوب شوې دې خو بیا هم په دې دواړو خیالونو کښې غټ فرق داسې دې چې رومبې خیال په گناه کښې داخل دې اودویم غیر اختیاري دې چې د وسوسې په حیثیت په گناه کښې داخل نه دې نو د قرآن عظیم الشان د بیان انداز پخپله هم په دې گواه دې چې [هَمَّا] ئې اونه فرمائیل بلکه وې فرمائیل چې [وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهٖ ۚ وَهَمَّ بِهَا] یعنی اول ئې په لفظ د [وَلَقَدْ] سره مؤکد کړو ، او دویم سره نه لام د تاکید شته او نه پرې [قَدْ] د تحقیق زیات کړې شوې دې

د صحیح مسلم په حواله په یو حدیث پاك کښې راغلي دي چې کله یوسف علیه السلام ته داسې آزمینبت راپیښ شو نو فرښتو الله ﷻ ته عرض اوکړو چې ستا دا مخلص بنده د گناه په خیال کښې دې حالانکه هغوئ د دې وبال ښه پیژني . الله ﷻ ورته اوفرمائیل چې انتظار کوئې که هغوئ علیه السلام دا گناه اوکړه نو د هغوئ علیه السلام د کړو مطابق ئې په عمل نامه کښې اولیکئ او که پریږدي ئې نو د گناه په ځائې په عمل نامه کښې نیکي درج کړئې ، ځکه چې هغوئ به صرف زما د ویرې خپل خواهش پرېښودې وي [قرطبي] (۴)

غرض دا چې د یوسف علیه السلام د زړهٔ مبارك دغه خیال یا میلان غیر اختیاري ، د سوسې په درجه کښې وو چې په گناه کښې داخل نه دې ، بیا د دغې وسوسې په خلاف عمل کول ئې د الله ﷻ په نزد لویه نیکي وه چې ورسره ئې د هغوئ علیه السلام درجه نوره هم اوچته کړه.

---

(۱) صحیح البخاري کتاب العتق باب الخطاء والنسیان الخ ج: ۱ص: ۳۴۳

(۲) تفسیر ابن کثیر، سورة البقرة ج: ۱ ص: ۳۴۱ وصحیح مسلم کتاب الایمان ، باب بیان تجاوز الله تعالی عن حدیث النفس الخ ج: ص: ۷۸

(۳) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة ج: ۹ ص: ۱۶۶

(۴) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة ج: ۹ ص: ۱۶۸ ، وصحیح مسلم کتاب الایمان ، باب بیان تجاوز الله تعالی عن حدیث النفس الخ ج: ص: ۷۸

Scanned with Ca

ځيني مفسرينو دلته دا هم فرمائيلي دي چې په کلام کښې وړاندې والې روستو والې داسې راغلې دې چې [لَوْلَآ أَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ] په اصل کښې وړاندې دې ، مطلب ئې دا شو چې د يوسف عليه السلام به هم دا خيال پيدا شوې وو ليکن د برهان رب ليدلو په وجه هغه د دغې هم او خيال نه هم محفوظ پاتې شو ، اګر چې دا مضمون هم درست دې خو ځيني حضراتو دې تقديم او تاخيرلره د عربئ ژبې د قواعدو نه خلاف ګڼرلې دې ، په دې بنا هم رومبې تفسير بهتدې ولې چې په دې سره د يوسف عليه السلام د تقوى او پاکوالى شان نور هم زيات ځکه اوچتيږي چې طبعي او بشري تقاضا باوجود د ګناه نه محفوظ کيږي .

دې پسې فرمائي چې [لَوْلَآ أَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ] ددې جزا محذوفه ده ، معنى ئې داده چې که هغوئ د خپل رب برهان او حجت نه وې ليدلې نو په دې خيال کښې به اخته شوې وو ، خو د خپل رب په برهان ليدلو سره دغه غير اختياري خيال او وسوسه هم دزړه نه اووته.

هر کله چې قرآن عظيم الشان د برهان ربي وضاحت نه دې کړې کوم چې د يوسف عليه السلام مخې ته راغلې وو ځکه په کښې د مفسرينو اقوال مختلف دي ، عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ، مجاهد رحمه الله ، سعيد بن جبير رضي الله عنه ، محمد بن سيرين رحمه الله ، حسن بصري رحمه الله وغيره فرمائيلي دي چې الله جل شانه د معجزې په طور په دغه خلوت خانه کښې د يعقوب عليه السلام شکل په داسې شان مخې ته راوستو چې خپله ګوته ئې په غاښونو کښې نيولې ده او چيچې ئې ، دې نه مطلب ددغې کار او خيال نه ئې منع کول وو ، ځيني مفسرينو دا هم فرمائيلي دي چې د عزيز مصر شکل ورته راوړاندې کړې شو ، ځينو فرمائيلي دي چې د يوسف عليه السلام نظر چت ته اوکړخولې شو چرته چې آيت [وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰىٓ اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةًۭ ۭ وَسَاۗءَ سَبِيْلًا] ليکلې شوې وو .[يعنى د زنا خواته مه ځئ ځکه چې دا لويه ګناه لويه بې حيائي [او د الله تعالى د قهر سبب] او [ د معاشرې د پاره] دې ره خرابه لاره ده .

ځيني مفسرينو فرمائيلي دي چې د زليخه بي بي د مکان په دغې حصه کښې يو بت وو چې د هغې د پاسه هغې پرده اچولې وه ، يوسف عليه السلام ترې ددې وجه اوپوښتله نو هغې ورته اووئيل چې دا زما معبود دې ، دده په وړاندې په ګناه کولو سره ماته حيا رازي ځکه مې پټ کړې دې .

يوسف عليه السلام اوفرمائيل چې زما معبود خو ددې نه زيات د حيا حقدار دې ، د هغه نظر په هيڅ شان سره بل خوا څوک نشي اړولې او نه ترې څوک څه پټولې شي

ځيني مفسرينو فرمائيلي دي چې د يوسف عليه السلام پيغمبري او د الله تعالى پيژندګلو پخپله د رب برهان وو . د امام تفسير ابن جرير رحمه الله ، ددې ټولو اقوالو نقل کولو نه پس چې کومه خبره فرمائيلې ده هغه د ټولو محققينو په نزد غوره او بهتره ده ، هغه فرمائيلي دي چې قرآن عظيم الشان مونږ ته څومره خبره خودلې ده صرف په هغې دې بس والې اوکړې شي ، يعنى يوسف عليه السلام څه داسې يو څيز اوليدو چې دغه وسوسه ئې هم د زړه نه اووته ، يعنى ددغه څيز په ټاکلو کښې هغه ټول احتمالونه کيدې شي کوم چې مفسرينو ذکر کړي دي . البته يو په کښې يقيني طور سره نشي ټاکلې کيدې. [ابن کثير] (۱)

[ كَذٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوْۗءَ وَالْفَحْشَاۗءَ ۭ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِيْنَ] [مونږ يوسف عليه السلام ته دا برهان ځکه اوخودلو چې د هغوئ عليه السلام نه دغه خرابى او بې حيائئ لرې کړو] د خرابئ نه مراد وړه ګناه ده اود

---

(۱) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية ج: ص: ۳۸۲

بې حيايئ نه مراد لويه ګناه ده . [مظهري] (۱)
دلته دا خبره د نظر کولو جوګه ده چې داني اوفرمائيل : مونږ خرابي اوبې حيائي د يوسف ﷺ نه واړوله. داسې ئې او نه فرمائيل چې مونږ يوسف ﷺ لره د خرابئ او بې حيايئ نه واړولو. په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې يوسف ﷺ د خپلې پيغمبرئ د شان په وجه ددغې ګناه نه پخپله اوړيدلې و خو خرابئ او بې حيايئ هغوئ ﷺ لره ګير کړې وو ، مونږ دغه جال اوشلولو.
د قرآن عظيم الشان دا الفاظ ددې ګواه دی چې يوسف ﷺ په يو معمولي ګناه کښې هم نه وو اخته شوې . او کوم خيال چې د هغوئ ﷺ په زړه کښې راپيدا شوې وو هغه په ګناه کښې داخل نه وو ، ګنی دلته بۀ ئې داسې فرمائيلي وو چې مونږ يوسف ﷺ لره د ګناه نه واړولو.
ولې چې يوسف ﷺ زمونږ په غورزير بندګانو کښې دې [مُخْلَصِيْنَ] د مخلص جمع ده چې معنی ئې غوره کړې شوې ده.
مراد دا شو چې يوسف ﷺ د الله تعالى په هغه بندګانو کښې شمير دې کوم چې پخپله الله ﷻ د پيغمبرئ د کار او د خلقو د اصلاح دپاره غوره کړي دی . په داسې خلقو باندې د الله ﷻ د طرفه حفاظتی پهره وی چې هغوئ په څه بدئی يا خرابئ کښې نشی اخته کيدې . نو پخپله شيطان هم پخپل بيان کښې ددې اقرار اوکړو چې د الله تعالى په منتخب کړی بندګانو باندې د هغه وس نه رسی ، هغه پخپله داسې اوفرمائيل چې [قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِيْنَ ۝ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ ۝] [ستا په عزت او قوت مې دې قسم وی چې زۀ بۀ ټول بنيادم ګمراه کوم سوا دهغې بندګانو نه چې تا منتخب کړی دی]
ځينې قراتونو کښې دا لفظ [مُخْلِصِيْنَ] په زير سره راغلې دې ، معنی ئې هغه د الله تعالى بندګان دی چې د الله ﷻ عبادت او تابعداری په اخلاص سره کوی ، په هغې کښې د څه دنيوی او نفسانی غرض ، مشهورتيا او مرتبې وغيره دخل نه وی . په دې صورت کښې بۀ ددې آيت مبارك مراد دا وی چې څوك هم پخپل عمل او عبادت کښې مخلص وی ، الله ﷻ د ګناه نه په خان ساتلو کښې د هغوئ مدد کوی.
دې آيت مبارك کښې الله ﷻ دوه لفظونه سوء او فحشاء استعمال کړی دی ، او د سوء لفظی معنی بدی او خرابی ده چې مراد ترې نه صغيره ګناه ده او دفحشاء معنی بې حيائی ته چې مراد ترې کبيره ګناه ده ، دې نه معلومه شوه چې الله ﷻ يوسف ﷺ لره د صغيره او کبيره ګناه دواړو نه محفوظ ساتلې وو.
دې نه دا هم معلومه شوه چې قرآن عظيم الشان کښې يوسف ﷺ ته منسوب کړې هم خالص غير اختياری وسوسه وه چې په لويه او وړه ګناه کښې داخل نه بلکه معاف ده.

| وَاسْتَبَقَا | الْبَابَ | وَقَدَّتْ | قَمِيْصَهٗ |
|---|---|---|---|
| او دواړو منډې کړې | دروازې ته | او اوشلوله هغې | قميص دهغه |
| او دواړو [يوسف او ښځې] وړاندې روستو دروازې طرف ته منډه | | | |

(۱) تفسير المظهری تحت هذه الآية ج:۵ ص:۱۵۵

مِنْ دُبُرٍ وَّاَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا الْبَابِ ۭ قَالَتْ مَا جَزَاۗءُ مَنْ

دشادطرفنه| اوبیاموندودوارو| خاوند دهغې| نزدې د دروازې سره| اووئیل هغې | څه ده سزا | د هغه چا

کړه | اوهغې ترې قمیص |د شادطرف نه اوشلولو| اودوارو دهغې خاوند دروازې

اَرَادَ بِاَهْلِكَ سُوْۗءًا اِلَّآ اَنْ يُّسْجَنَ اَوْ عَذَابٌ

چې اراده ئې اوکړه | په کور والا ستا | د بدئ | ماسوا ددې نه | چې قید کړې شی هغه | یا | عذاب

سره|ولاړ| اولیدو |په دې باندې|هغې [ښځې] اووئیل|دهغه سړی څه سزاده |چې ستا دکورمیرمنې ته بد نیته شی

اَلِيْمٌ ۝ قَالَ هِيَ رَاوَدَتْنِيْ عَنْ نَّفْسِيْ وَشَهِدَ شَاهِدٌ

دردناك|اووئیل یوسف| دې ښځې وغولولم زهٔ | د خپل ځان[د حفاظت] نه|اوګواهی پیش کړه| یوګواه

خو بس چې جیل کښې واچولې شی| یا بل څه دردناک عذاب ورته ورکړې شی|یوسف عليه السلام اووئیل دې زهٔ د خپل غرض دپاره غلولم

مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ كَانَ قَمِيْصُهٗ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ فَصَدَقَتْ وَهُوَ

دخپلوانو دهغې نه| که وی |قمیص دهغه|شلیدلې|د مخې طرفنه| نو دا به صادقه وی | او هغه به

اودهغې دکورنئ [دخلقو] نه یو کس ګواهی ورکړه | که د حضرت یوسف عليه السلام قمیص د مخې طرفنه شلیدلې وی

مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۝ وَاِنْ كَانَ قَمِيْصُهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ

ددروغژنو څخه وی| اوکه وی | قمیص دهغه| شلیدلې| دشادطرفنه| نو دا به دروغژنه وی | او هغه به

نو ښځه رښتینې اوسړې دروغژن دې |اوکه د هغه قمیص د شا طرفنه شلیدلې وی |نو ښځه دروغژنه ده

مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝ فَلَمَّا رَاٰ قَمِيْصَهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ

د رښتینو څخه وی | هرکله چې ئې|اولیدو| قمیص دهغه| چې شلیدلې دې|د شا دطرفنه|نوهغه او وئیل

اوسړې رښتونې دې |کله چې هغه[د یوسف] قمیص دشا دطرفنه شلیدلې اولیدونووې وئیل دا ټول

اِنَّهٗ مِنْ كَيْدِكُنَّ ۭ اِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيْمٌ ۝ يُوْسُفُ اَعْرِضْ

بیشکه داکار | د مکر ستاسو نه دې | بیشکه | مکر ستاسو | دیر لوئ دې |ائې یوسفه | مخ واړوه

ستاسو د ښځو مکرونه دی| بیشکه ستاسو فریبونه دیر لوئې دی| ائې یوسف عليه السلام ! داخبره شاته اوغورزوه

عَنْ هٰذَا ۫ وَاسْتَغْفِرِيْ لِذَنْۢبِكِ ښ اِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِـِٕيْنَ ۝

ددې خبرې نه| اوائې ښځې ښښنه اوغواړه ته| دپاره دګناه خپلې| بیشکه چې ئې ته | د خطا کارونه

اوائې ښځې تهٔ دخپلې ګناه په باره کښې معافی اوغواړه |بیشکه [ په دې معامله کښې ]ته خطاواره یې

## آسان ترجمه قرآن

او دواړو یو بل پسې دروازې ته منډه کړه .او دِ (کشمکش کښې) هغه ښځې دده قمیص وروستو نه وشلولو
دې کښې دواړو د هغه ښځې خاوند په دروازه باندې ولیدو.دې ښځې فوراً (د خبرې جوړولو دپاره خپل

Scanned with Ca

خاوند ته) وویل چه: څوك ستا د بي بي سره د بد عملي اراده وکړي د هغه سزا دې له سوا لوره څه ده چه هغه جیل کښې واچولې شي، یا یو بله څه دردناکه سزا ورکړې شي؟ یوسف وویل چه: دې پخپله ما نه مطالبه کوله. او د ښځې د خاندان نه یو گواهي ورکوونکي گواهي ورکړه چه: که د یوسف قمیص د مخې طرف نه شلیدلې وي نو ښځه رښتیا وائي او دې دروغژن دې. او که دده قمیص د شا طرف نه شلیدلې وي نو بیا ښځه دروغ وائي. او دې رښتینې دې بیا چه کله خاوند وکتل چه دده قمیص د شا طرف نه شلیدلې دې نو هغه وویل چه: دا ستاسو د ښځو چل دې. واقعي ستاسو د ښځو چل ډېر سخت دې. یوسفه! ته ددې خبرې څه خیال مه کوه او اې ښځې ته دخپلو گناهونو معافي غواړه. یقیني طور ته خطاکاره وې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاسْتَبَقَا الْبَابَ وَقَدَّتْ قَمِيصَهُ مِنْ دُبُرٍ وَأَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا الْبَابِ ۚ قَالَتْ مَا جَزَاءُ مَنْ أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوءًا إِلَّا أَنْ يُسْجَنَ أَوْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝﴾ [او هر کله چه دی ښځی بیا دغه اصرار وکړونو یوسف [عليه السلام] د دی خای نه خان خلاص کړاو وتختید او هغه دده دنیولو لپاره په ده پسی ورپسی شوه] او دواړه وراندی وروسته دروازی ته په منډه شواو [په منډه کښی چه دی هغه لره نیولونو] دی ښځی دده قمیص دشانه څیری کړو [دی نی دقمیص نه ونیولو خان ته نی را ښکلو او یوسف [عليه السلام] په مخه تختید و نو قمیص نی څیری شو مگر یوسف [عليه السلام] د دروازی نه باهر ووتلو] او [ښځه هم ورسره وه نو] دواړو لره [اتفاقا] ددی ښځی خاوند په دروازه کښی [ولاړ] وموندل ښځی [چه میړه ولیدنو حقه حیرانه شوه او فورا نی خبره جوړه کړه] او ونی ویل چه کوم سړی ستا دبی بی سره دبدکارئ اراده وکړي دهغه سزا غیر له دی نه بله څه کیدی شي چه دی جیل خانی ته ولیږلی شي یا بله دردناکه سزاوي [لکه جسمانی سزا].

﴿قَالَ هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَفْسِي ۚ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ أَهْلِهَا إِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ فَصَدَقَتْ وَهُوَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ۝ وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ الصَّادِقِينَ ۝ فَلَمَّا رَأَىٰ قَمِيصَهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ إِنَّهُ مِنْ كَيْدِكُنَّ ۖ إِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ ۝ يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هَٰذَا ۚ وَاسْتَغْفِرِي لِذَنْبِكِ ۖ إِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخَاطِئِينَ ۝﴾
یوسف [عليه السلام] وویل [چه داچه دکوم الزام اشاره ماته کوي بلکل دروغژنه ده بلکه معامله ددی برعکس ده] دی ما لره دخپل مطلب لپاره غولولو او [دغه وخت] ددی ښځی دخاندان نه یو گواه [چه شیرخوار بچئ وو او د یوسف [عليه السلام] په معجزې سره نی خبری وکړی او دده په برائت سره نی] شهادت وکړو [یعنی ددی بچی خبری کول د یوسف [عليه السلام] معجزه وه او ددی د پاسه دویمه معجزه دا شوه چه دی شیرخواری بچی یوه معقوله نښه وخوده عاقلانه فیصله ئی وکړه او وئی ویل] چه دده قمیص [وگورئ چه دکوم خای نه څیری دی] که دمخی نه څیری وي نو ښځه رښتونی ده او دی دروغژن دی او که دغه قمیص دشانه څیری وي نو ښځه دروغژنه ده او دی رښتونی دی. پس کله چه [عزیز] دده قمیص دشانه څیری ولیدو [ښځی ته] ئی وویل چه دا ستاسو دښځو چالاکی ده بیشکه ستاسو دښځو چالاکی ډیری دغضب وي [بیا یوسف [عليه السلام] ته متوجه شو او ونی ویل] ای یوسفه دا خبره پریدئ [یعنی ددی شهرت یا خیال مکوه] او [ښځی ته ئی وویل چه] ای ښځی ته [د یوسف نه] دخپل قصور معافی غواړه بیشکه سراسر قصوروارہ ته ئی.

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې دابیان راغلې وو چې کله دعزیز مصر بی بی یوسف ؑ لره په ګناه کښې دا خته کولو کوشش کولو او یوسف ؑ دې نه د ځان ساتلو په تکل کښې وو خو فطری او غیر اختیاری خیال په کشمکش کښې هم وو. الله ﷻ د خپل ښکلي پیغمبر ؑ د مدد دپاره د معجزې په طور څه داسې څیز رامخې ته کړو چې هغه غیر اختیاری خیال ئې هم د هغوئ ؑ د زړه نه اوښکلو. دغه څیز یا خو د یعقوب ؑ شکل مبارک ښکاره کیدل کیدې شی یا د وحی الهی څه آیت نازلیدل کیدې شو.

تیر شوې آیت مبارک کښې دا خودلې شوی دی چې په دغه خلوت خانه کښې د برهان ربی په لیدو سره هلته نه په منډه شو او بهر وتلو دپاره دروازې ته ورروان شو ، د عزیز مصر بی بی ورپسې ورمنډې کړې ، د روستنو نه ئې د هغوئ ؑ قمیص مبارک اونیولو او د بهر وتلو نه ئې دهغوئ ؑ ایسارول اوغوښتل خو هغوئ ؑ ایسار نشو ځکه ئې قمیص مبارک په دغه کشمکش کښې اوشلیدو ، یوسف ؑ دروازې نه بهر شو ، زلیخا بی بی هم ورپسې شوه ، په تاریخی روایتونو کښې راغلی دی چې زلیخه بی بی دغه دروازه تالا کړې وه خو کله چې یوسف ؑ دروازې ته اورسیدو نو دغه تالا پخپله پرانستې شوه او راغورزیده.

دواړه چې په دې شان بهر راووتل نو هلته عزیز مصری مخامخ ولاړ وو ، د هغه بی بی اوویریدله او دځانه ئې خبره جوړه کړه چې یوسف ؑ ئې بدنام کړو. وې وئیل چې څوك ستا بی بی سره د بدکارئی اراده اوکړی نو دهغه سزا ددې نه سوا څه کیدې شی چې هغه بندیوان کړې شی یا بله سخته سزا ورکړې شی ؟

یوسف ؑ د پیغمبرئ د شرافت په بنا اول نه د هغې راز نه ښکاره کولو خو هر کله چې بی بی بدنامولو کښې وړاندې شوه نو د مجبورئ نه ئې حقیقت ښکاره کړو چې [ هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَّفْسِي ] هم دې زما نه ددې تقاضا کوله! په دې بنا معامله ډیره نازکه شوه چې د ثبوت او ګواهئ هیڅ صورت نشو پاتې کیدې. خو الله ﷻ چې څنګه خپل غوره بندګان د ګناه نه ساتی او هغوئ لره پاك ساتی ، دغه شان په دنیا کښې هم هغوئ په معجزانه طور سره د شرمیدونه لرې ساتی. په داسې موقعو باندې دداسې ماشومانو نه کار اخستې شوې دې چې هغوئ لا د خبرو کولو هم نه وو. دغه شان ماشومان الله تعالی راګویا کړی او د بندګانو صفائی او پاکدامنی ئې پرې پیش کړې ده. لکه کله چې په مریم باندې خلقو تور پورې کړې نو الله تعالی عیسی ؑ په دغه موقعه راګویا کړو. حالانکه هغوئ لا دیوې ورځې وو. په دې شان سره دهغوئ ؑ د مور بی بی پاکدامنی هم بیان شوه چې د الله ﷻ د قدرت یوه خاص نخښه وه. دغه شان د بنی اسرائیلو په یو بزرګ جریج باندې کله چې د یو لوڼې سازس تر مخه تور پورې کړې شو نو یو داسې ماشوم د هغه صفائی پیش کړه چې لا اوس اوس پیدا شوې وو. کله چې موسی ؑ باندې د فرعون شك پیدا شو نو الله ﷻ موسی ؑ لره د فرعون د لاس نه په دې شان محفوظ کړو چې د هغې ښځې تازه پیدا شوې ماشوم ئې ګویا کړو کومې چې به د فرعون د بی بی ویښته سمول.

د عبدالله بن عباس رضي الله عنه او د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي چې یوسف ﷺ په دې واقعه کښې یو وړوکي ماشوم الله ﷻ ګویا کړو چې ډیرې هوښیارۍ او د حکمت ډکې خبرې ئې شروع کړې. د اماشوم ددغې کور په خانګو کښې پروت وو د چا ګمان کیدې شو چې دغه ماشوم به ددوئ حرکتونه وینې او په دوئ پاندې به پوهیږي او په کوم انداز سره به ئې بیانوي ؟

مګر قادر مطلق پخپلې فرمانبردارئ کښې د محنت کوؤنو شان ښکاره کولو دپاره دنیا ته ښائي چې ددنیا ذره ذره دهغه پټ پولیس دي چې مجرمان ښه پیژني او دهغوئ د جرمونو ریکارډ ساتي چې د ضرورت په وخت ئې ښکاره کوي ، د حشر په میدان کښې کله به چې دحساب ،کتاب په وخت انسان دخپلې د زوړ عادت په بناکله به چې د خپلو جرمونو نه انکار کوي نو دهغوئ لاسونه ، پښې ، څرمن درودیوال به ددوئ پخلاف ګواهئ ورکولو دپاره راپورته کړې چې یو یو حرکت به ئې د محشر د عظیم الشان جمع په وړاندې پرانستې کیږدي ، دغه وخت به انسان ته معلومه شي چې د انسان ، لاسونه ، پښې او د کور درودیوال او حفاظتي انتظامات یو هم ددهٔ خپل نه وو ، بلکه دا ټول د رب العزت پټ کارکنان وو.

خلاصه داده چې دا وړوکي ماشوم په خانګو کښې ددنیا د هر څیز نه په ښکاره بې خبره پروت وو ، د یوسف ﷺ د معجزې په طور ، خالص په هغه وخت کښې ګویا شو کله چې عزیز مصر هم په دې واقعه کښې وارخطا شوې وو.

ددغه ماشوم د خلې نه په دغه وخت داخبره کول هم کافي ګواهي او معجزه ګنړلې شوه چې یوسف ﷺ بې ګناه دې او قصور دزلیخې بی بی دې. بیا هم الله ﷻ ددغې ماشوم دخلې نه یو حکیمانه خبر راؤخیژوله چې د یوسف ﷺ قمیص که د وړاندې طرفنه شلیدلې وی نو زلیخه بی بی ریښتونې ده او یوسف ﷺ دروغژن کیدې شي ، او که د د ورستو نه شلیدلې وی نو په دې سوا ددې. نه بل هیڅ احتمال نشی کیدې چې یوسف ﷺ تښتیدو او زلیخې بی بی د دوئ ایسارول غوښتل .

دا یو داسې خبره وه چې د ماشوم د وینا د عاجزه کولو نه علاوه پخپله د هر یو په پوهه کښې راتلې شوه اوکله چې د خودلې شوې نخښې مطابق قمیص د روستو نه شلیدلې اولیدلې شو نو دیوسف ﷺ بې ګناهي د ظاهري نخښو نه ښکاره شوه.

د یوسف ﷺ د شاهد تفسیر مونږ په دې شان بیان کړې دې چې دغه یو وړوکي ماشوم وو او الله ﷻ ورته د معجزې په طور ګویائي ورکړې وه دادرسول کریم ﷺ د یوحدیث پاك نه ثابته ده کوم چې امام احمد په خپل مسند ابن حبان رحمه الله پخپل کتاب صحیح او حاکم په مستدرك کښې نقل کړ و او صحیح حدیث ئې ورته وئیلې دې . ددغې حدیث پاك الفاظ داسې دی چې الله ﷻ څلورو ماشومانو ته په خانګو کښې ګویائي ورکړې ده ، دا څلور هغه دی ت کومو بیان چې لږ شان وړاندې اوکړې شو ، [مظهری] [1]

او په څینې روایتونو کښې د شاهد نور تفسیرونه هم نقل کړې شوی دی ، خو ابن جریر رحمه الله ابن کثیر رحمه الله وغیره د تفسیر امامانو روښې تفسیر غوره ګرځولې دې .

[1] تفسیر المظهری تحت هذه الآیة ج:۵ص: ۱۵۶ ، والمستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۳۷۹۴، کتاب التفسیر ، تفسیرسورة التحریم ابن حبان ، رقم الحدیث:۲۹۶۶ ، کتاب الجنائزباب ماجاء فی الصبر الخ.

Scanned with Ca

**احکام او مسئلې:** دې آيتونو نه څو ضروري مسئلې او احکام راوځي.

يو دا چې [وَاسۡتَبَقَا الۡبَابَ] نه معلومه شوه چې چرته په يو ګناه کښې داخته کيدو خطره وي دغه ځائې پرېښودل پکار دی څنګه چې يوسف ﷺ دغه ځائې نه په منډه بهر اووتو او ددې ثبوت ئې ورکړو.

دويمه مسئله داده چې د الله ﷻ د حکمونو په ځائې راوړلو کښې په انسان لازم دی چې ترخپله وسه پورې په کوشش کښې کمی نه کوی، خواه ددې ظاهری نتيجه هر څنګه راوځي. نتيجې د الله ﷻ په لاس کښې دی، د انسان کار دادې چې خپل محنت او طاقت د الله ﷻ په لار کښې اولګوی او د خپلې بندګئ ثبوت ورکړی، لکه چې يوسف ﷺ د دروازو نه بهر ته وتلو دپاره منډه کړه سره ددې چې تاريخی روايتونو مطابق تولو دروازو ته تالې لګيدلې وې، په داسې صورت کښې د الله ﷻ د طرفه په اکثرو خپل وختونو مشاهده کيږی چې کله بنده پوره کوشش اوکړی نو الله تعالی ورته د کاميابئ اسباب هم برابر کړی، څنګه چې مولانا رومی ﷫ په دې مضمون باندې ارشاد فرمائيلې دې:

گرچه رخنه نيست عالم راپديد　　　خيره يوسف وار می بايددويد

[په داسې صورت کښې که چاته ظاهری کاميابی هم نه ښکاری نو بنده دپاره داناکامی هم دکاميابئ نه کمه نه ده]

گرمرادت رامذاق شکر هست　　　نامرادی نے مرادِ دلبراست

يو بزرګ عالم به قيدخانه کښې وو، دجمعې په ورځ به ئې د خپل وس مطابق غسل کولو، او خپلې جامې به ئې وينځلې، جمعې دپاره به ئې ځان تيارولو او د قيد خانې دروازې پورې به ورتلو، هلته په رسيدو به ئې عرض اوکړو چې يا الله ﷻ ! زما وس هم دومره وو، وراندې ستا اختيار دې د الله ﷻ د عام رحمت نه څه لرې نه وه چې دهغه په کرامت سره د جيل دروازه بيرته شوې وې او هغه به دجمعې مونځ اداکړې وې ليکن الله ﷻ پخپل حکمت سره دغې بزرګ ته هغه لوړ مقام ورکړو چې په هغې باندې زرګونه کرامتونه دې قربان وی اکر چې دهغه په دغې عمل سره د قيدخانې دروازه به نه بيرته کيدله خو بيا هم هغه پخپل کار کښې مرانه او نه بائيله او هره جمعه ئې په مخه هم دغه عمل جاری اولرلو، دا هغه استقامت دې چې بزرګانو صوفيانو ددې مرتبه د کرامت نه زياته لوړه بللې ده.

**دريمه مسئله:** دريمه مسئله ترې دا ثابته شويده چې د يو غلط پوری کړی تور نه د ځان صفائی پيش کول د پيغمبرانو ﷺ سنت طريقه ده، دا څه توکل يا بزرګی نه ده چې دغه وخت په چپ پاتې کيدو سره خپل ځان مجرمان ثابت کړی.

په دې آيتونو کښې څلورمه مسئله د شاهد ده، په فقهی عامو معاملاتو او مقدماتو کښې ددې مراد هغه څوک کيدې شی چې جګړې په يو معامله کښې د خپلو سترګو څه ليدلې واقعه بيان کړی. خو په دې واقعه کښې کوم ماشوم ته چې شاهد وئيلې شوی دی هغه خو نه څه واقعه بيان کړې ده او نه ئې دهغه په باره کښې د خپلو سترګو څه ليدل کتل بيان کړی دی بلکه دفيصلې کولو يو صورت ته ئې اشاره کړې ده چې په اصطلاح کښې ورته شاهد نشی وئيلې.

مګر ښکاره خبره داده چې دا تولې اصطلاح ګانې روستنو علماء کرامو او فقهاء کرامو د پوهولو دپاره اختيار کړی دی، د قرآن عظيم الشان اصطلاح ګانې نه دی او نه هغه ددې پابند

دي ، قرآن عظیم الشان دلته دغه ماشوم ته شاهد په دې لحاظ سره وئیلی دی چې ځنګه د شاهد په بیان سره د معاملې صفا کول آسانیږي او د یو فریق په حقه باندې کیدل ورسره ثابتیږي . ددغې ماشوم د بیان نه هم دغه فائده حاصله شوه چې په اصل کښې خو ددهٔ معجزانه ګویائی د یوسف علیه السلام د بې ګناهۍ دپاره شاهد وه ، او بیا دهغه خودلې نخښې هم په اصل کښې د یوسف علیه السلام د بې ګناهۍ ثبوت وو . ځکه دا وئیل صحیح شو هغه د یوسف علیه السلام په حق کښې ګواهي ورکړه . حالانکه هغه یوسف علیه السلام نه ربښتونې اونه وئیلو بلکه دواړه احتمالونه ئې بیان کړي وو ، او د زلیخې بی بی ربښتونی کیدل ئې په یو داسې صورت کښې هم په فرضي طور سره منلی وو چې په کښې دهغې ربښتونی کیدل یقیني نه وو بلکه بل احتمال هم په کښې موجود وو ، ولې چې د وړاندې نه د قمیص شلیدل په دواړو صورتونو کښې کیدې شي او د یوسف علیه السلام ربښتونې کیدل ئې صرف په داسې صورت کښې منلی وو چې په کښې بلکل بل احتمال کیدې نشو ، لیکن په آخر کښې ددې حکمت عملۍ نتیجه دا هم وه چې دیوسف علیه السلام برې کیدل ثابت شي .

**پنځمه مسئله**: پنځمه مسئله په دې آیت مبارك کښې داده چې مقدمو او دجګړو په فیصلو کښې د قرینو او نخښو نه کار اخستې شي ځنګه چې دغې شاهد د روستو نه د قمیص شلیدل ددې نخښه ګرځولې وه چې یوسف علیه السلام تښتیدلو او زلیخې نیولو ، په دې معامله کښې په دومره خبره خو ټول فقهاء کرام متفق دی چې د معاملاتو د حقیقت په پیژندګلو کښې د نخښو او قرینو نه دې ضرور کار واخستې شي ځنګه چې دلته اوشو البته صرف نخښې او قرینې د کافي ثبوت په درجه کښې نشي راتلې . د یوسف علیه السلام په دې معامله کښې حقیقت دادې چې د هغوئ علیه السلام د بې ګناهۍ ثبوت خو دادې چې یو ماشوم په معجزانه انداز کښې په هر حال تر دې پورې چې دا ثابته شوه چې کله زلیخې بی بی په یوسف علیه السلام باندې الزام اولګولو نو الله ﷻ یو ماشوم ګویان کړو او د هغه په خله ئې دا حکیمانه فیصله صادره کړه چې د یوسف علیه السلام قمیص دې اوکتلې شي که د روستو نه شلیدلې وی نو دا ددې خبرې ښکاره نخښه ده چې هغوئ تښتیدل او زلیخې بی بی نیولو ، او یوسف علیه السلام بې قصوره دې .

ددې آیتونو مبارکو ځینې په دوؤ آیتونو کښې دا بیان شوی دی چې یو ماشوم په دغسې شان خبرو کولو نه عزیز مصر په دې پوهه شوې وو چې د یوسف علیه السلام د بې ګناهۍ ښکاره کولو دپاره د عادت په خلاف داصورت راپیښ شوې دې ، بیا د هغه ماشوم د وینا په جوړ چې دیوسف علیه السلام قمیص هم د روستو نه شلیدلې شوې اولیدلې شو نو یقین ئې اوشو چې قصور هم د زلیخې بی بی دې او یوسف علیه السلام بې ګناه دې ، ځکه ئې رومبې زلیخې بی بی ته داسې اووئیل چې : ﴿إِنَّهُ مِن كَيْدِكُنَّ﴾ [دا ټول ستاسو دښځو مکرو فریب دې] چې خپله غلطي اوګناه د بل په سر اچوئی ، بیا ئې اووئیل چې د ښځو مکر او فریب ډیره لویه ده چې تړې وتل او په دې باندې پوهیدل څه آسان کار نه دې ، ولې چې ددې ښکاره اړخ چې ډیر نرم او نازك او کمزورې وی چې لیدونکې پرې یقین ساتی . خو هر کله چې عقل او دینداري ئې کمه وینو په اکثرو وختونو کښې دا یو قسم مکر او فریب وی [مظهری] (۱)

(۱) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة ج: ۵ ص: ۱۵۷

تفسير قرطبی کښي د ابی هريره ﷺ روايت دي چي رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چي د ښځو فريب او مکر د شيطان د فريب او مکر نه زيات دي ولي چي الله ﷻ د شيطان د فريب په باره کښي دا فرمائيلی دی چي هغه ضعيف دي . [اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا]

او د ښځو د فريب په باره کښي الله ﷻ فرمائي چي [اِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيْمٌ](۱) دا ښکاره خبره ده چي دي نه مراد ټولي ښځي نه دی بلکه هم هغه ښځي تري مراد دی کومي چي په مکر او فريب کښي اخته وی . عزيز مصر چي زليخي ته د هغي غلطی په ګوته کړه بيا ئي يوسف ﷺ ته اووئيل چي [يُوْسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا] [ائي يوسف ﷺ ! ته دي واقعي پسي مخه مه اوړه او چاسره ددي ذکر مه کوه ځکه چي دا د شرم خبره ده] بيا ئي زليخي بی بی ته اووئيل : [وَاسْتَغْفِرِيْ لِذَنْۢبِكِ ۚ اِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِـِٕيْنَ] [يعني ټوله غلطی هم ستاده ، ته دخپلي غلطئ معافی غواړه] دي نه په ظاهره دا مراد دی چي هغه دي د خپل خاوند نه معافی اوغواړي ا دا معنی ئي هم کيدي شي چي د يوسف ﷺ نه دي معافی اوغواړي چي دخپلي غلطئ تور ئي په هغوئ ﷺ پوري کړو.

**فائده**: دلته په دي خبره هم ژور نظر کول دی چي هر کله خاوند د خپلي بی بی په خيانت او بي حيايئ باندي خبر شو او بيا هم په جوش کښي رانغلو ، او ښه په آرام او تسلئ سره ئي خبري کولي نو دا د انسانی فطرت نه خلاف د تعجب خبره ده .

امام قرطبی ﷫ فرمائي چي ددي يوه وجه دا هم کيدي شي چي عزيز مصر څوك بي غيرته انسان وی ، او دا هم کيدي شي چي څنګه الله ﷻ دا انتظام کړي وو چي يوسف ﷺ لره ئي د ګناه او شرميدو نه په غير عادتی طور اوساتلو دغه شان داانتظام ئي هم اوکړو چي په دغه موقعه باندي ئي عزيز مصر ته غصه ور نه وسته ګنی کيدي شوه(۲) چي د هغه د لاس يا ژبي نه څه خطرناك حرکتونه شوي وو يوسف ﷺ ته ئي څه بدنی يا روحانی تکليف رسولي وي کنځلي ئي ورته کړي وي يا بدردئ ورته وئيلي وي يا ئي وژلي وي ،په اصل کښي دادالله تعالی د قدرت کرشمي دی چي قدم په قدم دحق دتابعدارو حفاظت اوساتنه کوی .[فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ]

دي پسي يوه بله واقعه د ابيان شوي ده چي سره ددي دومره احتياط او بندوبست نه بيا هم دا خبره په درباري ښځو کښي خوره شوه ، د عزيز مصر د بی بی په باره کښي ملامتی او بدرد وئيل شروع کړل ، ځيني مفسرينو فرمائيلی دی چي دا پنځه ښځي وي کومي چي د عزيز مصر د نزدي افسرانو بيبيانی وي ، [قرطبی](۳)

دي ښځو داسي وئيل شروع کړل چي ګورئی ، څومره د حيرانتيا او تعجب خبره ده چي د عزيز مصر بی بی پخپل غلام باندي عاشقه شوي ده ، حالانکه د ډير اوچت سري بی بی ده ، دا خو ددي دپاره ډيره ناروا او دګمراهئ خبره ده ، آيت مبارك کښي [فَتٰىهَا] فرمائيلي شوی دی ، د [فَتٰىهَا] معنی نوي ځوان ده ، کله چي د غلام وړوکي هلك وی نو غلام ورته وئيلي شی چي ځوان

---

(۱) تفسير القرطبی تحت هذه الآية ج:۹ص:۱۷۵

(۲) تفسير القرطبی ج:۹ص:۱۷۵

(۳) تفسير المظهری ج:۵ص:۱۵۷، وتفسير القرطبی، ج:۹ص:۱۷۶

Scanned with Ca

شی نو لتی نر ته او فتاة ښځې ته وئیلې شی ، دلته یوسف ﷺ ته د زلیخې بی بی غلام ځکه اووئیلې شو چې عموما د خاوند ځیزته هم دښځې وئیلې شی، یا په دې وجه چې زلیخې بی بی هغوئ ﷺ لره دخپل خاوندنه دبخشیش یا ډالئ په طور خپل ځان دپاره حاصل کړې وو [قرطبی] (١)

وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِينَةِ امْرَاَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتٰهَا عَنْ نَّفْسِهٖ ۚ

او اووئیل ښځو | په ښار کښې | چې ښځه دعزیز [دمصر] | غولول غواړی | غلام خپل | ددهٔ دنفس [دحفاظت نه]
په ښار کښې ښځو وینا شروع کړه | چې دعزیز مصر ښځه خپل مریې دخپل مطلب دپاره غلوی

قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ۗ اِنَّا لَنَرٰىهَا

چې عاشق شوې دې زړه د هغې | د هغه په محبت کښې | بیشکه مونږه | خامخا وینو هغې لره
دهغه په مینه کښې ډیره لیونئ شوې ده | مونږ وینو گوروچې هغه په ښکاره گمراهئ کښې ده | چې هغې

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ اَرْسَلَتْ اِلَيْهِنَّ

په گمراهئ | ښکاره کښې | نو هر کله چې | واوریدو هغې | مکر دهغوئ | نو اولیږو هغې | هغوئ ته
دنورو ښځو د مکرنه ډکې خبرې واوریدې | نو هغوئ ئې [دودئ له] راوغوښتې | او هغوئ ته ئې

وَاَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَاً وَّاٰتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّيْنًا

او تیارئې کړو [دپاره دهغوئ] [تکیه دار] مجلس | او ورئې کړه | هرې یوې ښځې ته [دهغوئ نه] | چاړه
تکیه گانې کیخودې | او هرې یوې ته ئې چاړه [په لاس کښې] ورکړه | او کله چې هغوئ میوې پریکولې

وَّقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ۚ فَلَمَّا رَاَيْنَهٗٓ اَكْبَرْنَهٗ

او وې وئیل | راوځه په هغوئ | نو هر کله چې | او لیدو هغوئ هغه لره | نو حیرانې شوې
[نو] وې وئیل چې [اې یوسف ﷺ] لږ ورته رامخامخ شه | نو کله چې هغوئ حضرت یوسف ﷺ

وَقَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا هٰذَا بَشَرًا ۗ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

او ویرې ئې کړل | لاسونه خپل | او وې وئیل | پاکی ده الله لره | نهٔ دې دا | انسان | نهٔ دې دا مگر ده
اولیدو [نو هک بک پاتې شوې] او خپل لاسونه ئې [دحیرت په وجه] غوڅ کړل | او دائې اووئیل چې سبحان الله

مَلَكٌ كَرِيْمٌ ۝ قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِيْ لُمْتُنَّنِيْ

یوه فرښته | عزتمنده | اووئیل هغې | پس دادې [اې ښځو] | هغه [خلمې] | چې ملامته کوئ تاسو ما لره
داخو بنی آدم نهٔ ښکاری [داخو بس یو نورانی فرښته ده | دعزیز ښځې اووئیل چې [اومو کتل] دا ستاسو

فِيْهِ ۗ وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ فَاسْتَعْصَمَ ۗ وَلَئِنْ

په باره ددهٔ کښې | او په تحقیق | وغولولو ما دې | ددهٔ د نفس [د حفاظت] نه | خو دهٔ ځان اوساتو | او که چرې
هغه زلمې دې | چې ددهٔ په باره کښې مو په ماپسې خبرې کولې | او بیشکه ما دې خپل ځان ته راوغوښتو | خو دهٔ رانه

(١) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة ۹: ص: ۱۷۷

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لم يفعل | ما | امره | ليسجنن | وليكونا |
| اونه کړو دا | هغه کار | چې زه ئې حکم کوم دا ته | نو خامخا به قيد کړې شي دې | او خامخا به شي دې |

خان بچ کړو او که اوس هم ده زما حکم اونه منلو نو خواه مخواه به جيل ته او غورزولې شي او ذيربې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| من الصغرين | قال | رب | السجن | احب | الي | مما | يدعونني |
| د ذليلانو نه | اووئيل يوسف | اې ربه | قيدخانه | ډيره غوره ده | ماته | دهغې کارنه | چې دوئ رابلي ما |

عزته به شي هغه اووئيل چې اې زما پروردګاره جيل مې د هغې کار نه زيات خوښ دې اکوم ته چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اليه | والا تصرف عني | كيدهن | اصب | اليهن | واكن | من الجهلين |
| هغې ته | او که اونه ګرځول تا زمانه | مکرونه ددوئ | نوزه به مائله شم | دوئ ته | اوشم به زه | د جاهلانونه |

دوئ ما راغواړي او که تا زما نه د دوئ فريبونه لرې نه کړل نو زه به دوئ ته مائله شم او په نا پوهه خلقو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فاستجاب | له | ربه | فصرف | عنه | كيدهن | انه |
| نو قبوله کړه دعا | د هغه | رب دهغه | نو وې ګرځول | دهغه نه | مکرونه دهغوئ | بيشکه هغه |

کښې به شمير شم نو دهغه پروردګار دهغه دعا قبوله کړه او دهغوئ د مکراو فريب نه ئې بچ کړو هغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هو | السميع | العليم | ثم | بدا لهم | من بعد | ما |
| خاص هم هغه | اوريدونکې دې | په هر څه پوهه دې | بيا | ښکاره شوه | هغوئ ته | اروستو د هغې نه |

ذات دهر چا آوريدونکې او په هر څه پوهه دې ابيا هغوئ ته د ښکاره ثبوت ليدلو نه پس هم دا

| | | |
|---|---|---|
| راوا الايت | ليسجننه | حتى حين |
| چې اوليدلې هغوئ علامې | چې خامخا په قيد کښې واچوي هغه | دڅه وخته پورې |

مصلحت ښکاره شو | چې تريوې مودې پورې دې يوسف عليه السلام په قيد کښې واچوي......

## آسان ترجمه قرآن

او ښار کښې څه ښځو ووئيل چه : د عزيز ښځې دخپل ځوان نوکر نه مطالبه کړې ده ددې ځوان محبت دې لره عاشقه کړې ده — او ځمونږ په خيال کښې خو دا په ښکاره ګمراهئ کښې مبتلا ده. نو کله چه دې (د عزيز مصر ښځې) دهغه ښځو مکر واوريدو نو هغې ورته پيغام اوليږلو او هغوی ئې (خپل کور ته) راوبللې او هغوی ته ئې تکياګانې تيارې کړې . او هرې يوې ته ئې چاقو ورکړو او (يوسف ته ئې) ووئيل چه : بهر راوځه دوی ته نو کله چه دې ښځو يوسف اوليدو نو دې ئې انتهائی (ښکلې) ومونډلو . او (د هغه د حسن نه دومره حيرانې شوې) چه لاسونه ئې کټ کړل او وې وئيل چه حاشالله ! دا کس انسان نه دې . دا ديو عزتمندې فرښتې نه سوا نور څوک نه شي کيدې د عزيز ښځې ووئيل چه : اوس وګورئ ! دا هغه کس دې چه د هغه په باره کښې تاسو څه ملامته کړې ووم . او دا خبره رښتيني ده چه ما خپل مطلب حاصلولو دپاره ده نه مطالبه کړې وه . خو دې بچ شو — او که ده ځما په خبره عمل ونکړو نو دې به ضرور قيد کولې شي . او دې به خوار او ذليل وي . يوسف دعا اوکړه چه : اې ځما ربه ! دا ښځې چه ماته د کومې خبرې دعوت راکوي د هغې په مقابله کښې جيل ماته غوره دې او که تا څه د دوی د چلونو نه ونه ساتلم نو ځما

زړه به هم دوی طرف ته مائله شي، اوکوم خلق چه جاهلان دي هغوی کښې به څه هم شامل شم نو د یوسف (علیه السلام) رب د هغه دعا قبوله کړه او هغه یې د دوی د فریبونو نه وساتلو. بې شکه هغه د هرې خبرې آوریدونکې او په هر څه پوهیږي. بیا دې خلقو (د یوسف علیه السلام د پاکوالي) ډیرو نښو کتلو نه وروستو دا مناسب وګڼړل چه د یو څه مودې پورې جیل ته واچوي.

**خلاصه تفسیر:**

﴿وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِينَةِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتَاهَا عَنْ نَفْسِهِ ۖ قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ۖ إِنَّا لَنَرَاهَا فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ۝﴾ او ښځو کومې چه په ښار کښې اوسیدې دا خبره وکړه چه د عزیز ښځې خپل غلام د خپل [ناجائز] خواهش حاصلولو لپاره غولوي [څومره کمینه حرکت دی چه په غلام مینه کیږي] د دې غلام عشق د دې په زړه کښې ځای نیولی دی مونږ خو دا ښکاره غلطۍ کښې وینو.

﴿فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ أَرْسَلَتْ إِلَيْهِنَّ وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَأً وَآتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُنَّ سِكِّينًا وَقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ۖ فَلَمَّا رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ مَا هَٰذَا بَشَرًا إِنْ هَٰذَا إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ ۝﴾ پس هر کله چه دې ښځې د دې ښځو بدګوئي [خبرې] واوریدې نو د چاپه لاس ئې دوی راوبللې [چه ستاسو دعوت دی] او د دوی لپاره ئې مسند تکئې ولګولې او [هر کله چه دوی راغلې او مختلف قسم خوراکونه ئې ورته کیښودل او میوې ئې حاضرې کړې چه بعضې څیزونه پکښې په چاقو سره د پرې کولو او خوړلو وو په دې وجه] هرې یوې ته ئې په دوی کښې یو یو چاقو [هم] ورکړو [کوم چه په ظاهر کښې د میوو پرې کولو بهانه وه او اصل مقصد هغه وه کوم چه مخکښې راغې چه دوی بدحواسه شي خپل لاسونه پرې کړي] او [دا ټول سامان ئې برابر کړو یوسف [علیه السلام] ته کوم چه یو بل ځای کښې وو] اوویل چه لږ دوی ته مخامخ خو راشه [یوسف [علیه السلام] دا ونه ګڼله چه څه صحیح غرض به وي بهر راغې] پس ښځو چه ولیده نو [دده ښائست ته] حیرانې شوې، او [په دغه دوران کښې ئې] خپل لاسونه پرې کړل [په چاقوانوئې میوې پرې کولې چه یوسف [علیه السلام] ئې ولیدو نو داسې بدحواسه شوې چه لاسونه ئې ورسره غوڅ کړل] او وئې ویل چه په الله پناه دا خو سړی هر ګز نه دی دا خو څوك بزرګه فرشته ده.

﴿قَالَتْ فَذَٰلِكُنَّ الَّذِي لُمْتُنَّنِي فِيهِ ۖ وَلَقَدْ رَاوَدْتُهُ عَنْ نَفْسِهِ فَاسْتَعْصَمَ ۖ وَلَئِنْ لَمْ يَفْعَلْ مَا آمُرُهُ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُونًا مِنَ الصَّاغِرِينَ ۝﴾ دغې ښځې وویل نو [وګورئ] هغه سړی دا دی د چاپه باره کښې چه تاسو ما ملامته کوئ [چه د خپل غلام سره مینه کوي] او واقعي چه ما دده نه د خپل مطلب د حاصلولو کوشش کړی وو مګر دی پاك صاف پاتې شو او [بیا ئې یوسف [علیه السلام] ته واورولو او دهمکي ئې ورکړه چه] که آئنده څما خبره ونه مني [لکه چه ترا وسه پورې ئې نده منلې] نو بیشکه جیلخانې ته به ولیږلی شي او بې عزته به شي [دغو ښځو هم یوسف [علیه السلام] ته وویل چه تا ته د خپل محسن نه دومره لاپرواهي نده پکار دې چه در ته څه وائې خبره ئې منه].

﴿قَالَ رَبِّ السِّجْنُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِي إِلَيْهِ ۖ وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ إِلَيْهِنَّ وَأَكُنْ مِنَ الْجَاهِلِينَ ۝ فَاسْتَجَابَ لَهُ رَبُّهُ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝﴾ یوسف [علیه السلام] دا خبرې واوریدې چه دا ټولې خودې په ډله دی نو د الله نه ئې] سوال وکړو چه ای څما ربه کوم [ناجائز] کار طرف ته چه دا ښځې ما بلې دی نه خو جیلخانه ما ته بهتره ده او که ته د دوی دا مکر او فریب څما نه منع نکړې نو زه به دوی طرف ته مائل شم او د ناپوهانو کار به وکړم پس دده دعاء دده رب قبوله کړه او دی ئې د

دغو ښځو د مکر او فریب نه لري کړو بیشکه هغه [د دعا گانو] الوی اوریدونکی [او ددې د حالاتو] ښه پیژندونکی دی.

﴿ثُمَّ بَدَا لَهُمْ مِّنْ بَعْدِ مَا رَاَوُا الْاٰیٰتِ لَیَسْجُنُنَّهٗ حَتّٰی حِیْنٍ﴾ [بیا د یوسف [علیه السلام] د پاکدامنئ] د مختلفو نښو دلیدونه پس [په دې سره پخپله خوددوی پوره یقین راغلی وو مگر په عوامو کښې چرچا شوی وه ددې دختمولو په غرض سره] دغو خلقوته [عزیز او دده متعلقینوته] دا مصلحت معلوم شو چه دی تریووخته پورې په قید کښې وساتی.

## معارف او مسائل

[فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ اَرْسَلَتْ اِلَيْهِنَّ] [چې هغې دنورو ښځو د مکرنه ډکې خبرې واوریدې] نو هغوئ ئې [د ودئ له] راوغوښتې] دلته زلیخې بی بی د دغې ښځو خبرو کولوته مکر او دهوکه اوونیله ځکه چې هغوئ به زلیخې بی بی پسې دا خبرې په پټه کولې حالانکه په ښکاره خو دا څه مکر نه وو.

[وَاَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَاً] [ | اوهغوئ ته ئې تکیه گانې کیخودې] [وَاٰتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّيْنًا] [او هرې یوې ته ئې چاړه [په لاس کښې] ورکړه اوکله چې هغوئ میوې پریکولې] مگر اصلی مقصد ئې هغه وو دکوم بیان چې اوس داسې راروان دې چې د یوسف ﷺ په لیدو به دوئ وارخطاشی او میوو په ځائې به خپلې گوتې پریکړی.

[وَقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ] [نو] وې وئیل چې [ائې یوسف ﷺ لږ ورته رامخامخ شه] هر کله چې یوسف ﷺ ته ئې دغه اصلي مقصد د ورانئ معلومه نه وو ځکه ئې بهر ته تشریف راوړو.

[فَلَمَّا رَاَيْنَهٗۤ اَكْبَرْنَهٗ وَقَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا هٰذَا بَشَرًا ۗ اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا مَلَكٌ كَرِيْمٌ] [نو کله چې هغوئ حضرت یوسف ﷺ اولیدو [نو هک بک پاتې شوې] اوخپل لاسونه ئې [دحیرت په وجه] غوڅ کړل | او دائې اووئیل چې سبحان الله داخو بنی آدم نهٔ ښکاری [دا خو بس یو نورانی فرښته ده ] مطلب ئې دا وو چې داسې نورانی فرښته کیدې شی بنیادم نشی کیدې.

[قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِيْ لُمْتُنَّنِيْ فِيْهِ ۗ وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ فَاسْتَعْصَمَ ۗ وَلَئِنْ لَّمْ يَفْعَلْ مَاۤ اٰمُرُهٗ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُوْنًا مِّنَ الصّٰغِرِيْنَ] [دعزیز ښځې اووئیل چې [اومو کتل] داستاسو هغه زلمې دې [چې دده په باره کښې مو په ما پسې خبرې کولې] او بیشکه مادې خپل خان ته راوغوښتو [خو دهٔ رانه خان بچ کړو] اوکه اوس هم دهٔ زما حکم اونهٔ منلو [نو خواه مخواه به جیل ته اوغورزولې شی] او ډیر بې عزته به شی]

دغې ښځې چې اولیدل چې زما راز خو ښکاره شوې دې ښځو ته ځکه هم ددوئ په مخکښې ئې په یوسف ﷺ غصه اوکړه. ځینې مفسرینو لیکلی دی چې په دغې موقعه دغې تولو ښځو هم یوسف ﷺ ته اووئیل چې دې ښځې تاسره نیکی کړې ده ځکه ئې خبرې منلو کښې څه چیر اونه کړو.

د قرآن عظیم الشان د ځینې راتلونکو [يَدْعُوْنَنِيْۤ] او [كَيْدَهُنَّ] الفاظو نه هم ددې تائید کیږی ځکه چې دا الفاظ د جمع دی.

کله چې یوسف ﷺ اوکتل چې دغه ښځو هم د زلیخې بی بی ملگرتیا او تائید اوکړو او ددغې نه ورسره د خلاصیدو څه ظاهری انتظام نهٔ، ځکه ئې الله ﷻ ته په دې شان توجه اوکړه چې:

[رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا يَدْعُوْنَنِيْۤ اِلَيْهِ ۚ وَاِلَّا تَصْرِفْ عَنِّيْ كَيْدَهُنَّ اَصْبُ اِلَيْهِنَّ وَاَكُنْ مِّنَ الْجٰهِلِيْنَ] [هغه اووئیل چې ائې زما پروردگاره [جیل مې د هغې کار نه زیات خوښ دې [کوم ته چې دوی ما راغواړی] او که

تا زما نه د دوئ فریبونه لرې نه کړل نو زهٔ به دوئ ته مائله شم او په نا پوهه خلقو کښې به شمیر شم یوسف ﷺ چې قید خانه خوښه کړه ، ددې مطلب د قید او بند خواهش کول نه وو بلکه د گناه په مقابله کښې دغې دنیوی مصیبت لره آسان گڼړل دی ، ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې کله یوسف ﷺ په قید خانه کښې واچولې شو نو د الله تعالی د طرفه ورته وحی اوشوه چې تا پخپله خپل ځان قیدی کړو ځکه چې سوال دې کړې وو.

رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَیَّ مِمَّا يَدْعُوْنَنِیْٓ اِلَيْهِ] که تا د پوره آزاید و دعا کړې وې نو هم دغه شان به شوی وو دې نه معلومه شوه چې یو لوئې مصیبت نه د آزادیدو په دعا کښې داسې مناسب نه دی چې فلانی ورکوتی مصیبت کښې مې اخته کړې بلکه د هر مصیبت او آزمیښت نه د بالکل خلاصید دعا کول پکار دی. ځکه چې رسول کریم ﷺ یو کس لره د صبر د دعا کولو نه ځکه منع کړو چې په دې شان سره د صبر دعا کول په مصیبت او آزمیښت باندې راضی کیدل دی ، په دې موقعه رسول کریم ﷺ دا هم اوفرمائیل چې د صبر د دعا غوښتلو په ځائې د هر مصیبت نه د خلاصیدو دعا کوه [ترمذی] . (۱)

د رسول کریم ﷺ تره عباس رضی الله عنه یو ځل رسول کریم ﷺ نه د دعا د خودلو خواست اوکړو ، رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د خپل رب نه د عافیت دعا کوئی . عباس رضی الله عنه څه موده پس ترې بیا دغه خواست اوکړو ، رسول کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې الله ﷻ نه د دنیا او آخرت د عافیت سوال کوه .[مظهری از طبرانی] . (۲)

یوسف ﷺ دا اوفرمائیل چې که ته رانه د دوئ مکر وفریب دفع نه کړې نو کیدې شی چې زهٔ د دوئ طرفت ورمات شم. داسې سوال کول د پیغمبرئ د پاکوالی سره بې سمونه نه دی ځکه چې ددې مطلب هم دادې چې الله ﷻ دې په تکوینی شان سره ددغې گناه نه زما دخلاصولو انتظام اوکړی ، بله خبره داده چې د پیغمبرئ د تقاضا مطابق یوسف ﷺ ته دا مقصد د رومبې نه هم حاصل وو مگر بیا هم د زیات ادب او ویرې په وجه داسې دعا کولو باندې مجبوره شو.

دې نه یوه خبره معلومه شوه چې هیڅوك د الله ﷻ د مدد نه بغیر ، د گناه نه نشی بچ کیدې.
دا هم ترې معلومه شوه چې د هرې گناه کار د جهالت نه کیږی ، د علم تقاضا داده چې د گناه نه ځان اوساتلې شی [قرطبی] . (۳)

[فَاسْتَجَابَ لَهٗ رَبُّهٗ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ۚ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ] نو دهغه پرودرگار دهغه دعا قبوله کړه او دهغوئ د مکر او فریب نه ئې بچ کړو هغه ذات دهر چا آوریدونکې او په هرڅه پوهه دې ]
الله تعالی ددغې ښځې، دجال نه د یوسف ﷺ د ساتلو انتظام اوکړو چې د عزیز مصر او دهغه دوستانو اگر چې د یوسف ﷺ د بزرگئ تقوئ او پاکوالی د ښکاره نخښو په لیدو سره د یوسف ﷺ په پاکوالی یقین کړې وو مگر په ښار کښې دغه واقعه خوره شوې وه چې دهغې د اثر ختمولو دپاره ورته دا ښهٔ ښکاره شوه چې څه زمانې دپاره یوسف ﷺ په قید خانه کښې واچولې شی ، او پخپل کور کښې ددغې شبهو څه موقعه هم پاتې نشی او د خلقو ژبې هم ددې خبرو کولو نه بندې شی لکه فرمائی چې :

(۱) جامع الترمذي ابواب الدعوات باب منه : ۲: ص: ۱۹۲، ۱۹۳.
(۲) تفسير المظهري ۳: ۵ ص: ۱۶۰
(۳) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ۳: ۹ ص: ۱۸۵.

Scanned with Ca

[ثُمَّ بَدَا لَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا رَاَوُا الْاٰيٰتِ لَيَسْجُنُنَّهٗ حَتّٰى حِيْنٍ۝] [بیا هغوئ ته د ښکاره ثبوت لیدلو نه پس هم دا مصلحت ښکاره شو | چې تریوې مودې پورې دې [یوسف ﷺ] په قید کښې واچوي]

وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ ؕ قَالَ اَحَدُهُمَآ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ

اوننوتل | د هغه سره | قیدخانې ته | دوه غلامان | اووئیل | یو د هغوئ دواړونه | بیشکه زهٔ | وینم خان خپل

او جیل ته ورسره نور دوه خلمي امریان | داخل شو | یوه ورځ | یو اووئیل چې | په خوب کښې | زهٔ ګورم چې

اَعْصِرُ خَمْرًا ۚ وَقَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ

چې نچوړوم | شراب | او اووئیل | هغه بل | بیشکه زهٔ | وینم خان خپل | چې بار کړې مې ده | د پاسه | د سر خپل

د انګورو نه شراب نچوړوم | او بل اووئیل چې زهٔ | په خوب کښې | څه ګورم چې ډوډئ مې | په

خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ؕ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ

ډوډئ | چې خوري | مارغان | د هغې نه | خبر کړه مونږه | په تعبیر د دې | بیشکه مونږه | وینو تا لره

طباخ کښې | په سر ایخودې ده | چې مرغئ ترې | په ټونګو ټونګو | خوراکونه کوي | مونږ ته د دې

مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ۝ قَالَ لَا يَاْتِيْكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقٰنِهٖٓ

د نیکانو خلقو نه | اووئیل یوسف | چې نه راځي تاسو ته | خوراک | چې درکولې شي تاسو ته

[خوبونو] تعبیرونه اوښایه | ته مونږ ته ښهٔ سړې ښکارې | هغه ورته اووئیل چې تاسو ته کوم رزق درکولې شي

اِلَّا نَبَّاْتُكُمَا بِتَاْوِيْلِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّاْتِيَكُمَا ؕ

مګر | خبر به درکړم زهٔ تاسو ته | په تعبیر د هغې سره | مخکښې | د راتلو د هغې خوراک نه تاسو ته

هغه به لا تاسو ته نهٔ وی راغلې | چې څه به درته د هغې تعبیر اوښایم ........................

ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِيْ رَبِّيْ ؕ اِنِّيْ تَرَكْتُ مِلَّةَ

دا تعبیر ستاسو | د هغه علم نه دې | چې ښودلې دې ماته | رب زما | بیشکه ما | پرېښودې ده | طریقه

دا په هغې علمونو کښې یو علم دې | چې خپل پروردګار راته خودلی دی | ما خو لا پخوا | د هغې کسانو

قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ۝

د هغه خلقو | چې هغوئ ایمان نهٔ راوړي | په الله | او هغوئ | د آخرت نه | هم هغوئ | انکار کونکی دی

مذهب پرېخودې دې | چې په الله ﷻ باندې باور نهٔ ساتي | ........ او د آخرت نه منکر دی

وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَآءِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ مَا كَانَ لَنَآ

او تابعداری کړې ده ما | د طریقې | د پلار نیکه خپل | چې ابراهیم | او اسحاق | او یعقوب دی | نهٔ ښائي مونږ لره

او زهٔ د خپل پلار نیکه ابراهیم ﷺ، او اسحاق ﷺ او یعقوب ﷺ د مذهب تابعداری کوم

اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ؕ ذٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ

چې شریک کړو | د الله سره | څه څیز | دا د فضل د الله نه دې | په مونږ باندې | او په ټولو انسانانو باندې

مونږ سره نهٔ ښائي چې د الله ﷻ سره څه څیز شریک کړو | دا په مونږ باندې او په | ټولو | خلقو

Scanned with Ca

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ۝٣٨ يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ ءَاَرْبَابٌ

خو ليکن | زيات خلق | شکر نه اوباسي | اٸي دوارو ملګرو زما دقيد | ايا ډير خدايان

باندي دالله ﷻ فضل دي | خو اکثر خلق احسان نه مني | اٸي زما د قيد خانې ملګرو | تاسو په خپله اووائي چي |

مُّتَفَرِّقُوْنَ خَيْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝٣٩ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ

جدا جدا | بهتر دي | يا الله | يو | چي غالب دي په ټولو | نه کوئ تاسو عبادت | ماسوا دالله نه

جدا جدا معبودان ښه دي | که يو اخي يو غالب الله ﷻ | تاسو چي د الله ﷻ نه سوا د نورو کومو بتانو

اِلَّآ اَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا

مګر | ديو خونومونو | چي اېښي دي هغه | تاسو | او پلارانو ستاسو | نه دي نازل کړي | الله | په [عبادت] دهغوئ

عبادت کوئ | نو هغه صرف نومونه دي | چي تاسو او ستاسو پلرونو دخان نه ايخودي دي | الله ﷻ دهغي هيڅ

مِنْ سُلْطٰنٍ ۭ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ۭ اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا

څه دليل | نشته اختيار دحکم کولو | مګر | الله لره دي | هغه حکم کړي دي | چي مه کوئ عبادت تاسو دهيچا

دليل سند نه دي رالېږلي | حکومت خو بس صرف دالله حق دي | هغه دا حکم کړي دي | چي بي دهغه نه

اِلَّآ اِيَّاهُ ۭ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝٤٠

مګر | خاص هم دهغه | دادي | دين | نيغ [برحق] | خو ليکن | زيات خلق | نه پوهيږي

د بل هيڅ چا عبادت مه کوئ | هم دغه سم پوخ دين دي | خو زيات خلق نه پوهيږي

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ اَمَّآ اَحَدُكُمَا فَيَسْقِيْ رَبَّهٗ خَمْرًا ۚ

اٸي ملګرو زما | دجيل | هر چي دي | يو په تاسو دوارو کښي | نو څښوي به | په رب خپل | شراب

اٸي زما د قيد خانې ملګرو | ستاسو دخوبونو تعبير دادي چي | په تاسو کښي به يو کس [په کار اولګي او] خپل مالک

وَاَمَّا الْاٰخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْ رَّاْسِهٖ ۭ قُضِيَ الْاَمْرُ

او هر چي دي | دا بل | نو په سولۍ به کړي شي | نو خوري به | مارغان | دسرد هغه نه | شوي ده | فيصله

باندي به شرابونه څښوي | او بل چي دي نو هغه به پانسي شي | او مرغۍ به ئي دسر نه غوښي [په ټونګو ټونګو]

الَّذِيْ فِيْهِ تَسْتَفْتِيٰنِ ۝٤١ ۭ وَقَالَ لِلَّذِيْ ظَنَّ

هغه | چي په هغي کښي | تپوس کولو تاسو زمانه | او وي وئيل | هغه کس ته | چي خيال وو دهغه

خوري | دکوم خوب په باره کښي چي تاسو زما نه پوښتنه کوله د هغي جواب اوشو | او په دوارو کښي چي ئي د

اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِيْ عِنْدَ رَبِّكَ ۡ فَاَنْسٰىهُ

چي بيشکه هغه | خلاصيدونکي دي | ادوي دوارونه | چي ياد کړه ما | په نيز د مالك خپل | نو هير کړل دهغه نه

چا د خلاصي ګمان کولو | هغه ته ئي اووئيل | چي خپل مالک ته زما ذکر اوکړه | خو شيطان د هغه نه

الشَّيْطٰنُ ذِكْرَ رَبِّهٖ فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِيْنَ ۝٤٢ ۧ

شيطان | يادول خپل مالک ته | نو وخت تير کړو [يوسف] | په جيلخانه کښي | يو څو کلو نه

دخپل مالک په مخکښي يادول هير کړل | نو [يوسف ﷺ] څو کاله په جيل کښي پاتي شو

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

او دیوسف سره دوه نور ځوانان جیل ته داخل شو دوي کښې یو (یوسف ته یو ورځ ووئیل) چه: څه خوب کښې خپل ځان لره وینم چه شراب نچوړوم . او دویم ووئیل چه څه (خوب کښې) داګورم چه ما خپل سر باندې دوډئ اوچتې کړې دی (او) مارغان د هغې نه خوري — لږ مونږ ته ددې تعبیر بیان کړه . مونږ ته ته نیک سړې ښکارې یوسف ووئیل : کوم خوراک چه تاسو ته (جیل کښې) درکولې شي، هغه به هم لا نه وي راغلي چه زه به تاسو ته ددې حقیقت بیان کړم دا د هغه علم حصه ده چه ما ته ځما پروردګار را کړې ده (خو دې نه مخکښې ځما یو خبره واورئ) خبره دا ده چه ما د هغه خلقو دین پریښودې دې چه په الله باندې ایمان نه لري او چه د آخرت نه منکر دي او ما د خپل پلارانو ابراهیم ، اسحاق او یعقوب د دین تابعداری کړې ده — مونږ ته دا حق نشته چه مونږ دالله سره څه څیز هم شریک کړو دا (د توحید عقیده) په مونږ او په ټولو خلقو دالله د فضل حصه ده ، لیکن اکثر خلق (ددې نعمت) شکر په نه ادا کوی اې ځما د جیل ملګرو ! آیا ډیر جدا جدا خدایان بهتر دي ، یا هغه الله چه د هغه قدرت په ټولو باندې دې ؟ د هغه نه سوا چه د چا تاسو عبادت کوئ د هغوی حقیقت د څو نومونو نه سوا نشته چه تاسو او ستاسو پلارنیکه وربانډې ایښودې دی الله د دوی په حق کښې هیڅ دلیل نه دې رالیږلې حاکمیت دالله نه علاوه چا ته نه دې حاصل — هغه دا حکم کړې دې چه د هغه نه سوا د بل چا عبادت مه کوئ — دا مضبوط دین دې ، لیکن اکثر خلق نه پوهیږی اې ځما د جیل ملګروا (اوس د خوبونو تعبیر واورئ) تاسو کښې د یو معامله خو دا ده چه هغه به د جیل نه آزاد شي او خپل مالک باندې به شراب څکوی، پاتې شو دویم نو هغه به پهانسي کړې شي ، ددې په نتیجه کښې به مارغان د ده د سر (راښکوی او) خوری به ئې د کومې معاملې په باره کښې چه تاسو تپوس کړې وو د هغې فیصله (د هغه شان) شوې ده . د دوی دواړو نه د کوم په باره کښې چه د هغه دا ګمان وو چه دې به آزاد شي، هغه ته یوسف (علیه السلام) ووئیل چه : خپل مالک ته ځما یادګیرنه هم وکړه بیا وشول دا چه شیطان د هغه نه دا خبره هیره کړه چه د یوسف یادګیرنه خپل مالک ته وکړي . نو هغه څوکاله جیل کښې پاتې شو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ ۗ قَالَ اَحَدُهُمَآ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَعْصِرُ خَمْرًا ۚ وَقَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ۭ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝﴾ اود یوسف [ﷺ] سره [په دغه زمانه کښې] نورهم دوه غلامان دبادشاه جیل ته داخل شو [یو یکښې ساقي اودویم باورچي روټۍ پخونکی وو، او ددوی دقیدوجه شبهه وه بادشاه ته دزهرورکولوپه طعام اوشراب کښې مقدمه ئې زیرتحقیق وه خکه قیدشول کله چه دوی په یوسف [ﷺ] کښې دبزرګۍ نښې ولیدلی نو] یو په دوی کښې یوسف [ﷺ] ته وویل چه څه خپل ځان په خوب کښې [داسې] وینم چه شراب نچوړوم یعنې د انګورو شیره نچوړوم اوپه بادشاه ئې څکوم] اوبل وویل چه څه خپل ځان داسې وینم چه [لکه] په سرروټۍ وړم [او] مارغان ترې [په ټونګوټونګو] خوري مونږته ددې خوب [کوم چه مونږ لیدلی دی] تعبیروښایه ته مونږته نیک سړی ښکاری.

Scanned with Ca

﴿قَالَ لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِ إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَكُمَا ۚ ذَٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي ۚ إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ﴾ یوسف [علیه السلام] چه هر کله داولیدل چه داخلق په عقیده سره ماته مائل شویدي نوونی غوښته چه دوی ته دتولونه مخکی دایمان دعوت ورکړی شی په دی وجه ئی اول خپل نبوت په یوی معجزی سره دثابتولودپاره] وفرمائل چه[وګوری]کوم خوراك چه تاسوته راځی[جیل کښی]زه ددی دراتلونه مخکی ددی حقیقت تاسوته ښایم[چه فلانی شی به راځی اوداسی داسی به وي او]داخودل ددی علم په وجه دی کوم چه ماته خمارب ښودلی دی[ماته په وحی سره معلومیږی نودایوه معجزه ده چه دلیل دنبوت دی اوداوخت دغه معجزه ښکه مناسب وه چه په کومه واقعه کښی بندیانوده طرف ته رجوع وکړه دتعبیر لپاره دغه واقعه هم دخوراك سره متعلق وه،دنبوت ثابتولونه بعداوس مخکی دتوحید ثابتولو مضمون بیانوي چه]ماخودهغه خلقومذهب[دمخکی نه]پریخودی دی کوم چه په الله ایمان نه راوړي اودغه خلق دآخرت نه هم منکردي.

﴿وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَائِي إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ ۚ مَا كَانَ لَنَا أَنْ نُشْرِكَ بِاللَّهِ مِنْ شَيْءٍ ۚ ذَٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ﴾ اومادخپلو[مشرانو]پلارنیکونومذهب اختیارکړی دی دابراهیم اوداسحاق اودیعقوب[ علیهم السلام]اوددی مذهب غټ رکن دادی چه]مونږته په هیڅ شان مناسب ندی چه دالله سره څه شی [په عبادت کښی]شریك کړودا[دتوحیدعقیده]په مونږه او[نورو]خلقوباندی[هم]دالله تعالی یوفضل دی[چه پدی سره ددنیا اوآخرت فلاح اونجاح ده]لیکن اکثرخلق[دی نعمت] شکرنه [اداکوئ] یعنی [توحیدنه مني].

﴿يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَأَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝ مَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ ۚ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۚ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ۚ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ ای دقیدخانی ملګرو:[لږسوچ اوکړئ بیا اوائی چه دعبادت لپاره]جداجداخدایان غوره دی یا یو معبود برحق کوم چه دټولونه زبردست دی هغه ښه دی،تاسوخلق خوالله پریدئ فقط دیوڅوبی حقیقته نو مونو عبادت کوئ کوم چه تاسواوستاسو پلارانو او نیکونو[دخان نه] مقررکړیدي الله تعالی خو ددوی [د معبود کیدو]څه دلیل ندی رالیږلی[نه عقلی اونه نقلی او] حکم خاص دالله دی هغه داحکم کړی دی چه غیر دهغه نه دهیچاعبادت مکوئ داد [توحید او عبادت فقط الله ته مخصوص کولو]برابره طریقه ده لیکن اکثرخلق نه پوهیږي.

﴿يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَمَّا أَحَدُكُمَا فَيَسْقِي رَبَّهُ خَمْرًا ۖ وَأَمَّا الْآخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَأْكُلُ الطَّيْرُ مِنْ رَأْسِهِ ۚ قُضِيَ الْأَمْرُ الَّذِي فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ﴾[دایماندعوت اوتبلیغ نه پس اوس ددوی دخوب تعبیربیانوی چه]ای دجیل ملګروا په تاسوکښی به یوخو[دجرم نه بری شی]خپل مالك ته به [په زړه طریقه]شراب سکوی اودویم به[مجرم شي]په سولی به کړی شی اودده سریه مارغان په [ټونګوټونګو]وخوري اوپه کومه باره کښی چه تاسوتپوس کولوهغه دغه شان په تقدیرکښی مقررشوه [چنانچه دمقدمی دصفائي نه بعددغسی وشوچه یوبری ثابت شواودویم مجرم دواړه دجیلخانی نه راوغوښتلی شویودآزادئ لپاره اوبل دسزالپاره].

﴿وَقَالَ لِلَّذِي ظَنَّ أَنَّهُ نَاجٍ مِنْهُمَا اذْكُرْنِي عِنْدَ رَبِّكَ فَأَنْسَاهُ الشَّيْطَانُ ذِكْرَ رَبِّهِ فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِينَ﴾ [هرکله چه دغه سړي دجیلخانی نه تلل نو]دکوم سړی دآزادیدوچه ګمان وو ده ته یوسف [علیه السلام]اوویل چه خپل مالك ته څماذکروکړه[چه یوسړی بی قصوره په جیل کښی دی هغه وعده

وکړه]بيا دده دخپل مالك په مخکې [ديوسف [ﷺ]يادول شيطان هيرکړل نو[په دی وجه]په قيدخانه کښې نورهم څوکاله دی پاتې شو.

## معارف او مسائل

دلنه د يوسف ﷺ د قيصې په بحث کښې يوه بله قصه راغلې ده ، هسې خو تاسو ته بيا بيا معلومه شوه چې قرآن عظيم الشان څه تاريخي يا دقيصو کتاب نه دې ، په دې کښې چې چرته څه تاريخي قيصه بيان شوې ده ، دهغې نه به مقصد يواځې دا وی چې انسان ترې عبرت حاصل کړی په ټول قرآن عظيم الشان کښې د بې شميره پيغمبرانو ﷺ قيصې راغلی دی خو صرف د يوسف ﷺ قيصه په کښې لکه د زنځير د کړو پشان په ترتيب سره بيان شوې ده نورو ټولو مقاماتو کښې د هغې مناسب د تاريخي واقعې څه ضروری حصه بيان شوې ده .

د يوسف ﷺ په دې قصه کښې د انسانی ژوند د مختلفو دورونو دپاره ډير ضروری هدايات شته دې ، ددې په بحث کښې راغلې دې واقعه کښې هم ډير زيات هدايات موجود دی .

هرکله چې د يوسف ﷺ پاکوالی او بې ګناهي بالکل ښکاره شوه ، بيا هم عزيز مصر او دهغه بی بی د خبرې سرولو دپاره څه مودې دپاره يوسف ﷺ د دعا ا وخواهش مکمل کول وو ولې چې د عزيز مصر په کور کښې د اوسيدو په صورت کښې ورته خپل پاکوالئ قائم لرل سخته ګرانه شوې وه .

يوسف ﷺ سره دغه قيدخانې ته دوه نور مجرمان قيديان هم ورغلی وو ، يو په کښې د بادشاه ساقی او بل ئې باورچی وو ، ابن کثير ﷺ د تفسير د امامانو ﷺ په حواله سره ليکلی دی چې دا دواړه په دې وجه ګرفتار شوی وو چې په دوئ باندې بادشاه ته په خوراك کښې د زهر ورکولو الزام وو . ددغې مقدمې د تحقيق کيدو په دوران کښې دوئ قيدخانې ته د حوالاتيانو په صورت کښې ليږلې شوی وو .(١)

يوسف ﷺ به د پيغمبرئ د شان مطابق د قيدخانې ټولو قيديانو سره ، ا خلاقو ، ، رحمت او شفقت سره پيش راتلو ، د ټولو زړه به ئې ساتلو او دهغوئ خبر به ئې اخستو ، د بيمارانو عيادت او خدمت به ئې کولو غمژن او پريشانه خلقو ته به ئې تسلی ورکوله د صبر کولو خودنه به ئې ورته کوله او د خلاصی اميدونو ورکولو سره به ئې د هغوئ زړونه غټول ، پخپله به ئې تکليف تيرولو او نورو ته به ئې د آرام ورکولو فکر کولو ، او ټوله شپه به ئې د الله تعالی په عبادت کښې رونړوله ، د هغوئ ﷺ دداسې حرکاتو په ليدلو سره د قيدخانې ټول قيديان د هغوئ ﷺ د بزرګئ عقيدت مند شوی وو ، د قيدخانې افسر هم ترې پوره اثر اخستې وو ، ورته ئې وئيلی وو چې که ستاسو پرينبودل زما په اختيار کښې وې نو ما به ته پرينبودی وې ، اوس دومره کولې شم چې تاسو ته دلته څه تکليف اونه رسی .

**يو عجيبه فائده**: کله چې د جيل افسر يا نورو قيديانو يوسف ﷺ سره خپل عقيدت او مينه ښکاره کړه او وې وئيل چې مونږ درسره زياته مينه لرو نو يوسف ﷺ او وئيل چې الله تعالی دپاره ماسره مينه مه کوئ ولې چې کله هم ماسره مينه کړې شوې ده نو د هغې په وجه په ماباندې څه آفت راغلې دې . بابا جی راسره مينه کوله نو د رونړو دلاسه په کوهی کښې

---

(١) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية ج:٣ص:٣٨٤ .

اوغورزولې شوم ، بيا غلام جوړ کړې شوم او بې وطنه کړې شوم ، د عزيز مصر بي بي راسره مينه اوکړه نو دادې قيدخانې ته راورسيدم [ابن کثير ، مظهري] (۱)
يوسف ﷺ سره جيل ته ورغلي دوه قيديانو يوه ورځ ورته عرض اوکړو چې تاسو راته نيك او صالح ښکارئ ، ځکه تاسو نه دخپلو خوبونو تعبير باره کښې تپوس کوو. ابن عباس ﷺ او ځينې نورو امامانو د تفسير اوفرمائيل چې دا خوبونه هغوئ يقينا ليدلي وو. خو عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چې خوبونه ئې نه وو ليدلي بلکه د يوسف ﷺ بزرگي او ريښتينولي ئې معلومول غوښتل چې ددې آزميښت دپاره ئې خوبونه هسې د ځانه جوړ کړي وو.
بهر حال شاهي ساقي اووئيل چې ما خوب کښې اوليدل چې په انګورو نچوړولو سره شراب جوړوم ، هغه بل باورچي اووئيل چې په خوب کښې مې اوليدل چې خوب مې ليدلې چې په سر مې د روټو[ډوډئ] ټوکرئ ده چې مارغان ترې په راشوکولو سره خوراك کوي ، دغې دواړو خواست اوکړو چې مونږ ته ددې دواړو خوبونو تعبير اوښايئ.
يوسف ﷺ ددې په جواب کښې پيغمبرانه انداز اختيار کړو ، ړومبې ئې ورته تبليغ شروع کړو ، د ايمان د بلنې کارئې شروع کړو ، او د بلنې اصولو په مطابق دحکمت او عقل مندئ نه ئې کار واخستو ، ټولو نه اول ئې دخلقو په زړونو کښې خپل اعتماد پيدا کولو دپاره د خپلې هغه معجزې يادګيرنه اوکړه چې تاسو ته ستاسو دکورونو يا دبل ځائې نه خوراکه راځي نو د هغې د رارسيدو نه وړاندې درته ښايم چې کوم قسم خوراکه ، څنګه څومره او څه وخت به درته راځي چې هم زما خبره صحيح خيژي . [ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي ط] دا څۀ د رمل جفر يا جادوګرئ کار نه دې بلکه زما رب راته د وحي په ذريعه ښائي چې زه يې تاسو ته بيانوم ، دا داسې يو ښکاره معجزه ده چې د پيغمبرئ دليل او د اعتماد يوه لويه ذريعه ده، وروسې يې اول د کفر خرابي او د کفر د ملت څخه يې خپله بيزاري بيان کړه ، بيا يې دا ضباط کړه چې زه د نبوت دخاندان څخه يو کس او هم دهغوئ د حق ملت پابند يم او زما پلرونه ، نيکونه ، ابراهيم ﷺ ، اسحاق ﷺ او يعقوب ﷺ دي ، دا خانداني شرافت هم عادةً د انسان د اعتماد پيدا کيدو يوه ذريعه وي ، وروسې يې ورته دا اوښودل چې مونږ لره هيڅ شان سره جائز نه دي چې الله تعالى سره بل چالره دهغه په خدائي صفتونو کښې شريك اوګڼړو او بيا يې اوفرمائيل چې د حق دين دا توفيق راکول په مونږ او په ټولو خلقو باندې خالص دالله تعالى فضل دې چې هغه راته د پوهې سلامتي راکړه او دحق قبلول يې ما دپاره آسان کړل خو ډير خلق ددې نعمت قدر نه کوي او شکر نه ادا کوي.
بيا يې هم ددغه قيديانو څخه تپوس اوکړو چې تاسو راته اوښايې که انسان د ډيرو خدايانو عبادت کوي هغه به ښۀ وي او که د يو الله تعالى عبادت کوي نو هغه به ښه وي ځکه هغه ډير غالب او قوت والا ذات دې . بيا د بت پرستئ خرابي يې په دې طريقې سره بيان کړه چې تاسو او ستاسو پلرونو او نيکونو څه بتان خپل خدايان جوړ کړي دي ، نه خو په هغوئ کښې دا صفات شته دې چې هغوئ ديو کمترين طاقت او مالکان اوګڼړلې شي. ځکه چې په هغوئ کښې هيڅ حرکت نشته دې . دا د سترګو د ليدو حال دې ، ددوئ په حقله بله لار دا کيديشي

(۱) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية ج: ۳ ص: ۳۸۸ و تفسير المظهري تحت هذه الآية ج: ۵ ص: ۱۶۲

چې الله تعالی ددوئ د عبادت کولو دپاره څه احکام نازل کړي نو په داسې صورت کښې که په لیدلو او په عقل سره ددوئ د خدایانو منلو څه خبره نشوه جوړیدې نو د الله تعالی د حکم په وجه بهٔ د عقل اؤ لیدو خبرو ته کتلې شی او صرف د الله تعالی په حکم به عمل کولې شی. خو دې ځایې کښې دا هم نشته دې ځکه چې الله تعالی ددوئ په عبادت باندې هیڅ دلیل او حجت نه دې نازل کړې، بلکه هغه هم دا خودل چې حکم او حکومت د الله تعالی څخه سوا د بل چا حق نه دې او حکم یې کړې دې چې دهغه څخه سواد بل چا عبادت مه کوئ، دا هغه مضبوط دین دې چې زما پلرونو، نیکونوته د الله تعالی د طرفه ورکړې شوې دې خو اکثر خلق په دې حقیقت باندې نه پوهیږي.

یوسف ﷺ د خپل تبلیغ او بلنې ورکولو نه پس ددغې خلقو خوبونو ته مخه کړه، او وې فرمائیل چې تاسو څخه خو به یو خلاص شی، په خپلې نوکرۍ به بیا قائم پاتې شی اؤ بادشاه ته به شراب ورکوی او په دغه بل به جرم ثابت شی، او په سولئ به کړې شی، او ومارغان به هغه د غوښه په راشوکولو سره خوری.

**د پیغمبرئ د شفقت یو عجیبه مثال**: ابن کثیر ﷫ فرمائیلی دی چې اګر چې ددې دواړو خوبونو جدا جدا وو او د هر تعبیر ځان ځان له ښکاره هم وو چې ساقی به بری کیږی او اشپز به په سولئ کیږی، خو بیا هم د پیغمبری شفقت او مهربانئ په وجه یې په نامه او نه وئیل چې فلانی نوم یا خوب سرې به په سولئ کیږی او د فلانی نوم یا خوب سرې به خلاصیږی. ددې وجه دا وه چې د اوسه ځایه په غم کښې اخته نشی. بلکه په اجمالې طریقې سره یې اوفرمائیل چې په تاسو کښې به یو خلاص شی او بل بهٔ په سولئ کړې شی.(۱)

په آخر کښې یې اوفرمائیل چې ما ستاسو د خوبونو تعبیر خالص په زبانی جمع خرچ او اندازې سره نه دې درکړې بلکه دا یو خدایئ فیصله ده چې ایساریدونکې نه ده کومو مفسرینو حضراتو چې ددوئ خوبونو ته په دروغه ا د ځانه جوړ کړی وئیلی دی، هغوئ دا هم فرمائیلی دی چې هر کله یوسف ﷺ د خوبونو دا تعبیر بیان کړو نو دغې دواړو اووئیل چې مونږ خو څه خوب نه دې لیدلې صرف د ځانه مو جوړ کړی وو، په دې باندې یوسف ﷺ اوفرمائیل چې: ﴿قُضِيَ الْأَمْرُ الَّذِي فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ﴾ [که تاسو دا خوب په رښتیا بیان کړې وی او که په دروغه خو کیږی به هم هغه شان چې ما درته په تعبیر کښې اووئیل] یعنی په دروغه دخوب بیانولو کومه ګناه چې تاسو اوکړه دهغې سزا په دنیا کښې هم هغه مقرر ده کومه چې درته ما بیان کړه. [ددې تصحیح پاتې ده

دخوب د تعبیر تر مخه کوم سړې چې یوسف ﷺ خلاصیدونکې ګڼرلو، هغه ته ئې اوفرمائیل چې کله ته آزاد شې او شاهی دربار ته لاړ شې نو خپل بادشاه ته زما یادګیرنه اوکړه چې زهٔ بې ګناه قید کړې شوې یم. خو دغه کس د آزادیدو نه پس د یوسف ﷺ دا خبره یاده پاتې نشوه. دهغې په نتیجه کښې یوسف ﷺ زیاته موده په قیدخانه کښې پاتې شو. چې دلته د قرآن پاک په الفاظو کښې په [بِضْعَ سِنِينَ] سره یاد کړې شو. دا لفظ د دریو نه تر نهو کالو مودې دپاره استعمالیږي. ځکه ځینې مفسرینو فرمائیلی دی چې ددغې واقعې نه پس تر اووۂ کالو

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة ج: ۳ ص: ۳۹۰

Scanned with Ca

پورې په قيد خانه کښې پاتې شو.(۱)

**احكام او مسائل**: دې آيتونو نه ډير احكام او مسائل، فائدې او هدايات حاصليږي، په هغې کښې غور اوکړئ:

**رومبئ مسئله**: رومبئ مسئله داده چې يوسف ﷺ د مجرمانو داستوګنې په ځائې کښې هم مجرمانو او بدمعاشانو سره داسې ښه اخلاق اوچلول او ښه وخت ئې ورسره تير کړو چې دټولو يې ځان ته په نيکو سره پام کړو، معلومه شوه چې مصلحانو له ضروري دی چې مجرمانو او خطاکارو سره دې هم دهمدردئ او شفقت معامله کوی چې دهغوئ ورسره تړون راشی او په نيکو ئې ورته مخه شی او په هيڅ وجه دهغوئ نفرت ترې پيدا نشی.

**دويمه مسئله**: [إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ] ددې نه معلومه شوه چې د خوب تعبير داسې خلقو نه پوښتل پکار دی چې د هغوئ په نيکوالی، صالح کيدو او همدردئ باندې اعتماد کيدې شی.

**دريمه مسئله**: ددې نه معلومه شوه چې حق ته بلونکی اود خلقو اصلاح کوونکو دې خپل عمل داسې وی چې اول د خپلو ښو اخلاقو او علمی او عملی کمالاتو په ذريعه، په مخلوق خدا باندې خپل اعتماد قائم کړی، خواه په هغې کښې خپل کمالات ښکاره کول هم راپيښ شی، لکه يوسف ﷺ چې په دې موقعه باندې خپله معجزه هم بيان کړه او دائې هم ښکاره کړل چې زه د پيغمبرئ د خاندان يو فرد يم. په دې شان خپل کمال ښکاره کول که دخلقو د اصلاح په نيت سره وی، خپله ذاتی لوئې ښکاره کول ترې غرض نه وی نو دا د خپل ځان هغه قسم پاکوالې بيانول نه ی چې په قرآن عظيم الشان کښې ئې داسې منع راغلې ده. [فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ] [د خپلې پاك نفسئ او پاکوالی ننداره مه ورکوئ] [مظهری](۲)

**څلورمه مسئله**: د تبليغ او ارشاد اهم اصول دا خودلې شوی دی چې دبلونکی او اصلاح کوونکی فرض دادی چې هر وخت په هر حال کښې د بلنې او تبليغ خپله وظيفه او فرض دې د هر کار نه اول ګڼړی. څوك چې د هر کار په غرض ورته راشی خو دې دې خپل اصلی کار نه هيروی لکه يوسف ﷺ ته چې دا قيديان د خوب د تعبير معلومولو دپاره راغلل نو يوسف ﷺ د خوب د تعبير جواب ورکولو نه اول د بلنې او تبليغ په ذريعه د لار خودنې او نيکئ تحفه ورکړه، داسې مه ګڼړئ چې بلنه او تبليغ په يوه جلسه کښې يا په څه منبر يا ستيج دپاسه کېدې شی بلکه ځانی ملاقاتونو او ځانی خبرو اترو کښې داکار زيات اثرناك ثابتيږی.

**پنځمه مسئله**: هم ددغې لار خودنې او اصلاح د کار سره تړون داسې لری چې خبره دې په داسې حکمت سره اوکړې شی چې د مخاطب په زړه کښې کينی لکه يوسف ﷺ چې هغوئ ته اوخودل چې ماته کوم کمال حاصل شو هغه ددې نتيجه ده چې ما د کفر ملت پريښو او د اسلام ملت مې اختيار کړو بيا ئې د شرك او کفر خرابئ په زړه پورې انداز کښې بيان کړې.

**شپږمه مسئله**: شپږمه مسئله داده چې کومه معامله مخاطب ته تکليف رسوی او په زړه ئې ښه نه لګی او ښکاره کول ئې ضروری وی نو څومره چې کيدې شی د مخاطب په مخکښې دې هغه داسې انداز کښې بيان کړی شی چې هغه ته کم نه کم تکليف اورسی لکه د خوب په تعبير کښې

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة ج: ۲ص: ۳۴۳
(۲) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة ج: ۵ص: ۱۶۳.

چې د چا هلاکیدل په حصه وو بیا هم یوسف علیه السلام هغه په ګوته نه کړو چې هم ته به په سولئ کولې شي. [ابن کثیر مظهری] (۱)

**اوومه مسئله** اوومه مسئله داده چې یوسف علیه السلام د قید خانې نه د خلاصیدو په غرض هغه قیدی ته اوونیل چې کله بادشاه ته ورشې نو زما یادګیرنه هم ورته اوکړه چې زه بې ګناه په قید خانه کښې یم. دې نه معلومه شوه چې یو مصیبت نه د خلاصیدو دپاره چالره د کوشش واسطه جوړول د توکل نه خلاف نه دی.

**اتمه مسئله**: اتمه مسئله داده چې الله تعالی خپلو برګزیده پیغمبرانو علیهم السلام دپاره دخپل خلاصی دپاره هر جائز کوشش هم خوښ نه کړو چې هغه دې څوك انسان ددې ذریعه جوړه کړي، د انبیاء کرامو علیهم السلام اصلی مقام دادې چې د الله تعالی او خپل مینځ کښې بله څه واسطه جوړه نه کړي کیدې شي چې هم په دغه وجه د هغه خلاصدونکی بندی نه د یوسف علیه السلام خبره هیره شوه او هغه په قیدخانه کښې څوکاله نور هم پاتې شو نو په یو حدیث پاك کښې رسول کریم ﷺ دې ته اشاره فرمائیلې ده. (۲)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ الْمَلِكُ | اِنِّيْٓ | اَرٰى | سَبْعَ | بَقَرٰتٍ سِمَانٍ | | يَّاْكُلُهُنَّ | سَبْعٌ |
| او اوونیل بادشاه | بیشکه ما | اولیدلې | اووه | غواګانې | څربې | چې خوری دې | اووه غواګانو لره | اووه |
| او (یوه ورځ) بادشاه اوونیل چې زه (په خوب کښې) اوینم چې اووه څریدونکې غواګانې دی (چې نورې اووه ډنګرې) | | | | | | | |
| عِجَافٌ وَّسَبْعَ | سُنْۢبُلٰتٍ | خُضْرٍ | وَّاُخَرَ | يٰبِسٰتٍ | يٰٓاَيُّهَا الْمَلَاُ | اَفْتُوْنِيْ | |
| ډنګرې \| او اووه | وږی | شنه | او نور | وچ | ائې درباریانو | تعبیر راکړئ ماله | |
| غواګانې ئې خوری (او) دغلې) اووه شنه وږی دی (او نور (اووه) اووچ (وږی دی) ائې | | | | | | | |
| فِيْ رُءْيَايَ | اِنْ كُنْتُمْ | لِلرُّءْيَا | تَعْبُرُوْنَ | قَالُوْٓا | اَضْغَاثُ | | |
| په دې خوب زما کښې | که یئ تاسو | دخوبونو دپاره | تعبیر کونکي | اوونیل هغوئ | (دا) پریشانه | | |
| درباریانو ماته ددې خوب تعبیر اوښایئ اکه تاسو دخوبونو تعبیرونه ایستې شئ هغوئ ورته اوونیل چې دا | | | | | | | |
| اَحْلَامٍ | وَمَا نَحْنُ | بِتَاْوِيْلِ الْاَحْلَامِ | بِعٰلِمِيْنَ | وَقَالَ | الَّذِيْ | نَجَا | |
| خوبونه دی \| او نه یو مونږ | په تعبیرونو | د پریشانه خوبونو | پوهیدونکي | او اوونیل | هغه کس | چې بچ شوې وو | |
| پریشانه خوبونه دی او مونږ ددا سې خوبونو په تعبیرونو نه پوهیږو او په ادوارو قیدیانو کښې څوک چې راخلاص | | | | | | | |
| مِنْهُمَا | وَادَّكَرَ | بَعْدَ اُمَّةٍ | اَنَا | اُنَبِّئُكُمْ | بِتَاْوِيْلِهٖ | | |
| دهغې دواړونه \| او یاد راغې | هغه ته \| روستو دیرې مودې نه | زه | خبردرکوم تاسوته | په تعبیر ددې خوب | | | |
| شوې وو هغه اوونیل او دیره موده پس ورته وریاد شوچې څه درته په یو ساعت کښې تعبیر راوړم | | | | | | | |
| فَاَرْسِلُوْنِ | يُوْسُفُ | اَيُّهَا الصِّدِّيْقُ | اَفْتِنَا | فِيْ سَبْعِ بَقَرٰتٍ | سِمَانٍ | | |
| پس اولیږئ ما | ائې یوسف | ائې رښتینیه | خبر راکړه مونږته | په اووه غواګانو کښې | چې څربې دی | | |
| ماته لږ شان اجازت راکړئ ائې یوسف ائې رښتونیه مونږ ته د یو خوب تعبیر اوښایه \| چې اووه | | | | | | | |

(۱) تفسیر المظهری ج: ۵ ص: ۲۳
(۲) مزید تفصیل دپاره اوګورئ تفسیر ابن کثیر ج: ۲ ص: ۳۹۱

يَّأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَّسَبْعِ سُنْۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّاُخَرَ يٰبِسٰتٍ ۙ لَّعَلِّيْٓ

چې خوري هغوئ لره | اووه تېپې غواګانې | او اووه | وږی | شنه | او نور | وچ | شاید چې زهٔ

خړبې غواګانې دی او نورې اووهٔ تېپې غواګانې ئې [لګیادي] خوری | او اووهٔ شنه وږی دی | او [ور سره]

اَرْجِعُ اِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝ قَالَ تَزْرَعُوْنَ

واپس لاړ شم | خلقو ته | شاید چې هغوئ | پوهه شی | اووئیل یوسف | کرونده به کوئ تاسو

نور [اووهٔ] اوچ وږی دی | چې زهٔ خلقو ته واپس ورشم | شاید چې هغوئ هم پوهه شی | حضرت یوسف ؑ ورته

سَبْعَ سِنِيْنَ دَاَبًا ۚ فَمَا حَصَدْتُّمْ فَذَرُوْهُ فِيْ سُنْۢبُلِهٖٓ اِلَّا

اووه | کاله | پرله پسې | نو هغه فصل | چې اوربیئ تاسو | نو پرېږدئ هغه | په وږو خپلو کښې | ماسوا

اووئیل | چې تاسو به اووهٔ کاله پرله پسې زمکه کرئ | نو چې کوم فصلونه | وربیئ نو هغه په وږو کښې پرېږدئ | خو

قَلِيْلًا مِّمَّا تَاْكُلُوْنَ ۝ ثُمَّ يَاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ

دلږو | هغونه | چې تاسو ئې خورئ | بیا به راشی | روستو | د دې نه | اووه کاله | سخت

لږ مقدار چې کوم تاسو خورئ هغه پرېږدئ بیا به ورپسې اووهٔ [د سوکړې] سخت کالونه راشی | چې

يَّاْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ اِلَّا قَلِيْلًا

چې اوبه خوری دا اووهٔ کالونه | هغه غله | چې وړاندې نه [جمع کړې] ایښې وی تاسو | دپاره د دغه کلونو | ما سوا | د لږو

هغه څه به اوخوری | کوم چې تاسو دپخوا نه جمع کړې وی | مګر لږ

مِّمَّا تُحْصِنُوْنَ ۝ ثُمَّ يَاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ عَامٌ فِيْهِ

هغونه | چې تاسو ئې محفوظ ساتئ | بیا به راشی | روستو دهغې نه | یو کال | چې په هغې کښې به

مقدار چې تاسو [تخمونو دپاره] ساتلې وی | بیا به ورپسې داسې کال راشی چې په خلقو به ډېر

يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيْهِ يَعْصِرُوْنَ ۝ وَقَالَ الْمَلِكُ

فریاد اورېدې شی دخلقو | او په هغې کښې به | نچوړوی خلق | او اووئیل | بادشاه

بارانونه اووریږی او هغوی به [د انګورونه] شیرې نچوړوی | بادشاه حکم ورکړو چې یوسف ؑ ما ته

ائْتُوْنِيْ بِهٖ ۚ فَلَمَّا جَآءَهُ الرَّسُوْلُ قَالَ ارْجِعْ

راولئ ما ته هغه | نو هر کله چې | راغې هغه ته | استاذې | اووئیل یوسف | واپس لاړ شه

راولئ | هر کله چې استاذې هغوی له ورغئ نو یوسف ؑ ورته اووئیل چې خپل آقا ته واپس ورشه

اِلٰى رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ الّٰتِيْ قَطَّعْنَ

رب خپل ته | او تپوس اوکړو د هغه نه | څه دې حال | د ښځو | هغو | چې غوڅ کړی ئې وو

او تپوس ترې اوکړه | چې د هغې ښځو څه حال دې | چې خپل لاسونه ئې غوڅ کړی وو

اَيْدِيَهُنَّ ۭ اِنَّ رَبِّيْ بِكَيْدِهِنَّ عَلِيْمٌ ۝

لاسونه خپل | بیشکه | رب زما | په مکر د هغوئ | ښهٔ خبر دې |

بیشکه زما پروردګار د هغوئ په فریبونو ښهٔ پوهه دې |

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

او (څو کاله وروستو د مصر) پاچا (خپلو درباریانو ته) ووئیل چه: څه (خوب کښې) څه ګورم چه اوه تازه غټې غواګانې دي چه هغې لره اوه ډنګرې غواګانې خوري، او اوه وږي شنه دي، او اوه نور دي چه اوچ دي اې درباریانو! که تاسو ددې خوب تعبیر راوېستې شئ نو ځما ددې خوب مطلب بیان کړئ – هغوی ووئیل چه: دا پریشانه غونډې خیالات (معلومیږي) دي، او مونږ د خوبونو د تعبیر د علم نه خبر (هم) نه یو او دې دوه جیلیانو نه چه کوم آزاد شوې وو، هغه ته د ډیرې مودې نه وروستو (د یوسف) خبره یاده شوه هغه ووئیل چه زه تاسوله ددې خوب تعبیر راوباسم، نو ما (یوسف له) جیل ته ولیږئ (نو هغه جیل ته لاړو او یوسف ته ئې ووئیل): یوسفه! اې هغه سړیه چه د هغه هره خبره رېښتینې وي! اته مونږ ته ددې (خوب) تعبیر وباسه چه اوه غټې تازه غواګانې دی چه هغې لره اوه ډنګرې غواګانې خوري، او اوه وږي شنه، او اوه وچ دي – کیدې شي چه زه خلقو ته واپس شم (او هغوی ته د خوب تعبیر بیان کړم) دِ دپاره چه هغوی د حقیقت نه خبر شي وسف ووئیل چه: تاسو به اوو کالو پورې مسلسل غله په زمکه کښې کرئ. دې دوران کښې چه کوم فصل کټ کوئ نو هغه په خپلو ږمبلو (وږو) کښې پریږدئ. البته لږه غونډې غله چه هغه ستاسو خوراك ته پکار راشي، (هغه وباسئ) بیا دې نه وروستو به په تاسو اوه کاله داسې راشي چه ډیر سخت به وي، او کومه ذخیره چه تاسو دې کالونو دپاره کړې وي هغه به دوی وخوري، البته لږ غونډې حصه چه تاسو به هغه جمع کوئ (صرف هغه به بچ شي) بیا دِ نه وروستو به داسې یو کال راشي چه خلقو باندې به ښه باران ووشي، او دوی به دې کښې انګور نچوړوي، او پاچا ووئیل چه: دا لره (یعني یوسف) ما ته راولئ نو چه کله دا ته قاصِد راغلو نو یوسف ووئیل چه: خپل مالك ته واپس لاړ شه او د هغه نه تپوس وکړه چه د هغه ښځو څه حال دې چه هغوی خپل لاسونه کټ کړي وو؟ ځما پروردګار د هغوی د مکر نه ښه خبر دي.

### خلاصه تفسیر:

﴿وَقَالَ الْمَلِكُ إِنِّيٓ أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعَ سُنۢبُلَٰتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَٰتٍ ۖ يَٰٓأَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُونِى فِى رُءْيَٰىَ إِن كُنتُمْ لِلرُّءْيَا تَعْبُرُونَ۝﴾ اودمصربادشاه [هم یوخوب ولیدواودحکومت ارکان ئی جمع کړه ورته ئی] وویل چه زه[په خوب کښی ]وینم چه اوه غواګانی څربی دي کومولره چه اوه خواري غواګانی خوري،اواوه وږي شنه دي اوددی نه علاوه اوه نوردي چه وچ دي اودغه اوه وږي دغه شان دهغه اووۀ وږو شنو نه تاوشو هغه ئی وچ کړل]ای ددربارخلقوکه تاسو [دخوب] تعبیر ورکولی شئ نوماته خماددی خوب تعبیر راکړئ.
﴿قَالُوٓا۟ أَضْغَٰثُ أَحْلَٰمٍ ۖ وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَٰمِ بِعَٰلِمِينَ۝﴾ هغوی وویل چه[اول خوداڅه خوب ندی چه ته ئی فکرکوی]هسی پریشانه خیالات دي او[دویم]مونږخلق [چه دحکومت په کارونوکښی ماهران یو]دخوبونودتعبیرعلم هم نه لرو[دوه جوابونه ئی ځکه ورکړل چه په اول جواب سره د بادشاه دزړه نه پریشانی اووسوسی لری کول دي،اوپه دویم جواب سره خپل عذرظاهرول دي، لنډه داده چه اول خوداسی خوب دتعبیرقابل نه دی دویم مونږپه دی فن کښی ماهران نه یو].
﴿وَقَالَ الَّذِى نَجَا مِنْهُمَا وَادَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ أَنَا۠ أُنَبِّئُكُم بِتَأْوِيلِهِۦ فَأَرْسِلُونِ۝﴾ اوپه دغو[مذکوره ] دوه و قیدیانو کښی چه کوم آزادشوی وه[هغه په مجلس کښی حاضروو]هغه وویل اودډیري مودي نه پس ده

نه[د يوسف دوصيت]خيال راغی خه ددی دتعبير خبر راوړم تاسوماته لږ دتلو اجازت راکړئ.
﴿يُوسُفُ أَيُّهَا الصِّدِّيقُ أَفْتِنَا فِي سَبْعِ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعِ سُنْبُلَاتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَاتٍ لَعَلِّي أَرْجِعُ إِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُونَ ۝ قَالَ تَزْرَعُونَ سَبْعَ سِنِينَ دَأَبًا فَمَا حَصَدْتُمْ فَذَرُوهُ فِي سُنْبُلِهِ إِلَّا قَلِيلًا مِمَّا تَأْكُلُونَ ۝ ثُمَّ يَأْتِي مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ إِلَّا قَلِيلًا مِمَّا تُحْصِنُونَ ۝ ثُمَّ يَأْتِي مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ۝﴾ [نو ددربارنه ورته اجازت وشواودی قيدخانی ته لاړ،يوسف ته نی وويل] ای يوسفه ای رشتونيه ته مونږته ددی [خوب]جواب[يعنی تعبير]راکړه چه اوه غواګانی څربی دي دوی لره اوه خوارو غوا ګانو وخوړي اواوه وړي شنه دي اوددی نه غير[اوه ]وچ دي[چه اوچ دهغوشنونه تاوشوهغه ئی هم وچ کړل ته ددی تعبيروو ايه]چه زه [چاچه رالیږلی يم]هغوی ته بيرته لاړشم[اوبيان ئی کړم] ددی لپاره چه په دي تعبير اوپه دی سره ستاحال ]دوی ته هم معلومه شي [دتعبير موافق کاروکړی اوستادخلاصئ څه صورت راووخی]دوی وفرمائيل چه [ددی اوه څربوغواګانواوه شنو وړونه مرادپيداواراودباران کلونه دی پس] تاسو اوه کاله متواتو[ښه]غله وکرئ بياچه کوم فصل وريبئ هغه په وږوکی پريدئ[چه چينجي پکښی نه لګی]مګرلږشان کوم چی ستاسودخوراك په کارراخی[دغه به دوږونه وباسل وی] بيا به ددی [اووکلونه] نه پس اوه کلونه داسی سخت[اودقحط]راشي په کوم کښی چه به دا[ټوله] ذخيره وخورئ کومی لره چه تاسوددی کلونولپاره جمع کړی وي مګرلږشان کوم چه[دتخم لپاره] پريدئ [هغه به البته بچ کړئ [اوددی اوه وږووچواوخواروغواګانونه اشاره دی اوه کلونوطرف ته ده ] بياددی [اوه کلونه]نه پس يوکال به داسی راشی چه خلقوته به پکښی ښه باران وشي اوپه دی کښی [ددی په وجه چه انګوربه پکښی زيات وي] شيره[دانګورو]به هم نچوړوئ [اوشراب به څکئ].

﴿وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ ۖ فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ۚ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ ۝﴾ غرض دغه سړئ داتعبيردربارته ورساوه]او[لاړوبيان ئی کړو]بادشاه[چه واوريدونودده دعلم اوفضل معتقدشواو]حکم يې اوکړوچه دی ماته راولئ[نوقاصدورپسي روان شو]بياچه هرکله ده ته قاصدورسيدو[اوپيغام ئی ورکړونو]ده وفرمائل چه[ترڅوپوري خماددی تهمت نه بری کيدل اوبی قصوره کيدل ثابت نشي خه نه خم]نوخپل بادشاه ته واپس شه بيادهغه نه تپوس وکړه چه [تاسوته څه خبرشته چه ]دهغوښځوڅه حال دی کوموچه خپل لاسونه پری کړی وو[مطلب داووچه دوی راوبلی اوددی واقعی په کومه کښی چه خه قيدشوی يم تفتيش اوتحقيق وکړئ اودښځودحال نه مراددوی ديوسف[عليه السلام]دحال نه خبريدل يانه خبريدل دي،اوددی ښځوتخصيص ئی شايدچه په دي وجه کړی وي چه ددوی په مخ کښی زليخی اقرارکړی وو: [وَلَقَدْ رَاوَدْتُهُ عَنْ نَفْسِهِ فَاسْتَعْصَمَ][1] ]خمارب ددی ښځود دلي فريب ډيرښه پيژنی [يعنی الله تعالی ته خومعلومه ده چه دزليخی په ماتهمت لګول فريب وه مګردخلقوپه مخکی هم ددی صفائی مناسب ده،نوچنانچه بادشاه دغه ښځی حاضري کړی]

## معارف او مسائل

په دې آيتونوکښې د ابيان شوی دی چې بيا الله تعالی د يوسف عليه السلام د بند نه خلاصولو دباره د غيبونه دايو صورت پيدا کړو چې د مصر بادشاه يو خوب اوليدو چې په هغې سره بادشاه

[1] ) او واقعی ما دهغه نه خپل مطلب حاصلولو خواهش کړې وو خو دا پاك صفا پاتې شو.

Scanned with

پريشان شو د خپل حکومت تعبير اوښکونى او جوګيان يې راجمع کړل او د خوب تعبير يې ترې تپوس اوکړو ، په دغې خوب څوك نه پوهيدل بلکه تولو داسې جواب ورکړ چې : [اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ وَمَا نَحْنُ بِتَاْوِيْلِ الْاَحْلَامِ بِعٰلِمِيْنَ] اضغاث د ضغث جمع ده ، معنى يې داسې يو ګيډى ده چې د مختلف قسمه وښو او خشاك څخه جوړ شوې وى ، معنى يې دا شوه چې دا ګډه وډ خوب دې ، خيالات په کښې شامل دى چې مونږ ددغې خوبونو په تعبير باندې نه پوهيږو ، که خوب صحيح وې نو مونږ به يې تعبير بيان کړې وو.

په دغه موقعه دغه خلاص شوى قيديانو کښې يو کس ورمخکښې شو او د خوب د تعبير بيانولو ذمه دارى يې واخسته . داسې يې اووئيل چې په قيد کښې يو داسې قيدى دې چې هغه د خوبونو دتعبير ښه ماهر دې او بې ګناه په قيدخانه کښې بندى دې . تاسو ما ته اجازت راکړئى چې هغه څخه د خوب د تعبير تپوس اوکړم بادشاه ورته ددې انتظام اوکړو هغه يوسف ﷺ ته ورغلو او قرآن کريم دا توله واقعه صرف په يولفظ د [فَاَرْسِلُوْنِ] يعنى ما اوليږئى سره بيان کړې ده ، د يوسف ﷺ يادګيرنه کول ، بيا سرکارى منظورى ، بيا قيد خانې څخه راوتل تول هر څه ددې په ضمن کښې راغلل ، ځکه چې په ښکاره ددې دبيانولو ضرورت او نه شو ګڼرلې بلکه دې پسې بيان شروع شو چې :

[يُوْسُفُ اَيُّهَا الصِّدِّيْقُ] چې دغه سړې قيدخانې ته اورسيدو نوشروع د خبرو اترو يې داسې اوکړه چې اول د يوسف ﷺ د صديق کيدو اقرار اوکړو ، وې وئيل چې تاسو ﷺ په قول او عمل دواړو کښې ريښتونى يئ، بيا يې د خوب دتعبير بيانولو خواست ترې اوکړو . او خوب بيانول يې ورته داسې شروع کړل چې بادشاه په خوب کښې اووۀ غټ غټ غوايان ليدلى دى چې اووۀ خوار غوايان هغې لره خورى ، اووۀ شنه او اووۀ اوچ وږى د غنمو يې ليدلى دى . چې خوب يې بيان کړونو وې وئيل چې: [لَّعَلِّيْٓ اَرْجِعُ اِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُوْنَ] يعنى کله چې ستاسو ﷺ ښودلې شوې تعبير دغې خلقو ته بيان کړم نو کيدې شى چې هغوئ ستاسو ﷺ د فضل او کمالاتو څخه واقف شى.

په تفسير مظهرى[۱] کښې راغلى دى چې د عالم [دنيا] مثال صورتونه انسان ته په خوب کښې هم ښکارى ، ددغې دنيا د صورتونو خاص معنې وى ، خو د خوب صحيح تعبير هغه خلق ويستلې شى چې په دې فن کښې ماهر وى ، هغوئ دا بيانولې شى چې د فلانى صورت مثالى نه دې په دې عالم کښې څه مراد کيدې شى ؟

الله تعالى دا فن يوسف ﷺ ته ډير په لويه طريقه ورنصيب کړې وو هغوئ ﷺ ددې خوب په آوريدو سره په دې خوب پوهه شو چې د اووۀ څربو او چکو غوايانو او شنو وږو د غنمو څخه مراد اووۀ ښه کالونه دى چې د زمکې څخه به پيداوار ډيرښه کيږى، ځکه چې د غلې او فصل په راتوکولو کښې غوايان هم ډير اهميت لرى

دغه شان د اوۀ خوارو او اووۀ وچو وږو د غنمو مراد يې دا بيان کړو چې د اوۀ آبادو کالونو څخه وروستو به اووۀ اوچ او د قحطئ کالونه راځى ، د خوارو اووۀ غوايانو او اووۀ څربو او چاکو غوايانو لره د خوړلو مراد يې دا بيان کړې دې چې دقحطئ په اووۀ کالونو کښې به د

۱) تفسير المظهرى تحت هذه الآية ج: ۵ص:۱۶۷.

Scanned with Ca

آبادۍ د اووۀ کالونو ټول پيداوار اوخوړلې شي سوا د هغې پيداوار څخه چې د تخم کار به
ترې اخستې شي.
د بادشاه دخوب څخه وروستو په ظاهره دا معلوميده چې اووۀ کاله به ښه پيداوار کيږي او
وريسې اووۀ کاله بۀ د قحطۍ وي خو يوسف ﷺ په دې باندې يو اضافي خبره دا اوکړه چې د
قحطۍ د اوۀ کالونو څخه وروستو به په اتم کال کښې ښه بارانونه کيږي او پيداوار به ښه کيږي.
ددې علم يوسف ته څکه اوشو چې د قحطۍ کلونه په اووۀ ختميدل چې داالله تعالى د عادت
مطابق اتم کال به د ښې څوکالې آبادۍ او بارانونو کال وي ، قتاده ﷺ فرمائيلي دي چې د وحي
په ذريعه يوسف ﷺ په دې خبر کړې شو وو چې د خوب د خبر څخه اضافي خبر ورته هم اوروسي.
په دغه وجه به د يوسف ﷺ فضل او کمال ښکاره شي ا وددوئ د خلاصي سبب به جوړ شي ،
زياتي لا دا چې يوسف ﷺ د خوب په تعبير ښودلو باندې بس والې اونه کړو بلکه دې سره يې
يوه حکيمانه او همدردانه مشوره هم داسې ورکړه چې رومبو اووۀ کاالونو کښې اضافه شوې
پيداوار په وږو کښې خوندی ساتئ چې د زړيدو په وجه په کښې چينجی او نه لګی ، نو دا
تجربه ده چې تر څو پورې غله پخپل وږی کښې وی نو په غله کښې چينجې نه لګی.
[ثُمَّ يَأْتِي مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ] ايعني د رومبو اوو آبادوکالونو څخه وروستو اوۀ
اوچ او د قحطۍ کالونه راځی چې رومبی خوندی کړې غله به خلق په کښې اوخوری] د کالونو د
خوړلو څخه مراد د انسانانو او حيوانانو خوړل مراد دی څکه چې کالونه خو خپل مينځ کښې
يو بل لره د خوړلو جوګه ، وی.
د چلن د روانۍ څخه معلوميږی چې دغه کس د يوسف ﷺ د تعبير بيانولو څخه مطمئن شو ،
بادشاه ته واپس راغلو او ټول حالات څخه يې خبر کړو. بادشاه هم دهغوئ ﷺ د فضل او
کمالاتو اقرار اوکړو خو قرآن پاك دا ټول څيزونه بيان نه کړل چې پخپله ترې معلوميږی چې
صرف وريسې دا واقعه يې داسې بيان کړه : [وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ] ايعنی بادشاه حکم ورکړو چې
يوسف ﷺ دې د قيدخانې څخه راوويستلې شي اودربار ته دې راوستلې شي] د بادشاه يو
قاصد يوسف ﷺ ته د اپيغام اورسولو ، ښکاريده خو داسې چې يوسف ﷺ به قيدخانه کښې
ډير تنګ شوی وی او ددې پيغام په رسيدو سره به زر تر زره دقيدخانې څخه راوتلو دپاره تيار
شوې وی ، خو د الله تعالى د طرفه د ورکړې شوی او لوئې مقام د نبوت ته دعامو خلقو فکر او
سوچ نشی رسيدلې ، په دې وجه يوسف ﷺ دغه قاصد ته اووئيل چې داسې اوفرمائيل چې :
[قَالَ ارْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ۚ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ] بادشاه حکم ورکړو چې
يوسف ﷺ ما ته راولئ اهرکله چې استاذې هغوی له ورغئ نو يوسف ﷺ ورته اووئيل چې
خپل آقا ته واپس ورشه او تپوس ترې اوکړه ا چې د هغې ښځو څه حال دې ا چې خپل لاسونه
ئې غوڅ کړی وو بيشکه زما پروردګار د هغوئ په فريبونو ښۀ پوهه دې ا
دلته په دې خبره غور پکار دې چې يوسف ﷺ صرف د نورو ښځو يادګيرنه کوی چې خپل
لاسونه يې پريکړی وو خو بيبا هم د زليخې بی بی يادګيرنه يې اونه کړه کومه چې ددې واقعې
اصل سبب وو ، وجه يې دا وه چې دهغوئ ﷺ پرورش د عزيز مصر په کور کښې شوې وو ، او
د زليخې بی بی بدنامئ کولو څخه وروستو يې ده کوله ، نو په دې شان سره هغوئ ﷺ د خپل

شرافت ډير لوړ ثبوت ورکړو [قرطبي] (۱)
او يوه خبره دا هم ده چې اصل مقصد يې خپله بې ګناهي ثابتول وو چې ددغې ښځو نه هم کيدې شوه ، اوپه هغې کښې زياته رسوائي هم نه وه ، که هغوئ د ښتيا خبرې اقرار هم کړې وې نو صرف دمشورې ورکولو مجرماني ګرځيدلې ، په خلاف د عزيز مصر د بي بي نه چې د تحقيقاتو اصلي مرکز به هم دا جوړيدله چې په کښې د هغې رسوائي زياته وه او دې سره يوسف ﷺ اوفرمائيل چې : [إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ] [بيشکه زما پروردګار د هغوئ په فريبونو ښه پوهه دې] او زه غواړم چې بادشاه هم د واقعې د حقيقت څخه واقف شي نو په يو لطيف او باريك انداز کښې د خپلې بې ګناهي ښکاره کول هم دي .
په دې موقعه د صحيح بخاري او جامع ترمذي په حواله د ابوهريره رضي الله عنه په يو روايت کښې د رسول کريم ﷺ دا ارشاد نقل شوې دې چې که زه دومره موده په قيد کښې پاتې شوې وې څومره چې يوسف ﷺ پاتې شوې وو او بيا راته د قيد خانې څخه د خلاصيدو پيشکش شوې وې نو زر به مې قبول کړې وې . (۲)
دامام طبري رحمه الله په روايت کښې دا الفاظ راغلي دي چې د يوسف ﷺ صبر او غم او بهترين اخلاق دتعجب قابل دی کله چې په جيل کښې د باشاده د خوب تعبير او پوښتلې شوې وه که زه د هغوئ ﷺ په ځائې وې نو دا شرط به مې لګولو چې اول مې د ې د جيل څخه اوباسی هله به تعبير ښايم ، بيا کله چې قاصد هغوئ ﷺ خلاصدو پيغام راوړو که زه دهغوئ په ځائې وې نو زر به د جيل دروازې ته ورغلې وې [قرطبي] (۳)
په دې حديث پاك کښې دا خبره د غور قابله ده چې دحديث پاك غرض او مقصد د يوسف ﷺ د صبر او برداشت او د بهترينو اخلاقو تعريف او صفت کول دی ، خو ددې بل طرفته دکوم صورت حال چې رسول کريم ﷺ خپل ځان مبارك ته داسې منسوب کړی دی چې که زه وې نو ما به هيڅ ډيل نه وې کړې ، مطلب دا چې هر کله په دغه شان رسول کريم ﷺ خپل ځان مبارك د يوسف ﷺ څخه کم ښکاره کړې دې نو دا د هغوئ ﷺ دشان په کموالي باندې دليل نه جوړيږي ځکه چې هغوئ بيشکه په مکمل طور سره افضل الانبياء دی . په يو جزوي عمل کښې د يو پيغمبر څخه ددوئ کموالئ دې سره صحيح دې .
دې څخه علاوه څنګه چې په تفسير قرطبي (۴) کښې راغلي دي چې داهم کيدې شی چې ديوسف ﷺ دکار په طريقه کښې دهغوئ ﷺ د صبر او برداشت او بهترينو اخلاقو عظيم الشان ثبوت موجود دې او هغه په خپل ځائې د صفت کولو جوګه هم دې ليکن رسول کريم ﷺ چې کومه طريقې سره ځان ته منسوب کړيدې د امت د تعليم او د عوامو د خيرخواهي دپاره هم هغه مناسب او ډير زيات غوره دې ولې چې د بادشاهانو مزاج لره څه اعتبار نشته دې ، په

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۹ ص:۲۰۷
(۲) جامع الترمذي ابواب التفسير باب سورة يوسف : ج:۲ ص:۱۴۳ ، وصحيح البخاري كتاب الأنبياء ، قول الله تعالى [لقد كان في يوسف] الآية ج:۱ ص:۴۷۹ .
(۳) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۹ ص:۲۰۶ .
(۴) تفسير القرطبي تحت هذه الآية ج:۹ ص:۲۰۷ .

داسې موقعه باندې شرطونه لګول یا مهلت ورکول عامو خلقو لره مناسب نه وی کیدې شی چې د بادشاه رائې بدله شی او بیا د قید خانې په مصیبت کښې قیدیان پخپل حال شی ، یوسف ﷺ ته خو د الله تعالی د طرفه ځکه علم کیدې شی چې هغوئ ﷺ د الله تعالی رسول ﷺ وو ، او دهغې په وجه ورته دا علم حاصل شوې وی چې دغسې مهلت به ورته څه نقصان نه ورکوی لیکن هر څوك خو د اسې نشی کیدې چې د وحی په ذریعه ورته علم حاصل شی ، د رحمة للعالمین په مزاج او طبیعت کښې د عامو خلقو د ښیګړې اهمیت اوضرورت زیات وو ، ځکه یې اوفرمائیل که ماته دا موقعه په ګوتو راغلې وه نو مهلت به مې نه وو اخستې [والله اعلم]

| |
|---|
| قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ |
| [اوونیل بادشاه] څه وو حال ستاسو ائې ښځو |
| [په دې باندې] بادشاه [ښځو ته] اوونیل چې |
| إِذْ رَاوَدْتُّنَّ يُوسُفَ عَنْ نَّفْسِهٖ ۚ قُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ |
| کله چې [تاسو غولول اوغوښتل] یوسف [د هغه دنفس [د حفاظت] نه] ټولو ښځو اوونیل [پاکی ده] الله لره |
| داستاسو څه واقعه ده [څه وخت چې تاسو یوسف د خپل مطلب دپاره راوبللو] هغوئ ورته په جمع |
| مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ ۚ قَالَتِ امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ الْـٰٔنَ حَصْحَصَ |
| مونږ نۀ ده موندلې [په هغه کښې] څه بدی [ اوونیل [ښځې] دعزیز [د مصر] ] چې اوس [ظاهر شو |
| اوونیل [چې سبحان الله] مونږ ته خو په هغه کښې هیڅ خرابې نۀ ده معلومه [دعزیز ښځې اوونیل چې اوس خو |
| الْحَقُّ ۚ اَنَا رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۞ ذٰلِكَ |
| حق [ ماهغه غولول اوغوښتل [د هغه د نفس [د حفاظت] نه ] او بیشکه هغه [ د رښتونو نه دې ] دا |
| رښتیا هرچاته معلوم شو [زۀ ووم چې ما دهغه د غولولو کوشش کړې وو] اوهغه بیشکه رښتونې دې [ یوسف |
| لِيَعْلَمَ اَنِّيْ لَمْ اَخُنْهُ بِالْغَيْبِ وَاَنَّ اللّٰهَ |
| دپاره ددې چې پوهه شی هغه [چې بیشکه ما] نه دې کړې خیانت د هغه سره [پشې شا] او بیشکه چې الله |
| اوونیل [اچې دامې ځکه اوکړل چې عزیز ته په ښۀ شان معلومه شی چې ما د هغه په غیرموجودګئ |
| لَا يَهْدِيْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ ۞ |
| نۀ کامیابوی [ مکر ] دخیانت کونکو] |
| کښې خیانت نۀ دې کړې] او الله دخیانت ګرو فریبونه هیچرې سر ته نه رسوی [فریب اخر ښکاره شی ] |

**آسان ترجمه قرآن**

بادشاه (هغه ښځې راوغوښتې هغوی ته) ئې اوونیل چه :ستاسو څه حال وو چه کله تاسو یوسف لره د غُلَوُلو کوشش کړې وو؟ ډېرولو ښځو اوئیل چه: حاشا لِلّٰه! مونږ ته خو دهٔ کښې لږه غوندې بدی هم نه دهٔ معلومه شوې. دعزیز ښځې اوئیل چه: اوس خو حق خبره ټولو ته ښکاره شوې ده—ما د دهٔ دَ غُلَوُلو کوشش کړې وو، اوحقیقت دا دې چه دې بالکل رښتینې دې(چه کله یوسف په جیل کښې د دوی د خبرو نه خبر شو نو هغه اوئیل چه) دا ټول هر څه ما دې وجې نه وکړل چه عزیز ته ددې خبرې پته اولګي چه ما د دهٔ په

Scanned with Ca

غیر موجودګۍ کښې ده ده سره څه خیانت نه دې کړې، او دا هم چه کوم خلق خیانت کوي. الله د هغوی چل نه کامیابوي.

## خلاصه تفسیر

﴿قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَاوَدْتُّنَّ يُوسُفَ عَنْ نَّفْسِهِ ۚ قُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ ۚ قَالَتِ امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ الْـٰٔنَ حَصْحَصَ الْحَقُّ ۫ اَنَا رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ هوې وئیل چه ستاسوڅه واقعه ده کله چه تاسود یوسف [علیه السلام] نه دخپل مطلب خواهش وکړو[یوی خواهش وکړواونوروئی مددوکړو، نود یو کار مدد هم دهغه کارپه شان دی.دغه وخت ستاسوڅه حقیقت شو. شاید بادشاه په دی طورداتپوس ځکه کړی وي چه مجرم واوري چه بادشاه ته دومره خبره معلومه ده چه یوي ښځي ده ته دخپل مطلب پو ره کولو خبره کړی وه ،شایدچه ددی نوم ورته معلوم وي، پس په دی حالت کی انکارونکړي شي اوشایدچی پدی شان سره پخپله اقراروکړي]ښځوجواب ورکړو پناه په الله مونږته په ده کی یوه زره هم دبدئ خبره نده معلومه شوی[دی بلکل پاك صاف دی،شاید ښځودزلیخی هغه اقرارځکه نه وی ظاهرکړی،چی مقصود دیوسف علیه السلام دپاکدامنی ثبوت وه اوهغه حاصل شو، یا زلیخامخامخ وه نو حیا مانعه شوه چه ددی نوم واخلي]دعزیز ښځی[کومه چه حاضره وه] وویل چی اوس حقه خبره [په ټولو ]ښکاره شوه [اوس ئی پټول بی کاره دي رشتیا خبره داده چه]ماددهٔ نه د خپل مطلب خواهش کړی وه[نهٔ چه دهٔ،لکه چه ماالزام لګولی وو:ماجزاء من الخ]او بی شکه هغه رشتونی دی [او غالبا چه دداسی کار اقرارکول زلیخی ته دمجبوری نه مخی ته راغلل،غرض دا چی دمقدمی صورت اواظهارونه او دیوسف علیه السلام د بري کیدلوثبوت ده ته او لیګلي شو او بیان شو.

﴿ذٰلِكَ لِيَعْلَمَ اَنِّيْ لَمْ اَخُنْهُ بِالْغَيْبِ وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ﴾ دغه وخت]یوسف علیه السلام او فرمایل چی دا ټول اهتمام [کوم چی ما اوکړو]صرف پدی وجه سره وه چه عزیزته په [زیات]یقین سره معلومه شي چی ماددئ په غیر موجودګئ کی ددهٔ په عزت لاس ندی اوږد کړی او دا [هم معلومه شي] چه الله تعالی دخیانت کونکو فریب چلولو ته نهٔ پریږدي [لکه څنګه چه زلیخی دعزیز په خدمت کی خیانت کړی وه، چه په نورو یی نظروکړوخدای ددی راز فاش کړو،پس زما غرض دا وو] .

## معارف او مسائل

کله چې یوسف علیه السلام ته بادشاهی ربار د خلاصی پیغام ورکولو اوبللو دپاره ورغلو او هغوئ ربار یعنی قاصد ته دا جواب ورکړو چې اول د هغې ښځو نه زما د معاملې تحقیق اوکړئی کومو چې خپل لاسونه پریکړی وو په دې کښې ډیر حکمتونه پټ وو الله جل جلاله خپلو پیغمبرانو علیهم السلام ته څنګه چې دین کامل عطا کوی همدا شان عقل کامل او د معاملاتو او حالاتو پوره بصیرت هم ورته ورکوی ، یوسف علیه السلام دشاهی پیغام نه دااندازه اوکړه چې قیدخانې نه د آزادیدو په صورت کښې بهٔ بادشاه راته څه مرتبه راکوی ، په دغه وجه خو به د خلقو خلې بندې شی خو په زړونو کښې به ئې دا شك بیا بیا راپیدا کیږی چې دا خو هم هغه سړی دې کوم چې د عزیز مصر په ننګ ناموس باندې حمله کړې وه او کیدې شوه چې دداسې شکونو او شبهو ښکاره کولو نه بادشاه هم اثر قبول کړی او زما د زیاتې بدنامۍ باعث جوړ شی ، ځکه ئې خپله صفائی او د واقعې پوره حقیقت په بادشاه باندې په ښه شان ښکاره کول او غوښتل چې په کښې هیڅا ته شك پاتې نشی ، اوس ددې دوؤ آیتونو ځینې په دویم آیت مبارك یوسف علیه السلام

پخپله د خپل دغې عمل او د بند نه په آزاديدو كښې مهلت كولو دوه حكمتونه بيان كړې دي اول دا چې [ذٰلِكَ لِيَعۡلَمَ اَنِّيۡ لَمۡ اَخُنۡهُ بِالۡغَيۡبِ] [يعنى دامهلت مې څكه وركړو چې د عزيز مصر يقين راشي چې ما د هغه په غيرموجودګئ كښې د هغه په حق هيڅ خيانت نه دې كړې]

د عزيز مصر د يقين راوستو زيات فكر ورسره پدې وجه هم وو چې كه ماته شاهي مرتبه راكړې شي او د عزيز مصر په زړه كښې بيا هم زما په باره كښې شك وى او زما د مرتبې د وجې به هغه ښكاره كولې نشى ، زما دا مرتبه موندل به هم هغه نشى برداشت كولې ، په داسې صورت كښې به دهغه چپ پاتې كيدل او په زړه باندې غم تيرول ښه خبره څكه نه وى چې هغه زما مالك پاتې شوې دې او زما په وجه هغه ته تكليف رسيدل زما شرافت سره سمون نه خورى . او داهم ښكاره خبره ده چې هر كله عزيز مصر ته زما په بيګناهئ باندې يقين راشى نو دنورو خلقو خلې به پخپله بندې شى .

ددې بل حكمت ئې دا ارشاد اوفرمائيلو چې [وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِيۡ كَيۡدَ الۡخَآئِنِيۡنَ] [يعنى ددې تحقيق غوښتنه مې څكه اوكړه چې خلقو ته دا معلومه شى چې الله ﷻ د خيانت كوونكو فريب چليدو ته نه پريږدى] ددې دوه مطلبونه كيدې شى ، يو دا چې د تحقيقاتو په ذريعه د خيانت كوونكو په خيانت ښكاره كيدو سره ټول خلق په دې خبرداره شى چې د خيانت كوونكو انجام شرميدل وى. دپاره ددې چې په راتلونكو خلقو كښې ټول خلق داسې كارونو نه د بچ كيدو انتظام اوكړى.

بله معنى ئې دا كيدې شى چې كه هم ددې شك شبهې په زمانه كښې يوسف ﷺ ته شاهي مرتبه وركړې شى نو د ليدونكو به خيال راتلې شو چې داسې خيانت كوونكو ته لوئې لوئې مرتبې وركولې شى نو په داسې شان به ددوئ په عقيده كښې فرق راتلو او دخيانت خرابى به ئې د ذهن نه نه وه وتلې ، په هر حال ددې بيان شوؤ حكمتونو تر مخه يوسف ﷺ د خلاصى د پيغام په موندو سره زر تر زره د قيد خانې نه وتل خوښ نه كړل بلكه په شاهي انداز كښې د تحقيقاتو كولو غوښتنه ئې اوكړه ، په دې اوسنى ړومبى آيت مبارك كښې ددغې تحقيقاتو خلاصه بيان شوې ده فرمائى چې : [قَالَ مَا خَطۡبُكُنَّ اِذۡ رَاوَدۡتُّنَّ يُوۡسُفَ عَنۡ نَّفۡسِهٖ] [يعنى بادشاه هغه ښځې راحاضرې كړې كومو چې خپل لاسونه پرې كړى وو او تپوس ئې ترې اوكړو چې څه واقعه ده كله چې تاسو د يوسف ﷺ نه دخپل مطلب غوښتنه اوكړه؟]

دبادشاه ددې تپوس نه معلومه شوه چې پخپل ځائې د هغه په دې باندې يقين راغلې وو چې قصور د يوسف ﷺ نه دې هم ددې ښځو دې ، څكه ئې دا اوونيل چې تاسو ترې د مطلب غوښتنه اوكړه.

دې پسې د ښځو دا جواب بيان شوې دې چې [قُلۡنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا عَلِمۡنَا عَلَيۡهِ مِنۡ سُوۡٓءٍ ؕ قَالَتِ امۡرَاَتُ الۡعَزِيۡزِ الۡـٰٔنَ حَصۡحَصَ الۡحَقُّ ۡ اَنَا رَاوَدۡتُّهٗ عَنۡ نَّفۡسِهٖ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيۡنَ] [يعنى ټولو ښځو اوونيل چې حاش لله ، مونږ ته په دوئ كښې لږ شان د ناكاروالى خبره معلومه نه شوه ، دعزيز مصر بى بى اوونيل چې اوس خو حق خبره ښكاره شوه ماددوئ نه دخپل مطلب غوښته كړې وه او بيشكه هم دوئ ﷺ رښتونى دى]

يوسف ﷺ په تحقيقاتو كښې دعزيز مصر د بى بى نوم نه وو اخستې مګر الله ﷻ كله چې چا ته عزت وركوى نو پخپله د خلقو ژبې د هغه په رښتونى او صفايئ باندې جارى شى ، په دې موقعه د عزيز مصر ښځې د مرانې نه كار واخستو اود حق ښكاره كولو اعلان ئې پخپله اوكړو.

Scanned with Ca

تر دې پورې كوم حالات او واقعات دیوسف ﷺ چې تاسو ته واؤریدل په دې كښې ډيرې فائدې او مسئلې او د انسانی ژوند دپاره ډير ضروری هدايات بيا موندې شی.
اته مسئلې ترې رومبې بيان شوی دی،ددې اوسنى آيتونوباره كښې نورې مسئلې اوهدايتونه دادی:
**نهمه مسئله:** نهمه مسئله دا وه چې الله ﷻ د خپلو خاصانو او مقبولو بندګانو د مقصدونو پوره كولو دپاره پخپله په غيبى تدبيرونو سره انتظام كوی ، د چا مخلوق د احسان لاندې د هغوئ راوستل نه خوښوی ، همدغه وجه وه چې الله ﷻ د خلاصی موندونكی قيدی نه د يوسف ﷺ هغه خبره خكه هيره كره چې زما يادګيرنه خپل آقا ته اوكړه.چې داحسان لاندې راتلل ئې نه خوښول ، او دائې غوښتل ې په پوره عزت او شان سره د قيد نه د آزاديدو مقصد ئې هم پوره شی . ددې انتظام ئې داسې اوكړو چې بادشاه ته ئې يو پريشانوؤنكې خوب اوخودلو چې د هغې د تعبير خودونه ئې دهغه ټول درباريان عالمان او ماهران عاجزه او بې وسوه كړل او په دې شان ئې دغې كار دپاره يو سف ﷺ ته ددوئ مخه كړه [ابن كثير].(۱)
**مسئله نمبر ۱۰:** په دې كښې د نيكو خويونو تعليم دې چې خلاصيدونكی قيدی د يوسف ﷺ دومره قدرې كار هم اونه كړو چې بادشاه ته ئې د هغوئ ﷺ يادګيرنه كړې وه د هغې په نتيجه كښې يوسف ﷺ نور اووهٔ كاله د قيد په مصيبت كښې تير كړل ، دغې اووهٔ كاله پس چې د بادشاه دخوب تعبير پوښتلو دپاره هغه آزاد شوې قيدی چې د يوسف ﷺ په خدمت كښې حاضر شو نو د عام انسانی عادت په طور دهغه خفه كول او ملامته كول پكار وو خو يوسف ﷺ هغه سره داشان اونه كړل . نه ئې ترې خفګان ښكاره كړو او نه ئې ورته د خوب دتعبير خودلو كښې څه شرط كيخودو چې د پيغمبری اخلاقو ننداره وركول وو [ابن كثير ، قرطبی].(۲)
**مسئله نمبر ۱۱:** يولسمه مسئله په دې كښې دا ده چې پيغمبرانو ﷺ اود امت د علماء كرامو فرض دا دی چې د خلقو د آخرت درست كولو فكر اوكړی هغوئ دداسې كارونو نه بچ كړی چې په آخرت كښې د عذاب موجب جوړيږی . دغه شان ددوئ دپاره دا پكار دی چې د مسلمانانو په معاشی نظام باندې هم نظرساتی څكه چې هغوئ پريشان نه شی.لكه چې يوسف ﷺ په دغې موقعه صرف د خوب په تعبير خودلو باندې بس والې اونه كړو ، بلكه د حكمت او خير خواهئ مشوره ئې هم وركړه چې دغنمو كامل شوې فصل په وږو كښې خوندی كوئ ، صرف د خوراك دپاره ترې غله صفا كوئ او د وږو نه ئې راؤباسی دپاره ددې چې په خوندی كيدو سره دغه غله خرابه نشی.
**مسئله نمبر ۱۲:** دولسمه مسئله داده چې عالم مقتدا لره دا فكر هم كول پكار دی چې په ده باندې د بدګمانی رانشی اګر چې دغه بدګمانی سراسر غلطه وی ، دې نه د ځان ساتلو انتظام څكه كول پكار دی چې په چا باندې بدګمانی پيدا كيدل د دعوت او ارشاد په كار كښې خلل راولی

(۱) تفسیرابن کثیرتحت هذه الآیة ج: ۴ص: ۳۴۰.
(۲) تفسیرابن کثیر ج: ۴ص: ۳۴۰.

خو اه دغه بدگمانی د څه جهالت یا دکم فهمۍ په وجه وی خو بیا هم په خلقو کښې ددۀ د خبرې څه قدر وی [قرطبی] (۱)

د رسول کریم ﷺ ارشاد دې چې د تهمت د ځایونو نه ځان ساتۍ یعنی داسې حالاتو او موقعو نه هم ځان ساتۍ په کومه کښې چې په تاسو باندې د تور پورې کیدو امکان کیدې شی. دا حکم خو عامو مسلمانانو دپاره دې، خاصانو او علماء کرامو دپاره په دې کښې نور هم زیات احتیاط کول پکار دی. رسول کریم ﷺ به پخپله هم ددې ډیر خیال ساتلو حالانکه هغوئ ﷺ د ټولو عیبونو او گناهونو نه پاك وو، یو ځل رسول کریم ﷺ خپلې بی بی سره د مدینې منورې په یوه کوڅه کښې تیریدل، څوك صحابه کرام ﷺ چې مخې ته ورغلل نو د لرې نه ئې هغوئ ﷺ ته اوفرمائیل چې ما سره دا فلانۍ خپله بی بی ده. (۲) مطلب ئې دا وو چې هسې نه هغوئ ﷺ پرې د پردۍ ښځې شك او کړی. په دې بنا یوسف ﷺ کله چې د خلاصۍ موندو او دشاهی بلنې بیاموندو دخلاصی موندنه وړاندې ئې دا کوشش اوکړو چې د خلقو شك لرې شی.

**مسئله نمبر ۱۳:** په دې کښې دیارلسمه مسئله داده چې د چا حقوق د بل چا په ذمه وی او په دې شان سره د هغه عزت کول واجب وی، که د مجبورۍ په حالاتو کښې د هغه په خلاف څه کاروائی کول راشی نو په هغې کښې هم د خپل وس په جوړ د حقونو او عزت لحاظ ساتل د شرافت تقاضا ده لکه یوسف ﷺ د خپلې بیگناهۍ ثابتولو په موقعه باندې تحقیقاتو دپاره د عزیز مصریا دهغه دبی بی د نوم اخستو په ځائې دهغې ښځې ذکر اوکړو چاچې خپل لاسونه پرې کړی وو [قرطبی] (۳) ځکه چې د غه مقصد په دغسې شان سره حاصلیدې شو.

**مسئله نمبر ۱۴:** د بهترینو اخلاقو خودنه داده چې دکومو خلقو دلاسه اوه یادولس کاله چې د جیل خانې تکلیف تیرول راغلی وو، د خلاصی موندو په وخت هغوئ نه دبدلې اخستلو څه اقدام کول خو لا څه کوې، دائې هم برداشت نه کړل چې هغوئ ته د دوئ ﷺ نه څه معمولی تکلیف هم اورسی ځنگه چې په دې آیت مبارك کښې ئې بیان راغلې دې فرمائی چې: [ذٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ بِالْغَيْبِ].

[الحمد لله پاره نمبر ۱۲ ختمه شوه]

---

(۱) تفصیل دپاره اوگورئ: تفسیر القرطبی ج: ۹ص: ۲۰۷.

(۲) صحیح البخاری کتاب الصوم باب زیارة المرأة زوجها فی اعتكافه ج: ۱ص: ۲۷۳

(۳) تفسیر القرطبی تحت هذه الآية ج: ۹ص: ۲۰۷.

Scanned with Ca